# فتح الهدایة

شرح

# هدایة

داول ټول لپاره په آسانه معیاري پښتو
دهدایې یوه جامع شرحه

ژباړه او ترتیب

مولوي حبيب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربيه



صداقت کتبخانه
کندهار

وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ [القرآن]

# فتح الهداية

## پښتو شرح

# هدايه

د اول ځل لپاره په آسانه معياري پښتو
د هدايې يوه جامع شرحه




كتاب الصرف - كتاب الوكالة

ژباړه او ترتيب:


مولوي حبيب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربية



صداقت كتب خانه- كندهار

حنفی شافعی

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# کفایت دینی کتب خانہ

## کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب وغیرہ۔

کفایت اللہ ابن صدیق




+923052488551
+923247442395

مالکی حنبلی

بسم الله الرحمن الرحيم




د کتاب پېژندنه

❁ د کتاب نوم : فتح الهدايه پښتو شرح هدايه

❁ ژباړه او ترتيب : مولوي حبيب الرحمن مدني

❁ ټوک : اووم

❁ خپرندوی : صداقت کتب خانه/ کندهار

❁ کمپوز/ ډيزاين : صداقت د کتاب چاپولو اداره

❁ د چاپ کال : ۱۳۹۸ ل./ ۱٤٤٠ هـ.ق. / ۲۰۱۹ م.

❁ چاپ شمېر : ۱۰۰۰ ټوکه

د تر لاسه کولو ځای:

**صداقت کتب خانه**

کندهار - افغانستان

تليفون: ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

ايميل: sadaqat.books@gmail.com

# فهرس

## كِتَابُ الْكَفَالَةِ ........ ۶۱

## بَابُ كَفَالَةِ الرَّجُلَيْنِ ..... ۱۹۲



## بَابُ كَفَالَةِ الْعَبْدِ وَعَنْهُ ..... ۲۰۵



## كِتَابُ الْحَوَالَةِ ..... ۲۱۶

# كِتَابُ الصَّرْفِ

(دا) كتاب د "بيع صرف" (په بيان كي) دى

**تشريح**: د بيع له اقسامو څخه يو قسم بيع صرف ده او مصنف رَحِمَهُ الله ځکه دا قسم د بيع له نورو اقسامو څخه مؤخر کړی دی چي په بيع صرف کي دواړه عوضونه ثمن وي. او ثمن وصف دی او مبيع اصل ده (يعني په عقدِ بيع کي ثمن وصف دی او مبيع اصل ده). او دا ټولو ته معلومه ده چي اصل پر وصف مخکي وي. نو ځکه يې د بيع نور اقسام مخکي کړل او بيع صَرف يې د ټولو په آخر کي ذکر کړه. (نهايه ج۷ ص:۵۰۱)

**د صرف لغوي او اصطلاحي معنى**: د صَرف لغوي معنیٰ ده: ګرځول (اړول را اړول). خرچول (مصرفول). زياتوب او اضافه (د لغوي معنى وضاحت او تفصيل په خپله مصنف رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی).

د بيع صَرف اصطلاحي معنیٰ ده: د ثمن په بدله کي د ثمن بيع کول (يعني سره زر د سرو زرو په عوض کي خرڅول او رانيول. سپين زر د سپينو زرو. يا سپين زر د سرو زرو. يا يوه سکه اَمثلاً کلداري ا د بلي سکې په عوض کي خرڅول او رانيول. دې ته بيع صَرف وايي. په دغه بيع کي دا ضروري ده چي پر دواړو عوضونو به په مجلس کي دننه قبضه کيږي. کنې بيع فاسديږي).

## د "بيع صَرف" تعريف او وجه تسميه

قَالَ: الصَّرْفُ هُوَ الْبَيْعُ إِذَا كَانَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْ عِوَضَيْهِ مِنْ جِنْسِ الْأَثْمَانِ صَرف هغه بيع ده چي د هغې له دواړو عوضونو څخه هر عوض د ثمنو [نقودو] له جنس څخه وي سُمِّيَ بِهِ لِلْحَاجَةِ إِلَى النَّقْلِ فِي بَدَلَيْهِ مِنْ يَدٍ إِلَى يَدٍ دا عقد ځکه په "صَرف" سره نومول سوی دی چي د هغه په دواړو عوضونو کي له يوه لاس څخه بل لاس ته ا د دواړو عوضونو ا منتقل کېدلو ته ضرورت سته وَالصَّرْفُ هُوَ النَّقْلُ وَالرَّدُّ لُغَةً او "صرف" په لغت کي منتقل کولو او ګرځولو ته وايي أَوْ لِأَنَّهُ لَا يُطْلَبُ مِنْهُ إِلَّا الزِّيَادَةُ يا ځکه چي په دغه عقد سره فقط زياتوب [اضافه] مطلوب وي إِذْ لَا يُنْتَفَعُ بِعَيْنِهِ ځکه چي د هغه [ثمن] په ذات سره نفع نه سي اخيستل کېدای وَالصَّرْفُ هُوَ الزِّيَادَةُ لُغَةً او په لغت کي "صَرف" زياتوب ته [هم]

وايي كَذَا قَالَهُ الْخَلِيْلُ همداسې خليل نحوي ويلي دي وَمِنْهُ سُمِّيَتِ الْعِبَادَةُ النَّافِلَةُ صَرْفًا او له همدې کبله نفلي عبادت په "صَرف" سره نومول سوې دی.

**اللغات:** ﴿نقل﴾ د نصر مصدر دی: نقل کول، منتقل کول. ﴿ردّ﴾ د نصر مصدر دی، د دغه باب دوې معناوې دي: واپس کول، ګرځول (معجم الوسيط). ﴿سميّت﴾ د تفعيل ماضي ده: نومول (نوم ايښول).

**تشريح:** فرمايي بيع صَرف هغه بيع ته وايي چې د هغې دواړه عوضونه د ثمن له جنس څخه وي، مثلاً سپين زر د سپينو زرو په عوض کې، سره زر د سرو زرو په عوض کې، يا يو د بل په عوض کې.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دغه عقد ته د "صَرف" ويلو دوې وجهې بيان کړيدي (يعني دغه بيع ته په دوو وجهو "بيع صَرف" ويل سوي دي): ① ... اوله وجه دا ده چې د صرف لغوي معنیٰ ده: ګرځول (اړول) او منتقل کول، لکه په دې آيت کې چې ذکر سوي دي: ﴿ثُمَّ انْصَرَفُوْا صَرَفَ اللهُ قُلُوْبَهُمْ﴾ [سورة التوبة:۱۲۷]، (بيا کفار وګرځېدل، الله د دوی زړونه ګرځولي [اړولي] دي). او څرنګه چې په دې عقد کې هم دواړه عوضونه (په يوه مجلس کې) له يوه لاس څخه بل لاس ته اړول کيږي او منتقل کيږي، نو په همدې وجه دغه عقد ته "صَرف" ويل سوي دي.

② ... دويمه وجه يې دا ده چې د امام خليل نحوي د بيان مطابق د "صرف" لغوي معنیٰ ده: زياتوب او اضافه، له همدې کبله نفلي عبادت ته "صَرف" ويل کيږي، لکه څرنګه چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: "مَنْ اِنْتَمٰى اِلٰى غَيْرِ أَبِيْهِ لَا يَقْبَلِ اللهُ مِنْهُ صَرْفًا وَلَا عَدْلًا" (يعني څوک چې له خپل پلار څخه بغير د بل وچا وطرف ته خپل نسبت وکړي [چې زه د فلانکي زوی يم] الله تعالیٰ نه د هغه نفل قبلوي او نه يې فرض قبلوي). په دې حديث کې د صَرف لفظ د نفلي عبادت لپاره استعمال سوی دی، او نفلي عبادت هم يو زائد (اضافي) شی دی له فرائضو څخه، نو معلومه سوه چې د صرف لغوي معنیٰ ده: زياتوب (اضافه)، او په عقد صرف سره مطلوب هم زياتوب (اضافه) وي، مثلاً عاقد د کره دراهمو په بدله کې کوټه دراهم ورکوي يا مثلاً د سپينو زرو د ټوټو (ټوکرو) په عوض کې جوړ سوي دراهم ورکوي، نو ښکاره خبره ده چې دا يو ډول زياتوب (اضافه) ده (حاصل دا چې د ثمن په بدله کې د ثمن په ورکولو سره مطلوب او مقصود همدا زياتوب او اضافه حاصلول دي، ځکه چې ثمن [يعني سره زر او سپين زر] داسې شی دی چې بذات خود د هغه له ذات څخه نفع نه سي اخيستل کېدی، نو که چيري په بيع الثمن بالثمن کې زياتوب [اضافه] مطلوب او مقصود نه سي نو دا بيع الثمن بالثمن [بيع صَرف] به له فايدې څخه خالي وي، حال دا چې د دغه عقد په کولو سره خامخا د عاقدينو مقصود يو

فایده او د مال اضافه وي) نو ثابته سوه چي په بیع صَرف (عقدِ صرف) سره زیاتوب او اضافه مطلوب وي. او د صَرف لغوي معنیٰ هم زیاتوب ده. نو په دې حواله سره دغه عقد ته "صَرف" ویل سوي دي.

## د "بیع صَرف" طریقه او حکم

قَالَ: فَإِنْ بَاعَ فِضَّةً بِفِضَّةٍ أَوْ ذَهَبًا بِذَهَبٍ فرمایي: که څوک سپین زر د سپینو زرو په عوض کي یا سره زر د سرو زرو په عوض کي خرڅ کړي لَايَجُوزُ إِلَّا مِثْلاً بِمِثْلٍ نو دا جائز نه دي مګر برابر. برابر وَإِنِ اخْتَلَفَا فِي الْجَوْدَةِ وَالصِّيَاغَةِ که څه هم هغوی په کَرَه والي او جوړ کي یو له بل څخه مختلف وي لِقَوْلِهِ ﷺ: « الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ [1] مثلاً بِمِثْلٍ وَزْنًا بِوَزْنٍ يَدًا بِيَدٍ وَالْفَضْلُ رِبًا » ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: چي سره زر د سرو زرو په عوض کي برابر، برابر، وزن په وزن او لاس په لاس [به خرڅول کیږي] او زیاتوب سُود دی وَقَالَ ﷺ: جَيِّدُهَا وَرَدِيئُهَا سَوَاءٌ او نبي ﷺ فرمایلي دي: چي د دغو مالونو ښه او بد [کَرَه او کوټه] سره برابر دي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْبُيُوعِ او دا موږ په کتابُ البیوع کي [هم] ذکر کړي دي.

**اللغات**: ﴿جودة﴾ د نصر او کَرُم اسمِ مصدر دی: ښه والی، کَرَه والی (اصلي والي)، سوچه والی، ﴿صیاغة﴾ د نصر اسمِ مصدر دی: جوړ (بناوټ)، جوړوالی (د سره او سپینو زرو لپاره استعمالیږي) صَاغَ يَصُوغُ صَوْغًا: له سره زرو او سپینو زرو څخه یو شی جوړول (لکه زېورات او داسي نور)، ﴿الفضل﴾ اضافه، زیاتوب، ﴿رديء﴾ خراب، بد، کمي درجې والا.

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که څوک سپین زر د سپینو زرو په عوض کي یا سره زر د سرو زرو په عوض کي خرڅ کړي، نو دا عقد هغه وخت جائز کیږي کله چي د وزن په اعتبار سره دواړه عوضونه برابر وي، که څه هم په جودت یا صیاغت (جوړ) کي د دواړو تر مینځ فرق وي، په دې توګه چي په هغوی کي یو ښه جوړ سوی (تیار سوی) وي او دویم د هغه په نسبت ښه نه وي جوړ سوی، حاصل دا چي که دواړه عوضونه په جودت یا صیاغت کي مختلف وي نو بیا هم د عقد جائز کېدلو لپاره په هغه دواړو عوضونو کي برابري ضروري ده او د جودت او صیاعت فرق لره اعتبار نسته؛

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په دلیل کي دوه حدیثونه پېش کړي دي: یو هغه حدیث دی کوم چي په کتاب البیوع کي تېر سو چي په هغه کي نبي کریم ﷺ شپږشیان ذکر کړي دي: سره زر، سپین زر،

مالګه، خرما، غنم، اوربشي او تر هغه وروسته یې فرمایلي دي: "مَثَلًا بِمَثَلٍ (یعني وَزْنًا بِوَزْنٍ، كَيْلًا بِكَيْلٍ) او يَدًا بِيَدٍ. یعني دوه شیان ضروري دي: یو دا چې موزونات به د وزن په ذریعه او مکیلات به د کَیل په ذریعه یو د بل سره برابر وي. دویم دا چې د عقد په مجلس کې به پر دواړو عوضونو قبضه کیږي. او که چیرې د وزن یا کَیل په ذریعه یو عوض د بل عوض سره برابر نه کړی سي یا په مجلس کې قبضه نه وسي، نو دا ربوا ده او ربوا حرامه ده. له دغه حدیث څخه معلومه سوه چې د اموال ربویه په بیع کې د دواړو عوضونو په مینځ کې مساوات او برابري ضروري ده.

دویم حدیث دا دی چې په اموال ربویه کې ښه او بد (کَره او کوټه) دواړه سره برابر دي. یعني که یو عوض کره وي او بل کوټه وي نو هم مساوات ضروري دي او کمي وزیاتوب حرام دی. له دغه حدیث څخه معلومه سوه چې اسلام کَرَه او کوټه ته یوه درجه (مساوي درجه) ورکړې ده او د دواړو تر مینځ یې د فرق اعتبار نه دی کړی (یعني په شریعت اسلام کې د کَوټه او کَرَه تر مینځ فرق نسته).

## په "بیع صَرف" کې پر عوضَینو قبضه ضروري ده (تفصیلي بحث)

قَالَ: وَلَا بُدَّ مِنَ قَبْضِ الْعِوَضَيْنِ قَبْلَ الِافْتِرَاقِ فرمایي: او [د عاقدَینو] له جلا کېدلو څخه مخکې پر دواړو عوضونو قبضه کول ضروري دي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړی وَلِقَوْلِ عُمَرَ رضي الله عنه: وَإِنِ اسْتَنْظَرَكَ أَنْ يَدْخُلَ بَيْتَهُ فَلَا تُنْظِرْهُ او ځکه چې حضرت عمر رضي الله عنه فرمایلي دي: که چیرې هغه [عاقد] ستا څخه د دې مهلت وغواړي چې خپل کور ته داخل سي نو ته هغه ته مهلت مه ورکوه! وَلِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ قَبْضِ أَحَدِهِمَا لِيَخْرُجَ الْعَقْدُ عَنِ الْكَالِئِ بِالْكَالِئِ او ځکه چې پر احدُ العوضَین خو قبضه کول ضروري دي، د دې لپاره چې عقد له دَین بدَین څخه ووځي [یعني چې قرض په عوض کې د قرض معامله واقع نه سي] ثُمَّ لَا بُدَّ مِنْ قَبْضِ الْآخَرِ تَحْقِيقًا لِلْمُسَاوَاةِ بیا د مساوات ثابتولو لپاره پر بل [دویم] عوض قبضه کول [هم] ضروري دي فَلَا يَتَحَقَّقُ الرِّبَوا [د دې لپاره چې] ربوا ثابته نه سي وَلِأَنَّ أَحَدَهُمَا لَيْسَ بِأَوْلَى مِنَ الْآخَرِ او ځکه چې په دواړو عوضونو کې یو له بل څخه اولیٰ [افضل] نه دی فَوَجَبَ قَبْضُهُمَا نو ځکه پر دواړو عوضونو قبضه کول ضروري دي سَوَاءٌ كَانَا يَتَعَيَّنَانِ برابره ده هغوی دواړه [په مُتعیَن کولو سره] مُتعیَن کیږي كَالْمَصُوْغِ لکه [د سره او سپینو زرو څخه] جوړ سوی شی أَوْ لَا يَتَعَيَّنَانِ او که نه مُتعیّن کیږي كَالْمَضْرُوْبِ لکه [د سره او سپینو زرو څخه] تیاره سوي سکّه [یعني دراهم او دنانیر] أَوْ يَتَعَيَّنُ أَحَدُهُمَا وَلَا يَتَعَيَّنُ الْآخَرُ او که په دواړو عوضونو کې

يو مُتعين كيږي او بل نه مُتعين كيږي لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا د هغه حديث د مطلق والي په وجه كوم چې موږ روايت كړی وَلِأَنَّهُ إِنْ كَانَ يَتَعَيَّنُ فَفِيْهِ شُبْهَةُ عَدَمِ التَّعْيِيْنِ او ځكه چې كه څه هم هغه مُتعين كيږي ليكن بيا هم په هغه كي د نه مُتعين كېدلو شبهه سته لِكَوْنِهِ ثَمَنًا خِلْقَةً ځكه چې هغه په پيدايشي توګه ثمن دی فَيُشْتَرَطُ قَبْضُهُ اِعْتِبَارًا لِلشُّبْهَةِ فِي الرِّبَوا نو ځكه د شبهة الربوا په اعتبار كولو سره به پر هغه قبضه كول شرط وي وَالْمُرَادُ مِنْهُ الِافْتِرَاقُ بِالْأَبْدَانِ او [په متن كي] له افتراق څخه مراد "افتراق بالابدان" دی [يعني (د عاقدينو) له جلا كېدلو څخه مراد د بدن په اعتبار سره جلا كېدل دي] حَتَّى لَوْ ذَهَبَا عَنِ الْمَجْلِسِ يَمْشِيَانِ مَعًا فِي جِهَةٍ وَاحِدَةٍ نو كه چيري دواړه عاقدين [عقد ګونكي] له مجلس څخه ولاړ سي او په يوه طرف كي دواړه يو ځای سره روان وي أَوْ نَامَا فِي الْمَجْلِسِ يا دواړه په مجلس كي بيده سي أَوْ أُغْمِيَ عَلَيْهِمَا يا دواړه بې هوښه سي لَا يَبْطُلُ الصَّرْفُ نو [په دې ټولو صورتونو كي] بيع صَرف نه باطليږي لِقَوْلِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: "وَإِنْ وَثَبَ مِنْ سَطْحٍ فَثِبْ مَعَهُ" ځكه چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايلي دي: او كه چيري هغه [عاقد] له چت [بام] څخه وغورځيږي نو ته هم د هغه سره وغورځېږه! وَكَذَا الْمُعْتَبَرُ مَا ذَكَرْنَاهُ فِي قَبْضِ رَأْسِ مَالِ السَّلَمِ او كوم څه چې موږ ذكر كړه هغه د بيع سَلم د رأسُ المال په قبضه كولو كي هم معتبر دي بِخِلَافِ خِيَارِ الْمُخَيَّرَةِ په خلاف د مخيره ښځي د اختيار لِأَنَّهُ يَبْطُلُ بِالْإِعْرَاضِ ځكه چې د هغې اختيار په اعراض سره [هم] باطليږي.

**اللغات**: ﴿افتراق﴾ د افتعال د باب مصدر دی: يو له بل څخه جلا كېدل (يو له بل څخه تلل). ﴿استنظرك﴾ د استفعال د باب ماضي ده: مهلت غوښتل (څه وخت غوښتل). ﴿لا تُنظر﴾ د واحد مذكر نهي حاضر صيغه ده د افعال له باب څخه: مهلت وركول (وخت وركول. وقفه وركول). ﴿مصوغ﴾ د نصر د باب مفعول دی: له سرو زرو او سپينو زرو څخه جوړ سوی شی. ﴿مضروب﴾ له سرو او سپينو زرو څخه جوړه سوې سكه (كوم چې په يو خاص طرز او خاص قالب كي جوړه سوې وي). ﴿أُغمِي﴾ د افعال ماضي مجهوله ده: بې هوښه كېدل. بې سده كېدل. ﴿وثب﴾ د ضرب ماضي ده: غورځېدل. ټوپ وهل. ﴿إعراض﴾ د افعال مصدر دی: مخ اړول (روګرداني). توجه نه كول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د علماؤ او فقهاؤ په اتفاق سره په بیع صَرف کې د عقد له مجلس څخه (د عاقدینو) تر جلا کېدلو مخکې پر دواړو عوضونو قبضه کول ضروري دي.

او په دې هکله کې نقلي او عقلي ټوله دلائل موجود دي. نقلي دلیل د "یَدًا بِیَدٍ" حدیث دی چې په هغه کې نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چې نقود به برابر او لاس په لاس خرڅول کیږي. په هغه حدیث سره موږ په دې توګه دلیل نیسو چې د "یَدًا بِیَدٍ" لفظ د قبضې په معنیٰ سره دی. نو ځکه د عقد صرف د صحیح کېدلو لپاره د عقد په مجلس کې دننه پر دواړو عوضونو قبضه ضروري ده. دویم دلیل د حضرت عمر رضی الله عنه هغه فرمان دی کوم چې په "مؤطا امام مالک" کې په دې الفاظو سره ذکر سوی دی: "لَا تَبِيْعُوا الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ إِلَّا مِثْلاً بِمِثْلٍ، وَلَا تَبِيْعُوا الْوَرِقَ بِالذَّهَبِ أَحَدُهُمَا غَائِبٌ وَالآخَرُ نَاجِزٌ، وَإِنِ اسْتَنْظَرَكَ أَنْ يَلِجَ بَيْتَهُ فَلَا تُنْظِرْهُ إِلَّا يَدًا بِيَدٍ لِأَنِّي أَخْشَى عَلَيْكُمُ الرِّبَوا" (مؤطا امام مالک. رقم: ۱۳۰۳)

(یعني حضرت عمر رضی الله عنه وفرمایل چې تاسو سره زر د سرو زرو په عوض کې مه خرڅوئ! مګر برابر، برابر. او سپین زر په داسې حالت کې د سپینو زرو په عوض کې مه خرڅوئ! چې یو عوض نا موجود وي او بل موجود وي. او که چیرې ستا څخه [ستا ملګری عاقد] د دې لپاره مهلت وغواړي چې زه کور ته ننوځم (او خپل عوض راوړم)، نو هغه ته دومره مهلت هم مه ورکوه!. مګر معامله لاس په لاس کوئ! ځکه چې زه پر تاسو له ربوا څخه بېرېږم) یعني زه پر دې بېرېږم چې کور ته د ننوتلو او راوتلو په وجه چې په قبضه کې کوم تاخیر وسي هغه سُود او ربوا نه وګرځي. نو ځکه زما رایه دا ده چې یو عاقد دې بل عاقد ته دومره لږ مهلت هم نه ورکوي. له دې فرمان څخه هم معلومه سوه چې د بیع صَرف د صحت لپاره د عقد په مجلس کې پر دواړو عوضونو قبضه کول ضروري دي.

پر عوضَینو د قبضه کولو عقلي دلیل دا دی چې له "بیعُ الکالئ بالکالئ" (بیعُ الدَین بالدَین) څخه د ځان ساتلو لپاره پر یوه عوض قبضه کول ضروري دي، او پر بل عوض ځکه قبضه کول ضروري دي چې په دواړو عوضونو کې برابري او مساوات راسي او په یوه عوض کې د کمي یا زیاتوب په وجه ربوا لازم نه سي. کنې که پر یوه عوض قبضه وسي او پر بل نه وسي نو یو عوض نقد سو او بل قرض سو (یعني پر کوم عوض چې قبضه وسي هغه نقد [نغد] سو [ځکه فوراً اداء سو] لېکن پر کوم عوض چې قبضه نه وسي هغه قرض او پور سو) لهذا د "النَّقْدُ خَيْرٌ مِنَ النَّسِيْئَةِ" والا په قاعده سره به مقبوض عوض تر غیر مقبوض عوض افضل او غوره وي (ځکه نقد ته پر قرض یو ډول افضیلت او ارزښت حاصل دی)، او ربوا

همدې ته وايي چې يو عوض له بل عوض څخه افضل وي. نو ځکه په دې حواله سره هم پر دواړو عوضونو قبضه کول ضروري دي. د دې لپاره چې پر يوه عوض د بل عوض ترجيح او افضليت لازم نه سي.

**سواء كانا يتعينان إلخ:** او د قبضې دغه پورتنی حکم (يعني پر عوضَينو د قبضه کولو حکم) عام دی، يعني برابره ده دواړه عوضونه داسي وي کوم چي په مُتعيّن کولو سره مُتعيَن کيږي لکه د سره او سپينو زرو څخه جوړ سوي (مصوغ) زېورات او لوښي. يا دواړه عوضونه داسي وي کوم چي په مُتعيّن کولو سره نه مُتعيَن کيږي لکه دراهم او دنانير (مضروب)، يا له دواړو عوضونو څخه يو عوض داسي وي کوم چي په مُتعيّن کولو سره مُتعيّن کيږي او بل عوض نه مُتعيَن کيږي، په هر صورت کي پر دواړو عوضونو قبضه کول شرط او ضروري دي؛ دليل دا دی چي په مخکني حديث ''الذهب بالذهب.....يدًا بيدا'' کي چي کوم د ''يدًا بيدٍ'' حکم ذکر سوی دی هغه عام او مطلق دی او په هغه کي د مُتعيَن کېدونکي او نه مُتعيّن کېدونکي نقودو هيڅ تفصيل نه دی ذکر سوی بلکي مضروب، مصوغ او غير مصوغ ټولو لره شامل دی.

**ولأنه إن كان يتعيّن إلخ:** دا د يو اعتراض جواب دی. اعتراض دا دی چي په بيع صَرف کي چي تاسو په عمومي توګه په هر ډول نقودو کي پر عوضَينو قبضه کول شرط ګرځولې ده، دا صحيح نه دي؛ ځکه چي پر عوضَينو د قبضه نه کولو په وجه د ''بيعُ الكالئ بالكالئ'' خرابي فقط په بيع المضروب بالمضروب يعني د دراهم او دنانيرو والا په صورت کي لازميږي، لېکن څرنګه چي له مضروب (دراهم او دنانيرو) څخه بغير مصوغ شيان په مُتعيّن کولو سره مُتعيَن کيږي، نو ځکه په دې صورت کي بيع الكالئ بالكالئ نه لازميږي او کله چي دا نه لازميږي نو ربوا هم نه ثابتيږي، لهذا په دې صورت کي پکار دا ده چي پر دواړو عوضونو قبضه کول شرط نه وګرځول سي.

د دې په جواب کي په فرمايي چي مصوغ شيان (يعني له سره او سپينو زرو څخه جوړ سوي زېورات او لوښي) که څه هم په مُتعيّن کولو سره مُتعيّن کيږي، لېکن څرنګه چي هغوی په پيدايشي توګه ثمن دي (يعني په اصل کي سره او سپين زر دي)، نو ځکه په هغوی کي د عدم تعيين (نه مُتعين کېدلو) شبهه سته. او دا شبهه د ربوا شبهې لره مستلزم ده، او تاسو ته معلومه ده چي د سُود او ربوا په باب کي چي څرنګه حقيقي ربوا حرامه ده همداسي شبهۀ ربوا هم حرامه ده. نو ځکه موږ ويوا چي په مصوغ او غير مصوغ ټولو شيانو کي پر عوضَينو قبضه کول شرط او ضروري دي.

**والمراد منه إلخ:** فرمايي په متن کي چي کوم د ''قبل الافتراق'' شرط لګول سوی دی، له هغه څخه افتراق بالأبدان مراد دی، يعني د جسم او بدن په اعتبار سره د عاقدَينو تر جلا کېدلو مخکي د عقد په

مجلس کې پر عوضینو قبضه کول ضروري دي، لهذا که دواړه عاقدين له مجلس څخه يوځای سره ولاړ سي او دواړه په يوه طرف کې روان وي يا دواړه بل طرف ته يوځای سره ولاړ سي، يا دواړه يوځای په مجلس کې بيده سي، يا دواړه بې هوښه سي نو په دې سره بيع صَرف نه باطليږي؛ ځکه چې افتراق بالابدان موجود نه سو. د دې تائيد د حضرت عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په هغه فرمان سره هم کيږي چې په هغه کې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا له افتراق بالابدان څخه مخکې پر عوضينو قبضه کول ضروري ګرځولي دي او تر دې حده يې فرمايلي دي چې "وإِنْ وَثَبَ عَنْ سَطْحٍ فَثِبْ مَعَهُ" يعني که يو عاقد تر قبضې مخکې له چت (بام) څخه وغورځيږي نو بل عاقد دي هم ور سره وغورځيږي د دې لپاره چې افتراق بالابدان موجود نه سي او بيع صَرف له بطلان څخه وساتل سي.

وكذا المعتبر إلخ: فرمايي په بيع سَلم کې چې موږ "قبل الافتراق" پر رأسُ المال د قبضه کولو شرط لګولی وو، له هغه څخه هم افتراق بالْابدان مراد دی.

د دې په خلاف که يو سړی خپلې ښځې ته "اِخْتَارِیْ نَفْسَكِ" ووايي يعني د طلاق اختيار ورکړي، او هغه ښځه له مجلس څخه ولاړه سي، نو که څه هم د هغې سره يوځای خاوند ولاړ سي، بيا هم د هغې اختيار باطليږي؛ ځکه که څه هم دلته افتراق بالابدان موجود نه سو ليکن اعراض خو موجود سو، او د مخيره ښځې اختيار په اعراض سره هم باطليږي.

## سره زر د سپينو زرو په عوض کې خرڅول (حكم)

وَإِنْ بَاعَ الذَّهَبَ بِالْفِضَّةِ او که سره زر د سپينو زرو په عوض کې خرڅ کړي جَازَ التَّفَاضُلُ نو زياتوب وکمي [کمي وبيشي] جائز دی لِعَدَمِ الْمُجَانَسَةِ د مجانست د نشتوالي په وجه [يعني ځکه چې په دې صورت کې دواړه عوضونه له يوه جنس څخه نه دي] وَوَجَبَ التَّقَابُضُ او په مجلس کې [د دواړو عاقدينو] قبضه کول واجب دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَام[1]: الذَّهَبُ بِالْوَرِقِ رِبًوا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چې سره زر د سپينو زرو په عوض کې سُود دی مګر لاس په لاس فَإِنِ افْتَرَقَا فِي الصَّرْفِ قَبْلَ قَبْضِ الْعِوَضَيْنِ أَوْ أَحَدِهِمَا [ليکن] که چيرې عاقدين په عقد صرف کې پر دواړو عوضونو يا پر يوه عوض له قبضه کولو څخه مخکې جلا سي بَطَلَ الْعَقْدُ نو عقد باطليږي لِفَوَاتِ الشَّرْطِ وَهُوَ الْقَبْضُ ځکه

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب البيوع، باب ما يذكر في بيع الطعام، حديث رقم: ٢١٣٤.

چي شرط يعني قبضه فوت سوه وَلِهٰذَا لَا يَصِحُّ شَرْطُ الْخِيَارِ فِيهِ لو له همدې کبله په عقد صرف کي د خيار شرط لګول صحيح نه دي وَلَا الْأَجَلُ او نه د ميعاد [شرط لګول صحيح دي] لِأَنَّ بِأَحَدِهِمَا لَا يَبْقَى الْقَبْضُ مُسْتَحَقًّا ځکه چي له دې دواړو څخه د يوه په وجه قبضه مستحق [واجب] نه پاتيږي وَبِالثَّانِيْ يَفُوْتُ الْقَبْضُ الْمُسْتَحَقُّ او د دويم په وجه مستحقه [واجب سوې] قبضه فوتيږي إِلَّا إِذَا أُسْقِطَ الْخِيَارُ فِي الْمَجْلِسِ لېکن که چيري په مجلس کي خيار ساقط کړی سي فَيَعُوْدُ إِلَى الْجَوَازِ نو عقد [بيرته] د جواز وطرف ته راګرځي لِارْتِفَاعِهِ قَبْلَ تَقَرُّرِهِ ځکه چي [په دې صورت کي] فساد له مستحکم کېدلو څخه مخکي ختم سو وَفِيْهِ خِلَافُ زُفَرَ او په دې کي د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلاف [هم] دی.

**اللغات**: ﴿تفاضل﴾ د تفاعل د باب اسمِ مصدر دی: کمي وزياتوب، کمي وبيشي (أحسن الهدايه)، ﴿مجانست﴾ د مفاعلې مصدر دی: همجنس کېدل (له يوه جنسه کېدل)، ﴿تقابض﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو تربله قبضه سره کول (باهمي قبضه کول)، ﴿الورق﴾ د سپينو زرو ټوټه، ﴿هاء وهاء﴾ "هَاءَ" مبني پر فتح دی په معنیٰ سره د "واخله"، او د "هاء وهاء" معنیٰ ده: واخله او واخله (نو د حديث مطلب دا سو: چي سره زر د سپينو زرو په عوض کي خرڅول ربوا ده، مګر په هغه وخت کي ربوا نه ده کله چي هغوی بالکل پريوه ځای داسي خرڅ کړل سي! چي بائع مشتري ته ووايي: واخله! او مشتري بائع ته ووايي: واخله! مطلب دا چي بالکل لاس په لاس سره خرڅ کړل سي). ﴿تقرر﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: ثابتېدل، مستحکم کېدل (مضبوطېدل)، ﴿أجل﴾ ميعاد، تاکل سوی مودت، ﴿ارتفاع﴾ د افتعال د باب مصدر دی: پورته کېدل، ختمېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که چيري سره زر د سپينو زرو په عوض کي خرڅ کړل سي، نو په هغوی کي تفاضل يعني يو عوض کمېدل او بل زياتېدل جائز دي؛ ځکه چي د هغوی جنس سره يو نه دی (يعني د هغوی په مېنځ کي اتحادُ الجنس نسته)، او د اتحاد الجنس د نشتوالي په صورت کي په کمي وزياتوب سره خرڅول جائز دي. لېکن د عقد په مجلس کي پر دواړو عوضونو قبضه کول واجب دي؛ ځکه چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي "سره زر د سپينو په عوض کي خرڅول ربوا ده (يعني حرام دي) مګر لاس په لاس (هاء وهاء) جائز دي".

او که په عقد صرف کي پر دواړو عوضونو يا پر يوه عوض له قبضه ګولو څخه مخکي عاقدين سره جلا سي، نو عقد صرف باطليږي؛ ځکه د عقد صرف د صحت (صحيح والي) لپاره پر دواړو عوضونو قبضه کول شرط دي، او دلته دا شرط فوت سو، نو ځکه به هغه باطليږي (لأنه إذا فات الشرط فات المشروط).

ولهذا إلخ: او څرنګه چي په عقد صرف کي له قبضي څه مخکي د دواړو عاقدَينو جلا کېدل عقد صرف باطلوي، نو ځکه نه په عقد صرف کي د خيار شرط لګول صحيح دي او نه د ميعاد شرط لګول صحيح دي. د خيار شرط صورت دا دی چي يو عاقد بل عاقد ته ووايي: چي (مثلاً) زه دغه دراهم په دې شرط (ستا د دنانيرو په عوض کي) پر تا خرڅوم چي ما ته به درې ورځې اختيار وي. او د ميعاد صوارت دا دی: چي زه دغه دراهم په دې شرط (ستا د دنانيرو په عوض کي) پر تا خرڅوم چي دراهم زه يوه مياشت وروسته درکوم. او بل عاقد معامله ور سره وکړي. نو دا دواړه صورتونه ناجائز دي؛ خيار شرط ځکه صحيح نه دي چي هغه د "من لا خيار لهٔ" په حق کي له ثبوتُ الملک څخه مانع دی (يعني په دواړو عاقدَينو کي چي د کوم عاقد لپاره خيار شرط نه وي د هغه لپاره ملکيت نه ثابتيږي) يعني پر احدُ العوضَين د "من لا خيار لهٔ" ملکيت نه ثابتيږي، او کله چي د هغه ملکيت ثابت نه سُو نو د ده لپاره به پر هغه عوض قبضه کول هم واجب نه وي. لنډه دا چي د خيار شرط په صورت کي قبضه "مستحق" يعني "واجب" نه پاتيږي (يعني قبضه نه واجب کيږي). او د ميعاد شرط لګول ځکه صحيح نه دي چي د هغه په وجه واجب سوې قبضه فوتيږي يعني د قبضي وجوب تر ميعاد (تاکل سوي مودت) پوري مؤخر کيږي. خلاصه دا چي د "خيار شرط" په وجه قبضه نه واجب کيږي او د "ميعاد" د شرط په وجه واجب سوې قبضه فوتيږي، حال دا چي د عقد صرف د صحت لپاره د عقد په مجلس کي پر دواړو عوضونو قبضه کول ضروري دي. نو ځکه دا دوه شرطونه د عقد صرف منافي دي، او تاسو ته ښه معلومه ده چي په يو عقد کي داسي شرط لګول صحيح نه دي کوم چي د عقد سره منافي او مخالف وي.

إلاإذا أسقط إلخ: او که چيري بيا هم په عقد صرف کي د خيار شرط ولګول سي يعني يو عاقد د ځان لپاره خيار شرط واخلي، لېکن بيا د عقد په مجلس کي دننه هغه عاقد (من له الخيار) خپل خيار ساقط کړي، نو زموږ په نېز دا عقد بېرته جائز ګرځي. لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز جائز نه ګرځي.

د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د خيار شرط لګولو په وجه عقد يو ځل فاسد سو، او کوم شی چي يو ځل فاسد منعقد سي هغه بېرته جائز نه ګرځي، بلکي هغسي فاسد پاتيږي.

زموږ دليل دا دی چي صحيح ده! د خيار شرط لګولو په وجه عقد فاسدېدل پکار دي ځکه چي عاقد په مجلس کي دننه خپل خيار شرط ختم کړی نو ښکاره خبره ده چي فساد له مستحکم کېدلو او ثابتېدلو څخه مخکي ختم سو، لهذا کله چي د فساد وجه ختمه سوه نو ځکه عقد به بيرته د جواز وطرف ته راګرځي؛ ځکه قاعده دا ده چي "إذا زَال الْمَانِعُ عَادَ الْمَمْنُوع" يعني کله چي مانع زائل سي نو ممنوع شی بيرته راګرځي. (أحسن الهدايه)

## په عوضينو کي له قبضه کولو څخه مخکي د تصرّف کولو حکم

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ التَّصَرُّفُ فِي ثَمَنِ الصَّرْفِ قَبْلَ قَبْضِهِ فرمايي: او د بيع صَرف په ثمن کي له قبضه کولو څخه مخکي تصرف کول جائز نه دي حَتَّى لَوْ بَاعَ دِينَارًا بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ وَلَمْ يَقْبِضِ الْعَشَرَةَ حَتَّى اشْتَرَى بِهَا ثَوْبًا نو که [يو شوک] يو دينار د لسو درهمو په عوض کي خرڅ کړي او پر لسو درهمو قبضه نه وکړي تر دې چي د هغوی په عوض کي يوه کپړه رانيسي فَالْبَيْعُ فِي الثَّوْبِ فَاسِدٌ نو په کپړه کي بيع فاسده ده لِأَنَّ الْقَبْضَ مُسْتَحَقٌّ بِالْعَقْدِ حَقًّا لِلَّهِ تَعَالَى ځکه چي قبضه د عقد صرف په سبب د الله تعالیٰ د حق په وجه واجب ده وَفِي تَجْوِيزِهِ فَوَاتُهُ او د داسي تصرف په جائز ګرځولو کي د دې حق فوتېدل سته وَكَانَ يَنْبَغِي أَنْ يَجُوزَ الْعَقْدُ فِي الثَّوْبِ كَمَا نُقِلَ عَنْ زُفَرَ او مناسب دا وه چي په کپړه کي بيع جائز وای، لکه څرنګه چي له امام زفر رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي لِأَنَّ الدَّرَاهِمَ لَا تَتَعَيَّنُ ځکه چي دراهم نه مُتعيّن کيږي فَيَنْصَرِفُ الْعَقْدُ إِلَى مُطْلَقِهَا نو ځکه [د کپړې] بيع به د مطلق دراهمو وطرف ته ګرځي وَلَكِنَّا نَقُولُ: اَلثَّمَنُ فِي بَابِ الصَّرْفِ مَبِيعٌ لېکن موږ وايو: چي ثمن په عقد صرف کي مبيع وي لِأَنَّ الْبَيْعَ لَا بُدَّ لَهُ مِنْهُ ځکه چي د بيع لپاره مبيع ضروري وي [ځکه بيع همدې ته وايي چي په هغه کي يو عوض مبيع وي او بل ثمن وي] وَلَا شَيْءَ سِوَى الثَّمَنَيْنِ حال دا چي [په عقدِ صَرف کي] له دوو ثمنو څخه بغير بل شی نسته فَيُجْعَلُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَبِيعًا لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ نو ځکه د عدم اولويت [نا ترجيح والي] په وجه به له دواړو عوضونو څخه هر يو مبيع ګرځول کيږي وَبَيْعُ الْمَبِيعِ قَبْلَ الْقَبْضِ لَا يَجُوزُ او د مبيع بيع له قبضې څخه مخکي جائز نه ده وَلَيْسَ مِنْ ضَرُورَةِ كَوْنِهِ مَبِيعًا أَنْ يَكُونَ مُتَعَيِّنًا او د هغه له مبيع والي څخه دا نه لازميږي چي هغه دي مُتعين [هم] وي كَمَا فِي الْمُسْلَمِ فِيهِ لکه څرنګه چي په مسلم فيه کي دي.

**اللغات:** ﴿تجويز﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: جائز گرځول (جائز کول). ﴿اولويّة﴾ اولىٰ والى (افضل والى. راجح والى. غوره والى).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چې د بيع صَرف له دواړو عوضونو څخه په يوه عوض کې هم له قبضه کولو څه مخکې تصرف کول، جائز نه دي. دا خبره امام قدوري رَحِمَهُ الله داسې ذکر کړې ده چې د بيع صَرف په ثمن کې له قبضه کولو څخه مخکې تصرف کول جائز نه دي؛ ځکه د بيع صرف له دواړو عوضونو څخه هر عوض ثمن وي (ځکه چې د بيع صَرف هر عوض د ثمن او مبيع جوړېدلو صلاحيت لري)، لهذا په دواړو عوضونو کې به له قبضې څخه مخکې تصرف جائز نه وي. پر همدې يوه مسئله متفرع کوي فرمايي چې که څوک يو دينار د لسو درهمو په عوض کې خرڅ کړي (يعني يو دينار په لس درهمه خرڅ کړي) او پر لسو درهمو قبضه نه وکړي، بلکې له قبضه کولو څخه مخکې د هغه لسو درهمو په عوض کې کپړه رانيسي، نو دا بيع فاسده ده؛ ځکه چې دلته د کپړې ثمن يعنې لس درهمه د بيع صَرف يو عوض دى، او د بيع صَرف پر دواړو عوضونو قبضه کول د الله تعالىٰ د حق په وجه واجب دي (او قبضه کول ځکه د الله تعالىٰ حق دى چې د قبضه نه کولو په صورت کې ربوا [سود] لازميږي، او ربوا حرامه ده، او حرام کېدل د الله تعالىٰ حق دى، نه د بنده. نو ثابته سوه چې په بيع صَرف کې د قبضې واجبېدل د الله تعالىٰ او شريعت حق دى) او له قبضه کولو څخه مخکې د لسو درهمو په عوض کې په کپړه رانيولو سره د الله دغه حق (حقُ الشرع) فوتيږي، او د الله تعالىٰ حق فوت کول (ضايع کول) بالکل ناجائز دي، نو ځکه له قبضه کولو څخه بغير د لسو درهمو په عوض کې کپړه رانيول ناجائز دي.

وکان ينبغي إلخ: د دې حاصل دا دى چې د ظاهر روايت مطابق خو د کپړې بيع فاسد او ناجائز ده، لېکن د قياس تقاضا دا ده چې له قبضې څخه مخکې د دې لسو درهمو په عوض کې کپړه رانيول جائز وي، لکه څرنګه چې دا له امام زفر رَحِمَهُ الله څخه هم نقل سوي دي؛ او د دې دليل دا دى چې دراهم په مُتعيَن کولو سره نه مُتعيَن کيږي (لهذا دلته چې کوم دراهم د کپړې ثمن دي هغه مُتعيَن نه دي)، نو ځکه دا د کپړې بيع به د مطلق دراهمو طرف ته ګرځي، او د مطلق دراهمو په عوض کې ... جائز ده، نو ځکه په دې صورت کې هم دا بيع جائز کېدل پکار دي.

زموږ له طرفه د هغه جواب دا دى چې د عقد صرف يو عوض به خامخا مبيع وي؛ ځکه چې عقد صرف بيع ده. او په بيع کې مبادلةُ المال بالمال کيږي (يعني مال په مال سره بدلول کيږي)، نو ځکه په عقد صرف کې به هم مبادله کيږي، او د مبادله لپاره دا ضروري دي چې يو عوض به مبيع وي او بل عوض به ثمن وي. حال دا چې په عقد صرف کې دواړه عوضونه ثمن وي؛ ځکه چې نقود (يعني دراهم او

دنانير) په پيدايشي توګه ثمن دي (ځکه چې دراهم او دنانير له سپينو او سرو زرو څخه جوړ دي، لهذا کله چې هغوی په پيدايشي توګه ثمن دي)، نو اوس په عقد صرف کې د بيع د معنیٰ ثابتولو لپاره يو عوض مبيع ګرځول ضروري دي؛ خو څرنګه چې په عقد صرف کې يوه عوض ته هم د مبيع جوړېدلو ترجيح حاصله نه ده (يعني په دې هکله يو مُرجح مؤجود نه دی چې يو عوض مبيع وګرځول سي) نو ځکه هر عوض فقط من وجه د مبيع جوړېدلو صلاحيت لري (يعني هر عوض من وجه مبيع دی او من وجه ثمن دی). او له قبضې څخه مخکې په مبيع کې تصرف کول جائز نه دي، نو ځکه موږ وايو چې د عقد صرف په ثمن کې له قبضې څخه مخکې تصرف کول جائز نه دي. (أحسن الهدايه ج:۹، ص:۹۳)

وليس من ضرورة إلخ: دا د يو اعتراض جواب دی. اعتراض دا دی چې کله (ستاسو په وينا) د بيع صَرف دواړه عوضونه من وَجه مبيع دي، نو د هغوی مُتعيّن کېدل پکار دي (يعني پکار دا ده چې هر يو په مُتعين کولو سره مُتعيّن کېږي)، حال دا چې تاسو د بيع صَرف دواړه عوضونه غير مُتعيّن ګرځولي دي (يعني تاسو وایاست چې هغوی په مُتعيّن کولو سره نه مُتعيّن کېږي).

د دې جواب دا دی چې د هر مبيع مُتعيّن کېدل څه ضروري نه دي، لکه څرنګه چې په بيع سَلم کې مسلم فيه مبيع ده، لېکن بيا هم هغه نه مُتعيّن کېږي. نو ځکه په دې حواله سره اعتراض کول صحيح نه دي.

## سره زر د سپينو زرو په عوض کې په اټکل سره خرڅول

قَالَ: وَيَجُوزُ بَيْعُ الذَّهَبِ بِالْفِضَّةِ مُجَازَفَةً فرمايي: او سره زر د سپينو زرو په عوض کې په اټکل سره خرڅول جائز دي لِأَنَّ الْمُسَاوَاةَ غَيْرُ مَشْرُوطَةٍ فِيهِ ځکه چې په دې [خلافُ الجنس شيانو] کې برابري شرط نه ده وَلٰكِنْ يُشْتَرَطُ الْقَبْضُ فِي الْمَجْلِسِ لېکن په مجلس کې قبضه کول شرط دي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی بِخِلَافِ بَيْعِهِ بِجِنْسِهِ مُجَازَفَةً په خلاف د خپل همجنس په عوض کې د هغه بيع په اټکل سره لِمَا فِيهِ مِنْ احْتِمَالِ الرِّبَوا ځکه چې په دې کې د ربوا احتمال دی.

**اللغات**: ﴿مجازفة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: په اټکل سره بيع کول (يعني چې بائع ته د خپل شي وزن او مقدار معلوم نه وي هسې [په اټکل سره] هغه خرڅوي) په اندازه لګولو سره بيع کول. ﴿ربوا﴾ (ربا) سود.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د سرو زرو بيع د سپينو زرو په عوض کې او د سپينو زرو بيع د سرو زرو په عوض کې په اټکل او اندازه سره جائز ده؛ برابره ده په وزن کې دواړه عوضونه سره برابر

وي او که نه وي؛ ځکه چي د اختلاف الجنس په صورت کي برابري شرط نه ده: لکه څرنګه چي مخکي د عباده بن صامت ﷺ په حدیث کي ذکر سوه: "إِذَا اخْتَلَفَتْ هٰذِهِ الأَصْنَافُ فَبِيْعُوْا كَيْفَ شِئْتُمْ. إِذَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ". لهذا کله چي د اختلاف الجنس په صورت کي د دواړو عوضونو برابر والی شرط نه دی نو په اټکل او اندازه سره به خرڅول هم حرام نه وي. ها! د افتراق بالابدان څخه مخکي، مخکي قبضه کول شرط دي، او د دې نقلي او عقلي دليلونه مخکي ذکر سوه.

لېکن که سره زر د خپل همجنس یعني د سرو زرو په عوض کي یا سپین زر د سپینو زرو په عوض کي په اټکل سره خرڅ کړل سي، نو دا جائز نه دي؛ ځکه چي په دې کي د ربوا شبهه او احتمال راځي. یعني کېداي سي چي یو عوض کم او بل عوض زیات سي؛ او مخکي څو ځله ذکر سوه چي د ربوا شبهه او احتمال هم د حقیقي ربو اپه څیر حرام دی، نو ځکه د خپل همجنس په عوض کي د سرو یا سپینو زرو بیع په اټکل سره حرام او ناجائز ده.

## د ثمن او غیر ثمن د بیع تفصیلي بیان

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ جَارِيَةً قِيمَتُهَا أَلْفُ مِثْقَالٍ فِضَّةٍ فرمايي: او که یو سړی داسي مینځه خرڅه کړه چي د هغې قیمت زر [۱۰۰۰] مثقاله سپین زر وو وَفِي عُنُقِهَا طَوْقُ فِضَّةٍ قِيمَتُهُ أَلْفُ مِثْقَالٍ او د هغې په غاړه کي یو طوق [غاړه کۍ] وه چي د هغه قیمت [هم] زر مثقاله وو بِأَلْفَيْ مِثْقَالٍ فِضَّةٍ [او هغه سړي دا مینځه] په دوه زره مثقالو سپینو زرو [خرڅه کړه] وَنَقَدَ مِنَ الثَّمَنِ أَلْفَ مِثْقَالٍ او مشتري له ثمن څخه زر مثقاله نقد [نغد] اداء کړل ثُمَّ افْتَرَقَا بیا دواړه سره جلا سول فَالَّذِي نَقَدَ نو کوم ثمن چي مشتري نقد اداء کړی دی ثَمَنُ الْفِضَّةِ هغه به د سپینو زرو [د طوق] ثمن وي لِأَنَّ قَبْضَ حِصَّةِ الطَّوْقِ وَاجِبٌ فِي الْمَجْلِسِ ځکه چي د طوق [د ثمن] پر حصې قبضه کول د عقد په مجلس کي واجب دي لِكَوْنِهِ بَدَلَ الصَّرْفِ ځکه چي هغه د صرف بدل دی وَالظَّاهِرُ مِنْهُ الْإِتْيَانُ بِالْوَاجِبِ او نه بائع څخه ظاهري حالت همدا دی چي هغه به واجب اداء کړی وي [ځکه هغه مسلمان دی او مسلمان اول واجب اداء کوي] وَكَذَا لَوِ اشْتَرَاهُمَا بِأَلْفَيْ مِثْقَالٍ او همدارنګه که مشتري مینځه او طوق دواړه د دوه زره مثقالو په عوض کي [داسي] رانیسي أَلْفٍ نَسِيئَةً وَأَلْفٍ نَقْدًا [چي له هغه څخه] زر مثقاله قرض وي او زر مثقال نقد وي فَالنَّقْدُ ثَمَنُ الطَّوْقِ نو نقد به د طوق ثمن وي لِأَنَّ الْأَجَلَ بَاطِلٌ فِي الصَّرْفِ جَائِزٌ فِي بَيْعِ الْجَارِيَةِ

ځکه چي په بيع صرف کي ميعاد باطل دی او د مينځي په بيع کي جائز دی وَالْمُبَاشَرَةُ عَلٰى وَجْهِ الْجَوَازِ وَهُوَ الظَّاهِرُ مِنْهُمَا او له عاقدينو ځخه ظاهري حالت پر جائزه طريقه د عقد کول دي ايعني د عاقدينو ظاهري حالت همدا دی چي هغوی به په جائزه طريقه عقد کړی وي؛ ځکه مسلمان جائز کار او جائز عقد کوي. او له ناجائز ځخه ځان ساتي].

**اللغات**: ﴿مثقال﴾ يو وزن دی، څلور ماشې او څلور رتې کيږي. او د ګرام په حساب سره څلور ګرامه کيږي. ﴿عنق﴾ غاړه. ﴿طوق﴾ هار، غاړه ګی، پټه. ﴿نَقَدَ﴾ د نصر مانسي ده: نقد اداء کول (نغد اداء کول، سمدستي اداء کول). ﴿نسيئة﴾ مراد ځني پور (ترض) دی. ﴿أجل﴾ ميعاد، ټاکل سوی مودت.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که يو سړي د دوه (٢) زره مثقالو سپينو زرو په عوض کي داسي مينځه خرڅه کړه چي د هغې قيمت زر مثقاله وو، او د هغې په غاړه کي د سپينو زرو يو طوق (غاړه ګی) هم وه چي د هغه قيمت هم زر مثقاله وو (او ټوله ثمن دوه زره مثقاله وو)، او مشتري (رانيونکي) له ثمن ځخه صرف زر مثقاله نقد اداء کړل، بيا دواړه عاقدين (بائع او مشتري) سره جلا سول، نو کوم ثمن چي مشتري نقد اداء کړی هغه به د طوق (غاړه ګی) ثمن شمارل کيږي.

دليل دا دی چي په دې عقد کي زر مثقاله سپين زر د مينځي ثمن دی او زر مثقاله سپين زر د طوق ثمن دی ، نو د طوق او زر مثقاله سپينو زرو په مينځ کي مبادله بيع صَرف ده. او د مينځي او زر مثقاله سپينو زرو په مينځ کي مبادله بيع صَرف نه ده، او مخکي ذکر سوه چي د بيع صَرف پر عوضينو په مجلس کي دننه قبضه کول د حقُ الشرع په وجه واجب دي (لکه څه مخکي چي ذکر سوه چي په بيع صَرف کي پر دواړو عوضونو قبضه کول د الله تعالیٰ د حق په وجه واجب دي) ، نو ځکه د طوق پر ثمن به پ مجلس کي دننه قبضه کول د حقُ الشرع په وجه واجب وي، او د مينځي پر ثمن قبضه کول واجب نه دي، او د مسلمان ظاهري حالت همدا دی چي هغه د خپل غاړې د خلاصولو (فراغ الذمه) لپاره اول واجب شی اداء کوي او له ناجائز کار ځخه ځان ساتي، او څرنګه چي په دې عقد کي هم بائع او مشتري دواړه مسلمانان دي نو ځکه ظاهري حالت همدا دی چي بائع به واجب اداء کړی وي (او واجب د طوق پر ثمن قبضه کول دي او طوق د مشتري په قبضه کي ورکول دي)، نو ځکه دا زر مثقاله سپين زر به د طوق ثمن شمارل کيږي؛ ځکه چي دلته په مجلس کي صرف د طوق ثمن اداء کول واجب دي، د مينځي ثمن اداء کول واجب نه دي. نو ځکه دا زر مثقاله (نقد ثمن) به د طوق عوض او ثمن ګرځول کيږي.

د "بنايه" مصنف رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي د دې مثال داسي دی لکه يو حاجي چي "طواف زيارت" پرېږدي او "طواف صدر" وکړي، نو د هغه دا طواف صدر د طواف زيارت وطرف ته ګرځ

كيږي (د دې لپاره چې د هغه حج صحيح سي)، ځکه چې طواف زيارت د حج رکن دی له هغه څخه بغير حج نه صحيح کيږي، او طواف صدر واجب دی له هغه څخه بغير حج اداء کيږي او د حاجي غاړې خلاصيږي. نو ځکه د مسلمان د ظاهري حالت په رعايت کولو سره د هغه اداء کړی سوی طواف د طواف زيات (رکن) وطرف ته ګرځول کيږي، همداسي به دلته هم اداء کړی سوی نقد ثمن د طوق عوض او ثمن ګرځول کيږي. (بنايه ج:۷، ص:۵۱۰)

وكذا لو اشتراهما إلخ: همدارنګه که مشتري مينځه او طوق د دوه (۲) زره مثقالو سپينو زرو په عوض کي په دې توګه رانيسي چې زر مثقاله نقد اداء کړي او زر مثقاله قرض (پور) وګرځوي، نو هغه نقد زر مثقاله به د طوق ثمن شمارل کيږي؛ ځکه که هغه د طوق ثمن نه وشمارل سي نو د طوق ثمن به ميعادي (قرض والا) وګرځي، حال دا چې په بيع صَرف کي نقد معامله کيږي (يعني پر دواړو عوضونو به لاس په لاس قبضه کيږي) او په بيع صَرف کي ميعاد تاکل باطل دي، نو ځکه د مسلمان د ظاهري حالت په اعتبار کولو سره به هغه نقد ثمن د طوق ثمن شمارل کيږي، او کوم زر مثقاله چې قرض دی هغه به د مينځي ثمن وي؛ ځکه چې د مينځي بيع مطلق بيع ده (بيع صَرف نه ده)، او دا معلومه خبره ده چې مطلق بيع د قرض ثمن (ميعادي ثمن) په عوض کي صحيح او جائز ده.

## د ثمن او غير ثمن د بيع تفصيلي بيان

وَكَذٰلِكَ لَوْ بَاعَ سَيْفًا مُحَلًّى بِمِائَةِ دِرْهَمٍ او همدارنګه که [يو خوک] په سپينو زرو سره مزينه [بنايسته کړی سوې] توره د سلو درهمو په عوض کي خرڅه کړي وَحِلْيَتُهُ خَمْسُونَ او د هغه [توري] زېور پنځوس درهمه وي فَدَفَعَ مِنَ الثَّمَنِ خَمْسِينَ او مشتري له ثمن څخه پنځوس درهمه اداء کړي جَازَ الْبَيْعُ نو [دا] بيع جائز کيږي فَكَانَ الْمَقْبُوضُ حِصَّةَ الْفِضَّةِ او پر کوم ثمن چې قبضه سوې وي هغه به د سپينو زرو [د زېور] حصه وي وَإِنْ لَمْ يُبَيِّنْ ذٰلِكَ که څه هم مشتري دا خبره بيان کړې نه وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَكَذٰلِكَ إِنْ قَالَ: خُذْ هٰذِهِ الْخَمْسِينَ مِنْ ثَمَنِهِمَا او همدارنګه که مشتري ووايي: چې دا پنځوس درهمه د هغه دواړو په ثمن کي واخله! لِأَنَّ الِاثْنَيْنِ قَدْ يُرَادُ بِذِكْرِهِمَا الْوَاحِدُ ځکه چې ځيني وخت د دوو [تثنيه] په ذکر کولو سره يو مراديږي قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى: « يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ » [الرحمٰن: ۲۲] الله تعالیٰ فرمايلي دي: "او له هغه دواړو سمندرونو څخه ملغلري او مرجان راوځي" وَالْمُرَادُ أَحَدُهُمَا او مراد له هغه دواړو څخه يو دی فَيُحْمَلُ

عَلَيْهِ بِظَاهِرِ حَالِهِ نو ځکه د ظاهري حالت په وجه به پر هغه حمل کیږي فَإِنْ لَمْ يَتَقَابَضَا حَتّٰى افْتَرَقَا او که چیرې [عاقدین] قبضه نه وکړي تر دې چې دواړه یو له بل څخه جلا سي بَطَلَ الْعَقْدُ فِي الْحِلْيَةِ نو په زېور کي عقد باطلیږي لِأَنَّهٗ صَرْفٌ فِيْهَا ځکه چي دا [عقد] په زېور کي بيع صرف ده وَكَذَا فِي السَّيْفِ إِنْ كَانَ لَا يَتَخَلَّصُ إِلَّا بِضَرَرٍ او همدارنګه په توره کي [هم عقد باطلیږي] که چیرې توره [له زېور څخه] بغیر له ضرره جلا کېدای نه سي لِأَنَّهٗ لَا يُمْكِنُ تَسْلِيمُهٗ بِدُوْنِ الضَّرَرِ ځکه چي [په دې صورت کي] اله ضرر څخه بغير د توري ورسپارل ممکن نه دي وَلِهٰذَا لَا يَجُوزُ إِفْرَادُهٗ بِالْبَيْعِ او له همدې کبله تنها [يوازي] د توري بيع جائز نه ده كَالْجِذْعِ فِي السَّقْفِ لکه په بام کي چي [تنها] د تير [بيع جائز نه ده] وَإِنْ كَانَ يَتَخَلَّصُ السَّيْفُ بِغَيْرِ ضَرَرٍ او که توره [له زېور څخه] بغير له ضرره جلا کېدای سي جَازَ الْبَيْعُ فِي السَّيْفِ وَبَطَلَ فِي الْحِلْيَةِ نو [بيا] په توره کي بيع جائز کیږي او په زېور کي باطليږي لِأَنَّهٗ أَمْكَنَ إِفْرَادُهٗ بِالْبَيْعِ ځکه چي [اوس] تنها د توري بيع ممکنه ده فَصَارَ كَالطَّوْقِ وَالْجَارِيَةِ نو دا [مسئله] د طوق او مینځي په څېر سوه وَهٰذَا إِذَا كَانَتِ الْفِضَّةُ الْمُفْرَدَةُ أَزْيَدَ مِمَّا فِيْهِ او دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي دا جلا [د ثمن] سپين زر له هغه سپينو زرو څخه زيات وي کوم چي په مبيع [توره] کي لګېدلي دي [يعني د ثمن سپين زر د زېور له سپينو زرو څخه زيات وي] فَإِنْ كَانَتْ مِثْلَهٗ أَوْ أَقَلَّ مِنْهُ أَوْ لَا يُدْرٰى [لېکن] که له هغه څخه کم وي يا د هغه په برابر وي يا د هغه مقدار معلوم نه وي لَا يَجُوزُ الْبَيْعُ لِلرِّبَوا أَوْ لِاحْتِمَالِهِ نو د ربوا يا د ربوا د احتمال په وجه بيع نه جائز کیږي وَجِهَةُ الصِّحَّةِ مِنْ وَجْهٍ وَجِهَةُ الْفَسَادِ مِنْ وَجْهَيْنِ او د صحيح والي جهت په يوه وجه [يوه اعتبار] سره دی او د فساد جهت په دوو وجهو سره دی فَتَرَجَّحَتْ نو ځکه د فساد جهت [طرف] به راجح وي.

**اللغات:** ﴿مُحلّٰى﴾ د تفعيل د باب مفعول دی، حَلّٰى يُحَلِّيْ تَحْلِيَةً: په يو شي زېور اغوستل، په زېور سره ښايسته کول، مزين کول (مثلاً خپل آس په زېور سره ښايسته کول او زېورات په اغوستل)، نو د "مُحَلّٰى" معنیٰ ده: په زېور سره ښايسته کړی سوی توره، ﴿حلية﴾ زېور، له سره او سپينو زرو څخه جوړ د ښکلا شی، ﴿لؤلو﴾ ملغلره، مرغلره (در)، ﴿مرجان﴾ يو قيمتي سره ډبره ده کوم چي له سمندر څخه

راوځي (او ځيني وايي چي غټو ملغلرو ته ويـل کيـږي)، ﴿حِلْع﴾ (د دال په کسره سره): تير، شاتير (کوم چي پر بام ايښوول کيږي، چي هغه به پخوا عموماً د خُرما له تنې څخه وو)، ﴿سقف﴾ بام، ﴿يتخلص﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: خلاصېدل، جلا کېدل (بېلېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی د سپينو زرو په زېور سره ښايسته سوې توره د سلو درهمو په عوض کي خرڅه کړي، او د هغې زېور (حليه) د پنځوسو درهمو وي (يعني پنځوس درهمه د زېور قيمت وي او پنځوس درهمه د توري قيمت وي)، بيا مشتري له ثمن څخه پنځوس درهمه اداء کړي او دا خبره بيان نه کړي چي دا پنځوس درهمه د زېور دي، يا د توري دي يا د دواړو دي، او بائع قبضه پر وکړي، نو دا بيع جائز کيږي او هغه پنځوس درهمه (کوم چي مشتري بائع ته ورکړي دي او بائع قبضه پر کړې ده هغه) به د زېور ثمن او عوض شمارل کيږي؛ ځکه دلته د زېور او ثمن (پنځوس درهمو) په مينځ کي چي کوم عقد دی هغه عقد صرف (بيع صَرف) دی (لکه په تېر عبارت کي چي د طوق او ثمن په مينځ کي عقد صرف وو)، او د عقد صرف پر دواړو عوضونو په مجلس کي دننه قبضه کول واجب دي، لهذا د عاقدَينو د ظاهري حالت (اسلام) په رعايت کولو سره به د مشتري له طرفه دغه اداء کړی سوی ثمن (پنځوس درهمه) د زېور ثمن ګرځول کيږي؛

او که چيري مشتري خبره بيان کړي او داسي ووايي "خُذْ هٰذِهِ الْخَمْسِيْنَ مِنْ ثَمَنِهِمَا" يعني دا پنځوس درهمه د توري او زېور دواړو ثمن دی، نو په دې صورت کي هم هغه صرف د زېور ثمن شمارل کيږي، ګواکي مشتري داسي وويل چي د دې دواړو په ثمن کي چي پر څومره قدر ثمن قبضه کول واجب دي هغه واخله! (او هغه همدا پنځوس درهمه دي)؛ ځکه قاعده دا ده چي د مسلمانانو أمور به حتی الامکان پر سمون او جواز حمل کيږي (د قاعدې الفاظ دا دي: تُحْمَلُ أُمُوْرُ الْمُسْلِمِيْنَ عَلَى السَّدَادِ والصَّلَاحِ مَالَمْ يَظْهَرْ غَيْرُه)، او دلته پر جواز حمل کول ممکن هم دي په دې توګه چي په "مِنْ ثَمَنِهِمَا" کي د تثنيه په ضمير سره واحد مراد کړی سي، يعني دا به ويـل کيـږي چي مشتري په "مِن ثمنهما" کي د تثنيه په ضمير سره واحد مراد کړی دی او په حقيقت کي د هغه مراد "مِن ثمن الحلية" دی. او د تثنيه په ضمير سره واحد مرادول جائز هم دي، ځکه چي په شريعت کي د دې څو مثالونه سته. لکه څرنګه چي د سورة الرحمن په دې آيت "يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَان" کي د "منهما" ضمير خوږ سمندر او تروش (تريو) سمندر دواړو ته راجع دی. لېکن ملغلره فقط له تروش سمندر څخه راوځي. د خوږ سمندر څخه نه راوځي (نو د آيت تقدير داسي دی: يَخْرُجُ مِنْ أَحَدِهِمَا ... إلخ

(تفسير منير ا). نو دلته د تثنيه په ضمير سره واحد مراد سوی دی. همدارنګه د حضرت موسیٰ او حضرت خضر عليهما السلام په قصه کي الله تعالي فرمايلي دي "نَسِيَا حُوْتَهُمَا" (يعني حضرت موسی او د هغه خادم خپل ماهی هېر کړی. يعني له دوی څخه ماهی هېر سو). په دې آيت کي "نَسِيَا" د تثنيه صيغه ده. حال دا چي د ماهي هېرونکی فقط د حضرت موسیٰ عليه السلام خادم وو. دلته هم د تثنيې په ضمير سره واحد مراد سوی دی. لنډه دا چي څرنګه په دې نصوصو کي د تثنيه په ضمير سره واحد مراد سوی دی، همداسي به پورتنی مسئله کي هم د تثنيه په ضمير سره واحد مرادېږي او د مسلمان مشتري د ظاهري (اسلام) په رعايت کولو سره به د هغه قول "مِن ثمنهما" پر "مِن ثمن الحلية" حمل کېږي، ځکه چي د مسلمان ظاهري حالت همدا دی چي هغه جائز کار کوي او له ناجائز کار څخه ځان ساتي، او بيع صَرف په هغه وخت کي جائز کېږي کله چي پنځوس درهمه د زېور (حليه) ثمن وګرځول سي، نو ځکه د "خذ هٰذه الخمسين من ثمنهما" د ويلو په صورت کي به هم دا پنځوس درهمه د زېور ثمن شمارل کېږي، نه د توري او ثمن دواړو.

فإن لم إلخ: فرمايي که په دې مسئله کي پر عوضَينو له قبضه کولو څخه مخکي عاقدين يو له بل څخه جلا سي، نو په زېور (حليه) کي عقد باطلېږي؛ ځکه چي دا عقد صرف دی، او تاسو ته معلومه ده چي د عقد صرف پر عوضَينو په مجلس کي دننه قبضه کول ضروري دي. او که چېري زيور او توره يو د بل سره داسي لګېدلي او موښتي وي چي له ضرر او نقصان څخه بغير يو له بل څخه جلا کول ممکن نه وي، نو په دې صورت کي په توره کي هم عقد باطلېږي؛ ځکه کله چي له ضرر څخه بغير هغه له زېور څخه نه سي جلا کېدای نو ښکاره خبره ده چي د هغې ورسپارل هم ممکن نه دي، او تاسو ته معلومه ده چي د غيرِ مقدورُ التسليم مبيع بيع جائز نه ده؛ نو ځکه په دې صورت کي به په توره کي هم بيع جائز نه وي. لکه په بام کي لګېدلی تير (يا ګاډر) چي له ضرر څخه بغير له بام څخه نه سي جلا کېدای نو د هغه تنها بيع جائز نه ده (يعني د دې ضرر په وجه يوازي د هغه خرڅول جائز نه دي)، همداسي دلته هم تنها د توري بيع جائز نه ده. لېکن که له ضرر او نقصان څخه بغير زېور او توره سره جلا کېدای سي نو بيا په توره کي بيع جائز کېږي؛ ځکه چي دا (توري بيع) مطلق بيع ده چي په هغه کي د عقد په مجلس کي دننه قبضه کول ضروري نه دي، نو ځکه به په توره کي بيع جائز وي، لېکن څرنګه چي پر زېور د عقد په مجلس کي قبضه کول ضروري او واجب دي، او د عاقدينو په جلا کېدلو سره قبضه فوت سوه، نو ځکه په زېور کي به بيع باطل او ناجائز وي.

او دا مسئله د طوق او مينځي د بيع په څېر سوه. يعني که د طوق او مينځي والا په صورت کي عاقدين پر طوق او ثمن له قبضه کولو څخه مخکي يو له بل څخه جلا سي، نو په طوق کي بيع

باطليږي او په مينځه کي جائز کيږي، همداسي په دې مسئله کي به هم له قبضې څخه مخکي د عاقدَينو په جلا کېدلو سره په زړور کي بيع باطله وي او په مينځه کي به جائز وي.

وهذا إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي دغه ټوله تفصيل په هغه صورت کي دی کله چي هغه سپين زر کوم چي جلا دي (يعني کوم چي د ثمن په توګه ټاکل سوي دي) له هغه سپينو زرو څخه زائد (زيات) وي کوم چي د مبيع يعني د توري سره لګېدلي دي (يعني چي د ثمن [دراهمو] سپين زر د زړو له سپينو زرو څخه زائد وي)، لکه څرنګه چي دلته د توري سره لګېدلي سپين زر د پنځوسو درهمو دي او ثمن سل درهمه دی، نو دا صورت جائز دی؛ ځکه کوم سپين زر چي د مبيع (توري) سره لګېدلي دي هغه سپين زر به د خپل اندازه (هموزن) سپينو زرو په عوض کي راسي، او کوم سپين زر چي زائد سي هغه به د مبيع (توري) په عوض کي راسي.

او که چيري د ثمن (دراهمو) سپين زر د هغه سپينو زرو سره برابر وي کوم چي د مبيع (توري) سره لګېدلي دي يا له هغه څخه کم وي يا د هغه مقدار معلوم نه وي، نو بيع نه جائز کيږي؛ ځکه کله چي د ثمن سپين زر د مبيع د سپينو زرو سره برابر وي يا کم وي، نو ربوا (سود) لازميږي: د برابر والي په صورت خو ځکه چي سپين زر به د سپينو زرو په عوض کي راسي او مبيع يعني توره به بلا عوضه پاته سي. او د کموالي په صورت کي به توره او څه سپين زر بلا عوضه پاته سي، مثلاً که د ثمن سپين زر لس ګرامه وي او پر توره لګېدلي سپين زر دوولس ګرامه وي، نو لس ګرامه به د لسو ګرامو په عوض کي راسي، او دوه ګرامه سپين زر او توره به بلا عوضه پاته سي، او ربوا (سود) همدې ته وايي چي په بيع کي يو شی بلا عوضه پاته سي، نو ځکه په دې صورتونو کي به ربوا لازمه سي. او که د ثمن د سپينو زرو مقدار معلوم نه وي، نو په دې صورت کي د ربوا احتمال سته؛ ځکه دا هم کېدای سي چي د ثمن سپين زر له هغه سپينو زرو څخه زيات وي کوم چي د مبيع سره لګېدلي دي، او دا هم کېدای سي چي ور سره برابر وي، او دا هم کېدای سي چي له هغه څخه کم وي. لنډه دا چي په دې صورت کي د ربوا احتمال او شبهه سته، او د ربوا شبهه د حقيقي ربوا په څېر حرامه ده، نو ځکه دا صورت به هم ناجائز وي.

وجهة الفساد إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چي په پورتني صورت کي (يعني کله چي د ثمن د سپينو زرو مقدار معلوم نه وي) بيع جائز کېدل پکار دي؛ ځکه چي اصل د بيع جائز کېدل دي، او مُفسِد (فاسدونکی شی) هغه زياتوب دی کوم چي له عوض څخه خالي وي (لنډه دا چي دلته

هغه وخت بیع فاسدیږي کله چې په یقیني توګه زیاتوب ثابت سي)، نو تر څو چې په یقیني توګه زیاتوب ثابت نه سي، تر هغه وخته به د جواز حکم لګول کیږي (او پورتنی صورت به جائز ګرځول کیږي).

د جواب حاصل دا دی چې په پورتني صورت کي درې احتماله دي: ① یا د ثمن سپین زر به له هغه سپینو زرو څخه زیات وي کوم چې د مبیع (توري) سره لګېدلي دي، ② یا ور سره برابر به وي، ③ یا له هغه څخه به کم وي؛ په اول صورت کي یعني د زیاتوالي په صورت کي خو بیع جائز ده، او په پاته دوو صورتونو یعني د برابر والي او کموالي په صورت کي بیع فاسده ده، لهذا په پورتني صورت کي په یوه اعتبار سره بیع جائز ده او په دوو اعتبارو سره بیع فاسده ده، او دا ښکاره خبره ده چې دوو ته پر یوه ترجیح حاصله ده، نو ځکه په پورتني صورت کي به د فساد جهت راجح وي، او کله چې د فساد جهت راجح دی، نو ځکه به دا صورت فاسد او ناجائز وي.

## په بیع صَرف کي د ثمن پر څه حصه قبضه کول (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ إِنَاءَ فِضَّةٍ فرمایي: او که یو څوک د سپینو زرو لوښی خرڅ کړي ثُمَّ افْتَرَقَا بیا دواړه عاقدین [بائع او مشتري] سره جلا سي وَقَدْ قَبَضَ بَعْضَ ثَمَنِهِ [په داسي حال کي چې] بائع د ثمن پر بعضي حصه قبضه کړې وي بَطَلَ الْبَيْعُ فِيمَا لَمْ يَقْبِضْ نو پر کومه حصه چې بائع قبضه نه وي کړې په هغه کي بیع باطلیږي وَصَحَّ فِيمَا قَبَضَ او پر کومه حصه چې یې قبضه کړې وي په هغه کي بیع صحیح کیږي وَكَانَ الْإِنَاءُ مُشْتَرَكًا بَيْنَهُمَا او لوښی به د هغوی دواړو [بائع او مشتري] په مینځ کي مشترک وي لِأَنَّهُ صَرْفٌ كُلُّهُ ځکه چې دا عقد ټوله عقد صرف دی فَصَحَّ فِيمَا وُجِدَ شَرْطُهُ نو په څومره مقدار کي چې د صرف شرط موجود سو په هغه کي عقد صحیح دی وَبَطَلَ فِيمَا لَمْ يُوجَدْ او په کوم مقدار کي چې شرط موجود نه سو په هغه کي بیع باطله ده وَالْفَسَادُ طَارِئٌ او [دلته] فساد طاري دی لِأَنَّهُ يَصِحُّ ثُمَّ يَبْطُلُ بِالِافْتِرَاقِ ځکه چې دا عقد [په ابتداء کي] صحیح کیږي بیا د افتراق په وجه باطلیږي [یعني دا عقد په شروع کي صحیح سو بیا د عاقدینو د جلا کېدلو په وجه فاسد سو] فَلَا يَشِيعُ نو ځکه به دا فساد [په ټوله عقد کي] نه خپریږي قَالَ: وَلَوْ اُسْتُحِقَّ بَعْضُ الْإِنَاءِ فرمایي: او که د دې لوښي بعضي حصه مستحق وخیږي فَالْمُشْتَرِي بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَخَذَ الْبَاقِيَ بِحِصَّتِهِ نو مشتري ته اختیار دی که وغواړي نو پاته مقدار دې د هغه [د ثمن] د حصې په عوض کي واخلي وَإِنْ شَاءَ رَدَّهُ او که

وغواړي نو هغه دي رد کړي لِأَنَّ الشِّرْكَةَ عَيْبٌ فِي الْإِنَاءِ ځکه چي په لوښي کي شرکت [شراکت] پيدا کېدل عيب دی.

**اللغات**: ﴿لا يشيع﴾ د ضرب د باب نفي صيغه ده: شايع کېدل، خپرېدل، نشر کېدل، غوړېدل (سرايت کول)، ﴿طارئ﴾ د فتح د باب فاعل دی: طاري کېدونکی، مراد ځني وروسته راتلونکی (وروسته واقع کېدونکی) دی، ﴿استحق﴾ د استفعال ماضي مجهوله ده: يو شی د بل چا مستحق ختل، د بل چا حق پکښي ثابتېدل، ﴿إناء﴾ لوښی. ﴿ردّ﴾ د نصر ماضي ده: واپس کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که څوک د سپينو زرو يو لوښی خرڅ کړي، او مشتري له ثمن څخه څه حصه مثلاً نيم ثمن يا د ثمن دريمه حصه اداء کړي، تر دې وروسته عاقدين سره جلا سي. نو اوس حکم دا دی چي پر څومره ثمن چي بائع قبضه کړې ده په هغومره مقدار کي بيع صحيح کيږي، او د مبيع (لوښي) کومه حصه چي له ثمن څخه خالي ده په هغه کي بيع باطليږي (په بله وينا دا چي مشتري څومره ثمن اداء کړی وي د هغه په اندازه بيع صحيح کيږي او څومره ثمن چي يې نه وي اداء کړی د هغه په اندازه بيع باطليږي)؛ ځکه چي دا عقد په مکمله توګه عقد صرف دی، او د عقد صرف د صحت لپاره د عقد په مجلس کي پر دواړو عوضونو قبضه کول شرط دي، لهذا د ثمن پر څومره مقدار چي قبضه سوې ده، فقط په هغومره مقدار کي به بيع صحيح وي، او کوم مقدار چي له قبضې څخه خالي دی په هغه کي به عقد باطل وي. او دا مبيع (لوښی) به د بائع او مشتري په مينځ کي مشترک وي؛ ځکه په کومه حصه کي چي بيع صحيح ده هغه حصه د مشتري په ملکيت کي ده، او په کومه حصه کي چي بيع باطله ده هغه د بائع په ملکيت کي ده؛ نو ځکه به مبيع د دواړو په مينځ کي مشترکه وي.

**والفساد طار إلخ**: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي په دې مسئله کي چي پر نصف لوښي د قبضه نه کولو په وجه په هغه کي بيع فاسده سوه، نو دغه فساد به په ټوله عقد کي خپريږي (سرايت کوي) لهذا په مقبوضه حصه کي به هم بيع نه صحيح کيږي؟

د جواب حاصل دا دی چي فساد پر دوه قسمه دی: ① اصلي فساد، ② او طاري فساد، اصلي فساد هغه ته وايي کوم چي د عقد په شروع کي پيدا سي، او کوم فساد چي وروسته (د عقد په مينځ کي) پيدا سي هغه ته طاري فساد وايي. او په دې دواړو کي فقط اصلي فساد په ټوله عقد کي خپريږي (سرايت کوي). لېکن طاري فساد په ټوله عقد کي نه خپريږي، بلکي هغه د مُفسد (فاسدونکي شي) په اندازه پاتيږي. او څرنګه چي دلته په نصف مبيع يا د هغه په يوه حصه کي عقد صحيح دی، نو ځکه به دا فساد "طاري فساد" وي او په ټوله عقد کي به نه خپريږي. او دلته ځکه فساد طاري دی چي په

شروع کې عقد صحیح دی او وروسته د افتراق (د عاقدینو د جلا کېدلو) په وجه فساد پکښې راغلی دی، نو ځکه دا فساد به فقط د مُفسد په اندازه وي او په ټوله عقد کې به نه خپرېږي.

ولو استحق إلخ: فرمايي که چیري د دې لوښي يوه حصه مستحق وخیږي، یعني له عاقدینو څخه بغیر بل سړی د دې مبیع (لوښي) په يوه حصه کې خپل استحقاق ثابت کړي او بله حصه غیر مستحقه پاته سي، نو په دې صورت کې مشتري ته اختیار دی، که وغواړي نو هغه غیر مستحقه حصه دې د خپل ثمن په عوض کې واخلي (یعني د هغه حصې چې څومره ثمن کېږي هغومره دې اداء کړي)، او که وغواړي نو بیع دې رد کړي؛ ځکه چې په مبیع کې شرکت پیدا کېدل عیب دی، او دا معلومه خبره ده چې کله مبیع عیبداره سي نو په هغه صورت کې مشتري ته خیار عیب حاصلیږي. نو ځکه دلته به هم مشتري ته اختیار حاصلیږي.

## د مبیع تر خرڅولو وروسته په هغه کې د بل چا حق ثابتېدل (حکم)

| وَمَنْ بَاعَ قِطْعَةَ نُقْرَةٍ او که څوک د سپینو زرو يوه ټوټه خرڅه کړي ثُمَّ اسْتُحِقَّ بَعْضُهَا بیا د هغه بعضي حصه مستحق وخیږي أَخَذَ مَا بَقِيَ بِحِصَّتِهَا نو مشتري به پاته مقدار د هغه [د ثمن] د حصې په عوض کې اخلي وَلَا خِيَارَ لَهُ او هغه ته به اختیار [هم] نه وي لِأَنَّهُ لَا يَضُرُّهُ التَّبْعِيْضُ ځکه چې ټوکړه کول د سپینو زرو ټوټې ته نقصان نه کوي. |
|---|

**اللغات:** ﴿نقرة﴾ د سپینو زرو ویلي کړی سوې ټوټه (ټوکړه)، او له ویلي کولو څخه مخکې "تِبْر" ورته وايي، ﴿تبعیض﴾ ټوکړه ټوکړه کول، حصه حصه کول (ماتول او يوه حصه ځني جلا کول).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک د سپینو زرو يوه ټوټه خرڅه کړي، بیا له عاقدَینو څخه بغیر بل څوک د هغه ټوټې په يوه حصه کې خپل استحقاق ثابت کړي، نو څومره سپین زر چې غیر مستحق پاته سي مشتري به هغه د خپل ثمن په عوض کې اخلي (یعني د پاته سپینو زرو چې څومره ثمن کیږي هغه به اداء کوي) او په دې صورت کې مشتري ته د اخیستلو او نه اخیستلو اختیار نه حاصلیږي؛ ځکه چې د سپینو زرو ټوټه ماتول او ټوکړه ټوکړه کول هغې ته نقصان نه کوي، او کله چې ټوکړه کول نقصان نه کوي نو په هغې کې به شرکت عیب نه شمارل کیږي، او کله چې شرکت عیب نه دی نو ښکاره خبره ده چې مشتري ته به اختیار هم نه حاصلیږي.

## مخلوطُ الجنس اثمان د مخلوطُ الجنس اثمانو په عوض کې خرڅول (حکم او اختلاف)

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ دِرْهَمَيْنِ وَدِينَارًا بِدِرْهَمٍ وَدِينَارَيْنِ فرمايي: او که يو سړی دوه درهمه او يو دينار د يوه درهم او دوو دينارو په عوض کې خرڅ کړي جَازَ الْبَيْعُ نو [دا] بيع جائز ده وَجُعِلَ كُلُّ جِنْسٍ مِنْهُمَا بِخِلَافِهِ او له هغوی دواړو څخه به هر يو د خپل خلاف الجنس [د خپل جنس د خلاف] په عوض کې گرځول کيږي وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې بيع جائز نه ده وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا بَاعَ كُرَّ شَعِيرٍ وَكُرَّ حِنْطَةٍ بِكُرَّيْ شَعِيرٍ وَكُرَّيْ حِنْطَةٍ او پر همدغه اختلاف دي کله چې څوک يو کُر اوربشي او يو کُر غنم د دوه کره غنمو او دوه کره اوربشو په عوض کې خرڅ کړي وَلَهُمَا: أَنَّ فِي الصَّرْفِ إِلَى خِلَافِ الْجِنْسِ تَغْيِيرَ تَصَرُّفِهِ د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې د خلاف الجنس وطرف ته په گرځولو کې د عاقد د تصرف متغير کول [بدلول] لازميږي لِأَنَّهُ قَابَلَ الْجُمْلَةَ بِالْجُمْلَةِ ځکه چې هغه مجموعه په مجموعې سره مقابله کړې ده [د مجموعې مقابله يې د مجموعې سره کړې ده] وَمِنْ قَضِيَّتِهِ الِانْقِسَامُ عَلَى الشُّيُوعِ لَا عَلَى التَّعْيِينِ او د دې تقاضا دا ده چې تقسيم [منقسم کېدل] په مشترکه توگه وي، نه په متعينه توگه وَالتَّغْيِيرُ لَا يَجُوزُ او تصرف متغير کول جائز نه دي وَإِنْ كَانَ فِيهِ تَصْحِيحُ التَّصَرُّفِ که څه هم په دې کې د تصرف صحيح کول سته [يعني که څه هم دلته د تصرف په متغير کولو سره تصرف او عقد صحيح کيږي، لېکن بيا هم هغه جائز نه دي] كَمَا إِذَا اشْتَرَى قُلْبًا بِعَشَرَةٍ وَثَوْبًا بِعَشَرَةٍ لکه څرنګه چې څوک يو بنګړی د لسمو درهمو په عوض کې او يوه کپړه د لسو درهمو په عوض کې رانيسي ثُمَّ بَاعَهُمَا مُرَابَحَةً بيا دواړه د بيع مرابحه په توګه خرڅ کړي لَا يَجُوزُ نو دا جائز نه دي وَإِنْ أَمْكَنَ صَرْفُ الرِّبْحِ إِلَى الثَّوْبِ که څه هم [دلته] د کپړې وطرف ته نفع گرځول ممکن دي وَكَذَا إِذَا اشْتَرَى عَبْدًا بِأَلْفِ دِرْهَمٍ او همدارنګه که څوک يو غلام د زرو درهمو په عوض کې رانيسي ثُمَّ بَاعَهُ قَبْلَ نَقْدِ الثَّمَنِ مِنَ الْبَائِعِ مَعَ عَبْدٍ آخَرَ بِأَلْفٍ وَخَمْسِ مِائَةٍ بيا هغه دا غلام له ثمن اداء کولو څخه مخکې پر بائع د دويم غلام سره د پنځلس سوه درهمو په عوض کې خرڅ کړي لَا يَجُوزُ فِي الْمُشْتَرَى بِأَلْفٍ نو په هغه غلام کې بيع جائز نه ده کوم چې د زر درهمو په عوض کې رانيول سوی دی وَإِنْ أَمْكَنَ تَصْحِيحُهُ بِصَرْفِ الْأَلْفِ إِلَيْهِ که څه هم [دلته] د

هغه [رانيول سوي غلام] وطرف ته د زر درهمو په ګرځولو سره د عقد صحيح کول ممکن دي وَكَذَا إِذَا جَمَعَ بَيْنَ عَبْدِهِ وَعَبْدِ غَيْرِهِ وَقَالَ: بِعْتُكَ أَحَدَهُمَا او همدارنګه که څوک خپل غلام او د بل چا غلام سره يو ځای کړي او [مشتري ته داسي] ووايي: چي ما په دې دواړو کي يو پر تا خرڅ کړی لَا يَجُوزُ نو [هم] بيع جائز نه ده وَإِنْ أَمْكَنَ تَصْحِيحُهُ بِصَرْفِهِ إِلَى عَبْدِهِ که څه هم [دلته] د هغه د خپل غلام وطرف ته د دې عقد په ګرځولو سره د عقد صحيح کول ممکن دي وَكَذَا إِذَا بَاعَ دِرْهَمًا وَثَوْبًا بِدِرْهَمٍ وَثَوْبٍ او همدارنګه که څوک يو درهم او کپړه د يوه درهم او کپړې په عوض کي خرڅ کړي وَافْتَرَقَا مِنْ غَيْرِ قَبْضٍ [بيا] له قبضې څخه بغير دواړه [عاقدين] سره جلا سي فَسَدَ الْعَقْدُ فِي الدِّرْهَمَيْنِ نو په دواړو درهمونو کي عقد فاسديږي وَلَا يُصْرَفُ الدِّرْهَمُ إِلَى الثَّوْبِ او درهم به د کپړې وطرف ته نه ګرځول کيږي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ [اوس] ذکر کړی.

**اللغات**: ﴿کُرّ﴾ دا په عربو کي د يو غټې پيمانې (لوښي) نوم وو چي په هغه سره به غله پيمانه کېده، مخکي چي د هدايې په حاشيه کي د دې کوم مقدار ليکل سوی وو په هغه اعتبار سره يو کُر تقريباً (۲۵۴۷) کېلو کيږي، ﴿قضيّة﴾ مقتضا، تقاضا، ﴿قُلب﴾ د سپينو زرو بنګړی (مصباح المنير)، دلته څني مراد د سپينو زرو داسي بنګړی دی چي د هغه وزن لس درهمه وي، ﴿ربح﴾ نفع، ګټه، ﴿تصحيح﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: صحيح کول، صحيح ګرځول (صحيح جوړول، جائز کول).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک يو دينار او دوه درهمه د يوه درهم او دوو دينارو په عوض کي خرڅ کړي، يا يو کُر غنم او يو کُر اوربشي د دوه کره غنمو او دوه کره اوربشو په عوض کي خرڅ کړي، نو زموږ په نېز دا بيع صحيح او جائز ده. او په عوضينو کي به هر عوض د خپل خلاف الجنس وطرف ته ګرځول کيږي، يعني يو دينار به د يوه درهم عوض ګرځول کيږي او دوه ديناره به د دوو درهمو عوض ګرځول کيږي، همدارنګه دوه کره غنم به د دوو کرو اوربشو او يو کُر غنم به د يوه کُر اوربشو عوض ګرځول کيږي، او په دې توګه به عقد صحيح او جائز وي. کنې که په عوضينو کي هر عوض د خپل همجنس وطرف ته وګرځول سي يعني يو دينار د دوو دينارو يا يو کُر غنم د دوو کرو غنمو عوض وګرځول سي، نو عقد باطليږي؛ ځکه چي په دې صورت کي به د قدر او جنس د متحد کېدلو باوجود کمي وزياتوب (کمي وبيشي) راسي، او تاسو ته معلومه ده چي کله د دوو شيانو جنس

او قدر سره متحد وي نو په هغوی کي په کمي وزياتوب کولو سره ربوا (سود) لازميږي. نو ځکه له ربوا څخه د ځان ساتلو لپاره او د عقد د صحيح او جائز ګرځولو لپاره په دې مسئله کي عوضين د خلاف الجنس وطرف ته ګرځول کيږي.

لېکن د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز دا پورتنی عقد بالکل جائز نه دی.

**دليل**: د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي د دې عقد د جائز ګرځولو هيڅ شکل او صورت نه جوړېږي؛ ځکه که عوضين د خپل همجنس وطرف ته وګرځول سي نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي ربوا (سود) لازميږي، او ربوا جائز نه ده. نو ځکه دا صورت خو باطل دی. او که عوضين د خلاف الجنس وطرف ته وګرځول سي نو بيا هم عقد صحيح او جائز ګرځول ممکن نه دي؛ ځکه چي دلته عاقدينو د مجموعې مقابله د مجموعې سره کړې ده يعني د يوه دينار او دوو درهمو مجموعه يې د يوه درهم او دوو درهمو د مجموعې سره مقابله کړې ده (يو دينار او دوه درهمه يې د يوه دينار او دوو درهمو عوض ګرځولي دي) او د تقابل (مقابله کېدلو) تقاضا دا ده چي تقسيم په مشترکه توګه (د شيوع په توګه) وي، نه په مُتعيّنه توګه (د شيوع او اشتراک مطلب دا دی چي په عوضينو کي د هر عوض هر هر جزء د بل عوض د هر هر جزء په مقابله کي وي. لهذا د دوو درهمو هر جزء چي څرنګه د دوو دينارو د هر جزء په مقابله کي دی همداسي به د يوه درهم د هر جزء په مقابله کي هم وي. او د يوه دينار هر جزء چي څرنګه د يوه درهم د هر جزء په مقابله کي دی همداسي به د دوو دينارو د هر جزء په مقابله کي هم وي. [د تعيين مطلب دا دی چي درهم د دينار په مقابله کي مُتعيّن کړی سي]). لهذا کله چي د تقابل تقاضا په مشترکه توګه (د شيوع په توګه) منقسم کول دي، او د هغه تقاضا په مُتعيّنه توګه (متعيّن کولو سره) منقسم کول نه دي، نو ځکه يو دينار د يوه درهم په مقابله کي مُتعيّن کول او دوه درهمه د دوو دينارو په مقابله کي مُتعيّن کول داسي دي لکه د عاقدينو تصرف متغير کول. او د عاقدينو تصرف متغير کول (بدلول) جائز نه دي. نو ځکه په دې مسئله کي به عوضين د خلاف الجنس وطرف ته ګرځول هم جائز نه وي؛ که څه هم په دې سره د عقد تصحيح کيږي (خو بيا هم داسي کول جائز نه دي)؛ ځکه چي د عقد د تصحيح دغه صورت باطل دی، نو ځکه به دا عقد ناجائز ګرځول کيږي.

امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله د خپل مسلک او دعوىٰ په تائيد کي څلور مسئلې د مثال په توګه پېش کړي دي: (۱).... اوله مسئله دا ده چي که يو سړی د سپينو زرو بنګړی چي د هغه وزن لس درهمه وي د لسو درهمو په عوض کي رانيسي، او په لس درهمه يوه کپړه رانيسي؛ بيا بنګړی او کپړه دواړه يو ځای د بيع مرابحه په توګه په پنځويشت (۲۵) درهمه خرڅ کړي (يعني پنځه درهمه ربح [ګټه] پر وکړي). نو دا جائز نه دي؛ ځکه چي پنځه درهمه نفع (ګټه) د بنګړي او کپړې دواړو په مقابله کي ده. نو ګواکي هغه سړي په دوولس نيم درهمه بنګړی خرڅ کړی او په دوولس نيم درهمه يې کپړه

خرڅه کړه. حال دا چې د بنګړي ټوله وزن لس درهمه دی، نو د بنګړي او دوولس نیم درهمو په بیع کې تفاضل (کمي وزیاتوب) موجود سو، او تفاضل ناجائز دی، نو ځکه به دا عقد مرابحه ناجائز وي. که څه هم ټوله نفع د کپړې وطرف ته ګرځول او دا عقد صحیح ګرځول ممکن دي، لېکن څرنګه چې د کپړې وطرف تهٔ د ټوله نفعي په ګرځولو سره د عاقدَینو د تصرف متغیر کول لازمیږي، او تصرف متغیر کول جائز نه دي، نو ځکه دا مسئله ناجائز ده.

②... دویمه مسئله دا ده که یو سړی د زر (۱۰۰۰) درهمو په عوض کې یو غلام رانیسي او بیا دا سړی (مشتري) له ثمن اداء کولو څخه مخکې پر خپل بائع دا غلام او د دې غلام سره بل غلام د پنځلس سوه (۱۵۰۰) درهمو په عوض کې خرڅ کړي، نو په رانیول سوي غلام کې بیع ناجائز ده؛ ځکه کله چې هغه پر خپل بائع دوه غلامه په پنځلس سوه درهمه خرڅ کړل نو د هر غلام حصه له زر درهمو څخه کمه سوه یعني هر غلام په اووه نیم سوه (۷۵۰) درهمه سو. نو دلته دا خرابي راغله چې کوم غلام هغه په زر درهمه رانیولی وو، له ثمن اداء کولو څخه مخکې هغه له زر درهمو څخه د کم درهمو په عوض کې خرڅ کړی سو. حال دا چې مخکې ذکر سوه چې د "شراء ما باع بأقل مما باع قبل نقد الثمن" معامله کول جائز نه دي، نو ځکه په رانیول سوي غلام کې دا بیع ناجائز ده. که څه هم دا عقد صحیح ګرځول ممکن دي، په دې توګه چې له پنځلس سوه درهمو څخه زر درهمه د رانیول سوي غلام قیمت (ثمن) وګرځول سي، او پاته پنځه سوه درهمه د دویم غلام قیمت وګرځول سي نو په دې صورت کې د "شراء ما باع بأقل مما باع قبل نقد الثمن" خرابي نه راځي، خو څرنګه چې په اسي کولو سره د عاقدَینو د تصرف متغیر کول لازمیږي، او د هغوی تصرف متغیر کول جائز نه دي، نو ځکه دا مسئله هم جائز نه ده.

③... درېیمه مسئله دا ده چې که څوک خپل غلام او د بل چا غلام سره یو ځای کړي او مشتري ته ووایي چې ما په دې دوو غلامانو کې یو غلام پر تا خرڅ کړی. نو دا بیع جائز نه ده؛ ځکه چې دلته مبیع غیر مُتعیَن ده، او غیر مُتعیَن (نامعلومه) مبیع مقدورُ التسلیم نه وي (یعني بائع د هغه پر ورسپارلو قادر نه وي)، او د غیرِ مقدورُ التسلیم شي بیع جائز نه ده، نو ځکه دا بیع هم جائز نه ده. حال دا چې دا عقد صحیح ګرځول ممکن دي په دې توګه چې دا بیع د بائع د غلام وطرف ته وګرځول سي، نو په دې صورت کې بیع جائز کیږي، لېکن څرنګه چې په داسي کولو سره د هغوی د تصرف متغیر کول لازمیږي او دا صحیح نه دي، نو ځکه دا مسئله هم جائز نه ده.

④... څلورمه مسئله دا ده که څوک یو درهم او یوه کپړه د یوه درهم او یوې کپړې په عوض کې خرڅ کړي او بیا پر عوضَینو له قبضه کولو څخه مخکې عاقدین سره جلا سي، نو په دې صورت

کي په دوارو درهمونو کي عقد فاسديږي؛ ځکه د هغوی په مينځ کي چي کوم عقد دی هغه عقد صرف دی، او د عقد صرف له شرائطو څخه يو شرط د عقد په مجلس کي پر عوضَينو قبضه کول دي، حال دا چي دلته له قبضې څخه مخکي عاقدين سره جلا سول، نو ځکه دا عقد فاسديږي. لېکن دا عقد صحيح ګرځول ممکن دي په دې توګه چي درهم د کپړې وطرف ته وګرځول سي نو دا بيع به مطلق وګرځي (او په مطلق بيع کي په مجلس کي دننه قبضه کول ضروري نه دي نو ځکه دا عقد به جائز سي)، خو څرنګه چي په داسي کولو سره د عاقدَينو د تصرف متغيّر کول لازميږي؛ په دې توګه چي هغوی (ديوه درهم او کپړې) د مجموعې مقابله (ديوه درهم او کپړې) د مجموعې سره کړې ده، او تصرف متغيّر کول جائز نه دي، نو ځکه دا مسئله هم جائز نه ده.

لنډه دا چي څرنګه په دې مسئلو کي د عاقدَينو د تصرف متغيّر کول لازميږي، او هغه جائز نه دي، همداسي د متن په دې مذکوره مسئله کي هم يو درهم ديوه دينار او دوه درهمه د دوو درهمو وطرف ته په ګرځولو سره د عاقدَينو د تصرف متغيّر کول لازميږي، او د عاقدَينو تصرف متغيّر کول (بدلول) جائز نه دي، نو ځکه دلته د بيع د جائز ګرځولو هيڅ شکل او صورت نسته.

## په مذکوره مسئله کي زموږ دليل

وَلَنَا: أَنَّ الْمُقَابَلَةَ الْمُطْلَقَةَ تَحْتَمِلُ مُقَابَلَةَ الْفَرْدِ بِالْفَرْدِ زموږ دليل دا دی: چي مطلقاً مقابله د مقابلۀ فرد بالفرد احتمال لري كَمَا فِي مُقَابَلَةِ الْجِنْسِ بِالْجِنْسِ لکه د جنس سره د جنس په مقابله کي وَأَنَّهُ طَرِيْقٌ مُتَعَيَّنٌ لِتَصْحِيْحِهِ او دا [مقابلۀ فرد بالفرد] د دې عقد د صحيح کولو مُتعيّنه طريقه ده فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ تَصْحِيْحًا لِتَصَرُّفِهِ نو ځکه د عاقد د تصرف صحيح کولو لپاره به پر همداسي مقابله محمول کيږي وَفِيهِ تَغْيِيرُ وَصْفِهِ لَا أَصْلِهِ او په دې [يعني پر داسي مقابله په محمول کولو] کي فقط د عقد وصف متغيّر کيږي، نه د هغه اصل لِأَنَّهُ يَبْقَى مُوجَبُهُ الْأَصْلِيُّ ځکه چي د هغه اصلي مُوجب باقي پاتيږي وَهُوَ ثُبُوتُ الْمِلْكِ فِي الْكُلِّ بِمُقَابَلَةِ الْكُلِّ او هغه [اصلي مُوجب] د کل په مقابله کي په کل کي د ملکيت ثابتېدل دي وَصَارَ هٰذَا كَمَا إِذَا بَاعَ نِصْفَ عَبْدٍ مُشْتَرَكٍ بَيْنَهُ وَبَيْنَ غَيْرِهِ او دا داسي سو لکه يو څوک چي د هغه غلام نصف [نيمه حصه] خرڅ کړي کوم چي د ده او د بل چا په مينځ کي مشترک وي يَنْصَرِفُ إِلَى نَصِيبِهِ تَصْحِيحًا لِتَصَرُّفِهِ نو دا عقد د هغه د تصرف صُحيح کولو لپاره د هغه د خپلي حصې وطرف ته ګرځي.

**اللغات**: ﴿تصحيح﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: صحيح كول. صحيح ګرځول (جائز كول. جائز ګرځول). ﴿موجَب﴾ د افعال د باب مفعول دی: واجب كړی سوی. تقاضا. ﴿ينصرف﴾ د انفعال د باب مضارع ده: ګرځېدل. راجع كېدل.

**تشريح**: په دې عبارت كې زموږ دليل بيان سوی دی. حاصل يې دا دی چې په مذكوره مسئله كې چې د يوه دينار او دوو درهمو مقابله د يوه درهم او دوو دينارو سره سوې ده. دا مقابلهٔ مطلقه ده. او په مطلق كې څو احتماله وي. لهذا څرنګه چې دلته دا احتمال سته چې د مجموعې مقابله به د مجموعې سره وي همدارنګه دا احتمال هم سته چې دا به مقابلةُ الفرد بالفرد وي. يعني يو درهم به د يوه دينار په مقابله كې وي او دوه درهمه به د دوو دينارو په مقابله كې وي. لكه كله چې د جنس مقابله د جنس سره وكړی سي نو په هغه كې هم د مقابلةُ الجنس بغير الجنس او مقابلةُ الجنس مع الجنس دواړو احتمال وي. او په هغه احتمالاتو كې چې په كوم احتمال كې د عاقدينو تصرف صحيح كيږي هغه مراديږي. او څرنګه چې دلته د مقابلة الفرد بالفرد بغير جنسه د مرادولو په صورت كې د عاقدينو تصرف صحيح كيږي. نو ځكه دلته په مقابلهٔ مطلقه سره فقط مقابلهٔ فرد بالفرد متعينه ده او نور ټوله احتمالات باطل دي.

وفيه تغيير وصفه إلخ: او پاته سوه د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره چې "په داسي كولو سره د عاقدينو د تصرف متغيّر كول لازميږي"، نو د هغه جواب دا دې چې په دې مذكوره مسئله كې د اصل عقد متغيّر كول نه لازميږي، بلكې د عقد د وصف متغيّر كول لازميږي (يعني په داسي كولو سره فقط د عقد وصف بدليږي)، او د وصف په متغيّر كېدلو (بدلېدلو) سره د عقد پر صحت هيڅ اثر نه پرېوځي؛ ځكه چې د وصف د متغيّر كېدلو باوجود هم د عقد مُوجب يعني ملكيت ثابتيږي، او د عقد وصف ځكه متغيّر كيږي چې د مقابلهٔ كل بالكل په احتمال كې تقسيم د شيوع په توګه وو لېكن موږ هغه پرېښوی او د هغه په عوض كې موږ مقابلهٔ فرد بالفرد والا احتمال (چې په هغه كې په مُتعيّنه توګه جلا جلا تقسيم كيږي) مراد كړی، نو ګواكي موږ د عقد يو وصف پرېښوی او بل وصف مو اختيار كړی. يعني د شيوع طريقه (تقسيم بالشيوع) مو پرېښوی او د هغه پر ځای مو بل وصف يعني د تعيين طريقه (تقسيم بالتعيين) اختيار كړی. او په دې سره د اصل عقد پر صحت هيڅ اغيز نه وسو. ځكه چې څرنګه د تقسيم بالشيوع په صورت كې په ټوله مبيع كې د مشتري ملكيت ثابتيږي. همداسي د تقسيم بالتعيين په صورت كې هم په ټوله مبيع كې د هغه ملكيت ثابتيږي. او په دې سره د عقد او د عقد په مُوجب (ملكيت) كې هيڅ ممانعت نه راځي (بلكې ملكيت خامخا ثابتيږي)، نو ځكه دا مذكوره مسئله صحيح ده.

**وصار كما إلخ:** صاحب د هدايې د مذكوره مسئلې په تائيد كي يو مثال ذكر كوي فرمايي چي د دې مثال داسي دى لكه دوه خلک چي په يوه غلام كي شريكان وي، او بيا يو شريک نصف غلام (د غلام نيمه حصه) خرڅه كړي، نو دا نصف مطلق دى، دا احتمال هم پكښي سته چي هغه د دغه شريک (بائع) خپله نصف حصه ده يعني هغه خپله نصف حصه مراد كړې ده (خرڅه كړې ده)، او دا احتمال هم سته چي هغه د خپل ملګري شريک نصف حصه مراد كړې ده، او داسي بيع نه جائز كيږي، لېكن د بائع د تصرف صحيح كولو لپاره دا عقد د بائع د خپل نصف حصې وطرف ته ګرځول كيږي، او په داسي كولو سره فقط وصف متغيّر كيږي په دې توګه چي دلته د مطلقاً نصف غلام د مرادولو په صورت كي تقسيم بالشيوع دى، او د بائع د نصف حصې د مرادولو په صورت كي تقسيم بالتعيين دى، مګر بيا هم عقد صحيح كيږي، نو څرنګه چي په دې مسئله كي د وصف د متغيّر كېدلو باوجود "عقد" د صحيح كولو لپاره د بائع د حصې وطرف ته ګرځول كيږي، همداسي به د متن په مذكوره مسئله كي هم د وصف متغيّر كېدلو باوجود "عقد" د صحيح كولو لپاره هر عوض د خلاف الجنس وطرف ته ګرځول كيږي. او څرنګه چي په دې مسئله كي د وصف په متغيّر كېدلو سره د عقد پر صحت هيڅ اثر نه پرېوځي، همداسي به د متن په مسئله كي هم د وصف په متغيّر كېدلو سره د عقد پر صحت هيڅ نه پرېوځي او عقد به صحيح او جائز وي.

## د امام زفر او امام شافعي د مثال جواب

بِخِلَافِ مَا عُدَّ مِنَ الْمَسَائِلِ په خلاف د هغه مسئلو كوم چي شمارل سوي دي أَمَّا مَسْأَلَةُ الْمُرَابَحَةِ فَلِأَنَّهُ يَصِيرُ تَوْلِيَةً فِي الْقُلْبِ بِصَرْفِ الرِّبْحِ كُلِّهِ إِلَى الثَّوْبِ كوم چي د مرابحې مسئله ده نو ځكه چي د كپړې وطرف ته د ټوله نفعي په ګرځولو سره په بنګړي كي مرابحه په توليه سره بدليږي وَالطَّرِيقُ فِي الْمَسْأَلَةِ الثَّانِيَةِ غَيْرُ مُتَعَيَّنٍ او په دويمه مسئله كي د جواز طريقه مُتعيّنه نه ده لِأَنَّهُ يُمْكِنُ صَرْفُ الزِّيَادَةِ عَلَى الْأَلْفِ إِلَى الْمُشْتَرَى ځكه چي له زر درهمو څخه زيات هم د رانيول سوي غلام وطرف ته ګرځول ممكن دي وَفِي الثَّالِثَةِ أُضِيفَ الْبَيْعُ إِلَى الْمُنَكَّرِ او په درېيمه مسئله كي د بيع نسبت د نا مُتعين غلام وطرف ته سوى دى وَهُوَ لَيْسَ بِمَحَلٍّ لِلْبَيْعِ حال دا چي هغه د بيع محل نه دى وَالْمُعَيَّنُ ضِدُّهُ او مُعين د هغه ضد دى وَفِي الْأَخِيرَةِ انْعَقَدَ الْعَقْدُ صَحِيحًا او په آخره مسئله كي عقد صحيح منعقد سوى دى وَالْفَسَادُ فِي حَالَةِ الْبَقَاءِ او فساد د بقاء په حالت كي دى [يعني په آخري مسئله كي عقد

ابتداءً صحيح دی. بیا وروسته (د عاقدینو د افتراق په وجه) فاسد سوی دی] وَكَلَامُنَا فِي الْإِبْتِدَاءِ او زموږ خبره د عقد په ابتداء کي ده [یعني زموږ کلام په دې باره کي دی چي عقد په شروع کي فاسد سوی دی او که نه].

**اللغات**: ﴿اضیف﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: اضافت کول (نسبت کول)، منسوب کېدل. ﴿منکر﴾ د افعال د باب مفعول دی: نامُتعیّن (غیر مُعیَن، نامعلوم)، مُعیَن د هغه ضد دی.

**تشریح**: امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله چي د خپل مسلک په تائید کي کومي مسئلې د مثال په توګه ذکر کړي وې او پر هغوی د متن مذکوره مسئله قیاس کړې وه، په دې عبارت کي د هغه مسئلو جواب ورکوي. ① ... فرمایي چي د متن مذکوره مسئله د مرابحې پر مسئله قیاسول صحیح نه دي؛ ځکه چي په هغه او مذکوره مسئله کي فرق دی، په دې توګه چي د متن په مسئله کي فقط وصف متغیر کیږي، لېکن په دې مسئله کي اصل عقد متغیر کیږي؛ ځکه که په دې (د مرابحې) په مسئله کي موږ ټوله نفع د کپړې وطرف ته وګرځوو، نو بنګړی کوم چي په لس درهمه وو نو اوس به هم هغه په لس درهمه پاته سي او له نفع او نقصان څخه به د هغه بیع خالي وي، او داسي بیع ته "بیع تولیه" وایي. او څرنګه تولیه د مرابحې ضد ده، او شی خپل ضد لره نه شاملیږي، نو ځکه دا تولیه به مرابحې لره شامله نه وي، حال دا چي تاسو هغه بیع د مرابحې بیع ګرځولې ده. لهذا د کپړې وطرف ته د ټوله نفعي په ګرځولو سره که څه هم عقد صحیح کیږي لېکن په دې سره اصل عقد له مرابحه څخه په تولیه بدلیږي. لنډه دا چي په دې مسئله کي د کپړې وطرف ته د ټولي نفع په ګرځولو سره اصل عقد متغیر کیږي، او د متن په مذکوره مسئله کي عوضین خلاف الجنس وطرف ته په ګرځولو سره د عقد وصف متغیر کیږي، اصل عقد نه متغیر کیږي؛ لهذا کله چي په دواړو مسئلو کي دومره غټ فرق سته نو د متن مسئله پر دې مسئله قیاسول او دا مسئله د هغې لپاره مثال ګرځول صحیح نه دي.

② ... والطریق في المسألة إلخ: د دویمي مسئلې جواب دا دی چي تاسو چي کوم دا خبره کړې ده چي د "شراء ما باع بأقلّ مما باع قبل نقد الثمن" په وجه دا عقد جائز نه دی او بیا تاسو ویلي دي چي "که څه هم دا بیع صحیح ګرځول ممکن دي (په دې توګه چي د رانیول سوي غلام ثمن زر درهمه وګرځول سي او پاته پنځه سوه درهمه د بل غلام ثمن وګرځول سي) خو بیا هم دا بیع جائز نه ده ځکه چي په دې سره د عاقدینو تصرف او عقد متغیر کیږي"، لنډه دا چي ستاسو په نېز د عقد د متغیر کېدلو په وجه دلته بیع ناجائز ده، حالانکي داسي نه ده بلکي د دې بیع د عدمِ جواز (نه جائز کېدلو) وجه دا ده چي په دې صورت کي د جواز طریقه مُتعیّنه نه ده، ځکه د عقد د جائز کولو لپاره چي څرنګه د رانیول سوي غلام وطرف ته زر درهمه ګرځول کېدای سي، همداسي زر درهمه او یو درهم، زر درهمه او دوه

درهمه، زر درهمه او درې درهمه او له دې څخه زيات هم د هغه وطرف ته ګرځول کېدای سي او دا ټوله صور تونه برابر دي، يوه ته هم پر بل ترجيح نسته، نو اوس که يوه صورت ته ترجيح ورکول سي (مثلاً زر درهمه د هغه وطرف ته وګرځول سي) نو ترجيح بلا مرجح به لازم سي، او ترجيح بلا مرجح صحيح نه ده. او که يوه صورت ته ترجيح نه ورکول سي نو د جواز طريقه او ثمن به مجهول سي او په دې سره عقد فاسديږي. او د متن په مذکوره مسئله کي د جواز طريقه مُتعيَنه ده يعني "هر عوض د خلاف الجنس وطرف ته ګرځول"، لهذا کله چي د متن په مسئله کي د جواز طريقه مُتعيَنه ده او په دې مسئله کي د جواز طريقه غير مُتعيَنه ده، نو ځکه د متن مسئله پر دې مسئلې قياسول صحيح نه دي (او داسي هم ويل کېدای سي چي که يوه صورت ته ترجيح نه ورکول سي نو د جواز طريقه به مجهوله سي او د هغه مجهول والي د ثمن مجهول والي لره متضمن دی، او د بيع د صحت لپاره د ثمن معلومېدل شرط دی، نو ځکه په دې مسئله کي د جواز د طريقې د مجهول والي په وجه عقد فاسديږي، نه د عقد او تصرف د متغير والي په وجه، نو ځکه دا مسئله د متن د مسئلې په تائيد کي د مثال په توګه ذکر کول او يوه پر بلې قياسول صحيح نه دي).

(۳)... وفي الثالثة إلخ: د درېيمي مسئلې جواب دا دی، چي کله بائع خپل غلام او د بل چا غلام سره يو ځای کړل او مشتري ته يې وويل چي ما په دې دوو کي يو غلام پر تا خرڅ کړی، نو په دې صورت کي د بيع نسبت د منکر يعني د غير مُعيَن غلام وطرف ته وسو، حال دا چي غير مُعيَن غلام د مجهول والي په وجه د بيع محل (يعني مبيع) نه سي کېدای، او څرنګه چي مُعيَن د غير مُعيَن ضد دی، او شی خپل ضد لره نه شامليږي، نو ځکه بائع د "أحدهما" په ويلو سره مُعيَن غلام (يعني خپل غلام) نه سي مراد ولای. لهذا په دې مسئله کي د بيع د فاسدېدلو او نه جائز کېدلو وجه د مبيع (غلام) مجهول والی دی، نه د وصف متغير والی. نو ځکه دا مسئله هم د متن د مسئلې لپاره مثال ګرځول او يوه پر بلې قياسول صحيح نه دي.

(۴)... وفي الأخير إلخ: د څلورمي مسئلې جواب دا دی چي کله بائع يو درهم او کپړه د يوه درهم او کپړې په عوض کي خرڅ کړل نو ښکاره خبره ده چي په ابتداء (شروع) کي دا عقد صحيح سو، لېکن بيا چي کله پر عوضينو له قبضه کولو څخه مخکي دواړه عاقدين سره جلا سول، نو په دواړو درهمونو کي عقد فاسد سو، ځکه چي د عقد صرف په وجه په مجلس کي دننه پر هغوی قبضه کول واجب وو، نو ځکه دلته بقاءً (په آخر کي) عقد فاسد سو، او زموږ کلام د عقد د ابتداء په باره کي دی، يعني که هر عوض د خلاف الجنس وطرف ته نه وګرځول سي نو عقد به ابتداءً فاسد سي. لهذا کله چي د متن په مسئله کي د خلاف الجنس وطرف ته د عوضينو د نه ګرځولو په صورت کي ابتداءً عقد فاسديږي او په دې مسئله کي د قبضه نه کولو په وجه بقاءً عقد فاسديږي، نو ځکه په دې دوو مسئلو

کي فرق راغلی (ځکه دابتداء او بقاء والا په فساد کي فرق سته)، نو ځکه دا مسئله د متن د مسئلې لپاره مثال ګرځول او يوه پر بلې قياسول صحيح نه دي.

## يوولس درهمه په لس درهمه او يوه دينار سره خرڅول (حکم)

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ أَحَدَ عَشَرَ دِرْهَمًا بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ وَدِينَارٍ فرمايي: او که څوک يوولس درهمه د لسو درهمو او يوه دينار په عوض کي خرڅ کړي جَازَ الْبَيْعُ نو بيع جائز ده وَتَكُونُ الْعَشَرَةُ بِمِثْلِهَا وَالدِّينَارُ بِدِرْهَمٍ او لس درهمه به د لسو درهمو په عوض کي وي او يو دينار به د يوه درهم په عوض کي وي لِأَنَّ شَرْطَ الْبَيْعِ فِي الدَّرَاهِمِ التَّمَاثُلُ ځکه چي په دراهمو کي د بيع شرط برابر والی دی عَلَى مَا رَوَيْنَا د هغه حديث پر بناء کوم چي موږ روايت کړی فَالظَّاهِرُ أَنَّهُ أَرَادَ بِهِ ذٰلِكَ او ظاهري حالت [هم] دا دی چي بائع به په دې بيع سره همدا اراده کړې وي فَبَقِيَ الدِّرْهَمُ بِالدِّينَارِ نو ځکه يو درهم د يوه دينار په مقابله کي باقي پاته سو وَهُمَا جِنْسَانِ او درهم او دينار دوه جلا جنسونه دي وَلَا يُعْتَبَرُ التَّسَاوِيْ فِيهِمَا او په دوو جنسونو کي د مساوات اعتبار نه کيږي.

**اللغات**: ﴿التماثل﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: برابر کېدل (برابر والی)، يو بل ته کېدل.

﴿التساوي﴾ دا هم د تفاعل مصدر دی: مساوات، برابري.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک يوولس درهمه د لسو درهمو او يوه دينار په عوض کي خرڅ کړي، نو دا بيع جائز کيږي، او دا به ويل کيږي چي په دې يوولس درهمو کي خو لس درهمه د لسو درهمو په مقابله کي دي او پاته سو يو درهم نو هغه د يوه دينار په مقابله کي دی؛ دليل دا دی چي په مخکني مشهور حديث "الحِنْطَةُ بِالحِنْطَةِ وَالفَضَّةُ بِالْفِضَّةِ... مثلاً بِمَثَلٍ إلخ" سره دا خبره ثابته ده چي په دراهمو کي د بيع د جائز کېدلو شرط د دواړو عوضونو برابر والی او مساوي کېدل دي، او څرنګه چي عاقدين مسلمانان دي، نو ځکه د هغو ظاهري حالت هم د دې خبري تقاضا کوي چي هغوی به جائز عقد کړی وي، نه فاسد عقد، او عقد په هماغه صورت کي جائز کيږي کوم چي امام قدوري رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی چي لس درهمه د لسو درهمو په عوض کي وګرځول سي او پاته يو درهم د يوه دينار په عوض کي وګرځول سي، او دا تولو ته معلومه ده چي درهم او دينار دوه مختلف جنسونه دي (يعني د دوی جنس يو له بل څخه جلا دی). نو ځکه په هغوی کي به مساوات او برابري هم

معتبر نه وي؛ ځکه چي مساوات فقط د اتحاد الجنس په وخت کي شرط وي، د اختلاف الجنس په وخت کي شرط نه وي.

## د بیع صَرف یو بل صورت

وَلَوْتَبَايَعَا فِضَّةً بِفِضَّةٍ أَوْ ذَهَبًا بِذَهَبٍ وَأَحَدُهُمَا أَقَلُّ او که عاقدین سپین زر د سپینو زرو په عوض کي یا سره زر د سرو زرو په عوض کي خرڅ کړي، حال دا چي په دواړو کي یو عوض کم وي وَمَعَ أَقَلِّهِمَا شَيْءٌ آخَرُ تَبْلُغُ قِيمَتُهُ بَاقِيَ الْفِضَّةِ او د هغه کم عوض سره بل داسي شی وي چي د هغه قیمت پاته سپینو زرو ته رسیږي جَازَ الْبَيْعُ مِنْ غَيْرِ كَرَاهِيَةٍ نو بیله کراهته بیع جائز ده وَإِنْ لَمْ تَبْلُغْ او که د هغه قیمت [پاته سپینو زرو ته] نه رسیږي فَمَعَ الْكَرَاهَةِ نو د کراهت سره بیع جائز ده وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ قِيمَةٌ كَالتُّرَابِ او که د هغه شي هیڅ قیمت نه وي، لکه خاوره لَا يَجُوزُ الْبَيْعُ نو بیع نه جائز کیږي لِتَحَقُّقِ الرِّبَا ځکه چي ربوا ثابته سوه إِذِ الزِّيَادَةُ لَا يُقَابِلُهَا عِوَضٌ فَيَكُونُ رِبًوا ځکه داسي زیاتوب [اضافه] چي د هغه په مقابله کي هیڅ عوض نه وي، هغه ربوا وي.

**اللغات**: ﴿تبایعا﴾ د تفاعل له بابه د تثنیه مذکر غائب ماضي صیغه ده: یو له بل سره بیع کول، ﴿ربوا﴾ سُود.

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که یو سړی سپین زر د سپینو زرو په عوض کي. یا سره زر د سرو زرو په عوض کي خرڅ کړي، او له دواړو عوضونو څخه یو عوض د وزن په اعتبار سره کم وي، او د کم عوض سره یو بل شی هم وي. مثلاً یو څوک د لس درهمه سپینو زرو سره بل شی یو ځای کړي او دوړه په پنځلس درهمه خرڅ کړي، نو کوم شی چي د لس درهمه سپینو زرو سره یو ځای کړی سوی دی هغه به قیمت لري، یا به یې نه لري؛ که چیري هغه قیمت نه لري لکه خاوره، نو په دې صورت کي بیع نه جائز کیږي؛ ځکه په کوم طرف کي چي پنځلس درهمه دي. په هغه طرف کي پنځه درهمه په دې توګه زائد او اضافه دي چي دویم طرف ته د هغوی په مقابله کي هیڅ عوض نسته. او په بیع کي داسي زیاتوب (اضافه) ته ربوا وایي کوم چي له عوض څخه خالي وي. نو په دې صورت کي به ربوا (سود) لازم سي. او ربوا حرامه ده. نو ځکه به د بیع دا صورت حرام او ناجائز وي.

**وإن لم يكن إلخ**: او که چیري هغه شی قیمت لري، نو بیا یې دوه صورتونه دي: یا د هغه قیمت به پاته سپینو زرو یعني پنځه درهمو ته رسیږي، یا به نه رسیږي؛ که چیري د هغه قیمت پاته سپینو زرو یعني پنځو درهمو ته رسیږي نو دا بیع بلا کراهته جائز ده؛ او که د هغه قیمت پاته سپینو زرو یعني

پنځو درهمو ته نه رسيږي، نو ذا بيع مع الكراهت جائز ده. او دا صورت مکروه ځکه دی چي که هغه جائز وګرځول سي نو خلک به په داسي کولو سره د ربوا ساقطولو حيله کوي يعني د سُود معابله به کوي او د هغه د جائز کولو لپاره به داسي کوي چي د کم عوض سره به (مثلاً) دوه سوه ګرامه غنم يوځای کوي، او د جواز په حيله سره يو حرام کار کول که څه هم حرام نه دي لېکن مکروه خامخا دي، نو ځکه دغه صورت مکروه ګرځول سوی دی.

## په قرض کي خلافُ الجنس شی واپس کول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ كَانَ لَهُ عَلٰى آخَرَ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ فرمايي: او که د يوه سړي [قرضخواه] پر بل سړي لس درهمه [قرض] باندي وي فَبَاعَهُ الَّذِي عَلَيْهِ الْعَشَرَةُ دِينَارًا بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ وَدَفَعَ الدِّينَارَ وَتَقَاصَّا الْعَشَرَةَ بِالْعَشَرَةِ نو پر کوم يوه چي لس درهمه باندي وي هغه پر قرضخواه يو دينار د لسو درهمو په عوض کي خرڅ کړي او دينار هغه ته ورکړي او لس درهمه په لسو درهمه سره تبادله کړي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ إِذَا بَاعَ بِعَشَرَةٍ مُطْلَقَةٍ او د دې مسئلې مطلب دا دی چي کله هغه [پر قرضخواه يو دينار] د لسو درهمو په عوض کي مطلقاً خرڅ کړي وَوَجْهُهُ أَنَّهُ يَجِبُ بِهٰذَا الْعَقْدِ ثَمَنٌ يَجِبُ عَلَيْهِ تَعْيِينُهُ بِالْقَبْضِ او د جائز کېدلو وجه دا ده چي په دې مطلق عقد سره داسي ثمن واجبيږي چي هغه په قبضه سره مُتعيّن کول لازم دي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَالدَّيْنُ لَيْسَ بِهٰذِهِ الصِّفَةِ او دَين [قرض] پر دې صفت نه دی فَلَا تَقَعُ الْمُقَاصَّةُ بِنَفْسِ الْمَبِيعِ لهذا محض په بيع سره به مقاصه نه واقع کيږي لِعَدَمِ الْمُجَانَسَةِ ځکه چي مجانست [همجنس کېدل] معدوم دي فَإِذَا تَقَاصَّا بيا چي کله عاقد [يو له بل سره] مقاصه وکړي يَتَضَمَّنُ ذٰلِكَ فَسْخَ الْأَوَّلِ وَالْإِضَافَةَ إِلَى الدَّيْنِ نو دا [فسخ کېدل] شامليږي د اول عقد فسخ کېدلو لره او د دَين وطرف ته [د دې عقد د] نسبت کولو لره إِذْ لَوْلَا ذٰلِكَ ځکه که دا نه وسي يَكُونُ اسْتِبْدَالًا بِبَدَلِ الصَّرْفِ نو د "عقد صرف" په عوض سره به استبدال وسي [او دا جائز نه دي] وَفِي الْإِضَافَةِ إِلَى الدَّيْنِ تَقَعُ الْمُقَاصَّةُ بِنَفْسِ الْعَقْدِ او د دَين وطرف په نسبت کولو کي به په نفس عقد سره مقاصه واقع کيږي [يعني د قرض وطرف ته په نسبت کولو سره په خپله په عقد سره تبادله واقع کيږي] عَلٰى مَا نُبَيِّنُهُ چي موږ به [وروسته] د دې بيان وکړو وَالْفَسْخُ قَدْ يَثْبُتُ بِطَرِيقِ الْاقْتِضَاءِ او فسخ ځيني وخت د اقتضاء په توګه ثابتيږي كَمَا إِذَا تَبَايَعَا بِأَلْفٍ ثُمَّ بِأَلْفٍ وَخَمْسِ مِائَةٍ

لکه [په هغه صورت کي چي د اقتضاء په توګه ثابتيږي] کله چي عاقدين د زرو [۱۰۰۰] په عوض کي بيع وکړي، بيا د پنځلس سوو [۱۵۰۰] په عوض کي بيع وکړي وَزُفَرُ يُخَالِفُنَا فِيهِ او امام زفر رَحِمَهُ الله په دې هکله زموږ مخالف دی لِأَنَّهُ لَا يَقُولُ بِالِاقْتِضَاءِ ځکه چي هغه د اقتضاء قائل نه دی [يعني د هغه په نز اقتضاءً بيع نه فسخ کيږي] وَهٰذَا إِذَا كَانَ الدَّيْنُ سَابِقًا او دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي دَين [پر عقد] مخکي وي فَإِنْ كَانَ لَاحِقًا ليکن که چيري قرض [تر عقد] وروسته لاحق سوی وي فَكَذٰلِكَ فِي أَصَحِّ الرِّوَايَتَيْنِ نو له دوو روايتونو څخه د زيات صحيح روايت مطابق دا هم جائز دي لِتَضَمُّنِهِ انْفِسَاخَ الْأَوَّلِ وَالْإِضَافَةَ إِلَى دَيْنٍ قَائِمٍ وَقْتَ تَحْوِيلِ الْعَقْدِ ځکه چي دا د اول عقد فسخ کېدلو لره او د داسي دَين وطرف ته نسبت کولو لره شامل دي کوم چي د عقد د بدلېدلو [منتقل کېدلو] په وخت کي موجود دی فَكَفٰى ذٰلِكَ لِلْجَوَازِ او د جائز کېدلو لپاره همدومره کافي دي.

**اللغات:** ﴿تقاصّا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه مذکر غائب ماضي صيغه ده: يو له بل سره مبادله (تبادله) کول، ادل بدل کول، يو شی په بل شي سره بدلول، (اليشول)، ﴿تعيين﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مُعيّن کول (متعين کول، معلومول، ټاکل)، ﴿دَين﴾ پور، قرض، ﴿لاحقاً﴾ د سمع د باب فاعل دی: مراد ځني وروسته کېدونکی دی، ﴿يتضمن﴾ د تفعل د باب مضارع ده: متضمن کېدل، شامليدل، ﴿تحويل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: منتقل کېدل، بدلېدل.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که مثلاً د زيد پر خالد لس درهمه قرض باندي وي، او بيا مقروض يعني خالد پر قرضخواه يعني پر زيد د لسو درهمو په عوض کي يو دينار خرڅ کړي، او دا بيع مطلق وسي يعني په دې کي د قرض اداء کولو خبره نه وسي (يعني خالد د دې خبري يادونه نه وکړي چي دا دينار زه د قرض د لسو درهمو په عوض کي پر تا خرڅوم)، او بيا مقروض قرضخواه (مشتري) ته هغه دينار ورکړي، تر دې وروسته دوی دواړه په خپل رضا سره د قرض مقاصه وکړي، يعني د دې بيع په وجه چي پر قرضخواه کوم لس درهمه واجب سوه، دا د هغه لسو درهمو په عوض کي وګرځوي کوم چي د قرضخواه پر مقروض واجب وه، نو په دې صورت کي دا مقاصه او مسئله بالاتفاق صحيح او جائز ده.

دليل دا دی چي کله په دې مسئله کي مطلقاً عقد بيع سوی ده (يعني په هغه کي د قرض يادونه سوې نه ده)، نو د دې عقد بيع په وجه پر قرضخواه داسي ثمن واجب سو چي هغه په قبضه سره مُتعيّن کول ضروري دي؛ ځکه چي قرضخواه مشتري دی (يعني هغه له مقروض

[خالد] څخه یو دینار د لسو درهمو په عوض کې رانیولی دی). او دا عقد "عقد صرف" دی چې د هغه پر عوضینو په مجلس کې دننه قبضه کول ضروري دي. د دې په خلاف پر مقروض (بائع) چې د قرضخواه کوم قرض باندې دی هغه په قبضه سره مُتعیّن کول لازم نه دي. نو ځکه په دې حواله سره دا دواړه مختلف الجنس سول. او په مختلف الجنس شیانو کې مقاصه نه کېږي؛ نو ځکه په نفس بیع سره خو مقاصه نه کېږي. لېکن تر بیع وروسته چې کله دواړه عاقدین په خپل رضا سره مقاصه وکړي، نو د هغو دا مقاصه به دوو خبرو لره متضمنه وي: ①... اول عقد به فسخ کېږي. یعني د دینار او درهمو په مینځ کې چې کوم عقد صرف سوی دی هغه به فسخ کېږي. ②... دویم دا چې دا عقد به اوس د هغه لس درهمو وطرف ته منسوب کېږي کوم چې د قرضخواه پر مقروض د قرض په توګه باندې دي او مذکوره دینار به د هغوی په مقابله کې ګرځول کېږي؛ ځکه که داسې نه وسي (یعني اول عقد فسخ نه سي) نو د عقد صرف پر عوضینو له قبضه کولو څخه مخکې به د عقد صرف په عوض کې استبدال (تبادله) لازم سي، حال دا چې په عقد صرف کې له قبضې څخه مخکې استبدال جائز نه دی (یعني په عقد صرف کې دا جائز نه دي چې له قبضې څخه مخکې د هغه عوض په بل شي سره بدل کړی سي. یعني د "بیع صَرف" د یوه عوض په بدله کې بل شی واخیستل سي. دا جائز نه دي). نو ځکه موږ په دې صورت کې مقاصه د "عقد صرف" فسخ لره متضمنه ګرځولې ده. د دې لپاره چې مقاصه صحیح او جائز وګرځي. لکه څرنګه چې په هغه صورت کې په نفس عقد سره مقاصه واقع کېږي کله چې مقروض خپل دینار د قرض د دراهمو په عوض کې پر قرضخواه خرڅ کړي (یعني د قرض یادونه نه وکړي)، نو ځکه په دې صورت به هم مقاصه جائز ګرځي.

**والفسخ إلخ:** دا د یو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چې کله تاسو په دې مسئله کې عقد بیع فسخ ګرځولی دی، نو د فسخ کېدلو په وجه بائع (مقروض) ته خپل دینار واپس حاصلېدل پکار دي، حال دا چې د مقاصې په صورت کې پر همدغه دینار مقاصه کېږي او بائع ته خپل دینار نه حاصلیږي؟.

د دې جواب دا دی چې د مبیع او ثمن واپس حاصلېدل د هغه فسخ مُوجب دی کوم چې قصداً (ارادةً) وکړی سي (یعني د بیع د فسخ کېدلو په وجه هغه وخت بائع ته خپل مبیع [دینار] حاصلیږي کله چې بیع قصداً فسخ کړی سوې وي). او په دې مسئله کې چې کوم بیع فسخ کېږي هغه قصداً نه فسخ کېږي، بلکې د مقاصې د صحیح کېدلو لپاره اقتضاءً او ضمناً بیع فسخ کېږي. او کوم شی چې اقتضاءً او ضمناً ثابت وي د هغه حکم داسې نه دی کوم چې د قصداً ثابتېدونکي شي دی، نو ځکه په دې صورت کې د مبیع یعني د یوه دینار واپس کول ضروري نه سو. د دې مثال داسې دی لکه کله چې بائع

او مشتري پر زر درهمو بيع وکړي بيا همدا بيع پر پنځلس سوه درهمو وکړي، نو دلته هم د دويمې بيع د صحيح کېدلو لپاره اوله بيع اقتضاءً فسخ کيږي (يعني کله چي پر پنځلس درهمو بيع وسوه نو دهغې تقاضا دا ده چي اوله بيع [کوم چي پر زر درهمو سوې وي] فسخ سي، کنې دويمه بيع به صحيح نه سي)، لهذا څرنګه چي دلته اقتضاءً اوله بيع فسخ کيږي، همداسي به په مذکوره مسئله کي هم ضمناً "بيع صَرف" فسخ کيږي.

لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز بيع نه فسخ کيږي، ځکه چي هغه د اقتضاءً فسخ البيع قائل نه دی، او کله چي بيع فسخ نه سي، نو ښکاره خبره ده چي د هغه په نېز به مقاصه هم نه جائز کيږي.

وهذا إذا إلخ: د دې حاصل دا دی چي په دې مسئله کي د مقاصې جائز کېدل، د اول عقد فسخ کېدل، او دا عقد د مقروضه درهمو وطرف ته منسوب کېدل، دا ټوله شيان په هغه صورت کي جائز او صحيح دي کله چي قرض له دې عقد (بيع صَرف) څخه مخکي او مقدم وي، لېکن که چيري عقد مخکي وسي او قرض وروسته وسي، مثلاً مشتري د لسو درهمو په عوض کي يو دينار رانيسي او پر هغه قبضه وکړي، او مشتري بائع ته لس درهمه نه ورکړي، بلکي تر دې وروسته هغه پر بائع د لسو درهمو په عوض کي کپړه خرڅه کړي او دواړه مقاصه وکړي، نو په دې صورت کي د مقاصې د صحت په هکله دوه روايتونه دي: ①... د يوه روايت مطابق مقاصه جائز ده، دا د ابو حفص سليمان روايت دی، علامه فخر الاسلام همدا روايت اختيار کړی دی، او همدې ته صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله اصح (زيات صحيح) ويلي دي. ②... د دويم روايت مطابق مقاصه جائز نه ده، دا روايت د ابو حفص دی، شمس الائمه او قاضي خان او داسي نورو همدا روايت اختيار کړی دی.

صاحب د هدايې چي کوم روايت اختيار کړی دی او اصح يې ګرځولی دی؛ د هغه دليل دا دی چي دا مقاصه د اول عقد فسخ لره متضمنه ده، او د هغه سره، سره دې خبري لره هم متضمنه ده چي عَقد د داسي قرض وطرف ته منسوب دی کوم چي د عقد بدلېدلو په وخت کي موجود دی، يعني قرض که څه هم پر دې عقد بيع مخکي نه دی لېکن هغه پر مقاصه مخکي دی، او د مقاصې د جواز لپاره همدومره کافي دي، نو ځکه په دې صورت کي مقاصه صحيح او جائز ده.

## درست درهم د مات (ميده) درهم په عوض کي خرڅول (حکم)

| |
|---|
| قَالَ: وَيَجُوزُ بَيْعُ دِرْهَمٍ صَحِيْحٍ وَدِرْهَمَيْ غَلَّةٍ بِدِرْهَمَيْنِ صَحِيْحَيْنِ وَدِرْهَمٍ غَلَّةٍ فرمايي: د يوه صحيح [درست] درهم او د دوه ماتو [ميده] درهمو بيع د دوه صحيح درهمو او يوه مات درهم په عوض کي جائز ده وَالْغَلَّةُ مَا يَرُدُّهُ بَيْتُ الْمَالِ وَيَأْخُذُهُ التُّجَّارُ او غله [مات درهم] هغه درهم دی کوم چي يې بيتُ |

المال واپس کوي او تاجران يې اخلي وَوَجْهُهُ تَحَقُّقُ الْمُسَاوَاةِ فِي الْوَزْنِ او د دې [بيع د جواز] وجه په وزن کې د برابرۍ ثابتېدل دي وَمَا عُرِفَ مِنْ سُقُوطِ اعْتِبَارِ الْجَوْدَةِ او د جودت د اعتبار ساقطېدل خو مخکې معلوم سوي دي.

**اللغات:** ﴿غلتين﴾ تثنيه د "غَلَّةٌ" ده: په عربي ژبه کې د دې لفظ درې (۳) معناوي دي: ① د ځمکې غله (پيداوار، فصل، محصولات، يعني کوم څه چې له ځمکې څخه حاصلېږي لکه غنم، اوربشې، مېوه او داسې نور)، ② اُجرت، کرايه، مزدوري، ③ ديوه درهم ماتې پيسې (ميده پيسې) لکه اټانې، پاولې. يعني ديوه درهم څو حصې کوم چې په وزن او قيمت کې د درهم په برابر وي (لکه څه زمانه مخکې چې زموږ په علاقو کې څلور پاوليه، يا دوې اټانې، ديوې روپۍ په برابر وه). دلته يې همدا دريمه معنىٰ ده. درهم صحيح: يعني درست درهم کوم چې مات (حصه، حصه) نه وي (لکه په پښتو کې چې ويل کېږي درست پنځې، يعني پوره پنځې کوم چې روپۍ، روپۍ نه وي). ﴿جودة﴾ ښه والی، کَرَه والی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک د دوه درست (پوره) درهمو او يوه مات (ميده) درهم په عوض کې دوه مات (ميده) درهمه او يو درست درهم خرڅ کړي، نو دا بيع جائز ده؛ ځکه چې د وزن او قيمت په اعتبار دواړه سره برابر دي، او د "مَثَلًا بِمَثَلٍ" والا شرط موجود دی، او څرنګه چې د بيع د جائز کېدلو لپاره همدا برابر والی شرط دی، نو ځکه دا بيع جائز ده. او پاته سواه دا خبره چې درست (پوره) درهم د جودت او ښه والي په اعتبار له مات (ميده) درهم څخه غوره دی، نو د دې جواب څو ځله مخکې تېر سوی دی چې په نقودو کې د جودت او ردائت (ښه والي او بدوالي) اعتبار ساقط کړی سوی دی، او دليل دا حديث دی: "جَيِّدُهَا وَرَدِيئُهَا سَوَاءٌ". (او دا داسې ده لکه څوک چې يوه درسته روپۍ د دوو اټانيو په عوض کې يا د څلورو پاليو په عوض کې خرڅ کړي، نو دا جائز دي).

**والغلة ما يرده إلخ:** صاحب د هدايې فرمايي چې په متن کې له "غَلَّة" څخه مراد هغه درهم دی کوم چې يې تاجران او دوکانداران قبلوي مګر بيتُ المال يې نه قبلوي، يعني مات (ميده) درهم (په بله وينا حصه، حصه درهم). او له دې څخه ناچله (کوټه) درهم مراد نه دی، بيتُ المال هغه ځکه نه قبلوي چې د مات (ميده) درهمونو شمارل او حفاظت ډېر په تکليف سره کېږي، زموږ په هيوادو کې هم بانکونه ماتې (ميده) پيسې نه قبلوي (يعني د اټانۍ والا پيسې نه قبلوي) بلکې په غټ او معياري بانکو کې خو کوچنې نوټونه هم نه قبلوي، نو د بانکونو نه قبلول په دې وجه نه وي چې ماتې پيسې (ميده پيسې) کوټه دي بلکې په دې وجه يې نه قبلوي چې د ماتو پيسو شمارل ډېر وخت او تکليف غواړي.

## په دراهمو او دنانيرو کي اعتبار غالب لره دی

قَالَ: وَإِذَا كَانَ الْغَالِبُ عَلَى الدَّرَاهِمِ الْفِضَّةَ فرمايي: او کله چي پر دراهمو سپين زر غالب وي فَهِيَ فِضَّةٌ نو هغه سپين زر دي [يعني هغه دراهم د خالص سپينو زرو په حکم کي دي] وَإِذَا كَانَ الْغَالِبُ عَلَى الدَّنَانِيرِ الذَّهَبَ او کله چي په دنانيرو کي سره زر غالب وي فَهِيَ ذَهَبٌ نو هغه سره زر دي [يعني د خالص سره زرو په حکم کي دي] وَيُعْتَبَرُ فِيهِمَا مِنْ تَحْرِيمِ التَّفَاضُلِ مَا يُعْتَبَرُ فِي الْجِيَادِ او په هغوی کي د زياتوب حرام کېدل هماغسي معتبر دي لکه څرنګه چي په کره [خالص] دراهمو او دنانيرو کي معتبر دي حَتَّى لَا يَجُوزُ بَيْعُ الْخَالِصَةِ بِهَا وَلَا بَيْعُ بَعْضِهَا بِبَعْضٍ إِلَّا مُتَسَاوِيًا فِي الْوَزْنِ تر دې چي خالص دراهم يا دنانير د داسي مغشوشه [کوټه] دراهمو په عوض کي خرڅول يا هغوی بعضي د بعضو په عوض کي خرڅول جائز نه دي، مګر دا چي په وزن کي برابر وي وَكَذَا لَا يَجُوزُ الِاسْتِقْرَاضُ بِهَا إِلَّا وَزْنًا او همدارنګه هغوی [مغشوشه دراهم يا دنانير] د قرض په توګه اخيستل جائز نه دي مګر په وزن سره لِأَنَّ النُّقُودَ لَا تَخْلُو عَنْ قَلِيلِ غِشٍّ عَادَةً ځکه چي نقود عموماً د لږ کوټ څخه خالي نه وي لِأَنَّهَا لَا تَنْطَبِعُ إِلَّا مَعَ الْغِشِّ ځکه چي نقود [دراهم او دنانير] له ځه کوټ څخه بغير نه تيارېږي وَقَدْ يَكُونُ الْغِشُّ خِلْقِيًّا كَمَا فِي الرَّدِيءِ مِنْهُ او ځيني وخت کوټ پيدايشي وي، لکه څرنګه چي په ردي سره زرو او سپينو زرو کي وي فَيُلْحَقُ الْقَلِيلُ بِالرَّدَاءَةِ نو ځکه لږ مقدار به د ردي سره يو ځای کول کيږي وَالْجَيِّدُ وَالرَّدِيءُ سَوَاءٌ او [تاسو ته معلومه ده چي په نقودو کي] جيد او ردي دواړه سره برابر دي.

**اللغات**: ﴿تحريم﴾ د تفعيل مصدر دی: حرام کول (حرامول)، ﴿تفاضل﴾ د تفاعل مصدر دی: زياتوب کول، کمي وزياتوب (کمي بيشي)، ﴿غش﴾ کوټ، (ملاوټ، اميزش، د بل فلز [عنصر] ګډون، لکه ژړ، ګيلټ، اوسپنه او داسي نور)، ﴿لا تنطبع﴾ د انفعال د باب نفي صيغه ده: سکه په قالب (غالب) کي تيارېدل، جوړېدل، ﴿رداءة﴾ بدوالی، خرابوالی (کمزوري والی).

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که دراهم له خالص سپينو زرو څخه جوړ نه وي بلکي په هغوی ځه بل شی (کوټ) هم ګډ وي لېکن سپين زر پې غالب وي نو هغوی د خالص سپينو زرو په حکم کي دی. همدارنګه که په دنانيرو کي سره زر غالب وي، نو هغوی هم د خالص سرو زرو په حکم کي دي، او څرنګه چي د خالص سره زرو او سپينو زرو په عوض کي د يو شي د خرڅولو په صورت کي د

شرط "مَثَلًا بِمَثَلٍ او يَدًا بِيَدٍ" رعايت کول ضروري دي، همداسي په هغوی کې هم دا شرط ضروري دي او په تفاضل (کمې وزیاتوب) سره د هغوی بیع حرام او ناجائز ده. یعني که څوک د داسي مغشوشه دراهمو یا دنانیرو په عوض کي خالص دراهم یا دنانیر خرڅول غواړي، یا مثلاً دا مغشوشه دراهم بعضي د بعضو په عوض کي خرڅوي، نو په هغوی کي تفاضل جائز نه دی؛ ځکه کله چي هغوی د خالص نقودود په حکم کي دی نو ښکاره خبره ده چي کوم حکم د خالص نقودو (خالص دراهم او دنانیرو) دی، هغه حکم به د هغوی هم وي، او د خپل همجنس سره د خالص نقودو د بیع په صورت کي تفاضل حرام او ناجائز دی، نو ځکه د داسي مغشوشه دراهمو سره د خالص نقودو د بیع په صورت کي به هم تفاضل حرام وي، او څرنګه چي خالص نقود فقط د وزن په ذریعه په قرض اخیستل جائز دي، همداسي به هغوی هم فقط د وزن په ذریعه په قرض اخیستل جائز وي، او د عدد یا کَیل په ذریعه به جائز نه وي؛

لأن النقود لاتخلوإلخ: دا ټول مغشوشه دراهم او دنانیرو ته ځکه د خالص دراهم او دنانیرو حکم ورکول سوی دی چي په نقود (یعني په دراهم او دنانیرو) کي عموماً څه نا څه کوټ ګډ وي (یعني خاما د بل فلز څه ګډون "امیزش" پکښي وي)، ځکه چي له کوټ (او امیزش) څخه بغیر نقود جوړېدای نه سي (یعني له سره زر او سپینو زرو څخه هغه وخت درهم او دینار جوړېدای سي کله چي څه نا څه بل فلز [مثلاً ژړ یا ګیلټ] په ګډ کړی سي)، او ځیني وخت داسي وي چي په سره زرو او سپینو زرو کي په پیدایښي توګه کوټ موجود وي او هغوی ته "ردي" ویل کیږي. او څرنګه چي په نقودو کي جید او ردي دواړه برابر دي (کمامر في الحدیث: جیدها و ردیئها سواء)، نو ځکه هغه نقود چي په هغوی کي څه کوټ وي لیکن سپین زر او سره زر پې غالب وي نو هغوی به د "ردي" یعني د هغه دراهمو سره لاحق کیږي کوم چي په پیدایښي توګه کوټ پکښي وي. او تاسو ته معلومه ده چي په نقودو کي د ردائت او جودت اعتبار ساقط دی، نو څرنګه چي د خپل همجنس سره د خالص نقودو د بیع په صورت کي تفاضل حرام دی، همداسي به د ردي دراهمو سره د خالص نقودو د بیع په صورت کي هم تفاضل حرام او ناجائز وي. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په دې جمله "ويعتبر فيهما من تحريم التفاضل ما يعتبر في الجياد" سره همدا خبره بیان کړې ده. (احسن الهدایه)

## پر سره زرو یا سپینو زرو د کوټ غالبېدلو حکم

وَإِنْ كَانَ الْغَالِبُ عَلَيْهِمَا الْغِشَّ او که چیري پر سره زرو او سپینو زرو کوټ غالب وي فَلَيْسَا فِي حُكْمِ الدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ اعْتِبَارًا لِلْغَالِبِ نو د غالب په اعتبار کولو سره هغوی د [خالص] دراهمو او دنانیرو په حکم کې نه دي فَإِنِ اشْتَرَى بِهَا فِضَّةً خَالِصَةً نو که څوک د هغوی په عوض کې خالص سپین زر رانیسي فَهُوَ عَلَى الْوُجُوهِ الَّتِي ذَكَرْنَاهَا فِي حِلْيَةِ السَّيْفِ نو دا [بیع] پر هماغه صورتونو مشتمل ده کوم چې موږ د توري د زېور په هکله بیان کړل.

**اللغات**: ﴿حلية﴾ زېور، له سپینو زرو او سرو زرو څخه جوړ کړی سوی د ښکلا (سینګار) شی.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دي که په دراهم یا دنانیرو کې کوټ (غش) غالب وي او سپین زر یا سره زر مغلوب وي، نو اوس دا مغشوشه (مغلوبه) دراهم او دنانیر د خالص دراهمو او دنانیرو په حکم نه دي؛ ځکه اعتبار غالب لره دی. او څرنګه چې دلته کوټ غالب دي، نو ځکه هغه لره به اعتبار وي، او دا مغشوشه (مغلوبه) دراهم او دنانیر به خالص سپین زر او سره زر نه شمارل کېږي، بلکې دا به یو داسې سامان شمارل کېږي چې په هغه کې د سره زرو یا سپینو زرو امیزش (ملاوټ) وي (یعني داسې سامان چې په هغه لږ سره زر یا سپین زر ګډ کړل سوي وي)، نو که څوک د داسې مغلوبه مغشوشه دراهمو په عوض کې خالص سپین زر رانیسي، نو په دې بیع کې هغه تفصیلات او صورتونه دي کوم چې د توري د زېور (حلیه) په مسئله کې بیان سول: یعني که چیري له دې مغشوشه (مغلوبه) دراهمو څخه هغه سپین زر "کوم چې په دې دراهمو ګډ دي" بغیر له ضرره نه سي جلا کېدای، نو دې ته به کتل کېږي چې خالص سپین زر د مغشوشه (مغلوبه) دراهمو د سپینو زرو سره برابر دي او که له هغوی څخه کم دي او که زیات دي. یا یې مقدار معلوم نه دی. د برابر والي او کموالي په صورت کې همدارنګه د مقدار نه معلوم والي په صورت کې بیع باطله ده. لېکن که خالص سپین زر د مغلوبه دراهمو له سپینو زرو څخه زیات وي نو په دې صورت کې بیع جائز ده (ځکه د خالص سپینو زرو څه حصه به د مغشوشه (مغلوبه) دراهمو د سپینو زرو په عوض کې راسي. او کوم خالص سپین زر چې زائد پاته سي هغه به د مغشوشه دراهمو د کوټ او فلز په عوض کې راسي).

## مغشوشه دراهم د خپل جنس په عوض کې تفاضلاً خرڅول (حکم او تفصیل)

فَإِنْ بِيعَتْ بِجِنْسِهَا مُتَفَاضِلًا او که مغشوشه دراهم د خپل جنس په عوض کې په تفاضل [کمي بیشي] سره خرڅ کړل سي جَازَ نو جائز دي صَرْفًا لِلْجِنْسِ إِلَى خِلَافِ الْجِنْسِ [په دې توګه چې] جنس به د [خپل] جنس د خلاف وطرف ته ګرځول کېږي فَهِيَ فِي حُكْمِ شَيْئَيْنِ: فِضَّةٍ وَصُفْرٍ نو دا مغشوشه

دراهم د دوو [۲] شيانو په حکم کي دي: سپين زر او ژړ وَلٰكِنَّهٗ صَرْفٌ حَتّٰى يُشْتَرَطَ الْقَبْضُ فِي الْمَجْلِسِ لېکن دا بيع صَرف ده، تر دې چي په مجلس کي قبضه کول شرط دي لِوُجُوْدِ الْفِضَّةِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ ځکه چي له دواړو طرفونو څخه سپين زر موجود دي فَإِذَا شُرِطَ الْقَبْضُ فِي الْفِضَّةِ لهذا کله چي په سپينو زرو کي قبضه شرط ده يُشْتَرَطُ فِي الصُّفْرِ نو په ژړو کي به هم شرط وي لِأَنَّهٗ لَا يَتَمَيَّزُ عَنْهُ إِلَّا بِضَرَرٍ ځکه چي هغه له سپينو زرو څخه بغير له ضرره نه سي جلا کېدای قَالَ: ﷺ: وَمَشَايِخُنَا رَحِمَهُمُ اللهُ لَمْ يُفْتُوْا بِجَوَازِ ذٰلِكَ فِي الْعَدَالِيْ وَالْغَطَارِفَةِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي زموږ مشايخو په عدالي او غطريفيه دراهمو کي د دې د جواز فتوایٰ نه ده ورکړې لِأَنَّهَا أَعَزُّ الْأَمْوَالِ فِي دِيَارِنَا ځکه چي عدالي او غطارفه زموږ په علاقو کي خوښ ترين [قيمتي] مالونه دي فَلَوْ أُبِيْحَ التَّفَاضُلُ فِيْهِ نو که په هغوی کي زياتوب روا کړی سي يَنْفَتِحُ بَابُ الرِّبٰوا نو د ربوا دروازه به خلاصه سي.

**اللغات:** ﴿متفاضلا﴾ د تفاعل د باب فاعل دی: يو له بل څخه زياتېدل و کمېدل. ﴿عَدَالِيْ﴾ د يو باچا نوم وو چي د هغه وطرف ته به خلکو مغشوشه (کوټه) دراهم منسوب کول. ﴿غطارفة﴾ يعني غطريفيه دراهم، غطريف بن عطاء کندي د هارونُ رشيد په زمانه کي د خراسان امير وو، د هغه وطرف ته به دا دراهم منسوب کېدل. په دې دواړو درهمونو کي به کوټ زيات وه او سپين زر به يې کم وه. (أثمار الهدايه)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک داسي مغشوشه دراهم چي په هغوی کي کوټ (غش) غالب وي د خپل همجنس دراهمو په عوض کي په کمي وزياتوب سره خرڅ کړي. نو جائز دي؛ او د جواز وجه يې دا ده چي داسي مغشوشه (مغلوبه) دراهم د دوو (۲) شيانو په حکم کي دي: ① سپين زر. ② ژړ (يا ګيلټ کوم چي پر سپينو زرو غالب دي). نو په دې دواړو کي به هر يو د خلاف الجنس وطرف ته ګرځول کيږي (منسوب کيږي). يعني داحدُ العوضَين ژړ (کوټ) به د بل عوض د سپينو زرو په مقابله کي او داحدُ العوضَين سپين زر به د بل عوض د ژړو په مقابله کي ګرځول کيږي (يعني د يوه طرف د دراهمو ژړ (کوټ) به د بل طرف د دراهمو د سپينو زرو په مقابله کي او سپين زر به د بل طرف د ژړ (کوټ) په مقابله کي ګرځول ګرځول کيږي). لهذا کله چي داسي ده نو د اختلاف الجنس په وجه به په دواړو عوضونو کي تفاضل (کمي بيشي) جائز وي.

**ولٰکنه صرف إلخ:** دا دیو سوال جواب دی. سوال دا دی چي کله له سپین زر او ژړ (کُوټ) څخه هریو د خلاف الجنس وطرف ته وګرځول سي نو دا بیع به "بیع صَرف" پاتـه نه سي، او کله چي دا "بیع صَرف" نه ده، نو پکار دا ده چي د هغې پر عوضَینو په مجلس کي دننه قبضه کول شرط نه وي؛ ځکه چي له "بیع صَرف" څخه بغیر د بلي بیع پر دواړو عوضونو په مجلس کي دننه قبضه کول شرط نه دي.

د دې جواب دا دی چي څرنګه دلته په دواړو طرفونو کي سپین زر موجود دي، نو ځکه پکار دا وه چي دا بیع دي "بیع صَرف" وای، خو څرنګه چي د تفاضل په وجه "بیع صَرف" ناجائز کیږي، نو ځکه د دې بیع د صحیح کولو په خاطر ضرورتاً له احدُ العوضَین څخه هریو د خلاف الجنس وطرف ته ګرځول سوی دی، او کوم شی چي ضرورتاً ثابت وي، هغه فقط د ضرورت په اندازه ثابتیږي او د بل شي وطرف ته نه متعدي کیږي؛ نو ځکه به د تفاضل د جائز کولو تر حده پوري خو دا بیع "بیع صَرف" نه وي، لیکن له هغه څخه بغیر د قبضې او داسي نورو په شرط کېدلو کي به دا "بیع صَرف" پاته وي، او کله چي د "بیع صَرف" کېدلو په وجه دلته په سپینو زرو کي قبضه شرط ده، نو په ژړ (کُوټ) کي به هم شرط وي؛ ځکه چي بغیر له ضرره سپین زر له ژړو څخه نه سي جلا کېدای.

**قال ﷺ إلخ:** صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي د سمرقند او بخارا علماؤ په عدالي او غطارفه دراهمو کي د تفاضل جائز کېدلو فتویٰ نه ده ورکړې، سره د دې چي په هغه دراهمو کي کوټ یعني ژړ او داسي نور غالب وي او سپین زر مغلوب وي؛ د دې وجه دا ده چي عدالي او غطارفه په پورتني علاقو یعني په سمرقند، بخارو او داسي نورو علاقو کي قیمتي او ګران مال شمارل کیږي، نو که چیري په هغوی کي تفاضل مباح (روا) وګرځول سي نو د ربوا دروازه به خلاصه سي، او خلګ به په کراره، کراره پر هغوی په قیاس کولو سره په سره زرو او سپینوزرو کي هم ربوا جائز وګرځوي، نو د دې لپاره چي د ربوا دروازه بنده سي په عدالي او غطارفه کي هم د تفاضل د عدمِ جواز فتویٰ ورکول سوې ده که څه هم په دغه دوو سکو کي کوټ غالب دي.

## د کوټه (مغشوشه) سکو په بیع کي د عُرف او رواج اثر

| |
|---|
| ثُمَّ إِنْ كَانَتْ تَرُوْجُ بِالْوَزْنِ بیا که د دې مغشوشه دراهمو [د خرڅولو او رانیولو] رواج په وزن سره وي فَالتَّبَايُعُ وَالِاسْتِقْرَاضُ فِيْهَا بِالْوَزْنِ نو په هغوی کي بیع کول او په قرض اخیستل به په وزن سره کیږي وَإِنْ كَانَتْ تَرُوْجُ بِالْعَدِّ او که د هغوی رواج په شمېر سره وي فَبِالْعَدِّ نو په شمېر سره به کیږي وَإِنْ كَانَتْ تَرُوْجُ بِهِمَا او که په دواړو سره د هغوی رواج وي فَبِكُلٍّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو په دواړو کي به په هر |

يوه سره كيږي لِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ هُوَ الْمُعْتَادُ فِيهِمَا إِذَا لَمْ يَكُنْ فِيهِمَا نَصٌّ ځکه چې په دې دواړو کې د خلكو عادت معتبر دی، کله چې د دوی په هکله هيڅ نص نه وي ثُمَّ هِيَ مَا دَامَتْ تَرُوْجُ بيا چې تر کومه وخته داسې مغشوشه دراهم رواج وي تَكُوْنُ أَثْمَانًا لَا تَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِيْنِ نو تر هغه وخته پورې به ثمن وي [او] په مُتعين کولو سره به نه مُتعين کيږي وَإِذَا كَانَتْ لَا تَرُوْجُ او کله چې هغوی رواج نه وي فَهِيَ سِلْعَةٌ تَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِيْنِ نو هغوی به سامان وي [او] په مُتعين کولو سره به مُتعين کيږي وَإِذَا كَانَتْ يَتَقَبَّلُهَا الْبَعْضُ دُوْنَ الْبَعْضِ او کله چې مغشوشه دراهم داسې وي چې ځينې خلک هغوی قبلوي او ځينې يې نه قبلوي فَهِيَ كَالزُّيُوْفِ نو هغوی د کوټه دراهمو په شان دي لَا يَتَعَلَّقُ الْعَقْدُ بِعَيْنِهَا بَلْ بِجِنْسِهَا زُيُوْفًا [او] د هغوی د ذات سره عقد نه متعلق کيږي بلکې د کوټه [مغشوشه] دراهمو د جنس سره متعلق کيږي إِنْ كَانَ الْبَائِعُ يَعْلَمُ بِحَالِهَا په دې شرط چې بائع د هغوی په حالت خبر وي لِتَحَقُّقِ الرِّضَاءِ مِنْهُ ځکه چې [په دې صورت کې] د هغه له طرفه راضي کېدل ثابت سو وَبِجِنْسِهَا مِنَ الْجِيَادِ او [يا] عقد د کره دراهمو د جنس سره متعلق کيږي إِنْ كَانَ لَا يَعْلَمُ په دې شرط چې بائع [د هغوی په حالت] خبر نه وي لِعَدَمِ الرِّضَا مِنْهُ ځکه چې [په دې صورت کې] د هغه له طرفه [په کوټه دراهمو] راضي کېدل موجود نه سو.

**اللغات**: ﴿تروج﴾ د نصر د باب مضارع ده: رواج کېدل، رائج کېدل. ﴿تبايع﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: خرڅول او رانيول، بيع کول، معامله کول. ﴿عدّ﴾ د نصر مصدر دی: شمارل، شمېرل. ﴿معتاد﴾ د افتعال د باب مفعول دی: د عادت مطابق، معمول. ﴿سلعة﴾ سامان. ﴿زيوف﴾ کوټه سکې.

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې هغه مغشوشه دراهم او دنانير چې په هغوی کې ژړ (کوټ) غالب وي او سپين زر يې مغلوب وي، که چيرې د هغوی رواج په وزن سره وي، نو د هغوی خرڅول، رانيول (تبايع) او په قرض اخيستل او ورکول به د وزن په حساب سره کيږي. او که په خلكو کې د هغوی رواج په شمېر (شمار) سره وي، نو د هغوی خرڅول، رانيول او په قرض اخيستل به په شمېر سره کيږي. او که د هغوی رواج په وزن او شمېر دواړو سره وي، نو د هغوی په خرڅولو، رانيولو او په قرض اخيستلو کې به د وزن او شمېر دواړو اعتبار کيږي، يعنې په دې صورت کې په وزن سره هم د هغوی معامله کېدای سي او په شمېر سره هم کېدای سي؛ دليل دا دی چې په داسې

مغشوشه دراهم او دنانيرو کې فقط د خلګو عادت معتبر دی؛ او په هغوی کې د خلګو عادت ځکه معتبر دی چې د داسې مغشوشه دراهم او دنانيرو د موزوني کېدلو يا معدودې کېدلو په هکله هيڅ نص نه دی وارد سوی، لهذا کله چې د هغوی په هکله د نص نه واردېدلو په وجه د خلګو عادت معتبر دی، نو ځکه د خلګو عادت چې څرنګه وي د هغه اعتبار به کيږي.

ثم هي ما دامت إلخ: فرمايي چې داسې مغشوشه دراهم او دنانير چې تر څو رائج وي، يعني تر کومه وخته چې د حکومت له طرفه د هغوی رواج او چلاو عام وي، تر هغه وخته په شريعت کې هم هغوی ثمن شمارل کيږي، او تاسو ته معلومه ده چې ثمن په مُتعيّن کولو سره نه مُتعيّن کيږي، نو ځکه هغوی به هم په مُتعيّن کولو سره نه مُتعيّن کيږي، نو (مثلاً) که تر عقد کولو وروسته دا مغشوشه دراهم يا دنانير بائع ته له ورسپارلو څخه مخکې د مشتري په قبضه کې هلاک سي، نو عقد نه باطليږي، بلکې پر مشتري د هغوی په مثل سره نور دراهم واجبيږي، ځکه چې د ثمن په هلاکېدلو سره عقد نه باطليږي.

او کله چې د حکومت له طرفه د دې مغشوشه دراهمو رواج ختم سي، نو په دې صورت کې هغوی ثمن نه شمارل کيږي، بلکې هغوی سامان شمارل کيږي، او څرنګه چې سامان په مُتعيّن کولو سره مُتعيّن کيږي، نو ځکه هغوی به هم په مُتعيّن کولو سره مُتعيّن کيږي، نو (مثلاً) که يو څوک داسې مغشوشه دراهم يا دنانير خرڅ کړي او بيا له ورسپارلو څخه مخکې هغوی هلاک سي، نو عقد باطليږي، لکه څرنګه چې له ورسپارلو څخه مخکې د مبيع په هلاکېدلو سره عقد باطليږي.

وإذا كانت يتقبلّها إلخ: او که چيرې دغه مغشوشه دراهم او دنانير ځيني خلګ قبلوي او ځيني خلګ يې نه قبلوي، يعني نه په پوره توګه ناچله او کاسده وي، نه په پوره توګه رائج وي، نو په داسې صورت کې د هغوی حکم د زيوف يعني د کوټه دراهمو په څېر دی. يعني که بائع ته د مغشوشه دراهم او دنانيرو دا حالت معلوم چې هغوی ځيني خلګ قبلوي او ځيني يې نه قبلوي، نو عقد د هغوی د ذات سره نه متعلق کيږي، بلکې د هغوی جنس يعني فقط کوټه دراهم او کوټه دنانير واجبيږي او بائع به فقط کوټه (زيوف) اخلي؛ ځکه چې د بائع له طرفه پر کوټه (زيوف) رضا ثابته سوه. او که چيرې بائع د مغشوشه دراهم او دنانيرو په حالت خبر نه وي، يعني هغه ته معلومه نه وي چې ځيني خلګ هغوی قبلوي او ځيني يې نه قبلوي، نو په داسې صورت کې عقد د جيد او کَرَه دراهمو سره متعلق کيږي او پر مشتري د کَرَه دراهمو اداء واجبيږي، ځکه په دې صورت کې د بائع له طرفه پر کوټه (زيوف) دراهمو رضا ثابته نه سوه.

## له بيع څخه وروسته د دراهمو د منسوخ کېدلو صورت

وَإِذَا اشْتَرَىٰ بِهَا سِلْعَةً او که څوک د داسې مغشوشه دراهمو په عوض کې يو سامان رانيسي فَكَسَدَتْ وَتَرَكَ النَّاسُ الْمُعَامَلَةَ بِهَا بيا د هغوی رواج [او چلاو] ختم سي او خلک په هغوی سره معامله کول پرېږدي بَطَلَ الْبَيْعُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز بيع باطلېږي وَقَالَ: أَبُو يُوسُفَ: عَلَيْهِ قِيمَتُهَا يَوْمَ الْبَيْعِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې پر مشتري د بيع والا د ورځې د هغه مغشوشه دراهمو قيمت واجبېږي وَقَالَ: مُحَمَّدٌ ۞ : قِيمَتُهَا آخِرَ مَا تَعَامَلَ النَّاسُ بِهَا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په کومه آخري ورځ چې خلکو په هغوی [مغشوشه دراهمو] سره معامله کړې دي د هغه ورځې قيمت [واجبېږي] لَهُمَا: أَنَّ الْعَقْدَ قَدْ صَحَّ إِلَّا أَنَّهُ تَعَذَّرَ التَّسْلِيمُ بِالْكَسَادِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې عقد خو صحيح سو لېکن د رواج ختمېدلو په وجه د ثمن اداء کول ناممکن سو وَأَنَّهُ لَا يُوجِبُ الْفَسَادَ او دا فساد نه واجبوي كَمَا إِذَا اشْتَرَىٰ بِالرُّطَبِ فَانْقَطَعَ لکه څوک چې د تازه [خيشته] خرما په عوض کې يو شی رانيسي بيا تازه خرما [له بازار څخه] منقطع سي وَإِذَا بَقِيَ الْعَقْدُ او کله چې عقد باقي پاته و وَجَبَتِ الْقِيمَةُ نو [پر مشتري] به قيمت واجب وي لَكِنْ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَقْتَ الْبَيْعِ لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به د بيع د ورځې [قيمت واجب وي] لِأَنَّهُ مَضْمُونٌ بِهِ ځکه چې د همدې بيع په وجه د ثمن ضمان واجب سوی دی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يَوْمَ الِانْقِطَاعِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به د انقطاع [منقطع کېدلو] د ورځې [قيمت واجب وي] لِأَنَّهُ أَوَانُ الِانْتِقَالِ إِلَى الْقِيمَةِ ځکه چې همدا د قيمت وطرف ته د منتقل کېدلو وخت دی وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الثَّمَنَ يَهْلِكُ بِالْكَسَادِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د رواج په ختمېدلو سره ثمن هلاکېږي لِأَنَّ الثَّمَنِيَّةَ بِالِاصْطِلَاحِ ځکه چې ثمن والی [د خلکو] په اتفاق سره وو وَمَا بَقِيَ جالب دا چې [اوس] دا اتفاق پاته نه سو فَيَبْقَىٰ بَيْعًا بِلَا ثَمَنٍ نو بيع به بلا ثمنه پاته سي فَيَبْطُلُ نو

---

۞ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما ذكر فى رد المحتار: و أوجب محمد قيمتها يوم الكساد، وعليه الفتوى.....إلخ (ج:۴، ص:۲۷۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۸۶]

ځکه به باطلیږي ﴿وَإِذَا بَطَلَ الْبَيْعُ﴾ او کله چي بیع باطله سوه ﴿يَجِبُ رَدُّ الْمَبِيعِ إِنْ كَانَ قَائِمًا﴾ نو [پر مشتري] د مبیع واپس کول واجب دي، که چیري مبیع موجوده وي ﴿وَقِيمَتُهُ إِنْ كَانَ هَالِكًا﴾ او د مبیع قیمت واجب دی، که چیري هغه هلاک سوې وي ﴿كَمَا فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ﴾ لکه څرنګه چي په بیع فاسد کي [داسي کیږي].

**اللغات**: ﴿کسدت﴾ د نصر ماضي ده: رواج ختمېدل، چلاو بندېدل، (ناچله کېدل). ﴿تعذّر﴾ د تفعّل ماضي ده، د دغه باب دوې معناوي دي: ناممکن کېدل، مشکل کېدل. ﴿رطب﴾ تازه او لنده خرما (خیشته خرما).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو څوک د داسي مغشوشه دراهمو په عوض کي یو سامان رانیسي چي د هغوی کوټ غالب وي، بیا د هغه دراهمو رواج او چلاو ختم سي او خلک په هغه سره معامله کول پرېږدي، نو دا مام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا بیع باطلیږي، لېکن صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي بیع نه باطلیږي، بلکي پر مشتري د هغوی قیمت واجبیږي، همدا د امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمَا الله قول دی. پاته سوه دا خبره چي د کومي ورځي قیمت واجبیږي، نو په دې باره کي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله مسلک هم مختلف دی، امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي چي په کومه ورځ بیع واقع سوې وي (یومُ البیع) په هغه ورځ چي د دې مغشوشه دراهمو کوم قیمت وي پر مشتري هغه واجبیږي، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي چي په آخري ورځ چي کله خلکو هغوی پرې ایښي وي (یعني په کومه ورځ چي د مغشوشه دراهمو رواج ختم سوی وي (یومُ الانقطاع والکساد) په هغه ورځ چي د دې مغشوشه دراهمو کوم قیمت وي، هغه واجبیږي.

**د صاحبینو دلیل**: دا دی چي دلته بیع صحیح ده، ځکه چي مبادلةُ المال بالمال موجوده ده، لېکن د مغشوشه دراهمو د رواج ختمېدلو په وجه د ثمن ورسپارل او اداء کول ناممکن سوه، او په دې سره بیع نه فاسدیږي چي د ثمن ورسپارل ناممکن سي (یعني د ثمن اداء کولو په ناممکن والي سره بیع نه فاسدیږي).

مثلاً که څوک د تازه خرماوو په عوض کي یو شی رانیسي، بیا تر ورسپارلو مخکي تازه خرماوي له بازار څخه منقطع او ختم سي (یعني هغوی هیڅ ځای نه پیدا کیږي)، نو دا بیع بالاتفاق نه باطلیږي، بلکي پر مشتري د هغوی قیمت واجبیږي، نو همداسي به دلته هم بیع نه باطلیږي، او د کساد (رواج ختمېدلو) په وجه چي کله بیع باطله نه سوه بلکي بیع باقي ده نو ځکه پر مشتري به د هغه مغشوشه دراهمو قیمت واجبیږي. لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د بیع د ورځي (یومُ البیع) قیمت

واجبیږي؛ ځکه چي د مغشوشه دراهمو ضمان د بیع په وجه واجب سوی دی، همدا وجه ده که بیع نه وای نو پر مشتري د دې مغشوشه دراهمو ضمان نه واجبېدای، لهذا کله چي پر مشتري د همدې بیع په وجه ضمان واجب سوی دی، نو د همدې بیع د ورځ (یومُ البیع) قیمت به معتبر وي، یعني د بیع په ورځ چي د مغشوشه دراهمو کوم قیمت وي پر مشتري به هغه واجبول کیږي. لکه څرنګه چي د مغصوب شي تر هلاکېدلو وروسته پر غاصب د یوم الغصب قیمت واجبیږي؛ ځکه چي د غصب په ورځ د مغصوب شي ضمان د غاصب پر ذمه واجب سوی دی. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز چي په کومه ورځ د مغشوشه دراهمو رواج ختم سوی وي (یومُ الانقطاع) د هغه ورځي قیمت واجبیږي؛ ځکه چي مغشوشه دراهم د قیمت وطرف ته منتقل کېدل په هغه ورځ واجب سوي دي، لهذا د قیمت په سلسله کي به فقط د هغه ورځي اعتبار کیږي.

**د امام صاحب دلیل**: دا دی چي د دې مغشوشه دراهمو ثمن والي (ثمن کېدل) د خلکو په اتفاق سره وو، لېکن کله چي خلکو په هغوی سره معامله کول پرېښوول، نو د خلکو اصطلاح او اتفاق باطل سو، او کله چي د خلکو اتفاق پاته نه سو، نو بیع بلا ثمن پاته سوه، او څرنګه چي بلا ثمنه بیع باطلیږي، نو ځکه په دې صورت کي به هم بیع باطلیږي، او کله چي بیع باطله سوه نو پر مشتري به د مبیع واپس کول هم واجب وي، په دې شرط چي مبیع د هغه سره موجوده وي، او که چیري مبیع هلاک سوې وي نو د هغې قیمت به پر واجب وي، په دې شرط چي مبیع له ذواتُ القیم څخه وي، او که مبیع له ذواتُ الامثال څخه دی، نو د هغې د مثل واپس کول به پر واجب وي. لکه څرنګه چي په بیع فاسد کي هم دغه حکم دی، یعني که په بیع فاسد کي مشتري پر مبیع قبضه وکړي، نو که چیري مبیع موجوده وي، مشتري به هغه واپس کوي، او که مبیع موجوده نه وي او هغه له ذواتُ الامثال څخه وي نو د هغې مثل به واپس کوي، او که له ذواتُ القیم څخه وي نو د هغې قیمت به واپس کوي.

**فایده**: د "کساد" معنیٰ مخکي تېره سوه چي د پیسو رواج او چلاو ختمېدلو ته وایي. د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هغه وخت "کساد" ثابتیږي کله چي په ټولو ښارونو کي د پیسو رواج او چلاو ختم سي، او د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز هغه وخت "کساد" ثابتیږي، کله چي فقط د بیع په ښار کي د پیسو رواج ختم سي (یعني په کوم ښار کي چي بیع سوې وي، فقط په هغه ښار کي د پیسو د رواج او چلاو په دربلو سره د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز "کساد" ثابتیږي). (عیني)

## د فلوسو په عوض کې د بیع حکم

قَالَ: وَيَجُوزُ الْبَيْعُ بِالْفُلُوسِ او د پیسو په عوض کې بیع جائز ده لِأَنَّهَا مَالٌ مَعْلُومٌ ځکه چې هغوی معلوم مال دی فَإِنْ كَانَتْ نَافِقَةً نو که چیرې پیسې رائج [رواج] وي جَازَ الْبَيْعُ بِهَا وَإِنْ لَمْ تُعَيَّنْ نو د هغوی په عوض کې بیع جائز ده که څه هم هغوی مُتعیَن نه کړل سي لِأَنَّهَا أَثْمَانٌ بِالِاصْطِلَاحِ ځکه چې [په دې صورت کې د خلکو او عاقدینو] په اتفاق سره هغوی ثمن دي وَإِنْ كَانَتْ كَاسِدَةً او که د هغوی رواج [او چلاو] ختم سوی وي [یعني په بازار کې نه چلیږي] لَمْ يَجُزِ الْبَيْعُ بِهَا حَتَّى يُعَيِّنَهَا نو [بیا] د هغوی په عوض کې بیع جائز نه ده، تر دې چې هغه مُتعیَن کړي لِأَنَّهَا سِلَعٌ ځکه چې [اوس] هغوی سامان دي فَلَا بُدَّ مِنْ تَعْيِينِهَا نو ځکه د هغوی مُتعیَن کول ضروري دي وَإِذَا بَاعَ بِالْفُلُوسِ النَّافِقَةِ ثُمَّ كَسَدَتْ او که چیرې څوک د رائج فلوسو په عوض کې شی خرڅ کړي بیا د هغوی رواج ختم سي بَطَلَ الْبَيْعُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز بیع باطلیږي خِلَافًا لَهُمَا په خلاف د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله وَهُوَ نَظِيرُ الِاخْتِلَافِ الَّذِي بَيَّنَّاهُ او دا د هغه اختلاف مثال [او مشابه] دی کوم چې موږ [مخکې] بیان کړی.

**اللغات**: ﴿فلوس﴾ جمع د فَلْسٌ ده: پیسه، سکه. له سره زرو او سپینو زرو څخه بغیر له بل شي نه جوړه سوې سکه ته "فَلْسٌ" وایي. یعني له ژړ او ګیلټ (تانبې) څخه جوړې سوې سکو ته "فلوس" وایي (پخوا عموماً دا رواج وو چې له یوه درهم یا یوه دینار څخه د کم لپاره به د سپینو زرو یا سرو زرو سکه نه جوړېده. بلکې د هغه لپاره به د ژړو سکه یا د ګیلټو او داسې نورو سکه جوړېده چې هغه ته به فلوس (پیسه) ویل کېده. لکه زموږ په علاقو کې چې هم له یوې روپۍ څخه کم ته پیسې ویل کیږي). فلوس د خپل ذات په اعتبار سره ثمن نه دي لېکن د خلکو په اتفاق سره ثمن ګرځي (ځکه چې په پیدایشي او ذاتي توګه فقط سره زر او سپین زر ثمن دي). ﴿كاسدة﴾ د نصر د باب مؤنث فاعل دی: نا رواجه، نا چله. ﴿سِلَع﴾ (د عَین په کسره او دلام په فتحه سره) جمع د سِلْعَةٌ ده: سامان. (مصباح اللغات)

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د فلوسو په عوض کې بیع جائز ده؛ ځکه فلوس داسې مال دی کوم چې د وصف او مقدار په اعتبار سره معلومیږي (لکه څرنګه چې نقود هم معلوم او مُتعیَن مال دی). او

کوم مال چي معلوم المقدار او معلوم الوصف وي، د هغه په عوض کي بيع جائز ده، نو ځکه د فلوسو په عوض کي به بيع جائز وي.

بيا به دا فلوس يا د عقد په وخت کي رائج (رواج) وي يا به يې رواج دربدلی او ختم سوی وي، که چيري هغوی رائج وي نو په بيع کي د هغوی مُتعيّن کول ضروري نه دي، بلکي هغوی په مُتعيّن کولو سره هم نه مُتعيّن کيږي (لکه څرنګه چي په نقودو [دراهم او دنانيرو] کي مُتعيّن کول ضروري نه دي او هغوی په مُتعيّن کولو سره هم نه مُتعيّن کيږي)، مثلاً که څوک د لسو پيسو والا يو شی رانيسي نو هغه لس پيسې نه مُتعيّن کيږي (يعني خاص هغه لس پيسې نه واجبيږي) بلکي هر لس پيسې چي ورکړي نو جائز دي؛ ځکه چي د خلګو په اتفاق کولو سره فلوس ثمن وګرځېدل، او ثمن په مُتعيّن کولو سره نه مُتعيّن کيږي، نو ځکه دا فلوس به هم نه مُتعيّن کيږي.

او که چيري فلوس رائج نه وي بلکي د هغوی رواج او چلاو ختم سوی وي، نو بيا په بيع کي د هغوی مُتعيّن کول ضروري دي، يعني په دې صورت کي هغه وخت د فلوسو بيع جائز کيږي کله چي هغوی مُتعيّن کړی سوي وي، ځکه چي اوس دا فلوس د سامان په درجه کي دي، او د سامان په بيع کي سامان مُتعيّن کول ضروري دي، نو ځکه د هغوی مُتعيّن کول به هم ضروري وي.

وإذا باع بالفلوس إلخ: مسئله دا ده که څوک د رائج فلوسو په عوض کي يو شی رانيسي، بيا پر هغوی له قبضه کولو څخه مخکي د هغوی چلاو بند سي او رواج يې ختم سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا بيع باطليږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز نه باطليږي بلکي پر مشتري د هغه کاسده فلوسو قيمت واجبيږي، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د يوم البيع قيمت واجبيږي او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د يوم الانقطاع قيمت واجبيږي (يعني په کومه ورځ کي چي عاقدينو بيع کړې وي په هغه ورځ چي د فلوسو کوم قيمت وي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز هغه قيمت واجبيږي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د هغه ورځي قيمت واجبيږي په کومه ورځ چي د فلوسو رواج او چلاو ختم سوی وي)، لکه څرنګه چي په مخکنی مسئله (إذا اشترىٰ بها سلعةً...إلخ) کي د دې اختلاف پوره تفصيل ذکر سو.

## په پورتنی مسئله کي د قرض صورت

وَلَوِ اسْتَقْرَضَ فُلُوْسًا نَافِقَةً او که چيري څوک رائج فلوس په قرض واخلي فَكَسَدَتْ بيا د هغوی رواج ختم سي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ يَجِبُ عَلَيْهِ مِثْلُهَا نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر مقروض د هغوی د مثل واپس کول واجبيږي لِأَنَّهُ إِعَارَةٌ ځکه چي په قرض اخيستل اعاره ده وَمُوْجِبُهُ رَدُّ الْعَيْنِ مَعْنًى او د هغه حکم په معنوي توګه [د معنیٰ په اعتبار سره] د عَين شي واپس کول دي وَالثَّمَنِيَّةِ فَضْلٌ فِيهِ او

ثمن والي په قرض کي يو زائد [اضافي] امر دی إِذِ الْقَرْضُ لَا يَخْتَصُّ بِهِ ځکه چي قرض د ثمن سره خاص نه دی وَعِنْدَهُمَا● يَجِبُ قِيمَتُهَا او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز [پر مقروض] د هغوی قيمت واجبيږي لِأَنَّهُ لَمَّا بَطَلَ وَصْفُ الثَّمَنِيَّةِ ځکه کله چي د ثمن والي وصف باطل سو تَعَذَّرَ رَدُّهَا كَمَا قَبَضَ نو پر څرنګه فلوسو چي هغه قبضه کړې وه هغسي واپس کول ناممکن سو فَيَجِبُ رَدُّ قِيمَتِهَا نو ځکه د هغوی د قيمت واپس کول به واجب وي كَمَا إِذَا اسْتَقْرَضَ مِثْلِيًّا لکه يو څوک چي مثلي شی په قرض واخلي فَانْقَطَعَ بيا هغه شی [له بازار څخه] منقطع [او معدوم] سي لٰكِنْ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يَوْمَ الْقَبْضِ وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يَوْمَ الْكَسَادِ ليکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د قبضې د ورځي قيمت [واجبيږي] او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د رواج ختمېدلو د ورځي قيمت [واجبيږي] عَلَىٰ مَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ لکه [څه] مخکي چي تېر سو وَأَصْلُ الْاِخْتِلَافِ فِيمَنْ غَصَبَ مِثْلِيًّا او اصل اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي يو چا مثلي شی غصب کړی وي فَانْقَطَعَ بيا هغه منقطع سي وَقَوْلُ مُحَمَّدٍ أَنْظَرُ لِلْجَانِبَيْنِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په قول کي د دواړو طرفونو رعايت دی [يعني دواړو طرفونو ته ګټل سوي دي او د دواړو رعايت سوی دی] وَقَوْلُ أَبِي يُوسُفَ أَيْسَرُ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په قول کي آساني زياته ده.

**اللغات:** ﴿استقرض﴾ د استفعال د باب ماضي ده: په قرض اخيستل، په پور اخيستل. ﴿نافقة﴾ رائج، مروج (چلېدونکي). ﴿کسدت﴾ د نصر د باب ماضي ده: رواج ختمېدل، (چلاو بندېدل). ﴿إعارة﴾ د افعال د باب مصدر دی: عاريتاً ورکول (په خواست غوښتونکي [او په قرض حسنه غوښتونکي] ته شی ورکول). ﴿ردّ العين﴾ عين شی واپس کول (مثلاً که يو څوک غنم په قرض حسنه واخلي او بيا خاص هغه غنم واپس کړي، نو دا "ردّ العين" دی. ليکن که هغه غنم وخوري او د هغه په مثل نور غنم واپس کړي، نو دا "ردّ العين معناً" دي، يعني د معنیٰ په اعتبار سره يې ګواکي هغه شی واپس کړی). ﴿أنظر﴾ د سمع او نصر د باب اسم تفضيل دی: زيات کتونکی، زيات توجه او رحم کونکی (زيات رعايت کونکی) (مصباح اللغات). ﴿أيسر﴾ د سمع او کرم د باب اسم تفضيل دی: زيات آسانه.

● القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۲۷۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۸۷]

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی له بل چا څخه رائج فلوس په قرض واخلي، بیا د هغوی رواج او چلاو ختم سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر دې مقروض سړي د هغوی مثل واپس کول واجب دي، یعني څومره فلوس چي هغه په قرض اخیستي وه، هغومره فلوس دي واپس کړي؛ دلیل دا دی چي د مثلي شی په قرض اخیستلو ته "اعاره" وایي لکه څرنګه چي د مثلي شي عاریتاً ورکولو ته "قرض" وایي، او د مثلي شي په قرض اخیستلو حکم دا دی چي معناً (د معنیٰ په اعتبار سره) عَین شی واپس کړی سي، او که د هغه "اعاره کېدلو" ته وکتل سي نو پکار دا ده چي حقیقتاً عَین شي (خاص هغه شی) واپس کړی سي؛ ځکه په اعاره کي خاص د هغه شي واپس کول لازم دي کوم چي اخیستل سوی وي، لېکن څرنګه چي دا قرض دی او په قرض کي د عَین شي په تلف کولو سره نفع حاصلیږي (مثلا که یو سړی پنځه سېره غنم په قرض واخلي نو دا سړی هغه وخت له غنمو څخه نفع اخیستلای سي کله چي دئ هغه وخوري [تلف کړي]. لهذا کله چي په قرض کي د عَین شي په تلف کولو سره نفع حاصلیږي) نو ځکه د حقیقتاً عَین شي واپس کول ناممکن سو، او کله چي د حقیقتاً عَین شي واپس کول ناممکن سو، نو ځکه د معناً عَین شي واپس کول به واجب وي، او د معناً عَین شي واپس کول د مثل په ذریعه کېدای سي، نو ځکه (د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز) پر مقروض سړي د فلوسو مثل واجب کړی سوی دی. مګر تاسو دا په یاد لرئ! چي د غه مثل شي ته به د حقیقتاً عَین شي درجه ورکول کیږي، ځکه که مثل شي ته د حقیقتاً عَین شي درجه نه ورکول سي نو "مبادلةُ الشئ بجنسه نسیئةً" به لازم سي، حالانکي دا ناجائز ده، نو ځکه مثل شي ته به د عَین شي درجه ورکول کیږي.

**والثمنية الخ:** دا د یو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چي دلته د فلوسو مثل څنګه د عَین شي (نافقه فلوسو) په معنیٰ سره کېدای سي؛ ځکه کله چي مقروض په قرض فلوس واخیستل نو په هغه وخت کي فلوس (د رائج کېدلو په وجه) ثمن وه، لېکن اوس د رواج او چلاو تر ختمېدلو وروسته چي مقروض کوم فلوس واپس کوي هغوی ثمن نه دي، لنډه دا چي کاسده فلوس د نافقه فلوسو معناً مثل نه دي، او کله چي هغه د نافقه فلوسو معناً مثل نه دي، نو ځکه د کاسده فلوسو په اداء کولو سره به د هغه فلوسو مثل اداء نه سي کوم چي مقروض په قرض اخیستي وه (یعني قرض به اداء نه سي).

د دې جواب دا دی چي د فلوس ثمن والی (ثمن کېدل) یو زائد شی دی او قرض د هغه سره خاص نه دی، لهذا کله چي قرض د ثمن سره خاص نه دی، نو دا به ویل کیږي چي د فلوسو په قرض اخیستل د هغوی د ذوات المثل کېدلو په اعتبار سره دي، یعني ګواکي مقروض یو مثلي شی په قرض واخیستی (او د فلوسو رواج ختمېدل هغوی له ذواتُ الامثال کېدلو څخه نه خارج کوي)، لنډه دا چي مقروض یو مثلي شی په قرض واخیستی او بیرته یې د هغه مثل واپس کړی یعني څومره فلوس چي یې په

قرض اخیستي وه خاص هغومره فلوس یې واپس کړل، او په داسي کولو سره قرض اداء کیږي، نو ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د فلوسو د مثل په اداء کولو سره قرض اداء کیږي.

وعندهما إلخ: د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله مذهب دا دی چي پر مقروض د هغه فلوسو قیمت واجبیږي؛ دلیل یې دا دی چي کله د فلوسو د ثمن والی وصف باطل سو (یعني رواج او چلاویې ختم سو)، نو اوس د هغسي فلوسو واپس کول ناممکن سو ځرنګه فلوس چي په قرض اخیستل سوي وه او قبضه پر سوې وه، ځکه کوم فلوس چي له ثمنیت (ثمن والي) څخه خالي وي هغوی د داسي فلوسو په معنیٰ سره نه دي په کوم کي چي د ثمنیت وصف موجود وي، لهذا کله چي د نافقه فلوسو (کوم چي مقروض په قرض اخیستي وه) مثل واپس کول ناممکن سو، نو ځکه د هغوی د قیمت واپس کول به واجب وي. د دې مثال دا دی لکه یو څوک چي غنم یا داسي بل مثلي شی په قرض واخلي او بیا هغه په بازار کي منقطع او ختم سي، نو په دې صورت کي د هغه د قیمت واپس کول واجبیږي، همداسي به په مذکوره مسئله کي هم د قیمت واپس کول واجب وي. ها! دا خبره به تاسو ته معلومه وي چي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز د هغه ورځي قیمت واجبیږي په کومه ورځ چي مقروض پر فلوسو قبضه کړې وي (یعني دیوم البیع او یوم القبض)، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز د هغه ورځي قیمت واجبیږي په کومه ورځ چي د فلوسو رواج او چلاو ختم سوی وي (یعني یوم الانقطاع)، دا اختلاف مخکي تېر سوی دی.

د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په مینځ کي اصل اختلاف په هغه مسئله کي دی کله چي یو څوک مثلي شی غصب کړي بیا هغه شی منقطع او ختم سي (یعني هیڅ ځای نه پیدا کیږي)، نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز د غصب د ورځي قیمت واجبیږي او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز د انقطاع د ورځي قیمت واجبیږي.

صاحب د هدایې فرمایي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په قول کي د قرض ورکونکي او قرض اخیستونکي دواړو رعایت سوی دی، ځکه که مثل واجب کړی سي (لکه امام صاحب رَحِمَهُ الله چي فرمایي) نو په دې کي د قرض ورکونکي (مستقرض) هیڅ رعایت نسته، ځکه هغه خوارکی به د نافقه فلوسو په بدله کي کاسده فلوس اخلي، او که دیوم القبض قیمت واجب کړی سي (لکه امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله چي فرمایي) نو په دې کي د قرض اخیستونکي (مقروض) هیڅ رعایت نسته، ځکه په کومه ورځ چي قرض اخیستونکي پر فلوسو قبضه کړې وه په هغه ورځ فلوس رائج وه، نو یقیناً د هغوی قیمت

به زيات وي او قرض اخيستونکی به زيات نقصان زغمي، نو ځکه دامام محمد رَحِمَهُ الله په قول (يعني ديومُ الانقطاع د قيمت په واجبولو) کي د مستقرض او مقروض دواړو لحاظ او رعايت ستـه.

. او د مام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په قول کي د دواړو لپاره آساني ده، په دې توګه چې د يوم القبض او يوم البيع قيمت مستقرض، مقروض او ټولو خلکو ته معلوم دی، نو ځکه پر هغه عمل کول آسانه دي او د هغه په اختيارولو کي هيڅ شبهه او نزاع نه راځي او معامله آسانه کيږي.

## د دراهمو او فلوسو په ذريعه د بيع کولو يو ځانګړی صورت

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى شَيْئًا بِنِصْفِ دِرْهَمٍ فُلُوْسٍ فرمايي: او که څوک يو شی د نيم درهم فلوسو په عوض کي رانيسي جَازَ نو جائز دي وَعَلَيْهِ مَا يُبَاعُ بِنِصْفِ دِرْهَمٍ مِنَ الْفُلُوْسِ او پر هغه [مشتري] دومره فلوس واجب دي کوم چې د نيم درهم په عوض کي خرڅول کيږي وَكَذَا إِذَا قَالَ: بِدَانِقِ فُلُوْسٍ أَوْ بِقِيْرَاطِ فُلُوْسٍ او همدارنګه که [داسي] ووايي: د يوه دانق فلوسو په عوض کي، يا د يوه قيراط فلوسو په عوض کي جَازَ نو جائز دي وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَجُوْزُ فِي جَمِيْعِ ذٰلِكَ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په دې ټولو صورتونو کي جائز نه دي لِأَنَّهُ اشْتَرَى بِالْفُلُوْسِ ځکه چې [دلته] هغه د فلوسو په عوض کي شی رانيولی دی وَأَنَّهَا تُقَدَّرُ بِالْعَدَدِ لَا بِالدَّانِقِ وَنِصْفِ الدِّرْهَمِ او د فلوسو اندازه په عدد [شمېر] سره کيږي، نه په دانق او نصف درهم سره فَلَا بُدَّ مِنْ بَيَانِ عَدَدِهَا نو ځکه د فلوسو عدد بيانول ضروري دي وَنَحْنُ نَقُوْلُ: مَا يُبَاعُ بِالدَّانِقِ وَنِصْفِ الدِّرْهَمِ مِنَ الْفُلُوْسِ مَعْلُوْمٌ عِنْدَ النَّاسِ موږ وايو: چې هغه فلوس کوم چې په دانق او نصف درهم سره خرڅول کيږي [هغه] د خلکو په نيز معلوم دي وَالْكَلَامُ فِيْهِ او [زموږ] کلام په هماغه کي دی [يعني مسئله په هماغه صورت کي فرض کړې سوې ده کله چې خلکو ته دا معلوم وي] فَأَغْنٰى عَنْ بَيَانِ الْعَدَدِ نو ځکه د عدد له بيانولو څخه بې پروا سو [نو ځکه د فلوسو د عدد بيانولو ته ضرورت پاته نه سو] وَلَوْ قَالَ: بِدِرْهَمٍ فُلُوْسٍ أَوْ بِدِرْهَمَيْ فُلُوْسٍ او که [داسي] ووايي: د يوه درهم فلوسو په عوض کي، يا د دوو درهمو فلوسو په عوض کي فَكَذَا عِنْدَ أَبِي يُوْسُفَ نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په همدغه حکم دی لِأَنَّ مَا يُبَاعُ بِالدِّرْهَمِ مِنَ الْفُلُوْسِ مَعْلُوْمٌ ځکه هغه فلوس کوم چې د درهم په عوض کي خرڅول کيږي [هغه] معلوم دي وَهُوَ الْمُرَادُ لَا وَزْنُ الدِّرْهَمِ مِنَ الْفُلُوْسِ او

همدا مراد دي، نه له فلوسو څخه د دراهمو وزن وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ بِالدِّرْهَمِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي د يوه درهم په عوض کي جائز نه دي وَيَجُوزُ فِيمَا دُونَ الدِّرْهَمِ او له يوه درهم څخه په کم کي جائز دي لِأَنَّ فِي الْعَادَةِ الْمُبَايَعَةَ بِالْفُلُوسِ فِيمَا دُونَ الدِّرْهَمِ ځکه له يوه څخه په کم درهم کي په فلوسو سره بيع کول عادت دي فَصَارَ مَعْلُومًا بِحُكْمِ الْعَادَةِ نو ځکه د عادت په وجه به [د نصف درهم فلوس] معلوم وي وَلَا كَذٰلِكَ الدِّرْهَمُ او درهم داسي نه دی قَالُوا: وَقَوْلُ أَبِيْ يُوْسُفَ أَصَحُّ مشائخو رَحِمَهُمُ الله ويلي دي: چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول زيات صحيح دی لَا سِيَّمَا فِيْ دِيَارِنَا خصوصاً زموږ په علاقو کي.

**اللغات:** ﴿درهم﴾ دا به تاسو ته معلومه وي چي درهم له سپينو زرو څخه جوړ سوی وي او فلوس له ژړ او گيلټ (تانبې) څخه جوړ سوی وي، ﴿دانق﴾ د يوه درهم شپږمه حصه، جمع: دوانق، دَوانيق، ﴿قيراط﴾ د دانق نيمه حصه (د دانق نصف) يعني د يوه درهم دوولسمه حصه، ﴿لا سيّما﴾ خصوصاً، په ځانگړې توگه، ﴿ديارنا﴾ د هدايې د مصنف رَحِمَهُ الله په علاقه "مرغينان" او هغه ته په څرمه علاقو کي دا رواج وو چي له يوه درهم څخه د کم لپاره به بالکل د سپينو زرو سکّه نه جوړېده، بلکي د هغه لپاره به د ژړو سکّه جوړېده چي هغه ته به فلوس (پيسه) ويل کېده (لکه زموږ په علاقو کي چي هم له يوې روپۍ څخه کم ته پيسې ويل کيږي)، نو که چا به د يوه درهم يا تر يوه درهم د زيات تو شی رانيوی نو دراهم به يې اداء کول، لېکن که له يوه څخه د کم درهم شی به يې رانيوی نو فلوس به يې اداء کول. يعني له يوه څخه په کم درهم کي به د فلوسو رواج وو، او په يوه درهم او له يوه څخه په زيات دراهمو کي به د درهم رواج وو. (أثمار الهدايه ج:۹، ص:۵۳۵)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د نيم درهم فلوسو په عوض کي يو شی رانيسي، يعني د دومره فلوسو په عوض کي شی رانيسي چي د هغوی قيمت نصف درهم سپين زر وي، نو دا بيع جائز ده، او پر مشتري د دومره فلوسو اداء کول واجب دي کوم چي د نصف درهم په عوض کي خرڅيږي (يعني کوم چي د صرافانو په نيز د نيم درهم قيمت لري). همدارنگه که څوک د يوه دانق فلوسو يا د يوه قيراط فلوسو په عوض کي شی رانيسي، نو دا بيع هم جائز ده، او پر مشتري د دومره فلوسو اداء کول واجب دي کوم چي د يوه دانق يا د يوه قيراط سپينو زرو په عوض کي خرڅيږي.

القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما قاله المصنف: هو أصح لا سيما في ديارنا. وكذا ذكر في الدر المختار (ج:۴، ص:۲۷۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۸۸]

او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دغه ټولو صورتونو كې بيع جائز نه ده.

**د امام زفر دليل**: دا دى چې دلته مشتري د فلوسو په عوض كې شى رانيولى دى، او فلوس له معدوداتو څخه دي، لېكن نصف درهم، دانق او قيراط له موزوناتو څخه دي، يعني د فلوسو اندازه په شمېر (عدد) سره معلوميږي، په نصف درهم، دانق او قيراط سره نه معلوميږي. لهذا د نصف درهم، دانق او قيراط په ذكر كولو سره د فلوسو عدد ذكر نه سو، او كله چې د فلوسو عدد ذكر نه سو نو په دې بيع كې د فلوسو مقدار يعني ثمن مجهول سو، او د ثمن د مجهول والي په صورت كې بيع نه جائز كيږي، نو ځكه په دې ټولو صورتونو كې به بيع جائز نه وي.

ونحن نقول إلخ: زموږ له طرفه جواب دا دى چې كوم فلوس د نصف درهم، دانق او قيراط په عوض كې خرڅيږي هغه ټولو ته معلوم دي، او موږ مسئله هم په دغه صورت كې فرض كړې ده كله چې خلكو ته دا معلومه وي چې د نصف درهم سپينو زرو په عوض كې څومره فلوس خرڅيږي او ديوه دانق يا يوه قيراط په عوض كې څومره فلوس خرڅيږي، نو په دې صورت كې د فلوسو د مقدار او تعداد بيانولو ته هيڅ ضرورت نسته، ځكه چې هغه ټولو ته معلوم وي، نو د ثمن مجهول والي به هم لازم نه سي، او كله چې ثمن مجهول نه سو، نو بيع به هم ناجائز نه وي بلكې جائز وي.

ولو قال بدرهم إلخ: فرمايي كه څوك داسې ووايي چې ما دا شى ديوه درهم فلوسو يا د دوه درهمه فلوسو په عوض كې رانيوى، يعني د دومره فلوسو په عوض كې مې رانيوى چې د هغوى قيمت يو درهم يا دوه درهمه سپين زر دي، نو دا بيع د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز جائز ده. او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې داسې بيع له يوه درهم څخه په كم كې جائز ده، لېكن په يوه درهم كې جائز نه ده.

**د امام ابو يوسف دليل**: دا دى چې هغه فلوس كوم چې ديوه درهم په عوض كې خرڅيږي، د هغوى مقدار او عدد خلكو ته معلوم وي، او دلته مراد همدا دي چې د دومره فلوسو په عوض كې شى رانيسي چې د هغوى قيمت يو درهم سپين زر وي، دا مراد نه دي چې د دومره فلوسو په عوض كې شى رانيسي چې د هغوى وزن ديوه درهم د وزن په برابر وي، او كله چې دا معلومه ده چې ديوه درهم په عوض كې څومره فلوس خرڅيږي، نو ځكه په دې صورت كې ثمن مجهول نه سو، او كله چې ثمن مجهول نه دى، نو بيع به هم جائز او صحيح وي.

**د امام محمد دليل**: دا دى چې له يوه څخه په كم درهم كې په فلوسو سره د بيع كولو عادت خو په خلكو كې سته او له يوه درهم څخه د كمو فلوسو (پيسو) حساب و كتاب هغو ته معلوم دى، نو ځكه په دې صورت كې بيع جائز ده، لېكن په يوه درهم كې په فلوسو سره د بيع كولو عادت په خلكو كې نسته، نو (د عادت د نشتوالي په وجه) به ديوه درهم فلوس معلوم نه وي، نو ځكه په دې صورت كې بيع جائز نه ده.

صاحب د هدايې فرمايي چې مشائخو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اصح ګرځولی دی، خصوصاً د ماوراء النهر په ښارونو کې په خصوصيت سره د هغه قول اصح دی؛ ځکه چې د هغه ځايو خلک په يوه درهم کې هم په فلوسو سره بيع کوي او له هغه شخه په کم کې هم، او دا د خلکو لپاره زيات نفع مند هم دي نو ځکه اصح دي.

## يو درهم په فلوسو او يوه رتۍ کم نيم درهم سره بدلول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ أَعْطٰى صَيْرَفِيًا دِرْهَمًا وَقَالَ: أَعْطِنِيْ بِنِصْفِهٖ فُلُوسًا وَبِنِصْفِهٖ نِصْفًا إِلَّا حَبَّةً او که څوک صراف ته يو درهم ورکړي او [داسي] ووايي: چي ما ته د دې درهم د نصف په عوض کي فلوس راکړه! او د نصف په عوض کي يوه رتۍ کم نصف درهم جَازَ الْبَيْعُ فِي الْفُلُوسِ وَبَطَلَ فِيمَا بَقِيَ عِنْدَهُمَا نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په فلوسو کي دا بيع جائز ده او په پاته حصه [يوه رتۍ کم نصف درهم] کي بيع باطله ده لِأَنَّ بَيْعَ نِصْفِ دِرْهَمٍ بِالْفُلُوسِ جَائِزٌ ځکه چي د فلوسو په عوض کي د نصف درهم بيع خو جائز ده وَبَيْعُ النِّصْفِ بِنِصْفٍ إِلَّا حَبَّةً رِبًوا او د نصف درهم بيع د يوه رتۍ کم نصف درهم په عوض کي ربوا ده فَلَا يَجُوزُ نو ځکه هغه جائز نه ده وَعَلٰى قِيَاسِ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ بَطَلَ فِي الْكُلِّ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول پر قياس په کل کي بيع باطله ده لِأَنَّ الصَّفْقَةَ مُتَّحِدَةٌ وَالْفَسَادُ قَوِيٌّ ځکه چي صفقه يوه ده او فساد قوي دی فَيَشِيعُ نو ځکه [په کُل کي] به فساد غوړيږي وَقَدْ مَرَّ نَظِيرُهُ او د دې مثال مخکي تېر شوی دی وَلَوْ كَرَّرَ لَفْظَ الْإِعْطَاءِ او که چيري عاقد د "اعطاء" [أَعْطِنِي] لفظ مکرر کړي كَانَ جَوَابُهُ كَجَوَابِهِمَا نو [په دې صورت کي] د امام صاحب رَحِمَهُ الله جواب د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د جواب په شان دی هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده لِأَنَّهُمَا بَيْعَانِ ځکه چي [اوس] دا دوې بيع [دوه عقدونه] دي وَلَوْ قَالَ: أَعْطِنِي نِصْفَ دِرْهَمٍ فُلُوسًا وَنِصْفًا إِلَّا حَبَّةً او که چيري [داسي] ووايي: چي ما ته نصف درهم فلوس او يوه رتۍ کم نصف درهم راکړه! جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ قَابَلَ الدِّرْهَمَ بِمَا يُبَاعُ مِنَ الْفُلُوسِ بِنِصْفِ دِرْهَمٍ وَبِنِصْفِ دِرْهَمٍ إِلَّا حَبَّةً ځکه چي هغه د درهم مقابله [يو] د هغه فلوسو سره

---

❁ القول الراجح: قولأبی حنيفة رَحِمَهُ الله، کما ذکر في فتح القدير (ج:۶، ص:۲۸۱). والعنايه (ج:۶، ص:۲۸۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۸۹]

وکړه کوم چي د نصف درهم په عوض کي خرڅول کيږي او [بل يې] د يوه رتی ـکم نصف درهم سره [د هغه مقابله وکړه] فَيَكُونُ نِصْفُ دِرْهَمٍ إِلَّا حَبَّةً بِمِثْلِهِ وَمَا وَرَاءَهُ بِإِزَاءِ الْفُلُوسِ نو ځکه يوه رتی ـکم نصف درهم به د خپل مثل په عوض کي وي او له هغه څخه بغير به د فلوسو په مقابله کي وي

قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: وَفِي أَكْثَرِ نُسَخِ الْمُخْتَصَرِ ذِكْرُ الْمَسْأَلَةِ الثَّانِيَةِ صاحب د هدايي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د قدوري په زياتره نسخو کي [همدا] دويمه مسئله ذکر سوې ده.

**اللغات**: ﴿صيرفي﴾ صراف، د روپو بدلونکی، ﴿حبة﴾ دانه، رتی. د دوو اوربشو برابر وزن ته په عربي کي "حبه" وايي، د يوه درهم له اته څلوېښت (۴۸) اجزاؤ څخه يو جزء [المعجم الوسيط، المصباح المنير]. (له دې څخه زموږ مراد هغه رتی نه ده کوم چي د اته وريجو برابر کيږي).

**تشريح**: په دې عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده که يو سړی صراف ته يو درهم ورکړي او ووايي چي "ما ته د نصف درهم په عوض کي فلوس راکړه! او د بل نصف درهم په عوض کي يوه رتی ـکم نصف درهم"، نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په فلوسو کي بيع جائز ده او په مابقي (يوه رتی ـکم والا حصه) کي بيع باطله ده، ځکه چي دغه سړي د نصف درهم مقابله د فلوس سره کړې ده او د نصف درهم مقابله يې د يوه رتی ـکم نصف درهم سره کړې ده، او په دې کي هيڅ شبهه نسته چي د نصف درهم په عوض کي د فلوسو بيع جائز ده، ليکن څرنګه چي د بل نصف درهم په مقابله کي له نصف درهم څخه يوه رتی کمه ده، نو د يوې رتی د کموالي په وجه په پاته نصف درهم کي ربوا (سود) لازميږي او ربوا بيع فاسدوي، نو ځکه په مابقي (رتی ـکم والا حصه) کي بيع باطله ده. د دې په خلاف د امام صاحب د مذهب او فرمان تقاضا دا ده چي په ټوله درهم کي بيع باطله وي، يعني نه په فلوسو کي جائز وي او نه په يوه رتی ـکم نصف درهم کي؛ ځکه چي د ټوله درهم صفقه (عقد) خو يو دی، او په نصف درهم کي د ربوا (سود) لازميدلو په وجه فساد قوي دی، او فساد ځکه قوي دی چي د ربوا په وجه چي کوم فساد پيدا کيږي هغه متفق عليه دی، او قوي فساد په ټوله عقد کي غوريږي، نو ځکه به ټوله عقد فاسديږي، يعني څرنګه چي په يوه رتی ـکم نصف درهم کي بيع باطله ده همداسي به د فلوسو په حصه کي هم بيع باطله وي. د دې مثال مخکي تېر سوی دی، او هغه دا چي کله يو څوک په يوه عقد کي آزاد او غلام دواړه سره يو ځای کړي او خرڅ يې کړي، نو څرنګه چي د آزاد په بيع کي فساد قوي دی نو ځکه دا فساد بالاتفاق په ټوله عقد کي غوريږي، همداسي به د متن په مذکوره مسئله کي هم په ټوله عقد کي فساد غوريږي.

ولو كرّر لفظ إلخ: (۲)... دويمه مسئله دا ده كه يو سړى صراف ته يو درهم وركړي او د "اعطاء" لفظ مكرر كړي يعني داسي ووايي: أَعْطِنِي بِنِصْفِهِ فُلُوْسًا وَأَعْطِنِي بِنِصْفِهِ نِصْفًا إِلَّا حَبَّةً. "يعني د نصف درهم په عوض كي فلوس راكړه! او د نصف درهم په عوض كي يوه رتى كم نصف درهم راكړه!"

(يعني د "راكړه" لفظ دوه ځله ووايي)، نو په دې صورت كي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله ټولو په نيز د فلوسو بيع جائز ده او د مابقي (يوه رتى كم نصف درهم) بيع باطله ده؛ ځكه چي د لفظ "اعطاء" د مكرر كېدلو په وجه دا دوه عقدونه سول، او د يوه عقد په فاسدېدلو سره د بل عقد فاسدېدل نه لازميږي، نو ځكه د يوه رتى كم نصف درهم په عوض كي د نصف درهم د بيع په باطلېدلو سره به د فلوسو بيع نه باطليږي.

ولوقال أعطني نصف درهم إلخ: (۳)... دريمه مسئله دا ده كه يو سړى صراف ته يو درهم وركړي او داسي ووايي چي "ما ته د دې درهم په عوض كي "نصف درهم" فلوس او يوه رتى كم نصف درهم راكړه!)، نو په ټوله درهم كي بيع جائز ده، يعني د فلوس او يوه رتى كم نصف درهم دواړو بيع جائز ده؛ ځكه چي په دې صورت كي مشتري د يوه درهم په مقابله كي "د نصف درهم قيمت فلوس" او "يوه رتى كم نصف درهم" ذكر كړي دي، نو د يوه رتى كم نصف درهم په عوض كي خو به يوه رتى كم نصف درهم راسي، او د نصف درهم او يوه رتى په عوض كي به فلوس راسي، او څرنګه چي د فلوس او درهمو جنس سره مختلف دى، نو ځكه كمي وزياتوب (تفاضل) به جائز وي او بيع به هم جائز وي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د قدوري په زياتره نسخو كي دويمه مسئله ذكر سوې ده، او له دويمي مسئلې څخه مراد هغه مسئله ده كوم چي موږ دريمه مسئله ګرځولې ده (يعني: ولو قال أعطني نصف درهم... إلخ)، او كومه مسئله چي موږ دويمه ګرځولې ده، هغه صاحب د هدايې مستقله مسئله نه ده شمارلې، بلكي د اولي مسئلې په ضمن كي يې ذكر كړې ده.



# كِتَابُ الْكَفَالَةِ

(دا) کتاب د کفالت (د احکامو په بیان کي) دی

**تشريح**: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د بیوع له بیان څخه وروسته اوس کتابُ الکفاله بیانوي، او د دې وجه دا ده چي عموماً د کفالې ضرورت تر بیع وروسته پیښیږي، ځکه تر بیع کولو وروسته ځیني وخت بائع او مشتري یو له بل څخه مطمئن نه وي او په دې وجه د ثمن یا مبیع د مضبوطوالي لپاره د کفیل او کفالت ضرورت پیښ سي، نو ځکه له کتاب البیوع څخه وروسته کتاب الکفاله بیانوي.

**د "کفاله" لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: د کفالت لغوي معنیٰ او اصطلاحي معنیٰ په خپله امام قدوري رَحِمَهُ الله ذکر کړې ده، لهذا دوباره ذکر کولو ته یې ضرورت نسته، خو په مختصره توګه تاسو دا په یاد لرئ! د کفالت آسانه مطلب:

**د "کفاله" مطلب**: دا دی چي مثلاً خالد زید ته قرض ورکړي، نو عمر خالد ته ووایي چي زه د زید د قرض ذمه واریم، که هغه یې نه درکړي نو زه یې درکوم.

د کفالت په صورت کي دواړه خلک (مقروض او کفیل [زید او عُمر]) د قرض اداء کولو ذمه واره کیږي، او قرض ورکونکی (خالد) په دواړو کي له یوه څخه خپل قرض اخیستلای سي. او دې ته نژدې بل شی "حواله" ده، د هغه مطلب دا دی چي عمر خالد ته ووایي چي د زید قرض اوس پر ما دی، فقط زه یې اداء کوم، د "حواله" په صورت کي قرض ورکونکی (خالد) فقط له ذمه وار (عُمر) څخه خپل قرض اخیستلای سي.

**د کفاله یو څو الفاظ**: په کفاله کي څلور (۴) الفاظ دي، چي هغوی یاد ساتل ضروري دي:

①... كَفِيْل: کفالت کونکی. یعني کوم څوک چي ذمه وار جوړ سي (ذمه واري واخلي)، ضامن. کفیل ته "زعیم" او "حمیل" هم وایي.

②... مَكْفُوْل عَنْهُ: د چا له طرفه چي کفالت وسي. یعني مقروض، چي د هغه له طرفه کفیل د قرض اداء کولو ذمه واري اخلي.

③... مَكْفُوْل لَهٗ: د چا لپاره چي کفالت وسي. یعني قرض ورکونکی، چي د هغه لپاره کفیل ذمه واري اخلي.

(۴)... مَكْفُوْل بِهٖ: د کوم شي چې کفالت وسي. یعنې هغه مال چې کفیل د هغه د اداء کولو ذمه واري واخلي، یا هغه کس چې کفیل د قاضي په مجلس کې د هغه د حاضرولو ذمه واري واخلي (مثلاً عمر خالد ته وایي چې اوس ته زید پرېږده!، پر فلانکي وخت زه د قاضي په مجلس کې زید حاضروم، د هغه ذمه وار زه یم. نو زید مکفول بهٖ دی، او هغه ته مکفول بنفسه هم وایي).

**مثال:** که عمر د زید له طرفه د خالد لپاره د سلو درهمو کفالت وکړي (یعنې ذمه واري یې واخلي)، نو عمر کفیل دی، زید مکفول عنه دی، خالد مکفول لهٗ دی، او سل درهمه مکفول بهٖ (مضمون به) دي.

**د کفاله رکن، شرط او حکم:** د کفالت رکن د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز ایجاب او قبول دی، او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز فقط د کفیل له طرفه ایجاب دی، برابره ده قبول وسي او که نه. او د کفالت شرط دا دی چې کفیل به د مکفول بهٖ پر ورسپارلو قدرت لري، او دَین به دَینِ صحیح وي. او د کفالت اهل هر هغه کس دی کوم چې د تصرفاتو اهل وي (یعنې عاقل او بالغ وي). او د کفالت حکم پر کفیل د مطالبې واجبېدل دي (یعنې د کفالت حکم دا دی چې پر کفیل مطالبه لازمېږي، یعنې مکفول لهٗ به د هغه څخه هم د قرض مطالبه کوي).

## د کفالت لغوي او اصطلاحي معنیٰ

| |
|---|
| قَالَ: اَلْكَفَالَةُ هِيَ الضَّمُّ لُغَةً فرمایي: د کفالت لغوي معنیٰ ده [یو شي د بل شي سره] یو ځای کول قَالَ اللهُ تَعَالیٰ: وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا الله تعالیٰ فرمایلي دي: او زکریا عليه السلام مریم علیها السلام د ځان سره یو ځای کړه ثُمَّ قِيْلَ: هِيَ ضَمُّ الذِّمَّةِ إِلَى الذِّمَّةِ فِي الْمُطَالَبَةِ بیا ویل سوي دي: چې کفاله په مطالبه کې [یوه] ذمه د [بلې] ذمې سره یو ځای کولو ته وایي وَقِيْلَ: فِي الدَّيْنِ او ویل سوي دي: چې په قرض کې وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ [لېکن] اول قول زیات صحیح دی. |

**اللغات:** ﴿الكفالة﴾ د نصر د باب اسم مصدر دی: یوه لغوي معنیٰ یې مصنف رَحِمَهُ الله ذکر کړې ده، او بله معنیٰ یې ده: ذمه واري اخیستل، ذمه وار کېدل، ضامن کېدل (مصباح المنير). ﴿ضمّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: یو شی د بل شي سره یو ځای کول، جمع کول، ضمول، یو شی د بل شي سره اضافه کول، (المعجم الوسيط). ﴿كفّلها﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: کفیل کېدل، ذمه وار کېدل (ذمه واري اخیستل). ﴿دَين﴾ قرض، پور.

**تشریح:** په دې عبارت کې امام قدوري رَحِمَهُ الله د کفالت لغوي او شرعي معنیٰ بیان کړې ده، فرمايي چې د کفالت لغوي معنیٰ ده: سره یوځای کول، ضمول (ملاوول). لکه څرنګه چې په آیت کې ذکر سوي دي: "وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا" (حضرت زکریا عليه السلام د حضرت مریم علیها السلام کفیل سو [یعني د هغې د تربیت او پالنې ذمه واري یې د خپلې ذمه واري سره یو ځای کړل، او د هغې تربیت یې خپله ذمه واري وګڼل]).

په شریعت کې د "کفاله" دوه تعریفونه سوي دي:

①... ضَمُّ الذِّمَّةِ إِلَى الذِّمَّةِ فِي الْمُطَالَبَةِ: یعني په مطالبه کې یوه ذمه د بلې ذمې سره یوځای کول. مثلاً قرض اول د زید پر ذمه (غاړه) واجب وي، بیا په کفالت (ذمه واري اخیستلو سره) سره هغه قرض د عمر پر ذمه واجب سي او له عمر څخه (هم) د هغه مطالبه کیږي.

②... ضَمُّ الذِّمَّةِ إِلَى الذِّمَّةِ فِي الدَّيْنِ: یعني په دَین کې یوه ذمه د بلې ذمې سره یوځای کول.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دې دوو تعریفو کې اول تعریف زیات صحیح دی، او د هغه د زیات صحیح والي دوې وجهې دي:

(۱) اوله وجه دا چې د دویم تعریف پر بناء د کفیل پر ذمه دَین ثابتیږي، او کله چې د کفیل پر ذمه دَین ثابت سو نو که اوس اصیل (مکفول عنه) بري نه سو، نو د کفیل پر ذمه به دوه دَین (دوه قرضونه) جمع سي، حالانکې دَین فقط یو دی.

(۲)... دویمه وجه دا ده چې د دویم تعریف مطابق کفاله بالنفس د "کفاله" له تعریف څخه وځي؛ ځکه چې کفاله بالنفس مال (دین) نه دی، حال دا چې څرنګه د مال کفالت (ذمه واري اخیستل) صحیح دي، همداسې د نفس کفالت هم صحیح دي. نو ځکه اول تعریف اَصح دی.

## د کفالت قسمونه

قَالَ: الْكَفَالَةُ ضَرْبَانِ: كَفَالَةٌ بِالنَّفْسِ وَكَفَالَةٌ بِالْمَالِ فرمايي: کفاله پر دوه قسمه ده: [۱] کفاله بالنفس [۲] او کفاله بالمال فَالْكَفَالَةُ بِالنَّفْسِ جَائِزَةٌ نو کفاله بالنفس جائز ده وَالْمَضْمُونُ بِهَا إِحْضَارُ الْمَكْفُولِ بِهِ او په کفاله بالنفس سره چې د کوم شي ضمانت [کفالت] اخیستل کیږي هغه د مکفول به حاضرول دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې کفاله بالنفس جائز نه ده لِأَنَّهُ كَفَلَ بِمَا لَا يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيمِهِ ځکه هغه د داسې شي کفیل سو چې د هغه پر ورسپارلو قادر نه دی إِذْ لَا قُدْرَةَ لَهُ عَلَى نَفْسِ الْمَكْفُولِ بِهِ ځکه چې هغه لره د مکفول به پر نفس هیڅ قدرت نسته بِخِلَافِ الْكَفَالَةِ

بِالْمَالِ په خلاف د كفاله بالمال لِأَنَّ لَهُ وِلَايَةً عَلَى مَالِ نَفْسِهِ ځکه چې کفیل لره پر خپل مال ولایت [او قدرت] حاصل دی وَلَنَا قَوْلُهُ الطَّيْئِلا ❶: «الزَّعِيمُ غَارِمٌ» زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی چې: "کفیل ضامن دی" وَهٰذَا يُفِيدُ مَشْرُوعِيَّةَ الْكَفَالَةِ بِنَوْعَيْهِ او دا فرمان په دواړو قسمونو کې د کفاله د مشروعیت فایده ورکوي وَلِأَنَّهُ يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيمِهِ بِطَرِيقِهِ بِأَنْ يُعَلِّمَ الطَّالِبَ مَكَانَهُ فَيُخَلِّيَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ او ځکه چه کفیل په دې توګه د مکفول به پر ورسپارلو قادر دی چې مکفول لهٔ ته د هغه ځای ور وښیې، او مکفول به او مکفول لهٔ سره پرېږدي أَوْ يَسْتَعِينَ بِأَعْوَانِ الْقَاضِي فِي ذٰلِكَ يا په دې باره کې د قاضي له مرستیالانو څخه مدد واخلي وَالْحَاجَةُ مَاسَّةٌ إِلَيْهِ او کفاله بالنفس ته ضرورت [هم] پېښیږي وَقَدْ أَمْكَنَ تَحَقُّقُ مَعْنَى الْكَفَالَةِ فِيهِ او په کفاله بالنفس کې د کفاله معنیٰ ثابتول [هم] ممکن دي وَهُوَ الضَّمُّ فِي الْمُطَالَبَةِ او هغه په مطالبه کې [يوه ذمه د بلې ذمې سره] يو ځای کول دي.

**اللغات**: ﴿ضرب﴾ د دې لفظ څو معناوې دي، دلته د قسم (ډول) په معنیٰ سره دی، ﴿مضمون﴾ د سمع د باب مفعول دی: د کوم شي چې ضمانت (ذمه واري) اخيستل سوې وي، پر ذمه واجب، ﴿إحضار﴾ د افعال د باب مصدر دی: حاضرول، پېشول، وړاندې کول، ﴿زعيم﴾ د نصر او فتح له بابه د صفت مشبه صيغه ده، له دې بابو څخه د کفیل او ذمه وار معنیٰ ورکوي، زعیم مشر او لیډر ته هم وايي ځکه چې هغه د خپل قوم ذمه وار وي، ﴿غارم﴾ د سمع د باب فاعل دی: ذمه وار، ضامن، ﴿يستعين﴾ د استفعال د باب مضارع ده: د مدد طلب کول، مرسته غوښتل، ﴿ماسة﴾ د سمع د باب مؤنث فاعل دی: مسه کونکې، مراد ځنې داعي، بلونکی دی، مست الحاجة إلى كذا: يو شي ته ضرورت پيدا کېدل، يو شي ته محتاجه کېدل. (المصباح المنير)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې کفاله پر دوه قسمه ده: ① کفاله بالنفس، ② کفاله بالمال. زموږ په نيز دا دواړه جائز دي. او په کفاله بالنفس کې چې د کوم شي کفالت او ضمانت اخيستل هغه د مکفول به نفس حاضرول دي (يعني په کفاله بالنفس کې د مکفول به د حاضرولو ذمه واري اخيستل کيږي. او د هغه ورسپارل د کفيل پر ذمه واجب کيږي) او کله چې کفيل د مکفول به نفس حاضر کړي نو کفيل بري

---

❶ تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب البيوع، باب في تضمين العارية، حديث رقم: ۳۵۶۵.

کېږي. د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمان دا دی چې کفاله بالنفس جائز نه ده؛ ځکه چې په کفاله بالنفس کې کفیل د داسې شي ذمه واري اخلي چې کفیل د هغه پر ورسپارلو قادر نه وي.

**لأنه كفل بما إلخ:** د امام شافعي دلیل دا دی چې کفیل لره د مکفول بهٖ پر نفس هیڅ ولایت نشته، نو ځکه د هغه پر ورسپارلو به قادر هم نه وي. حال دا چې د کفالت د صحت لپاره د مکفول بهٖ پر ورسپارلو قدرت لرل شرط دي (یعني کفاله هغه وخت صحیح کېږي کله چې کفیل د مکفول بهٖ پر ورسپارلو قادر وي). او دا شرط دلته نشته، نو ځکه کفاله بالنفس جائز نه ده. د دې په خلاف کفاله بالمال جائز ده؛ ځکه چې د هغې تعلق د مال سره دی، او پر خپل مال کفیل لره پوره ولایت او بشپړ قدرت حاصل دی، او هغه هر وخت د خپل مال پر ورسپارلو قادر دی، نو ځکه کفاله بالمال صحیح او جائز ده.

**ولنا قوله عليه السلام إلخ:** زمونږ یو دلیل دا حدیث دی: "الزَّعِيْمُ غَارِمٌ"، یعني کفیل ضامن (ذمه وار) دی. په دې سره مونږ دا ډول دلیل نیسو چې په دې حدیث کې علی الإطلاق کفیل ضامن ګرځول سوی دی، نو ځکه دا به د کفالت دواړو قسمونو ته شامل وي او د کفاله بالمال په څېر به کفاله بالنفس هم صحیح او جائز وي.

**ولأنه يقدر إلخ:** دویم دلیل (کوم چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دلیل جواب هم دی) دا دی چې کفیل د مکفول بهٖ د نفس پر ورسپارلو قادر دی، په دې توګه چې کفیل دې مکفول لهٗ ته د مکفول بهٖ ځای او درک ور وښیي (چې د هغه کور دا دی، یا دلته کښیني او داسې نور) او هغوی دې سره ایله کړي. یا په دې توګه چې کفیل دې د قاضي عسکر او پولیس د ځان سره بوځي او مکفول بهٖ دې په ونیسي او د قاضي په مجلس کې دې یې د مکفول لهٗ مخته حاضر کړي. نو په دې توګه هغه پر ورسپارلو قادر دی (لهذا د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره صحیح نه ده چې کفیل د هغه پر ورسپارلو قادر نه دی).

**والحاجة ماسة إلخ:** درېیم دلیل دا دی چې څرنګه کفاله بالمال ته ضرورت پېښېږي او هغه صحیح ده، همداسې کفاله بالنفس ته هم ضرورت پېښېږي نو ځکه هغه به هم صحیح او جائز وي. او په کفاله بالنفس کې د "کفاله" معنیٰ ثابتول هم ممکن دي، په دې توګه چې څرنګه کفیل د مال په مطالبه کې د خپل ذمې سره د مکفول عنه ذمه یوځای کولای سي، همداسې یې د مکفول بهٖ د حاضرولو په مطالبه کې هم یوځای کولای سي. لهذا کله چې په کفاله بالنفس کې د "کفاله" معنیٰ هم سته او کفاله بالنفس ته ضرورت هم سته، نو بیا د کفاله بالنفس په جائز کېدلو کې څه شبهه پاتېږي!؟.

## د کفالت الفاظ (په کومو الفاظو سره کفاله منعقده کيږي؟)

قَالَ: وَتَنْعَقِدُ إِذَا قَالَ فرمايي: او کفاله بالنفس منعقده کيږي کله چې کفيل [داسي] ووايي تَكَفَّلْتُ بِنَفْسِ فُلَانٍ أَوْ بِرَقَبَتِهِ أَوْ بِرُوحِهِ أَوْ بِجَسَدِهِ أَوْ بِرَأْسِهِ زه د فلانکي د نفس يا د هغه د غاړي يا د هغه د روح يا د هغه د جسم يا د هغه د سر کفيل [ذمه وار] سوم وَكَذَا بِبَدَنِهِ وَبِوَجْهِهِ او همدارنګه د هغه د بدن يا د هغه د مخ [کفيل سوم] لِأَنَّ هٰذِهِ الْأَلْفَاظَ يُعَبَّرُ بِهَا عَنِ الْبَدَنِ إِمَّا حَقِيقَةً أَوْ عُرْفًا ځکه چې د دې الفاظو په ذريعه له ټوله بدن څخه تعبير کيږي يا خو حقيقتاً يا عرفاً عَلَى مَا مَرَّ فِي الطَّلَاقِ لکه څرنګه چې په کتاب الطلاق کي تېر سوه كَذَا إِذَا قَالَ: بِنِصْفِهِ أَوْ بِثُلُثِهِ أَوْ بِجُزْءٍ مِنْهُ او همدارنګه کله چې ووايي: [زه] د هغه د نصف يا د ثلث يا د هغه د يو جزء [کفيل سوم] لِأَنَّ النَّفْسَ الْوَاحِدَةَ فِي حَقِّ الْكَفَالَةِ لَا تَتَجَزَّأُ ځکه چې د کفالت په حق کي يو نفس نه متجزي کيږي [نه منقسم کيږي] فَكَانَ ذِكْرُ بَعْضِهَا شَائِعًا كَذِكْرِ كُلِّهَا نو د يوه نفس د جزء شائع [بعض شائع] ذکر کول به داسي وي لکه ټوله نفس ذکر کول بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: تَكَفَّلْتُ بِيَدِ فُلَانٍ أَوْ بِرِجْلِهِ په خلاف د هغه صورت کله چې [داسي] ووايي: زه د فلانکي د لاس يا د هغه د پښې کفيل سوم لِأَنَّهُ لَا يُعَبَّرُ بِهِمَا عَنِ الْبَدَنِ ځکه چې د دې دواړو په ذريعه د انسان له بدن څخه تعبير نه کيږي حَتَّى لَا تَصِحَّ إِضَافَةُ الطَّلَاقِ إِلَيْهِمَا همدا وجه ده چې د دوی وطرف ته طلاق منسوب کول صحيح نه دي اځيني شارحينو په بعضي ځايو کي د حتیٰ اصطلاحي ترجمه په "همدا وجه ده" سره کړې ده (دا خبره په ياد لرئ!)] وَفِيمَا تَقَدَّمَ يَصِحُّ او په مخکني اندامونو کي صحيح دي.

**اللغات:** ﴿رقبة﴾ غاړه، مراد ځني ذات دی، ﴿تتجزأ﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: جزء جزء کېدل (حصه حصه کېدل)، ټوټه ټوټه کېدل (يو شی پر څو اجزاؤ منقسم کېدل)، ﴿شائع﴾ د ضرب د باب فاعل دی: غوړېدلی، خپور، نشر سوی، له "جزء شائع" څخه مراد هغه جزء دی چي د انسان په ټوله بدن کي غوړېدلی وي يعني د انسان ټوله بدن لره عام او شامل وي، لکه نصف (نيمه حصه)، ثلث (دريمه حصه)، ربع (څلورمه حصه)، ځکه چي د انسان هر اندام نصف، ثلث او ربع لري.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی په کومو الفاظو سره چي د انسان له ټوله بدن څخه تعبير کيږي، برابره ده حقيقتاً تعبير کيږي لکه نفس، جسد او روح. او که عرفاً تعبير کيږي، لکه رَقَبة، رَأس،

وَجه او داسي نور الفاظ. په داسي الفاظو کي په هر لفظ سره کفاله منعقده کیږي. مثلاً که کفیل داسي ووايي: زه د فلانکي د نفس، یا د هغه د غاړي (رقبې). یا د هغه د روح. یا د هغه د سر. یا د هغه د مخ کفیل یم (یا کفیل سوم)، نو په دې الفاظو سره کفاله منعقده کیږي؛ ځکه چي دا ټوله الفاظ داسي دي چي په هغوی سره حقیقتاً یا عرفاً له ټوله بدن څخه تعبیر کیږي. او څرنګه چي د ټوله بدن کفالت (ذمه واري اخیستل) صحیح دي، نو ځکه د پورتني اندامونو وطرف ته د کفالت په منسوب کولو سره به هم کفاله صحیح کیږي او منعقده کیږي. لکه څرنګه چي په کتاب الطلاق کي دا مسئله ذکر سوه چي که د دغو اندامونو وطرف ته طلاق منسوب کړی سي نو طلاق واقع کیږي، نو همداسي به دلته هم د مذکوره اندامونو وطرف ته د کفالت په منسوب کولو سره کفاله صحیح کیږي.

- همدارنګه که کفیل د جزء شائع (یعني د جزء غیر معیّن) وطرف ته کفالت منسوب کړي. مثلاً داسي ووايي: زه د فلانکي د نصف (نیمي حصې) یا د ثُلث (دریمي حصې) کفیل یم. نو دا کفالت هم صحیح دی؛ ځکه چي یو "نفس" د کفالت په حق کي نه متجزي کیږي. لهذا د شائع (غیر معیّن) جزء ذکر کول به داسي وي لکه ټوله نفس او ټوله بدن ذکر کول.

بخلاف ما إذا إلخ: هو! که کفیل داسي ووايي چي: زه د فلانکي د لاس. یا د فلانکي د پښې کفیل یم. نو کفاله نه صحیح کیږي؛ ځکه چي د لاس او پښې په لفظ سره د انسان له ټوله بدن څخه تعبیر نه کیږي. همدا وجه ده که د لاس یا پښې وطرف ته طلاق منسوب کړی سي نو طلاق نه واقع کیږي. او کوم اندامونه چي مخکي ذکر سوه یعني نفس، رقبه، نصف او داسي نور، د هغوی وطرف ته د طلاق په نسبت کولو سره طلاق واقع کیږي، نو ځکه په هغوی سره به کفاله هم صحیح کیږي او منعقده کیږي.

## د کفالت الفاظ

وَكَذَا إِذَا قَالَ: ضَمِنْتُهُ او همدارنګه که [کفیل] ووايي: زه د هغه ضامن سوم لِأَنَّهُ تَصْرِيحٌ بِمُوجَبِهِ ځکه چي دا د کفالت د مُوجب تصریح ده [آسانه ترجمه: ځکه چي دا د کفالت لپاره صریح لفظ دی] أَوْ قَالَ: هُوَ عَلَيَّ یا [کفیل] ووايي: هغه پر ما دی لِأَنَّهُ صِيغَةُ الِالْتِزَامِ ځکه چي دا د التزام لفظ دی أَوْ قَالَ: إِلَيَّ یا ووايي: چي [هغه] زما طرف ته دی لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى عَلَيَّ فِي هٰذَا الْمَقَامِ ځکه چي "إلیّ" په دې مقام کي د "علیّ" په معنیٰ سره دی قَالَ عليه السلام [1]: «وَمَنْ تَرَكَ مَالًا فَلِوَرَثَتِهِ وَمَنْ تَرَكَ كَلًّا أَوْ

---

[1] تخریج: أخرجه البخاري في كتاب الفرائض، باب ميراث الأسير، حديث رقم: ۶۷۶۳. و أبو داؤد في كتاب الخراج، باب في أرزاق الذرية، حديث رقم: ۲۹۵۰

عِيَالًا فَإِلَيَّ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: او څوک چې مال پرېږدي نو هغه د ده د وارثانو دی او څوک چې يو يتيم يا د [پالنې محتاج] بچيان پرېږدي نو هغه پر ما دي [يعني د هغو کفيل زه يم] وَكَذَا إِذَا قَالَ: أَنَا زَعِيمٌ بِهِ أَوْ قَبِيلٌ بِهِ او همدارنګه که هغه ووايي: زه د هغه زعيم [ذمه وار] يم، يا زه د هغه قبيل [ذمه وار] يم لِأَنَّ الزَّعَامَةَ هِيَ الْكَفَالَةُ ځکه چې د زعامت معنیٰ کفالت دی وَقَدْ رَوَيْنَا فِيهِ او په دې باره کې موږ [مخه مخکې] حديث روايت کړی وَالْقَبِيلُ هُوَ الْكَفِيلُ او د قبيل معنیٰ [هم] د کفيل [ذمه وار] ده وَلِهَذَا سُمِّيَ الصَّكُّ قَبَالَةً او له همدې کبله چک [دستاويز] په قباله سره نومول سوی دی بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: أَنَا ضَامِنٌ لِمَعْرِفَتِهِ په خلاف د هغه صورت کله چې [داسې] ووايي: زه د هغه د پېژندنې ضامن يم لِأَنَّهُ الْتَزَمَ الْمَعْرِفَةَ دُونَ الْمُطَالَبَةِ ځکه چې هغه د پېژندنې التزام کړی دی، نه د مطالبې.

**اللغات**: ﴿تصريح﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: صراحت کول، وضاحت کول (په ښکاره لفظو کې ذکر کول)، ﴿مُوجَب﴾ واجب کړی سوی، تقاضا، نتيجه، ﴿التزام﴾ د افتعال د باب مصدر دی: پر ځان لازمول، پر خپله ذمه لازمول (په خپله غاړه اخيستل)، ﴿کَلّ﴾ بوج، بار، ﴿عيال﴾ د تربيت او پالنې محتاج بچيان، ﴿زعيم﴾ د نصر او فتح له بابه د صفت مشبه صيغه ده: کفيل، ذمه وار، له دې باب څخه اسم مصدر "الزَّعَامَة" او "الزَّعْم" راځي (د زاء او عَين په فتحه سره)، ﴿غارم﴾ د سمع د باب فاعل دی: ذمه وار، ضامن، ﴿الصك﴾ د مال اقرارنامه چې هغه ته عموماً چک ويل کيږي، د مال وثيقه (ثبوتي خط، دستاويز). (المعجم الوسيط)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که کفيل د "ضَمِنْتُهُ" لفظ استعمال کړي (چې زه د فلانکي د نفس ضامن او ذمه وار يم)، نو په دې سره هم کفاله منعقده کيږي؛ ځکه چې د کفاله مُوجَب د مکفول بِهٖ د حاضرولو ضمان (ذمه وار کېدل) دي، او د ضَمِنْتُهُ په لفظ سره د همدې صراحت سوی دی، نو ځکه په هغه سره به کفاله منعقده کيږي. همدارنګه که کفيل ووايي "هُوَ عَلَيَّ" (هغه پر ما دی) نو په دې سره هم کفاله منعقده کيږي؛ ځکه چې د "عَلَيَّ" لفظ د التزام لفظ دی، او څرنګه چې په کفاله کې هم د مطالبې التزام کيږي (يعني کفيل پر ځان مطالبه لازموي)، نو ځکه په دې لفظ سره به هم کفاله منعقده کيږي.

او که کفیل د "عَلَيَّ" پر ځای "إِلَيَّ" ووايي نو په دې سره هم کفاله منعقده کیږي: ځکه چې د التزام په مقام کي "إِلَيَّ" د "عَلَيَّ" په معنیٰ سره دی، او په "عَلَيَّ" سره کفاله منعقده کیږي، نو د "إِلَيَّ" په لفظ سره به هم کفاله منعقده کیږي. په خپله نبي کریم ﷺ هم په یوه حدیث کي د "إِلَيَّ" لفظ د "عَلَيَّ" په معنیٰ سره استعمال کړی دی او هغه دا حدیث دی: "مَنْ تَرَكَ مَالًا فَهُوَ لِوَرَثَتِهِ. وَمَنْ تَرَكَ كَلًّا أَوْ عِيَالًا فَإِلَيَّ" (یعني کوم څوک چي مال په میراث کي پریږدي، نو هغه د ده د وارثانو لپاره دی، او کوم څوک چي یتیم او د پالني محتاج بچیان پریږدي نو د هغه ذمه واري پر ما ده. یعني زه د هغو کفیل او ذمه واریم) اوګورئ! په دغه حدیث کي د "إِلَيَّ" لفظ د "عَلَيَّ" په معنیٰ سره دی.

وكذا إذا قال إلخ: فرمايي که کفیل داسي ووايي "أَنَا زَعِيمٌ"، نو په دې سره هم کفاله منعقده کیږي: ځکه چي زعامة د کفالة په معنیٰ سره دی، لکه څرنګه چي په دې حدیث "الزَّعِيمُ غَارِمٌ" کي زعیم د کفیل په معنیٰ سره استعمال سوی دی. همدارنګه که کفیل "أَنَا قَبِيلٌ" ووايي، نو په دې سره هم کفاله منعقده کیږي؛ ځکه چي قبیل هم د کفیل په معنیٰ سره دی، همدا وجه ده په عربي ژبه کي چِک او دستاویز ته قباله وايي؛ ځکه چي په چِک او دستاویز کي هم التزام کیږي او په کفاله کي هم التزام کیږي، نو ځکه په "أنا قبيل" سره به هم کفاله منعقده کیږي.

د دې په خلاف که کفیل "أَنَا ضَامِنٌ لِمَعْرِفَتِهِ" ووايي (چي زه د فلانکي د پېژندلو ذمه واریم)، نو په دې سره کفاله نه منعقده کیږي، ځکه دلته کفیل د معرفت او پېژندلو التزام کړی دی، نه د مطالبې، حال دا چي کفاله د مطالبې التزام ته وايي، نه د معرفت التزام ته.

## د کفاله بالنفس لپاره وخت ټاکل

قَالَ: فَإِنْ شَرَطَ فِي الْكَفَالَةِ بِالنَّفْسِ تَسْلِيمَ الْمَكْفُولِ بِهِ فِي وَقْتٍ بِعَيْنِهِ فرمايي: که په کفاله بالنفس کي په مُعین [ټاکلي] وخت کي د مکفول بِهٖ د ورسپارلو شرط ولګول سي لَزِمَهُ إِحْضَارُهُ إِذَا طَالَبَهُ فِي ذَلِكَ الْوَقْتِ نو پر کفیل د هغه حاضرول لازم دي، په دې شرط چي مکفول لهٗ په هغه مُعین وخت کي له کفیل څخه مطالبه وکړي وَفَاءً بِمَا الْتَزَمَهُ د دې لپاره چي کفیل د کوم شي التزام کړیٰ وو هغه پوره کړي فَإِنْ أَحْضَرَهُ نو که کفیل هغه حاضر کړي [نو بنه ده] وَإِلَّا حَبَسَهُ الْحَاكِمُ کنې حاکم دي هغه بندي کړي لِامْتِنَاعِهِ عَنْ إِيفَاءِ حَقٍّ مُسْتَحَقٍّ عَلَيْهِ ځکه چي هغه د داسي حق له اداء کولو څخه منع سو

کوم چې پر هغه واجب دی وَلٰكِنْ لَا يَحْبِسُهُ أَوَّلَ مَرَّةٍ لېکن حاکم به هغه اول ځل نه بندي کوي لَعَلَّهُ مَا دَرٰى لِمَاذَا يُدْعٰى ځکه شاید هغه ته معلومه نه وي چې ولې [د حاکم مجلس ته] بلل سوی دی وَلَوْ غَابَ الْمَكْفُولُ بِنَفْسِهِ او که چیرې مکفول بنفسه غائب سي أَمْهَلَهُ الْحَاكِمُ مُدَّةَ ذِهَابِهِ وَمَجِيئِهِ نو حاکم دې کفیل ته د تګ او راتګ تر مودته پورې مهلت ورکړي فَإِنْ مَضَتْ وَلَمْ يُحْضِرْهُ بیا که مودت تېر سي او کفیل هغه حاضر نه کړي يَحْبِسُهُ نو حاکم به هغه بندي کوي لِتَحَقُّقِ اِمْتِنَاعِهِ عَنْ إِيْفَاءِ الْحَقِّ ځکه چې [اوس] له اداء کېدلو څخه د هغه منع کېدل ثابت سوه.

**اللغات**: ﴿تسليم﴾ د تفعیل مصدر دی: ورسپارل. ﴿وفاء﴾ د ضرب مصدر دی: (وعده) پوره کول، پوره اداء کول. ﴿حبسه﴾ د ضرب ماضي ده: بندي کول، قیدول (بندیخانې ته اچول). ﴿إيفاء﴾ د افعال مصدر دی: پوره کول. ﴿مَا دَرٰى﴾ د ضرب د باب نفي صیغه ده: معلومېدل، خبرېدل. ﴿يُدعٰى﴾ د نصر د باب مضارع مجهوله ده: بلل (رابلل)، غوښتل. ﴿أمهله﴾ د افعال ماضي ده: مهلت ورکول (وقفه ورکول. وخت ورکول). ﴿مضت﴾ د ضرب ماضي ده: مودت تېرېدل (وخت تېرېدل. وخت پوره کېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که په کفاله بالنفس کې په مُعيّن او ټاکلي وخت کې د مکفول بنفسه (مکفول به) د ورسپارلو شرط ولګول سي، نو پر کفیل په هغه مُعيّن (ټاکلي) وخت کې د مکفول بنفسه ورسپارل لازمیږي، په دې شرط چې مکفول لهٗ په هغه وخت کې له کفیل څخه د دې مطالبه وکړي چې ما ته مکفول بنفسه وسپاره!. نو که کفیل په هغه مُعيّن (ټاکلي) وخت کې مکفول بنفسه ور وسپاري نو کفیل بري کیږي (غاړې یې خلاصیږي). او که چیرې کفیل مکفول بنفسه حاضر نه کړی سي، نو دا معامله دې د حاکم دربار ته پېش کړی سي او حاکم دې له کفیل څخه د هغه پوښتنه وکړي، لېکن حاکم دې داسې نه کوي چې کله کفیل راوغواړي نو اول ځل یې بندیخانې ته یې واچوي؛ ځکه ډېره ممکنه ده چې کفیل ته دا معلومه نه وي چې زه ولې راغوښتل سوی یم، او کله چې کفیل ته دا معلومه نه ده چې زه ولې حاکم طلب کړی یم. نو کفیل به د مکفول بنفسه په نه ورسپارلو کې ظالم هم نه وي. و کله چې کفیل ظالم نه سو نو هغه به قیدول کیږي هم نه؛ ځکه چې قیدول د ظلم سزا ده. ها! که چیرې کفیل ته معلومه وي چې حاکم زه د مکفول بنفسه د حاضرولو لپاره طلب کړی یم. یا کله چې کفیل راسي نو حاکم له هغه څخه د مکفول بنفسه د حاضرولو مطالبه وکړي، او

کفیل د مکفول بنفسه پر ورسپارلو قادر هم وي، لېکن بیا هم هغه حاضر نه کړي، نو اوس دي حاکم کفیل بندیخانې ته اچوي؛ ځکه چې هغه د یو واجب حق له اداء کولو څخه منع سو، او د واجب حق له اداء کولو څخه منع کېدل ظلم دی، او د ظلم سزا قید او بندیخانه ده.

ولوغاب المكفول إلخ: فرمايي که مکفول بنفسه غائب سي او د هغه ځای او درک معلوم وي، نو په مُعیَن (ټاکلي) مودت کي پر کفیل د هغه حاضرول ضروري نه دي، بلکي حاکم دي کفیل ته دومره مهلت ورکړي چي هغه مکفول بنفسه ته ولاړ سي او هغه را حاضر کړي، نو کله چي حاکم هغه ته مهلت ورکړي او هغه همداسي وکړي یعني مکفول بنفسه حاضر کړي، نو صحیح ده، کنې بیا دي حاکم هغه بندیخانې ته واچوي؛ ځکه چي په دې صورت کي هم د هغه له طرفه د واجب له اداء کولو څخه منع کېدل ثابت سو. ها! که چېري کفیل ته رښتیا هم د مکفول بنفسه ځای او درک معلوم نه وي، نو په دې صورت کي د کفیل له ذمې څخه د هغه حاضرول ساقطېږي؛ ځکه چي اوس کفیل د هغه له حاضرولو څخه عاجز او ناتوانه دی.

## د مکفول بهٖ (مکفول بنفسه) د مرتد کېدلو حکم

قَالَ: وَكَذَا إِذَا ارْتَدَّ وَالْعِيَاذُ بِاللهِ فرمایي: او همدارنګه که مکفول بنفسه (نعوذ بالله) مرتد سي وَلَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ او دارُ الحرب ته ولاړ سي وَهٰذَا لِأَنَّهُ عَاجِزٌ فِي الْمُدَّةِ او دا ځکه چي کفیل په دومره مودت کي عاجز دی فَيُنْظَرُ نو ځکه هغه ته به مهلت ورکول کیږي كَالَّذِيْ أُعْسِرَ لکه هغه مقروض [ته چي مهلت ورکول کیږي] کوم چي غریب [مفلس] سي وَلَوْ سَلَّمَهُ قَبْلَ ذٰلِكَ او که کفیل له مُعیَن [ټاکلي] وخت څخه مخکي مکفول بنفسه ور وسپاري بَرِئَ نو [هم] بري کیږي لِأَنَّ الْأَجَلَ حَقُّهُ ځکه چي میعاد د کفیل حق دی فَيَمْلِكُ إِسْقَاطَهُ نو ځکه هغه به د میعاد ساقطولو ملکیت [اختیار] هم لري كَمَا فِي الدَّيْنِ الْمُؤَجَّلِ لکه څرنګه چي په میعادي [اېښه داره] قرض کي [مقروض ته اختیار وي].

**اللغات**: ﴿لحق﴾ د سمع ماضي ده: لاحق کېدل، متصل کېدل، ور سره یو ځای کېدل (یو څوک د بل چا سره یو ځای کېدل)، ﴿أعسر﴾ د افعال ماضي مجهوله ده: تنګلاسي کېدل، مفلس او غریب کېدل، ﴿سلّم﴾ د تفعیل ماضي ده: ورسپارل (پېشول)، ﴿أجل﴾ ټاکل سوی مودت، میعاد.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مکفول بنفسه (نعوذ بالله منه) مرتد سي دارُ الحرب ته ولاړ سي، او له دارُ الحرب څخه د هغه د واپس راوستلو هیڅ صورت نه جوړېږي، نو په دې صورت کي هم کي د

كفيل له ذمې څخه د هغه د حاضرولو مطالبه ساقطيږي؛ ځکه چې دارُ الحرب ته د هغه د تللو په وجه كفيل د هغه له حاضرولو څخه عاجز سو. لهذا څرنګه چې مفلس مقروض ته مهلت ورکول کيږي، همداسې به دغه كفيل ته هم مهلت ورکول کيږي.

ولو سلمه إلخ: او كه چيرې كفيل له ټاکلي وخت څخه مخکې مکفول بنفسه حاضر کړي او مکفول لهٗ ته يې وسپاري نو دا صحيح دي او كفيل بري کيږي؛ ځکه چې ميعاد (ټاکل سوى مودت) د كفيل حق دى. لهذا هغه ته به د ميعاد ساقطولو حق او اختيار هم وي. لکه کله چې قرض ورکونکى او مقروض يو مودت او نېټه وټاکي بيا مقروض له ټاکلي مودت څخه مخکې قرض اداء کړي نو هغه بري کيږي (غاړې يې خلاصيږي)؛ همداسې به دلته هم له ټاکلي مودت څخه مخکې د مکفول بنفسه په حاضرولو سره كفيل بري کيږي.

## داسې ځاى ته مکفول بهٖ حاضرول چې هلته مکفول لهٗ پر مخاصمه قادر وي (حکم)

قَالَ: وَإِذَا أَحْضَرَهُ وَسَلَّمَهُ فِي مَكَانٍ يَقْدِرُ الْمَكْفُوْلُ لَهٗ أَنْ يُخَاصِمَهُ فِيْهِ فرمايي: او كه كفيل مکفول بنفسه داسې ځاى ته حاضر کړي چې هلته مکفول لهٗ پر دې قدرت لري چې د هغه سره مخاصمه وکړي مِثْلَ أَنْ يَكُوْنَ فِي مِصْرٍ مثلاً په ښار کې دننه وي بَرِئَ الْكَفِيلُ مِنَ الْكَفَالَةِ نو كفيل له كفالت څخه بري کيږي لِأَنَّهُ أَتَى بِمَا الْتَزَمَهُ ځکه هغه چې د کوم شي التزام کړی وو هغه يې پوره کړی وَحَصَلَ الْمَقْصُودُ بِهِ او په داسې کولو سره مقصود [هم] حاصل سو وَهٰذَا لِأَنَّهُ مَا الْتَزَمَ التَّسْلِيمَ إِلَّا مَرَّةً او دا ځکه چې هغه فقط يو ځل د ورسپارلو التزام کړی وو.

**اللغات:** ﴿أحضره﴾ د افعال ماضي ده: حاضرول، پېښول (وړاندې کول). ﴿التزم﴾ د افتعال ماضي ده: پر ځان لازمول (په خپله غاړه اخيستل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه كفيل داسې ځاى ته مکفول بنفسه حاضر کړي او مکفول لهٗ ته يې وسپاري چې هلته د مکفول لهٗ لپاره محاکمه او مخاصمه کول ممکن وي، مثلاً په ښار کې يې ور وسپاري (ځکه په ښار کې مکفول لهٗ پر دې قدرت لري چې مکفول بنفسه د قاضي او حاکم مجلس ته بوځي او د قاضي مخته مخاصمه او دعوىٰ وکړي)، نو په دې صورت کې كفيل بري کيږي او كفاله اداء کيږي؛ برابره ده مکفول لهٗ دا سپارل قبول کړي او که نه؛ ځکه كفيل چې د کوم شي التزام کړی وو، يعني د مکفول بنفسه حاضرول، هغه شى كفيل اداء کړی. او څرنګه چې يې په ښار کې اداء کړی چې هلته قاضي او

حاکم هم اوسيږي، نو ځکه د کفاله بالنفس مقصود هم حاصل سو (د کفاله بالنفس مقصود "د قاضي په دبار کي مخاصمة او محاکمه کول" دي)، او د کفاله مقصود په دې وجه هم حاصل سو چي کفيل پر ځان فقط يو ځل ورسپارل لازم کړي وه او يو ځل هغه ور وسپارى، لنډه‌دا چي د کفاله مقصود حاصل سو، نو ځکه به کفيل بري کيږي.

**فايده**: د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په هغه ښار کي د کفيل ورسپارل شرط دي په کوم ښار کي چي هغه کفيل جوړ سوى وي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا شرط نه دي، بلکي په کوم ښار کي چي هم کفيل مکفول بنفسه ور وسپاري، نو هغه بري کيږي.

## د قاضي په مجلس کي د مکفول به حاضرولو شرط لګول او بيا په بل ځاى کي هغه ورسپارل (حکم)

وَإِذَا كَفَلَ عَلَى أَنْ يُسَلِّمَهُ فِي مَجْلِسِ الْقَاضِيْ فرمايي: و که څوک پر دې شرط کفيل سي چي هغه به مکفول بنفسه د قاضي په مجلس کي ور سپاري فَسَلَّمَهُ فِي السُّوقِ بيا هغه په بازار کي ور وسپارى بَرِئَ نو بري کيږي لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ ځکه چي مقصود حاصل سو وَقِيْلَ[*]: فِيْ زَمَانِنَا لَا يَبْرَأُ او ويل سوي دي: چي زموږ په زمانه کي نه بري کيږي لِأَنَّ الظَّاهِرَ الْمُعَاوَنَةُ عَلَى الِامْتِنَاعِ لَا عَلَى الْإِحْضَارِ ځکه ظاهري حالت دا دى چي [خلک به] پر نه نيولو مدد کوي، پر حاضرولو به مدد نه کوي فَكَانَ التَّقْيِيْدُ مُفِيْدًا نو ځکه به قيد لګول فايده من وي.

**اللغات**: ﴿کفل﴾ د نصر د باب ماضي ده: کفيل کېدل، ذمه واري اخيستل (ذمه وار کېدل)، ﴿سوق﴾ بازار، ﴿امتناع﴾ د افتعال مصدر دى: منع کېدل، ﴿تقييد﴾ د تفعيل مصدر دى: مقيد کول، قيد لګول.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دى کـه يو سړى پر دې شرط د مکفول بنفسه د ورسپارلو کفيل سو (يعني دا شرط ولګوي) چي زه هغه د قاضي په مجلس کي تا ته سپارم، لېکن بيا کفيل په بازار کي هغه مکفول لهٗ ته وسپاري، نو په دې صورت کي د کفيل د بري کېدلو په هکله دوه قوله دي: ① ... کفيل بري کيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي د مکفول لهٗ مقصود يعني "قدرت على المحاکمه" حاصل

[*] القول الراجح: هو هذا القول (قول المتاخرين)، ويجب أن يفتى به، كذا ذكر فى البحر الرائق (ج:۶، ص:۲۱۱). والدر المختار (ج:۴، ص:۲۸۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۹۰]

سو. يعني اوس مکفول لهٔ پر دې قادر دی چې مکفول بنفسه د قاضي مجلس ته بوځي او د هغه سره مخاصمه او محاکمه وکړي. ② ... د متأخرينو علماؤ قول دا دی چې که کفيل دا شرط لګولی وي چې زه د قاضي په مجلس کي مکفول بنفسه ور سپارم، نو زموږ په زمانه کي د قاضي له مجلس څخه بغير په بل ځای کي د مکفول بنفسه په ورسپارلو سره کفيل نه بري کيږي؛ ځکه نن سبا د فتنې او فساد زمانه ده، لهذا دا ډېره ممکنه ده چې که کفيل د قاضي له مجلس څخه بغير په بازار يا داسي بل ځای کي هغه مکفول لهٔ ته وسپاري او هغه (مکفول بنفسه) شور جوړ کړي او د خپل مظلوميت نعرې وهي نو خلک به هغه د مکفول لهٔ څخه خلاص کړي، د هغه په لاس به يې نه ورکوي، او په دې باره کي به هيڅوک د مکفول لهٔ مدد نه کوي چې مکفول بنفسه د قاضي مجلس ته حاضر کړی سي، لهذا کله چې خبره داسي ده نو د مکفول بنفسه حاضرول به د قاضي په مجلس سره مقيد کول مفيد وي، او کله چې په مجلس سره مقيد کول مفيد دي، نو ځکه په دې صورت کي به د قاضي له مجلس څخه بغير بل ځای ته د مکفول بنفسه حاضرول معتبر نه وي او په دې سره به کفيل نه بري کيږي.

## په دښت او صحرا کي د مکفول بهٖ ورسپارل (حکم او اختلاف)

وَإِنْ سَلَّمَهُ فِي بَرِّيَّةٍ او که کفيل مکفول بنفسه [مکفول بهٖ] په يو دښت کي ور وسپاري لَمْ يَبْرَأْ نو نه بري کيږي لِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى الْمُخَاصَمَةِ فِيهَا ځکه چې مکفول لهٔ په دښت کي پر مخاصمه کولو قدرت نه لري فَلَمْ يَحْصُلِ الْمَقْصُودُ نو ځکه مقصود حاصل نه سو وَكَذَا إِذَا سَلَّمَهُ فِي سَوَادٍ او همدارنګه کله چې په صحرايي علاقه [صحرايي کلي] کي هغه ور وسپاري لِعَدَمِ قَاضٍ يَفْصِلُ الْحُكْمَ فِيهِ ځکه چې هلته داسي قاضي نه وي کوم چې د حکم فيصله وکړي وَلَوْ سَلَّمَ فِي مِصْرٍ آخَرَ غَيْرِ الْمِصْرِ الَّذِي كَفَلَ فِيهِ او که کفيل په بل ښار کي مکفول بنفسه ور وسپاري [يعني] له هغه ښار څخه بغير په کوم کي چې کفيل سوی وي [يعني د کفيل کېدلو له ښار څخه بغير په بل ښار کي يې ور وسپاري] بَرِئَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز بري کيږي لِلْقُدْرَةِ عَلَى الْمُخَاصَمَةِ فِيهِ ځکه چې په ښار کي د مخاصمه قدرت موجود دی [يعني مکفول لهٔ په ښار کي پر مخاصمه کولو قادر دی] وَعِنْدَهُمَا ﷺ لَا يَبْرَأُ او د

---

ⓐ القول الراجح: قول الصاحبين رحمهما الله، كما ذكر في البحر الرائق (ج:۶، ص:۲۱۱). وفي رد المختار (ج:۴، ص:۲۹۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۹۱]

صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز نه بري كيږي لِأَنَّهُ قَدْ تَكُوْنُ شُهُوْدُهُ فِيمَا عَيَّنَهُ ځکه ځيني وخت د مکفول لهٔ گواهان په هماغه ښار کي وي کوم چي هغه مُتعيّن کړی وي وَلَوْ سَلَّمَهُ فِي السِّجْنِ وَقَدْ حَبَسَهُ غَيْرُ الطَّالِبِ او که کفيل په بنديخانه کي مکفول بنفسه ور وسپاري، حال دا چي هغه د مکفول لهٔ شخخه بغير بل چا بندي کړی وي لَا يَبْرَأُ نو کفيل نه بري کيږي لِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى الْمُخَاصَمَةِ فِيه ځکه چي مکفول لهٔ په بنديخانه کي پر مخاصمه قدرت نه لري.

**اللغات**: ﴿برية﴾ دښت، صحرا، بيابان. ﴿سواد﴾ د ښار اطراف، د صحرا کلي (د صحرا سيمه او علاقه، صحرايي مېنه).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که کفيل مکفول بنفسه په يو دښت او صحرا کي مکفول لهٔ ته وسپاري، يا په صحرايي سيمه او علاقه کي يې ور وسپاري، نو په دې دواړو صورتونو کي بالاتفاق کفيل له کفالة شخخه نه بري کيږي؛ ځکه چي مکفول لهٔ په دښت کي د مکفول بنفسه سره مخاصمه نه سي کولای، او ښکاره خبره ده چي کله هغه مخاصمه نه سي کولای، نو د کفالة مقصود به حاصل نه سي، همدارنګه په صحرايي سيمه او علاقه کي په ورسپارلو سره هم مقصود نه حاصليږي؛ ځکه په صحرايي علاقو (يعني د ښار په اطرافو) کي قاضي او حاکم نه وي چي د يو حکم او مسئلې په هکله فيصله وکړي او حکم نافذ کړي، لهذا هلته هم مخاصمه نه سي کېدلای، نو ځکه په دې دواړو ځايونو کي به د مکفول بنفسه په ورسپارلو سره کفيل نه بري کيږي.

**ولوسلم إلخ**: د دې حاصل دا دی که کفالة په هلمند کي منعقد سوې وي او کفيل په کندهار کي مکفول بنفسه ور وسپاري، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز کفيل بري کيږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز نه بري کيږي.

د امام صاحب دليل دا دی چي په کفالة سره د مکفول لهٔ مقصد "قدرت على المخاصمه" دی، او دا کار په هر ښار کي ممکن دی، نو ځکه که له مُتعيّن ښار (يعني د کفالت له ښار) شخخه بغير کفيل په بل ښار کي مکفول بنفسه ور وسپاري، نو هغه به بري کيږي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي ځيني وخت د مکفول لهٔ گواهان په هماغه ښار کي وي کوم ښار چي هغه مُتعيّن کړی وي او بل ښار ته د گواهانو حاضرول مشکل وي. نو ځکه په دې حواله

سره به په متعين ښار کې د مکفول بنفسه ورسپارل ضروري وي، او که په بل ښار کې يې ور وسپاري، نو هغه به نه بري کيږي.

ولوسلمه إلخ: فرمايي که کفيل مکفول بنفسه په بنديخانه کې ور وسپاري، او مکفول بنفسه بل چا بندي کړی وي، طالب (مکفول لهٗ) نه وي بندي کړی، نو په دې صورت کې هم کفيل نه بري کيږي؛ ځکه چې دلته هم د کفاله مقصود حاصل نه سو، ځکه مکفول لهٗ په بنديخانه کې د مکفول بنفسه سره پر مخاصمه کولو قادر نه دی. لېکن که مکفول بنفسه بل چا نه بلکې مکفول لهٗ بندي کړی وي (يعني د مکفول لهٗ په وجه قاضي قيد کړی وي)، نو په دې صورت کې کفيل بري کيږي.

## د مکفول بهٖ (مکفول بنفسه) د مرګ حکم

قَالَ: وَإِذَا مَاتَ الْمَكْفُوْلُ بِهٖ فرمايي: او کله چې مکفول بهٖ [مکفول بنفسه] مړ سي بَرِئَ الْكَفِيْلُ بِالنَّفْسِ مِنَ الْكَفَالَةِ نو کفيل بالنفس له کفاله څخه بري کيږي لِأَنَّهٗ عَجَزَ عَنْ إِحْضَارِهٖ ځکه چې کفيل د هغه حاضرولو څخه عاجز سو وَلِأَنَّهٗ سَقَطَ الْحُضُوْرُ عَنِ الْأَصِيْلِ او ځکه چې [په خپله] له مکفول بنفسه څخه حاضرېدل ساقط سوه فَيَسْقُطُ الْإِحْضَارُ عَنِ الْكَفِيْلِ نو ځکه له کفيل څخه به حاضرول [هم] ساقطيږي وَكَذَا إِذَا مَاتَ الْكَفِيْلُ او همدارنګه کله چې کفيل مړ سي لِأَنَّهٗ لَمْ يَبْقَ قَادِرًا عَلٰى تَسْلِيْمِ الْمَكْفُوْلِ بِنَفْسِهٖ ځکه چې [په دې صورت کې] هغه د مکفول بنفسه پر ورسپارلو قادر پاته نه سو وَمَالُهٗ لَا يَصْلُحُ لِإِيْفَاءِ هٰذَا الْوَاجِبِ او د هغه مال د دغه واجب د اداء کولو صلاحيت نه لري بِخِلَافِ الْكَفِيْلِ بِالْمَالِ په خلاف د کفيل بالمال وَلَوْ مَاتَ الْمَكْفُوْلُ لَهٗ او که چيري مکفول لهٗ مړ سي فَلِلْوَصِيِّ أَنْ يُطَالِبَ الْكَفِيْلَ نو د هغه وصي ته دا حق سته چې له کفيل څخه مطالبه وکړي فَإِنْ لَمْ يَكُنْ فَلِوَارِثِهٖ او که چيري [د مکفول لهٗ] وصي نه وي نو د هغه وارث [ميراث خور] ته دا حق سته لِقِيَامِهٖ مَقَامَ الْمَيِّتِ ځکه چې هغه [يعني وصي او وارث] د مړي قائم مقام دي.

**اللغات**: ﴿عجز﴾ د نصر ماضي ده: عاجزه کېدل، ناتوانه کېدل، ﴿إيفاء﴾ د افعال مصدر دی: پوره کول، پوره اداء کول. ﴿وَصِي﴾ چا ته چې وصيت سوی وي (چا ته چې مړي د يو کار وصيت کړی وي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مکفول بنفسه (مکفول بهٖ) مړ سي، نو کفيل له کفالت څخه بري کيږي او د هغه له غاړي څخه د مکفول بنفسه د حاضرولو ذمه واري ساقطيږي؛ ځکه چي د مکفول بنفسه د مړه کېدلو په وجه کفيل د هغه له ورسپارلو څخه عاجز او ناتوانه سو. او بل دليل دا دی چي کله مکفول بنفسه مړ سو نو له هغه څخه حاضرېدل ساقط سوه، او کله چي له مکفول بنفسه څخه حاضرېدل ساقط سوه نو له کفيل څخه به د هغه حاضرول هم ساقطيږي؛ ځکه چي د اصيل (مکفول بنفسه) برائت د کفيل برائت واجبوي.

وكذا إذا مات إلخ: فرمايي که کفيل مړ سي نو هم له هغه څخه د مکفول بنفسه د حاضرولو ذمه واري ساقطيږي؛ ځکه چي د مړه کېدلو په وجه اوس کفيل د مکفول بنفسه پر ورسپارلو قادر پاته نه سو، نو ځکه په دې صورت کي به هم د حاضرولو (احضار) حکم ساقطيږي.

ومَالُه لايصلح إلخ: دا د يو اعتراض جواب دی، اعتراض دا دی چي کله کفيل مړ سي، نو د هغه مال خو موجود وي، لهذا د هغه له مال څخه د مکفول لهٗ قرض اداء کول پکار دي.

د دې جواب دا دی چي دا کفاله "کفاله بالنفس" ده، او مال د کفاله بالنفس نه سي قائم مقام کېدای؛ ځکه چي کفيل د مکفول بنفسه د حاضرولو کفالت قبول کړی دی، نه د مال (يعني کفيل فقط د مکفول بنفسه د حاضرولو ذمه واري اخيستې ده، نه د هغه د مال [قرض] اداء کولو)، او مال د نفس نائب کېدای هم نه سي؛ ځکه چي په نفس او مال کي تضاد دی، لهذا د کفيل تر مرګ وروسته د هغه له مال څخه د مکفول لهٗ قرض نه سي اداء کېدای.

بخلاف الكفيل إلخ: فرمايي که چيري کفيل د کفاله بالمال کفالت قبول کړی وي، نو د هغه تر مرګ وروسته کفاله نه ساقطيږي؛ ځکه چي دا د مال کفاله ده، او مال د بل مال نائب کېدای سي، نو ځکه به د کفيل له ميراث څخه د مکفول لهٗ قرض اداء کيږي، (او بيا به د کفيل وارثان له مکفول عنهٗ څخه هغه اخلي، په دې شرط چي کفيل د مکفول عنهٗ په حکم سره کفيل جوړ سوی وي).

ولومات المكفول لهٗ إلخ: او کله چي مکفول لهٗ مړ سي نو د مکفول لهٗ وصي ته دا حق سته چي له کفيل څخه مطالبه وکړي. او که چيري د مکفول لهٗ هيڅ وصي نه وي نو د هغه وارثانو ته دا حق حاصليږي؛ ځکه چي په دې دواړو (وصي، وراث) کي هريو د خپل مړي قائم مقام وي، نو ځکه د مکفول لهٗ تر مرګ وروسته به هريوه ته على الترتيب له کفيل څخه د مطالبه کولو حق او اختيار وي.

## په كفاله بالنفس كي د بري كېدلو يو صورت

قَالَ: وَمَنْ كَفَلَ بِنَفْسٍ آخَرَ وَلَمْ يَقُلْ: إِذَا دَفَعْتُ إِلَيْكَ فَأَنَا بَرِيْءٌ فرمايي: او كه يو څوک د بل چا د نفس كفيل سي او [مكفول لهٗ ته داسي] نه ووايي: كله چي زه تا ته [مكفول بنفسه] وسپارم نو زه بري يم فَدَفَعَهُ إِلَيْهِ بيا هغه مكفول لهٗ ته مكفول بنفسه وسپاري فَهُوَ بَرِيْءٌ نو هغه بري دی [يعني بري كيږي] لِأَنَّهُ مُوْجَبُ التَّصَرُّفِ ځكه چي بري كېدل د تصرف مُوجب دی فَيَثْبُتُ بِدُوْنِ التَّنْصِيْصِ عَلَيْهِ لهذا د هغه له صراحت كولو څخه بغير به [هم] بري كېدل ثابتيږي وَلَا يُشْتَرَطُ قَبُوْلُ الطَّالِبِ التَّسْلِيْمَ او د مكفول لهٗ سپارل قبلول شرط نه دي [يعني د كفيل د بري كېدلو لپاره دا شرط نه دي چي مكفول لهٗ به د هغه سپارل قبلوي] كَمَا فِيْ قَضَاءِ الدَّيْنِ لكه څرنګه چي د قرض په اداء كولو كي دي وَلَوْ سَلَّمَ الْمَكْفُوْلُ بِهِ نَفْسَهُ مِنْ كَفَالَتِهِ او كه چيري مكفول بهٖ [په خپله] خپل ځان د كفالت په وجه [مكفول لهٗ] ته وسپاري صَحَّ نو صحيح دي لِأَنَّهُ مُطَالَبٌ بِالْخُصُوْمَةِ ځكه چي له مكفول بهٖ څخه [هم] د خصومت مطالبه كيږي فَكَانَ لَهُ وِلَايَةُ الدَّفْعِ نو ځكه هغه لره به د خصومت دفع كولو ولايت [هم] وي وَكَذَا إِذَا سَلَّمَهُ إِلَيْهِ وَكِيْلُ الْكَفِيْلِ أَوْ رَسُوْلُهُ او همدارنګه كله چي د كفيل وكيل يا د هغه قاصد مكفول لهٗ ته مكفول بهٖ وسپاري لِقِيَامِهِمَا مَقَامَهُ ځكه چي دوی دواړه د كفيل قائم مقام دي.

**اللغات:** ﴿موجب﴾ د افعال مفعول دی: واجب كړی سوی، تقاضا، نتيجه، ﴿تنصيص﴾ د تفعيل مصدر دی: صراحت كول (په ښكاره لفظو سره بيانول. په وضاحت سره بيانول)، ﴿رسول﴾ پېغام رسونكی، قاصد (خبر وړونكی)، استازی.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی كه يو سړی د بل چا د نفس (يعني د مكفول بنفسه) د حاضرولو كفيل وي لېكن دا سړی (كفيل) مكفول لهٗ ته داسي نه ووايي چي كله زه مكفول بنفسه تا ته وسپارم نو زه به بري ي؛ بيا كفيل مكفول بنفسه مكفول لهٗ ته وسپاري، نو كفيل بري كيږي؛ ځكه چي د كفاله بالنفس موجب دا دی چي كفيل كله مكفول بنفسه ور وسپاري نو هغه له كفالت څخه بري كيږي، او څرنګه چي دلته د كفيل له طرفه د مكفول بنفسه ور سپارل موجود سو، نو ځكه كفيل به هم بري كيږي.

پاته سوه دا خبره چي دلته خو كفيل د كفاله بالنفس د مُوجب (يعني د برائت عند التسليم) صراحت نه دی كړی (يعني هغه داسي نه دي ويلي چي كله زه مكفول بنفسه تا ته وسپارم نو زه به بري يم).

د دې جواب دا دی چي دا شرط نه دي چي د مُوجب د ثابتېدلو لپاره د مُوجب صراحت وکړی سي، نو ځکه برائت (کوم چي د کفاله بالنفس عند التسليم موجب دی. هغه) به له صراحت کولو څخه بغير هم ثابتيږي. لکه په رانيولو (شراء) سره چي د مشتري ملکيت په مبيع کي ثابتيږي؛ ځکه چي ثبوتُ الملک د عقد شراء مُوجب دی، او د مُوجب د ثبوت لپاره د هغه صراحت کول شرط نه دي. يعني د ملکيت ثابتېدلو لپاره دا ويل شرط نه دي چي که زه دا شی رانيسم نو زه به د هغه مالک يم. او لکه په صحيح نکاح سره چي د جماع حلال والي ثابتيږي (يعني په صحيح نکاح سره جماع حلاليږي)، ځکه د صحيح نکاح مُوجب د جماع حلال والی دی، او د نکاح د مُوجب ثابتېدلو لپاره د هغه صراحت کول شرط نه دي (يعني داسي ويل شرط نه دي: که زه نکاح وکړم نو زه به د جماع مالک او اختيار لرونکی يم. بښکاره خبره ده چي داسي ويل بالکل شرط نه دي). لهذا څرنګه چي د کفيل بري کېدل (برائت) هم عند التسليم د کفاله بالنفس مُوجب دي، نو ځکه د مکفول بنفسه په ورسپارلو سره به سمدستي کفيل بري کيږي، برابره هغه د بري کېدلو (برائت) صراحت کړی وي، که نه وي.

ولا يشترط قبول إلخ: فرمايي کله چي کفيل مکفول لهٔ ته مکفول بنفسه ور وسپاري، نو د مکفول لهٔ قبلول شرط نه دي، يعني برابره ده مکفول لهٔ دا سپارل قبول کړي او که نه، په دواړو صورتونو کي کفيل بري کيږي. لکه کله چي مقروض د قرض مالک (قرضخواه) ته قرض وسپاري، نو مقروض له قرض څخه بري کيږي، برابره ده قرضخواه پر خپل قرض قبضه وکړي، که نه. همداسي به د مکفول بنفسه په ورسپارلو سره هم کفيل بري کيږي، برابره ده مکفول لهٔ هغه قبول کړي، که نه؛ دليل دا دی چي د کفيل ذمه د هغه شي له اداء کولو څخه بري کيږي د کوم شي د اداء کولو التزام چي هغه کړی وي، او دا بري کېدل (برائت) د هغه د ملګري يعني د مکفول لهٔ پر قبول نه موقوف کيږي؛ ځکه که چيري هغه د مکفول لهٔ پر قبول موقوف کړی سي او بيا مکفول لهٔ د قبول څخه منع سي نو په دې کي به د کفيل نقصان وي، او شريعت حتی الامکان له هر کس څخه نقصان او ضرر ليري کوي، نو ځکه له کفيل څخه د نقصان ليري کولو لپاره د مکفول لهٔ پر قبول برائت نه دی موقوف کړی سوی.

ولو سلّم إلخ: فرمايي که مکفول بنفسه په خپله مکفول لهٔ ته خپل ځان د کفيل له طرفه وسپاري، نو دا هم صحيح دي، يعني په دې صورت کي هم کفيل بري کيږي؛ ځکه چي مکفول بنفسه په خپله هم مطالب دی، يعني مکفول لهٔ چي څرنګه د کفيل څخه مطالبه کولای سي، همداسي د مکفول بنفسه څخه هم مطالبه کولای سي، او کله چي د مکفول بنفسه څخه هم د خصومت مطالبه سته، نو هغه ته به د خصومت ليري کولو اختيار هم حاصل وي. او څرنګه پر مکفول بنفسه په دوو جهتونو سره د خپل

ځان ورسپارل واجب دي؛ يو د خپل ځان له طرفه او دويم د کفيل له طرفه، لهذا تر څو چې مکفول بنفسه دا صراحت نه وکړي چې زه خپل ځان د کفيل له طرفه تا ته سپارم، نو تر هغه وخته دا ورسپارل د کفيل له طرفه نه شمارل کيږي او کفيل نه بري کيږي، لېکن کله چې هغه د دې وضاحت وکړي چې زه خپل ځان د کفيل له طرفه درته سپارم، نو دا ورسپارل د کفيل له طرفه کيږي او کفيل بري کيږي.

وكذا إلخ: او که چيرې د کفيل وکيل يا د هغه قاصد (استازي) مکفول لهٔ ته مکفول بنفسه وسپاري، نو په دې صورت کې هم کفيل بري کيږي؛ ځکه چې وکيل او قاصد دواړه د کفيل قائم مقام دي، او د قائم مقام فعل د اصل فعل شمارل کيږي، نو ځکه دا ورسپارل په حقيقت کې د کفيل ور سپارل دي، او د کفيل په ورسپارلو سره کفيل بري کيږي، نو ځکه د کفيل د وکيل او قاصد په ورسپارلو سره به هم کفيل بري کيږي.

## كفاله بالنفس والمال

قَالَ: فَإِنْ تَكَفَّلَ بِنَفْسِهِ عَلَى أَنَّهُ إِنْ لَمْ يُوَافِ بِهِ إِلَى وَقْتِ كَذَا فَهُوَ ضَامِنٌ لِمَا عَلَيْهِ فرمايي: او که يو څوک پر دې شرط د يو چا د نفس کفيل سي چې که دئ تر فلانکي وخته پورې هغه حاضر نه کړي نو دئ ضامن دی د هغه څه کوم چې پر مکفول بنفسه دي [يعني داسې ووايي: که په فلانکي وخت کې زه هغه حاضر نه کړم نو پر مکفول بنفسه چې ستا [مکفول لهٔ] څه باندې د هغه ذمه وار زه يم] وَهُوَ أَلْفٌ او هغه [مثلاً] زر درهمه وي فَلَمْ يُحْضِرْهُ إِلَى ذَلِكَ الْوَقْتِ [لېکن] بيا کفيل تر هغه وخته پورې مکفول بنفسه حاضر نه کړي لَزِمَهُ ضَمَانُ الْمَالِ نو پر کفيل د مال ضمان لازميږي لِأَنَّ الْكَفَالَةَ بِالْمَالِ مُعَلَّقَةٌ بِشَرْطِ عَدَمِ الْمُوَافَاةِ ځکه چې [دلته] کفاله بالمال د مکفول بنفسه د نه حاضرولو پر شرط معلقه ده وَهَذَا التَّعْلِيقُ صَحِيحٌ او دا معلق کول صحيح دي فَإِذَا وُجِدَ الشَّرْطُ نو کله چې شرط موجود سي لَزِمَهُ الْمَالُ نو پر کفيل به مال لازميږي وَلَا يَبْرَأُ عَنِ الْكَفَالَةِ بِالنَّفْسِ [لېکن] دا کفيل له کفاله بالنفس څخه نه بري کيږي لِأَنَّ وُجُوبَ الْمَالِ عَلَيْهِ بِالْكَفَالَةِ لَا يُنَافِي الْكَفَالَةَ بِنَفْسِهِ ځکه چې د کفاله په وجه پر کفيل مال لازمېدل د کفاله بنفسه منافي نه دي إِذْ كُلٌّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا لِلتَّوَثُّقِ ځکه له دې دواړو [کفاله بالمال او کفاله بالنفس] څخه هر يو د اعتماد [او باور] لپاره وي وَقَالَ: الشَّافِعِيُّ: لَا تَصِحُّ هَذِهِ الْكَفَالَةُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا کفاله [بالمال] نه صحيح کيږي لِأَنَّهُ تَعْلِيقُ سَبَبِ وُجُوبِ الْمَالِ

بِالْخَطَرِ ځکه چي دا [داسي ده لکه] د مال د وجوب سبب پر يو متردد [شکمن] امر معلق کول فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ نو دا کفاله د بيع سره مشابه سوه وَلَنَا: أَنَّهُ يُشْبِهُ الْبَيْعَ زموږ [جوابًا] دليل دا دی: چي دا د بيع سره هم مشابه ده وَيُشْبِهُ النَّذْرَ او د نذر سره هم مشابه ده مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ الْتِزَامٌ په دې حيثيت سره [کفاله بالمال د نذر سره مشابه ده چي هغه په شروع کي تبرعًا] پر ځان لازمول دي فَقُلْنَا: لَا يَصِحُّ تَعْلِيقُهُ بِمُطْلَقِ الشَّرْطِ نو ځکه موږ وايو: چي هغه [کفاله بالمال] پر مطلق [غيرِ متعارف] شرط معلق کول صحيح نه دي كَهُبُوبِ الرِّيحِ وَنَحْوِهِ لکه د هوا چلېدل او داسي نور وَيَصِحُّ بِشَرْطٍ مُتَعَارَفٍ او پر متعارف شرط د هغه معلق کول صحيح دي عَمَلًا بِالشَّبَهَيْنِ د دې لپاره چي پر دواړو مشابهتونو عمل وسي وَالتَّعْلِيقُ بِعَدَمِ الْمُوَافَاةِ مُتَعَارَفٌ او د نه حاضرولو [وعده نه پوره کولو] پر شرط معلق کول متعارف دي.

**اللغات**: ﴿لم يُوافِ﴾ د مفاعلې د باب جحد صيغه ده، وَافٰى يُوَافِيْ مُوَافَاةً: وعده پوره کول، مراد ځني حاضرول دي، نو د "لم يُوافِ" معنیٰ ده: که دئ هغه حاضر نه کړي، ﴿توثّق﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: اعتماد کول، باور کول، مضبوطېدل، ﴿إلتزام﴾ د افتعال مصدر دی: پر ځان لازمول (پر نمه لازمول)، ﴿هبوب﴾ د فتح د باب مصدر دی: هوا چلېدل (هوا الوتل)، باد چلېدل، ﴿متعارف﴾ د تفعّل د باب مفعول دی: په عرف کي رواج (مروّج)، د عرف مطابق.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که (مثلاً) د حامد پر زيد زر درهمه قرض باندي وي، او په دې مينځ کي خالد د زيد کفيل بالنفس جوړ سو او حامد ته يې داسي وويل: که ما تر فلانکي وخته پوري زيد (مکفول بنفسه) حاضر نه کړی نو ستا کوم مال چي پر هغه (مکفول بنفسه) واجب دی يعني زر درهمه د هغه ضامن زه يم، زه يې در کوم؛ او کله چي هغه وخت پوره سو، نو کفيل (يعني خالد) هغه حاضر نه کړی، يعني تر هغه وخته پوري يې مکفول بنفسه (زيد) حاضر نه کړی ، نو په دې صورت کي کفيل د مکفول لهٔ (حامد) لپاره د زرو درهمو ضامن کيږي (يعني کفيل به هغه ته زر درهمه ورکوي)، لېکن د ضامن کېدلو سره، سره بيا هم کفيل له کفاله بالنفس څخه نه بري کيږي، بلکي د مکفول بنفسه حاضرول اوس هم پر هغه واجب پاتيږي.

دلته دوې مسئلې دي: يوه دا چي دغه پورتنۍ کفاله بالمال صحيح ده، لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا کفاله بالمال صحيح نه ده. دويمه دا چي د مال(زر درهمو) د ضمان اداء کولو باوجود کفاله بالنفس نه باطلیږي او کفيل له کفاله بالنفس څخه نه بري کیږي.

**زموږ دليل:** په اوله مسئله کي زموږ دليل دا دی چي دلته کفاله بالمال د مکفول بنفسه (زيد) د نه حاضرولو پر شرط معلق ده (يعني که ما حاضر نه کړی نو...)، و دا شرط متعارف شرط دی، او کفاله پر متعارف شرط معلق کول صحيح دي، لهذا کله چي کفاله بالمال د نه حاضرولو پر شرط معلق کول صحيح دي، او شرط موجود سو (يعني کفيل هغه حاضر نه کړی). نو ځکه پر کفيل به د مال (زر درهمو) ضمان اداء کول لازم وي.

د دويمي مسئلې دليل دا دی چي د کفاله بالمال او کفاله بالنفس په مينځ کي هيڅ منافات نسته؛ ځکه د دواړو مقصد يو دی، ځکه کفاله بالمال هم د مکفول لهٗ د اعتماد او اطمينان لپاره کيږي، او کفاله بالنفس هم د همدې مقصد لپاره کيږي چي هغه اعتماد وکړي او مطمئن سي، لهذا کله چي په دواړو کي هيڅ منافات نسته بلکي دواړه سره جمع کېدای سي (يعني يو سړی کفيل بالنفس او کفيل بالمال دواړه کېدای سي) نو ځکه کفاله بالمال به کفاله بالنفس نه باطلوي. او کله چي د کفاله بالمال په وجه کفاله بالنفس باطله نه سو، نو ښکاره خبره ده چي کفيل به له کفاله بالنفس څخه نه بري کیږي! (ځکه کفيل به هغه وخت بري کېدلای کله چي د مال د ضمان اداء کولو [کفاله بالمال] په وجه کفاله بالنفس باطلېدای. لېکن تاسو ته معلومه سوه چي د هغه په وجه کفاله نه باطلیږي).

**د امام شافعي دليل:** په اوله مسئله کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي کفاله بالمال پر شرط معلق کول داسي دي لکه د مال د وجوب سبب پر يو متردد (شکمن) امر معلق کول. (د مال د وجوب له سبب څخه مراد کفاله بالمال ده ځکه چي د کفاله بالمال په وجه پر کفيل مال واجبیږي. او له متردد امر څخه مراد شرط دی. ځکه چي د شرط موجودېدل او نه موجودېدل محتمل دي) او کفاله بالمال د مال په لازمېدلو کي د بيع سره مشابه ده، او بيع پر شرط معلق کول جائز نه دي (مثلا که بائع مشتري ته داسي ووايي: که چيري ته دغه ځای ته داخل سوې نو زه دا شی په سل روپۍ پر تا خرڅوم. او مشتري هغه قبول کړي. نو ځای ته په داخلېدلو سره بيع نه ثابتیږي) ځکه چي بيع هم د مال د وجوب سبب ده، او د مال د وجوب سبب پر متردد امر يعني پر شرط معلق کول خمار (قمار) دی، او خمار حرام دی، نو ځکه بيع پر شرط معلق کول هم حرام دي. لهذا کله چي بيع پر شرط معلق کول حرام او ناجائز دي، نو کوم شی چي د بيع سره مشابه دی يعني کفاله بالمال، هغه به هم پر شرط معلق کول حرام او ناجائز وي، نو ځکه موږ (شوافع) وايو چي دلته کفاله بالمال صحيح نه ده (ځکه دلته کفاله بالمال د مکفول بنفسه د نه حاضرولو پر شرط معلق ده).

ولنا إلخ: زموږ له طرفه امام شافعي رحمه الله ته جواب دا دی چي کفاله بالمال فقط د بيع سره مشابه نه ده. بلکي د کفاله بالمال دوه حيثيتونه دي: (۱)... يو دا چي هغه انتهاءً د بيع سره مشابه ده (په دې شرط چي کفيل د مکفول عنه په حکم سره کفيل سوی وي) ځکه په کفاله بالمال کي چي کله کفيل د مکفول عنهٔ څخه هغه مال واپس اخلي کوم چي کفيل د هغه له طرفه مکفول لهٔ ته ورکړی وي. نو دا به مبادلة المال بالمال وګرځي. او تاسو ته معلومه ده چي مبادلة المال بالمال د بيع نوم او تعريف دی. نو ځکه په دې حواله سره دا (کفاله بالمال) د بيع سره مشابه ده. (۲)... دويم حيثيت يې دا دی چي کفاله بالمال ابتداءً د نذر سره مشابه ده، په دې توګه چي کفيل په شروع کي د تبرع په توګه (يعني مفت) پر خپل ځان يو غير لازم شی لازموي، لکه څرنګه چي نذر منونکی پر خپل ځان يو غير لازم شی لازموي. لهذا په دې حواله سره کفاله بالمال د نذر سره مشابه ده. او نذر پر هر ډول شرط معلق کول صحيح دي يعني هم پر متعارف شرط د هغه معلق کول جائز دي او هم پر غير متعارف شرط. (د متعارف شرط مثال: لکه د مکفول بنفسه د نه حاضرولو يا حاضرولو شرط، د غير متعارف شرط مثال: لکه هوا چلېدل، باران اورېدل، په ځای کي داخلېدل، او داسي نور)، د دې په خلاف بيع پر هيڅ ډول شرط معلق کول صحيح نه دي برابره ده هغه متعارف وي او که نه وي. نو اوس د بيع سره د کفال بالمال د مشابه کېدلو تقاضا دا ده چي کفاله بالمال پر هيڅ ډول شرط معلق کول جائز نه وي، او د نذر سره د کفاله بالمال د مشابه کېدلو تقاضا دا ده چي پر هر ډول شرط معلق کول جائز وي، او په دواړو مشابهتونو باندي عمل کول هم ضروري دي. نو ځکه په دواړو مشابهتونو باندي په عمل کولو سره موږ وويل چي د بيع د مشابهت په وجه کفاله بالمال پر غير متعارف شرط معلق کول ناجائز دي او د نذر د مشابهت په وجه کفاله بالمال پر متعارف شرط معلق کول جائز دي. او څرنګه چي د مکفول بنفسه د نه حاضرولو شرط متعارف شرط دی. نو ځکه پر هغه شرط کفاله بالمال معلق کول جائز دي. او کله چي پر هغه کفاله بالمال معلق کول جائز دي. نو په دې صورت کي به کفاله بالمال هم جائز او صحيح وي.

## په پورتني صورت کي د مکفول بنفسه د مرګ حکم

قَالَ: وَمَنْ كَفَلَ بِنَفْسِ رَجُلٍ فرمايي: او که يو څوک د يو سړي د نفس کفيل سي وَقَالَ: إِنْ لَمْ يُوَافِ بِهِ غَدًا فَعَلَيْهِ الْمَالُ او [داسي] ووايي: که چيري دې سبا مکفول بنفسه حاضر نه کړي نو مال پر ده واجب دی فَإِنْ مَاتَ الْمَكْفُولُ عَنْهُ نو که [په دې صورت کي] مکفول عنه [مکفول بنفسه] مړ سي ضَمِنَ الْمَالَ نو کفيل د مال ضامن کيږي [يعني د مال ضمان پر واجبيږي] لِتَحَقُّقِ الشَّرْطِ ځکه چي شرط موجود سو وَهُوَ عَدَمُ الْمُوَافَاةِ او هغه نه حاضرول [وعده نه پوره کول] دي.

**تشريح**: صورت د مسئلې بالکل ښکاره دی چي که يو څوک د بل چا کفيل بالنفس سي، او داسي ووايي: که ما مکفول بنفسه سبا حاضر نه کړی نو ستا کوم مال چي پر مکفول بنفسه باندي دی هغه زه

در کوم، د هغه ضامن زه يم، اوس که په دې صورت کې مکفول عنه (کوم چې مکفول بنفسه هم دی) مړ سي، نو کفيل د مال ضامن کيږي، يعني د مال ضمان پر واجبيږي چې هغه به مکفول لهٔ ته ور کوي، (او کفيل به دا مال د مکفول بنفسه له وارثانو څخه اخلي. که چيري دا کفاله د مکفول بنفسه په حکم سره سوې وه)، پر کفيل د ضمان واجبېدلو دليل دا دی چې دلته د مال د ضامن کېدلو شرط د مکفول بنفسه نه حاضرول دي (يعني کفيل ووېل زه هغه وخت د مال ضامن يم کله زه چې مکفول بنفسه حاضر نه کړی سم)، او دلته دا شرط موجود سو، نو ځکه به پر کفيل ضمان واجبيږي.

## په دعویٰ کې د کفالت حکم

قَالَ: وَمَنِ ادَّعٰى عَلٰى آخَرَ مِائَةَ دِيْنَارٍ بيّنها أَوْ لَمْ يُبَيِّنْهَا فرمايي: که يو شوک پر بل چا د سلو دينارو دعویٰ وکړي [او] د هغوی صفت [کَرَه والي او کوټه والی] بيان کړي، يا يې بيان نه کړي حَتّٰى تَكَفَّلَ بِنَفْسِهٖ رَجُلٌ عَلٰى أَنَّهٗ إِنْ لَمْ يُوَافِ بِهٖ غَدًا فَعَلَيْهِ الْمِائَةُ تر دې چې يو سړی پر دې شرط د هغه [مقروض] کفيل بالنفس سي چې که دئ هغه سبا حاضر نه کړي نو پر ده سل ديناره واجب دي فَلَمْ يُوَافِ بِهٖ غَدًا بيا هغه په سبا ورځ مکفول بنفسه [مقروض] حاضر نه کړي فَعَلَيْهِ الْمِائَةُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ نو پر هغه د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز سل ديناره واجب دي وَقَالَ مُحَمَّدٌ ۞: إِنْ لَمْ يُبَيِّنْهَا حَتّٰى تَكَفَّلَ بِهٖ رَجُلٌ ثُمَّ ادَّعٰى بَعْدَ ذٰلِكَ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې که هغه [د دنانيرو] صفت بيان نه کړي تر دې چې يو سړی د هغه کفيل سي، بيا مدعي تر کفالت وروسته دعویٰ وکړي [يعني بيا مدعي (کوم چې قرضخواه او مکفول لهٔ دئ) تر کفاله وروسته د دنانيرو صفت بيان کړي] لَمْ يُلْتَفَتْ إِلٰى دَعْوَاهُ نو د هغه د دعویٰ وطرف ته به توجه نه کيږي لِأَنَّهٗ عَلَّقَ مَالًا مُطْلَقًا بِخَطَرٍ ځکه چې هغه مطلق مال پر يو متردّد امر معلق کړی دی أَلَا يَرٰى أَنَّهٗ لَمْ يَنْسُبْهُ إِلٰى مَا عَلَيْهِ آيا نه ګوري چې کفيل دا دنانير د هغه [دنانيرو] وطرف ته نه دي منسوب کړي کوم چې پر مکفول عنه واجب دي وَلَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ عَلٰى هٰذَا الْوَجْهِ وَإِنْ بَيَّنَهَا او پر دې طريقه کفاله نه صحيح کيږي، که څه هم [د دنانيرو] صفت بيان کړي وَلِأَنَّهٗ لَمْ يَصِحَّ الدَّعْوٰى مِنْ غَيْرِ بَيَانٍ او ځکه چې د صفت له بيانونو څخه بغير دعویٰ صحيح نه ده فَلَا يَجِبُ إِحْضَارُ النَّفْسِ نو

۞ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في سكب الأنهر على هامش مجمع الأنهر: وقولهما أصح. (ج:۲، ص:۱۲۹)، وكذا أشير إلى ترجيح قولهما في الكتب المعتبرة. [القول الراجح ج:۲، ص:۹۲]

ځکه د نفس [مکفول بنفسه] حاضرول به واجب نه وي وَإِذَا لَمْ يَجِبْ او کله چي حاضرول واجب نه سو
لَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ بِالنَّفْسِ نو کفاله بالنفس به [هم] صحيح نه وي فَلَا تَصِحُّ بِالْمَالِ نو ځکه کفاله
بالمال به [هم] صحيح نه وي لِأَنَّهُ بِنَاءٌ عَلَيْهِ ځکه چي کفاله بالمال پر کفاله بالنفس مبني ده بِخِلَافِ
مَا إِذَا بَيَّنَ په خلاف د هغه صورت کله چي د مال [دنانيرو] صفت بيان کړي وَلَهُمَا: أَنَّ الْمَالَ ذَكَرَ
مُعَرَّفًا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي کفيل مال معرفه ذکر کړی دی فَيَنْصَرِفُ إِلَى مَا عَلَيْهِ نو
ځکه دا به د هغه [دنانيرو] وطرف ته ګرځول کيږي کوم چي پر مکفول عنه واجب دي وَالْعَادَةُ
جَرَتْ بِالْإِجْمَالِ فِي الدَّعَاوَى او په دعواوو کي د اجمالي [مختصر] بيان عادت جاري دی فَتَصِحُّ
الدَّعَاوَى عَلَى اعْتِبَارِ الْبَيَانِ نو [د صفت] د بيان په اعتبار کولو سره به [مجمل] دعواوي صحيح
کيږي فَإِذَا بَيَّنَ نو کله چي هغه [صفت] بيان کړي اِلْتَحَقَ الْبَيَانُ بِأَصْلِ الدَّعْوَى نو دا بيان د اصل
دعوی سره لاحق کيږي فَتَبَيَّنَ صِحَّةُ الْكَفَالَةِ الْأُولَى نو ځکه د اولي کفالې [کفاله بالنفس] صحيح
کېدل واضح سوه فَيَتَرَتَّبُ عَلَيْهَا الثَّانِيَةُ نو پر هغه به دويمه کفاله [کفاله بالمال] هم مُرتّب کيږي [او
صحيح کيږي].

**اللغات**: ﴿ادعى﴾ د افتعال د باب ماضي ده: دعوی کول. ﴿بيّن﴾ د تفعيل ماضي ده: بيانول، واضح
کول. ﴿لم يواف به﴾ د دې معنیٰ مخکي تېره سوه چي مراد ځني "نه حاضرول" دي. ﴿غد﴾ سبا، سبا
ورځ. ﴿لم يلتفت﴾ د افتعال د باب جحد مجهول دی: توجه کول، پاملرنه کول. ﴿خطر﴾ متردد امر
(شکمن کار، شکمن شی).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که (مثلاً) حامد پر زيد د سلو دينارو دعویٰ وکړه (چي زما پر تا سل
ديناره باندي دي)، او بيا يو بل سړی مثلاً خالد د زيد (مقروض) له طرفه کفيل بالنفس سو او حامد ته يې
داسي وويل چي زه سبا مقروض (زيد) خامخا در ته حاضروم، که مي حاضر نه کړی نو سل ديناره پر ما
واجب دي، د هغه ذمه وار زه يم، لېکن په سبا ورځ کفيل بنفسه (يعني خالد) مکفول بنفسه (يعني زيد)
حاضر نه کړی، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د شرط مطابق پر کفيل (خالد) سل ديناره لازميږي،
برابره ده حامد (کوم چي مدعي او قرضخواه [د قرض غوښتونکی] دی) د دعویٰ کولو په وخت کي د خپل
دنانيرو صفت يعني جيد والي او ردي والي (ګړه والی او کوټه والی) بيان کړی وي، که نه وي، په هر

صورت کي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر کفيل سل ديناره لازميږي. امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي که چيري مدعي يعني قرضخواه حامد (کوم چي مکفول لهٔ هم دی) تر هغه وخته د خپل دنانيرو صفت بيان نه کړی تر دې چي بل سړی يعني خالد د مقروض (زيد) کفيل سو. بيا تر کفالت وروسته مدعي (زيد) د خپل دنانيرو صفت يعني جيد والي يا ردي والي بيان کړی، نو د هغه دعویٰ نه صحيح کيږي او د هغه وطرف ته به هيڅ توجه نه کيږي.

لنډه دا چي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز که د دنانيرو مقدار معلوم وي (لکه دلته چي معلوم دی [سل ديناره) نو کفاله صحيح ده، که څه هم د دنانيرو صفت مجهول وي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز که صفت مجهول وي نو مکفول لهٔ (قرضخواه) ته دا حق نسته چي له کفيل څخه مطالبه وکړي، او کله چي دعویٰ مجهوله سوه نو بالکل دعویٰ صحيح نه ده.

**د امام محمد دليل**: په دې هکله د امام محمد رَحِمَهُ الله دوه دليلونه دي، اول دليل دا دی چي کفيل (خالد) چي کوم مال د مکفول بنفسه پر نه حاضرولو معلق کړی دی هغه مطلق مال دی، ځکه چي دلته کفيل سل درهمه د هغه دنانيرو وطرف ته نه دي منسوب کړي کوم چي پر مکفول عنه يعني پر مقروض (زيد) واجب دي. يعني کفيل و مکفول لهٔ قرضخواه (حامد) ته داسي نه دي ويلي: که ما مکفول بنفسه يعني مقروض (زيد) سبا حاضر نه کړی نو پر ما هغه سل ديناره واجب دي کوم چي ستا پر مقروض واجب دي، او کفيل چي پر کوم شي دا کفاله بالمال معلق کړې ده هغه متردد امر دی، يعني داسي امر دی چي د هغه کېدل او نه کېدل محتمل (احتمالي) دي، ځکه شرط د مکفول بنفسه نه حاضرول دي، او هغه بالکل محتمل دي يعني دا هم ممکنه ده چي کفيل مکفول بنفسه حاضر نه کړي او دا هم ممکنه ده چي حاضر يې کړي، لنډه دا چي کفيل خپل په دې کفاله کي مطلق مال پر متردد امر معلق کړی دی، او پر دې طريقه کفاله نه صحيح کيږي که څه هم مدعي يعني قرضخواه (حامد) د دنانيرو صفت بيان کړی وي، او پر دې طريقه کفاله ځکه نه صحيح کيږي چي په دې کي د رشوت احتمال سته؛ ځکه کله چي کفيل دغه سل دنانير د هغه دنانيرو وطرف ته منسوب نه کړل کوم چي پر مکفول بنفسه يعني پر مقروض (زيد) واجب دي، نو په دې کي دوه احتماله دي: يو دا احتمال پکښي سته چي کفيل پر خپل ځان هغه سل دنانير لازم کړي دي کوم چي پر مکفول بنفسه يعني پر مقروض واجب دي. دويم دا احتمال هم پکښي سته چي کفيل ابتداءً د رشوت په توګه پر خپل ځان سل دنانير لازم کړي دي، د دې لپاره چي مکفول لهٔ في الحاله د مکفول بنفسه څخه د قرض مطالبه پرېږدي، يعني کفيل د رشوت په توګه مکفول لهٔ ته سل دنانير ورکړي دي چي مکفول لهٔ (قرضخواه) مکفول

بنفسه ته څه وخت مهلت ورکړي، او ښکاره خبره ده چې د رشوت په توګه پر خپل ځان مال لازمول صحیح نه دي، نو ځکه دا کفاله بالمال به هم صحیح نه وي. (دا خبره داسې هم کېدای سي چې کفیل چې دلته پر خپل ځان کوم مطلق مال لازم کړی دی هغه د رشوت په توګه هم کېدای سي. او دا هغه مال هم کېدای سي کوم چې پر مکفول بنفسه [مقروض] واجب دی. په اول صورت یعني د رشوت په صورت کي مال نه لازمیږي. او په دویم صورت یعني د ضامن کېدلو په صورت کي مال لازمیږي. نو ځکه پر کفیل د مال لازمېدل شکمن سو. حال دا چې پر کفیل مخکي مال لازم نه وو. او څرنګه چې د شک په وجه غیر لازم مال نه لازمیږي. نو ځکه دلته به هم پر کفیل مال نه لازمیږي. او کله چې پر کفیل مال لازم نه سو. نو کفاله بالمال به هم نه صحیح کیږي).

ولأنه لم إلخ: د امام محمد رَحِمَهُ الله دویم دلیل دا دی چې په دې مسئله کي ګرسره کفاله بالنفس صحیح نه ده، ځکه د کفاله بالنفس صحیح والي پر دې خبره موقوف دي چې د مدعي یعني د قرضخواه (حامد) د قرض دعویٰ به صحیح وي، او د قرض دعویٰ هغه وخت صحیح کیږي کله چې د قرض مقدار هم معلوم وي او د هغه صفت یعني جید والي یا ردي والي هم معلوم وي، او دلته مسئله داسې فرض سوې ده چې مدعي یعني قرضخواه د قرض صفت بیان نه کړي، او کله چې هغه صفت بیان نه کړی، نو د صفت نه بیانولو په وجه مدعیٰ بهٖ (قرض) مجهول سو او د مدعیٰ بهٖ د مجهول والي په صورت کي دعویٰ نه صحیح کیږي، نو ځکه د قرضخواه د قرض دعویٰ صحیح نه سوه، او کله چې د قرضخواه دعویٰ صحیح نه سوه، نو پر کفیل د مقروض یعني د مکفول بنفسه حاضرول هم واجب نه سو، او کله چې پر کفیل د مقروض یعني د مکفول بنفسه حاضرول واجب نه سو، نو کفاله بالنفس هم صحیح نه سوه، او کله چې کفاله بالنفس صحیح نه سوه، نو کفاله بالمال به هم صحیح نه وي؛ ځکه چې کفاله بالمال دلته (په دې مسئله کي) پر کفاله بالنفس مبني ده، لهذا کله چې مبنیٰ علیه صحیح نه ده، نو مبنیٰ به څنګه صحیح وي!. د دې په خلاف که قرضخواه (حامد) د قرض د دعویٰ کولو په وخت کي د مدعیٰ بهٖ یعني د قرض د مال صفت هم بیان کړی وي، نو کفاله بالنفس صحیح کیږي، او کله چې کفاله بالنفس صحیح سوه، نو کفاله بالمال به هم صحیح وي (ځکه چې هغه پر کفاله بالنفس مبني ده).

**د شیخینو دلیل**: په دې سلسله کي د شیخینو رَحِمَهُمَا الله هم دوه دلیلونه دي: اول دلیل (کوم چې د امام محمد رَحِمَهُ الله د اول دلیل جواب هم دی) دا دی چې په دې قول کي د کفیل په دې قول "عَلَىٰ أَنَّهُ إِنْ لَّمْ يُوَافِ بِهِ غَدًا فَعَلَيْهِ الْمِائَةُ" کي "الْمِائَةُ" یعني سل دیناره معرف باللام دی، او لام هم د عهد خارجي دی چې د هغه مدخول معین وي، نو له دغه "الْمِائَةُ" څخه مراد هغه سل دیناره دي کوم چې پر مکفول بنفسه یعني پر مقروض واجب دي. او کله چې له "الْمِائَةُ" څخه مراد هماغه سل دینار دي، نو دا سل دینار له

رشوت کېدلو څخه خارج سول. او کله چې د رشوت احتمال پاتـه نه سو. نو دا مال (سل دیناره) به د کفاله په وجه پر کفیل لازم وي. او کله چې پر کفیل لازم سو نو دا کفاله به هم صحیح کیږي.

والعادة إلخ: د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دویم دلیل (کوم چې د امام محمد رَحِمَهُ الله د دویم دلیل جواب هم دی) دا دی چې کله قرضخواه پر مقروض د سلو دینارو دعویٰ وکړه او د هغه صفت یعنې جید والي یا ردي والي یې بیان نه کړی تر دې چې بل سړی (خالد) د مقروض له طرفه کفیل بنفسه سو بیا مدعي یعنې قرضخواه تر کفاله وروسته د مال صفت بیان کړی. نو په دې کې هیڅ حرج او پروا نسته. ځکه د خلکو دا عادت دی چې د قاضي له مجلس څخه بغیر بل ځای خپل دعواوي مجمل او مختصر ساتي. د دې لپاره چې د مدعیٰ علیه د حیلو څخه ځان وساتي او د هغه حیلې دفع کړي (یعنې د هر کس دا عادت دی چې د قاضي له مجلس څخه بغیر بل ځای د مدعیٰ علیه د حیلو د لیري کولو او دفع کولو لپاره خپل دعویٰ مجمل ساتي)، او کله چې د قاضي په مجلس کې ضرورت پېښ سي نو د دعویٰ ټوله اوصاف او اړخونه بیانوي. لهذا د اوصافو پر بیان په اعتماد کولو سره به مجمل دعویٰ صحیح کیږي. بیا چې کله مدعي یعنې قرضخواه د سلو دینارو صفت بیان کړی، نو د صفت دا بیان د اصل دعویٰ سره لاحق کیږي. یعنې داسې کیږي ګواکې هغه د دعویٰ کولو په وخت کې د مال (سل دینارو) صفت هم بیان کړی وو. او کله چې د دعویٰ کولو په وخت کې د مال صفت هم بیان کړی سو نو مال یعنې مدعیٰ به مجهول پاته نه سو. او کله چې مدعیٰ به مجهول نه سو. نو د مال دعویٰ صحیح سوه. او کله چې د مال دعویٰ صحیح سوه. نو پر کفیل د مکفول بنفسه یعنې د مقروض حاضرول هم واجب سو. او کله چې پر کفیل د مکفول بنفسه حاضرول واجب سو. نو کفاله بالنفس هم صحیح سوه. او کله چې کفاله بالنفس صحیح سوه. نو کفاله بالمال کوم چې پر کفاله بالنفس مُرتب او مبني ده هغه به هم صحیح وي. نو ځکه د امام محمد رَحِمَهُ الله دا خبره غلطه ده چې ''که د دعویٰ کولو په وخت کې مدعي (حامد) د مال صفت نه وي بیان کړی نو کفاله بالمال او کفاله بالنفس نه صحیح کیږي''.

## په قصاص او حدودو کي د کفالت حکم

قَالَ: وَلَا يَجُوْزُ الْكَفَالَةُ بِالنَّفْسِ فِي الْحُدُوْدِ وَالْقِصَاصِ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ فرمايي: او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په حدونو او قصاص کي کفاله بالنفس جائز نه ده. مَعْنَاهُ: لَا يُجْبَرُ عَلَيْهَا عِنْدَهُ د دې مطلب دا دی: چي [پر کوم چا د حد يا قصاص دعوىٰ وسي] هغه به پر کفاله نه مجبورول کيږي وَقَالَا: يُجْبَرُ فِي حَدِّ الْقَذْفِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په حدّ قذف کي به مجبورول کيږي لِأَنَّ فِيهِ حَقَّ الْعَبْدِ ځکه چي په هغه کي د بنده حق دی وَفِي الْقِصَاصِ او په قصاص کي [به هم مجبورول کيږي] لِأَنَّهُ خَالِصُ حَقِّ الْعَبْدِ ځکه چي هغه خالص د بنده حق دی بِخِلَافِ الْحُدُوْدِ الْخَالِصَةِ لِلّٰهِ تَعَالٰى په خلاف د هغه حدونو کوم چي خالص د الله تعالىٰ حق دي وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ قَوْلُهُ ﷺ: «لَا كَفَالَةَ فِي حَدٍّ» [1] مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي نبي کريم ﷺ له څه تفصيل [او تعيين] څخه بغير فرمايلي دي چي: "په حد کي کفاله نسته" وَلِأَنَّ مَبْنَى الْكُلِّ عَلَى الدَّرْءِ او ځکه چي د ټولو حدونو بناء پر ساقطولو ده فَلَا يَجِبُ فِيهَا الْاِسْتِيْثَاقُ نو ځکه په حدونو کي به مضبوطي راوستل [مضبوطول] واجب نه وي بِخِلَافِ سَائِرِ الْحُقُوْقِ په خلاف د نورو حقوقو لِأَنَّهَا لَا تَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ ځکه چي هغوی په شبهاتو سره نه ساقطيږي فَيَلِيْقُ بِهَا الْاِسْتِيْثَاقُ نو ځکه هغوی مضبوطول مناسب دي كَمَا فِي التَّعْزِيْرِ لکه څرنګه چي په تعزير کي دي.

**اللغات:** ﴿فصل﴾ جلا والی، تفصيل. ﴿مبنیٰ﴾ بنياد. ﴿درء﴾ د فتح مصدر دی: ليري کول، دفع کول، ساقطول. ﴿استيثاق﴾ د استفعال د باب مصدر دی: مضبوطول، مضبوط ګرځول. ﴿سائر﴾ د دغه لفظ دوې معناوي دي: ① ټوله. ② باقي، نور (پاته). ﴿يليق﴾ د ضرب مضارع ده: لائق کېدل، مناسب کېدل. ﴿تعزير﴾ له حد څخه بغير سزا چي په هغه کي په لږ درو او داسي نورو سره وهل کيږي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو څوک (مدعي) پر بل سړي د حد يا قصاص دعوىٰ وکړي (چي پر تا مثلاً د دې جرم حدّ يا قصاص واجب دی). بيا مدعي له دې سړي څخه د کفيل بنفسه مطالبه وکړي (يعني مدعي هغه ته ووايي چي ما ته داسي کفيل [ذمه وار] راکړه! کوم چي د دې ذمه واري واخلي چي هغه به تا د

---

القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، إذ من عادة المصنف أن يؤخر القوى عند ذكر الأدلة على الأقوال المختلفة، ليقع المؤخر بمنزلة الجواب. وكذا في الهندية (ج:٣، ص:٢٥٨). [القول الراجح ج:٢، ص:٩٢]

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب الضمان، باب ما جاء في الكفالة، حديث رقم: ١١٤١٧.

قاضي مجلس ته حاضروي)، لېکن هغه سړی (مدعیٰ علیه) له کفیل ورکولو څخه انکار وکړي. نو دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مدعي هغه سړي پر کفیل ورکولو نه سبي مجبوره کولای برابره ده حد که دهر جرم حد وي، د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې په "حدِ قذف" او "قصاص" کې مدعي هغه (مدعیٰ علیه) پر کفیل ورکولو مجبوره کولای سي.

**د صاحبینو دلیل**: دا دی چې "حدِ قذف" د بنده حق دی، او مقذوف یعني پر چا چې تهمت لګول سوی وي هغه دې ته محتاج دی چې له خپل ځان څخه د تهمت لیري کولول لپاره قاذف (تهمت لګونکی) د قاضي مجلس ته حاضر کړي. لېکن کله داسي کېږي چې قاذف ډېر مکرجن او چالاکه وي، او د قاضي مجلس ته په حاضرېدلو کې ټال مټول کوي او په ډول ډول حیلو د قاضي مخته له ورتللو څخه ځان خلاصوي، نو ځکه د دې لپاره کفیل او ضامن ته ضرورت وي چې په جبر او زور سره هغه د قاضي مجلس ته راولي، نو د همدغه ضرورت پر بناء موږ (صاحبینو) قاذف پر کفیل ورکولو مجبوره کول جائز ګرځولي دي (یعني د همدې ضرورت په وجه موږ وایو چې د "حدقذف" په مسئله کې قاذف پر کفیل ورکولو مجبوره کول جائز دي).

همدارنګه د قصاص په مسئله کې هَم موږ قاتل پر کفیل ورکولو مجبوره کول جائز ګرځولي دي؛ ځکه چې په قصاص کې د بنده حق دومره غالب دی چې ګواکي هغه خالص د بنده حق دی، همدا وجه ده چې د مقتول وارثانو ته دا حق سته چې قصاص معاف کړي یا دیت واخلي، معلومه سوه چې قصاص د بنده حق دی، او د حقوق العباد د ثابتولو او اداء کولو لپاره مدعیٰ علیه (من علیه الحق) د کفیل بالنفس پر ورکولو مجبوول کېدای سي، نو په دې وجه موږ په قصاص کې هم قاتل پر کفیل ورکولو مجبوره کول جائز ګرځولي دي. د دې په خلاف هغه حدود کوم چې خالص د الله تعالیٰ حق دي او په هغوی کې د بندګانو هیڅ حق نسته لکه "حدِ زنا" او "حدِ شرب"، نو په هغوی کې مجرم (من علیه الحد) د کفیل بالنفس پر ورکولو نه سي مجبورول کېدای؛ ځکه چې دا حدود هغه وخت نافذېږي کله چې پوره شهادت (ګواهي) پېش کړی سي، او تر شهادت پېش کېدلو وروسته په خپله د قاضي عسکر او پولیس مجرم راولي او کفیل ته هیڅ ضرورت نه پیدا کېږي، نو ځکه په دې حدودو کې مجرم پر کفیل ورکولو نه سي مجبورول کېدای.

**د امام صاحب دلیل**: د نبي کریم ﷺ دا فرمان دی: "لَا کَفَالَةَ فِيْ حَدٍّ" یعني په یوه حد کې هم کفاله (کفیل کېدل) نسته. په دې حدیث سره امام صاحب رَحِمَهُ الله په دې توګه دلیل نیسي چې په دې کې مطلقاً د حد له کفالې څخه منع سوې ده، او د هیڅ یوه حد تفصیل او تعیین نه دی سوی، لهذا هر ډول

حد به په هغه کي شامل وي او په هيڅ يوه حد کي به هم کفاله نه کيږي. برابره ده هغه خالص د الله وي. يا خالص د بنده وي، يا د دواړو په مينځ کي مشترک وي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دويم دليل دا دی چي د ټولو حدونو بناء پر ساقطولو ده. يعني ټوله حدود په شبهي سره ساقطيږي، نو تاسو خپله ووایاست چي د کومو شيانو بنياد پر اسقاط وي او په هغوی کي په خپله هيڅ ثبات او مضبوطي نه وي، نو هغه د کفيل په ذريعه څنګه مضبوط کېدای سي او څنګه به هغوی کي د کفالې په ذريعه مضبوطول واجب وي؟. معلومه سوه چي په حدونو کي د کفالې په ذريعه مضبوطي پيدا کول واجب او ضروري نه دي. نو ځکه موږ على الإطلاق له په هيڅ يوه حد کي هم کي د کفيل په هکله جبر کول جائز نه دي ګرځولي (يعني په دې وجه موږ په ټولو حدونو کي دا جائز نه دي ګرځولي چي مدعیٰ عليه د کفيل پر ورکولو مجبوره کړی سي). ها! د دې په خلاف هغه حقوق چي د هغوی بنياد پر اسقاط نه وي او په شبهي سره نه ساقطيږي. په هغوی کي موږ هم مدعیٰ عليه د کفيل ورکولو په هکله مجبوره کول جائز ګرځولي دي. لکه څرنګه چي په تعزيراتو کي دا حکم دی چي هغه فقط د بنده حق دی، نو ځکه په هغه کي مدعیٰ عليه (مجرم) د کفيل پر ورکولو مجبوره کول جائز دي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَلَوْ سَمَحَتْ نَفْسُهُ بِهِ او که مدعیٰ عليه په خپله خوښه کفيل ورکړي يَصِحُّ بِالْإِجْمَاعِ نو دا بالاتفاق صحيح دي لِأَنَّهُ أَمْكَنَ تَرْتِيبُ مُوجَبِهِ عَلَيْهِ ځکه چي د کفالت مُوجب پر عقد کفاله مُرتب کول ممکن دي لِأَنَّ تَسْلِيمَ النَّفْسِ فِيهَا وَاجِبٌ ځکه چي په دې حدونو کي [پر مدعیٰ عليه] نفس ورسپارل واجب دي فَيُطَالَبُ بِهِ الْكَفِيلُ نو [څرنګه چي] د هغه مطالبه به له کفيل څخه هم کېدای سي فَيَتَحَقَّقُ الضَّمُّ نو ځکه د ضمولو [سره يو ځای کولو] معنیٰ به ثابته سي.

**اللغات:** ﴿سمحت﴾ د فتح د باب ماضي ده: سخاوت کول. ورکول. د يو چا سره د هغه پر غوښتنه موافقت کول (مصباح منير). د نَفْس معنیٰ ده: زړه. نو د "سمحت نفسه به" خپله معنیٰ ده: که د مدعیٰ عليه زړه د کفيل پر ورکولو موافقت وکړي (يعني هغه په خپله رضا کفيل ورکړي). ﴿موجَب﴾ د افعال د باب مفعول دی: نتيجه. تقاضا. مقتضا. ﴿ضم﴾ د نصر د باب مصدر دی: يو شی د بل شي سره يو ځای کول. ضمول. جمع کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی په کومو حدونو کي چي د کفيل ورکولو په هکله د مدعیٰ عليه مجبوره کول او نه مجبوره کول د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په مينځ کي مختلف فيه دي

(یعني "حدِ قذف" او قصاص)، که په هغوی کي مدعیٰ علیه په خپله رضا سره (مدعي ته) کفیل بالنفس ورکړي، نو دا کفاله دامام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله ټولو په نیز جائز او صحیح ده.

دلیل یې دا دی چي په دې صورت کي د کفاله مُوجَب پر عقد کفاله مُرتّب کول ممکن دي (دلته د کفاله مُوجب دا دی: مدعیٰ علیه د قاضي و مجلس ته حاضرول). نو د کفاله مُوجب پر عقد کفاله مُرتّب کول په دې توګه ممکن دي چي په دې حدونو (حدّ قذف او قصاص) کي پر مدعیٰ علیه خپل ځان د قاضي مجلس ته حاضرول واجب دي، نو کله چي په خپله پر مدعیٰ علیه (مجرم) حاضرېدل واجب دي نو له کفیل څخه به هم د هغه د حاضرولو مطالبه کېدای سي، او کله چي له کفیل څخه د مدعیٰ علیه د حاضرلو مطالبه کېدای سي او په خپله له مدعیٰ علیه څخه هم د خپل ځان د حاضرولو مطالبه کېدای سي، نو د کفالې معنیٰ "ضَمُّ الذِّمَّةِ إِلَى الذِّمَّةِ فِي الْمُطَالَبَةِ" ثابته سوه، او کله چي د کفالې معنیٰ ثابته سوه، نو دا کفاله به جائز هم وي.

(دأثمارُ الهدايه مصنف رَحِمَهُ الله په لنډه توګه دلیل داسي ذکر کړی دی چي د کفالې معنیٰ ده: په مطالبه کي یوه ذمه د بلې ذمې سره ضمول [یو ځای کول]، او په حدّ قذف او قصاص کي په خپله پر مدعیٰ علیه هم خپل ځان حاضرول ضروري دي، نو ځکه له کفیل څخه هم د هغه د حاضرولو مطالبه کېدای سي. نو په دې توګه د کفالې معنیٰ (ضمول) موجوده سوه [یعني په مطالبه کي د مدعیٰ علیه ذمه او د کفیل ذمه سره یو ځای سوه]).

ښکاره دي وي چي هغه حدود کوم چي خالص د الله حق دي لکه "حدّ زنا" او "حدّ شرب"، په هغوی کي که څه هم مدعیٰ علیه په خپله رضا سره کفیل ورکړي، نو هم کفاله جائز نه ده.

## مدعیٰ علیه به کله په حدّ کي قیدول کیږي؟

قَالَ: وَلَا يُحْبَسُ فِيهَا فرمایي: او مدعیٰ علیه به په حدودو کي نه بندي کول کیږي حَتَّى يَشْهَدَ شَاهِدَانِ مَسْتُورَانِ أَوْ شَاهِدٌ عَدْلٌ يَعْرِفُهُ الْقَاضِيْ تر دې چي دوه مستور الحاله ګواهان ګواهي ورکړي، یا یو داسي عادل ګواه ګواهي [ورکړي] چي قاضي هغه پېژني لِأَنَّ الْحَبْسَ لِلتُّهْمَةِ هٰهُنَا ځکه چي دلته [په حدودو کي] بندي کول د تهمت په وجه وي وَالتُّهْمَةُ تَثْبُتُ بِأَحَدِ شَطْرَيِ الشَّهَادَةِ او تهمت د ګواهي په دوو حصو کي په یوه حصه سره ثابتیږي إِمَّا الْعَدَدُ أَوِ الْعَدَالَةُ یا په عدد سره، یا په عدالت سره بِخِلَافِ الْحَبْسِ فِي بَابِ الْأَمْوَالِ په خلاف د هغه بندي کولو کوم چي د مالونو په مقدمه [او دوسیه] کي وي لِأَنَّهُ أَقْصَى عُقُوبَةٍ فِيهِ ځکه چي دا [حبس] په مالونو کي آخري سزا ده فَلَا يَثْبُتُ إِلَّا

بِحُجَّةٍ كَامِلَةٍ نو ځکه هغه به له حجت کامله [شهادت كامله] څخه بغير نه ثابتيږي وَذُكِرَ فِي أَدَبِ الْقَاضِيْ: أَنَّ عَلَى قَوْلِهِمَا لَا يُحْبَسُ فِي الْحُدُوْدِ وَالْقِصَاصِ بِشَهَادَةِ الْوَاحِدِ او [د مبسوط] په "كتاب ادب القاضي" كي ذكر سوي دي: چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د قول مطابق به په حدونو او قصاص كي د يوه عادل سړي په گواهي سره هم مدعیٰ عليه نه بندي كول كيږي لِحُصُوْلِ الْاِسْتِيْثَاقِ بِالْكَفَالَةِ ځکه چي [د صاحبينو په نيز] مضبوطي په كفاله سره حاصليږي.

**اللغات**: ﴿فيها﴾ په دې كي د "ها" ضمير حدود ته راجع دی، او په ځينو نسخو كي "فيهما" ذكر سوي دي، په دې صورت كي د "هما" ضمير حد قذف او قصاص ته راجع دی، ﴿لا يحبس﴾ د ضرب د باب نفي صيغه ده: بندي كول، قيدول. حبس (بندي كول) پر دوه قسمه دي: ① ... يو دا چي د قاضي تر فيصلې مخكي د تحقيقاتو د پوښتني او د تهمت ثابتولو لپاره مجرم يو څو وخت بنديخاني ته واچول سي، يعني د دې لپاره چي د مجرم په باره كي پوره تحقيق او پلټنه وسي چي آيا هغه جرم كړی دی، كه نه؟ او تهمت په پوره توگه ثابت سي. دې ته د تهمت پر بنياد بندي كول وايي. په حدودو كي له "حبس" څخه همدا بندي كول مراد دي. ② ... دويم دا چي د قاضي له فيصله كولو څخه وروسته مجرم د سزا لپاره بنديخانې ته واچول سي، دا د مال په معامله كي كيږي او تر كامل شهادت وروسته كيږي، ﴿مستور﴾ د نصر د باب مفعول دی: مخفي، پټ، غير معلوم الحال، ﴿أقصىٰ﴾ د انتهائي درجې، اخري، ﴿عقوبة﴾ سزا، ﴿حجة﴾ دليل، ﴿شطری﴾ تثنيه د شَطْرٌ ده: حصه، جزء، ﴿شطری الشهادة﴾ د شهادت يعني د گواهۍ دوې حصې (دوه جزءه) دي: ① عدد ② او عدالت، كه په گواهۍ كي دا دواړه حصې پوره وي نو داسي گواهي ته "شهادت كامله" او "حجت كامله" وايي، ① ... د عدد مطلب دا دی چي گواهان به دوه خلک وي، يا يو سړی او دوې ښځي به وي، ② ... د عدالت مطلب دا دی چي دواړه به عادلان وي. لېكن كه له دې دواړو څخه فقط يوه حصه وي، مثلاً دوه خلک وي لېكن مستور الحاله وي (يعني حالت يې پټ وي چي عادلان دي كه فاسقان)، يا عادل خو وي لېكن يو سړی وي، نو دا د گواهۍ يوه حصه سوه، او دې ته "شطر الشهادة" او "شهادت ناقصه" وايي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي په حد قذف او قصاص كي به قاضي هغه وخت (د تهمت ثابتولو لپاره) مدعیٰ عليه بندي كوي، كله چي دوه مستور الحاله خلک د هغه په خلاف گواهي وركړي، يا يو داسي عادل سړی گواهي وركړي چي د هغه په عادل والي قاضي هم خبر وي، حاصل دا

چي د متهم مدعیٰ علیه (مجرم) قیدول په دوو صورتونو کي جائز دي: یا دا چي یو داسي عادل سړی ګواهي ورکړي چي د هغه په عدالت قاضي واقف وي، یا دوه داسي خلک ګواهي ورکړي چي د هغو عدالت یا فسق ښکاره نه وي.

دلیل دا دی چي په دې ډول حدونو کي مدعیٰ علیه د دې تهمت په وجه بندي کول کیږي چي کېدای سي مدعیٰ علیه مُفسد او مجرم وي او پر هغه به حد یا قصاص واجب وي، همدا خبره صاحب د کتاب په "لأن الحبس ههنا للتهمة" سره بیان ګړې ده، یعني دلته د تهمت په وجه حبس (بندي کول) کیږي، او تهمت په وجه بندي کول یو ناقصه سزا ده (ځکه چي دا سزا دیو شو وخت لپاره وي. او تر دې وروسته چي حدٰ او قصاص ثابت سي نو بیا آخري او بشپړ سزا قتل. یا قطعُ الید. یا په دُرو سره وهل وي). لهذا کله چي د تهمت په وجه بندي کول ناقصه او د معمولي درجې سزا ده. نو ځکه تهمت فقط د "شهادت کامله" په دوو حصو کي په یوه حصه سره ثابتیږي، او د "شهادت کامله" یوه حصه عدد دی، او بله حصه یې عدالت دی، نو ځکه موږ وایو چي که دوه مستور الحاله ګواهان د مدعیٰ علیه په خلاف ګواهي ورکړي، یا یو عادل سړی ګواهي ورکړي، نو په دې سره "حبس" ثابتیږي. (د حبس او شهادت پوره تفصیل موږ په لغاتو کي ذکر کړی دی. د تهمت په وجه بندي کول. او د یوه ګواه په ګواهي سره بندي کول په حدیث او أثر سره ثابت دي، حدیث دا دی: "أَنَّ رَسُوْلَ الله ﷺ حَبَسَ رَجُلًا بِالتُّهْمَةِ". او أثر دا دی چي: ابن مسعود ﷺ یو شراب خور سړی د یوه ګواه په ګواهي سره بندي کړی. بیا چي کله شراب خور په هوښ کي راغلی. نو د شراب خوری ثابتولو لپاره یې هغه له بندیخانې څخه را ویستی).

بخلاف الحبس في باب الأموال إلخ: پاته سو د مال په معامله او مسئله کي بندي کول، نو هغه صرف په "شهادت کامله" سره ثابتیږي، د شهادت په یوه حصه (شهادت ناقصه) سره نه ثابتیږي، یعني د مالي حق په سلسله کي به مجرم د دوو (۲) داسي ګواهانو په ګواهي سره بندي کول کیږي چي هغه دواړه عادلان وي؛ ځکه چي د مال په معامله کي بندي کول آخري او انتهائي سزا ده (لیکن په حدود او قصاص کي آخري او انتهائي سزا قتل، یا قطع الید، یا په درو سره وهل دي)، او دا خبره تسلیم سوې ده چي آخري او بشپړ سزا په "حجت کامله" او "شهادت کامله" سره ثابتیږي، نه په "شهادت ناقصه" سره، ځکه په "شهادت ناقصه" سره فقط د معمولي درجې (ناقصه) سزا ثابتیږي. نو د مال په معامله کي "شهادت کامله" ضروري دی.

وذكر في أدب القاضي إلخ: فرمایي چي د مبسوط په "کتاب ادب القاضي" کي ذکر سوي دي چي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز په حدودو او قصاص کي د یوه عادل سړي په ګواهي سره هم حبس نه

ثابتیږي. یعني که د "شهادت کامله" له دوو حصو څخه یوه حصه موجوده سي. نو بیا به هم مدعی علیه (متهم مجرم) نه بندي کول کیږي؛ ځکه چي د صاحبینو په نیز په حدودو او قصاص کي کفاله ثابته ده او د دوی په نیز مدعیٰ علیه د کفیل پر ورکولو مجبورول کیدای سي نو ځکه د دې کفیل په ذریعه به مضبوطي حاصله سي، او کله چي د کفیل په ذریعه مضبوطي حاصله سوه. نو اوس د مدعیٰ علیه بندي کولو ته هیڅ ضرورت نسته. او څرنګه چي د امام صاحب رحمه الله په نیز په حدودو او قصاص کي مدعیٰ علیه د کفیل پر ورکولو نه سي مجبورول کیدای، نو ځکه د هغه په نیز به د مقدمې د مضبوطولو لپاره مدعیٰ علیه بندي کول کیږي (یعني د دې لپاره چي د مدعیٰ علیه د جرم تهمت ثابت کړی سي او د هغه دوسیه او مقدمه مضبوطه کړل سي).

## د خراج په اداء کولو کي رهن او کفالت جائز دي

قَالَ وَالرَّهْنُ وَالْكَفَالَةُ جَائِزَانِ فِي الْخَرَاجِ فرمایي: چي په خراج کي رهن او کفاله دواړه جائز دي لِأَنَّهُ دَيْنٌ مُطَالَبٌ بِهِ مُمْكِنُ الِاسْتِيفَاءِ ځکه چي خراج یو داسي قرض دی چي د هغه مطالبه کیږي [او] د هغه اخیستل ممکن دي فَيُمْكِنُ تَرْتِيبُ مُوجَبِ الْعَقْدِ عَلَيْهِ فِيهِمَا لهذا په رهن او کفاله دواړو کي د عقد موجب پر خراج مرتب کول ممکن دي.

**اللغات:** ﴿خراج﴾ کوم کافران چي په دار الاسلام کي اوسیږي یعني ذمیان. د هغو پر ځمکو او کښتونو چي اسلامي حکومت کوم ټیکس او محصول اخلي، هغه ته "خراج" وایي. ﴿دَین﴾ قرض، قرضه. ﴿مُطالَب﴾ د مفاعلې د باب مفعول دی: مطالبه کړی سوی (یعني د کوم شي مطالبه چي کیږي). ﴿استیفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: (خپل حق) په پوره توګه اخیستل. ترلاسه کول.

**یادونه:** په دې عبارت کي د "مُطَالَبٌ بِهِ" تعلق د کفاله سره دی، او د "مُمْكِنُ الْاسْتِيفَاء" تعلق د رهن سره دی (لهذا په دې عبارت کي لف ونشر غیر مُرتب دی).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که پر یو ذمي کافر خراج واجب وي، او هغه د خراج په عوض کي (اسلامي حکومت ته) یو شی په رهن کي کښیږدي، یا د هغه له طرفه یو څوک کفیل سي، نو دغه دواړه صورتونه جائز او صحیح دي.

**دلیل:** په خراج کي کفاله ځکه جائز ده چي د کفالې معنیٰ ده: "ضم الذمة إلى الذمة في المطالبة" (یعني د قرض په مطالبه کي یوه ذمه د بلي ذمې سره یو ځای کول). او خراج هم داسي قرض دی چي د

بندګانو (اسلامي حکومت) له طرفه د هغه مطالبه کیږي، او په داسي قرض کي کفاله جائز ده چي د بندګانو له طرفه د هغه مطالبه کیږي، نو ځکه په خراج کي به هم کفاله جائز وي.

او رهن ځکه جائز دی چي رهن د قرض اخیستلو وثیقه او سند دی (یعني رهن د قرض مضبوطېدلو دریعه ده، هغه په دې توګه چي که مقروض و قرض ورکونکي ته یو شی په رهن کي کښېږدي. نو په دې صورت کي مقروض خامخا قرض اداء کوي او په قرض کي هیڅ درغلي نه کوي. د دې لپاره چي له قرض ورکونکي څخه خپل شی بیرته واخلي، لنډه دا چي د رهن په ذریعه له مقروض څخه قرض اخیستل ممکن دي)، او خراج هم قرض دی او د رهن په ذریعه هغه (له ذمي څخه) اخیستل ممکن دي، لهذا څرنګه چي په نورو قرضونو کي رهن جائز او صحیح دی، همداسي به په خراج کي هم رهن جائز وي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله دا خبره مختصراً داسي بیان کړې ده چي خراج یو داسي قرض دی چي د بندګانو له طرفه د هغه مطالبه کیږي، او په رهن سره هم د قرض اخیستل ممکن دي، نو ځکه په کفاله او رهن کي د عقد کفاله او عقد رهن مُوجب پر خراج مُرتّب کول ممکن دي، او کله چي د دوی مُوجب پر خراج مُرتّب کول ممکن دي، نو ځکه به په خراج کي کفاله او رهن دواړه جائز وي.

## له یوه څخه زیات کفیلان جوړول (حکم)

| |
|---|
| قَالَ: وَمَنْ أَخَذَ مِنْ رَجُلٍ كَفِيلًا بِنَفْسِهِ ثُمَّ ذَهَبَ فَأَخَذَ مِنْهُ كَفِيلًا آخَرَ فرمایي: او که څوک له یو سړي څخه کفیل بالنفس واخلي، بیا ولاړ سي او له هغه څخه بل کفیل واخلي فَهُمَا كَفِيلَانِ نو هغوی دواړه دوه کفیله دي [یعني دواړه کفیلان ګرځي] لِأَنَّ مُوجَبَهُ الْتِزَامُ الْمُطَالَبَةِ ځکه چي د عقد کفاله مُوجب "مطالبه لازمول" دي وَهِيَ مُتَعَدِّدَةٌ او مطالبه له یوه څخه زیاتي دي وَالْمَقْصُودُ التَّوَثُّقُ او [د عقد کفاله] مقصود مضبوطي حاصلول دي وَبِالثَّانِيَةِ يَزْدَادُ التَّوَثُّقُ او په دویمه کفاله سره مضبوطي نوره زیاتیږي. فَلَا يَتَنَافَيَانِ نو ځکه به دواړه [کفالې] یو د بل منافي نه وي. |

**اللغات:** ﴿التزام﴾ د افتعال د باب مصدر دی: پر خپل ځان لازمول، پر خپله ذمه لازمول. (په خپله غاړه اخیستل). ﴿موجَب﴾ د افعال د باب مفعول دی: نتیجه، مقتضا. ﴿متعدّد﴾ شمېر والا، له یوه څخه زیات، ډېر. ﴿توثق﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مضبوطېدل، قوي کېدل. وثیقه اخیستل، (مضبوطتیا حاصلول). (مصباح اللغات)

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که په یو معامله کي د یو سړي له طرفه دوه یا درې خلک کفیلان جوړ سي، نو دا صحیح او جائز دي، برابره ده هغوی پر یوه ځای کفیلان جوړ سي. یا یو تر بل

وروسته. مثلاً د خالد پر زيد قرض باندي وي، او خالد له زيد څخه يو سړی کفيل واخلي (چي هغه د مي کفالت وکړي چي زه مقروض [زيد] حاضروم) او بيا په هغه وخت کي يا تر هغه وروسته خالد له زيد څخه بل سړی کفيل واخلي، نو دا جائز دي. او په هغه دواړه کفيلانو کي هريو د مکفول بنفسه (زيد) د حاضرولو کفيل دی، تر دې که چيري يو کفيل مکفول بنفسه حاضر کړي نو هغه بري کيږي. لېکن دويم کفيل نه بري کيږي؛ دليل دا دی چي د عقد کفاله مُوجب "پر خپل ځان مطالبه لازمول" دي. او مطالبې له يوه څخه زياتي دي. مثلاً له کفيل څخه د مکفول بنفسه د حاضرولو مطالبه کيږي او له مکفول بنفسه څخه په خپله د حاضرېدلو مطالبه کيږي. او د عقد کفاله مقصد "مضبوطي حاصلول" دي (يعني د کفيل جوړولو مقصد دا دی چي مثلاً له مقروض څخه د قرض اخيستل يقيني او مضبوط سي او په دې مکله مقروض څه درغلي نه وکړي). او ښکاره خبره ده چي په دويم کفاله (دويم کفيل) سره دا مضبوطي نوره زياتيږي او کميږي نه. لهذا کله چي دويمه کفاله په مضبوطي کي نوره اضافه راولي. نو په دواړو کفالو کي به هيڅ منافات نه وي، او کله چي په دواړو کفالو کي منافات نسته. نو دواړه به جائز هم وي.

## د کفاله بالمال بيان

وَأَمَّا الْكَفَالَةُ بِالْمَالِ فَجَائِزَةٌ او کوم چي کفاله بالمال ده نو هغه جائز ده مَعْلُومًا كَانَ الْمَكْفُولُ بِهِ أَوْ مَجْهُولًا برابره ده مکفول بِهِ معلوم وي او که مجهول وي إِذَا كَانَ دَيْنًا صَحِيحًا په دې شرط چي دَين صحيح وي مِثْلَ أَنْ يَقُولَ: تَكَفَّلْتُ عَنْهُ بِأَلْفٍ مثلاً کفيل [داسي] ووايي چي: زه د هغه له طرفه د زرو کفيل يم أَوْ بِمَا لَكَ عَلَيْهِ يا د هغه څه [مال] [کفيل يم] کوم چي ستا پر هغه باندي دي أَوْ بِمَا يُدْرِكُكَ فِي هَذَا الْبَيْعِ يا د هغه څه [کفيل يم] کوم چي تا ته دې په بيع کي لاحق سي [يعني پر تا لازم سي] لِأَنَّ مَبْنَى الْكَفَالَةِ عَلَى التَّوَسُّعِ ځکه چي د کفالې بنياد پر توسع دی فَيُتَحَمَّلُ فِيهَا الْجَهَالَةُ نو ځکه په هغه کي جهالت برداشت کيږي [زغمل کيږي] وَعَلَى الْكَفَالَةِ بِالدَّرَكِ إِجْمَاعٌ او پر "کفاله بالدرك" اجماع ده وَكَفَى بِهِ حُجَّةً او د اجماع حجت کېدل کافي دي [يا: د حجت او دليل لپاره اجماع کافي ده] وَصَارَ كَمَا إِذَا كَفَلَ لِشَجَّةٍ او دا داسي سو لکه يو څوک چي د سر د زخم کفالت وکړي صَحَّتِ الْكَفَالَةُ نو کفاله صحيح ده وَإِنِ احْتَمَلَتِ السِّرَايَةَ وَالِاقْتِصَارَ که څه هم د سر زخم د سرايت کولو او د درېدلو دواړو احتمال لري [يعني که څه هم د سر په زخم کي دا احتمال سته چي هغه نور خراب او ژور سي او د هغه په وجه زخمي مړ سي. يا هغه پر خپل ځای ودرېږي او زخمي جوړ سي] وَشَرَطَ أَنْ يَكُونَ دَيْنًا صَحِيحًا او امام

قدوري رَحِمَهُ الله دا شرط لګولی دی چي دَین به "دَینِ صحيح" وي [په دې سره د هغه مراد څه دی؟]
وَمُرَادُهُ أَنْ لَا يَكُونَ بَدَلَ الْكِتَابَةِ [په دې سره] د هغه مراد دا دی چي بدلِ کتابت به نه وي وَسَيَأْتِيْكَ فِي
مَوْضِعِهِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او د دې بيان به انشاء الله پر خپل ځای ستا مخته راسي.

**اللغات**: ﴿مُكفول بِهٖ﴾: د كوم شي چي كفالت وسي، يعني هغه مال چي كفيل د هغه د اداء كولو ذمه واري واخلي، او د كوم كس ذمه واري چي كفيل واخلي، هغه ته عموماً مكفول بنفسه وايي.
﴿يُدرِكُكَ﴾ د افعال د باب مضارع ده: لاحق كېدل، متصل كېدل (ور سره يو ځای كېدل). مراد ځني لازمېدل دي. ﴿توسّع﴾ د تفعل مصدر دی: پراختيا، پراخوالی، وسعت، ګنجايش. ﴿الدَّرْك﴾ او الدَّرَك: لاحق كېدل، متصل كېدل (مصباح اللغات). ﴿كفالة بالدرك﴾ دې ته وايي چي كفيل مشتري ته داسي ووايي: ته له فلانكي څخه دا شی رانيسه! كه چيري يو بل څوک د دې شي (مبيع) مستحق وخيږي (يعني بل څوک دعوی وكړي چي دا زما شی دی)، نو زه ستا د ثمن كفيل او ذمه وار يم. په لنډه توګه دا چي كفاله بالدرک "كفالة بما يُدرِكُكَ" ته وايي، ﴿حجة﴾ دليل، ﴿شجّة﴾ د سر زخم، ﴿سراية﴾ د ضرب د باب مصدر دی: د زخم د اثر دوام كېدل او په بدن كي غوړېدل (خپرېدل، نوتل). ﴿اقتصار﴾ د افتعال د باب مصدر دی: اكتفاء كول، درېدل. (أحسن الهدايه)

**تشريح**: د "كتاب الكفاله" په شروع كي مصنف رَحِمَهُ الله وويل: "الْكَفَالَةُ ضَرْبَانِ" چي كفاله پر دوه قسمه ده: ① كفاله بالنفس. ② كفاله بالمال. كفاله بالنفس خو د خپل ټولو احكامو سره ستاسو مخته ذكر سوه، اوس له دې ځايه كفاله بالمال بيانوي، فرمايي چي كفاله بالمال جائز ده، برابره ده مكفول بهٖ د مقدار په اعتبار سره معلوم وي او كه مجهول وي، لېكن د كفاله بالمال د صحيح والي لپاره د دين صحيح والي شرط دی (چي دَين به دين صحيح وي. يعني دَين به "بدلِ كتابت" نه وي).

له "مِثْلَ أَنْ يَقُوْلَ...إلخ" څخه صاحب د كتاب د معلوم المقدار او مجهول المقدار مكفول بهٖ مثالونه بيان كړي دي، نو فرمايي كه كفيل مثلاً داسي ووايي "تَكَفَّلْتُ عَنْ فُلَانٍ بِالْأَلْف" (زه د فلانكي له طرفه د زرو درهمو كفيل يم). نو دا د معلوم المقدار مكفول بهٖ مثال دی. ځكه چي دلته د مكفول بهٖ مقدار يعني "الألف" معلوم دی.

او كه كفيل مكفل لهٗ ته داسي ووايي "تَكَفَّلْتُ عَنْ فُلَانٍ بِمَا لَكَ عَلَيْهِ" (زه د فلانكي له طرفه د هغه مال كفيل يم كوم چي ستا پر هغه باندي دی) يا كفيل داسي ووايي "تَكَفَّلْتُ عَنْ فُلَانٍ بِمَا يُدْرِكُهُ

فِي هٰذَا الْبَيْعِ" (زه د فلانکي له طرفه د هغه مال کفيل يم کوم چې په دې بيع کې هغه ته لاحق سي [پر هغه لازم سي]) يا مثلاً کفيل مشتري ته داسې ووايي "تَكَفَّلْتُ عَنْ فُلَانٍ بِمَا يُدْرِكُكَ فِي هٰذَا الْبَيْعِ" د دې جملې دوې ترجمې سوي دي، يوه ترجمه دا چې (ته له فلانکي سرې څخه دا شی رانيسه! او په دې بيع کې چې کوم ثمن تا ته لاحق سي [پر تا لازم سي] د هغه کفيل او ذمه وار زه يم)، بلکه ترجمه يې دا ده چې (ته له فلانکي څخه شی رانيسه! او په دې بيع کې چې کوم عارض دغه شي (مبيع) ته لاحق سي [مثلاً دا شی د بل چا مستحق وختيږي] نو د فلانکي له طرفه زه د هغه ذمه وار يم)، نو دغه ټوله مثالونه د مجهولُ المقدار مکفول به دي، ځکه چې په دغو مثالو کې د مکفول به مقدار مجهول او نا معلوم دی (يعني صرف مال ذکر سوی دی، مقدار يې نه دی بيان سوی).

لنډه دا چې کله دَين صحيح وي، نو په هر صورت کې د هغه کفاله بالمال صحيح ده، برابره ده مکفول به معلوم او که مجهول وي.

لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې که مکفول به مجهول وي نو کفاله نه صحيح کيږي.

**د امام شافعي دليل:** قياس دی، هغه مکفول به پر ثمن قياس کړی دی، يعني څرنګه چې د ثمن د مجهول والي په صورت کې بيع نه صحيح کيږي، همداسې به د مکفول به د مجهول والي په صورت کې کفاله نه صحيح کيږي.

**زموږ دليل:** زموږ نقلي دليل کوم چې د "بنايه" مصنف رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی، دا آيت دی: ﴿وَلِمَنْ جَاءَ بِهِ حِمْلُ بَعِيرٍ وَأَنَا بِهِ زَعِيمٌ﴾ [سورة يوسف: ۷۲] (يوسف عليه السلام وويل چې: زه د دې خبرې کفيل [او ذمه وار] يم چې کوم څوک هغه ورک سوی لوښی ما ته راوړي، نو د هغه لپاره د اوښ بار دی) يعني زه هغه ته د اوښ يو بار غله ورکوم. په دې آيت کې "حِمْلُ بَعِيرٍ" (د اوښ يو بار) مکفول به دی لېکن د هغه مقدار مجهول دی؛ ځکه چې د اوښ د مختلف کېدلو په وجه د هغه بار بدليږي، يعني که اوښ کمزوری وي نو پر هغه کم بار اېښول کيږي، او که اوښ طاقتور وي نو پر هغه زيات بار اېښول کيږي، نو معلومه سوه چې دلته مکفول به مجهول دی، لېکن بيا هم حضرت يوسف عليه السلام د هغه کفالت قبول کړی دی، نو دا پر دې خبره ښکاره دليل دی چې د مکفول به د مجهول والي په صورت کې کفاله بالمال جائز ده. (بنايه ج: ۷، ص: ۵۵۸)

لأن مبنى الكفالة إلخ: دويم دليل کوم چې صاحب د هدايې بيان کړی دی، دا دی چې د کفالې بنياد پر توسع (وسعت) دی، ځکه چې کفاله ابتداءً تبرّع او احسان وي (يعني محض د احسان په توګه کفيل د بل

چا د مال ذمه واري اخلي). او د احسان او تبرع دروازه همېشه خلاصه وي. او د کوم شي بنياد چې پر توسع وي هغه لږ غوندي جهالت برداشت کوي (يعني که په هغه کي معمولي جهالت راسي نو پروانه لري). او د مکفول بهٖ جهالت هم لږ او معمولي وي. فاحش نه وي؛ ځکه په اشاره، کنايه او قرينه سره هغه معلومېدای سي، نو ځکه کفاله به هم د مکفول بهٖ معمولي جهالت برداشت کوي.

وعلى الكفالة إلخ: څلورم دليل دا دی چې "كفالة بالدرك" د ټولو امامانو په نېز جائز ده. حال دا چې په "كفاله بالدرک" کي تر ټولو زيات جهالت وي. ځکه کله چې کفيل مشتري ته داسي ووايي: "که چيري يو څوک د مبيع مستحق وخيږي (يعني بل څوک د استحقاق دعویٰ وکړي) نو ستا د ثمن ضامن زه يم". نو په دې کي اولاً خو ضمان مجهول دی. ځکه که مبيع مستحق وخيږي نو کفيل ضامن کيږي. کنې نه ضامن کيږي. او ثانياً دا معلومه نه ده چې ټوله به مبيع مستحق وخيږي. که د هغه يوه حصه. لنډه دا چې د مکفول به د مجهول والي باوجود د "كفاله بالدرك" پر جواز د ټولو ائمه وو اجماع سوې ده. او اجماع يو شرعي حجت دی. لهذا کله چې "كفاله بالدرك" جائز ده چې په هغې کي تر ټولو زيات جهالت دی. نو كفاله بالمال خو به په درجه اولیٰ جائز وي. او د دې مثال دا دی لکه خالد چې خطاءً په ډبره زيد پر سر ووهي او د زيد په سر کي زخم جوړ کړي، نو اوس په دې کي دوه احتماله سته (۱) يو احتمال دا دی چې د زخم په وجه به زيد مړ سي او پر زخمي کونکي (خالد) به د نفس ديت واجب سي (۲) او دويم احتمال دا دی چې په علاج او درملنه سره به زخم جوړ سي او پر زخمي کونکي به فقط د زخم تاوان (ارش) واجب سي. مطلب دا چې د زخم په وجه کوم مال واجبيږي هغه مجهول دی. اوس که يو څوک مثلاً حامد د زخمي کونکي (خالد) له طرفه د زيد لپاره د هغه مال کفيل سي (مثلاً زيد ته داسي ووايي: د دې زخم په وجه چې کوم مال او تاوان پر خالد واجب سي د هغه کفيل زه يم). نو دا كفاله صحيح او جائز ده. اوګورئ! دلته مکفول بهٖ مجهول دی: ځکه هغه د نفس ديت هم کېدای سي. او د زخم تاوان هم کېدای سي. مګر د دې باوجود كفاله جائز ده. لهذا کله چې د فاحش (زيات) جهالت په صورتونو کي كفاله جائز ده نو د معمولي جهالت په صورت کي به هم كفاله جائز وي.

وشرط أن إلخ: فرمايي: د كفاله بالمال د جواز لپاره چې امام قدوري رَحِمَهُ الله کوم د دَين د صحيح والي شرط لګولی دی (چې دَين به صحيح وي)، دا په حقيقت کي قيد احترازي دی. او په دې سره د امام قدوري رحمه الله مراد دا دی چې هغه به په کامله توګه (علىٰ وجه الكمال) دَين وي او "بدل كتابت" به نه وي: ځکه چې کامل او پوره دين هغه دی چې (له مقروض شخصه) د هغه د اداء کولو مطالبه کيږي او له

اداء کولو یا د قرض ورکونکي له معاف کولو څخه بغیر هغه نه ساقطیږي. لیکن بدل کتابت داسي دَین دی: څکه که چیري مکاتب د هغه له اداء کولو څخه عاجزي ښکاره کړي. نو دین ساقطیږي. یعني په دې صورت کي د بدل کتابت دین له اداء کولو او د مولیٰ له بري کولو (معاف کولو) څخه بغیر ساقطیږي، نو ځکه بدل کتابت د صحیح او کامل دَین له تعریف څخه خارج دی. د دې پوره تفصیل به انشاء الله په "كتابُ المكاتب" کي بیان سي.

## په کفاله بالمال کي د مکفول لهٗ د اختیار بیان

قَالَ: وَالْمَكْفُوْلُ لَهٗ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ طَالَبَ الَّذِىْ عَلَيْهِ الْأَصْلُ وَإِنْ شَاءَ طَالَبَ كَفِيْلَهٗ فرمایي: او مکفول لهٗ ته اختیار دی. که خوښه یې وي نو له هغه کس څخه دي مطالبه وکړي چي پر هغه اصل قرض [باندي] وي. او که خوښه یې وي نو د هغه له کفیل څخه دي مطالبه وکړي لِأَنَّ الْكَفَالَةَ ضَمُّ الذِّمَّةِ إِلَى الذِّمَّةِ فِي الْمُطَالَبَةِ ځکه کفاله [دې ته وایي چي] په مطالبه کي یوه ذمه د بلي ذمې سره یو ځای کول وَذٰلِكَ يَقْتَضِىْ قِيَامَ الْأَوَّلِ لَا الْبَرَاءَةَ عَنْهُ او دا [معنیٰ] د اول [اصیل د ذمې] د موجود پاتېدلو تقاضا کوي. نه له هغه څخه د بري کېدلو إِلَّا إِذَا شَرَطَ فِيْهِ الْبَرَاءَةُ مګر دا چي کله په کفاله کي د برائت [بري کېدلو] شرط لګول سوی وي فَحِيْنَئِذٍ تَنْعَقِدُ حَوَالَةً اِعْتِبَارًا لِلْمَعْنٰى نو په دې وخت کي د معنی په اعتبار کولو سره هغه حواله منعقده کیږي [یعني په دې وخت کي کفاله "حواله" ګرځي] كَمَا أَنَّ الْحَوَالَةَ بِشَرْطِ "أَنْ لَا يَبْرَأَ بِهَا الْمُحِيْلُ" تَكُوْنُ كَفَالَةً لکه حواله چي په دې شرط سره "چي حواله کونکي به بري نه وي" کفاله ګرځي [یعني لکه څرنګه چي حواله هم په هغه وخت کي کفاله ګرځي کله چي په حواله کي د محیل د "نه بري کېدلو" شرط لګول سوی وي].

**اللغات**: ﴿يقتضى﴾ د افتعال د باب مضارع ده: تقاضا کول. غوښتل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي په کفاله بالمال کي مکفول لهٗ ته د دې پوره اختیار سته چي له اصیل (مکفول عنه) څخه د قرض مطالبه کړي، یا یې د هغه له کفیل څخه وکړي، یا یې له دواړو څخه وکړي.

دلیل دا دی چي د کفالې تعریف او معنیٰ ده "په مطالبه کي یوه ذمه د بلي ذمې سره یو ځای کول (ضمول)". او د کفیل د ذمې سره د اصیل د ذمې یو ځای کېدل د دې خبري تقاضا کوي چي اوله ذمه یعني د اصیل ذمه به موجوده پاته وي، او د دې تقاضا نه کوي چي د اصیل ذمه دي له مطالبې څخه

بري سي؛ ځکه که د اصيل ذمه له مطالبې څخه بري سي، نو د کفالې معنیٰ "ضم" به ثابت نه سي، او کله چي "ضم" يعني يوه ذمه د بلي ذمې سره يوځای کېدل ثابت نه سي، نو کفاله به هم ثابته نه سي.

لهذا معلومه سوه چي د کفالې مُوجب يعني "ضمُ الذمة إلى الذمه في المطالبة" د اصيل د ذمې د موجود پاتېدلو تقاضا کوي، د هغه د ذمې د بري کېدلو تقاضا نه کوي.

ها! که چيري په کفاله کي د اصيل (مکفول عنه) د بري کېدلو شرط لګول سوی وي، يعني په کفاله کي مکفول عنه دا شرط لګولی وي چي زما ذمه به بري وي، يا کفيل په دې شرط سره کفالت کړی وي چي مکفول عنه بري دی، او مکفول لهٗ دا شرط منظور کړی وي، نو په داسي صورت کي بېله شکه د مکفول عنه (اصيل) ذمه له مطالبې څخه بري کيږي، مګر دا به کفاله نه وي بلکي د کفاله په لفظ سره به حواله وي، يعني که څه هم نوم يې "کفاله" ده لېکن په حقيقت کي "حواله" ده؛ او دليل دا دی يې چي کفاله او حواله د عقودو (معاملاتو) له قبيلې څخه دي، او په عقودو کي د معنیٰ اعتبار کيږي، د الفاظو اعتبار نه کيږي، او له مطالبې څخه د اصيل بري کېدل د "حواله" په معنیٰ سره دي، نه د "کفاله" په معنیٰ سره، (يعني اصيل فقط په حواله کي له مطالبې څخه بري کيږي، نه په کفاله کي)، نو ځکه له مطالبې څخه د اصيل (مکفول عنه) د بري کېدلو په شرط لګولو سره به کفاله "حواله" ګرځي، لکه څرنګه چي په هغه وخت کي حواله "کفاله" ګرځي کله چي په حواله کيْ دا شرط لګول سوی وي چي اصيل يعني حواله کونکی به بري نه وي؛ ځکه چي له مطالبې څخه د اصيل نه بري کېدل د "کفاله" په معنیٰ سره، نه د "حواله" په معنیٰ سره، او څرنګه چي په عقودو (معاملاتو) کي د معنیٰ اعتبار کيږي، نه د الفاظو، نو ځکه د معنیٰ په اعتبار کولو سره به حواله په هغه وخت کي کفاله ګرځي کله چي د "اصيل نه بري کېدلو" شرط پکښې ولګول سي.

لنډه دا چي په حواله او کفاله کي فرق دا دی چي په کفاله کي اصيل او کفيل دواړه ذمه واران وي، او په حواله کي اصيل له ذمه وارۍ څخه بري وي او فقط محتال عليه (پر چا چي حواله کړی سوی وي) ذمه وار وي. لهذا که په کفاله کي د اصيل برائت (بري کېدل) شرط وي، نو هغه حواله ده، او که په کفاله کي د اصيل نه بري کېدل شرط وي، نو هغه کفاله ده.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَلَوْطَالَبَ أَحَدَهُمَا او که مکفول لهٗ په کفیل او اصیل کې له یوه څخه مطالبه وکړي لَهُ أَنْ يُطَالِبَ الْآخَرَ نو هغه ته له بل یوه څخه هم د مطالبه کولو اختیار ستہ، وَلَهُ أَنْ يُطَالِبَهُمَا او هغه ته دا اختیار هم سته چې له دواړو څخه مطالبه وکړي لِأَنَّ مُقْتَضَاهُ الضَّمُّ ځکه چې د کفاله تقاضا [یوه ذمه د بلې ذمې] سره یو ځای کول دي بِخِلَافِ الْمَالِكِ إِذَا اخْتَارَ تَضْمِينَ أَحَدِ الْغَاصِبَيْنِ په خلاف د [مغصوب شي] مالک کله چې هغه په دوو غاصبانو کې له یوه څخه د ضمان اخیستل اختیار کړي لِأَنَّ اخْتِيَارَهُ أَحَدَهُمَا يَتَضَمَّنُ التَّمْلِيكَ مِنْهُ ځکه چې د مالک له طرفه په دواړو کې د یوه غاصب اختیارول د هغه غاصب مالک جوړولو لره متضمن دي [یعني کله چې مالک یو غاصب اختیار کړی نو ګواکې مالک هغه ته خپل مغصوب شی په ملکیت کې ورکړی او هغه یې د خپل شي مالک جوړ کړی] فَلَا يُمْكِنُهُ التَّمْلِيكُ مِنَ الثَّانِيْ نو ځکه [د مغصوب شي] د مالک لپاره به د دویم غاصب مالک جوړول ممکن نه وي [ځکه په یوه وخت کې دوه خلک د یوه شي مالک کېدلای نه سي] أَمَّا الْمُطَالَبَةُ بِالْكَفَالَةِ لَا تَتَضَمَّنُ التَّمْلِيكَ او کوم چې د کفالې په وجه مطالبه کول دي نو هغه مالک جوړولو لره متضمن نه دي فَوَضَحَ الْفَرْقُ نو ځکه [په دواړو کې] فرق څرګند سو.

**اللغات:** ﴿ضمّ﴾ د نصر مصدر دی: (یو شي د بل شي) سره یو ځای کول، ضمول، ﴿تضمين﴾ د تفعیل مصدر دی: ضامن ګرځول، له یو چا څخه ضمان (تاوان) اخیستل، ﴿مقتضا﴾ تقاضا، مُوجب، ﴿يتضمّن﴾ د تفعّل مضارع ده: ضمناً شاملېدل، مشتمل کېدل، ﴿تمليك﴾ د تفعیل مصدر دی: یو څوک د شي مالک جوړول (مالک ګرځول)، شی د یو چا په ملکیت کې ورکول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که مکفول لهٗ مثلاً له کفیل څخه د قرض مطالبه وکړي نو تر دې وروسته هغه ته دا اختیار هم سته چې له اصیل (مکفول عنه) څخه مطالبه وکړي، همدارنګه که هغه له اصیل څخه د قرض مطالبه وکړي، نو هغه ته له کفیل څخه د مطالبه کولو اختیار هم سته، همدارنګه هغه ته په یوه وخت کې له دواړو څخه د مطالبه کولو اختیار هم سته؛ ځکه چې له یوه څخه مطالبه کول، له بل یوه څخه د مطالبه کولو اختیار نه ساقطوي، بلکې مکفول لهٗ ته په یوه وخت کې له کفیل او اصیل دواړو څخه د مطالبه کولو اختیار حاصل دی؛ ځکه چې د عقد کفاله مُوجب

"يوه ذمه د بلې ذمې سره يو ځای کول" دي، او دا معنیٰ هغه وخت ثابتيږي کله چې په يوه وخت کې له دواړو څخه د مطالبه کولو اختيار وي، نو ځکه له دواړو څخه په يوه وخت کې مطالبه کول هيڅ حرج او پروا نه لري.

ها! که يو سړی د بل چا يو شی غصب کړي بيا له دغه سړي (غاصب) څخه بل څوک هغه شی غصب کړي، او هغه شی د غاصب الغاصب سره هلاک سي، نو په دې صورت کې مالک (مغصوب منه) ته اختيار دی که له غاصب څخه تاوان اخلي، او که يې له غاصب الغاصب څخه اخلي (يعني فقط له يوه څه تاوان اخيستلای سي)، او کله چې هغه په دې دواړو کې له يوه څخه د ضمان اخيستل اختيار کړي، نو اوس هغه ته له بل يوه څخه د ضمان د مطالبه کولو اختيار نسته؛ ځکه مالک چې له کوم يوه څخه د ضمان اخيستل اختيار کړه، د دې مطلب دا دی چې مالک هغه غاصب د خپل شي مالک جوړ کړی (يعني ګواکې مالک خپل شی د هغه په ملکيت کې ورکړی). او کله چې مالک په دواړو کې يو غاصب د خپل مغصوب شي مالک جوړ کړی. نو اوس هغه ته د بل غاصب د مالک جوړولو اختيار نسته، ځکه دا خبره ناممکنه ده چې دوه خلک په يوه وخت کې د يوه شي پوره، پوره مالکان وي، (يعني دا ناممکنه ده چې په دواړو کې هر يو د پوره شي مالک وي).

او پاتې سو د کفالې په وجه مطالبه کول، نو هغه د مالک جوړولو معنیٰ لره متضمن نه دي (يعني په هغه کې د تمليک معنیٰ نسته)، يعني که مکفول لهٗ له کفيل څخه مطالبه وکړي نو د دې دا معنیٰ نه ده چې هغه خپل اصل مال د کفيل په ملکيت کې ورکول اختيار کړه، بلکې هغه مال خو پر اصيل يعني پر مقروض (مکفول عنه) باندې دی او له کفيل څخه محض د ذمه واری مطالبه ده، لهٰذا کله چې خبره داسې ده نو هغه به له اصيل څخه هم مطالبه کولای سي. په دې تفصيل او تقرير سره د کفاله او غصب په مسئله کې فرق واضح سو.

## کفاله پر شرائطو معلق کول (حکم او اختلاف)

قَالَ: وَيَجُوزُ تَعْلِيقُ الْكَفَالَةِ بِالشُّرُوطِ فرمايي: او کفاله پر شرطونو معلق کول جائز دي مِثْلَ أَنْ يَقُولَ: مَا بَايَعْتَ فُلَانًا فَعَلَيَّ مثلاً داسې ووايي: ته چې د فلانکي سره کومه بيع [هم] وکړې، نو هغه پر ما ده أَوْ مَا ذَابَ لَكَ عَلَيْهِ فَعَلَيَّ يا کوم څه چې ستا پر فلانکي واجب سي هغه پر ما دي أَوْ مَا غَصَبَكَ فَعَلَيَّ يا کوم څه چې فلانکی ستا څخه غصب کړي نو هغه پر ما دي وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ تَعَالَىٰ: ﴿وَلِمَنْ جَاءَ بِهِ حِمْلُ بَعِيرٍ وَأَنَا بِهِ زَعِيمٌ﴾ [سورة يوسف: ۷۲] او اصل په دې باره کې د الله

تعالیٰ دا فرمان: "او کوم څوک چې دا لوښی راوړي د هغه لپاره د اوښ يو بار دی او زه کفيل [ذمه وار] يم وَالْإِجْمَاعُ مُنْعَقِدٌ عَلَىٰ صِحَّةِ ضَمَانِ الدَّرْكِ او د ضمان بالدرک پر صحيح کېدلو اجماع منعقد سوي ده ثُمَّ الْأَصْلُ أَنَّهُ يَصِحُّ تَعْلِيقُهَا بِشَرْطٍ مُلَائِمٍ لَهَا بيا قاعده دا ده چې کفاله پر داسي شرط معلق کول صحيح دي کوم چې د کفالې مناسب وي مِثْلَ أَنْ يَكُونَ شَرْطًا لِوُجُوبِ الْحَقِّ مثلاً هغه د حق واجبېدلو شرط وي كَقَوْلِهِ: إِذَا اسْتُحِقَّ الْمَبِيعُ لکه د کفيل دا قول: کله چې مبيع مستحق وخيږي أَوْ لِإِمْكَانِ الِاسْتِيفَاءِ يا هغه د حق اخيستلو د ممکن کېدلو شرط وي مِثْلَ قَوْلِهِ: إِذَا قَدِمَ زَيْدٌ مثلاً د هغه دا قول: کله چې زيد راسي وَهُوَ مَكْفُولٌ عَنْهُ حال دا چې زيد مکفول عنه وي أَوْ لِتَعَذُّرِ الِاسْتِيفَاءِ يا هغه د حق اخيستلو د ناممکن کېدلو شرط وي مِثْلَ قَوْلِهِ: إِذَا غَابَ عَنِ الْبَلْدَةِ مثلاً د هغه دا قول: کله چې هغه [مکفول عنه] غائب سي وَمَا ذُكِرَ مِنَ الشُّرُوطِ فِي مَعْنَىٰ مَا ذَكَرْنَاهُ او کوم شرطونه چې [په مسئله کي] ذکر سوي دي هغوی [قوله] په هغه معنیٰ سره دي کوم چې موږ ذکر کړه فَأَمَّا لَا يَصِحُّ التَّعْلِيقُ بِمُجَرَّدِ الشَّرْطِ او کوم چې پر محض شرط معلق کول دي نو هغه صحيح نه دي كَقَوْلِهِ: إِنْ هَبَّتِ الرِّيحُ أَوْ جَاءَ الْمَطَرُ لکه د هغه دا قول: که چيري هوا وچليږي يا باران اووريږي وَكَذَا إِذَا جَعَلَ وَاحِدٌ مِنْهُمَا أَجَلًا او همدارنګه کله چې له دي دواړو څخه يو [د کفالې لپاره] ميعاد وټاکي [نو دا صحيح نه دي. بلکي ميعاد باطليږي] إِلَّا أَنَّهُ يَصِحُّ الْكَفَالَةُ وَيَجِبُ الْمَالُ حَالًّا مګر کفاله صحيح کيږي او مال في الحاله [فوراً] واجبيږي لِأَنَّ الْكَفَالَةَ لَمَّا صَحَّ تَعْلِيقُهَا بِالشَّرْطِ ځکه کله چې کفاله پر شرط معلق کول صحيح دي لَا تَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ نو هغه به په فاسدو شرطونو سره نه باطليږي كَالطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ لکه طلاق او عتاق.

**اللغات**: ﴿تعليق﴾ د تفعيل مصدر دی: معلق کول. ﴿بايعت﴾ د مفاعلې ماضي ده: يو د بل سره بيع کول، د بيع معامله کول. (خرڅول او رانيول کول). ﴿ذاب﴾ د نصر ماضي ده: کله چې د مال او حق په سياق کي ذکر سي، نو د "واجبېدلو" او "ثابتېدلو" معنیٰ ورکوي (معجم وسيط). ﴿حِمْل﴾ بار، هغه څه کوم چې په اوښ، خره او داسي نورو باندي وړل کيږي. ﴿بعير﴾ اوښ. ﴿زعيم﴾ ضامن، ذمه وار. ﴿ملائم﴾ مناسب، لائق. ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: خپل حق پوره اخيستل، پوره ترلاسه کول. ﴿هبّت﴾ هوا چلېدل (هوا الوتل).

**تشریح : صورت د مسئلې** : دا دی چې کفاله پر شرط معلق کول جائز دي؛ مثلاً که څوک داسې ووایي: "ته چې د فلانکي سړي سره کومه د بیع معامله (هم) وکړي، نو زه د هغه ذمه وار یم"، یا داسې ووایي "چې کوم څه ستا پر هغه واجب سي، د هغه ذمه وار زه یم"، یا داسې ووایي "فلانکی سړی چې ستا کوم مال غصب کړي، د هغه ذمه وار زه یم"، نو په دې ټولو صورتونو کې کفاله هم صحیح ده او د هغې تعلیق هم صحیح دی؛ په دې باره کې اصل د قرآن کریم دا آیت دی: ﴿وَلِمَن جَاءَ بِهِ حِمْلُ بَعِيرٍ وَأَنَا بِهِ زَعِيمٌ﴾ [سورة یوسف:٧٢] (یعني یوسف ﷺ ووېل: کوم څوک چې ورک سوی لوښی ما ته راوړي، نو د هغه لپاره [په انعام کې] د اوښ بار دی، او زه د دې کفیل او ذمه وار یم) او ګورئ! په دې آیت کې کفاله معلقه ده، ځکه یوسف ﷺ د لوښي په راوړلو باندې کفاله معلقه کړې ده چې که څوک هغه لوښي راوړي نو هغه ته انعام ورکوم، کنې نه یې ورکوم. له دې آیت څخه دوه حکمونه معلوم سوه: یو دا چې که مکفول به مجهول وي، نو هم کفاله جائز ده. او بل دا چې که کفاله پر شرط معلقه کړی سي، نو هم جائز ده.

ثم الأصل إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د قاعدې په توګه فرمایي چې: کفاله پر هغه شرط معلق کول جائز دي، کوم شرط چې د کفالې مناسب وي. ①... مثلاً هغه داسې شرط وي چې په هغه کې د مکفول لهٗ واجب حق مضمر وي (مثلاً پر مکفول عنه د مکفول لهٗ د حق واجبېدلو شرط وي)، مثلاً یو څوک د بیع په وخت کې مشتري ته داسې ووایي "ته له فلانکي څخه دا شی رانیسه! که چیرې مبیع مستحق وخیېږي (یعني بل څوک په مبیع کې خپل استحقاق ثابت کړي) او هغه واخلي، نو زه ستا لپاره د ثمن کفیل یم"، نو دا کفاله صحیح ده؛ ځکه دلته چې کوم شرط دی، هغه د کفالې مناسب دی، او په دې کې د مشتري (مکفول لهٗ) فایده هم ده چې په دې کفاله سره د هغه د واجب حق اداء کېدلو ته تقویت حاصلیږي. (ځکه په دې مثال کې مشتري مکفول لهٗ دی او بائع [فلانکی] مکفول عنه دی. او شرط [یعني د مبیع مستحق کېدل] پر بائع د مشتري د حق [ثمن] واجبېدلو شرط دی) [1].

---

[1] صاحب د أثمار الهدایې دا شرط په بله وینا داسې ذکر کړی دی چې: که کفیل داسې شرط ولګوي چې په هغه سره مشتري (مکفول له) ته مبیع حاصلېدل ممکن وګرځي (یعني په هغه سره مشتري ته اطمینان حاصل سي چې اوس خامخا دا مبیع ما ته حاصلیږي). مثلاً کفیل مشتري ته داسې ووایي: ته دا مبیع رانیسه! که چیري بل څوک د دې مبیع حقدار وخیېږي، نو زه د هغه د قیمت ذمه واریم. په دې ذمه واري سره مشتري ته د دې خبرې اطمینان او تقویت حاصل سو چې که مبیع مستحق وخیېږي، نو د کفیل له طرفه به ما ته خپل قیمت حاصل سي. (أثمار الهدایه)

②... يا داسي شرط وي چي په هغه سره د حق اخيستل ممكن سي، مثلاً يو سړى پر دې شرط كفيل جوړ سي چي كله زيد راغلى نو زه د هغه كفيل يم. دلته مكفول عنه زيد دى، نو دا شرط هم د كفالې مناسب دى او كفاله صحيح ده؛ ځكه دلته مكفول لهٗ ته د حق وركولو لپاره كفاله د زيد پر راتګ معلق سوې ده، لهذا كله چي زيد راسي نو د كفيل لپاره له زيد څخه خپل حق اخيستل ممكن كيږي [۲].

③... يا يو داسي شرط وي كوم چي د حق اخيستل ناممكن وګرځوي. يعني كفيل پر داسي شرط كفاله معلقه كړي چي مكفول لهٗ ته خپل حق اخيستل ناممكن سي، مثلاً كه د خالد پر زيد قرض باندي وي او خالد له هغه څخه كفيل وغواړي، نو حامد د زيد له طرفه كفيل سي او خالد (مكفول لهٗ) ته داسي ووايي "ته د خپل حق طلب او غوښتنه له زيد (مكفول عنه) څخه كوه. ها! كه چيري زيد (مكفول عنه) له دې ښار څخه غائب سي نو ته فكر مه كوه!، زه ستا حق دركوم"، نو دا شرط هم د كفالې مناسب دى [۳]. حاصل دا چي كفاله پر داسي شرطونو معلقه كول جائز دي كوم چي د عقد كفاله مناسب وي، او په مسئله چي كوم شرطونه ذكر سوي دي يعني "مَا بَايَعْتُ فُلَانًا فَعَلَيَّ...إلخ" هغه ټوله د كفالې مناسب دي، نو ځكه پر هغه شرطونو به كفاله معلقه كول جائز وي.

فأما لايصح إلخ: او كه چيري كفاله پر داسي شرط معلقه كړى سي كوم چي د كفالې مناسب نه وي بلكي محض شرط وي، نو دا جائز نه دي، مثلاً يو سړى داسي ووايي "كه چيري هوا وچليږي نو زه كفيل يم"، يا "كه چيري باران وسي نو زه كفيل يم"، پر داسي شرطونو كفاله معلقه كول جائز نه دي.

---

[۲] په بله وينا داسي هم ويل كېداى سي: كه كفيل داسي شرط ولګوي چي په هغه سره د كفالت مال كفيل ته واپس حاصلېدل ممكن وګرځي، مثلاً داسي ووايي: كه چيري زيد (مقروض) راسي نو بيا زه د هغه كفيل يم. د كفيل مقصد دا دى چي كله زيد راسي او زه د هغه مخته كفيل جوړ سم، نو كوم مال چي زه په كفالت كي اداء كوم، هغه به زه له زيد څخه واخلم. يا به يې له خپل طرفه اداء كړم بيا به يې له زيد څخه واخلم. (أثمار الهدايه)

[۳] صاحب د أثمار الهدايې دا شرط داسي ذكر كړى دى: كه څوک پر دې شرط كفيل جوړ سي چي له مقروض (مكفول عنه) څخه حق اخيستل ناممكن سي، مثلاً كفيل داسي ووايي: كه چيري مقروض (مكفول عنه) له ښار څخه غائب سي. نو بيا زه د هغه كفيل يم. د كفيل مقصد دا دى چي د مقروض د غائبېدلو په صورت كي قرض وركونكي (مكفول له) ته خپل حق (د قرض مال) نه حاصليږي. نو ځكه پر دغه پورتني شرط كفيل جوړ سو (د دې لپاره چي د مقروض د غائبېدلو په صورت كي هغه ته خپل مال وركړي). دا درې سره شرطونه د كفاله مناسب دي. نو ځكه پر داسي شرطونو كفاله معلق كول صحيح دي. (أثمار الهدايه)

او که چیرې څوک د هوا چلېدل یا باران اوربېدل د کفالې لپاره میعاد وټاکي. مثلاً داسې ووايي "زه د هوا چلېدلو یا د باران اوربدلو تر وخته پورې کفیل یم"، نو په دې صورت کې میعاد باطلیږي. لیکن کفاله صحیح کیږي او د کفالت مال في الحاله واجبیږي.

له دلیل څخه مخکې په دې ځان پوه کړئ! چې د دغه دلیل په عبارت کې له "تعلق بالشرط" څخه مراد اجل (میعاد) دی؛ ځکه چې د میعادي کفالې دلیل ذکر کیږي. نه د معلقي کفالې. نو اوس د دلیل حاصل دا دی چې کله کفاله په متعارف میعاد سره مؤجله کول (نېټه داره کول) صحیح دي. نو په فاسدو میعادونو سره به هغه نه باطلیږي. بلکې فاسد میعادونه به په خپله باطلیږي. لکه څرنګه په طلاق او عتاق کې دا حکم دی چې که څوک په طلاق یا عتاق کې مجهول میعاد ذکر کړي. مثلاً داسې ووايي چې "زما غلام آزاد دی. یا زما ښځه طلاقه ده کله چې حاجیان راسي. یا هوا وچلیږي. یا باران اووربږي" نو په خپله دا میعاد باطلیږي، او طلاق او عتاق في الحاله واقع کیږي.

## د مجهول مال د کفالت حکم

فَإِنْ قَالَ: تَكَفَّلْتُ بِمَا لَكَ عَلَيْهِ او که کفیل ووايي: زه د هغه څه کفیل [ضامن] سوم کوم چې ستا پر هغه [باندي] دي فَقَامَتِ الْبَيِّنَةُ بِأَلْفٍ عَلَيْهِ بیا ګواهي پېش سوه چې پر هغه زر درهمه [باندي] دي ضَمِنَهُ الْكَفِيلُ نو کفیل د زر درهمو ضامن کیږي لِأَنَّ الثَّابِتَ بِالْبَيِّنَةِ كَالثَّابِتِ مُعَايَنَةً ځکه کوم شی چې په بیّنه سره ثابت سوی وي هغه داسې دی لکه په مشاهده سره ثابت سوی فَيَتَحَقَّقُ مَا عَلَيْهِ لهذا کوم څه چې پر مکفول عنه دي هغه به ثابتیږي فَيَصِحُّ الضَّمَانُ بِهِ او د هغه ضمان به صحیح کیږي وَإِنْ لَمْ تَقُمِ الْبَيِّنَةُ او که چیرې ګواهي پېش نه سي فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْكَفِيلِ مَعَ يَمِينِهِ فِي مِقْدَارِ مَا يَعْتَرِفُ بِهِ نو کفیل چې د کوم مقدار اقرار کوي د هغه په هکله به د کفیل قول د قسم سره معتبر وي لِأَنَّهُ مُنْكِرٌ لِلزِّيَادَةِ ځکه چې هغه د زیاتوب انکار کونکی دی فَإِنِ اعْتَرَفَ الْمَكْفُولُ عَنْهُ بِأَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ او که چیرې مکفول عنه له هغه څخه د زیات مقدار اقرار وکړي لَمْ يُصَدَّقْ عَلَى كَفِيلِهِ نو پر کفیل به د هغه تصدیق نه کیږي لِأَنَّهُ إِقْرَارٌ عَلَى الْغَيْرِ ځکه چې دا پر غیر [بل چا] اقرار دی وَلَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَيْهِ او مکفول عنه ته پر کفیل هیڅ ولایت حاصل نه دی وَيُصَدَّقُ فِي حَقِّ نَفْسِهِ [لیکن] د مکفول عنه د ذات په حق کې به د هغه تصدیق کیږي لِوِلَايَتِهِ عَلَيْهَا ځکه چې مکفول عنه ته پر خپل ذات ولایت حاصل دی.

**اللغات**: ﴿بیّنة﴾ ګواهي. ﴿یمین﴾ قسم.

**تشريح : صورت د مسئلې**: دا دی که یو څوک د مجهول مکفول به کفیل جوړ سي، مثلاً داسي ووايي: "ستا كوم مال چي پر فلانكي (باندي) دی، زه د هغه كفيل او ضامن يم"؛ بيا د گواهانو په ذريعه دا ثابته سي چي د مكفول لهٔ پر مكفول عنه (فلانكي) زر درهمه باندي دي، نو كفيل د زرو درهمو ضامن كيږي (يعني پر كفيل زر درهمه واجبيږي چي هغه به مكفول لهٔ ته وركوي).

دليل دا دی چي كوم شی په گواهانو سره ثابت سي هغه داسي دی لکه په مشاهده او ليدنه سره چي ثابت سي، او مشاهده سوی مقدار پر كفيل واجبيږي، يعني كله چي كفيل د هغه مال په مقدار خبر سي او مشاهده يې كړي كوم چي پر مكفول عنه (باندي) دی او بيا د هغه كفيل سي، نو پر كفيل هغه مقدار واجبيږي كوم چي پر مكفول عنه دی، لهذا همداسي چي كله په گواهانو سره يو مقدار ثابت سي، نو د هغه مقدار كفيل كېدل به هم صحيح وي.

او كه چيري د مال پر مقدار گواهان پېش نه كړل سي، او مكفول لهٔ او كفيل د مقدار په هكله اختلاف وكړي، مثلاً مكفول لهٔ ووايي چي "ما پر مكفول عنه دوه زره درهمه (باندي) دي"، او كفيل ووايي چي "نه! ستا پر هغه زر درهمه دي"، نو په داسي صورت كي د كفيل قول د يمين (قسم) سره معتبر دی؛ ځكه چي كفيل پر خپل ځان له زياتوب څخه انكار كوي. او معلومه خبره ده چي كله د زياتوب د مدعي سره بېينه نه وي نو د منكر قول مع اليمين معتبر وي. نو ځكه دلته به هم د منكر (كفيل) قول معتبر وي.

او كفيل چي د كوم مقدار اقرار كوي كه چيري مكفول عنه له هغه څخه د زيات مقدار اقرار وكړي، نو پر كفيل به د هغه د قول تصديق نه كيږي، يعني پر كفيل هغه مقدار نه واجبيږي د كوم مقدار چي مكفول عنه اقرار كوي، مگر په خپله د مكفول عنه د ذات په حق كي به د هغه تصديق كيږي: د كفيل په حق كي خو به ځكه د هغه تصديق نه كيږي چي د مكفول عنه دغه اقرار "اقرار على الغير" دي (يعني دا د بل چا په خلاف اقرار كول دي)، او د بل چا (غير) په خلاف اقرار كول هغه وخت پر دې بل چا (غير) لازميږي كله چي اقرار كونكي ته پر دې بل چا ولايت حاصل وي، حال دا چي مكفول عنه ته پر كفيل هيڅ ولايت حاصل نه دی. لهذا كله چي مكفول عنه ته پر كفيل هيڅ ولايت نسته. نو ځكه د مكفول عنه د اقرار په وجه به پر كفيل هيڅ شی نه لازميږي. او په خپله د مكفول عنه په حق كي به د هغه تصديق ځكه كيږي چي مكفول عنه ته پر خپل ذات ولايت حاصل دی. لهذا مكفول لهٔ د زائد مقدار مطالبه فقط له مكفول عنه څخه كولای سي، نه له كفيل څخه.

## د كفالت د جائز كېدلو لپاره د مكفول عنه د حكم كولو مسئله

قَالَ: وَتَجُوْزُ الْكَفَالَةُ بِأَمْرِ الْمَكْفُوْلِ عَنْهُ وَبِغَيْرِ أَمْرِهِ فرمايي: او كفاله د مكفول عنه په حكم سره هم جائز ده او د هغه له حكم څخه بغير هم جائز ده لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا ځكه كوم حديث چي موږ روايت كړى هغه مطلق دى وَلِأَنَّهُ اِلْتِزَامُ الْمُطَالَبَةِ او ځكه چي كفاله [پر خپل ځان] د مطالبې لازمولو [ته وايي] وَهُوَ تَصَرُّفٌ فِيْ حَقِّ نَفْسِهِ او دا د خپل ذات په حق كي يو تصرف دى وَفِيْهِ نَفْعٌ لِلطَّالِبِ او په دې كي د مكفول لهٗ نفع ده وَلَا ضَرَرَ فِيْهِ عَلَى الْمَطْلُوْبِ بِثُبُوْتِ الرُّجُوْعِ او د رجوع ثابتېدلو په وجه په هغه كي د مكفول عنه هيڅ نقصان نسته إِذْ هُوَ عِنْدَ أَمْرِهِ ځكه چي د رجوع ثبوت د مكفول عنه د حكم په وخت كي وي وَقَدْ رَضِيَ بِهِ حال دا چي مكفول عنه په هغه راضي سوى دى. [صاحب د أثمار الهدايې د دې جملې ولا ضرر فيه على المطلوب...إلخ ترجمه بل ډول كړې ده چي هغه به موږ د تشريح په آخر كي په "يادونه" كي ذكر كړو].

**اللغات**: ﴿التـزام﴾ د افتعال د باب مصدر دى: پر خپل ځان لازمول (په خپله غاړه اخيستل)، ﴿الرجوع﴾ د ضرب د باب مصدر دى: رجوع كول، مراد ځني واپس اخيستل دي (له مكفول عنه څخه واپس اخيستل).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دى چي د كفالې د صحت او جواز لپاره د مكفول عنه حكم كول ضروري نه دي، بلكي څرنګه چي د مكفول عنه د حكم كولو په صورت كي كفاله جائز ده او منعقده كيږي، همداسي د هغه له حكم څخه بغير هم كفاله جائز ده او منعقده كيږي، يعني كه مكفول عنه يو چا ته حكم وكړي چي "ته زما له طرفه كفيل سه!، يا زما له طرفه ضامن او ذمه وار سه!" نو دا جائز دي او په دې سره كفاله منعقده كيږي، همداسي كه يو څوك د مكفول عنه له حكم څخه بغير د هغه كفيل سي، نو هم جائز دي او كفاله منعقده كيږي؛ دليل دا دى چي د نبي كريم ﷺ دا فرمان "الزَّعِيْمُ غَارِمٌ" مطلق دى، او په دې كي د مكفول عنه د حكم كولو يا نه كولو په هكله هيڅ صراحت نه دى سوى، نو ځكه على الإطلاق به كفاله جائز وي، برابره ده په هغه كي د مكفول عنه حكم شامل وي، كه نه.

دويم دليل دا دى چي د كفالې معنىٰ ده "پر خپل ځان مطالبه لازمول"، او پر خپل ځان مطالبه لازمول د خپل ذات په حق كي تصرف دى، او د خپل ذات په حق كي چي كوم تصرف وي، هغه لازم وي، په دې شرط چي په هغه تصرف سره "بل چا" (غير) ته ضرر نه رسيږي، او په كفاله كي "بل

ځو ک" مکفول لهٔ او مکفول عنه دي او د کفیل په تصرف سره دوی دواړو ته هیڅ ضرر نه رسیږي، بلکي په دې کي د مکفول لهٔ ښکاره نفع ده. په دې توګه چي له کفاله څخه مخکي مکفول لهٔ ته فقط له مکفول عنه څخه د مطالبه کولو اختیار وي، او تر کفاله وروسته هغه ته له کفیل څخه د مطالبه کولو اختیار هم حاصل سي. ښکاره خبره ده چي په دې کي د مکفول لهٔ نفع ده.

ولا ضرر فیه علی المطلوب إلخ: او په کفاله کي د مکفول عنه هم هیڅ ضرر نسته؛ ځکه مکفول عنه به کفیل ته د کفالت حکم کړی وي، یا به یې کفیل ته حکم نه وي کړي، که چیري مکفول عنه کفیل ته حکم نه وي کړي، نو په دې صورت کي چي کفیل قرض اداء کړي، نو هغه ته دا اختیار نسته چي پر مکفول عنه رجوع وکړي (یعني په دې صورت کي کفیل ته دا اختیار نسته چي له مکفول عنه څخه هغه مال واخلي کوم چي کفیل د هغه په قرض کي اداء کړی دی)، او کله چي په دې صورت کي کفیل ته پر مکفول عنه د رجوع کولو شرعاً هیڅ اختیار نسته، نو په دې صورت کي د مکفول عنه هیڅ نقصان نسته بلکي په دې کي سر تر پایه د هغه نفع ده. او که چیري مکفول عنه کفیل ته حکم کړی وي، نو په دې صورت کي تر قرض اداء کولو وروسته که څه هم کفیل ته پر مکفول عنه د رجوع کولو اختیار سته، مګر څرنګه چي مکفول عنه په خپله کفیل ته د قرض اداء کولو حکم کړی دی، نو دا ګواکي مکفول عنه په هغه راضي سو، او په کوم ضرر چي انسان راضي سي، هغه ضرر نه شمارل کیږي، لهذا په دې صورت کي هم مکفول ته هیڅ ضرر نه لاحق کیږي، نو ثابته سوه چي کفاله په دواړو صورتونو کي جائز ده، برابره ده مکفول عنه حکم کړی وي او که نه وي. (أشرف الهدایه ج: ۹، ص: ۱۶۰)

**یادونــــه**: صاحب دا ثمار الهدایې د ضمیر په تغیّر سره د پورتنۍ جملې "ولا ضرر فیه علی المطلوب... إلخ" آسانه او ساده اصطلاحي ترجمه کړې ده کوم چي څه تشریح ته ضرورت نه لري او فقط په ترجمه سره عبارت واضح کیږي، د هغه ترجمه دا ده: ولا ضرر فیه علی المطلوب او په کفاله کي د کفیل (هم) هیڅ نقصان نسته بثبوت الرجوع ځکه هغه له مکفول عنه (مقروض) څخه د قرض مال واپس اخیستلای سي إذ هو عند أمره ځکه چي هغه د مکفول عنه په حکم سره کفیل جوړ سوی دی وقد رضی به او مکفول عنه په دې راضي هم دی. (أثمار الهدایه ج: ۹، ص: ۴۰)

مګر د فقیر بنده (حبیب الرحمن) په نیز دلته دا أشرف الهدایې ترجمه او تشریح غوره ده، ځکه هغه د سیاق او سباق سره ډېر مناسبت لري او د عبارت سره لګیږي، او نورو شارحینو هم هغسي تشریح کړې ده، که څه هم هغه لږ مشکله ده او څه فکر ته ضرورت لري.

## کفیل کله خپل اداء کړی سوی مال له مکفول عنه څخه اخیستلای سې (تفصیلي بیان)

فَإِنْ كَفَلَ بِأَمْرِهِ نو که چیري هغه کفیل جوړ سي د مکفول عنه په حکم سره رَجَعَ بِمَا أَدَّى عَلَيْهِ نو [په دې صورت کې] چي کفیل کوم څه اداء کړي هغه به له مکفول عنه څخه واپس اخلي لِأَنَّهُ قَضَى دَيْنَهُ بِأَمْرِهِ ځکه چي [په دې صورت کې] کفیل د مکفول عنه په حکم سره د هغه قرض اداء کړی دی وَإِنْ كَفَلَ بِغَيْرِ أَمْرِهِ او که چیري د هغه له حکم څخه بغیر کفیل جوړ سي لَمْ يَرْجِعْ بِمَا يُؤَدِّيهِ نو کوم څه چي هغه اداء کوي هغه له مکفول عنه څخه واپس نه سي اخیستلای لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ بِأَدَائِهِ ځکه چي [په دې صورت کې] کفیل د قرض په اداء کولو کي احسان کونکي دی وَقَوْلُهُ "رَجَعَ بِمَا أَدَّى" مَعْنَاهُ: إِذَا أَدَّى مَا ضَمِنَهُ او د ماتن رَحِمَهُ الله د قول "رجع بما أدى" معنیٰ دا ده: چي کله کفیل هغه شی اداء کړي د کوم چي هغه ضامن سوی وي أَمَّا إِذَا أَدَّى خِلَافَهُ [لیکن] که کفیل د هغه خلاف شی اداء کړي رَجَعَ بِمَا ضَمِنَ نو فقط هغه څه به واپس اخلي د کوم چي ضامن سوی وي لِأَنَّهُ مَلَكَ الدَّيْنَ بِالْأَدَاءِ ځکه چي کفیل په اداء کولو سره د قرض مالک سو فَنَزَلَ مَنْزِلَةَ الطَّالِبِ نو ځکه هغه د مکفول لهٗ قائم مقام سو كَمَا إِذَا مَلَكَهُ بِالْهِبَةِ أَوْ بِالْإِرْثِ لکه په هغه صورت کي کله چي کفیل په هبه یا میراث سره د اصل قرض مالک سي وَكَمَا إِذَا مَلَكَهُ الْمُحْتَالُ عَلَيْهِ بِمَا ذَكَرْنَا فِي الْحَوَالَةِ او لکه کله چي محتال علیه د قرض مالک سي، د هغه څه په وجه کوم چي موږ په حواله کي ذکر کړي دي بِخِلَافِ الْمَأْمُورِ بِقَضَاءِ الدَّيْنِ په خلاف د هغه کس کوم ته چي د قرض اداء کولو حکم سوی وي حَيْثُ يَرْجِعُ بِمَا أَدَّى ځکه هغه [مأمور] چي کوم څه اداء کړي وي هغه واپس اخیستلای سي ادا په دې وجه [ لِأَنَّهُ لَمْ يَجِبْ عَلَيْهِ شَيْءٌ حَتَّى يَمْلِكَ الدَّيْنَ بِالْأَدَاءِ ځکه چي پر مامور هیڅ شی واجب نه وو چي په اداء کولو سره هغه د قرض مالک سي وَبِخِلَافِ مَا إِذَا صَالَحَ الْكَفِيلُ الطَّالِبَ عَنِ الْأَلْفِ عَلَى خَمْسِ مِائَةٍ او په خلاف د هغه صورت کله چي کفیل د زر درهمو په سلسله کي د مکفول لهٗ سره پر پنځه سوه درهمو صلح وکړي لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ ځکه چي دا ساقطول دي فصار كَمَا إِذَا أَبْرَأَ الْكَفِيلَ نو دا داسي سو لکه مکفول لهٗ چي کفیل بري کړی وي.

**اللغات**: ﴿أدّى عليه﴾ د هغه له طرفه اداء كول. ﴿صالح﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: مصالحت كول. صلح كول (مراد ځني د څه قرض پر معاف كولو او پرېښوولو صلح كول دي). ﴿أبرأ﴾ د افعال د باب ماضي ده: بري كول. معاف كول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه كفيل د مكفول عنه په حكم سره كفيل جوړ سي او بيا هغه د مكفول لهٔ قرض اداء كړي. نو په دې صورت كي كفيل ته د دې پوره اختيار سته چي له مكفول عنه څخه د قرض په اندازه مال واپس واخلي: ځكه چي كفيل د مكفول عنه په حكم سره د هغه قرض اداء كړى دى. او هر هغه كس كوم چي د بل چا په حكم سره د هغه قرض اداء كړي، نو هغه د "مَا أَدّىٰ" (اداء كړى سوي مال) د واپس اخيستلو حق لري. لهٰذا په دې مسئله كي به هم كفيل له مكفول عنه څخه د "مَا أَدّىٰ" د واپس اخيستلو حقدار وي. ها! كه چيري كفيل د مكفول عنه له حكم څخه بغير كفيل جوړ سي او بيا د هغه قرض اداء كړي، نو په دې صورت كي كفيل له مكفول عنه څخه اداء كړى سوى مال واپس نه سي اخيستلاى: ځكه چي په دې صورت كي هغه متبرّع (احسان كوونكى) دى، او متبرع چي كوم څه كوي هغه واپس نه سي اخيستلاى، او شريعت د "مَا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ مِنْ سَبِيْلٍ" په حكم سره چي څرنګه په تبرّع كي جبر (مجبوره كول) ممنوع ګرځولي دي، همداسي يې له تبرّع كولو څخه وروسته د هغه واپس اخيستل هم ممنوع ګرځولي دي (أحسن الهدايه). (همدارنګه د بخاري شريف په يو حديث كي هم ذكر سوي دي چي ابو قتاده ﷺ د ميّت (مړي) له حكم څخه بغير د هغه كفيل جوړ سو او د هغه قرض يې اداء كړى. وروسته هغه اداء كړى سو مال واپس نه واخيستى. بخاري شريف. ص: ۳۶۶. حديث رقم: ۲۲۹۵. (أثمار الهدايه)

**وقوله إلخ**: فرمايي د ماتن رَحِمَهُ الله د دې قول "رَجَعَ بِمَا أَدّىٰ" مطلب دا دى چي كله كفيل خاص هغه شى اداء كړى وي د كوم شي چي هغه ضامن سوى وي، نو په دې صورت كي هغه له مكفول عنه څخه "مَا أَدّىٰ" واپس اخيستلاى سي (مثلا پر مكفول عنه كوټه [جعلي] دراهم باندي وي او كفيل هم د كوټه دراهمو ضامن [ذمه وار] سي او كوټه دراهم اداء كړي). ليكن كه كفيل د كوم شي ضامن سوى وي له هغه څخه بغير بل شى اداء كړي، نو په دې صورت كي كفيل ته د "مَا أَدّىٰ" د واپس اخيستلو اختيار نسته. بلكي د كوم شي چي ضامن سوى وي (مَا ضَمِنَ) فقط هغه واپس اخيستلاى سي، مثلاً كه پر مكفول عنه كوټه (جعلي) دراهم واجب وي او كفيل كره (اصلي) دراهم اداء كړي. يا پر مكفول عنه كَرَه دراهم واجب وي او كفيل كوټه دراهم اداء كړي او مكفول لهٔ هم ستر ګي پر پټي كړي او قبول يې كړي، نو په دې صورت كي كفيل ته فقط د هغه شي د واپس اخيستلو اجازه سته د كوم شي چي هغه ضامن سو

يعني کوم شی چي پر مکفول عنه واجب دی (چي هغه په اول مثال کي کوټه دراهم دي او په دويم مثال کي کَرَه دراهم دي)، برابره ده په دې کي د کفيل نفع وي او که نقصان.

دليل دا دی چي کله کفيل د مکفول لهٔ قرض اداء کړی، نو کفيل د قرض مالک سو، او اوس له مينځ څخه د مکفول لهٔ واسطه ختمه سوه. او همدا کفيل د دې قرض په مطالبه کولو کي د طالب يعني د مکفول لهٔ قائم مقام سو، او څرنګه چي مکفول لهٔ ته فقط د هغه د شي د مطالبه کولو او د هغه شي د واپس اخيستلو اختيار وو، کوم چي پر مکفول عنه واجب وو، لهذا کفيل کوم چي د مکفول لهٔ قائم مقام دی، هغه ته به هم فقط د هغه شي د واپس اخيستلو اختيار وي کوم چي پر مکفول عنه واجب دی. د دې يو مثال دا دی لکه کفيل چي د هبه يا ميراث په ذريعه د هغه مالک سي، په دې توګه چي مکفول لهٔ کفيل ته خپل هغه قرض هبه کړي کوم چي پر مکفول عنه واجب دی، نو کفيل د قرض مالک کيږي، او په دې صورت کي کفيل ته له مکفول عنه څخه فقط د هماغه قرض د اخيستلو اختيار سته، د بل شي د اخيستلو اختيار هغه ته نسته، يا مثلاً که مکفول لهٔ مړ سي او کفيل د هغه وارث (ميراث خور) وي، نو کفيل د قرض مالک کيږي او د مکفول لهٔ قائم مقام کيږي، او په دې صورت کي هم کفيل فقط "مَا ضَمِنَ" (د کوم شي چي ضامن سوی وي) اخيستلای سي، يعني په دې صورت کي هم هغه له مکفول عنه څخه فقط هغه قرض اخيستلای سي کوم چي پر مکفول عنه واجب دی، نو څرنګه چي د هبه او ميراث په صورت کي کفيل فقط هغه قرض واپس اخيستلای سي کوم چي پر مکفول عنه واجب دی، همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم تر قرض اداء کولو وروسته کفيل ته فقط د هغه شي د واپس اخيستلو اختيار وي، کوم چي پر مکفول عنه واجب دی او کفيل د هغه ضامن سوی دی.

وكما إذا إلخ: د کفيل د "مَا ضَمِنَ" د واپس اخيستلو په هکله صاحب د کتاب دويم مثال دا پېش کړی دی چي مثلاً د زيد پر حامد زر درهمه قرض وي، او حامد د زيد (قرضخواه) قرض يعني زر درهمه خالد ته حواله کړي (چي دا ته اداء کړه)، او محتال عليه (خالد) قرضخواه (زيد) ته د زر درهمو په بدله کي دنانير ورکړي يا يو بل سامان ورکړي. نو په دې صورت کي هم محتال عليه (خالد) ته فقط د "ماضمن" يعني د "زرو درهمو" د اخيستلو اختيار سته، هغه ته د "ما أدیٰ" د اخيستلو اختيار نسته؛ ځکه چي محتال عليه د قرض په اداء کولو سره د قرض مالک سو، او کله چي محتال عليه د قرض مالک سو، نو هغه د محتال لهٔ يعني د قرضخواه (زيد) قائم مقام سو، او ښکاره خبره ده چي

قرضخواه (زید) ته فقط د خپل قرض یعني د زر درهمو د اخیستلو اختیار وو، لهذا د هغه قائم مقام یعني محتال علیه (خالد) ته به هم فقط د زر درهمو د اخیستلو اختیار وي. همداسې به په دې مسئله کې کفیل ته هم له مکفول څخه د "ما ضمن" د اخیستلو اختیار وي، نه د "ما أدیٰ".

بخلاف المأمور إلخ: دا د یو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چې کوم چا ته مقروض د قرض اداء کولو حکم کړی وي (یعني مأمور بقضاء الدین)، که چیرې هغه د مقروض قرض اداء کړي نو هغه ته د "ما أدیٰ" د واپس اخیستلو اختیار سته، برابره ده "ما أدیٰ" هغه څه وي کوم چې پر مقروض باندې دي او که له هغه څخه بغیر بل شی وي (مثلا که پر مقروض سل کوټه دراهم باندې وي او هغه سلمان ته حکم وکړي چې زما قرض اداء کړه!، او سلمان د کوټه دراهمو پر ځای سل کَرَه دراهم اداء کړي. نو په دې صورت کې سلمان ته دا اختیار سته چې له مقروض څخه سل کَرَه دراهم واخلي)، همداسې کفیل ته هم فقط د "ما أدیٰ" واپس اخیستل پکار دي، برابره ده هغه "ما ضمن" وي یا له هغه څخه بغیر بل شی وي، حال دا چې تاسو وویل چې کفیل ته فقط د "ما ضمن" د اخیستلو اختیار سته، نه د "مَا أدیٰ".

د دې جواب دا دی چې د کفیل او مامور بقضاء الدین په مینځ کې فرق سته، او هغه دا چې کفیل په قرض اداء کولو سره د قرض مالک کیږي، لیکن مامور به د هغه نه مالک کیږي؛ ځکه کفیل پر خپل ځان هغه قرض لازم کړی وي، نو په دې وجه کفیل مالک کیږي، او مامور به نه مالک کیږي، لهذا کوم یو چې نه مالک کیږي، هغه به د اصیل قائم مقام هم نه کیږي، او هغه ته به فقط د "ما أدیٰ" د واپس اخیستلو اختیار وي، او څرنګه چې کفیل د قرض مالک کیږي، نو ځکه هغه به د مکفول لهٗ قائم مقام کیږي، او څرنګه چې مکفول لهٗ ته فقط د "ما ضمن" د اخیستلو اختیار سته، لهذا کفیل ته به هم فقط د "ما ضمن" د اخیستلو اختیار وي. حاصل دا چې په کفیل او مامور کې غټ فرق سته، نو ځکه یو پر بل قیاسول صحیح نه دي.

بخلاف ما إذا صالح إلخ: د دې حاصل دا دی چې که قرض (مثلاً) زر درهمه وي، لیکن کفیل د مکفول لهٗ سره پر پنځه سوه درهمه صلح وکړي (مثلا کفیل مکفول لهٗ ته ووایي چې پنځه سوه درهمه به درکړم! هغه زر پنځه سوه درهمه را پرېږده!)، او کفیل پنځه سوه درهمه اداء کړي، نو په دې صورت کې هغه له مکفول عنه څخه فقط "ما أدیٰ" واپس اخیستلای سي، نه "ما ضمن"، یعني کفیل له مکفول څخه فقط اداء کړل سوي پنځه سوه درهمه واپس اخیستلای سي، نه زر درهمه؛ ځکه چې صلح کول د بري کولو او معاف کولو په څېر دي، یعني پر پنځه سوه درهمه د صلح کولو مطلب دا دی چې مکفول لهٗ کفیل له

پاته پنځه سوه درهمو څخه بري کړي، او بري کول داسي دي لکه ساقطول، يعني ګواکي مكفول لهٔ پنځه سوه درهمه قرض ساقط کړي، او کفيل ته د ساقط سوي مقدار د واپس اخيستلو اختيار نسته، نو ځکه د صلح په دغه صورت کي کفيل فقط پنځه سوه درهمه له مكفول عنه څخه واپس اخيستلای سي. او دا داسي ده لکه مكفول لهٔ چي کفيل بري کړي، نو که مكفول لهٔ کفيل له ټوله قرض څخه بري کړي، نو په دې صورت کي کفيل ته له مكفول عنه څخه د هيڅ شي د واپس اخيستلو اختيار نسته. او که مكفول لهٔ کفيل د قرض له يوې حصې څخه بري کړي، نو په دې صورت کي چي کفيل څومره قدر قرض اداء کړي، فقط هغومره قدر قرض له مكفول عنه څخه اخيستلای سي. همداسي به د صلح په صورت کي چي کفيل څومره قدر قرض اداء کړي، فقط هغومره قدر به له مكفول عنه څخه اخيستلای سي.

## تر قرض اداء کولو مخکي له مكفول عنه څخه د کفيل د مطالبه کولو حکم

قَالَ: وَلَيْسَ لِلْكَفِيْلِ أَنْ يُّطَالِبَ الْمَكْفُوْلَ عَنْهُ بِالْمَالِ قَبْلَ أَنْ يُّؤَدِّيَ عَنْهُ فرمايي: او کفيل ته دا اختيار نسته چي د مكفول عنه له طرفه [د قرض] تر اداء کولو مخکي له هغه څخه د مال مطالبه وکړي لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُهُ قَبْلَ الْأَدَاءِ ځکه چي کفيل له اداء کولو څخه مخکي د قرض مالک نه وي بِخِلَافِ الْوَكِيْلِ بِالشِّرَاءِ په خلاف د وکيل بالشراء حَيْثُ يَرْجِعُ قَبْلَ الْأَدَاءِ ځکه هغه [د ثمن] تر اداء کولو مخکي رجوع کولای سي لِأَنَّهُ انْعَقَدَ بَيْنَهُمَا مُبَادَلَةٌ حُكْمِيَّةٌ ځکه چي د وکيل او مؤکل په مينځ کي حکمي مبادله منعقد سوې وي.

**اللغات:** ﴿بينهما﴾ د "هُمَا" ضمير وکيل او مؤکل ته راجع دی، مؤکل "وکيل جوړونکي" ته وايي (يعني که خالد [مثلا] خپل يو کار بل چا ته وسپاري او هغه د خپل کار وکيل جوړ کړي، نو خالد "مؤکل" دی).

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی چي تر څو کفيل د مكفول عنه له طرفه قرض اداء نه کړي، تر هغه وخته پوري کفيل ته دا اختيار نسته چي له مكفول عنه څخه د قرض د مال مطالبه وکړي؛ دليل دا دی چي کفيل ته فقط هغه وخت د مطالبه کولو اختيار سته کله چي هغه د قرض مالک سي، او کفيل هغه وخت د قرض مالک کيږي، کله چي هغه د مكفول عنه له طرفه مكفول لهٔ ته قرض اداء کړي، نو ځکه وويل سوه چي د مكفول عنه له طرفه د قرض اداء کولو څخه مخکي کفيل ته دا اختيار نسته چي له هغه څخه د قرض د مال مطالبه وکړي.

د دې په خلاف که يو سړی بل څوک د يو شي د رانيولو وکيل جوړ کړي، او بيا دا وکيل هغه شی رانيسي لېکن بائع ته له ثمن ورکولو څخه مخکې له خپل مؤکل څخه د ثمن مطالبه وکړي، نو هغه ته د دې پوره حق او اختيار سته؛ ځکه چې د وکيل او مؤکل په مينځ کې حکماً مبادلة للمال بالمال منعقده کيږي او وکيل د بائع او مؤکل د مشتري په حکم کې وي، او بائع ته دا حق سته چې مشتري ته د مبيع تر ورسپارلو مخکې له هغه څخه د ثمن مطالبه وکړي، نو ځکه وکيل ته به هم د دې حق وي چې له ثمن اداء کولو څخه مخکې له خپل مؤکل څخه د ثمن مطالبه وکړي.

## که له کفيل څخه د قرض ټينګه مطالبه وسي (حکم او تفصيل)

ل فَإِنْ لُوْزِمَ بِالْمَالِ فرمايي: که چيرې د مال په سلسله کې کفيل لازم ونيول سي [يعنيې مکفول لهٔ هغه بغير له قرض اداء کولو څخه نه ايله کوي بلکې هر وخت په پسې وي] كَانَ لَهُ أَنْ يُلَازِمَ الْمَكْفُوْلَ عَنْهُ نو کفيل ته دا حق سته چې مکفول عنه لازم ونيسي حَتَّى يُخَلِّصَهُ تر دې چې مکفول عنه کفيل [د مکفول لهٔ څخه] خلاص کړي وَكَذَا إِذَا حُبِسَ او همدارنګه کله چې کفيل [د قرض په سلسه کې] بندي کړل سي كَانَ لَهُ أَنْ يَحْبِسَهُ نو هغه ته دا اختيار سته چې مکفول عنه بندي کړي لِأَنَّهُ لَحِقَهُ مَا لَحِقَهُ مِنْ جِهَتِهِ ځکه کفيل ته چې کومه ستونزه [او مشکل] رسېدلې دی هغه د مکفول عنه په وجه ورته رسېدلې دی فَيُعَامِلُهُ بِمِثْلِهِ لهذا هغه د مکفول عنه سره هم هغسې [هماغه شان] معامله کولای سي.

**اللغات**: ﴿لوزم﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: لازم نيول، يو شی له بل شي څخه نه جلا کېدل او د هغه سره متصل (او موښتی) پاتېدل. ﴿لحقه﴾ د سمع د باب ماضي ده: لاحق کېدل، يو شی د بل شي سره يو ځای کېدل (يو څوک د بل چا سره يو ځای کېدل)، متصل کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مکفول لهٔ د خپل قرض اخيستلو لپاره کفيل تر غاړه ونيسي او هر وخت په کفيل پسې وي د قرض ټينګه مطالبه ځنې کوي، نو کفيل ته دا اختيار سته چې مکفول عنه تر غاړه ونيسي او په هغه پسې سي او ټينګه مطالبه ځنې کوي، تر دې چې مکفول عنه قرض اداء کړي او کفيل د مکفول لهٔ څخه خلاص کړي. همدا حکم په هغه وخت کې هم دی کله چې مکفول لهٔ د قرض په سلسله کې کفيل بندي کړي، نو کفيل مکفول عنه بندي کولای سي؛ ځکه چې د همدې مکفول عنه په وجه کفيل د قيد او زندان په مشکلاتو مبتلا سوی دی، نو اوس د مکفول عنه لپاره فقط دوې لارې دي: يا خو کفيل دې له دغه مشکلاتو څخه وباسي، يا دې خپل قرض اداء کړي.

## كه مكفول لهٗ (د قرض مالك) مكفول عنه يا كفيل بري كړي (حكم او تفصيل)

وَإِذَا أَبْرَأَ الطَّالِبُ الْمَكْفُوْلَ عَنْهُ او كله چي مكفول لهٗ مكفول عنه بري كړي أَوِ اسْتَوْفَىٰ مِنْهُ يا هغه له مكفول عنه څخه خپل حق واخلي بَرِئَ الْكَفِيْلُ نو كفيل بري كيږي لِأَنَّ بَرَاءَةَ الْأَصِيْلِ تُوْجِبُ بَرَاءَةَ الْكَفِيْلِ ځكه چي د كفيل بري كېدل د اصيل بري كېدل واجبوي لِأَنَّ الدَّيْنَ عَلَيْهِ فِي الصَّحِيْحِ ځكه چي د صحيح قول مطابق قرض پر اصيل دی وَإِنْ أَبْرَأَ الْكَفِيْلَ او كه چيري مكفول لهٗ كفيل بري كړي لَمْ يَبْرَأِ الْأَصِيْلُ عَنْهُ نو له هغه څخه اصيل نه بري كيږي لِأَنَّهُ تَبَعٌ ځكه چي كفيل تابع دی وَلِأَنَّ عَلَيْهِ الْمُطَالَبَةَ او ځكه چي پر كفيل [فقط] مطالبه ده وَبَقَاءُ الدَّيْنِ عَلَى الْأَصِيْلِ بِدُوْنِهِ جَائِزٌ او د كفيل له مطالبې څخه بغير پر اصيل قرض پاتېدل جائز دي [د "بدونه" ضمير يا كفيل ته راجع دی يا مطالبې ته د كفيل، په دواړو صورتونو كي يې مطلب يو دی].

**اللغات**: ﴿أبرأ﴾ د افعال ماضي ده: بري كول. ﴿استوفى﴾ د استفعال ماضي ده: پوره اخيستل، پوره ترلاسه كول. ﴿براءة﴾ بري كېدل، له ذمه واري څخه خلاصېدل. ﴿تَبَع﴾ تابع، جمع: أَتْبَاع (مصباح اللغات). ﴿دَين﴾ قرض.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی كه مكفول لهٗ د خپل قرض څخه مكفول عنه بري كړي، يا هغه د مكفول عنه څخه خپل قرض واخلي، نو په دې دواړو صورتونو كي چي څرنګه مكفول عنه بري كيږي، همداسي كفيل هم بري كيږي؛ ځكه مكفول عنه اصيل دی، ځكه چي اصل قرض پر هغه دی، او د اصيل بري كېدل مستلزم دي د كفيل بري كېدلو لره؛ نو ځكه د اصيل يعني د مكفول عنه په بري كېدلو سره به كفيل هم بري كيږي؛ او د اصيل بري كېدل ځكه د كفيل بري كېدلو لره مستلزم دي چي د صحيح قول مطابق قرض فقط پر اصيل يعني پر مكفول عنه واجب دی، پر كفيل نه دی واجب، پر كفيل فقط مطالبه واجبيږي (يعني له هغه څخه مكفول لهٗ فقط د قرض مطالبه كولای سي). نو كله چي د مكفول لهٗ د بري كولو په وجه له مكفول عنه څخه قرض ساقط سو، نو پر مكفول عنه به د قرض مطالبه هم پاته نه سي، او كله چي پر مكفول عنه د قرض مطالبه پاته نه سوه، نو د كفالې د معنیٰ "ضَمُّ الذِّمَّةِ إلى الذمة في المطالبة" د نه ثابتېدلو په وجه به پر كفيل هم مطالبه پاته نه سي.

د دې په خلاف که مکفول لهٔ کفیل بري کړي، نو اصیل یعني مکفول عنه له قرض څه نه بري کیږي؛ ځکه چې کفیل د مکفول عنه تابع دی، او مکفول عنه تابع نه دی، لهذا که د کفیل په بري کولو سره اصیل هم بري کړی سي، نو اصیل به د خپل تابع (کفیل) تابع وګرځي، حال دا چې دا قلب موضوع ده او صحیح نه ده، نو ځکه ووېل سوه چې د کفیل په بري کېدلو سره به اصیل نه بري کیږي.

دویم دلیل دا دی چې پر کفیل فقط د قرض مطالبه لازم ده، اصل قرض پر هغه لازم نه دی، او پر اصیل د قرض باقي پاتېدل هغه وخت هم جائز دي کله چې کفیل ګرسره نه وي (مثلا له کفالت څخه مخکي پر اصیل قرض باقي پاته وي، یا کله چې کفیل مړ سي نو هم پر اصیل قرض باقي پاتیږي، ساقطیږي نه)، نو همداسي به پر اصیل هغه وخت هم قرض باقي پاتیږي کله چې کفیل له مطالبې څخه بري کړی سي، نو ثابته سوه چې د کفیل په بري کېدلو سره به اصیل یعني مکفول عنه له قرض څه نه بري کیږي (أشرف الهدایه). (دویم دلیل داسي هم ویل کېدای سي چې پر کفیل فقط د قرض مطالبه لازم ده، حال دا چې پر اصیل د مطالبې سره، سره اصل قرض هم لازم دی، او ښکاره خبره ده چې پر چا مطالبه لازم وي د هغه په بري کېدلو سره به هغه کس څنګه بري سي چې پر هغه اصل قرض لازم وي. نو ځکه د کفیل په بري کېدلو سره به اصیل نه بري کیږي، او له مطالبې څخه بغیر به هم پر اصیل قرض باقي پاته وي (أحسن الهدایه). د فقیر بنده (حبیب الرحمن) په نیز د اشرف الهدایې تشریح سوی دلیل غوره معلومیږي، ځکه صاحب د أحسن الهدایې چې د دویم دلیل کومه تشریح کړې ده، د هغه په آخر کي څه ګړبړ او ستونزه ده).

## که مکفول لهٔ د قرض مطالبه مؤخره کړي (حکم او تفصیل)

وَكَذَا إِذَا أَخَّرَ الطَّالِبُ عَنِ الْأَصِيلِ او همدارنګه کله چې مکفول لهٔ د اصیل [مکفول عنه] څخه قرض مؤخر کړي فَهُوَ تَأْخِيرٌ عَنِ الْكَفِيلِ نو دا له کفیل څخه هم] مؤخر کول دي وَلَوْ أَخَّرَ عَنِ الْكَفِيلِ او که له کفیل څخه یې مؤخر کړي لَمْ يَكُنْ تَأْخِيرًا عَنِ الَّذِي عَلَيْهِ الْأَصْلُ نو دا له هغه یوه څخه مؤخر کول نه دي چې پر هغه اصل قرض [باندي] دی [یعني مکفول عنه] لِأَنَّ التَّأْخِيرَ إِبْرَاءٌ مُوَقَّتٌ ځکه چې مؤخر کول ترېو ټاکلي وخته پوره بري کول دي فَيُعْتَبَرُ بِالْإِبْرَاءِ الْمُؤَبَّدِ نو ځکه هغه به پر دائمي توګه بري کولو قیاسول کیږي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَفَلَ بِالْمَالِ الْحَالِّ مُؤَجَّلًا إِلَى شَهْرٍ په خلاف د هغه صورت کله چې د في الحاله واجبُ الاداء مال لپاره یوه میاشت میعاد وټاکي [او] کفیل جوړ سي فَإِنَّهُ يَتَأَجَّلُ عَنِ الْأَصِيلِ نو [په دې صورت کي] هغه له اصیل څخه هم مؤخر کیږي لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لَهُ إِلَّا الدَّيْنُ حَالَ وُجُودِ الْكَفَالَةِ ځکه چې د کفالې د موجودېدلو په حالت کي له قرض څخه بغیر د مکفول لهٔ بل

هيڅ حق نسته فَصَارَ الْأَجَلُ دَاخِلًا فِيْهِ نو ځکه ميعاد په هغه قرض کې داخل سو أَمَّا هٰهُنَا فَبِخِلَافِهِ او پاته سو دلته نو [صورت د مسئلې] د هغه په خلاف دی.

**اللغات:** ﴿أخر﴾ مؤخر کول، ځنډول، وروسته کول، ځنډول. ﴿مؤقت﴾ تر يو ټاکلي وخته پورې، ﴿مؤبد﴾ همېشنی. ﴿مؤجل﴾ ميعادي (ميادي)، نېټه داره، د کوم شي لپاره چې وخت (مياد) ټاکل سوی وي. ﴿يتأجّل﴾ مؤجل کېدل، مراد ځني مؤخر کېدل دي (أحسن الهدايه). ﴿أجل﴾ ميعاد، ټاکل سوی مودت (مقرر کړی سوی وخت).

**تشريح:** د عبارت مسئله پر دې أصول متفرع ده چې "په کفاله کې چې د اصيل په حق کې کوم شی ثابت وي، هغه د کفيل په حق کې هم ثابتيږي، لېکن که يو شی د کفيل په حق کې ثابت وي، نو هغه د اصيل په حق کې نه ثابتيږي (دا أصول مخکې هم ضمناً تېر سوی دی).

مسئله دا ده چې که مکفول لهٗ د مکفول عنه څخه د قرض أداء کولو مطالبه مؤخره کړي (مثلاً مکفول لهٗ هغه ته داسي ووايي چې زه اوس ستا څخه قرض نه غواړم، بلکي پنځه مياشتي وروسته يې راکړه!)، نو دا تاخير (ځنډول) چې څرنګه د اصيل (مکفول عنه) په حق کې ثابتيږي، همداسي د کفيل په حق کې هم ثابتيږي، لېکن که مکفول لهٗ د کفيل څخه مطالبه مؤخره کړي، نو د اصيل (مکفول عنه) په حق کې دا تاخير نه ثابتيږي؛ دليل دا دی چې د قرض مطالبه مؤخر کول "ابراء مؤقت" دي، يعني د قرض مطالبه مؤخر کول داسي دي لکه تر يو ټاکلي (معين) وخت پورې قرض ساقطول او له قرض څخه بري کول، نو ځکه دغه "ابراء مؤقت" به پر "ابراء مؤبد" قياسول کيږي، او ښکاره خبره ده چې که مکفول په ابدي (دائمي) توګه اصيل بري کړي نو کفيل هم بري کيږي لېکن که کفيل بري کړي نو اصيل نه بري کيږي، همداسي به په دې مسئله کې هم په "ابراء مؤقت" کې د اصيل تاخير د کفيل په حق کې خو ثابتيږي، لېکن د کفيل تاخير به د اصيل په حق کې نه ثابتيږي.

**بخلاف ما إذا إلخ:** د دې حاصل دا دی چې کوم حکم چې اوس بيان سو، يعني د کفيل تاخير د اصيل په حق کې نه ثابتيږي، دا حکم په هغه کفاله کې دی کوم چې ميعادي نه وي. لېکن که کفيل د داسي مال کفيل جوړ سوی وي کوم چې في الحاله (سمدستي) اداء کول واجب وي او کفيل د هغه لپاره يوه مياشت ميعاد وټاکي (مثلاً د خالد پر زيد سل ديناره في الحاله واجبُ الاداء دي. لېکن حامد د يوې مياشت پر مودت د هغه کفيل جوړ سي، يعني خالد ته داسي ووايي چې زه د زيد کفيل يم، که هغه يوه مياشته وروسته تا ته پيسې نه درکړي نو زه يې درکوم)، نو دغه ميعاد او مودت د اصيل (مکفول عنه [زيد]) په حق کې هم ثابتيږي؛ ځکه دلته چې په کوم وخت کې کفاله منعقد سوه يعني کله چې (حامد) کفيل جوړ سو، نو په هغه وخت

کي د مکفول لهٔ (خالد) حق فقط په قرض کي ثابت وو. او څرنګه چي کفيل (حامد) د خپل کفيل جوړېدلو په وخت کي د ميعاد شرط ولګوی او ميعاد يې د اصل قرض وطرف ته منسوب کړی، نو ځکه ميعاد به په اصل قرض کي داخليږي، او د کفيل او اصيل دواړو په حق به کي ميعاد او تاخير ثابتيږي.

د دې په خلاف د متن والا په مسئله کي کفاله د تاخير څخه مخکي منعقد سوې ده، يعني اول کفاله واقع سوې ده (چي د هغه په وجه مکفول لهٔ ته له اصيل او کفيل څخه د مطالبه کولو حق حاصل سو). او تر هغه وروسته مکفول لهٔ مطالبه مؤخر کړې ده، لنډه دا چي مکفول لهٔ د کفيل څخه هغه مطالبه مؤخر کړې ده کومه مطالبه چي هغه ته د کفالې په وجه حاصله سوې وه، او په دې سره د اصل قرض مؤخر کېدل نه لازميږي، نو ځکه د متن په مسئله کي وويل سوه چي که مکفول لهٔ د کفيل څخه مطالبه مؤخره کړي، نو دا تاخير د اصيل په حق کي نه ثابتيږي، بلکي پر اصيل د مخکي په څېر مطالبه واجب پاتيږي.

## د مکفول لهٔ سره د کفيل صلح کول (حکم او تفصيل)

قَالَ: فَإِنْ صَالَحَ الْكَفِيْلُ رَبَّ الْمَالِ عَنِ الْأَلْفِ عَلٰى خَمْسِمِائَةٍ فرمايي: که کفيل د مکفول لهٔ سره د زرو درهمو په سلسله کي پر پنځه سوه درهمو صلح وکړي فَقَدْ بَرِئَ الْكَفِيْلُ وَالَّذِیْ عَلَيْهِ الْأَصِيْلُ نو کفيل او پر کوم يوه چي اصل قرض دی دواړه بري کيږي لِأَنَّهُ أَضَافَ الصُّلْحَ إِلَى الْأَلْفِ الدَّيْنِ ځکه چي [دلته] کفيل صلح د زر درهمه قرض وطرف ته منسوب کړې ده وَهِيَ عَلَى الْأَصِيْلِ او دا زر درهمه قرض پر اصيل [باندي] دی فَبَرِئَ عَنْ خَمْسِ مِائَةٍ نو اصيل به له پنځه سوه درهمو څخه بري کيږي [أحسن الهدايه] لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ ځکه چي دا صلح ساقطول [او معاف کول] دي وَبَرَاءَتُهُ تُوْجِبُ بَرَاءَةَ الْكَفِيْلِ او د اصيل بري کېدل د کفيل بري کېدل واجبوي ثُمَّ بَرِئَا جَمِيْعًا عَنْ خَمْسِ مِائَةٍ بِأَدَاءِ الْكَفِيْلِ بيا د کفيل په اداء کولو سره به اصيل او کفيل دواړه له پنځه سوه درهمو څخه بري کيږي وَيَرْجِعُ الْكَفِيْلُ عَلَى الْأَصِيْلِ بِخَمْسِ مِائَةٍ إِنْ كَانَتِ الْكَفَالَةُ بِأَمْرِهِ او کفيل به له اصيل څخه پنځه سوه درهمه واپس اخلي، [په دې شرط] که چيري کفاله د اصيل په حکم سره وي بِخِلَافِ مَا إِذَا صَالَحَ عَلٰى جِنْسٍ آخَرَ په خلاف د هغه صورت کله چي کفيل پر بل جنس صلح کړې وي لِأَنَّهُ مُبَادَلَةٌ حُكْمِيَّةٌ ځکه چي دا

حکماً مبادله ده فَمَلَكَهُ نو ځکه کفيل به د هغه [زر درهمو] مالک وي [احسن الهدايه] فَيَرْجِعُ بِجَمِيعِ الْأَلْفِ نو هغه به پوره زر درهمه واپس اخلي وَلَوْكَانَ صَالَحَهُ عَمَّا اسْتَوْجَبَ بِالْكَفَالَةِ او که کفيل د مکفول لهٔ سره د هغه حق په باره کي صلح کړې وي کوم چي د عقد کفالهٔ په وجه پر هغه واجب سوی وي لَا يَبْرَأُ الْأَصِيلُ نو اصيل نه بري کيږي لِأَنَّ هٰذَا إِبْرَاءُ الْكَفِيلِ عَنِ الْمُطَالَبَةِ ځکه چي دا کفيل له مطالبه څخه بري کول دي.

**اللغات:** ﴿صالح﴾ د مفاعلې ماضي ده: صلح کول، مصالحت کول (مراد ځني د څه قرض پرېښوولو په هکله صلح او تړون کول دي). ﴿دَين﴾ قرض، قرضه. ﴿برئ﴾ د سمع ماضي ده: بري کېدل، له ذمه واری څخه وتل (غاړه خلاصېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که قرض زر درهمه وي، بيا کفيل د مکفول لهٔ سره د زر درهمو په سلسله کي پر پنځه سوه درهمه صلح وکړي (مثلا کفيل مکفول لهٔ ته داسي ووايي چي په زر درهمو کي به پنځه سوه درکړم. هغه نور قرض را پرېږده! او مکفول لهٔ همداسي وکړي)، نو په دې صورت کي کفيل او مکفول عنه دواړه له پنځه سوه درهمو څخه بري کيږي او فقط پنځه سوه درهمه قرض پاتيږي؛ ځکه که څه هم دلته صلح کفيل کړې ده، ليکن څرنګه چي هغه صلح د زر درهمو (اَلف) وطرف ته منسوب کړې ده، او زر درهمه پر اصيل (مکفول عنه) واجب دي، نو ځکه دا به له زر درهمو څخه اسقاط وي او د اصيل له ذمې څخه به پنځه سوه درهمه ساقطيږي او معاف کيږي، او څرنګه چي د اصيل برائت د کفيل برائت لره مستلزم دی، لهذا کله چي اصيل له پنځه سوه درهمو څه بري سو، نو کفيل هم له هغه څخه بري کيږي، او تر دې وروسته چي کله کفيل پاته پنځه سوه درهمه اداء کړي، نو دوی دواړه بري کيږي. بيا که کفيل د مکفول عنه په حکم سره کفيل سوی وي، نو هغه ته دا اختيار سته چي له مکفول عنه څخه "مَا أَدّیٰ" (اداء کړل سوي پنځه سوه درهمه) واپس واخلي، ليکن که هغه د مکفول عنه له حکم څخه بغير کفيل سوی وي، نو هغه ته د "مَا أَدّیٰ" د واپس اخيستلو حق او اختيار نسته.

**بخلاف ما إذا إلخ:** د دې حاصل دا دی که کفيل د مکفول عنه سره پر بل جنس صلح وکړي، مثلاً کفيل د زر درهمو په سلسله کي د مکفول لهٔ سره د کپړې پر يو تان صلح وکړي (مثلاً هغه مکفول لهٔ ته ووايي چي د زر درهمو په ځای کي به يو تان درکړم ته هغه را څخه قبول کړه! او مکفول لهٔ همداسي وکړي)، نو په دې

صورت کې کفیل د هغه زر درهمو مالک کیږي، او له اصیل (مکفول عنه) څخه هیڅ شی هم نه ساقطیږي، بلکې کفیل ته دا اختیار سته چې له مکفول عنه څخه پوره زر درهمه واپس واخلي؛ ځکه په دې صورت کې چې کوم صلح سوې ده هغه په حقیقت کې د مکفول لهٗ او کفیل په مینځ کې حکماً مبادله ده، او د دغه مبادلې په وجه کفیل د هغه د زر درهمو مالک سو، نو ځکه به هغه له مکفول عنه څخه پوره زر درهمه واپس واخلي.

ولوكان صالحه إلخ: د دې حاصل دا دی چې د عقد کفاله (کفیل جوړېدلو) په وجه پر کفیل فقط مطالبه لازمیږي، نو که کفیل پر څه پیسو صلح وکړي او دغه د قرض مطالبه ساقطه کړي (مثلا کفیل مکفول لهٗ ته ووایي چې ته زما څخه د قرض مطالبه مه کوه! د هغه په عوض کې به زه څه پیسې درکړم. او مکفول لهٗ همداسې وکړي)، یا کفیل له څه پیسو څخه بغیر مکفول لهٗ ته زارۍ وکړي او مطالبه ساقطه کړي، نو دا اسقاط فقط د کفیل سره خاص دی (یعني فقط له کفیل څخه مطالبه ساقطیږي)، او د مکفول عنه له ذمې څخه نه قرض ساقطیږي او نه د قرض مطالبه؛ ځکه تاسو ته معلومه ده چې د اصیل برائت خو کفیل لره مستلزم دی لېکن د کفیل برائت اصیل لره مستلزم نه دی (یعني د اصیل په بري کېدلو سره کفیل هم بري کیږي، لېکن د کفیل په بري کېدلو سره اصیل نه بري کیږي).

## د کفیل د برائت مختلفه صورتونه

قَالَ: وَمَنْ قَالَ لِكَفِيْلٍ ضَمِنَ لَهُ مَالًا: قَدْ بَرِئْتَ إِلَيَّ مِنَ الْمَالِ فرمایي: او که مکفول لهٗ هغه کفیل ته کوم چې د ده لپاره د مال ضامن سوی وي [داسې] ووایي: "ته زما له طرفه له مال څخه بري سوې" [یعني ته زما له قرض څخه بري یې!] رَجَعَ الْكَفِيْلُ عَلَى الْمَكْفُوْلِ عَنْهُ نو کفیل به له مکفول عنه څخه مال واپس اخلي مَعْنَاهُ بِمَا ضَمِنَ لَهُ بِأَمْرِهٖ د دې مطلب دا دی چې [هغه مال به ځني اخلي] د کوم مال چې کفیل د مکفول لهٗ په حکم سره ضامن سوی وي لِأَنَّ الْبَرَاءَةَ الَّتِيْ اِبْتِدَاؤُهَا مِنَ الْمَطْلُوْبِ وَانْتِهَاؤُهَا إِلَى الطَّالِبِ ځکه داسې برائت چې د هغه ابتداء له مکفول عنه څخه وي او د هغه انتهاء تر مکفول لهٗ پورې وي لَا تَكُوْنُ إِلَّا بِالْإِيْفَاءِ هغه له اداء کولو څخه بغیر نه کیږي [یعني داسې برائت فقط په اداء کولو سره ثابتیږي] فَيَكُوْنُ هٰذَا إِقْرَارًا بِالْأَدَاءِ لهذا دا به د اداء کولو اقرار وي فَيَرْجِعُ نو ځکه به کفیل له مکفول عنه څخه [مال] واپس اخلي وَإِنْ قَالَ: أَبْرَأْتُكَ او که مکفول لهٗ [داسې] ووایي: "ما ته بري کړې" لَمْ يَرْجِعِ الْكَفِيْلُ عَلَى الْمَكْفُوْلِ عَنْهُ نو کفیل له مکفول عنه څخه [مال] واپس نه سي اخیستلای لِأَنَّهٗ بَرَاءَةٌ لَا

تَنْتَهِيْ إِلىٰ غَيْرِهِ ځکه دا داسي برائت دی کوم چي له مکفول لهٔ شخصه بغیر [د بل چا] وطرف ته نه منتهي کیږي [یا کوم چي له مکفول لهٔ شخصه بغیر پر بل چا نه مبني کیږي] وَذٰلِكَ بِالْإِسْقَاطِ او دا په ساقطولو سره حاصلیږي فَلَمْ يَكُنْ إِقْرَارًا بِالْإِيْفَاءِ نو ځکه دا به د اداء کولو اقرار نه وي.

**اللغات**: ﴿إيفاء﴾ د افعال مصدر دی: پوره اداء کول.

**تشریح**: له دې ځایه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله درې (۳) داسي مسئلې ذکر کوي چي د هغوی تعلق د کفیل د بري کولو (ابراء) سره دی. (او دا درې سره مسئلې پر دې اُصول مبني دي چي که مکفول لهٔ داسي جمله ووایي چي له هغه شخصه دا محسوسیږي [یعني په هغه جمله کي دې ته ضمني اشاره سوې وي] چي کفیل مال اداء کړی دی، نو مال اداء کیږي، او کفیل ته دا اختیار سته چي هغه له مکفول عنه شخصه واپس واخلي). (أثمار الهدایه)

(۱)... اوله مسئله دا ده که مکفول لهٔ کفیل ته داسي ووایي: "قَدْ بَرِئْتَ إِلَيَّ مِنَ الْمَالِ" (ته زما له طرفه له مال شخصه بري سوې!)، نو په دې صورت کي کفیل ته له خپل مکفول عنه شخصه د "مَا ضَمَن" د اخیستلو اختیار سته (یعني په دې صورت کي کفیل له مکفول عنه شخصه هغه مال واپس اخیستلای سي د کوم مال چي هغه کفیل سوی او ضامن سوی وو)، په دې شرط چي کفیل د مکفول عنه په حکم سره کفیل سوی وي.

دلیل دا دی چي د مکفول لهٔ په دې جمله "قد برئتَ إليّ من المال" کي د برائت شروع له کفیل شخصه سوې ده، ځکه چي په "برئتَ" همدا کفیل مخاطب دی، او په دې جمله کي د برائت انتهاء پر مکفول لهٔ سوې ده؛ ځکه چي د "إلیّ" لفظ د غایت د انتهاء لپاره وي، لهذا په دې ترکیب کي متکلم کوم چي مکفول لهٔ دی هغه منتهیٰ دی، نو ثابته سوه چي په دې ترکیب کي کفیل مبتداء دی (یعني له هغه شخصه شروع سوې ده) او مکفول لهٔ منتهیٰ دی (یعني پر هغه انتهاء سوې ده)، او داسي برائت چي ابتداءً یې له کفیل شخصه وي او انتهاء یې پر مکفول لهٔ وي (هغه برائت) فقط په مال اداء کولو سره کیږي (یعني د داسي برائت په صورت کي کفیل هغه وخت بري کیږي کله چي کفیل مکفول لهٔ ته مال ورکړی وي)، نو دا داسي سو لکه مکفول لهٔ چي کفیل ته داسي ویلي وي: "دَفَعْتَ إِلَيَّ الْمَالَ" یا "قَبَضْتُهُ مِنْكَ" (یعني تا ما ته مال راکړی دی. یا ما ستا له طرفه پر مال قبضه کړې ده)، نو ګواکي مکفول لهٔ د دې خبري اقرار وکړی چي کفیل هغه مال اداء کړی دی د کوم مال چي کفیل ضامن سوی وو، او کله چي مکفول لهٔ د مال اداء کولو اقرار وکړی، نو ځکه اوس به هغه ته له کفیل او مکفول عنه شخصه د مطالبه کولو حق نه وي، او څرنګه چي

كفيل د مكفول عنه په حكم سره كفيل سوی دی، نو ځكه كفيل ته به دا اختيار وي چي له مكفول عنه ځخه هغه مال واپس واخلي د كوم مال چي هغه ضامن سوی وو.

وإن قال أبرأتك إلخ: (۲)... دويمه مسئله دا ده چي كه مكفول لهٔ كفيل ته داسي ووايي: "أبرأتك" (ما ته بري كړې!)، نو په دې صورت كي كفيل ته دا اختيار نسته چي له مكفول عنه ځخه څه مال واپس واخلي (يعني په دې صورت كي كفيل ته له مكفول عنه ځخه د هيڅ شي د واپس اخيستلو اختيار نسته)، لېكن مكفول لهٔ ته د دې پوره اختيار سته چي له مكفول عنه ځخه د مال مطالبه وكړي.

دليل دا دی چي دا يو داسي برائت دی كوم چي فقط د مكفول لهٔ وطرف ته رسيږي او فقط پر هغه منتهي كيږي، نه پر بل چا. لهذا د دې برائت ابتداءً فقط له مكفول لهٔ ځخه وسوه. نه له كفيل ځخه. بلكي پر كفيل د هغه انتهاء سوې ده، ځكه چي مكفول لهٔ داسي ويلي دي "ما ته بري كړې!" يعني د برائت شروع زما ځخه وسوه، او انتهاء يې پر تا وسوه. او د كوم برائت ابتداءً چي له مكفول لهٔ ځخه وي او انتهاء يې پر كفيل وي، نو داسي برائت په ساقطولو سره حاصليږي (يعني د داسي برائت په صورت كي هغه وخت كفيل بري كيږي كله چي مكفول لهٔ د كفيل ځخه د قرض مطالبه ساقطه كړې وي)، نو ګواكي مكفول لهٔ داسي وويل چي "ما ستا ځخه خپل مطالبه ساقطه كړه (تر دې وروسته ستا ځخه د قرض مطالبه نه كوم)"، او ښكاره خبره ده چي كه مكفول لهٔ د كفيل ځخه د قرض مطالبه ساقطه كړي نو په دې سره دا نه لازميږي چي مكفول لهٔ دا اقرار وكړی چي كفيل مال اداء كړی دی (يعني د مطالبې ساقطولو مطلب او معنیٰ دا نه ده چي مكفول لهٔ د كفيل د مال اداء كولو اقرار وكړی[چي كفيل ما ته مال راكړی دی]). لهذا كله چي دا د كفيل د اداء كولو اقرار نه سو، نو كفيل ته به له مكفول عنه ځخه د واپس اخيستلو اختيار هم نه وي؛ ځكه چي كفيل ته فقط په هغه صورت كي له مكفول عنه ځخه د مال واپس اخيستلو اختيار سته كله چي كفيل د مكفول عنه له طرفه مال داء كړي، حال دا چي دلته داسي نه ده. نو ځكه په دې صورت كي به هغه ته دا اختيار نه وي چي له مكفول عنه ځخه څه مال واپس واخلي. لهذا دلته مكفول لهٔ د كفيل ځخه فقط د قرض مطاله ساقطه كړه او هغه يې بري كړی، او تا سو ته معلومه ده چي د كفيل په بري كېدلو سره مكفول عنه نه بري كيږي، نو ځكه په دې صورت كي به مكفول لهٔ ته د مكفول عنه ځخه د مال د مطالبه كولو پوره اختيار وي.

## د کفيل د برائت مختلفه صورتونه

وَلَوْ قَالَ: بَرِئْتَ او که مکفول لهٗ [داسې] ووايي: ته برې سوې [او د "إِلَيَّ" لفظ نه ووايي] قَالَ: مُحَمَّدٌ هُوَ مِثْلُ الثَّانِيْ نو امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا د دويمې مسئلې په شېر دي لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الْبَرَاءَةَ بِالْأَدَاءِ إِلَيْهِ ځکه دا [د دې] احتمال [هم] لري چې دا برائت [برې کېدل] به د مکفول لهٗ په اداء کولو سره وي وَالْإِبْرَاءِ او [دا احتمال هم لري چې دا برائت به د مکفول لهٗ] په برې کولو سره وي فَيَثْبُتُ الْأَدْنَىٰ نو [له دې دواړو څخه] به د کمې درجې والا برائت ثابتيږي إِذْ لَا يَرْجِعُ الْكَفِيْلُ بِالشَّكِّ ځکه چې په شک سره کفيل [پر مکفول عنه] رجوع نه سي کولای [يعني د شک په وجه له مکفول عنه څخه مال واپس نه سي اخيستلای] وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ ۞: هُوَ مِثْلُ الْأَوَّلِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا د اولې مسئلې په شېر دي لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِبَرَاءَةٍ ابْتِدَاؤُهَا مِنَ الْمَطْلُوْبِ ځکه چې [دلته] مکفول لهٗ د داسې برائت اقرار کړی دی چې د هغه ابتداء له کفيل څخه ده وَإِلَيْهِ الْإِيْفَاءُ دُوْنَ الْإِبْرَاءِ او د کفيل په طرف کې فقط اداء کول سته، نه برې کول وَقِيْلَ: فِيْ جَمِيْعِ مَا ذَكَرْنَا إِذَا كَانَ الطَّالِبُ حَاضِرًا. او ويل سوي دي: چې په مذکوره ټولو صورتونو کې چې کله مکفول لهٗ موجود وي يُرْجَعُ فِي الْبَيَانِ إِلَيْهِ نو د مکفول لهٗ د بيان و طرف ته به رجوع کيږي لِأَنَّهُ هُوَ الْمُجْمِلُ ځکه همدا مکفول لهٗ اجمال کونکی [اختصار کونکی] دی [يعني هغه خپل کلام مجمل او مختصر کړی دی].

**اللغات:** ﴿الْمُجْمِلُ﴾ د افعال د باب فاعل دی: اختصار کونکی، أَجْمَلَ يُجْمِلُ إِجْمَالًا: په مختصره (او مبهمه توګه) خبره ذکر کول، په کلام کې اختصار کول. فقهاؤ د "اجمال" درې تعريفونه کړي دي چې هغه ستاسو د معلومات لپاره موږ دلته هم ذکر کوو: ① ... يو تعريف دا چې د إجمال معنیٰ ده: خپل کلام داسې ذکر کول کوم چې د څو معناوو احتمال لري. ② ... دويم د إجمال معنیٰ ده: کلام په دې توګه ذکر کول چې هغه پر داسې معنیٰ دلالت کوي کوم چې له مُعَيّن (متعين کونکي) څخه بغير د هغه مراد نه مُتعيَن کيږي (يعني د هغه مراد فقط په مُعيّن سره مُتعيَن کيږي). ③ ... داسې کلام چې د هغه مراد فقط په مُجمِل (اجمال کونکي) سره معلوميږي (يعني داسې کلام چې کله مُجمِل په خپله د هغه وضاحت وکړي نو مراد او مطلب يې ښکاره کيږي). (معجم لغة الفقهاء)

---

... أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۴، ص:۲۰۷)، وفي الهندية (ج:۳، ...

**تشریح** : دړېیمه مسئله دا ده که مکفول لهٗ کفیل ته فقط داسي ووايي: "بَرِئْتَ" (ته بري سوې!) او د "إِلَيَّ" لفظ نه ووايي، نو په دې مسئله کي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله اختلاف دی. امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي د دې مسئلې حکم د دویمي مسئلې یعني د "أَبْرَأْتُكَ" په څېر دی، یعني څرنګه چي د "أَبْرَأْتُكَ" د ویلو په صورت کي کفیل بري کیږي او کفیل ته له پر مکفول عنه د رجوع کولو (یعني له هغه شخصه د مال اخیستلو) اختیار نه وي، همداسي د "بَرِئْتَ" د ویلو په صورت کي هم کفیل بري کیږي او کفیل ته پر مکفول عنه د رجوع کولو اختیار نسته.

دلیل دا دی چي د "بَرِئْتَ" په لفظ کي دوه احتماله سته: ① یو دا چي د "بَرِئْتَ" د لفظ مطلب دا دی چي ته "بري سوې؛ ځکه تا مال اداء کړی دی"، ② دویم احتمال پکښي دا دی چي ته "ته بري سوې؛ ځکه ما ته بري کړي يې!"، لنډه دا چي په دې لفظ کي یو احتمال د "برائت بالاداء" سته او بل احتمال د "برائت بالابراء" پکښي سته، نو له دې دواړو شخه به "برائت بالابراء" ثابتیږي، ځکه چي هغه ادنیٰ دی. او قاعده دا ده چي کله د دنیٰ او اعلیٰ احتمال وي، یا د کم او زائد احتمال وي، نو ادنیٰ او کم ثابتیږي (ځکه چي هغه أقل او أخف وي)، اعلیٰ او زائد نه ثابتیږي. لکه کله چي په لمانځه کي لمونځ ګزار شکمن سي چي آیا ما دوه رکعته کړي، که درې؟ نو حکم دا دی چي هغه دوه رکعته شمارل کیږي (ځکه چي دوه له دریو شخه ادنیٰ دي)، نو همداسي به دلته هم ادنیٰ برائت (برائت بالابراء) حاصلیږي. یعني دا به ویل کیږي چي کفیل د مکفول لهٗ په بري کولو سره بري سوی دی، او حکم دا دی چي کله کفیل د مکفول لهٗ په بري کولو سره بري سوی وي نو هغه ته پر مکفول عنه د رجوع کولو اختیار نه وي، نو ځکه د "بَرِئْتَ" د ویلو په صورت کي به هم کفیل ته پر مکفول عنه د رجوع کولو اختیار نه وي.

**دویم دلیل** : (د دې خبري چي د کفیل لپاره د رجوع اختیار نه ثابتیږي) دا دی چي دلته خو دا خبره یقیني ده چي د "بَرِئْتَ" په لفظ سره کفیل بري سو، برابره ده د مکفول لهٗ په بري کولو (برائت بالابراء) سره بري سوی وي، یا د مال په اداء کولو (برائت بالاداء) سره بري سوی وي. لېکن دلته پر مکفول عنه د کفیل په رجوع کولو کي شک دی؛ ځکه که چیري دا برائت بالاداء وي، نو بیا خو کفیل ته د رجوع کولو اختیار سته. او که برائت بالابراء وي، نو هغه ته د رجوع کولو اختیار نسته؛ لهذا کله چي د کفیل په رجوع کولو کي شک دی، نو د شک په وجه به هغه ته د رجوع کولو اختیار نه وي.

وقال أبو يوسف إلخ: امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د دې مسئلې حکم داولي مسئلې يعني د "بَرِئْتَ إِلَيَّ" په څېر دی، يعني څرنګه چي د "بَرِئْتَ إِلَيَّ" د ويلو په صورت کي کفيل ته پر مکفول عنه د رجوع کولو اختيار وي، همداسي فقط د "بَرِئْتَ" د ويلو په صورت کي هم کفيل ته پر مکفول عنه د رجوع کولو اختيار حاصلېږي.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي مکفول لهٔ د "بَرِئْتَ" په ويلو سره د داسي برائت اقرار کړی دی چي د هغه ابتداء له کفيل څخه ده؛ ځکه مکفول لهٔ د خطاب حرف يعني "تاء مفتوحه" ذکر کړې ده، نو ځکه برائت به په داسي فعل سره وي کوم چي خاص د کفيل وطرف ته منسوب وي (يعني په دې صورت کي کفيل په داسي کار سره بري کيږي کوم چي د ده له طرفه صادر او اداء سني) او د کفيل له طرفه فقط اداء کول کيږي، نه بري کول، يعني د کفيل فعل فقط اداء کول دي لېکن بري کول د هغه فعل نه دي، لهذا کله چي دا برائت د کفيل له طرفه دی او د کفيل له طرفه چي کوم برائت حاصلېږي هغه فقط په اداء کولو سره حاصلېږي، نو ګواکي دا برائت به هم د کفيل په اداء کولو سره حاصل سوی وي، او کوم برائت چي د کفيل په اداء کولو سره حاصل سوی وي، په هغه صورت کي کفيل ته پر مکفول عنه د رجوع کولو اختيار وي، نو ځکه د "بَرِئْتَ" د ويلو په صورت کي به هم کفيل ته پر مکفول عنه د رجوع کولو پوره اختيار وي.

وقيل إلخ: ځيني مشايخو ويلي دي چي په دغه دريو (۳) مسئلو کي چي کوم حکمونه ذکر سوي دي، دا په هغه وخت کي دي کله چي مکفول لهٔ د دغه الفاظو (قد برئت الیّ من المال، ابراتک او برئت) تر ويلو وروسته غائب سي، لېکن که مکفول لهٔ غائب نه سي بلکي موجود وي، نو په دې دريو سره مسئلو کي به د هغه د بيان وطرف ته رجوع کيږي، يعني د مکفول لهٔ څخه به دا پوښتنه کيږي چي هغه پر مال (مکفول به) قبضه کړې ده، که نه؟؛ ځکه چي همدا مکفول لهٔ په خپل کلام کي اجمال او اختصار پيدا کړی دی (يعني فقط د هغه له طرفه کلام مجمل او مختصر بيان سوی دی)، او قاعده دا ده چي د مجمل کلام وضاحت او تفسير په خپله له "مُجْمِل" (اجمال کونکي) څخه پوښتل کيږي، او څرنګه چي په دې مذکوره مسئلو او جملو کي هم يو ډول اجمال دی، نو ځکه په دې مسئلو کي به هم د "مُجْمِل" يعني د مکفول لهٔ وطرف ته رجوع کيږي، په دې شرط چي مکفول لهٔ موجود وي.

## معلق برائت (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَلَايَجُوْزُ تَعْلِيْقُ الْبَرَاءَةِ مِنَ الْكَفَالَةِ بِالشَّرْطِ او له کفالي څخه بري کېدل [بري کول] پر شرط معلق کول جائز نه دي لِمَا فِيهِ مِنْ مَعْنَى التَّمْلِيْكِ ځکه چي په دې کي د مالک کولو معنیٰ سته كَمَا فِي سَائِرِ الْبَرَاءَاتِ لکه څرنګه چي په نورو برائتونو کي وي وَيُرْوٰى أَنَّهُ يَصِحُّ او [یو] روایت دا دی چي دا [معلق کول] صحیح دي لِأَنَّ عَلَيْهِ الْمُطَالَبَةَ دُوْنَ الدَّيْنِ فِي الصَّحِيْحِ ځکه چي د صحیح قول مُطابق پر کفیل مطالبه لازم ده، نه قرض فَكَانَ إِسْقَاطًا مَحْضًا نو ځکه دا به فقط ساقطول وي كَالطَّلَاقِ لکه طلاق وَلِهٰذَا لَا يَرْتَدُّ الْإِبْرَاءُ عَنِ الْكَفِيْلِ بِالرَّدِّ او له همدې کبله د کفیل بري کول [د کفیل] په ردولو سره نه رد کیږي بِخِلَافِ إِبْرَاءِ الْأَصِيْلِ په خلاف د اصیل د بري کولو.

**اللغات:** ﴿تعليق﴾ د تفعیل مصدر دی: معلق کول، (یو شي په بل شي پوري ځوړند کول). ﴿تمليك﴾ د تفعیل مصدر دی: مالک کول، مالک جوړول، (یو څوک د یو شي مالک کول). ﴿الرد﴾ د نصر مصدر دی: ردّ کول، ردول (مسترد کول، نفي کول). ﴿لا يرتد﴾ د افتعال د باب نفي صیغه ده: ردّ کېدل، ردېدل (مستردېدل، نفي کېدل).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي له کفاله څخه بري کول او بري کېدل (یعني برائت من الکفالة) پر یو شرط معلق کول جائز نه دي، یعني که مکفول لهٗ مثلاً کفیل ته داسي ووایي "کله چي زید راسي نو ته بري یې!"، یا "کله چي د سبا ورځ راسيٖ نو ته بري یې"، دا جائز نه دي.

دلیل دا دی چي له کفاله څخه بري کول داسي دي لکه کفیل د مطالبې مالک کول، په دې توګه چي د کفالې په وجه خو اول مکفول لهٗ د کفیل څخه د مطالبې کولو مالک وو، لېکن کله چي مکفول لهٗ کفیل بري کړی نو ګواکي هغه یې د مطالبې مالک کړی، او تملیکات (یعني مالک کول) پر شرط معلق کول نا جائز دي، نو ځکه له کفاله څخه بري کول به هم پر شرط معلق کول نا جائز وي، لکه څرنګه چي نور برائتونه پر شرط معلق کول نا جائز دي. (دا په یاد لرئ! چي دلته له شرط څخه هغه شرط مراد دی کوم چي د کفالې مناسب نه وي، لېکن کوم شرط چي د کفالې مناسب وي، نو پر هغه برائت معلق کول جائز دي، د مثال په توګه کفیل داسي ووایي: که چیري زه سبا مال اداء کړم، نو زه به له کفاله څخه بري یم). (فتح القدير)

ویروىٰ إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي د "نوادر" د روایت مطابق له کفاله څخه بري کول پر شرط معلق کول ناجائز نه دي؛ د دغه روایت دلیل دا دی چي د صحیح قول مطابق پر کفیل فقط د قرض

مطالبه لازم وي، نه قرض، او له مطالبې څخه بري کول "اسقاط محض" دی، لکه څرنګه چې طلاق "اسقاط محض" دی، همدا وجه ده چې له کفاله څخه د کفیل بري کېدل د هغه په ردولو سره نه رد کیږي (یعني که مکفول لهٔ کفیل بري کړي، او کفیل هغه ردّ کړي نو ردّ نه ثابتیږي، بلکې کفیل خامخا بري کیږي، لکه کله چې خاوند خپلې ښځې ته طلاق ورکړي نو د ښځې په ردولو سره طلاق نه رد کیږي، بلکې خامخا طلاق واقع کیږي)؛ ځکه کوم شی چې د اسقاطاتو له قبیلې څخه وي نو هغه په ردولو سره نه ردّ کیږي او کوم شی چې د تملیکاتو له قبیلې څخه وي نو هغه پر ردولو سره رد کیږي، لنډه دا چې برائت منَ الکفاله "اسقاط محض" دی، او اسقاط محض پر شرط معلق کول جائز دي، نو ځکه برائت من الکفاله به هم پر شرط معلق کول جائز وي. د دې په خلاف د مکفول عنه په ردولو سره بري کېدل رد کیږي، یعني که مکفول لهٔ اصیل (مکفول عنه) بري کړي او مکفول هغه ردّ کړي، نو ردّ ثابتیږي، همدارنګه هغه پر شرط معلق کول جائز دي؛ ځکه چې هغه د تملیکاتو له قبیلې څخه دي (یعني د اصیل بري کول داسي دي لکه هغه د قرض مالک کول). (أثمار الهدایه)

## هر هغه حق چې له کفیل څخه د هغه اخیستل ممکن نه وي د هغه کفاله صحیح نه ده (قاعده)

قَالَ: وَكُلُّ حَقٍّ لَا يُمْكِنُ اِسْتِيْفَاؤُهُ مِنَ الْكَفِيْلِ فرمایي: او هر هغه حق چې له کفیل څخه د هغه اخیستل ممکن نه وي لَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ بِهٖ د هغه کفاله صحیح نه ده كَالْحُدُوْدِ وَالْقِصَاصِ لکه حدونه او قصاص مَعْنَاهُ بِنَفْسِ الْحَدِّ لَا بِنَفْسِ مَنْ عَلَيْهِ الْحَدُّ د دې مطلب دا دی چې د نفس حد [کفاله صحیح نه ده] نه د هغه کس د نفس چې پر هغه حد واجب وي لِأَنَّهٗ يَتَعَذَّرُ إِيْجَابُهٗ عَلَيْهِ ځکه چې پر کفیل د حد واجبول ناممکن دي وَهٰذَا لِأَنَّ الْعُقُوْبَةَ لَا تَجْرِيْ فِيْهَا النِّيَابَةُ او دا ځکه چې په سزا کې نیابت نه جاري کیږي.

**اللغات**: ﴿اسْتِيفَاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: په پوره توګه اخیستل، ترلاسه کول. ﴿عقوبة﴾ سزا. ﴿النيابة﴾ د نصر د باب اسم مصدر دی: نائب والی، نائب کېدل (قائم مقام کېدل).

**تشریح**: په دې عبارت کې د کفالې په هکله یوه قاعده بیان سوې ده، قاعده دا ده چې هر داسې حق چې له کفیل څخه د هغه اخیستل شرعاً ممکن نه وي، د هغه کفالې (کفیل کېدل) صحیح نه دي، مثلاً کفیل په خپله د حد یا قصاص کفیل سي (یعني کفیل داسې ووایي چې که فلانکی له حدّ یا قصاص څخه منع سو، نو زه د هغه کفیل یم، پر ما دې حدّ یا قصاص جاري کړی سي).

ها! پر کوم سړي چې حد يا قصاص واجب وي د هغه د حاضرولو کفيل کېدل (چې زه هغه د قاضي مجلس ته حاضروم) د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله او د جمهورو علماؤ په نيز صحيح دي، لېکن په خپله د حد يا قصاص کفيل کېدل د ټولو په نيز جائز نه دي، مثلاً که پر زيد د زنا حد يا د غلا حد واجب سي. يا زيد قتل وکړي او قصاص پر واجب سي. او خالد د هغه پر ځای د دې خبري کفيل سي چې که زيد له حد يا قصاص څخه منع سو. نو زه د هغه کفيل يم. پر ما دي حد يا قصاص جاري کړی سي، نو داسي کفاله صحيح نه ده.

دليل دا دی چې پر کفيل حد يا قصاص واجبول ناممکن او متعذر دی، يعني پر کفيل نه اصالةً حد او قصاص جاري کېدای سي او نه نيابةً؛ اصالةً خو ځکه نه سي پر جاري کېدای چې هغه مجرم نه دی، نو پر هغه حد جاري کول د شريعت د قانون خلاف دي. او د شريعت د قانون مخالفت کول جائز نه دي؛ او نيابةً ځکه حد او قصاص نه سي پر جاري کېدای چې په سزاګانو کي نيابت نه جاري کيږي؛ او په سزاګانو کي ځکه نيابت نه جاري کيږي چې د سزا ورکولو مقصد دا وي چې مجرم په آينده کي له جرم څخه منع سي، او ښکاره خبره ده چې نائب ته په سزا ورکولو سره دا مقصد نه حاصليږي. لهذا کله چې پر کفيل د حد او قصاص وجوب او جاري کېدل نه اصالةً کېدای سي او نه نيابةً، نو ثابته سوه چې په خپله د حد يا قصاص کفيل کېدل صحيح او جائز نه دي.

## د مشتري له طرفه د ثمن د کفالت حکم

| |
|---|
| قَالَ: وَإِذَا تَكَفَّلَ عَنِ الْمُشْتَرِيْ بِالثَّمَنِ فرمايي: او کله چې [يو شوک] د مشتري له طرفه د ثمن کفيل سي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ دَيْنٌ كَسَائِرِ الدُّيُوْنِ ځکه چې ثمن [هم] د نورو قرضونو په شان يو قرض دی. |

**اللغات**: ﴿دَيـن﴾ قرض. قرضـه. ﴿سـائـر﴾ د دې لفظ دوې معناوي دي: ① ټوله (ګرده). ② نور، باقي، دلته يې همدا معنیٰ مراد ده.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو شوک د مشتري له طرفه د ثمن اداء کولو کفيل سي (يعني يو شوک بائع ته ووايي چې که مشتري ثمن نه درکړي، نو زه يې درکوم)، نو دا جائز دي؛ ځکه چې ثمن هم قرض (او دين صحيح) دی. لهذا د نورو قرضونو په شان به د هغه کفيل کېدل هم جائز وي (ځکه مخکي څو ځله تېر سوه چې د قرض کفيل کېدل صحيح دي. لېکن د عَين شي په کفيل کېدلو کي تفصيل او اختلاف دی چې هغه په راروان عبارت کي بيان سي).

## د بائع له طرفه د مبيع د كفالت حكم (تفصيلي بيان)

وَإِنْ تَكَفَّلَ عَنِ الْبَائِعِ بِالْمَبِيْعِ او كه [يو څوک] د بائع له طرفه د مبيع كفيل سي لَمْ تَصِحَّ نو صحيح نه دي لِأَنَّهُ عَيْنٌ مَضْمُونٌ بِغَيْرِهِ وَهُوَ الثَّمَنُ ځكه چي مبيع داسي عَين دی چي د بل شي يعني د ثمن په عوض كي د هغه ضمان واجب دی [په لنډه توګه دا چي مبيع داسي عَين دی كوم چي "مضمون بغيره" دی. د "مضمون بغيره" تعريف او وضاحت به لاندي ذكر سي] وَالْكَفَالَةُ بِالْأَعْيَانِ الْمَضْمُونَةِ وَإِنْ كَانَتْ تَصِحُّ عِنْدَنَا خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ او د "اعيان مضمونه" كفاله (د امام شافعي په خلاف) كه څه هم زمونږ په نيز صحيح ده لَكِنْ بِالْأَعْيَانِ الْمَضْمُونَةِ بِنَفْسِهَا لېكن [له دې څخه مراد] "اعيان مضمونه بنفسها" دي [يعني زمونږ په نيز خو د "اعيان مضمونه" كفيل كېدل جائز دي. لېكن فقط د "اعيانه مضمونه بنفسها"، نه د "اعيانه مضمونه بغيرها"] كَالْمَبِيْعِ بَيْعًا فَاسِدًا وَالْمَقْبُوضِ عَلَى سَوْمِ الشِّرَاءِ وَالْمَغْصُوبِ لكه د بيع فاسد په صورت كي مبيع او هغه شی چي پر هغه د رانيولو په توګه قبضه سوې وي او مغصوب شی لَا بِمَا كَانَ مَضْمُونًا بِغَيْرِهِ نه د هغه اعيانو كفاله [يعني زمونږ په نيز د هغه اعيانو كفاله صحيح نه ده] كوم چي د بل شي په عوض كي مضمون وي كَالْمَبِيْعِ وَالْمَرْهُونِ لكه [د بيع صحيح] مبيع او مرهون شی وَلَا بِمَا كَانَ أَمَانَةً او نه د هغه اعيانو كفاله [صحيح ده] كوم چي امانت وي كَالْوَدِيْعَةِ وَالْمُسْتَعَارِ وَالْمُسْتَأْجِرِ وَمَالِ الْمُضَارَبَةِ وَالشَّرِكَةِ لكه د وديعت مال، مستعار شی، د مضاربت مال او د شركت مال وَلَوْ كَفَلَ بِتَسْلِيمِ الْمَبِيْعِ قَبْلَ الْقَبْضِ او كه چيري [يو څوک] له قبضې څخه مخكي د مبيع ورسپارلو كفيل سي أَوْ بِتَسْلِيمِ الرَّهْنِ بَعْدَ الْقَبْضِ إِلَى الرَّاهِنِ يا له قبضې څخه وروسته راهن ته د مرهون شي د ورسپارلو [كفيل سي] أَوْ بِتَسْلِيمِ الْمُسْتَأْجَرِ إِلَى الْمُسْتَأْجِرِ يا په أجرت اخيستونكي ته د أجرت والا شي د ورسپارلو [كفيل سي] جَازَ نو دا جائز دي لِأَنَّهُ الْتَزَمَ فِعْلًا وَاجِبًا ځكه چي [دلته] كفيل د واجب فعل التزام كړی دی [يعني هغه پر خپل ځان واجب فعل لازم كړی دی].

**اللغات:** ﴿عَين﴾ ① كوم شی چي موجود وي او په لاس سره مسه كېدای سي او محفوظ كېدای سي، لكه مال، سامان، ځمكه او داسي نور، نو هغه ته "عَين شی" وايي. ② له درهم او دينار څخه بغير بل مُعَين شی، جمع يې "أَعْيَان" راځي (اثمار الهدايه). ﴿مضمون﴾ د سمع د باب مفعول دی: د ضمان محل، د كوم شي چي

ضمان واجب سي. ﴿مقبوض﴾ قبضه کړی سوی شی. ﴿سوم﴾ د نصر مصدر دی: طلب کول، نرخ معلومول، قیمت ټاکل. (د مقبوض على سوم الشراء پوره معنیٰ په تشریح کي ذکر سوې ده). ﴿وديعة﴾ د امانت مال (هغه شی کوم چي یو چا ته په امانت ایښول سوی وي). ﴿مستعار﴾ د استفعال مفعول دی: په خواست غوښتل سوی شی، د عاریت شی (مثلاً یو څوک د همسایه له کوره څخه بېلچه په خواست راوړي [د قرض حسنه په توګه یې راوړي] نو دې ته "مستعار" وایي). ﴿مال المضاربة﴾ که مال د یوه سړي وي او په هغه سره تجارت بل سړی کوي او ګټه د دواړو په مینځ کي نیمه وي، نو هغه مال ته د "مضاربت مال" وایي. ﴿الشركة﴾ که مال د دوو خلکو په مینځ کي مشترک وي او دواړه په ګډه په هغه سره تجارت کوي، نو هغه ته د "د شرکت مال" وایي. ﴿مستأجَر﴾ (د جیم په فتحه سره) د استفعال مفعول دی: په أجرت اخیستل سوی شی، په کرایه اخیستل سوی. ﴿مستأجِر﴾ (د جیم په کسره سره) په أجرت اخیستونکی (هغه کس کوم چي په أجرت او کرایه سره شی واخلي). ﴿التزم﴾ د افتعال ماضي ده: پر ځان لازمول، په خپله ذمه اخیستل.

**تمهید**: په دې عبارت کي صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله ځیني داسي الفاظ او محاورات استعمال کړي دي چي په هغوی ځانٰ پوه کول ضروري دي، تاسو اول په هغه ښه ځان پوه کړئ!، بیا به د عبارت مختصره تشریح ذکر کړو:

اعیان (عَین شیان) پر دوه قسمه دي: ① اعیان مضمونه، ② اعیان غیر مضمونه.

**(۱)... اعیانِ مضمونه**: داسي شیانو ته وایي چي که هغوی ضایع کړل سي نو ضمان یې واجبیږي (یعني پر ضایع کونکي د هغوی تاوان واجبیږي). اعیان مضمونه پر دوه قسمه دي: ① اعیان مضمونه بنفسها، ② اعیان مضمونه بغیرها.

① ... مضمون بنفسه داسي شي ته وایي چي خاص د هغه شي واپس کول واجب وي، او که هغه هلاک سي نو قیمت یې واجبیږي، لاندیني درې شیان مضمونه بنفسها دي:

[۱]... د بیع فاسد مبیع: په بیع فاسد کي چي کله مبیع د مشتري سره موجوده وي نو خاص د هغه مبیع واپس کول ضروري دي، او که مبیع هلاکه سي نو بیا د هغې قیمت لازمیږي (په لنډه توګه داچي د بیع فاسد مبیع مضمون بنفسه ده).

[۲]... مقبوض علیٰ سوم الشراء: یعني که مشتري بائع (دوکاندار) ته مثلاً داسي ووایي چي دا کپړه زه کور ته وړم، که د ښځو خوښه سوه (او زموږ پر قیمت فیصله وسوه) نو بیا یې رانیسم، او بائع هغه ته کپړه په لاس ورکړي، نو داسي شي ته "مقبوض علیٰ سوم الشراء" وایي. څرنګه چي تر

اوسه بيع نه ده سوې، نو ځکه خاص هغه شی (کپړه) واپس کول ضروري دي. لېکن که هغه هلاک سي نو بيا يې قيمت لازمېږي.

[۳]... مغصوب شی: غاصب چي کوم شی غصب کړی وي، که هغه د غاصب سره موجود وي نو د هغه واپس کول ضروري دي، لېکن که هغه هلاک سي نو بيا د هغه قيمت لازمېږي.

حکم: څرنگه چي په دغه درېو شيانو کي تر هلاکېدلو وروسته قيمت واجبېږي، نو ځکه د هغوی کفيل کېدل صحيح دي (ځکه که بالفرض دغه شيان هلاک سي نو کفيل به د هغوی د قيمت کفيل سي).

(۲)... مضمون بغيره داسي شي ته وايي چي د بل شي (غَير) په عوض کي د هغه ضمان واجب وي (يعني د بل شي په وجه يې ضمان واجب وي)، لاندي دوه شيان مضمونه بغيرها دي:

[۱]... د بيع صحيح مبيع: کله چي مشتري بائع ته ثمن ورکړي. لېکن هغه مشتري ته مبيع نه وسپاري، نو په دې صورت کي مبيع د ثمن په عوض کي مضمون وي (يعني مبيع د ثمن په وجه د بائع په ضمانت کي وي او هغه يې ضامن وي)، نو ځکه دې مبيع ته مضمون بغيره وايي. حکم يې دا دی چي که دا مبيع هلاکه سي نو د هغې په بدله کي بله مبيع نه لازمېږي، بلکي بيع فسخ کېږي او ختمېږي، نو ځکه د هغې کفيل جوړېدل (چي که مبيع هلاکه سي. نو زه د هغې په بدله کي بله مبيع درکوم) صحيح نه دي. (لېکن پر بائع د ثمن واپس کول لازم دي)

[۲]... مرهون شی (د رهن شی): څرنگه چي مرهون شی د قرض په عوض کي (د قرض په وجه) د مرتهن په قبضه کي وي او د قرض په عوض کي مضمون وي. نو ځکه هغه ته هم مضمون بغيره وايي. حکم يې دا دی چي که مرهون شی د مرتهن په قبضه کي هلاک سي نو مرتهن د قرض اخيستونکي شمارل کېږي (يعني گواکي مرتهن له راهن څخه خپل قرض واخيستی او قرض اداء سو)، نو ځکه د مرهون شي کفيل جوړېدل (چي که هغه هلاک سي. نو په بدله کي يې زه بل شی درکوم) صحيح نه دي. (ځکه چي د مرهون شي په بدله کي د بل شي دورکولو کفيل کېدلو ته هيڅ ضرورت نسته. ځکه د هغه په هلاکېدلو سره راهن له قرض څخه بري کېږي او مرتهن د خپل قرض اخيستونکی شمارل کېږي).

(۲)...**أعيانِ غير مضمونه**: داسي شيانو ته وايي چي که هغوی ضايع او هلاک کړل سي، نو ضمان يې نه واجبېږي. حکم: څرنگه چي د دې شيانو قيمت هم نه لازمېږي، نو ځکه د هغوی کفيل جوړېدل هم صحيح نه دي. لاندېني پنځه شيان اعيان غير مضمونه دي (چي هغه ته امانتونه هم وايي):

① د امانت په توگه ايښوول سوی شی (چي هغه ته د وديعت مال وايي)، ② په خواست غوښتل سوی شی (چي هغه ته مستعار وايي)، ③ په أجرت (کرايه) اخيستل سوی شی (چي هغه ته مستأجَر وايي)، ④ د مضاربت مال، ⑤ د شرکت مال. (د دې ټولو کفيل کېدل صحيح نه دي).

**تفصيلي حکم**: د اعيان غير مضمونه او د اعيان مضمونه (مضمونه بنفسها يا مضمونه بغيرها) مختصر حکم موږ د هر يوه سره بيان کړی. تفصيلي حکم يې دا دی چې اعيان که مضمونه وي او که غير مضمونه وي، مضمونه بنفسها وي او که مضمونه بغيرها وي، د ټولو د کفالې (کفيل کېدلو) دوه صورتونه دي: کفيل به يا د هغوی د ذات کفيل وي او يا محض به د هغوی د ورسپارلو کفيل وي. که چيرې اول وي يعني کفيل د هغوی د ذات کفيل سوی وي، نو په دې صورت کې د اعيان غير مضمونه (يعني د وديعت مال، مستعار مال او داسې نور) او د اعيان مضمونه بغيرها (يعني د مبيع او مرهون شي) کفاله د احناف او شوافعو دواړو په نېز صحيح نه ده. او د اعيان مضمونه بنفسها (يعني د بيع فاسد مبيع، مقبوض على سوم الشراء او د مغصوب شي) کفاله زموږ په نېز صحيح او جائز ده، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د اعيان مضمونه بنفسها کفاله هم جائز نه ده.

**د امام شافعي دليل**: د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز ځکه مطلقاً د اعيانو کفاله ناجائز ده چې د هغه په نېز د کفالې مُوجب دی "اصل قرض پر ځان لازمول". ګواکې د هغه په نېز د کفالې محل قرضونه (ديون) دي، نه اعيان (عين شيان). لهذا کله چې د کفالې محل قرضونه دي، نه اعيان (عين شيان)، نو د اعيانو کفاله به څنګه صحيح وي!؟. او بل دا چې د کفالې د صحيح کېدلو شرط دا دی چې کفيل به له خپل طرفه د مکفول بهٖ پر اداء کولو قادر وي، او دا شرط فقط په قرضونو کې متصور کېدای سي، لېکن په اعيانو کې نه سي متصور کېدای (ځکه چې کفيل له خپل طرفه عَين شي نه سي ورکولای)، نو په دې وجه هم د اعيانو کفاله جائز نه ده.

**زموږ دليل**: دا دی چې د کفالې تعريف او معنیٰ ده "يوه ذمه د بلې ذمې سره په مطالبه کې يو ځای کول"، او مطالبه د دې تقاضا کوي چې "مطلوب"، يعني "د کوم شي چې مطالبه کيږي" هغه به پر اصيل يعني پر مکفول عنه مضمون وي (يعني د هغه ضمان به پر مکفول عنه واجب وي)، حال دا چې "اعيان غير مضمونه" (امانتونه) نه مضمون کيږي (يعني د هغوی ضمان نه واجبيږي) لکه څه مخکې چې ذکر سوه، يعني که د امانت مال يا مستعار مال او داسې نور د قابض يعنې د اصيل (مکفول عنه) سره هلاک سي نو پر هغه ضمان نه لازميږي. او همدارنګه مضمون بغيره يعني مبيع (کوم چې د ثمن په عوض کې وي) او مرهون شی (کوم چې د قرض په عوض کې وي) دا پر اصيل نه مضمون کيږي، يعني که مبيع د بائع سره هلاکه سي نو ثمن ساقطيږي او بيع فسخ کيږي (ختميږي)، او که مرهون شی د مرتهن سره هلاک سي نو مرتهن د قرض اخيستونکی شمارل کيږي (يعني ګواهي هغه خپل قرض له راهن څخه واخيستی)، نو ځکه پر بائع او مرتهن مطالبه نه لازميږي، او کله چې په خپله پر دوی مطالبه لازمه نه

سوه نو پر کفیل به څنګه لازمه سي، او کله چي پر کفیل مطالبه نه سي لازمېدای، نو په دې دوو صورتونو کي به کفاله (کفیل جوړېدل) څنګه صحیح وي!؟.

او څرنګه چي په اعیان مضمونه بنفسها کي پر اصیل مطالبه لازمیږي، یعني په بیع فاسد کي له مشتري څخه دعَین مبیع دواپس کولو مطالبه کیږي او که عَین مبیع هلاکه سي نو دهغې د قیمت مطالبه ځني کیږي (لکه څه مخکي چي ذکر سوه چي که په بیع فاسد کي مبیع دمشتري سره موجوده وي نو خاص دهغې واپس کول ضروري دي. او که هلاکه سي نو قیمت یې لازمیږي). همدارنګه که مقبوض علی سوم الشراء یا مغصوب شی هلاک سي نو دهغوی د قیمت مطالبه ځني کیږي (لکه مخکي چي موږ په مختصره توګه ذکر کړه). لهذا کله چي داعیان مضمونه بنفسها مطالبه له اصیل څخه کېدای سي، نو بیا د هغوی مطالبه له کفیل څخه هم کېدای سي، او کله چي له کفیل څخه دهغوی مطالبه کېدای سي، نو د هغوی کفاله به هم صحیح وي. نو ثابته سوه چي داعیان مضمونه بنفهسا کفاله جائز ده. او داعیان مضمونه بغیرها او داعیان غیر مضمونه کفاله ناجائز ده.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو څوک د بائع له طرفه دمبیع کفیل سي (یعني یو سړی مشتري ته ووایي چي که مبیع دبائع سره هلاکه سي نو دهغه په بدله کي زه بله مبیع درکوم). نو دا جائز نه دي؛ ځکه چي مبیع داسي عَین دی کوم چي مضمون بغیره دی (یعني مبیع دثمن په عوض کي دبائع په ضمانت کي ده او بائع یې ضامن دی). او په مضمون بغیره مبیع کي قاعده دا وي چي فقط مبیع لازمه وي (یعني فقط دمبیع ورسپارل لازم وي، نه دبل شي). او که مبیع دبائع سره هلاکه سي نو بیع فسخ کیږي، نو ځکه د دې مبیع کفیل کېدل به صحیح نه وي، نور تفصیل په تمهید کي ذکر سوی دی (چي زموږ په نېز داعیان مضمونه بغیرها کفاله جائز نه ده...الخ).

**أصول:** دا مسئله پر دې أصول مبني ده چي که کفیل له خپل طرفه دشي مِثل (او قیمت) نه سي ورکولای بلکي بعینه دهغه شي ورکول پر لازم وي (مثلا که شی هلاک سي یا مکفول لهٔ انکار وکړي نو پر کفیل دعَین شي ورکول لازم وي). نو په داسي صورت کي کفیل کېدل (کفیل جوړېدل) جائز نه دي.

**والكفالة بالأعيان المضمونة إلخ:** فرمايي چي داعیان مضمونه بنفسها کفاله (کفیل کېدل) جائز دي، د مضمون بنفسه تعریف او مطلب مخکي تېر سوه چي داسي شي ته وایي چي دهغه واپس کول واجب وي لیکن که هغه هلاک سي نو قیمت یې لازمیږي، لنډه دا چي کله داعیان مضمونه بنفسها قیمت لازمیږي، نو ځکه دهغوی کفاله جائز ده. (ځکه که چیري مضمون بنفسه شی هلاک سي نو کفیل به دهغه د قیمت کفیل سي او قیمت به پر لازم سي). دغه درې شیان اعیان مضمونه بنفسها دي: (۱) دمبیع فاسد مبیع، (۲) مقبوض علی سوم الشراء (د دې تعریف مخکي تېر سو. او د کفیل کېدلو مثال یې دا دی که یو څوک

بائع [دوکاندار] ته ووايي چي ته مشتري ته شی په لاس ورکړه! که له هغه څخه هلاک سو، نو زه يې کفيل يم)،
(۳) مغصوب شی (د دې مثال دا دی که يو څوک مثلاً د مغصوب شي مالک [مغصوب منه] ته ووايي چي که مغصوب شی د غاصب سره هلاک سي نو زه يې کفيل يم).

زموږ په نيز د دې شيانو کفاله جائز ده، لېکن د امام سافعي رَحِمَهُ الله په نيز دا کفاله جائز نه ده؛ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل په تمهيد کي ذکر سو.

لا بما كان مضموناً إلخ: مخکي ذکر سوه چي د مضمونه بغيرها شيانو کفاله جائز نه ده. چي هغه دوه شيان دي: (۱) د بيع صحيح مبيع، (۲) مرهون شی؛ (په بيع صحيح کي) مبيع د ثمن په عوض کي د بائع په ضمانت کي وي او فقط مبيع لازمه وي، نه بل شی، او که مبيع هلاکه سي نو بيع ختميږي، نو ځکه د هغه کفاله (کفيل کېدل) جائز نه دي، همدارنګه مرهون شی د مرتهن (قرض ورکونکي) په قبضه کي د قرض په عوض کي وي او د راهن وطرف ته خاص د هغه واپس کول لازم وي، او که هغه هلاک سي نو مرتهن د خپل قرض اخيستونکی شمارل کيږي او پر مرتهن قيمت نه لازميږي (يعني ګواکي هغه راهن ته خپل شی واپس کړی او له هغه څخه يې خپل قرض واخيستی، لهذا د هغه شي و کفيل جوړېدلو ته هيڅ ضرورت نه وي)، نو ځکه د دې شيانو کفاله جائز نه ده.

لا بما كان أمانة إلخ: کوم شيان چي امانت وي، لکه د وديعت مال (په امانت اېښوول سوی شی)، همدارنګه مستعار شی او په اُجرت (کرايه) اخيستل سوی شی، د مضاربت مال او د شرکت مال. د هغوی کفاله هم جائز نه ده؛ دليل يې په تمهيد کي تېر سو.

ولو كفل بتسليم المبيع إلخ: (۱)... که مشتري بائع ته ثمن ورکړي لېکن مشتري تر اوسه پر مبيع قبضه نه وي کړې يعني بائع هغه ته مبيع سپارلې نه وي، او په دې صورت کي بل سړی د دې خبري کفيل سي چي زه په بائع تا ته مبيع سپارم. يعني زه پر بائع زور کوم او هغه پر دې مجبوره کوم چي تا ته مبيع وسپاري. نو دا کفاله جائز ده. (۲)... همدارنګه که مرتهن پر خپل قرض قبضه وکړي (يعني له راهن څخه خپل قرض واخلي) لېکن مرهون شی تر اوسه د مرتهن په قبضه کي وي، او يو سړی راهن ته ووايي چي زه د دې کفيل يم چي په مرتهن به دغه مرهون شی تا ته سپارم، نو دا کفاله جائز ده. (۳)... همدارنګه که څوک يو شی په کرايه واخلي (چي هغه ته مستأجر وايي)، او بل سړي مستأجر ته ووايي چي زه د دې کفيل يم چي په مالک (کرايه دار) به دغه شی تا ته سپارم، نو دا کفاله هم جائز ده.

دليل دا دی چي په دغه دريو صور تونو کي پر کفيل د شي په بدله کي بل شی نه لازميږي (يعني که شی هلاک سي يا مکفول لهٔ د شي د ورسپارلو څخه انکار وکړي نو پر کفيل د عين شي په بدله کي بل عين شی ورکول نه لازميږي)، بلکي فقط دا لازميږي چي هغه به بائع، مرتهن او مستأجر د ورسپارلو په هکله

مجبوره کوي (په بله وينا دا چي دلته پر کفيل له خپل طرفه د مبيع، مرهون شي يا مستأجر شي ورکول لازم نه دي، بلکي فقط پر هغه دا لازم دي چي د دې شيانو د ورسپارلو په هکله پر بائع، مرتهن او مستأجر ټينګار وکړي). او پر بائع د مبيع، پر مرتهن د مرهون شي، او پر مستاجر د أجرت د شي "ورسپارل" واجب دي، نو دلته د کفيل کېدلو مطلب دا سو چي کفيل پر ځان دغه واجب کار (ورسپارل) پر ځان لازم کړه چي زه به بائع او داسي نور پر ورسپارلو مجبوره کوم. ګواکي د هغوی مطالبه يې پر ځان لازمه کړه (لهذا مکفول لهٗ د هغه شخه فقط د ورسپارلو مطالبه کولای سي چي مثلاً په بائع ما ته مبيع وسپاره! أو داسي نور)، او تاسو ته معلومه ده چي کفاله "ضمُ الذمة إلى الذمة في المطالبة" ته وايي. نو ځکه په دغه پورتني دريو صورتونو کښي کفاله جائز ده. (أثمار الهدايه)

حبيب الرحمن مدني

عفى الله عنه وعن والديه

## د بار وړلو د کفالت حکم

قَالَ: وَمَنِ اسْتَأْجَرَ دَابَّةً لِلْحَمْلِ عَلَيْهَا فرمايي: او که څوک د بار وړلو لپاره يو څاروی په أجرت [کرايه] ونيسي فَإِنْ كَانَتْ بِعَيْنِهَا نو که چيري څاروی معين وي لَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ بِالْحَمْلِ نو د بار وړلو کفاله صحيح نه ده لِأَنَّهُ عَاجِزٌ عَنْهُ ځکه چي کفيل له هغه شخه عاجز دی وَإِنْ كَانَتْ بِغَيْرِ عَيْنِهَا او که چيري څاروی غير معين وي جَازَتِ الْكَفَالَةُ نو کفاله جائز ده لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ الْحَمْلُ عَلَى دَابَّةِ نَفْسِهِ ځکه چي [په دې صورت کي] د کفيل لپاره پر خپل ذاتي څاروي بار وړل ممکن دي وَالْحَمْلُ هُوَ الْمُسْتَحَقُّ او همدا بار وړل واجب دي وَكَذَا مَنِ اسْتَأْجَرَ عَبْدًا لِلْخِدْمَةِ او همدارنګه که څوک د خدمت لپاره يو غلام په أجرت ونيسي فَكَفَلَ لَهُ رَجُلٌ بِخِدْمَتِهِ بيا يو سړی د هغه مستأجر لپاره د غلام د خدمت کفيل سي فَهُوَ بَاطِلٌ نو دا باطل دي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات**: ﴿حمل﴾ د ضرب مصدر دی: بار وړل، (پر څاروي بار وړل). ﴿استأجر﴾ د استفعال ماضي ده: په أجرت اخيستل، په کرايه نيول. ﴿دابة﴾ څاروی، سپارلی. ﴿عاجز﴾ بې وسه.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که خالد يو مُعين څاروی (مثلاً خر) د بار وړلو لپاره په کرايه ونيسي او بل سړی د مستأجر (خالد) لپاره پر هغه مُعين څاروي د بار وړلو کفيل سي (يعني بل سړی خالد

ته ووايي چي که مالک تا ته خَر نه درکړي نو زه د هغه کفيل يم. زه خاص پر هغه خره ستا بار وړم)، نو دا د بار وړلو کفاله جائز نه ده؛ دليل دا دی چي کفيل پر هغه مُتعيّن څاروي له بار وړلو څخه عاجز دی (يعني که مالک خالد ته خَر نه ورکړي نو کفيل خو بعينه هغه خَر نه سي ورکولای او د هغه پر ځای خپل خَر هم نه سي ورکولای. ځکه چي هغه د مُعين خره کفيل سوی دی)، او ښکاره خبره ده چي که له يو کار څخه کفيل عاجز وي نو د هغه کفاله جائز نه ده، نو ځکه پر مُعينّ څاروي د بار وړلو کفاله به هم جائز نه وي.

او که څاروی غير مُعيّن وي (يعني کفيل خالد ته ووايي چي که مالک تا ته خر نه درکړي نو زه پر يو خره يا پر يو څاروي ستا بار وړم)، نو په دې صورت کي کفاله جائز ده؛ ځکه چي اوس کفيل خپل څاروي د بار وړلو لپاره ورکولای سي، او دلته (په دې کفاله سره) واجب همدا "بار وړل" دي، او دغه واجب کفيل په خپل څارويّ سره اداء کولای سي او کفيل پر دې قدرت لري، نو ځکه د هغه کفاله به جائز وي.

وكذا من استأجر الخ: د دې حاصل دا دی که څوک د خدمت لپاره يو غلام په اُجرت ونيسي، او يو سړی د مستأجر لپاره د غير مُعيّن غلام د خدمت کفيل سي، نو دا کفاله هم جائز ده؛ ځکه چي په دې کفاله سره پر کفيل خدمت واجب سو، او کفيل په خپل غلام سره د هغه (مستأجر) خدمت کولای سي. او که چيري د مُعيّن غلام کفيل سي، نو دا کفاله جائز نه ده؛ ځکه چي کفيل ته د بل چا پر غلام هيڅ قدرت نسته (يعني کفيل مستأجر ته بعينه د مکفول لهٗ غلام نه سي ورکولای)، نو ځکه دا کفاله صحيح نه ده، ځکه کله چي کفيل د بلّ چا پر غلام قادر نه دی نو هغه پر دې هم قادر نه دی چي په هغه مُعيّن غلام خدمت وکړي، او کله چي کفيل په مُعيّن غلام د خدمت کولو قدرت نه لري، نو ځکه د هغه کفاله به جائز هم نه وي.

## په کفالت کي د مکفول لهٗ د قبول کولو (قبلولو) شرط

قَالَ: وَلَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ إِلَّا بِقَبُوْلِ الْمَكْفُوْلِ لَهُ فِي الْمَجْلِسِ فرمايي: او کفاله نه صحيح کيږي مګر په مجلس کي د مکفول لهٗ په قبلولو سره وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ ❁: يَجُوْزُ إِذَا بَلَغَهُ أَجَازَ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله [په يوه روايت کي] فرمايلي دي: چي جائز دي، په دې شرط کله چي هغه [مکفول لهٗ] ته خبر ورسيږي نو هغه اجازت ورکړي وَلَمْ يَشْتَرِطْ فِي بَعْضِ النُّسَخِ الْإِجَازَةُ او په بعضي نسخو کي اجازت شرط نه دی وَالْخِلَافُ فِي الْكَفَالَةِ

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:٤؛ ص:٢٩٩)، وفي البحر (ج:٦، ص:٢٣١). [القول الراجح ج:٢، ص:٩٢]

بِالنَّفْسِ وَالْمَالِ جَمِيْعًا او [دا] اختلاف په کفاله بالنفس او کفاله بالمال دواړو کې دی لَهُ: أَنَّهُ تَصَرُّفُ الْتِزَامٍ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې عقد کفاله د لازمولو تصرف دی [یعني په کفاله کې کفیل پر خپل ځان د مطالبې لازمولو تصرف کوي] فَيَسْتَبِدُّ بِهِ الْمُلْتَزِمُ نو ځکه لازمونکی به په هغه کې مستقل [خود مختاره] وي وَهٰذَا وَجْهُ هٰذِهِ الرِّوَايَةِ عَنْهُ او دا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د همدې روایت دلیل دی وَوَجْهُ التَّوَقُّفِ مَا ذَكَرْنَاهُ فِي الْفُضُولِيِّ فِي النِّكَاحِ او [د هغه د دویم روایت یعني د مکفول پر اجازت] د موقوف کېدلو دلیل هغه دی کوم چې موږ په نکاح کې د فضولي [یعني د فضولي د نکاح] په باره کې ذکر کړی دی وَلَهُمَا: أَنَّ فِيهِ مَعْنَى التَّمْلِيْكِ او د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چې په عقد کفاله کې د مالک کولو معنیٰ سته وَهُوَ تَمْلِيْكُ الْمُطَالَبَةِ مِنْهُ او هغه د کفیل له طرفه [مکفول لهٗ] د مطالبې مالک کول دي فَيَقُوْمُ بِهِمَا جَمِيْعًا نو ځکه دا معنیٰ به په کفیل او مکفول لهٗ دواړو سره قائمیږي [یعني د کفیل په ایجاب او د مکفول لهٗ په قبول سره به قائمیږي] وَالْمَوْجُوْدُ شَطْرُهُ او دلته د هغه یوه حصه [یو جزء] موجود دی [یعني د کفیل ایجاب] فَلَا يَتَوَقَّفُ عَلَىٰ مَا وَرَاءَ الْمَجْلِسِ نو ځکه پر ما وراء د مجلس به نه موقوف کیږي.

**اللغات:** ﴿يستبدّ﴾ د استفعال مضارع ده: مستقل کېدل، يوازي كول. ﴿شطر﴾ یوه حصه، یو جزء، ﴿وراء﴾ شاته، وروسته ﴿ماوراء المجلس﴾ له مجلس څخه وروسته، (له مجلس څخه دباندي).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې څرنګه په نورو معاملاتو او عقودو کې د عاقدینو له طرفه د عقد په مجلس کې ایجاب و قبول کول ضروري دي، همداسې په عقد کفاله کې هم د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د عقد په مجلس کې د مکفول لهٗ له طرفه کفاله قبلول شرط او ضروري دي. یعني که مکفول لهٗ د عقد په مجلس کې کفاله قبوله کړي، نو کفاله صحیح کیږي، کنې نه صحیح کیږي. برابره ده کفاله بالنفس وي او که کفاله بالمال وي.

**وقال أبويوسف إلخ:** په دې لړ کې له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه دوه روایتونه نقل سوي دي: ①... یو روایت دا دی چې که د عقد په مجلس کې مکفول لهٗ موجود نه وي، او وروسته د کفالې خبر هغه ته ورسیږي او هغه د کفالې اجازت ورکړي، نو کفاله صحیح کیږي. یعني د کفالې صحت او عدم

صحت (صحیح کېدل او نه صحیح کېدل) د مکفول لهٔ پر اجازت موقوف دي. ②... دویم روایت دا دی چې د کفالې د صحت او عدم صحت دار ومدار پر کفیل دی، نه پر مکفول لهٔ، یعني که کفیل د کفالې ذمه واري واخلي، نو برابره ده مکفول لهٔ هغه قبوله کړي که نه، په دواړو صورتونو کي کفاله صحیح کیږي؛ د دې روایت دلیل دا دی چې کفاله "پر خپل ځان د لازمولو تصرف" ته وایي (مطلب دا چې کفاله پر خپل ځان د مطالبې لازمولو ته وایي)، او هر هغه تصرف کوم چې پر خپل ځان لازم کړی سي په هغه کي لازمونکی مستقل او خود مختاره وي، او د هغه التزام (لازمول) د بل چا پر قبول یا اجازت موقوف نه وي، مثلاً که یو څوک نذر ومني (چې زه به لس رکعته نفل کوم)، نو ښکاره خبره ده چې هغه یو غیر لازم شی د نذر په ذریعه پر خپل ځان لازم کړی، او دغه التزام د یو چا پر قبول او اجازت موقوف نه وي، نو همداسي به د کفیل د مطالبې التزام هم د یو چا پر اجازت او قبول موقوف نه وي.

ووجه التوقف إلخ: د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د دویم روایت (چې د کفالې صحت او عدم صحت د مکفول لهٔ پر اجازت موقوف دي) دلیل دا دی چې "عقد" د ایجاب او قبول مجموعې ته وایي (یعني د عقد دوې حصې دي: ایجاب، قبول، او کله چې دا دواړه سره جمع سي نو عقد پوره کیږي)، نو ځکه په عقد کفاله کي به د کفیل تر ایجاب وروسته د مکفول لهٔ قبلول ضروري وي، خو څرنګه چې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د عقد له دواړو حصو څخه یوه حصه یعني "قبول" پر ما وراء د مجلس موقوف کېدای سي (یعني د هغه په نېز تر مجلس وروسته هم قبول کول جائز دي، لکه څرنګه چې په کتابُ النکاح کي د "فضولي في النکاح" په بیان کي دا خبره تېره سوه.)، نو ځکه د عقد کفاله یوه حصه "یعني د مکفول لهٔ قبلول او اجازت ورکول" به هم پر ما وراء د مجلس موقوف وي، یعني که مکفول لهٔ تر مجلس وروسته د کفالې اجازت ورکړي نو کفاله به صحیح کیږي، او که اجازت نه ورکړي نو کفاله به نه صحیح کیږي.

ولهما أن إلخ: د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې په عقد کفاله کي د تملیک (مالک جوړولو) معنیٰ سته، په دې توګه چې کفیل د عقد کفاله په ذریعه مکفول لهٔ د مطالبې مالک جوړوي (چې زما څخه مطالبه کوه!)، او په کوم شي کي چې د تملیک معنیٰ وي هغه په مالک جوړونکي (مُمَلِّك) او په مالک جوړېدونکي (مُمَلَّك) دواړو سره قائمیږي (یعني د تملیک لپاره د مُمَلِّك او مُمَلَّك دواړو موجودېدل ضروري دي)، نو ځکه عقد کفاله به په کفیل او مکفول لهٔ دواړو سره قائمیږي، او دا په هغه صورت کي ممکن دي کله چې کفیل د عقد په مجلس کي مکفول لهٔ د مطالبې مالک جوړ کړي او مکفول لهٔ قبول هم وکړي (یعني کفیل ایجاب وکړي او مکفول لهٔ دا کفاله قبوله هم کړي)؛ ځکه چې د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د عقد هیڅ حصه هم پر ما

وراء د مجلس نه موقوف کيږي، او څرنګه چې دلته د عقد کفاله يوه حصه "يعني د مکفول لهٔ قبلول" معلوم دي، نو ځکه له هغه څخه بغير به کفاله نه صحيح کيږي.

## له پورتني شرط څخه استثناء

إِلَّا فِي مَسْأَلَةٍ وَاحِدَةٍ مګر په يوه مسئله کي وَهِيَ: أَنْ يَقُوْلَ الْمَرِيْضُ لِوَارِثِهِ: تَكَفَّلْ عَنِّيْ بِمَا عَلَيَّ مِنَ الدَّيْنِ او هغه دا ده: چې مريض خپل وارث ته ووايي: ته زما له طرفه د هغه قرض کفيل سه! کوم چې پر ما واجب دی فَكَفَلَ بِهِ مَعَ غَيْبَةِ الْغُرَمَاءِ نو وارث د قرضخواهانو [قرض غوښتونکو] د ناموجوديت باوجود د هغه کفيل سي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ ذٰلِكَ وَصِيَّةٌ فِي الْحَقِيْقَةِ ځکه چې دا په حقيقت کي وصيت دی وَلِهٰذَا تَصِحُّ وَإِنْ لَمْ يُسَمِّ الْمَكْفُوْلَ لَهُمْ او په همدې وجه کفاله صحيح کيږي که څه هم د مکفول لهم [قرضخواهانو] نوم نه واخيستل سي وَلِهٰذَا قَالُوْا: إِنَّمَا تَصِحُّ إِذَا كَانَ لَهُ مَالٌ او په همدې وجه مشايخو ويلي دي: چې دا کفاله هغه وخت صحيح کيږي کله چې د مريض سره مال [موجود] وي أَوْ يُقَالَ: إِنَّهُ قَائِمٌ مَقَامَ الطَّالِبِ يا به داسي ويل کيږي: چې مريض د مکفول لهٔ [قرضخواه] قائم مقام دی لِحَاجَتِهِ إِلَيْهِ تَفْرِيغًا لِذِمَّتِهِ ځکه چې د مريض دې ته ضرورت دی چې د هغه ذمه فارغه سي [يعني د خپلي ذمې د فارغولو (غاړي خلاصولو) لپاره هغه دې ته مجبوره دی] وَفِيهِ نَفْعُ الطَّالِبِ او په دې کي د مکفول لهٔ [هم] نفع سته كَمَا إِذَا حَضَرَ بِنَفْسِهِ [نو دا داسي سو] لکه مکفول لهٔ چې په خپله حاضر وي وَإِنَّمَا يَصِحُّ بِهٰذَا اللَّفْظِ وَلَا يُشْتَرَطُ الْقَبُوْلُ او په دې لفظ سره ځکه کفاله صحيح ده او قبول شرط نه دی لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ التَّحْقِيْقُ دُوْنَ الْمُسَاوَمَةِ ظَاهِرًا فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ ځکه چې په دې سره په حقيقي توګه کول مراد دي، نه دا چې په دې حالت کي په ظاهري توګه معامله کول فَصَارَ كَالْأَمْرِ بِالنِّكَاحِ نو دا د نکاح د امر کولو په څېر سو [يعني دا داسي سو لکه سړی چې ښځي ته د نکاح حکم وکړي] وَلَوْ قَالَ: الْمَرِيْضُ ذٰلِكَ لِأَجْنَبِيٍّ او که چيري مريض يو اجنبي ته دا [تكفلْ عنيْ...] ووايي اخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ فِيهِ نو په دې کي د مشايخو اختلاف دی.

**اللغات:** ﴿تكفَّلْ﴾ د تفعّل له بابه د واحد مذکر امر حاضر صيغه ده: کفيل کېدل، کفيل جوړېدل، ﴿غيبة﴾ غائب والی، ناموجوديت (ناموجودګي). ﴿غرماء﴾ جمع د "غَرِيْمٌ": د قرض مالک، قرضخواه (قرض غوښتونکی). چا چي بل چا ته قرض ورکړی وي، پور ورکونکی (چي هغه ته مور، دلته

قرضخواه" وايو)، ﴿مساومة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دى: نرخ معلومول، معامله او سودا کول. (أحسن الهدايه)

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د مکفول لهٗ له قبلولو څخه بغير کفاله نه صحيح کيږي، مګر يوه مسئله داسي ده چي په هغه کي د کفالې د صحت لپاره د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هم د مکفول لهٗ له طرفه کفاله قبلول شرط نه دي او د هغه له قبلولو څخه بغير هم کفاله صحيح کيږي. هغه دا مسئله ده که مريض مقروض خپل وارث ته داسي ووايي "تَكَفَّلْ عَنِّىْ بِمَا عَلَىَّ مِنَ الدَّيْنِ" يعني "ته زما له طرفه د هغه قرض کفيل سه! کوم چي پر ما واجب دى". او وارث د هغه په جواب کي "تَكَفَّلْتُ بِهَا" ووايي، يعني وارث د مړي له طرفه د هغه قرض کفيل سي حال دا چي قرضخواه (د قرض مالک) موجود نه وي، نو دا کفاله استحساناً جائز ده. که څه هم قياساً جائز نه ده.

د قياس دليل دا دى چي دلته هم مکفول لهٗ غائب دى او په مجلس کي موجود نه دى. نو ځکه په مجلس کي د هغه له قبلولو څخه بغير به کفاله نه صحيح کيږي. او څرنګه چي يو روغ سړى خپل وارث ته د قرضخواه په ناموجوديت کي "تَكَفَّلْ عَنِّىْ بِمَا عَلَىَّ مِنَ الدَّيْنِ" ووايي او هغه کفيل سي، يا يو اجنبي سړي دا جمله ووايي او هغه کفيل سي، نو هغه کفاله نه صحيح کيږي، نو همداسي به په دغه مسئله (إلا مسئلة واحدة) کي هم کفاله نه صحيح کيږي. (دا د قياس دليل او وجه سوه).

د استحسان دوه دليلونه دي: يو دا چي د مريض مقروض دا قول "تَكَفَّلْ عَنِّىْ بِمَا عَلَىَّ مِنَ الدَّيْنِ" د وصيت په معنىٰ سره دى يعني د "تَكَفَّلْ عَنِّىْ" مطلب دى "إِقْضِ دُيُوْنِى" (زما قرضونه اداء کړه!). او کله چي وارث د هغه په جواب کي "تَكَفَّلْتُ بِهَا" ووايي نو د دې مطلب دى "أَقْضِى دُيُوْنَكَ" (يعني زه به ستا قرضونه اداء کړم). لهذا کله چي دا کفاله د وصيت په معنىٰ سره ده، نو په مجلس کي به د قرضخواه قبلول هم شرط نه وي؛ ځکه چي د وصيت د صحت (صحيح کېدلو) لپاره د. هغه کس قبول شرط نه وي د چا لپاره چي وصيت سوى وي (چي هغه ته موصىٰ لهٗ وايي او هغه دلته قرضخواه [مکفول لهٗ] دى). او څرنګه چي دا کفاله د وصيت په معنىٰ سره ده، نو ځکه کوم کس چي مکفول لهٗ وي (يعني موصىٰ لهٗ [قرضخواه] وي که د هغه نوم نه واخيستل سي او هغه مجهول وي نو هم دا کفاله صحيح ده. حال دا چي مخکي ذکر سوه چي د مکفول لهٗ مجهول والي کفاله فاسدوي، نو معلومه سوه چي دا کفاله د وصيت په معنىٰ سره ده. په همدې وجه مشايخو ويلي دي چي دا کفاله هغه وخت

صحيح کيږي کله چې د مرګ په وخت کې د مريض مقروض سره د ميراث مال موجود وي، د دې لپاره چې وصي (يعني وارث) د هغه دغه وصيت نافذ کړي سي، او که د مريض مقروض سره مال نه وي نو د هغه له وارثانو څخه به د هغه قرض نه اخيستل کيږي، حال دا چې د کفالې لپاره دا شرط دي چې د مکفول عنه سره به مال موجود وي. نو ثابته سوه چې دا کفاله په حقيقت کې کفاله نه ده بلکې د وصيت په معنىٰ سره ده، او کله چې دا کفاله د وصيت په معنىٰ سره ده، نو ځکه په مجلس کې دننه به د مکفول لهٗ (موصىٰ لهٗ) قبلول شرط نه وي، ځکه چې د وصيت د صحت لپاره د مؤصىٰ له قبلول شرط نه دي.

أو يقال إنه قائم إلخ: دا د استحسان دويم دليل دی، حاصل يې دا دی چې کله مريض مقروض خپل وارث ته "تَكَفَّلْ عَنِّيْ إلخ" ووېل نو دغه مريض مقروض د ضرورت په وجه د خپل قرضخواه (مکفول لهٗ) قائم وګرځېدی، او ضرورت دا دی چې د مريض ذمه له قرض څخه فارغه سي (او د هغه غاړې خلاصي سي)، او په دې قام مقام والي کې د مکفول لهٗ (قرضخواه) هم نفع سته په دې توګه چې هغه ته به خپل قرض حاصل سي، نو دا داسي سو لکه مکفول لهٗ چې په خپله موجود وي او هغه د مريض ځوی (وارث) ته وواېي چې "ته د خپل پلار (مورث) له طرفه زما لپاره کفيل سه!"، نو معلومه خبره ده چې دغه کفاله صحيح کيږي (ځکه چې مکفول لهٗ حاضر او موجود دی)، لهذا کله چې مريض د مکفول لهٗ قائم مقام وګرځي او دا جمله وواېي، نو هم به کفاله صحيح کيږي.

وإنما يصح بهذا اللفظ إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی.

سوال دا دی چې کله مريض د مکفول لهٗ قائم مقام دی نو بيا پکار دا وه چې د مريض تر ايجاب کولو يعني د "تَكَفَّلْ عَنِّيْ بِمَا عَلَيَّ مِنَ الدَّيْن" تر ويلو وروسته د مريض قبلول هم شرط وای، لکه څرنګه چې د مکفول لهٗ قبلول شرط دي؛ ځکه مخکې ذکر سوه چې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د کفالې د صحت لپاره د کفالې په مجلس کې د مکفول لهٗ قبلول هم شرط دي، لکه څرنګه چې په بيع کې ايجاب و قبول دواړه کول (يعني د بائع له طرفه "بعتُ" ويل او د مشتري له طرفه "قبلتُ" ويل) شرط دي، لنډه دا چې دلته کفاله هغه وخت صحيح کېدل پکار دي کله چې مريض له "تَكَفَّلْ عَنِّيْ" څخه وروسته "قَبِلْتُ" هم وواېي.

د دغه سوال جواب دا دی چې د مریض د مرضُ الموت ظاهري حالت پر دې دلالت کوي چې مریض په یقیني او حقیقي توګه د کفالې د منعقد کولو اراده کړې ده. محض په ظاهري توګه د قرض خبره کول او حالت معلومول د هغه مقصود نه دي (لکه څرنګه چې په بیع کې ځیني وخت د مشتري مقصود نرخ معلومول [مساومت] وي. لیکن دلته داسي نه ده. ځکه چې دا د مرګ حالت دی). او دا داسي ده لکه سړی چې یو ښځي ته ووایي "زَوِّجِيْنِيْ نَفْسَكِ" (ته زما سره د خپل ځان نکاح وکړه [وتړه!])، او ښځه د دوو ګواهانو په موجودیت کې ووایي "زَوَّجْتُكَ" (ما ستا سره نکاح وکړه. یا ما خپل ځان ستا په نکاح کړی یا داسي بله جمله ووایي)، نو دا نکاح منعقد کېږي او د سړي قبول (قبلولو) ته ضرورت نسته. بلکي د ښځي قول "زَوَّجْتُكَ" د ایجاب او قبول دواړو قائم مقام کېږي؛ ځکه چې په نکاح کې هم په یقیني او پخه توګه نکاح کول مقصود وي، هسې په ظاهري توګه د نکاح خبره کول او ځان ته کیفیت او حالت معلومول مقصود نه وي، نو همداسي دلته هم په یقیني توګه کفاله کول مقصود دي (ځکه چې مریض د مرګ حالت ته نژدې دی)، نو ځکه د مریض دا قول "تَكَفَّلْ عَنِّيْ" به د کفالې د صحت لپاره کافي وي او د مکفول لهٗ له طرفه به د مستقلاً قبلولو هیڅ ضرورت نه وي، بلکي د هغه له قبول څخه بغیر به هم کفاله صحیح او جائز وي.

ولويقال إلخ: فرمایي که مریض له خپل وارث څخه بغیر بل اجنبي ته "تَكَفَّلْ عَنِّيْ بِمَا عَلَيَّ مِنَ الدَّيْنِ" ووایي، نو په دې صورت کې د کفالې د صحت په هکله د مشایخو اختلاف دی. ځیني وایي چې د کفالې د صحت لپاره د مکفول لهٗ قبلول شرط دي، او ځیني وایي چې دلته هم د مکفول لهٗ قبلول شرط نه دي او د هغه له قبول څخه بغیر هم دا کفاله جائز ده. په کتابو کې همدغه قول صحیح او راجح ګرځول سوی دی. (فتح القدیر ج: ۶، ص: ۳۱۶. رد المحتار ج: ۴، ص: ۳۰۰)

## د میت (مړي) د قرضونو له طرفه په خپله کفیل جوړېدل (حکم او اختلاف)

قَالَ: وَإِذَا مَاتَ الرَّجُلُ وَعَلَيْهِ دُيُوْنٌ وَلَمْ يَتْرُكْ شَيْئًا فرمایي: او کله چې یو سړی مړ سي او پر هغه [د خلکو] قرضونه باندي وي حال دا چې هغه هیڅ مال نه پرېښی دي فَتَكَفَّلَ عَنْهُ رَجُلٌ لِلْغُرَمَاءِ بیا د هغه [مړي] له طرفه یو سړی د قرضخواهانو لپاره کفیل سي لَمْ تَصِحَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په

نېز دا کفاله صحيح نه ده وَقَالَا ●: تَصِحُّ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي صحيح ده لِأَنَّهُ كَفَلَ بِدَيْنٍ ثَابِتٍ ځکه چي هغه د ثابت قرض کفيل سوی دی [يعني داسي قرض کوم چي ثابت دی] لِأَنَّهُ وَجَبَ لِحَقِّ الطَّالِبِ ځکه چي دا قرض د مکفول لهٗ [قرضخواه] د حق په وجه واجب دی وَلَمْ يُوجَدِ الْمُسْقِطُ او [د دې قرض] هيڅ ساقطونکی شی موجود نه سو وَلِهٰذَا يَبْقٰى فِي حَقِّ أَحْكَامِ الْآخِرَةِ او همدا وجه ده چي دا دآخرت د احکامو په حق کي باقي پاتيږي وَلَوْ تَبَرَّعَ بِهِ إِنْسَانٌ او [همدا وجه ده] که يو انسان د دې قرض په اداء کولو کي تبرّع وکړي [يعني د احسان په توګه يې د مړي له طرفه اداء کړي] يَصِحُّ نو صحيح کيږي [يعني اداء کيږي] وَكَذَا يَبْقٰى إِذَا كَانَ بِهِ كَفِيْلٌ أَوْ مَالٌ او همدارنګه دا قرض هغه وخت [هم] باقي پاتيږي کله چي [يو څوک] د دې قرض کفيل وي يا [د مړي] څه مال وي وَلَهُ: أَنَّهُ كَفَلَ بِدَيْنٍ سَاقِطٍ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي هغه د داسي قرض کفيل سوی دی کوم چي ساقط دی لِأَنَّ الدَّيْنَ هُوَ الْفِعْلُ حَقِيْقَةً ځکه چي دَين په حقيقت کي فعل دی [يعني قرض په اصل کي د "اداء کولو" فعل ته وايي] وَلِهٰذَا يُوصَفُ بِالْوُجُوْبِ همدا وجه ده چي دَين په وجوب سره موصوف کيږي لٰكِنَّهُ فِي الْحُكْمِ مَالٌ لېکن په حکم کي هغه مال دی لِأَنَّهُ يَئُوْلُ إِلَيْهِ فِي الْمَآلِ ځکه چي د آخر پای [انجام] په اعتبار سر هغه د همدې مال وطرف ته راجع کيږي وَقَدْ عَجَزَ بِنَفْسِهِ وَبِخَلَفِهِ او مړی په خپله [هم له اداء کولو څخه] عاجز سو او د خليفه په ذريعه [هم] عاجز سو فَفَاتَ عَاقِبَةُ الِاسْتِيْفَاءِ نو ځکه [د قرض] اخيستلو انجام فوت سو [يعني له دې عاجز مړي څخه د قرض اخيستل (مجبورا) ختم سو] فَيَسْقُطُ ضَرُوْرَةً نو ځکه د ضرورت په وجه [مجبورا] به دا قرض [په دنيا کي] ساقطيږي وَالتَّبَرُّعُ لَا يَعْتَمِدُ قِيَامَ الدَّيْنِ او تبرع کول د قرض پر بقاء [موجودوالي] موقوف نه ده وَإِذَا كَانَ بِهِ كَفِيْلٌ أَوْ لَهُ مَالٌ او کله چي د قرض کفيل موجود وي يا د مړي مال موجود وي فَخَلَفُهُ أَوِ الْإِفْضَاءُ إِلَى الْأَدَاءِ بَاقٍ نو [په دې صورت کي خو] د مړي خليفه يا اداء کولو ته رسېدل باقي دي. [يعني په دې صورت کي د مړي نائب

---

● القول الراجح: قول الامام أبي حنيفة رَحِمَهُ الله كما ظهر من دأب المصنف، كذا في مجمع الأنهر (ج:۲، ص:۱۳۶). وقال المفتي علام قادر النعماني: والأولى ان يقال هذه الكفالة غير لازمة، ولو أدى ذالك الكفيل فهو متبرّع، والتبرّع يصح من كل واحد. [القول الراجح ج:۲، ص:۹۶]

يعني "كفيل" يا كوم شی چې د قرض اداء كولو ته رسول كوي يعني "مال" هغه موجود دي، نو ځكه په دې صورت كې كفاله صحيح ده. دا جمله د امام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه د صاحبينو د دويم دليل جواب دی، نور وضاحت به يې په تشريح كې ذكر سي ا.

**اللغات:** ﴿غرماء﴾ جمع د "غَرِيمٌ" ده: د دې معنیٰ د تېر عبارت په لغاتو كې ذكر سوه، ﴿مسقط﴾ د افعال فاعل دی: ساقطونكی، ﴿يؤل﴾ د نصر مضارع ده: ګرځېدل، راجع كېدل، ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: په پوره توګه اخيستل، ترلاسه كول، ﴿إفضاء﴾ رسېدل، رسول (انتهاء ته رسول). (المعجم الوسيط)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه پر يو سړي د خلكو قرض باندي وي او هغه په خپل ژوند كي قرض اداء نه كړي او نه په ژوند كي يو څوک د هغه كفيل سي تر دې چي هغه مړ سي او په ميراث كي مال هم نه پرېږدي، اوس كه يو سړی د هغه تر مرګ وروسته د هغه له طرفه د قرضخواهانو (قرض غوښتونكو) لپاره كفيل سي (يعني د مړي قرضخواهانو ته ووايي چي د دې مړي د مال كفيل زه يم، هغه پر ما دی، زه يې تاسو ته دركوم)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا كفاله صحيح نه ده، لېكن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز صحيح ده.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي د كفالې د صحت لپاره د قرض (دين) صحيح والي او ثابت والي شرط دی (يعني شرط دا دی چي قرض به صحيح او د مكفول عنه پر ذمه ثابت وي)، او دلته دا شرط موجود دی؛ ځكه چي كفيل د داسي قرض كفيل سوی دی كوم چي د مړي (مكفول عنه) پر ذمه ثابت دی او د دې قرض سره د قرضخواهانو حق متعلق دی او داسي هيڅ شی موجود نه دی كوم چي د دې قرض لپاره ساقطونكی وي، يعني نه د قرضخواهانو له طرفه مقروض (مړی) بري كړی سوی دی، نه د مړي له طرفه هغه اداء سوی دی، او نه بل داسي ناسخ موجود دی كوم چي د قرض سبب فسخ كړي (يعني په كوم سبب سره چي قرض واجب سوی دی هغه فسخ كړي، داسي هيڅ ناسخ نسته)، لهذا كله چي قرض، د قرض مطالبه، د قرض سبب ټوله شيان موجود دي، نو ښكاره خبره ده چي قرض به هم موجود او ثابت وي او د دې قرض كفاله به هم صحيح او جائز وي.

او د قرض د بقاء او ثبوت يو دليل دا هم دی چي د اُخروي احكامو په حق كي مړی اوس هم مقروض (پوروړی) دی او په آخرت كي به له هغه څخه د دغه قرض په هكله حساب او د هغه مؤاخذه كيږي، او دا معلومه خبره ده چي په آخرت كي د هغه اُمورو په وجه

انسـان نيـول کيـږي او مؤاخـذه يې کيـږي کـوم چـي پـر انسـان لازم وي او د هغـه لـه اداء کولـو څخه بغير انسان مړ سي (نو معلومه سوه چي دا قرض باقي او ثابت دی).

د دې قـرض د صحت او ثبـوت يـو دليـل دا هـم دی چـي کـه يـو څـوک د تبرّع او احسان پـه توګـه د مـړي لـه طرفـه د هغـه قـرض اداء کـړي، نـو دا اداء کـول هـم جـائز دي او د قرضـخواهانو (غرماؤ) لپـاره د هغـه اخيسـتل هـم جـائز دي، حـال دا چـي کـه قـرض ثابـت نـه وای او د مقـروض د مـرګ پـه وجـه يـا پـه يـو بلـه وجـه هغـه سـاقط سـوي وای، نـو د قرضـخواهانو لپـاره بـه د متبرّع مـال (تبـرّع) اخيسـتل حـلال او جـائز نـه وای، لهـذا د تبـرّع د مـال اخيسـتلو خلـت او د مـړي لـه طرفـه د تبـرّع پـه توګـه د قـرض اداء کولـو جـواز د دې خبـري دليـل دی چـي د مـړي پـر ذمـه قـرض بـاقي او ثابـت دی. او کلـه چـي قـرض بـاقي دی نـو د هغـه کفالـه بـه هـم صـحيح وي؛ ځکـه چـي د صـحيح او باقي (ثابت) قرض کفاله صحيح او جائز وي.

**دويـــم دليـــل** : وکذا يبقى إلخ: د دې حاصـل دا دی چـي کـه د مـړي پـه ژونـد کـي يـو څـوک د هغـه د قـرض کفيـل سـي، يـا مـړی پـه ميـراث کـي مـال پريـږدي، نـو پـه دې صـور تونو کـي هـم د هغـه قـرض بـاقي او برقـرار پـاتيږي، او تـر مـرګ وروسـته قرضـخواهانو تـه دا حـق حاصـليږي چـي د مـړي لـه کفيـل يـا د هغـه لـه مـال څخـه خپـل قـرض واخلـي، نـو لـه دې څخـه هـم دا خبـره معلومـه سـوه چـي د مـرګ پـه وجـه قـرض نـه بـاطليږي بلکـي بـاقي پـاتيږي، او کلـه چـي قـرض بـاقي او پـر خپـل ځای پاته دی، نو ښکاره خبره ده چي د هغه کفاله به صحيح او جائز وي.

**د امـــام صـــاحب دليـــل** : دا دی چي پـه دې مسئله کي چي کفيـل د کوم قـرض کفيـل سـوی دی، هغـه صـحيح او ثابـت قـرض نـه دی، بلکـي هغـه د سـاقط قـرض کفيـل سـوی دی، حـال دا چـي د کفالې د صحت لپاره د قرض صحيح والي او ثابتوالي شرط دی.

دا قـرض پـه دې وجـه لـه مـړي څخـه سـاقط دی چـي دَيـن (قـرض) پـه حقيقـت کـي مـال تـه نـه وايـي، بلکـي دَيـن پـه حقيقـت کـي د "اداء" فعـل تـه وايـي يعنـي هغـه فعـل کـوم چـي د دائـن (قرضـخواه) او مـديون (مقـروض) لـه طرفـه صـادريږي (يعنـي د قـرض ورکـول، قـرض اخيسـتل، د قـرض اداء کـول او ورسـپارل)، لنـډه دا چـي دَيـن د "اداء" فعـل تـه وايـي، همـدا وجـه ده چـي دَيـن د وجـوب پـه صـفت سـره متصـف کيـږي او داسـي ويـل کيـږي "دَيْـنٌ وَاجِـبٌ" لکـه څرنګـه چـي لمونځ هـم د وجـوب پـه صـفت سـره متصـف کيـږي او "الصَّـلَاةُ وَاجِبَـةٌ" ويـل کيـږي، ځکـه چـي واجـب کېـدل يـا مسـتحب کېـدل د افعـالو صـفت دی، د اعيـانو صـفت نـه دی، او وجـوب ځکـه د افعـالو صـفت دی چـي وجـوب هغـه اختصـاص (او ځانګړتيـا) تـه وايـي چـي د هغـه پـه کولـو سره

فاعل (كونكي) تـه ثـواب حاصـليږي او د هغـه پـه نـه كولـو سـره د ګناه مستحق كيـږي، او ښـكاره ده چي دا خبره فقـط پـه افعـالو كـي راتـلاى سي، پـه اعيـانو كـي نـه سـي راتـلاى (ځكـه اعيـان افعـال نـه دي بلكـي شـيان دي، او پـورتني خبـره فقـط پـه افعـالو كـي متصـوّر كيـږي)، نـو لـه دې څخـه هـم معلومـه سوه چي دَيـن پـه حقيقـت كـي د فعـل نـوم دى، او كلـه چي دَيـن د فعـل نـوم دى نـو دا فعـل (دَيـن) بـه قـدرت تـه محتـاج وي، ځكـه چـي لـه قـدرت (وس) څخـه بغيـر فعـل نـه كيـږي، او لـه قـدرت بغيـر د فعـل واجبـېدل "تكليـف مـا لا يطـاق" دئ (يعنـي لـه قـدرت څخـه بغيـر د فعـل واجبـېدلو مطلـب دا دى چي انسان پـه داسـي كـار مكلـف او مجبوره كـول چـي هغـه د انسـان پـه وس او قـدرت كـي نـه وي) حـال دا چـي دا نـاممكن دي او د شـريعت لـه رويـه ناجـائز دي (الله تعـالىٰ فرمـايي: "لَا يُكَلِّـفُ اللهُ نَفْسًـا إِلَّا وُسْـعَهَا" [البقرة:۲۸۶])، لنـډه دا چـي د "اداء" فعـل قـدرت (وس) تـه محتـاج دى او دلتـه مقـروض مـړى نـه پـه خپلـه د قـرض پـر اداء كولـو قـدرت لـري (ځكـه چـي هغـه د مفلـس والـي پـه حالـت كـي مـړ سوى دى) او نـه هغـه د خپـل نائـب پـه ذريعـه د قـرض پـر اداء كولـو قـدرت لـري (ځكـه چـي د هغـه پـه ژونـد كـي هيڅـوک د هغـه لـه طرفـه كفيـل سـوى نـه دى)، لهـذا دغـه مـړى پـه هـره توګـه د قـرض لـه اداء كولـو څخـه عـاجز دى، او كلـه چـي هغـه بالكـل د "اداء" لـه فعـل څخـه عـاجز دى، نـو نـتيجتا لـه هغـه څخـه د قرضـخواه لـه طرفـه قـرض اخيسـتل هـم فـوت سـو (يعنـي قرضـخواه لـه هغـه څخـه خپـل قـرض نـه سـي اخيسـتلاى) او كلـه چـي د قرضـخواه لـه طرفـه خپـل قـرض اخيسـتل فـوت سـو، نـو د ضـرورت پـر بنـاء بـه د دنيـوي احكـامو پـه حـق كـي د مـړي لـه ذمې څخـه دغـه قـرض سـاقط منـل كيـږي (دا آخـري خبـره پـه آسـانه توګـه داسـي هـم ويـل كېـداى سـي: او كلـه چـي مقـروض مـړى بالكـل د "اداء" لـه فعـل څخـه عـاجز دى او تـر مـرګ وروسـته هغـه مـال هـم پـرې اېښـى نـه دى او وارث هـم د هغـه ذمـه وار كفيـل نـه دى، نـو ځكـه اوس قرضـخواه لـه مـړي څخـه قـرض نـه سـي اخيسـتلاى [ځكـه چـي دا مـړى هـيڅ شـى نـه لـري او نـه هيڅـوک د هغـه ذمـه وار دى]، نـو ځكـه مجبوراً بـه پـه دنيـوي اعتبـار سـره قـرض سـاقطيږي)، او كلـه چـي قـرض سـاقط سـو، نـو د هغـه كفالـه (كفيـل كېـدل) بـه هـم صـحيح نـه وي، ځكـه معلومـه خبـره ده چـي كلـه قـرض نـه وي نـو انسـان بـه د څـه شـي كفيـل سـي!؟، نـو ځكـه امام صـاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا كفاله (يعني د مفلس مړي له طرفه كفيل كېدل) صحيح نه دي.

لكنـه فى الحكـم مـال إلـخ: دا د يـو مقـدر سـوال جـواب دى. سـوال دا دى چـي مـال هـم پـه وجـوب سـره متصـف كيـږي، لكـه څرنګـه چـي ويـل كيـږي "اَلْمَـالُ وَاجِـبٌ"، يـا مثلاً ويـل كيـږي چـي "پـر فلانكـي زر افغاني واجب دي"، حال دا چي تاسو وويل چي وجوب د افعالو صفت دى، نه د اعيانو؟

د دې جـواب دا دى چـي د آخـر پـاى او مـال (نتيجـه) پـه اعتبـار سـره مـال تـه هـم مجازاً دَيـن (قـرض) ويـل كيـږي، يعنـي حقيقتـاً خـو دَيـن د "اداء" د فعـل نـوم دى، لـېكن څرنګـه چـي د آخري پـاى (انجام) پـه اعتبـار سـره د "اداء" پـه نتيجـه كـي مـال حاصـليږي نـو ځكـه هغـه تـه مجازاً

دَين ويل کیږي (په بله وینا داسې هم ویل کېدای سي چې په دَین [قرض] کې خو آخر همدا مال اداء کیږي، نه بل شی. یعني د "اداء" فعل د همدې مال وطرف ته راجع کیږي، نو ځکه مجازاً مال ته هم دَین [قرض] ویل کیږي)، او کله چې مجازاً مال ته دَین ویل کېدای سي، نو ښکاره خبره ده چې هغه به په وجوب سره هم متصف کېدای سي (ځکه څنګه مخکې ذکر سوه چې دَین د وجوب په صفت سره متصف کیږي)، لېکن دا خبره په یاد لرئ! چې دَین په حقیقت کې د "اداء" فعل ته وایي.

والتبرّع إلخ: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه صاحبینو ته جواب دی، هغوی په خپل دلیل کې وفرمایل چې "د تبرّع په توګه د مړي له طرفه د قرض اداء کولو جواز او د قرضخواهانو (غرماؤ) لپاره د هغه تبرّع د اخیستلو حلت د دې خبرې دلیل دی چې د مړي پر ذمه قرض ثابت او باقي دی"، په دې عبارت سره هغو ته جواب ورکوي فرمایي چې ورورہ! د تبرّع په توګه د قرض اداء کولو او د تبرّع د اخیستلو جواز د دې خبرې دلیل نه دی چې د مړي (مفلس میت) پر ذمه قرض ثابت او باقي دی، ځکه چې تبرّع کول پر دې نه موقوف کیږي چې د مکفول عنه (مړي) په حق کې به قرض موجود وي، بلکې پر دې موقوف کیږي چې په خپله د تبرّع کونکي یعني د کفیل په حق کې به قرض موجود وي، مثلاً که حامد ووایي چې د خالد پر زید سل درهمه قرض باندي دی او زه د هغه کفیل یم، زه یې تبرعا اداء کوم (یعني زه یې احساناً مفت اداء کوم)، لېکن کله چې زید (مکفول عنه) ته خبر ورسیږي نو هغه له قرض څخه انکار وکړي چې پر ما د خالد هیڅ قرض نسته، نو بیا هم دا کفاله صحیح کیږي او پر کفیل یعني پر حامد (متبرّع) سل درهمه واجبیږي، حال دا چې دلته بالکل قرض موجود نه دی، نو معلومه سوه چې د تبرعا اداء کولو او د تبرّع اخیستلو لپاره د مکفول عنه پر ذمه د قرض ثابتېدل ضروري نه دي، او کله چې دا ضرور نه دي، نو د مړي له طرفه د تبرّع په توګه د قرض اداء کولو او د تبرّع اخیستلو جواز به د دې خبرې دلیل نه وي چې د مکفول عنه پر ذمه قرض ثابت او باقي دی.

وإذا كان به كفيل إلخ: په دې عبارت سره د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله د دویم دلیل (وكذا يبقى إلخ) جواب ورکول سوی دی، حاصل یې دا دی چې که د مړي په ژوند کې یو څوک د هغه د قرض اداء کولو کفیل سي، یا د مړ سره مال موجود وي، نو په دې صورت کې زموږ (یعني د امام صاحب) په نېز هم کفاله صحیح ده؛ ځکه چې دَین د "اداء" د فعل نوم دی، او د دَین د صحت لپاره پر "اداء" قدرت لرل شرط دي (لکه څنګه مخکې چې موږ ذکر کړه)، او انسان چې

ځرنګه بذات خود پر يو فعل قادر (قدرت لرونکی) شمارل کيږي، همداسي ديو نائب په ذريعه هم هغه قادر شمارل کيږي (او د مړي نائب کفيل. يا مال متروکه دی). نو ځکه که د هغه کفيل موجود وي نو هغه به قرض اداء کوي او که د هغه مال موجود وي نو له هغه ځخه به قرض اداء کيږي، او ښکاره ده خبره ده چي په دې صورت کي د مړي پر ذمه قرض ثابت او باقي دی، نو ځکه د هغه کفاله به هم صحيح وي، لهذا په دې صورت سره زموږ په خلاف (يعني د امام صاحب په خلاف) دليل نيول صحيح نه دي، زموږ کلام خو د هغه صورت سره متعلق دی کله چي د مړي هيڅ کفيل او ذمه وار نه وي او نه هغه هيڅ مال پرې ايښي وي، لکه ځرنګه چي د متن په شروع کې په "وَعَلَيْهِ دَيْنٌ وَلَمْ يَتْرُكْ شَيْئًا" سره همدغه صورت بيان سوی دی، او ځرنګه چي په داسي صورت کي له مړي ځخه قرض ساقط دی، نو ځکه د هغه کفاله (کفيل کېدل) صحيح نه دي. (أحسن الهدايه)

## د کفالت يو خاص صورت

قَالَ: وَمَنْ كَفَلَ عَنْ رَجُلٍ بِأَلْفٍ عَلَيْهِ بِأَمْرِهِ فرمايي: او که يو ځوک ديو سړي له طرفه د هغه په حکم سره پر هغه د واجب زر درهمو کفيل سي فَقَضَاهُ الْأَلْفَ قَبْلَ أَنْ يُعْطِيَهُ صَاحِبُ الْمَالِ بيا مقروض [مکفول عنه] زر درهمه کفيل ته ورکړي مخکي تر دې چي کفيل هغه [قرض] د مال خاوند [مکفول لهٗ] ته ورکړي فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَرْجِعَ فِيهَا نو مقروض ته دا اختيار نسته چي له کفيل ځخه هغه زر درهمه واپس واخلي لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْقَابِضِ ځکه چي د هغه سره د قبضه کونکي [يعني د کفيل] حق متعلق سو عَلَى احْتِمَالِ قَضَائِهِ الدَّيْنَ د هغه د قرض اداء کولو د احتمال پر بناء [يعني د کفيل د قرض اداء کولو د احتمال پر بناء د هغه سره د کفيل حق متعلق سو] فَلَا يَجُوزُ الْمُطَالَبَةُ مَا بَقِيَ هٰذَا الِاحْتِمَالُ لهذا تر ځو چي دغه احتمال پاته وي، له کفيل ځخه به [د واپس اخيستلو] مطالبه جائز نه وي كَمَنْ عَجَّلَ زَكَاتَهُ وَدَفَعَهَا إِلَى السَّاعِي لکه هغه کس کوم چي خپل زكاة [له کال تېرېدلو ځخه] مخکي اداء کړي او ساعي [د زكاة جمع کونکي] ته يې ورکړي وَلِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِالْقَبْضِ او ځکه چي کفيل د قبضه کولو په وجه د هغه مالک سو عَلَى مَا نَذْكُرُ چي هغه به موږ [وروسته] ذکر کړو بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الدَّفْعُ عَلَى وَجْهِ الرِّسَالَةِ په خلاف د هغه صورت کله چي [کفيل ته] ورکول د رسولو [قاصد والي] په توګه وي

لِأَنَّهُ تَمَحَّضَ أَمَانَةً فِي يَدِهِ ځکه چې [په دې صورت کې] هغه مال د کفیل په قبضه کې محض امانت دی.

**اللغات**: ﴿کفل﴾ د نصر ماضي ده: کفیل کېدل، کفالت قبلول، ﴿عجّل﴾ د تفعیل ماضي: (یو کار) ژر کول، تلوار کول. ﴿الساعي﴾ د فتح د باب اسم فاعل دی: هغه کس کوم چې (د اسلامي حکومت له طرفه) د زکاة او صدقاتو پر جمع کولو ټاکل سوی (هغه کس کوم ته چې د زکاة او داسې نورو د جمع کولو دنده سپارل سوې وي)، د زکاة اخیستونکی. ﴿الرسالة﴾ پیغام، پیغام رسول، قاصد والي (استازي والي)، جمع: رَسَائِل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که پر یو سړي (مثلاً پر خالد د حامد) زر درهمه قرض باندې وي، بیا دا سړی (خالد) بل سړي ته ووایي چې ته زما له طرفه د هغه زر درهمو کفیل سه! کوم چې پر ما باندې دي، او هغه د ده (خالد) له طرفه کفیل سي. بیا مکفول عنه یعنې مقروض (خالد) زر درهمه په داسې حال کې کفیل ته ورکړي چې هغه تر اوسه مکفول لهٗ (حامد) ته زر درهمه نه وي ورکړي، نو په دې صورت کې که مکفول عنه (خالد) وغواړي چې له کفیل څخه دا زر درهمه واپس واخلي، نو هغه ته دا اختیار نسته.

دلیل دا دی چې د دې زر درهمو سره د کفیل حق متعلق سو؛ ځکه ډېره ممکنه ده چې کفیل به د مکفول عنه له طرفه قرض اداء کړی وي، حاصل دا چې دغه زر درهمه کوم چې مکفول عنه کفیل ته ورکړه او کفیل قبضه پر وکړه، تر دې وروسته په هغه کې دوه احتماله دي: یو دا چې تر اوسه به کفیل مکفول لهٗ ته قرض نه وي ورکړی، دویم احتمال دا چې کېدای سي ورکړي یې وي. د اول احتمال پر بناء د کفیل حق د زر درهمو سره نه متعلق کیږي، او کله چې د هغه سره د کفیل حق نه متعلق کیږي، نو ځکه په دې صورت کې مکفول عنه ته دا اختیار سته چې له کفیل څخه خپل مال واپس واخلي. او د دویم احتمال پر بناء د کفیل حق د هغه زر درهمو سره متعلق کیږي، او کله چې د کفیل حق د زر درهمو سره متعلق کیږي، نو ځکه په دې صورت کې مکفول عنه ته د واپس اخیستلو اختیار سته. نو تر څو چې دغه دویم احتمال باقي وي، تر هغه وخته مکفول عنه ته له کفیل څخه د واپس اخیستلو اختیار نه حاصلیږي، او دا احتمال په هغه صورت کې باطلیږي، کله چې مکفول عنه په خپله (بذات خود) مکفول لهٗ ته قرض ورکړي؛ ځکه کله چې مکفول عنه په خپله قرض اداء کړي نو د کفیل حق د هغه زر درهمو سره نه متعلق کیږي کوم زره درهمه چې مکفول عنه هغه ته

ورکړي وه، او کله چې په دې صورت کې د کفیل حق د هغه سره نه متعلق کیږي. نو ځکه مکفول عنه ته به د واپس اخیستلو پوره اختیار وي.

او د دې مثال داسې دی لکه یو سړی چې خپل د زکاة مال له حولان حول (کال تیرېدلو) څخه مخکې ساعي ته ورکړي، نو اوس د مال خاوند ته دا اختیار نسته چې له ساعي څخه هغه د زکاة مال واپس واخلي؛ ځکه چې اوس د هغه سره د قابض یعني د ساعي حق متعلق سو (أحسن الهدایه). همداسې په دې مسئله کې هم د مکفول عنه د زر درهمو سره د کفیل حق متعلق سو. نو ځکه مکفول عنه ته به د هغه د واپس اخیستلو اختیار نه وي.

ولأنه ملكه إلخ: دویم دلیل دا دی چې کله مکفول عنه کفیل ته زر درهمه ورکړه او کفیل قبضه پر وکړه، نو د قبضه کولو په وجه کفیل د هغه مالک سو، او دا خبره تسلیم سوې ده چې هیچا ته هم دا اجازه نسته چې د بل چا مملوک شی واپس واخلي، نو ځکه مکفول عنه ته به هم له کفیل څخه د هغه زر درهمو د واپس اخیستلو اجازه نه وي.

ها! که چیرې مکفول عنه هغه زر درهمه د کفیل په قبضه کې نه ورکړي، بلکې د قاصد او رسونکي په توګه یې ورکړي چې ته دا زر درهمه زما له طرفه مکفول لهٗ ته ورسوه!، نو په دې صورت کې دا زر درهمه د کفیل په قبضه کې امانت دي، او خپل د امانت مال واپس اخیستل هر وخت جائز دي، نو ځکه په دې صورت کې به مکفول عنه ته دا جائز وي چې له کفیل څخه خپل مال واپس واخلي.

## که کفیل په پورتني مال سره منافع حاصل کړي (حکم او تفصیل)

وَإِنْ رَبِحَ الْكَفِيْلُ فِيهِ او که چیرې کفیل په هغه [مقبوضه مال] کې نفع حاصله کړي فَهُوَ لَا يَتَصَدَّقُ بِهِ نو کفیل به هغه نه صدقه کوي لِأَنَّهُ مَلَكَهُ حِيْنَ قَبَضَهُ ځکه کله چې کفیل پر هغه قبضه وکړه نو دئ د هغه مالک سو أَمَّا إِذَا قَضَى الدَّيْنَ هر چې کله هغه قرض اداء کړی وي فَظَاهِرٌ نو ښکاره ده وَكَذَا إِذَا قَضَى الْمَطْلُوْبُ بِنَفْسِهِ وَثَبَتَ لَهُ حَقُّ الِاسْتِرْدَادِ او همدارنګه کله چې مکفول عنه په خپله قرض اداء کړی وي او هغه ته د واپس اخیستلو حق ثابت سوی وي لِأَنَّهُ وَجَبَ لَهُ عَلَى الْمَكْفُوْلِ عَنْهُ مِثْلُ مَا وَجَبَ لِلطَّالِبِ عَلَيْهِ ځکه چې د کفیل لپاره پر مکفول عنه د هغه مثل واجب دي کوم چې د مکفول لهٗ پر کفیل واجب وو إِلَّا أَنَّهُ أُخِّرَتِ الْمُطَالَبَةُ إِلَى وَقْتِ الْأَدَاءِ مګر دا چې مطالبه د اداء تر وخته پورې مؤخره کړی سوه فَنُزِّلَ مَنْزِلَةَ الدَّيْنِ الْمُؤَجَّلِ نو ځکه هغه [د کفیل حق] به د میعادي قرض درجې ته

شوه كيږي [يعني د ميعادي قرض په درجه كي به وي (احسن الهدايه)] وَلِهٰذَا لَوْ أَبْرَأَ الْكَفِيلُ الْمَطْلُوبَ قَبْلَ أَدَائِهِ او همدا وجه ده كه كفيل [د قرض] له اداء كولو څخه مكفول عنه بري كړي يَصِحُّ نو صحيح دي فَكَذَا إِذَا قَبَضَهُ نو همداسي كله چي كفيل پر هغه قبضه وكړي يَمْلِكُهُ نو د هغه به مالكيږي [هم] إِلَّا أَنَّ فِيهِ نَوْعَ خُبْثٍ نُبَيِّنُهُ مګر دا چي په دې كي يو ډول خبث سته چي هغه به موږ [څه وروسته] بيان كړو فَلَا يَعْمَلُ مَعَ الْمِلْكِ فِيمَا لَا يَتَعَيَّنُ نو ځكه د ملكيت باوجود به دا خبث په داسي شي كي نه مؤثر كيږي كوم چي [په مُتعيَّن كولو سره] نه مُتعيّن كيږي وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ فِي الْبُيُوعِ او موږ په "كتاب البيوع" كي دا [خبره] بيان كړې ده.

**اللغات**: ﴿ربح﴾ د سمع ماضي ده: نفع كول، ګټه كول. ﴿لا يتصدّق﴾ د تفعّل د باب نفي صيغه ده: صدقه كول، خيراتول. ﴿قضى﴾ د ضرب ماضي ده: اداء كول (چا ته خپل شی ورکول). ﴿استرداد﴾ د استفعال مصدر دی: واپس اخيستل. ﴿مؤجّل﴾ ميعادي (ميادي)، نېټه داره، د كوم شي لپاره چي وخت ټاكل سوی وي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی كه يو سړی مثلاً د زر درهمه قرض كفيل سي، بيا مكفول عنه دغه كفيل ته په داسي حال كي زر درهمه وركړي چي كفيل تر اوسه مكفول لهٗ ته قرض (زر درهمه) نه وي وركړي، او كفيل په هغه زر درهمو سره نفع حاصله كړي (يعني د تجارت او كاروبار په ذريعه ګټه په وكړي)، نو دا نفع د كفيل لپاره حلاله (روا) ده او د هغه صدقه كول پر كفيل واجب نه دي.

دليل دا دی چي كله كفيل پر هغه زر درهمو قبضه وكړه، نو د قبضه كولو په وجه كفيل د هغه مالك سو، او انسان ته په خپل ملكيت كي هر ډول تصرف كول او نفع حاصلول صحيح او حلال دي، نو ځكه په دې مسئله كي چي كفيل په هغه مال سره كومه نفع حاصله كړې ده، هغه به هم د كفيل لپاره حلاله وي.

**أما إذا قضى إلخ**: پاته سوه دا خبره چي كفيل ولې په قبضه كولو سره د هغه قرض يعني د زر درهمو مالك كيږي، نو فرمايي كه چيري دغه كفيل مكفول لهٗ ته قرض (زر درهمه) وركړي وي او تر دې وروسته يې په هغه زر درهمو سره نفع حاصله كړې وي، نو په دې صورت كي د قبضه كولو په وجه كفيل د هغه مالك كېدل او حاصله كړی سوې نفع د هغه لپاره حلال كېدل ښكاره دي؛ ځكه چي په دې صورت كي كفيل پر داسي مال قبضه كړې ده كوم چي د كفيل حق دی (يعني كفيل د هغه مستحق دی)؛

ځکه مکفول لهٔ ته د قرض (زر درهمه) د ورکولو په وجه پر مکفول عنه دا واجب دي چي کفيل ته هغومره مال (زر درهمه) ورکړي او دا مال د کفيل خپل حق کيږي. او کوم څوک چي پر خپل واجب حق قبضه وکړي نو هغه په قبضه کولو سره (سمدستي) د هغه حق مالک کيږي، نو په دې وجه کفيل په دې صورت کي په قبضه کولو سره د هغه زر درهمو مالک کيږي.

او که چيري دغه کفيل مکفول لهٔ ته قرض نه وي ورکړی بلکي مکفول عنه په خپله ورکړی وي، نو په دې صورت کي کفيل په دې وجه په قبضه کولو سره د هغه زر درهمو مالک کيږي، ځکه د عقد کفاله په وجه چي څرنګه د مکفول لهٔ لپاره پر کفيل د قرض مطالبه واجب ده (يعني محض په کفاله سره پر کفيل دا واجبيږي چي د مکفول لهٔ قرض به اداء کوي، او مکفول لهٔ په دې هکله له کفيل څخه مطالبه کولای سي)، همداسي د عقد کفاله په وجه د کفيل لپاره هم پر مکفول عنه د هغه په څير مطالبه واجب ده (يعني همداسي محض په کفاله سر پر مکفول عنه هم دا واجبيږي چي کفيل ته خپل حق يعني د قرض مال ورکړي، او کفيل له مکفول عنه څخه د خپل حق مطالبه کولای سي)، ليکن فرق صرف دومره دی چي د مکفول لهٔ لپاره پر کفيل في الحاله مطالبه واجبيږي، او کفيل ته دا حق هغه وخت حاصليږي کله چي هغه د مکفول عنه قرض اداء کړي، ليکن څرنګه چي دلته مکفول عنه له وخت څخه مخکي کفيل ته خپل حق ورکړی دی، نو د هغه دا حق به د ميعادي قرض په درجه کي وي (يعني د هغه قرض په څير به وي د کوم قرض لپاره چي ميعاد او وخت ټاکل سوي وي)، او د ميعادي قرض حکم دا دی چي که مقروض له وخت څخه مخکي هغه قرض اداء کړي، نو قرضخواه په قبضه کولو سره (سمدستي) د هغه مالک کيږي، نو همداسي به په دې مسئله کي هم کفيل په قبضه کولو سره (سمدستي) د هغه زر درهمو مالک کيږي.

<u>ولهذا لو أبرأ الكفيل إلخ</u>: فرمايي همدا وجه ده (يعني مخکي وويل سوه چي محض د کفاله په وجه د کفيل لپاره پر مکفول عنه هم د هغه په څير مطالبه واجبيږي، په همدې وجه) که کفيل مکفول لهٔ ته له قرض ورکولو څخه مخکي مکفول عنه بري کړي، نو دا بري کول صحيح دي، يعني که کفيل مکفول عنه له خپل حق څخه مخکي معاف کړي او بيا د هغه له طرفه قرض اداء کړي، نو دا صحيح دي، لهذا تر قرض اداء کولو مخکي د دې صحيح کېدل (چي کفيل تر قرض ورکولو مخکي مکفول عنه له خپل حق څخه بري کړي) د دې خبري دليل دی چي محض په عقد کفاله (کفيل کېدلو) سره پر کفيل د مکفول عنه حق واجبيږي، لهذا که چيري کفيل تر قرض ورکولو مخکي پر خپل دغه حق قبضه وکړي، نو په قبضه کولو سره به د هغه مالک کيږي، ځکه چي هغه پر خپل حق قبضه وکړه، لنډه دا چي له دې څخه هم معلومه سوه چي کفيل په قبضه کولو سره يقيناً د هغه زر درهمو مالک کيږي. او څرنګه چي دلته د دراهمو مسئله ده، او دراهم په مُتعيّن کولو سره نه مُتعيّن کيږي، نو ځکه په دې مال (زر درهمو) سره حاصله

کړل سوي نفع په هره توګه د کفيل لپاره حلال او جائز ده، ځکه که څه هم ذلته په هغه صورت کې په دې نفع کې خبث سته کله چې مکفول عنه په خپله مکفول لهٔ ته قرض ورکړی وي ايعني په دويم صورت کې]، خو دا خبث فقط په هغه مال کې اثر کوي کوم چې په مُتعيّن کولو سره مُتعيّن کيږي، او دراهم داسې نه دي.

لهذا که کفيل پر داسې مال قبضه کړې وای کوم چې په مُتعيّن کولو سره مُتعيّن کيږي او په هغه سره يې نفع حاصله کړې وای، نو په هغه کې به خبث مؤثر وای چې د هغه تفصيل به په را روان عبارت کې بيان سي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَلَوْكَانَتِ الْكَفَالَةُ بِكُرِّ حِنْطَةٍ او که چيري کفاله ديوه کُر غنمو وي فَقَبَضَهَا الْكَفِيْلُ فَبَاعَهَا وَرَبِحَ فِيهَا بيا کفيل پر هغه قبضه وکړي او خرڅ يې کړي او په هغه کې نفع وکړي فَالرِّبْحُ لَهُ فِي الْحُكْمِ نو دا نفع د حکم [او قضاء] په اعتبار سره د کفيل لپاره ده لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ مَلَكَهُ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی چې کفيل د هغه مالک سو قَالَ: وَأُحِبُّ إِلَيَّ أَنْ يَرُدَّهُ عَلَى الَّذِي قَضَاهُ الْكُرَّ امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: او زما دا خوښه ده چې کفيل دا نفع هغه کس ته واپس کړي کوم چې يو کُر غنم [مکفول لهٔ ته] ورکړي دي [يعني مکفول عنه] وَلَا يَجِبُ عَلَيْهِ فِي الْحُكْمِ [لېکن] د حکم په اعتبار سره پر هغه واپس کول واجب نه دي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ فِي رِوَايَةِ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ ❁ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د جامع صغير په روايت کې [مذکور] دی وَقَالَ أَبُوْيُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: هُوَ لَهُ او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله فرمايلي دي: چې هغه نفع د کفيل لپاره ده وَلَا يَرُدُّهُ عَلَى الَّذِي قَضَاهُ [نو ځکه] دا به هغه کس ته نه واپس کوي کوم چې يو کُر غنم ورکړي دي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْهُ او دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی وَعَنْهُ أَنَّهُ يَتَصَدَّقُ بِهِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه بل [دريم] روايت دا دی چې دا نفع به صدقه کوي لَهُمَا: أَنَّهُ رَبِحَ فِي مِلْكِهِ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي بَيَّنَّاهُ د صاحبينو دليل دا دی: چې کفيل په خپل ملکيت سره په هغه طريقه نفع حاصله کړې ده کوم چې موږ بيان کړه فَيَسْلَمُ لَهُ لهذا دا

---

❁ القول الراجح: هو هذه الرواية، أى لايجب عليه الردّ في الحكم، لكنه مندوب (مستحب)، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۳۱۰)، وفي فتح القدير (ج:۶، ص:۳۲۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۹۷]

نفع به د کفیل لپاره سلامت پاته وي [یعني د هغه لپاره به جائز وي] وَلَهُ: أَنَّهُ تَمَكَّنَ الْخُبْثُ مَعَ الْمِلْكِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د ملکیت باوجود [په دې نفع کې] خبث پیدا سوی دی إِمَّا لِأَنَّهُ بِسَبِيلٍ مِنَ الِاسْتِرْدَادِ بِأَنْ يَقْضِيَهُ بِنَفْسِهِ یا خو ځکه چي مکفول عنه ته د یوه کُر غنمو د واپس اخیستلو لاره حاصله ده په دې توګه چي مکفول عنه په خپله دا یو کُر غنم [مکفول لهٔ ته] ورکړي أَوْ لِأَنَّهُ رَضِيَ بِهِ عَلَى اعْتِبَارِ قَضَاءِ الْكَفِيلِ یا ځکه چي مکفول عنه په دې اعتبار د کفیل په مالک کېدلو راضی سوی وو چي کفیل به اد مکفول لهٔ قرض] ورکړي فَإِذَا قَضَاهُ بِنَفْسِهِ لېکن کله چي مکفول عنه په خپله [قرض] ورکړی لَمْ يَكُنْ رَاضِيًا بِهِ نو هغه د کفیل په مالک کېدلو راضي نه سو وَهٰذَا الْخُبْثُ يَعْمَلُ فِيمَا يَتَعَيَّنُ او دا خبث په داسي مال کي مؤثر کیږي کوم چي په مُتعیّن کولو سره مُتعیّن کیږي فَيَكُونُ سَبِيلُهُ التَّصَدُّقَ فِي رِوَايَةٍ نو ځکه د هغه لاره د یوه روایت مطابق صدقه کول دي وَيَرُدُّهُ عَلَيْهِ فِي رِوَايَةٍ او د یوه روایت مطابق به کفیل هغه مکفول عنه ته واپس کوي لِأَنَّ الْخُبْثَ لِحَقِّهِ ځکه چي خبث د مکفول عنه د حق په وجه پیدا سوی دی وَهٰذَا أَصَحُّ او همدا زیات صحیح ده لٰكِنَّهُ اسْتِحْبَابٌ لَا جَبْرٌ لېکن دا [حکم] مستحب دی، نه واجب لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُ ځکه چي حق خو د کفیل لپاره [ثابت] دی.

**اللغات**: ﴿كُر﴾ دا پخوا د عربو یو پیمانه وه، د دې اندازه او مقدار څو ځله مختلف تېر سوی دی، ﴿يردّه﴾ د نصر مضارع ده: واپس کول، ﴿خبث﴾ ناپاکي. (أحسن الهدايه)

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که کفاله له دراهمو (نقودو) څخه بغیر د بل شي وي، یعني یو څوک د داسي شي کفیل سي کوم چي په مُتعیّن کولو سره مُتعیّن کیږي، مثلاً د یوه کُر غنمو کفیل سي، بیا مکفول عنه دغه کفیل ته په داسي حالت کي یو کُر غنم ورکړي چي تر اوسه کفیل د مکفول عنه له طرفه مکفول لهٔ ته قرض نه وي ورکړی، بیا کفیل په هغه یوه کُر غنمو سره نفع حاصله کړي (مثلاً پر بل چاپېږ ګران خرڅ کړي او په هغه کي ګټه وکړي)، نو په دې باره کي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه درې روایتونه دي.

①... اول روایت کوم چي د مبسوط په کتاب البیوع کي ذکر سوی دی، هغه دا دی چي دغه حاصله کړی سوې نفع د کفیل لپاره صحیح او جائز ده. کفیل به نه هغه صدقه کوي او نه به یې مکفول عنه ته واپس کوي، همدا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله مذهب دی.

②... دوېم روايت کوم چې د مبسوط په کتاب الکفاله کې ذکر سوی دی، دا دی چې دا نفع د کفيل لپاره جائز نه ده، لهذا کفيل به هغه صدقه کوي.

③... درېيم د جامع صغير روايت دا دی چې دا نفع که څه هم د کفيل لپاره جائز ده.

لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز غوره خبره دا ده چې کفيل دي دا نفع مکفول عنه ته واپس کړي (همدا راجح قول دی).

**د اول روايت دليل:** د اول روايت يعني د صاحبينو د مذهب دليل دا دی چې دلته کفيل په خپل ملکيت سره نفع حاصله کړې ده (ځکه چې په قبضه کولو سره کفيل د غنمو مالک سو)، او کوم څوک چې په خپل ملکيت سره نفع حاصله کړي، هغه نفع د ده حق کيږي، لهذا په يوه کُر غنمو سره چې کومه نفع کفيل حاصله کړې ده، هغه به هم د ده حق وي، پر ده به نه د هغه صدقه کول واجب وي او نه به مکفول عنه ته د هغه ورکول پر واجب وي. د دې دليل تفصيل په تېر عبارت کې په پوره توگه ذکر سوی دی.

**د دوېم روايت دليل:** د دوېم روايت يعني د کتاب الکفاله د روايت دليل دا د چې د کفيل د ملکيت باوجود په دغه نفع کې خبث پيدا سوی دی، او د خبث پيدا کېدلو دوې وجهې دي: ①... يا خو په دې وجه په دې نفع کې خبث سته، چې مکفول عنه ته د خپل هغه يو کُر غنمو د واپس اخيستلو اختيار حاصل دی کوم چې ده کفيل ته د قرض اداء کولو لپاره ورکړي وه، په دې توگه چې مکفول عنه په خپله مکفول لهٗ ته قرض (يو کُر غنم) ورکړي، نو په دې صورت کې مکفول عنه له کفيل څخه هغه يو کُر غنم واپس اخيستلای سي. لېکن که چېري مکفول لهٗ ته کفيل قرض ورکړی وي، نو په دې صورت کې مکفول عنه ته د واپس اخيستلو اختيار نه حاصليږي. لهذا د دې دوو احتمالاتو په وجه په يوه کُر غنمو کې د کفيل ملکيت متردّد (شکمن) دی، او په متردّد ملکيت سره حاصله کړی سوې نفع هم متردّده (شکمنه) وي او په هغه کې خامخا د خبث شک او شبهه وي. ②... يا په مذکوره نفع کې ځکه خبث سته، چې مکفول عنه فقط په دې وجه د کفيل په قبضه او ملکيت کې د هغه يو کُر غنمو په ورکولو راضي سوی وو چې کفيل به مکفول لهٗ ته قرض (يو کُر غنم) ورکړي، لېکن کله چې مکفول عنه په خپله مکفول لهٗ ته قرض ورکړی، نو ښکاره خبره ده چې مکفول عنه د هغه يو کُر غنمو په ورکولو راضي نه سو، او کله چې هغه د کفيل په ملکيت راضي نه سو، نو گواکي کفيل د بل چا په ملکيت سره نفع حاصله کړه، او کومه نفع چې د بل چا په ملکيت سره حاصله کړی سي په هغه کې خبث وي، نو ځکه د کفيل په حاصله کړی سوې نفع کې به هم خبث وي.

لنده دا چې دا خبره ثابته سوه چې په يوه کُر غنمو سره چې کفيل کومه نفع حاصله کړې ده په هغه کې خبث موجود دی، او مخکې (ضمناً) ذکر سوه چې خبث په هغه شي کې اثر کوي کوم چې په مُتعين کولو سره مُتعين کيږي، او غنم هم له هغه شيانو څخه دي کوم چې په مُتعيّن کولو سره مُتعيّن کيږي، لهذا په غنمو سره چې کومه نفع حاصله سوې ده په هغه کې به خبث وي، او د خبيث مال صدقه کول واجب دي، نو ځکه د دې نفع صدقه کول به هم واجب وي.

**د دريم روايت دليل :** د جامع صغير د روايت دليل دا دی چې په دغه نفع کې چې کوم خبث پيدا سوی دی، هغه د مکفول عنه د حق په وجه پيدا سوی دی، نه د شريعت د حق په وجه، لهذا کله چې د مکفول عنه د حق په وجه خبث پيدا سو دی، نو ځکه هغه دي دا نفع مکفول عنه ته واپس کړي؛ ځکه چې مکفول عنه ته په واپس کولو سره به حق خپل مستحق (مکفول عنه) ته ورسيږي او خبث به ختم سي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې دغه روايت د صدقه کولو د روايت (يعني د دويم روايت) په نسبت زيات صحيح دی. ليکن دا په ياد لرئ! چې دا نفع مکفول عنه ته ورکول مستحب دي، واجب نه دي، ځکه هغه يوه کُر غنم خو په هر صورت کې د کفيل حق دي، نو ځکه په دې سلسله کې به کفيل د حاکم له طرفه نه مجبورول کيږي.

## د کفيل سره "بيع عينه" کول

قَالَ: وَمَنْ كَفَلَ عَنْ رَجُلٍ بِأَلْفٍ عَلَيْهِ بِأَمْرِهِ فرمايي: او که يو څوک د يو سړي له طرفه د هغه په حکم سره پر هغه د واجب زر درهمو کفيل سي فَأَمَرَهُ الْأَصِيلُ أَنْ يَتَعَيَّنَ عَلَيْهِ حَرِيرًا بيا مکفول عنه کفيل ته حکم وکړي چې پر هغه د ورېښمو "بيع عينه" وکړي [يعني مکفول عنه کفيل ته دا حُکم وکړي چې پر ما (عليّ) د ورېښمو د يوه تان "بيع عينه" وکړه!] فَفَعَلَ او کفيل هغه وکړي فَالشِّرَاءُ لِلْكَفِيلِ نو رانيول [خريداري] د کفيل لپاره ده وَالرِّبْحُ الَّذِي رَبِحَهُ الْبَائِعُ او کومه نفع چې بائع گټلې [حاصله کړې] ده فَهُوَ عَلَيْهِ نو هغه [هم] پر کفيل ده وَمَعْنَاهُ الْأَمْرُ بِبَيْعِ الْعِينَةِ او د دې مطلب د "بيع عينه" حکم کول دي مِثْلَ أَنْ يَسْتَقْرِضَ مِنْ تَاجِرٍ عَشَرَةً مثلاً [کفيل] له يو تاجر څخه لس درهمه په قرض وغواړي فَيَتَأَبَّى عَلَيْهِ او تاجر هغه ته له قرض ورکولو څخه انکار وکړي وَيَبِيعَ مِنْهُ ثَوْبًا يُسَاوِي عَشَرَةً بِخَمْسَةَ عَشَرَ مثلاً رَغْبَةً فِي نَيْلِ الزِّيَادَةِ او تاجر پر هغه قرض غوښتونکي [کفيل] د لس درهمو سره

مساوي کپړه د زیاتوب حاصلولو په غرض په پنځلس درهمه پر خرڅه کړي لِيَبِيْعَهُ الْمُسْتَقْرِضُ بِعَشَرَةٍ وَيَتَحَمَّلَ عَلَيْهِ خَمْسَةً د دې لپاره چې قرض غوښتونکی هغه په لس درهمه خرڅه کړي او پنځه درهمه [تاوان] په خپله برداشت کړي سُمِّيَ بِهِ لِمَا فِيهِ مِنَ الْإِعْرَاضِ عَنِ الدَّيْنِ إِلَى الْعَيْنِ دا بيع ځکه په "عينه" سره نومول سوې ده چې په دې کې له قرض څخه د عَين شي وطرف ته اعراض سوی دی وَهُوَ مَكْرُوهٌ او "بيع عينه" مکروه ده لِمَا فِيهِ مِنَ الْإِعْرَاضِ عَنْ مَبَرَّةِ الْإِقْرَاضِ مُطَاوَعَةً لِمَذْمُومِ الْبُخْلِ ځکه چې په دې کې د بد [قبيح] بخل په متابعت کولو سره د قرض له نېکۍ څخه اعراض سوی دی ثُمَّ قِيلَ: هٰذَا ضَمَانٌ لِمَا يَخْسَرُ الْمُشْتَرِيْ نَظَرًا إِلَى قَوْلِهِ "عَلَيَّ" بيا ويل سوي دي: چې د مكفول عنه دې قول "عليّ" ته په نظر کولو سره دا د هغه خساره [تاوان] ضمان دی چې هغه به مشتري [په "بيع عينه" کې] برداشت کوي وَهُوَ فَاسِدٌ حالانکې دا فاسد ضمان دی وَلَيْسَ بِتَوْكِيلٍ او دا توکيل [وکيل جوړول] نه دي وَقِيلَ: هُوَ تَوْكِيلٌ فَاسِدٌ او ويل سوي دي: چې دا فاسد توکيل دی لِأَنَّ الْحَرِيرَ غَيْرُ مُتَعَيِّنٍ ځکه چې [دلته] ورېښم مُتعيّن نه دي [يعني نامعلوم او مجهول دي] وَكَذَا الثَّمَنُ غَيْرُ مُتَعَيِّنٍ او همداسې ثمن هم مُتعيّن نه دي لِجَهَالَةِ مَا زَادَ عَلَى الدَّيْنِ ځکه کوم څه چې پر قرض زائد دی هغه مجهول دي وَكَيْفَمَا كَانَ فَالشِّرَاءُ لِلْمُشْتَرِيْ او هر ډول چې وي [يعني کوم صورت چې هم وي] دا رانيول د مشتري لپاره دي وَهُوَ الْكَفِيلُ او مشتري کفيل دی وَالرِّبْحُ أَيِ الزِّيَادَةُ عَلَيْهِ او نفع يعني زياتوب هم پر کفيل دی لِأَنَّهُ الْعَاقِدُ ځکه چې [فقط] هغه عقد کوونکی دی.

**اللغات:** ﴿حرير﴾ ورېښم، رېښم، ﴿بيع عِينَه﴾ د دې تعريف او تفصيل مخکې تېر سوی دی، دلته يې صورت دا دی چې مثلاً پر زيد لس درهمه قرض باندې وي، بيا هغه يو تاجر او دوکاندار مثلاً خالد ته ووايي چې ما ته لس درهمه په قرض راکړه! زه خپل قرض په اداء کوم، او خالد لس درهمه نه ورکړي، بلکې د لسو درهمو کپړه په پنځلس درهمه په قرض ورکړي، د دې لپاره چې زيد کپړه خرڅه کړي او لس درهمه قرض اداء کړي او وروسته خالد ته پنځلس درهمه ورکړي، څرنګه چې دلته خالد زيد ته د دراهمو پر ځای عَين شی يعني کپړه ورکړه، نو ځکه دې بيع ته "بيع عينه" وايي، دا خو جائز ده، لېکن د بخالت په وجه مکروه ده (د "بيع عينه" وضاحت به په تشريح کې هم ذکر سي)،

﴿نَيل﴾ د فتح مصدر دی: حاصلول، ترلاسه کول، ﴿مبرّة﴾ نېکي، د نېکۍ عمل، ﴿مطاوعة﴾ د

مفاعلې مصدر دی: اطاعت کول، تابعداري (متابعت) کول، پیروي کول. ﴿مـلـموم﴾ د نصر اسم مفعول دی: هغه شی چې مذمت (بدوالي) يې بيان سوی وي، بد، قبيح. ﴿توکيل﴾ د تفعيل مصدر دی: وکيل جوړول (یو څوک د ځان وکيل جوړول، وکيل ګرځول).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که پر يو سړي (مثلا پر خالد) د بل سړي زر درهمه قرض باندي وي، او بيا مقروض (خالد) يو سړي ته (مثلا زيد ته) ته حکم وکړي چې ته زما له طرفه د هغه زر درهمو کفيل سه! کوم چې پر ما باندي دي، نو دا سړی (زيد) د هغه کفيل سي، بيا څه وخت وروسته يا څو ورځي وروسته مکفول عنه (خالد) کفيل ته حکم وکړي چې "تَعَيَّنْ عَلَيَّ حَرِيْرًا" يعني پر ما دوريښمو د يوه تان کپړې "بيع عينه" وکړه! (يعني له يو تاجر او کاروباري څخه په قرض د وريښمو يو تان رانيسه! او هغه خرڅ کړه!، زما قرض په اداء کړه!، او بائع هغه ته په قرض تان ورکړي لېکن ډېر منفع پر واچوي [د بيع عينه وضاحت به لاندي ذکر سي]) او کفيل په دې هم راضي سي او د "بيع عينه" په توګه تان رانيسي، نو په دې صورت کي دا رانيول (يعني کوم څه چې کفيل رانيولي دي، هغه) هم د کفيل لپاره دي او هغه نفع کوم چې بائع (تاجر) ته حاصله سوې وي، هغه هم پر کفيل ده او کفيل يې ذمه وار دی، لنډه دا چې د دې بيع (بيع عينه) ټوله حقوق کفيل ته راجع کيږي او که په دې بيع کي څه تاوان (خساره) وسي، نو هغه به فقط پر کفيل وي او کفيل به هغه برداشت کوي، نه مکفول عنه.

ومعناه إلخ: فرمايي په دې مسئله کي چې مکفول عنه کفيل ته د کوم بيع حکم کړی دی هغه "بيع عينه" ده، او دلته د "بيع عينه" صورت دا دی چې کفيل له يو تاجر (کاروباري) څخه مثلاً لس درهمه په قرض وغواړي، لېکن تاجر له قرض ورکولو څخه انکار وکړي، مګر تاجر د لس درهمو يوه کپړه پر کفيل په پنځلس درهمه په قرض خرڅه کړي، د دې لپاره چې تاجر ته په دې عقد کي پنځه درهمه زائد نفع حاصله سي (او کفيل ته قرض حاصل سي)، او بيا کفيل دا کپړه له هغه تاجر (بائع) څخه بغير پر بل چا په لس درهمه خرڅ کړي او په هغه لس درهمو سره د مکفول عنه قرض اداء کړي، نو په دې بيع چې کي کوم پنځه درهمه تاوان (خساره) سوې ده، هغه به کفيل په خپله برداشت کوي (يعني هغه به کفيل له خپل جيب څخه ورکوي)، نه مکفول عنه.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې پر دې بيع ځکه د "بيع عينه" نوم ايښول سوی دی چې په دې کي د قرض (دَين) له طرف څخه د عَين وطرف ته اعراض سوی دی (له دَين څخه د عَين وطرف ته مخ اړول سوی دی)، يعني تاجر د قرض نه ورکولو پر ځای محض د نفع حاصلولو په غرض عَين شی (کپړه) ورکړې ده، او "بيع عينه" مکروه ده، د ځينو په نيز مکروه تحريمي ده او د ځينو په نيز مکروه تنزيهي ده؛ او مکروه ځکه ده چې په دې بيع کي د بخل او کنجوسی په متابعت کي د قرض ورکولو له نېکی

شخه اعرض کیږي، ځکه یو چا ته قرض ورکول نېکي ده (لېکن تاجر د قرض ورکولو له نېکۍ څخه اعراض کړی دی او په بخالت او کنجوسۍ یې عمل کړی دی) او دا مذموم دي، یعني په شریعت کې د دې مذمت او بدوالي بیان سوی دی، نو له همدې کبله د فقهاؤ په نېز دا بیع مکروه ده، او بل دا چې په حدیث مبارک کې هم د دې بیع مذمت بیان سوی دی، حدیث دا دی: "إِذَا تَبَايَعْتُمْ بِالْعِينَةِ وَأَخَذْتُمْ أَذْنَابَ الْبَقَرِ وَرَضِيتُمْ بِالزَّرْعِ، وَتَرَكْتُمُ الْجِهَادَ، سَلَّطَ اللهُ عَلَيْكُمْ ذُلًّا لَا يَنْزِعُهُ حَتَّى تَرْجِعُوا إِلَى دِينِكُمْ" (ابو داؤد شریف، باب فی النهی عن العینة، ص: ۵۰۱، حدیث رقم: ۳۴۶۲)

(نبي ﷺ فرمايي: که تاسو "بيع عينه" شروع کړی او د غوایانو لکۍ ټینګه کړی، په کښتګرۍ راضي سي او جهاد پرېږدی [یعني کله چې تاسو جهاد پرېږدی او د هغه پر ځای په غوبل، زراعت او تجارت مشغول سی)، نو دا په یاد لرئ! چې الله تعالیٰ به پر تاسو داسي ذلالت [او مصائب] مسلط کړی چې هغه به هیڅکله نه لیري کوي تر دې چې تاسو بیر ته خپل دین ته رجوع وکړئ!) همدارنګه په بل روایت کې نور وعیدونه هم ذکر سوي دي. نو له دې څخه هم معلومه شوه چې "بيع عينه" مکروه ده او له هغه څخه په ټینګه ځان ساتل ضروري دي.

ثم قیل إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي چې ځیني حضراتو ویلي دي چې د مکفول عنه په دې قول "تَعَيَّنْ عَلَيَّ" (پر ما بيع عينه وکړه!) کې د "عَلَيَّ" وطرف ته په نظر کولو سره دا د تاوان ضمان دي (یعني دا داسي دي لکه د تاوان او خسارې ضامن کېدل)، یعني ګواکې مکفول عنه کفیل ته داسي وویل چې "ته بيع عينه وکړه! او په دې بيع کې چې کوم تاوان (خساره) وسي، هغه پر ما دي، زه د هغه ضامن یم"، حال دا چې د تاوان ضمان فاسد دی؛ ځکه چې ضمان (ضامن کېدل) د هغه شیانو صحیح کیږي د کومو شیانو چې ضمان لازمیږي او د تاوان او خسران ضمان نه لازمیږي (مثلا که یو څوک بل چا ته وواېي چې ته په بازار کې معامله وکړه، که چیري په دې معامله کې تا ته خساره او تاوان ورسیږي، نو زه د هغه ضامن یم، نو دا ضمان باطل دی)، لهذا کله چې د تاوان او خسران ضمان (ضامن کېدل) باطل دي، نو په دې "بيع عينه" کې د مکفول عنه د تاوان ضامن کېدل به هم باطل وي (یعني دلته چې مکفول عنه د تاوان او خسران ضامن سوی دی هغه به هم باطل وي).

ولیس بتوکیل: فرمايي: چې دا کلام د مکفول عنه له طرفه توکیل هم نه سي ګرځول کېدای، یعني مکفول عنه چې کوم دا جمله "تَعَيَّنْ عَلَيَّ" ویلې ده، په دې سره توکیل (وکیل جوړول) هم صحیح نه دي (یعني په دې جمله سره کفیل "د بيع عينه" وکیل نه سي ګرځول کېدای [اثمار الهدایه])؛ ځکه چې د توکیل لپاره د "لِيْ" کلمه راځي، نه د "عَلَيَّ"، حال دا چې دلته مکفول عنه "عَلَيَّ" ویلي دي، یعني هغه

ويلي دي چي: پر ما "بيع عينه" وکړه!، داسې يې نه دي ويلي: زما لپاره "بيع عينه" وکړه!. (او که کفيل وکيل وګرځي، نو ښکاره خبره ده چي بيا کفيل د تاوان نه ذمه وار کيږي او هغه به خساره نه برداشت کوي. لېکن دلته هغه وکيل نه سي جوړېدای).

**وقيل هو توكيل فاسد إلخ**: فرمايي: ځيني حضراتو ويلي دي چي دا کلام د مکفول عنه له طرفه خو توکيل دی لېکن فاسد توکيل دی، ځکه چي د "تَعَيَّنْ عَلَيَّ حَرِيْرًا" مطلب دا دی چي "ته زما لپاره ورېښم رانيسه بيا هغه خرڅ کړه! او زما قرض په اداء کړه" نو دا توکيل سو (يعني په دې سره کفيل د "بيع عينه" وکيل سو) لېکن دا توکيل فاسد دی؛ ځکه چي په دې "بيع عينه" کي د ورېښمو مقدار هم مجهول دی او د ثمن هغه مقدار کوم چي له قرض څخه زائد سي هغه هم مجهول دی (يعني مکفول عنه کفيل ته دا نه دي ويلي چي د ورېښمو دومره تان رانيسه!. او نه يې دا ورته ويلي دي چي په دومره ثمن يې رانيسه! [نو] دلته که څه هم د قرض مقدار معلوم دی چي زر درهمه دی. لېکن دا معلومه نه ده چي کفيل به په څومره ثمن تان رانيسي يعني تاجر به (تر زر درهمو) څومره زياتوب او نفع ځني واخلي]. دا معلومه نه ده) او کله چي زائد مقدار مجهول دی نو ګواکي په خپله ثمن مجهول دی. لهذا کله چي ورېښم او ثمن دواړه مجهول دي، نو دا توکيل به فاسد توکيل وي.

**وكيف ما كان إلخ**: او هر ډول چي وي، يعني برابره ده دا کلام او معامله فاسد توکيل وي او که فاسد ضمان وي، په دواړو صورتونو کي رانيول هم د مشتري يعني د کفيل لپاره دي او کوم خساره او تاوان چي وسي هغه هم پر کفيل دي (ځکه چي دلته کفالت او وکالت دواړه فاسد سو). (لهذا دا چي په دې "بيع عينه" کي چي کفيل کوم څه رانيولي وي هغه هم د کفيل لپاره دي. او کوم زياتوب او نفع چي تاجر له هغه څخه اخيستې وي هغه پر کفيل ده) او فقط کفيل به د هغه ذمه وار وي يعني يوازي کفيل به هغه برداشت کوي؛ ځکه چي دلته فقط کفيل عاقد او مشتري دي، او د عقد حقوق ټوله د عاقد وطرف ته راجع کيږي او فقط عاقد د تاوان ذمه وار کيږي. نو ځکه د دې عقد حقوق به هم د عاقد يعني د کفيل وطرف ته راجع کيږي او فقط هغه به تاوان او خساره برداشت کوي (او له خپل جيب څخه به يې ورکوي).

## د غائب مکفول عنه له کفيل څخه د قرض مطالبه (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ كَفَلَ عَنْ رَجُلٍ بِمَا ذَابَ لَهُ عَلَيْهِ فرمايي: او که يو څوک د يو سړي [مکفول عنه] له طرفه د هغه شي کفيل سي کوم چي د يو چا پر هغه [مکفول عنه] ثابت وي أَوْ بِمَا قُضِيَ لَهُ عَلَيْهِ يا د داسي حق کفيل سي کوم چي د يو چا لپاره پر هغه [مکفول عنه] د هغه فيصله سوې وي فَغَابَ الْمَكْفُولُ عَنْهُ بيا مکفول عنه غائب سي فَأَقَامَ الْمُدَّعِيْ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْكَفِيْلِ بِأَنَّ لَهُ عَلَى الْمَكْفُوْلِ عَنْهُ أَلْفَ دِرْهَمٍ بيا مدعي

[مكفول لهٔ] پر كفيل بينه پېش كړي چي د مدعي پر مكفول عنه زر درهمه [واجب] دي لَمْ تُقْبَلْ بَيِّنَتُهُ نو د هغه بينه به نه قبلول كيږي لِأَنَّ الْمَكْفُولَ بِهِ مَالٌ مَقْضِيٌّ بِهِ ځكه چي مكفول بهٖ داسي مال دی چي [پر مكفول عنه] د هغه فيصله سوې ده وَهٰذَا فِي لَفْظَةِ الْقَضَاءِ ظَاهِرٌ او دا خو د قضاء [مَا قُضِيَ] په لفظ كي ښكاره دي وَكَذَا فِي الْأُخْرٰى او همدارنګه په دويم لفظ [مَا ذَابَ] كي [هم ښكاره دي] لِأَنَّ مَعْنٰى ذَابَ: تَقَرَّرَ ځكه چي د "ذاب" معنىٰ ده: "تقرر" [يعني ثابتېدل او واجبېدل] وَهُوَ بِالْقَضَاءِ او تقرر [ثبوت] د قضاء په ذريعه كيږي أَوْ مَالٌ يُقْضٰى بِهِ يا مكفول بهٖ داسي مال دی چي د هغه فيصله به [پر مكفول عنه] وسي وَهٰذَا مَاضٍ أُرِيْدَ بِهِ الْمُسْتَأْنَفُ او [په دې صورت كي] دا لفظ [ذابَ] ماضي دی چي په هغه سره مستقبل مراد سوی دی كَقَوْلِهٖ: أَطَالَ اللهُ بَقَاءَكَ لكه د قائل دا قول: "أَطَالَ اللهُ بَقَائَكَ" فَالدَّعْوٰى مُطْلَقٌ عَنْ ذٰلِكَ حال دا چي [د مكفول لهٔ] دعوىٰ له دې څخه مطلقه ده فَلَا تَصِحُّ نو ځكه [د هغه] دعوىٰ به صحيح نه وي.

**اللغات**: ﴿ذاب﴾ د نصر ماضي ده: كله چي دغه باب د مال او حق په موضوع كي ذكر سي نو معنىٰ يې ده: ثابتېدل، واجبېدل. ﴿أطال﴾ د افعال ماضي ده: اوږدول. ﴿مال﴾ هر هغه څه ته وايي كوم چي د انسان په ملكيت كي داخل وي (المال اسم لجميع ما يملكه الانسان)، او مال په اصل كي هغه شي ته وايي كوم ته چي فطرت او طبيعت ميلان كوي او د هغه ساتل (خوندي كول) ممكن وي، او هر هغه شی كوم چي په پيسو رانيول سوی وي. (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی كه خالد دعوىٰ وكړي چي ما پر حامد (مثلا) مال واجب دی، بيا زيد د حامد له طرفه په دې الفاظو سره كفيل سي "چي پر حامد د خالد كوم مال واجب دی، زه د هغه كفيل يم" (يعني د بِمَا ذَابَ كفيل يم)، يا داسي ووايي "پر حامد چي د خالد لپاره كومه فيصله سوې وي، زه د هغه كفيل يم" (يعني د بِمَا قُضِيَ كفيل يم)؛ تر دې وروسته مكفول عنه يعني حامد غائب سي. او مدعي يعني خالد (كوم چي مكفول لهٔ دی) پر كفيل دا بينه پېش كړي "چي زما پر مكفول عنه (حامد) زر درهمه باندي دي لهذا كفيل (زيد) دي ما ته زر درهمه راكړي". نو فرمايي چي د مكفول لهٔ (خالد) دغه بينه به نه قبلول كيږي، لېكن كله چي مكفول عنه حاضر سي نو د مكفول لهٔ بينه به قبلول كيږي.

دلیل دا دی چې د بیـنه (ګواهی) قبلول د دعوې پر صحیح والي موقوف دي، یعني کـه دعوی صحیح وي نو د مدعي بیـنه به قبلول کیږي، کنې هغه به ردول کیږي، او دلته د مدعي یعني د مکفول لهٔ (خالد) دعوی صحیح نه ده؛ ځکه د دعوی او د مکفول بهٖ (مال) په مینځ کې مطابقت نسته. حال دا چې د دعوی د صحیح والي لپاره د مکفول بهٖ او دعوی په مینځ کې مطابقت ضروري دی؛ او په مکفول بهٖ او دعوی کې ځکه مطابقت نسته چې دلته د مکفول بهٖ مال درې صورتونه دي: ① د "مَا قُضِيَ لَهُ عَلَيْه" د ویلو په صورت کې مکفول بهٖ هغه مال دی کوم چې له کفالة (کفیل کېدلو) څخه مخکې پر مکفول عنه د هغه فیصله سوې وي؛ ځکه کفیل د ماضي صیغه (مَا قُضِيَ) ذکر کړې ده، چې د هغه مطلب دا دی "تر کفالة مخکې چې قاضي پر مکفول عنه د کوم مال فیصله کړې ده، زه د هغه کفیل یم". ② د "مَا ذَابَ..." د ویلو په صورت کې هم مکفول بهٖ هغه مال دی کوم چې له کفالة څخه مخکې پر مکفول عنه د هغه فیصله سوې وي؛ ځکه چې د "ذَابَ" معنی ده: تَقَـرَّرَ او وَجَبَ، او تَقَرُّر (ثبوت) د قاضي په فیصله سره کیـږي (یعني مال د قاضي په فیصله سره ثابتیږي و واجبیږي)، نو ثابته سوه چې په دې صورت کې کفیل د هغه مال کفیل سوی دی کوم چې د قاضي په فیصله سره مخکې واجب سوی دی. ③ یا د "مَا ذَابَ..." د ویلو په صورت کې له "ذَابَ" څخه د مستقبل معنی مراد ده، نو په دې صورت کې مکفول بهٖ هغه مال دی چې له کفالة څخه وروسته به پر مکفول عنه د هغه فیصله وسي (په بله وینا دا چې کفیل د هغه مال کفیل سوی دی کوم چې به وروسته د قاضي په فیصله سره واجب سي)، او له ماضي صیغه څخه د استقبال معنی مرادول صحیح دي، لکه په "أَطَالَ اللهُ بَقَائَك" کې أَطَالَ ماضي ده لېکن مراد ځنې د استقبال معنی ده (ځکه د دې جملې ترجمه ده: الله تعالی دې ستا بقاء او عمر اوږد کړي).

خلاصه دا چې په دغه دریو سره صورتونو کې مکفول به مقید مال دی، یعني برابره ده مکفول بهٖ هغه مال وي کوم چې له کفالة څخه مخکې پر مکفول عنه د هغه فیصله سوې وي، یا هغه مال وي کوم چې له کفالة څخه وروسته به پر مکفول عنه د هغه فیصله وسي، په دې هر صورت کې مکفول بهٖ مقید مال دی، لېکن د مکفول لهٔ دعوی مطلق ده. یعني مکفول لهٔ پر مکفول عنه مطلقاً د زرو درهمو دعوی کړې ده، د هغه په دعوی کې نه دا خبره سته چې له کفالة څخه مخکې پر مکفول عنه د هغه فیصله سوې وي او نه دا خبره سته چې له کفالة څخه وروسته به د هغه فیصله وسي (یعني د مکفول عنه په دعوی

کي د قبل الکفاله یا بعد الکفاله هيڅ قید نسته)، نو معلومه سوه چي د مکفول به او د مکفول لهٔ د دعوی په مينځ کي هيڅ مطابقت او مناسبت نسته (او معلومه سوه چي په دې کي نقط د مکفول لهٔ چالبازي او فريبکاري ده). نو ځکه د هغه دعوی به صحيح نه وي. او کله چي دعوی صحيح نه سوه. نو بينه به هم نه قبلول کيږي؛ ځکه تاسو ته معلومه ده چي د بينه (ګواهی) د قبوليت لپاره د دعوی صحيح والي شرط دی.

## د غائب مکفول عنه له کفيل څخه د قرض مطالبه (حکم او تفصيل)

وَمَنْ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ أَنَّ لَهُ عَلَى فُلَانٍ كَذَا وَأَنَّ هَذَا كَفِيلٌ عَنْهُ بِأَمْرِهِ او که څوک بينه [ګواهي] پېش کړي چي زما پر فلانکي دومره قدر مال باندي دی او دا سړی د هغه له طرفه د هغه په حکم سره کفيل دی فَإِنَّهُ يُقْضَى بِهِ عَلَى الْكَفِيلِ وَعَلَى الْمَكْفُولِ عَنْهُ نو پر کفيل او مکفول عنه [دواړو] به د دې مال فيصله کيږي وَإِنْ كَانَتِ الْكَفَالَةُ بِغَيْرِ أَمْرِهِ او که چيري کفاله د مکفول عنه له حکم څخه بغير وي يُقْضَى عَلَى الْكَفِيلِ خَاصَّةً نو خاص پر کفيل به فيصله کيږي [نه پر مکفول عنه] وَإِنَّمَا تُقْبَلُ لِأَنَّ الْمَكْفُولَ بِهِ مَالٌ مُطْلَقٌ او بينه به ځکه قبلول کيږي چي مکفول به مطلق مال دی بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د مخکنۍ مسئلې وَإِنَّمَا يَخْتَلِفُ بِالْأَمْرِ وَعَدَمِهِ لِأَنَّهُمَا يَتَغَايَرَانِ او په حکم او عدم حکم [يعني په کفاله بالأمر او کفاله بغير الأمر] سره فيصله [قضاء] ځکه مختلف کيږي چي دا دواړه [کفاله بالأمر او بغير الأمر] يو له بل څخه جلا دي لِأَنَّ الْكَفَالَةَ بِأَمْرٍ تَبَرُّعٌ ابْتِدَاءً وَمُعَاوَضَةٌ انْتِهَاءً ځکه چي کفاله بالامر ابتداءً [په شروع کي] تبرع ده او انتهاءً [په آخر کي] معاوضه ده وَبِغَيْرِ أَمْرٍ تَبَرُّعٌ ابْتِدَاءً وَانْتِهَاءً [لیکن] کفاله بغير الامر ابتداءً او انتهاءً [په هر اعتبار سره] تبرع ده فَبِدَعْوَاهُ أَحَدَهُمَا لَا يُقْضَى لَهُ بِالْآخَرِ نو ځکه په دې دواړو [کفاله بالأمر او بغير الأمر] کي به د يوه په دعوی کولو سره د بل يوه فيصله نه کيږي [يعني کله چي کفاله بالأمر او بغير سره جلا دي. نو ځکه که مکفول لهٔ [مثلا] د کفاله بالأمر دعوی وکړي نو قاضي به د کفاله بغير الأمر فيصله نه کوي] وَإِذَا قُضِيَ بِهَا بِالْأَمْرِ او کله چي د کفاله بالامر فيصله وسي ثَبَتَ أَمْرُهُ نو د مکفول عنه حکم کول به ثابت سي وَهُوَ يَتَضَمَّنُ الْإِقْرَارَ بِالْمَالِ او دا [حکم کول] د مال اقرار لره هم متضمن دي فَيَصِيرُ مَقْضِيًّا عَلَيْهِ نو ځکه دغه اقرار به هم پر مکفول عنه فيصله کړی سوی وګرځي وَالْكَفَالَةُ بِغَيْرِ أَمْرِهِ لَا تَمَسُّ جَانِبَهُ او کفاله بغير الامر د مکفول عنه طرف نه مسه کوي [يعني د کفاله بغير الأمر

فیصله د مکفول عنه په طرف کي نه نافذیږي] لِأَنَّهُ تَعْتَمِدُ صِحَّتَهَا قِيَامَ الدَّيْنِ فِي زَعْمِ الْكَفِيلِ ځکه چي د کفاله بغیر الامر صحیح والي د کفیل په ګومان کي د قرض پر بقاء [موجود والي] موقوف دی فَلَا يَتَعَدَّى إِلَيْهِ لهذا قرض به دمکفول عنه وطرف ته نه متعدي کیږي وَفِي الْكَفَالَةِ بِأَمْرِهِ يَرْجِعُ الْكَفِيلُ بِمَا أَدَّى عَلَى الْآمِرِ او په کفاله بالامر کي به کفیل اداء کړی سوی مال له مکفول عنه ځخه واپس اخلي وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَرْجِعُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي: چي واپس به يې نه اخلي لِأَنَّهُ لَمَّا أَنْكَرَ فَقَدْ ظُلِمَ فِي زَعْمِهِ ځکه کله چي کفیل [له کفالې ځخه] انکار وکړی نو په خپل ګومان سره هغه مظلوم سو [یعني ګومان یې دا دی چي پر ما ظلم وسو] فَلَا يَظْلِمُ غَيْرَهُ نو ځکه هغه به پر بل چا ظلم نه کوي [ځکه چي مظلوم پر بل چا ظلم نه کوي] وَنَحْنُ نَقُولُ صَارَ مُكَذَّبًا شَرْعًا او موږ وايو چي دا کفیل شرعاً درواغجن ګرځول سوی دی فَبَطَلَ مَا فِي زَعْمِهِ نو ځکه کوم شوک چي د کفیل په ګومان کي وه هغه باطل سوه.

**اللغات:** ﴿أقام﴾ د افعال ماضي ده: درول، ګواهي پېشول. ﴿البيّنة﴾ ګواهي. ﴿يتغايران﴾ د تفاعل مضارع ده: يو د بل غير کېدل، يو له بل ځخه جلا کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که (مثلاً) د حامد پر خالد د قرض مال باندي وي، او خالد زید ته حکم وکړي چي زما کفیل سه! او زید د هغه له طرفه کفیل سي، تر دې وروسته مکفول عنه (مقروض) یعني خالد غائب سي، او مکفول لهٗ یعني حامد د قاضي په دربار کي دعویٰ وکړي او بیّنه پېش کړي چي زما پر فلانکي غائب (یعني پر خالد) دومره قدر مال باندي وو او دا (یعني زید) د هغه له طرفه د هغه په حکم سره کفیل سوی دی، نو قاضي به د هغه بیّنه قبلوي او پر کفیل او مکفول عنه دواړو به د مال (قرض) فیصله کوي، یعني د قاضي دا فیصله او حکم به د کفیل او مکفول عنه دواړو په حق کي نافذیږي، یعني څرنګه چي پر کفیل د مال اداء کول لازم دي هغسي پر مکفول عنه به هم د مال اداء کول لازم وي. او که چیري کفاله د مکفول عنه په حکم سره نه وي (یعني زید د خالد په حکم سره د هغه کفیل سوی نه وي)، نو د مکفول لهٗ (حامد) د بیّنه په وجه به د قاضي دا فیصله فقط د کفیل په حق کي نافذیږي (او د قرض اداء کولو په هکله به فقط کفیل تر غاړه نیول کیږي).

**حاصل:** دا چي په دې مسئله کي کفاله بالامر وي او که بغیر الامر وي (یعني برابره ده کفاله د مکفول عنه په حکم سره وي او که د هغه له حکم ځخه بغیر وي)، په دواړو صورتونو کي به د مکفول لهٗ بیّنه قبلول کیږي.

دلیل دا دی چې په دې مسئله کې مکفول به یعني "مال" مطلق دی؛ ځکه چې کفیل دا مال نه په "بِمَا ذَابَ" سره مقید کړی دی او نه یې په "بِمَا قُضِيَ" سره مقید کړی دی. او کله چې یې په هیڅ قید سره نه دی مقید کړی نو مکفول بِهٖ مال مطلق سو. او د مکفول لهٗ دعویٰ هم مطلق ده؛ ځکه چې هغه د مطلق مال دعویٰ کړې ده. لهذا په دعویٰ او مدعیٰ بِهٖ (مکفول به مال) کې مطابقت راغلی. نو ځکه دعویٰ به صحیح وي. او کله چې دعویٰ صحیح ده، نو بینه به هم قبلول کیږي: ځکه کومه بینه چې پر صحیح دعویٰ مبني وي، هغه شرعاً مقبوله ده. لهذا په دې مسئله کې به هم د مکفول لهٗ بینه قبلول کیږي. د دې په خلاف په تېره مسئله کې چې څرنګه په دعویٰ او مدعیٰ بِهٖ کې مطابقت نه وو او دعویٰ صحیح نه وه، نو ځکه هلته بینه هم قبوله نه کړی سوه.

وإنما يختلف بالأمر إلخ: په دې عبارت سره د هغه اختلاف وجه بیانوي کوم چې د کفاله بالامر او کفاله بغیر الامر په فیصله کې دی (یعني د کفاله بحکم المکفول عنه او بدون حکمه په صورت کې چې د قاضي د فیصلې په نفاذ کې کوم اختلاف او تغیر دی د هغه وجه بیانوي)، فرمایي د کفاله بالامر په صورت کې به ځکه د قاضي فیصله د کفیل او غائب مکفول عنه دواړو په حق کې نافذیږي (که څه هم د غائب په حق کې فیصله کول ناجائز دي) او د کفاله بغیر الامر په صورت کې به ځکه فقط د کفیل په حق کې نافذیږي، چې کفاله بالامر او بغیر الامر دواړه یو له بل څخه متغایر او سره جلا دي. په دې توګه چې کفاله بالامر خو ابتداءً تبرع ده او انتهاءً معاوضه ده (ځکه که کفیل د مکفول عنه په حکم سره کفیل سوی وي نو په دې صورت کې خو هغه اول د تبرع [احسان کولو] په توګه کفیل سوی وي لیکن په آخر کې یعني تر قرض اداء کولو وروسته هغه ته دا اختیار سته چې له مکفول عنه څخه اداء کړی سوی مال [عوض] واخلي. نو دا ابتداءً تبرع سوه او انتهاءً معاوضه سوه)، لیکن کفاله بغیر الامر ابتداءً هم تبرع ده او انتهاءً هم تبرع ده (ځکه کله چې کفیل د مکفول عنه په حکم سره نه وي کفیل سوی وي نو د هغه ټوله کفاله تبرع او احسان پاتېږي او هغه ته په آخر کې بالکل دا اختیار نه حاصلیږي چې له مکفول عنه څخه اداء کړی سوی مال واخلي)، لهذا کله چې کفاله بالامر او کفاله بغیر الامر یو له بل څخه متغایر او سره جلا دي او په دواړو کې تغایر دی، نو ځکه که مکفول لهٗ په دې دواړو (کفاله بالأمر او بغیر الأمر) کې د یوه دعویٰ وکړي (مثلاً د کفاله بالأمر دعویٰ وکړي) نو قاضي به د هغه پر ځای د بل یوه (یعني د کفاله بغیر الأمر) فیصله نه کوي (ځکه چې دا دواړه یو له بل څخه متغایر دي)، بلکې قاضي به فقط د هغه کفالې فیصله کوي چې مکفول لهٗ (مدعي) د هغه دعویٰ وکړي، برابره ده هغه کفاله بالامر وي او که بغیر الامر وي. اوس که مکفول لهٗ مثلاً دا دعویٰ وکړي چې "ما پر فلانکي غائب دومره مال (قرض)

باندي وو او دا سړی د هغه له طرفه د هغه په حکم سره کفیل سوی دی" یعني مکفول لهٔ د کفاله بالامر دعوی وکړي او پر دې بینه پېش کړي، او قاضي صاحب د هغه په دعوی او بینه سره د کفاله بالامر فیصله وکړي، نو ښکاره ده چي په دې فیصله سره دا خبره ثابته سوه چي مکفول عنه کفیل ته د کفالت حکم کړی دی (یعني کفیل د هغه په حکم سره کفیل سوی دی)، او د کفالت حکم کول دې خبري لره متضمن او شامل دی چي مکفول عنه د مکفول لهٔ لپاره د مال (قرض) اقرار کړی دی (چي پر ما د مکفول لهٔ مال باندي دی)، لنډه دا چي کله مکفول عنه کفیل ته د مال اداء کولو حکم وکړی نو د هغه په ضمن کي مکفول عنه د مال (قرض) اقرار هم وکړي؛ ځکه معلومه خبره ده چي مکفول عنه فقط هغه وخت کفیل ته د مال اداء کولو حکم کوي کله چي پر مکفول عنه د مکفول لهٔ مال باندي وي (نو ګواکي مکفول عنه دا اقرار وکړی چي پر ما د مکفول لهٔ دومره مال [قرض] باندي دی)، لهذا کله چي د مکفول عنه اقرار کول ثابت سو، نو دا اقرار به د هم د قاضي په فیصله کي داخلیږي، یعني ګواکي قاضي دا فیصله وکړه چي مکفول عنه د مدعي (مکفول لهٔ) لپاره د مال اقرار کړی دی (خلاصه دا چي کله قاضي د مکفول لهٔ په دعوی او بینه سره د کفاله بالأمر فیصله وکړي، نو د قاضي په دې فیصله سره دوې خبري ثابتیږي: یوه دا خبره چي مکفول عنه کفیل ته د کفالت حکم کړی دی. او بله دا چي مکفول عنه د دې اقرار هم کړی دی چي پر ما د مکفول لهٔ دومره مال باندي دی). اوس که تر دې فیصلې وروسته غائب مکفول عنه حاضر سي، نو د هغه په خلاف دویم ځل د بینه پېشولو ته ضرورت نسته (ځکه چي د قاضي په فیصله سره د غائب مکفول عنه په حق کي دواړي خبري ثابتي سوې).

والكفالة بغير الأمر إلخ: د دې په خلاف که مکفول لهٔ د کفاله بغیر الامر دعوی وکړي یعني داسيووایي چي "ما پر فلانکي دومره مال وو او دا سړی د هغه له حکم څخه بغیر د هغه کفیل سوی دی" او پر دې بینه پېش کړي او قاضي د کفاله بغیر الامر فیصله وکړي، نو دا فیصله فقط د کفیل په حق کي نافذیږي او د مکفول عنه په طرف کي نه نافذیږي (یعني فقط پر کفیل د مال اداء کول لازمیږي. نه پر غائب مکفول عنه)؛ دلیل دا دی چي د کفاله بغیر الامر صحت پر دې خبره موقوف دی چي د کفیل په ګومان کي قرض موجود وي، یعني که فقط د کفیل خیال او ګومان دا وي چي پر مکفول عنه د مکفول لهٔ قرض باندي دي نو هم کفاله بغیر الامر صحیح کیږي، که څه هم په حقیقت کي قرض نه وي (او څرنګه چي دلته مکفول عنه غائب دی او کفاله هم بغیر الأمر ده یعني کفیل د هغه له حکم څخه بغیر کفیل سوی دی. او د غائب په حق کي فیصله کول ناجائز دي. نو ځکه دا کفاله بغیر الأمر به هم پر ګومان حمل کیږي). او دا خو تاسو ته هم معلومه ده چي د یو سړي ګومان پر بل چا نه لازمیږي او د بل چا وطرف ته نه متعدي کیږي،

لهذا دلته به هم د کفیل ګومان د مکفول عنه وطرف ته نه متعدي کیږي، بلکي په دې ګومان سره به فقط کفیل نیول کیږي (مأخوذ کیږي) او فقط له هغه څخه به د قرض مال اخیستل کیږي (ځکه کله چي انسان په خپل ګومان سره یو کار وکړي نو دا فقط پر هغه ګومان کونکي لازمیږي او په دې سره یوازي هغه مأخوذ کیږي).

ولي الكفالة بأمره إلخ: فرمايي که چیري کفاله بالامر وي یعني کفیل د مکفول عنه په حکم سره کفیل سوی وي. نو په دې صورت کي چي کفیل د مکفول عنه له طرفه کوم څه مال اداء کړي. هغه له مکفول عنه څخه واپس اخیستلای سي، لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې مسئله کي هغه ته دواپس اخیستلو اختیار نسته.

د امام زفر دلیل دا دی چي په دې مسئله کي مکفول لهٔ د بینه په ذریعه کفاله ثابته کړې ده، او بینه (ګواهي) ته هغه وخت ضرورت پیدا کیږي کله چي مدعیٰ علیه منکر وي، نو ګواکي دلته مدعی علیه یعني کفیل له کفالې څخه منکر دی (چي زه کفیل نه یم)، لېکن بیا هم مکفول لهٔ (په زوره) د بینه په ذریعه کفاله ثابته کړې ده. نو ګواکي د کفیل د ګومان مطابق مکفول لهٔ پر کفیل ظلم کړی دی. او مظلوم ته پر بل چا د ظلم کولو حق نه وي، نو ځکه به کفیل ته دا حق نه وي چي له مکفول عنه څخه اداء کړی سوی مال (مأ أدیٰ) واپس واخلي او پر هغه ظلم وکړي.

لېکن زموږ له طرفه امام زفر رَحِمَهُ الله ته جواب دا دی چي کله قاضي د مکفول لهٔ د دعویٰ او بینه په خاطر د کفیل په حق کي د کفالې فیصله وکړه (چي هغه کفیل دی)، نو کفیل په خپل دې قول کي چي "زه کفیل نه یم" شرعاً درواغجن سو. یعني په شریعت کي د کفیل تکذیب وسو او هغه دراوغجن وشمارل سو. او کله چي هغه شرعاً درواغجن وشمارل سو، نو کوم څه چي د کفیل په ګومان کي وه چي زه مظلوم یم، هغه هم باطل سوه، او کله چي د کفیل ګومان باطل سو، نو دا ثابته سوه چي پر مکفول عنه یقیناً مال (قرض) باندي وو او کفیل د هغه په حکم سره کفیل سوی دی، او کله چي هغه د مکفول عنه په حکم سره کفیل سوی دی، نو ځکه تر مال اداء کولو وروسته به هغه ته دا حق هم وي چي له مکفول عنه څخه اداء کړی سوی مال واپس واخلي.

## په بيع کي د کفيل بالدرک بيان

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ دَارًا فرمايي: او څوک چي کور خرڅ کړي وَكَفَلَ رَجُلٌ عَنْهُ بِالدَّرْكِ او يو سړی د هغه اخرڅونکي] له طرفه کفيل بالدرک سي فَهُوَ تَسْلِيمٌ نو دا [د هغه کفيل له طرفه] تسليم دی لِأَنَّ الْكَفَالَةَ لَوْكَانَتْ مَشْرُوطَةً فِي الْبَيْعِ ځکه که چيري کفاله په بيع کي شرط وي فَتَمَامُهُ بِقَبُولِهِ نو [په دې صورت کي] د بيع پوره والي د کفيل پر قبلولو دی ثُمَّ بِالدَّعْوَى يَسْعَى فِي نَقْضِ مَا تَمَّ مِنْ جِهَتِهِ بيا په دعوی کولو سره کفيل د هغه شي د ماتولو کوشش کوئ کوم چي د هغه له طرفه پوره سوی دی وَإِنْ لَمْ تَكُنْ مَشْرُوطَةً فِيهِ او که چيري کفاله په بيع کي شرط نه وي فَالْمُرَادُ بِهَا إِحْكَامُ الْبَيْعِ وَتَرْغِيبُ الْمُشْتَرِي فِيهِ نو [په دې صورت کي] له کفاله څخه مراد د بيع مستحکم کول او دې بيع ته د مشتري راغب کول دي إِذْ لَا يَرْغَبُ فِيهِ دُونَ الْكَفَالَةِ ځکه چي له کفاله څخه بغير مشتري هغه ته رغبت نه کوي فَنُزِّلَ مَنْزِلَةَ الْإِقْرَارِ بِمِلْكِ الْبَائِعِ نو ځکه به دا کفاله د بائع د ملکيت د اقرار کولو درجې ته شوه کيږي [يعني په دې صورت کي به کفيل کېدل داسي وي لکه د بائع د ملکيت اقرار کول].

**اللغات:** ﴿الدَّرْك﴾ او الدَّرَك: لاحق کېدل، متصل کېدل (مصباح اللغات). ﴿کفالة بالدرك﴾ دې ته وايي چي کفيل مشتري ته داسي ووايي: ته له فلانکي څخه دا شی رانيسه! که چيري دغه شي ته استحقاق لاحق سي يعني که چيري يو بل څوک د دې شي (مبيع) مستحق وخيږي (بل څوک دعویٰ وکړي چي دا زما شی دی). نو زه ستا د ثمن کفيل او ذمه واريم. ﴿تمام﴾ د ضرب مصدر دی: پوره والی، بشپړ والی، پوره کېدل. ﴿يسعیٰ﴾ دفتح مضارع ده: کوشش کول، زيار ايستل. ﴿نقض﴾ د نصر مصدر دی: ماتول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مثلاً زيد پر حامد کور خرڅ کړي، او بيا د حامد (مشتري) لپاره بل سړی مثلاً خالد کفيل بالدرک سي، يعني خالد حامد ته ووايي چي "وروره! ته دا کور رانيسه! او بې غمه وسه! دا کور بالکل د زيد دی، که چيري دا کور د بل چا مستحق وخيږي نو زه ستا د ثمن ذمه واريم"، نو دا خبره د کفيل له طرفه د بائع ملکيت تسليمول دي، يعني د کفيل (حامد) دغه وينا چي "دا کور که چيري د بل چا مستحق وخيږي..." دغه وينا په حقيقت کي داسي ده لکه هغه چي دا خبره تسليم کړه چي دا کور د بائع (زيد) ملکيت دی (يعني دا بالکل د زيد کور دی). نو که تر دې وروسته کفيل په خپله دعویٰ وکړي "چي دا کور د بائع ملکيت نه دی بلکي د دې مالک خو زه يم"، نو د هغه دا دعویٰ به نه قبلول کيږي.

لهذا كه بيا هم په دې مسئله کي وروسته کفيل (خالد) پر مشتري (حامد) دا دعوىٰ وکړي "چي زه د دې کور مالک يم"، نو د هغه دا دعوىٰ صحيح نه ده او نه به قبلول کيږي؛ دليل دا دی چي په دې مسئله کي به کفاله يا په بيع کي شرط وي يا به شرط نه وي، يعني بائع (زيد) به يا پر دې شرط خپل کور پر مشتري (حامد) خرڅ کړی وي چي فلانکی سړی (خالد) به ستا لپاره کفيل بالدرک وي. او يا بغير له شرطه به يې خرڅ کړی وي او وروسته به يو څوک د هغه کفيل سوی وی: که چيري کفاله په بيع کي شرط وي، نو په دې صورت کي به د بيع تمام والي (پوره والي) د کفيل پر قبلولو موقوف وي. يعني کله چي کفيل کفاله بالدرک قبوله کړي، نو بيا بيع پوره کيږي. ګواکي په دې صورت کي د بيع واجبونکی او لازمونکی کس په خپله کفيل دی، نو څکه تر دې وروسته که کفيل دا دعوىٰ وکړي "چي د دې کور مالک زه يم او دا کور زما په ملکيت کي دی"، نو ګواکي ده هغه بيع ماته کړه کوم چي په خپله د ده له طرفه پوره سوې وه. او ښکاره خبره ده چي د هغه بيع د ماتولو کوشش کول باطل دي کوم چي په خپله د هغه (ماتونکي) له طرفه پوره سوې وي، نو څکه په دې مسئله کي به د کفيل دا دعوىٰ هم باطله وي "چي زه د دې کور مالک يم"، همدا وجه ده که کفيل په دې مسئله کي شفيع وي، نو د هغه د شفعي حق باطليږي.

پورتنی خبره داسي هم کېدای سي چي کفيل اول د بائع د ملکيت اقرار وکړی او اوس د خپل ملکيت دعوىٰ کوي، نو د هغه په دعوىٰ کي تناقض راغلی، او د تناقض په صورت کي دعوىٰ نه قبلول کيږي، نو څکه د کفيل دا دعوىٰ "چي زه د کور مالک يم" به هم نه قبلول کيږي.

وإن لم تكن مشروطة إلخ: او که چيري کفاله په بيع کي شرط نه وي، نو په دې صورت کي د کفاله (کفيل کېدلو) مقصد دا دی چي بيع مستحکم او مضبوطه سي او مشتري د بيع وطرف ته راغب سي؛ څکه ډېر ځله د دې بيري په وجه مشتري د مبيع رانيولو ته هيڅ رغبت نه کوي چي "مبيع به د بل چا مستحق وخيږي"، نو ګواکي په دې صورت کي کفيل مشتري ته اطمينان ورکوي چي "ته دا کور رانيسه! او بې غمه وسه! دا کور بالکل د بائع ملکيت دی، او که خدای نخواسته يو څوک په دې کور د استحقاق دعوىٰ وکړي او دا کور ستا څخه واخلي نو زه ستا د ثمن ذمه وار يم، هغه زه درکوم"، لهذا په دې صورت کي هم د کفيل له طرفه د بائع د ملکيت اقرار موجود سو. او کوم څوک چي د بائع د ملکيت اقرار کوي، د هغه لپاره دا جائز نه دي چي تر دې وروسته د خپل ځان د ملکيت دعوىٰ وکړي (چي زه د دې کور مالک يم).

حاصل دا چي په دې صورت کي کفاله د بائع د ملکيت د اقرار کولو په درجه کي ده (يعني کفاله داسي ده لکه کفيل چي دا اقرار وکړي چي بائع د دې کور مالک دی). او کله چي د کفالې په وجه کفيل د دې خبري اقرار وکړي "چي بائع د دې کور مالک دی"، نو تر دې وروسته به د کفيل دا دعوی به "چي زه د دې کور مالک يم" د تناقض په وجه صحيح نه وي او نه به قبلول کيږي.

## په پورتنۍ مسئله کي د کفالت بالدرک پر ځای د ګواهي او مُهر لګولو بيان

قَالَ: وَلَوْ شَهِدَ وَخَتَمَ وَلَمْ يَكْفُلْ فرمايي: او که [يو شوک] ګواهي ورکړي او مُهر ولګوي [لېکن] کفيل بالدرک نه سي لَمْ يَكُنْ تَسْلِيمًا نو دا [د هغه ګواه له طرفه] تسليم نه دی وَهُوَ عَلَى دَعْوَاهُ او هغه به پر خپل دعوی باقي پاته وي لِأَنَّ الشَّهَادَةَ لَا تَكُونُ مَشْرُوطَةً فِي الْبَيْعِ ځکه چي ګواهي په بيع کي شرط نه وي وَلَا هِيَ بِإِقْرَارٍ بِالْمِلْكِ او نه ګواهي د ملکيت اقرار دی لِأَنَّ الْبَيْعَ مَرَّةً يُوجَدُ مِنَ الْمَالِكِ وَتَارَةً مِنْ غَيْرِهِ ځکه بيع کله د مالک له طرفه واقع کيږي او کله د بل چا [يعني د وکيل او فضولي] له طرفه واقع کيږي وَلَعَلَّهُ كَتَبَ الشَّهَادَةَ لِيَحْفَظَ الْحَادِثَةَ او شايد هغه په دې وجه ګواهي ليکلې وي چي دا پېښه [واقعه] محفوظه کړي بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د مخکنۍ مسئلې قَالُوا: إِذَا كَتَبَ فِي الصَّكِّ: بَاعَ وَهُوَ يَمْلِكُهُ مشائخو فرمايلي دي: کله چي ګواه په بيع نامه [ګواه نامه] کي داسي وليکي: چي بائع دا کور خرڅ کړی په داسي حال کي چي هغه د دې کور مالک دی أَوْ بَيْعًا بَاتًّا نَافِذًا يا [بائع دا کور خرڅ کړی] په قطعي نافذه بيع سره وَهُوَ كَتَبَ شَهِدَ بِذَلِكَ او ګواه دا وليکي چي هغه د دې شاهد دی [يعني دا خبره هم وليکي "چي زه پر دې ګواه يم"] فَهُوَ تَسْلِيمٌ نو دا [د ګواه له طرفه] تسليم دی إِلَّا إِذَا كَتَبَ الشَّهَادَةَ عَلَى إِقْرَارِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ مګر دا چي کله ګواه د عاقدينو پر اقرار ګواهي وليکي.

**اللغات**: ﴿ختم﴾ د نصر ماضي ده: مهر لګول (ټاپه لګول). ﴿تارة﴾ کله نا کله. ﴿الحادثة﴾ پېښه، واقعه. ﴿الصك﴾ (د صاد په فتحه سره): د دې لفظ دوې معناوي دي: ① هغه خط کوم چي په معامله او بيع کي د ثبوت لپاره ليکل کيږي چي هغه ته بيع نامه (دبيع رسيد) وايي. ثبوتي خط. مراد ځني ګواه نامه ده کوم چي د ګواه له طرفه ليکل کيږي. ② د مال اقرارنامه چي هغه ته عموماً چِک ويل کيږي. د مال رسيد. دلته

ځني مراد اوله معنیٰ ده. (معجم لغة الفقهاء، مصباح منير). ﴿باتًّا﴾ د ضرب د باب فاعل دی: قطعي، حتمي، يقيني (کوم شی چي په ټينګه او په حتمي توګه نافذ سي). ﴿متعاقدَين﴾ دواړه عقد کونکي (بائع او مشتري).

**تشريح: صورت د مسئلي:** که زيد پر حامد کور خرڅ کړي، او يو سړی مثلاً خالد د کور پر خرڅولو ګواه سي او پر ورقه خپل ګواهي وليکي، دستخط پر وکړي او خپل مهر (ټاپه) ولګوي، ليکن دا ګواه (خالد) کفيل بالدرک جوړ نه سي، نو داسي ګواهي د ګواه له طرفه د بائع ملکيت تسليمول نه دي، يعني د دې ګواهي مطلب دا نه دی چي ګواه (خالد) دا خبره تسليم کړه "چي د دې کور مالک بائع (زيد) دی"، لهذا که تر دې وروسته ګواه (خالد) دعویٰ وکړي "چي زه د دې کور مال يم"، نو د هغه دعویٰ به قبلول کيږي، او که چيري بل څوک د دې کور د مالک کېدلو دعویٰ وکړي او هغه پر دې ګواهي پېش کړي، نو د هغه ګواهي به هم قبلول کيږي.

دليل دا دی چي نه ګواهي په بيع کي شرط ده، او نه ګواهي (د ګواه له طرفه) د بائع د ملکيت اقرار دی؛ ګواهي خو ځکه په بيع کي شرط نه ده چي ګواهي د بيع سره مناسب نه ده (ځکه چي بيع "ايجاب وقبول" ته وايي، او د ګواهي مرحله انکار دی، حال دا چي په بيع کي انکار ډېر کم پېښيږي، نو ځکه ګواهي د بيع سره لائق او مناسب نه ده). او ګواهي د بائع د ملکيت اقرار ځکه نه دی؛ ځکه بيع او خرڅول کله د مبيع د مالک له طرفه واقع کيږي (په دې توګه چي مالک په خپله خپل مملوک شی خرڅ کړي) او کله د مالک د نائب او د هغه د وکيل له طرفه واقع کيږي (په دې توګه چي وکيل شی خرڅ کړي يا يې فضولي خرڅ کړي)، لهذا فقط د خرڅولو ګواهي ورکول د بائع (خرڅونکي) د ملکيت اقرار نه سي کېدای، او کله چي د ګواه ګواهي د بائع د ملکيت (مالک کېدلو) اقرار نه سو، نو ځکه اوس که ګواه د خپل ځان لپاره د ملکيت دعویٰ وکړي نو د هغه په دعویٰ کي به تناقض نه وي، او کله چي په دعویٰ کي تناقض نه راغلی نو د هغه د ملکيت دعویٰ به هم صحيح وي او هغه به قبلول کيږي. په خلاف د مخکني مسئلې (يعني د کفاله بالدرک د مسئلې)، ځکه چي کفاله بالدرک د بائع د ملکيت اقرار دی، لهذا کله چي کفيل بالدرک د بائع د ملکيت اقرار وکړی، نو ځکه اوس به هغه ته د خپل ملکيت د دعویٰ کولو حق نه وي، حتیٰ که هغه بيا هم دعویٰ وکړي، نو دعویٰ به يې نه قبلول کيږي.

ولعله کتب إلخ: دا دیو سوال جواب دی، سوال دا دی چي کله د خرڅولو ګواهي ورکول د بائع د ملکیت اقرار نه دی، نو بیا د ګواهۍ د لیکلو څه فایده ده؟

د دې جواب دا دی چي ممکنه ده ګواهي په دې مقصد سره لیکل سوې وي چي د کور خرڅولو واقعه په یاد وساتل سي (چي د دې کور په هکله داسي واقعه پیښه سوې وه)، او له دې څخه د ملکیت اقرار نه لازمیږي.

قالوا إلخ: د دې حاصل دا دی که ګواه په ګواه نامه (د ګواهي په ورقه) کي دا خبره لیکلې وي "چي فلانکي سړي (زید) دا کور خرڅ کړی دی او هغه د دې کور مالک دی، یا فلانکي (زید) په قطعي بیع نافذ سره دا کور خرڅ کړی دی (یعني فلانکي قطعي بیع کړې ده او بیع یې نافذه کړې ده) او زه د دې ګواه یم"، نو د احنافو مشایخو ویلي دي چي دا د ګواه له طرفه د بائع ملکیت تسلیمول دي، ځکه چي بیع فقط هغه وخت نافذېدای سي کله چي کور د بائع ملکیت وي، او دلته ګواه په خپله ژبه په اول صورت کي په "وهو یملکه" سره او په دویم صورت کي په "بیعًا باتًا نافذًا" سره د بائع د ملکیت اقرار کړی دی، او کله چي ګواه په خپله ژبه د بائع د ملکیت اقرار کړی دی، نو ځکه اوس که هغه د خپل ځان لپاره د ملکیت دعویٰ وکړي نو د تناقض په وجه به د هغه دعویٰ صحیح نه وي او نه به قبلول کیږي.

إلا إذا کتب إلخ: ها! که چیري ګواه داسي ګواهي لیکلې وي "چي زه پر دې خبره ګواه یم چي عاقدینو زما مخته د دې اقرار کړی دی چي بائع د کور مالک دی"، نو دا هم د ګواه له طرفه د بائع ملکیت تسلیمول نه دي؛ ځکه چي د عاقدینو په اقرار سره حقیقي ملکیت نه ثابتیږي (او ځکه چي په دې صورت کي د ګواه حیثیت فقط د کاتب ګواه دی، نه د مقر [اقرار کونکي] ګواه).



# فَصْلٌ فِي الضَّمَان

(دا) فصل د ضمان (په بیان کې) دی

**تشريح**: صاحب د فتح القدیر او صاحب د بنایې لیکلي دي چې د کفاله او ضمان معنیٰ یوه ده (ځکه د دواړو معنیٰ ده: "ذمه وار کېدل"). همدا وجه ده چې زیاتره فقهاؤ د "بَابُ الْكَفَالَةِ" پر ځای د "بَابُ الضَّمَان" عنوان ذکر کړی دی، لېکن د جامع صغیر په ځینو مسئلو کې د "الکفالة" پر ځای د "الضمان" لفظ ذکر سوی دی، نو په دې وجه صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د ضمان په لفظ سره ذکر سوي مسئلې په جلا فصل کې بیان کړي دي. (فتح القدیر، وبنایه ج:۷، ص:۵۹۷)

## په بیع او مضاربت کې د وکیل او مضارب ذمه وار کېدل (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ لِرَجُلٍ ثَوْبًا وَضَمِنَ لَهُ الثَّمَنَ فرمایي: او څوک چې د یو سړي لپاره [د وکیل په توګه] کپړه خرڅه کړي او د هغه لپاره د ثمن ضامن سي أَوْ مُضَارِبٌ ضَمِنَ ثَمَنَ مَتَاعِ رَبِّ الْمَالِ یا مضارب د ربُّ المال د سامان ضامن سي فَالضَّمَانُ بَاطِلٌ نو [دا] ضمان باطل دی لِأَنَّ الْكَفَالَةَ اِلْتِزَامُ الْمُطَالَبَةِ ځکه چې کفاله [پر خپل ځان] د مطالبې لازمول دي وَهِيَ إِلَيْهِمَا او د مطالبې حق دوی دواړو ته سته فَيَصِيرُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا ضَامِنًا لِنَفْسِهِ نو ځکه په دوی کې به هر یو د خپل ځان لپاره ضامن وګرځي وَلِأَنَّ الْمَالَ أَمَانَةٌ فِي أَيْدِيهِمَا او ځکه چې مال د دوی دواړو په قبضه کې امانت دی وَالضَّمَانُ تَغْيِيرٌ لِحُكْمِ الشَّرْعِ او ضمان د شرع حکم بدلول دي [یعني د امانت په ضامن کېدلو سره د شریعت حکم بدلیږي] فَيُرَدُّ عَلَيْهِ نو ځکه دا ضمان به پر هغه [پر وکیل او مضارب] واپس کیږي [یعني دا ضمان به مردود او باطل وي] كَاشْتِرَاطِهِ عَلَى الْمُودَعِ وَالْمُسْتَعِيرِ لکه پر امانت ساتونکي او عاریتاً اخیستونکي چې شرط لګول [مردود او باطل دي].

**اللغات**: ﴿ثمن﴾ قیمت، ﴿یُرَدّ﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: واپس کول. ﴿مودَع﴾ د افعال مفعول دی: چا ته چې امانت کېښېښول سي، امانت ساتونکی، امین. (أحسن الهدایه) ﴿مستعیر﴾ د استفعال فاعل دی: څوک چې په خواست شی وغواړي، عاریتاً اخیستونکی.

**تشریح : صورت د مسئلې** : دا دی (۱) که خالد (مثلاً) د حامد له طرفه وکیل جوړ سي او د حامد کپړه خرڅه کړي او بیا وکیل (خالد) په خپله د مؤکل (حامد) لپاره د ثمن ضامن سي. (۲) یا یو مضارب د مضاربت سامان خرڅ کړي او مضارب په خپله د ربُ المال لپاره د ثمن ضامن سي. نو په دې دواړو صورتونو کي ضمان (ضامن کېدل) باطل دي.

دلیل دا دی چي ضمان او کفاله دواړه یو شي دي، او د کفالې معنیٰ ده "پر خپل ځان مطالبه لازمول"، یعني د کفالې په وجه پر کفیل مطالبه لازمېږي یعني مکفول لهٔ ته دا حق حاصلېږي چي له کفیل شخصه هم مطالبه وکړي، او څرنګه چي د بیع حقوق د عاقدینو وطرف ته راجع کیږي، نو ځکه له مشتري شخصه د ثمن د مطالبه کولو حق وکیل او مضارب ته حاصلیږي، یعني د عاقد والي په وجه همدوی دوه (وکیل او مضارب) مطالبه کونکي دي، نو ځکه د مؤکل لپاره د دوی ضامن کېدل داسي دي لکه د خپل ځان لپاره ضامن کېدل، او د خپل ځان لپاره ضامن کېدل شرعاً ناجائز دي، نو ځکه د وکیل او مضارب لپاره دا صحیح نه دي چي د خپل مالک (مؤکل او رب المال) لپاره ضامن سي.

(دا دلیل په بله وینا داسي هم ویل کېدای سي چي ضامن کېدل داسي دي لکه کفیل کېدل، او کفاله "پر خپل ځان د مطالبې لازمولو" ته وایي، یعني مکفول لهٔ ته له کفیل شخصه د مطالبې کولو حق حاصلیږي، او څرنګه چي په دې مسئله کي دواړه کفیلان په خپله عقد کونکي (بائعین) دي، نو ځکه دوی ته له مشتري شخصه هم د مطالبه کولو حق حاصلیږي، لهذا دلته وکیل او مضارب د عاقد والي په وجه مُطَالِب (مطالبه کونکي) وګرځېدل او د ضامن کېدلو په وجه مُطَالَب (چي له هغه شخصه مطالبه کیږي) وګرځېدل، حالانکي په یوه وخت کي فقط یو کس (شخص واحد) مطالب او مطالَب ګرځېدل ناجائز دي، یعني دا ناجائز او باطل دي چي یو سړی دي هم مطالب وي او هم دي مطالَب وي، نو ځکه به ضمان هم ناجائز او باطل وي).

ولأن المال أمانة إلخ : دویم دلیل دا دی چي مال د وکیل او مضارب په قبضه کي امانت دی، نو وکیل او مضارب أمین (امانت ساتونکي) سو، او امین د امانت نه سي ضامن کېدلای (لکه مخکي چي څو ځله ذکر سوي دي چي که د امانت مال د امانت ساتونکي سره هلاک سي نو پر هغه ضمان او تاوان نه لازمیږي، او هغه نه ضامن کیږي)؛ ځکه که امین د امانت ضامن وګرځول سي نو د شریعت حکم به بدل سي (ځکه شریعت دوی له ضمان شخه بري کړي دي)، او د شریعت حکم د هیچا په بدلولو سره نه سي بدلېدای، نو ځکه د وکیل او مضارب ضامن کېدل به پر دوی واپس کیږي یعني د دوی ضامن کېدل به مردود او باطل او شرعاً به معتبر نه وي. لکه څرنګه چي پر مُودَع او مستعیر د ضمان شرط لګول مردود او باطل دي، مثلاً که خالد خپل مال حامد ته په امانت کښېږدي (نو حامد مُودع سو) او خالد دا شرط ولګوي چي که مال

ضائع سو نو ته (حامد) ضامن يې!. يا مثلاً حامد له خالد څخه يو شي عاريتاً واخلي او خالد دا شرط ولګوي چې که شي ضايع سو نو ته (حامد) ضامن يې!، نو دا شرط باطل دی، يعني د ضايع کېدلو په صورت کي مُودَع او مستعير (حامد) نه ضامن کيږي؛ او پر مُودَع او مستعير د ضمان شرط لګول ځکه مردود او باطل دي چي دا شرط لګول ګواکي د شريعت حکم متغير کول (بدلول) دي، او د شريعت حکم متغير کول ناجائز دي. همداسي په دې مسئله کي که وکيل او مضارب ضامن وګرځول سي نو هم د شريعت حکم متغير کيږي، نو ځکه د دوی ضامن کېدل به هم مردود او باطل وي. (احسن الهدايه)

## يو کس مُطالب او مُطالب ګرځېدل (بيان او تفصيل)

وَكَذَا رَجُلَانِ بَاعَا عَبْدًا صَفْقَةً وَاحِدَةً او همداسي دوه خلک چي يو غلام په يوه صفقه [يوه عقد] سره خرڅ کړي. وَضَمِنَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ حِصَّتَهُ مِنَ الثَّمَنِ او په هغه دواړو کي يو د خپل ملګري [شريک] لپاره د هغه د حصې ضامن سي [نو دا ضمان هم باطل او ناجائز دی] لِأَنَّهُ لَوْ صَحَّ الضَّمَانُ مَعَ الشَّرِكَةِ ځکه که د شرکت سره ضمان [ضامن کېدل] صحيح سي يَصِيرُ ضَامِنًا لِنَفْسِهِ نو هغه به د خپل ځان لپاره ضامن وګرځي وَلَوْ صَحَّ فِي نَصِيبِ صَاحِبِهِ خَاصَّةً او که چيري خاص د هغه د ملګري په حصه کي صحيح سي يُؤَدِّي إِلَى قِسْمَةِ الدَّيْنِ قَبْلَ قَبْضِهِ نو دا له قبضې څخه مخکي د قرض د تقسيم سبب ګرځي وَلَا يَجُوزُ ذَٰلِكَ حالانکي دا جائز نه دي بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَا بِصَفْقَتَيْنِ په خلاف د هغه صورت کله چي دواړه خلک [شريکان] په دوو صفقو سره [غلام] خرڅ کړي لِأَنَّهُ لَا شَرِكَةَ ځکه چي [په دې صورت کي] شرکت نسته أَلَا تَرَى أَنَّ لِلْمُشْتَرِي أَنْ يَقْبَلَ نَصِيبَ أَحَدِهِمَا آيا ته نه ګورې! چي مشتري ته دا اختيار سته چي له دواړو [شريکانو] څخه د يوه شريک په حصه کي بيع قبوله کړي وَيَقْبِضَ إِذَا نَقَدَ ثَمَنَ حِصَّتِهِ او [مشتري ته دا اختيار هم سته] چي کله د هغه شريک د حصې ثمن اداء کړي نو پر هغه حصه قبضه وکړي وَإِنْ قَبِلَ الْكُلَّ که څه هم هغه د ټوله [غلام] بيع قبوله کړې وي.

**اللغات**: ﴿صفقة﴾ يو عقد، يوه معامله. ﴿نصيب﴾ حصه. ﴿نقد﴾ د نصر ماضي ده: اداء کول (نقد اداء کول).

**تشريح**: دا مسئله پر مخکني قاعدې متفرع ده چي "په يوه وخت کي يو کس مُطالب او مُطالب ګرځېدل ناجائز دي".

**صورت د مسئلې**: دا دی که یو غلام د دوو خلکو په مینځ کې مشترک وي او بیا هغه دواړه شریکان په یوه عقد سره دا غلام (مثلاً) په زر درهمه خرڅ کړي او په دواړو کې یو د خپل شریک ملګري لپاره د هغه د حصې ضامن سي، نو فرمایي چې دا ضمان (ضامن کېدل) جائز نه دي، برابره ده هغه د مطلق ثمن ضامن سي یا خاص د خپل شریک د حصې ضامن سي؛ ځکه که هغه د مطلق ثمن ضامن سي، نو هغه به د خپل ځان ضامن وګرځي، په دې توګه چې ثمن د دواړو په مینځ کې مشترک دی، نو ښکاره خبره ده چې د ثمن په هر درهم او هره حصه کې د دواړو شرکت (اشتراک) سته، او څرنګه چې په دوی کې هر یو د عاقد والي په وجه مُطَالِب دی، نو اوس که په دوی کې یو شریک ضامن سي نو هغه به مُطَالَب هم وګرځي، حالانکې تاسو ته معلومه ده چې یو سړی مطالب او مطالَب دواړه ګرځېدل جائز نه دي، نو ځکه دا صورت باطل دی. او که یو شریک د مطلق ثمن ضامن نه سي بلکې خاص د خپل شریک د حصې ضامن سي، نو دا هم صحیح نه دي؛ ځکه په دې صورت کې د ثمن کوم چې د مشتري پر ذمه قرض دی له قبضې څخه مخکې د هغه تقسیم لازمیږي، حالانکې له قبضې څخه مخکې د قرض تقسیمول ناممکن دی (ځکه تقسیمول او حصه حصه کول په اعیانو او محسوساتو کې ثابتیږي، په اوصافو کې نه ثابتیږي، او دَین یو وصف دی لکه مخکې چې تېر سوه، نو ځکه د دَین تقسیم به هم نه ثابتیږي، مګر کله چې پر هغه قبضه وسي نو هغه عَین ګرځي، لېکن له قبضې څخه مخکې هغه وصف وي)، نو ځکه د ضمان دا صورت هم باطل او ناجائز دی.

بخلاف ما إذا باعا إلخ: د دې حاصل دا دی چې که صفقه (عقد) یو نه وي بلکې دواړه شریکان خپل غلام په دوو عقدونو سره خرڅ کړي، یعني یو شریک خپله حصه جلا په پنځه سوه درهمه خرڅه کړي او بل شریک یې جلا خرڅه کړي، بیا په دوی کې یو د بل لپاره ضامن سي، نو دا ضمان صحیح دی؛ ځکه چې په دې صورت کې د هر یوه حصه د بل یوه له حصې څخه جلا او علیحده ده، نو ځکه په ثمن کې د دواړو شرکت ثابت نه سو (بلکې د هر یوه ثمن جلا دی)، او کله چې شرکت نه ثابتیږي، نو مخکنۍ خرابیاني هم نه لازمیږي، او کله چې مخکنۍ خرابیاني نه لازمیږي نو ضمان به هم صحیح او جائز وي.

ألا ترى إلخ: څرنګه چې دلته صفقه متفرقه ده یعني دوې صفقې دي، نو ځکه مشتري ته دا اختیار سته چې که وغواړي نو د دواړو بیع دې قبوله کړي او که وغواړي نو د یوه شریک په حصه کې دې بیع قبوله کړي او د بل شریک حصه دې ردّ کړي، همدارنګه که هغه د ټوله غلام بیع قبوله کړي نو هغه ته پر یوه حصه د قبضه کولو اختیار هغه وخت سته کله چې د هغه حصې ثمن اداء کړي، لېکن که چیري صفقه یوه وای، نو هغه ته به دا اختیارات نه حاصلېدلای، لهذا د مشتري لپاره دغه اختیارات ثابتېدل د دې خبرې دلیل دی چې دلته صفقه متفرقه ده او ضمان صحیح او جائز دی. (احسن الهدایه)

## د يو چا د خراج او محصول (ټيکس) ضامن کېدل (تفصيلي بيان)

قَالَ: وَمَنْ ضَمِنَ عَنْ آخَرَ خَرَاجَهُ وَنَوَائِبَهُ وَقِسْمَتَهُ فرمايي: او څوک چي د بل چا له طرفه د هغه د خراج، د هغه د نوائبو او د هغه د قسمت ضامن سي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي أَمَّا الْخَرَاجُ فَقَدْ ذَكَرْنَاهُ کوم چي خراج دی نو هغه موږ [مخکي] ذکر کړی دی وَهُوَ يُخَالِفُ الزَّكَاةَ او خراج د زکاة مخالف دی [يعني له زکاة څخه جلا دی] لِأَنَّهَا مُجَرَّدُ فِعْلٍ ځکه چي زکاة محض فعل دی وَلِهٰذَا لَا تُؤَدّٰى بَعْدَ مَوْتِهِ مِنْ تَرِكَتِهِ إِلَّا بِوَصِيَّةٍ او له همدې وجهي له وصيت څخه بغير د انسان تر مرګ وروسته د هغه له ميراث څخه زکاة نه اداء کيږي وَأَمَّا النَّوَائِبُ فَإِنْ أُرِيْدَ بِهَا مَا يَكُوْنُ بِحَقٍّ او کوم چي نوائب دي نو که له هغوی څخه هغه نوائب مراد وي کوم چي پرځای حق وي [او ديو حق په وجه وي] كَكَرْيِ النَّهْرِ الْمُشْتَرَكِ لکه مشترک نهر کيندل وَأَجْرِ الْحَارِسِ او [لکه] د چوکيدار اُجرت وَالْمُوَظَّفِ لِتَجْهِيْزِ الْجَيْشِ وَفِدَاءِ الْأُسَارٰى او [لکه] هغه وظيفه [محصول اوچنده] کوم چي د لښکر د تيارولو او د قيديانو د خلاصولو لپاره او د داسي بل کار لپاره مقرره کړی سي جَازَتِ الْكَفَالَةُ بِهَا عَلَى الْاِتِّفَاقِ نو د داسي نوائبو کفاله بالاتفاق جائز ده وَإِنْ أُرِيْدَ بِهَا مَا لَيْسَ بِحَقٍّ او که [له نوائب څخه] هغه نوائب مراد وي کوم چي ناحقه وي كَالْجِبَايَاتِ فِيْ زَمَانِنَا لکه زموږ په زمانه کي جبايات [يعني هغه ټيکسونه کوم چي ظلماً مقرر کړل سوي وي] فَفِيهِ اخْتِلَافُ الْمَشَايِخِ نو په دې کي د مشايخو رَحِمَهُمُ الله اختلاف دی وَمِمَّنْ يَمِيْلُ إِلَى الصِّحَّةِ الْإِمَامُ عَلِيُّ الْبَزْدَوِيُّ ۞ او يو له هغه حضراتو څخه کوم چي د دې صحيح والي ته ميلان کوي امام علي بزدوي دی وَأَمَّا الْقِسْمَةُ فَقَدْ قِيْلَ: هِيَ النَّوَائِبُ بِعَيْنِهَا او کوم چي قسمت دی نو ويل سوي دي: چي هغه بعينه نوائب دي [يعني دوی دواړه سره يو شي دي] أَوْ حِصَّةٌ مِنْهَا وَالرِّوَايَةُ بِأَوْ يا د نوائبو يوه حصه ده او [په دې صورت کي] روايت د "أَوْ" په لفظ سره دی وَقِيْلَ: هِيَ النَّائِبَةُ الْمُوَظَّفَةُ الرَّاتِبَةُ او ويل سوي دي: چي له قسمت څخه مراد هغه نائبه [محصول] دی کوم چي مقرر او [دائمي]

---

۞ القول الراجح قول المصححين، يعني صحت الكفالة، قال العلامة الحصكفي: وكذا النوائب ولو بغير حق كجبايات زماننا، فإنها في المطالبة كالديون... وعليه الفتوى (رد المحتار ج:۳، ص:۳۱۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۰۱]

ټاکل سوی وي وَالْمُرَادُ بِالنَّوَائِبِ مَا يَنُوبُهُ غَيْرَ رَاتِبٍ او له نوائب څخه مراد هغه شيان (محصولات) دي کوم چې ناڅاپه پيښېږي وَالْحُكْمُ مَا بَيَّنَاهُ او (د نوائبو) حکم هغه دی کوم چې موږ (اوس) بيان کړی.

**اللغات**: ﴿خَراج﴾ (د خاء په فتحه سره) د ذمي کافر پر کښت او ځمکه، د هغه پر تجارت او د هغه پر ذات چې حکومت کوم محصول (ټيکس) اخلي. هغه ته خراج وايي. خراج پر دوه قسمه دی چې هغه به په تشريح کي ذکر سي، ﴿نوائب﴾ جمع د نَائِبَةٌ ده: پېښه، ناڅاپه (نابيره) واقع کيدونکی شی، مراد ځني غير مستقل او غير دائمي محصول (ټيکس) دی. يعني ناڅاپه چي يو واقعه پېښه سي او بيتُ المال خالي وي نو باچا د هغه لپاره پر عامو مسلمانانو محصول مقرر کړي، نو هغه ته "نائبه" وايي، مثالونه به يې په تشريح کي ذکر سي. ﴿قسمت﴾ تقسيم، نوبت (واري)، مثلاً د محلې د حفاظت لپاره چوکيدار ته ضرورت وي نو باچا (حکومت) پر خلکو مياشتنانه مال مقرر کړي، نو دې ته "قسمت" وايي، ځکه چي دا په هره مياشت کي پر خلکو تقسيم شُده وي، (أثمار الهدايه)

﴿التَّرِکَة﴾ (پر وزن د کَلمَة) او تِرْکَة: کوم مال چي مړی پرېږدي، يعني ميراث، ﴿مجرّد﴾ محض، ﴿کَرْی﴾ د ضرب مصدر دی: کيندل، کنېل (کارېل)، ﴿حارس﴾ چوکيدار (پيره دار). ﴿موظف﴾ د تفعيل مفعول دی: مقرر کړی سوی وظيفه (ټاکل سوې وظيفه) مراد ځني محصول او ټيکس دی، ﴿تجهيز﴾ د تفعيل مصدر دی: تيارول، (لښکر ته اسلحه او سامان ورکول). ﴿جيش﴾ لښکر، فوج. ﴿أُسارىٰ﴾ جمع د أسِيْرٌ ده: بندي، قيدي، ﴿جبايات﴾ جمع د جِبَايَةٌ ده: (په اصل کي د محصول او ټيکس جمع کولو ته وايي). مراد ځني هغه ټيکس او محصول دی کوم چي حکومت په زور او ظلم سره پر خلکو مقرر کړی وي، ﴿راتبة﴾ دائمي او همېشني، ثابت او ټاکل سوی (مثلاً هغه محصول کوم چي هره مياشت د حکومت له طرفه پر خلکو مقرر او ټاکل سوی وي). (أثمار الهدايه)

**تشريح**: د خراج، نوائب او قسمت معنیٰ په لغاتو کي ذکر سوه، او د نوائب، قسمت پوره مطلب به د تشريح په ضمن کي هم ذکر سي.

**صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی د يو چا د خراج ضامن سي، يا د هغه د نوائب ضامن سي، يا د هغه د قسمت ضامن سي، نو دا ضمان جائز دی. لېکن دا خبره په ياد لرئ! چي دلته له خراج څخه "خراج مؤظف" مراد دی، نه "خراج مقاسمه". (۱) خراج مؤظف دا دی چي د رخت باچا (امامُ المسلمين) د يو چا ځمکي په پيداوار (فصل) کي په اندازه او اټکل سره محصول (ټيکس) مقرر کړي، مثلاً باچا يو ذمي ته داسي ووايي چي ته به هر کال ستا د ځمکي له پيداوار څخه دومره خراج اداء کوې!. (۲) او

خراج مقاسمه دا دی چي د وخت باچا دیو چا د ځمکي په پیداوار کي په تقسیم سره محصول مقرر کړي، مثلاً باچا یوه حصه د هغه له پیداوار څخه اخلي او دوې حصې ځمکي والا ته ورپریږدي، نو دلته له خراج څخه "خراج مؤظف" مراد دی، یعني فقط د خراج مؤظف کفاله (ضمان) جائز دی؛ ځکه خراج مؤظف داسي قرض دی چي د بندګانو له طرفه د هغه مطالبه کول صحیح دي، او د کوم قرض مطالبه کول چي د بندګانو له طرفه صحیح وي، د هغه کفاله جائز ده، نو ځکه د خراج مؤظف کفاله به هم جائز وي، لېکن څرنګه چي خراج مقاسمه (د ذمي) پر ذمه قرض نه وي (بلکي کله چي له کښت څخه پیداوار را ووځي نو هغه پر لازمیږي)، او کفاله فقط د قرض او دَین صحیح کیږي، او کله چي خراج مقاسمه د قرض په معنیٰ سره نه دی نو د هغه کفاله به هم جائز نه وي. (أشرف الهدایه)

وهویخالف الزکوة إلخ او د خراج حکم له زکاة څخه جلا دی، یعني د زکاة او خراج په حکم کي فرق دی، د خراج کفاله جائز ده لېکن د زکاة کفاله جائز نه ده؛ ځکه چي زکاة د فعل نوم دی، نه د دَین (قرض)، او د زکاة د مال ضمان هم نه لازمیږي، او کفاله فقط د دَین صحیح کیږي او د هغه ضمان هم لازمیږي، نو ځکه به د زکاة کفاله (ضامن کېدل) جائز نه وي.

همدا وجه ده که یو څوک مړ سي او پر هغه زکاة واجب وي، نو د هغه له وصیت څخه بغیر تر مرګ وروسته د هغه له میراث څخه زکاة نه اداء کیږي.

وأما النوائب إلخ: د دې حاصل دا دی چي نوائب پر دوه قسمه دي: ① هغه نوائب کوم چي پر حق او پر ځای وي، مثلاً د وخت باچا داسي نهر (واله) وکیندي کوم چي د عامو مسلمانانو د فایدې لپاره وي او بیتُ المال خالي وي، نو د بیتُ المال د خالي والي په وجه باچا پر عامو مسلمانانو لږ مال (چنده) مقرره کړي، یا مثلاً د محلې (کلي) د حفاظت لپاره چوکیدار وټاکل سي او بیتُ المال خالي وي، نو ځکه تنخا پر خلکو مقرره کړي، یا مثلاً د کفارو سره د مقابلې لپاره د اسلامي لښکر د تیارېدلو خرچه پر عامو مسلمانانو مقرره کړي (او بیتُ المال خالي وي)، یا د بندیانو د خلاصولو (ازادولو) خرچه پر مسلمانانو مقرره کړي (او بیتُ المال خالي وي)، یا له دې څخه بغیر د بل یو داسي کار خرچه پر مسلمانانو مقرره کړي چي په هغه کي د عامو مسلمانانو مشترکه فایده وي (او دیو چا سره خاص نه وي)، نو دې ته "پر حق نوائب" وایي او د هغه کفاله جائز ده، ځکه چي د باچا (امام المسلمین) د مقرر کولو په وجه دغه نوائب د مسلمانانو پر ذمه واجب وي، او کوم شی چي پر ذمه واجب وي هغه ته دَین وایي، نو ځکه دا نوائب به دَین وي، او د دَین کفاله جائز ده، نو ځکه د دې نوائبو کفاله به هم جائز وي.

② لېکن هغه نوائب چي په هغه کي د مسلمانانو فایده نه وي بلکي د وخت باچا په ظلم او جبر سره هغه پر خلکو مقرر کړي، مثلاً پخوا د فارس په ملکونو کي پر خیاط (درزی)، رنګریز او پر

داسي نورو پېښه ګرو به محصول مقرر وو چې هغوی به له خپل ګټې څخه هره میاشت څه محصول ورکوی، او نن سبا هم خصوصاً په افغانستان او پاکستان کې پر هر شي محصول (ټیکس) مقرر دی (مثلا ټلیفون ته د کاډ وراچولو ټیکس چې پر هغه د حکومت له طرفه پنجی کاټیږي او داسې نور). دا ټول له محصولونه په دویم قسم کې داخل دي کوم چې ظلماً اخیستل کیږي، شرعاً د هغوی هیڅ وجوب نسته، نو د داسي نوائبو د کفالې په روایښت او نا روایښت کې د مشائخو اختلاف دی، د ځینې مشایخو رایه دا ده چې د دې نوائبو کفاله (کفیل کېدل) ناجائز او ناروا دي، ځکه کله چې هغوی شرعاً پر مسلمانانو واجب نه دي، نو ښکاره خبره ده چې د هغوی کفاله جائز نه ده. لیکن د علامې علي بزدوي رَحِمَهُ الله رایه دا ده چې د هغوی کفاله جائز ده؛ ځکه هغوی هم د باچا له طرفه مقررول کیږي، او د باچا له طرفه مقرر کړی سوی شی که څه هم ظلما وي، لیکن بیا هم هغه د خلکو پر ذمه واجب (ضروري) وي او د باچا له طرفه د هغه مطالبه کیږي، او څرنګه چې کفاله "التزام المطالبة" ته وایي (یعني کفیل پر ځان مطالبه لازموي)، نو ځکه د دې نوائبو کفاله به هم جائز وي.

وأما القسمة إلخ: او پاته سو قسمت، نو په دې سلسله کې درې قولونه دي: ①... ځینې حضرات وایي چې قسمت او نوائب دواړه یو شی دي په هغوی کې هیڅ فرق نسته. نو په دې صورت کې به د نَوَائِبِه وَقِسْمَتِه په مینځ کې "واو" د عطف وي او عطف تفسیري به وي، یعني کوم حکم چې د نوائب دی هغه حکم بهٔ د قسمت وي، ②... دویم قول دا دی چې قسمت د نوائب یوه حصه ده، مثلاً باچا د عامو مسلمانانو لپاره یو پُل جوړ کړي او د هغه خرچه پر ټولو مقرره کړي، نو پر یوه سړي چې کومه خرچه راسي هغه د ده قسمت دی، اوس که یو بل سړی د ده له طرفه د هغه خرچې کفیل سي، نو دا جائز دي. په دې صورت کې به د نَوَائِبِه او قِسْمَتِه په مینځ کې "أَوْ" وي (او ترجمه به یې داوي: د نوائبو کفالت یا د قسمت کفالت)، ③ دریم قول دا دی چې د نوائب او قسمت په مینځ کې فرق دی، له قسمت څخه مراد هغه "نائبه" (محصول) دی کوم چې مستقلاً او دائمي مقرر کړی سي (مثلا هره میاشت پر خلکو مقرر کړی سي). او له نوائب څخه مراد هغه محصولات (ټیکسونه) دي کوم چې په ناڅاپه توګه مقرر کړل سي، مثلاً ناڅاپه د نهر جوړولو ضرورت پیښ سي، یا ناڅاپه پُل مات سي، نو د هغه د جوړولو لپاره چې کومه چنده (وظیفه) پر خلکو مقرره کړی سي، هغه ته "نائبه" وایي، او د نوائب حکم اوس څه مخکې بیان سو چې که نوائب پر حق وي نو د هغوی کفاله بالاتفاق جائز ده.

## د قرض په فورا اداء کولو کي اختلاف او معتبر قول

وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ: لَكَ عَلَيَّ مِائَةٌ إِلَى شَهْرٍ او څوک چي بل چا ته ووايي: تا پر ما سل درهمه د يوې مياشتي په پور سره باندي دي وَقَالَ الْمُقَرُّ لَهُ: هِيَ حَالَّةٌ او مقر له ووايي: چي هغه في الحاله دی ايعني اوس دستي پر تا دې قرض اداء کول واجب دي ا فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُدَّعِيْ نو اپه دې صورت کي ا د مدعي قول معتبر دی وَمَنْ قَالَ: ضَمِنْتُ لَكَ عَنْ فُلَانٍ مِائَةً إِلَى شَهْرٍ او څوک چي ووايي: زه ستا لپاره د فلانکي له طرفه د يوې مياشتي په ميعاد سره د سلو درهمو ضامن اذمه وار ا يم وَقَالَ الْمُقَرُّ لَهُ: هِيَ حَالَّةٌ او مقر له ووايي: چي هغه في الحاله اواجب ا دي فَالْقَوْلُ قَوْلُ الضَّامِنِ نو اپه دې صورت کي ا قول د ضامن معتبر دی وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ الْمُقِرَّ أَقَرَّ بِالدَّيْنِ ثُمَّ ادَّعَى حَقًّا لِنَفْسِهِ او وجه د فرق دا ده چي اپه اوله مسئله کي ا مقر د قرض اقرار وکړی بيا يې د خپل ځان لپاره د يوه حق دعوی وکړه وَهُوَ تَأْخِيرُ الْمُطَالَبَةِ إِلَى أَجَلٍ او هغه [حق] تر يو وخته پوري مطالبه مؤخر کول دي وَفِي الْكَفَالَةِ مَا أَقَرَّ بِالدَّيْنِ او په کفاله کي مقر د قرض اقرار نه دی کړی لِأَنَّهُ لَا دَيْنَ عَلَيْهِ فِي الصَّحِيحِ ځکه چي د صحيح قول مطابق پر کفيل قرض نسته وَإِنَّمَا أَقَرَّ بِمُجَرَّدِ الْمُطَالَبَةِ بَعْدَ الشَّهْرِ او هغه تر يوې مياشتي وروسته فقط د مطالبې اقرار کړی دی وَلِأَنَّ الْأَجَلَ فِي الدُّيُونِ عَارِضٌ او ځکه چي په قرضونو کي ميعاد يو عارضي شی دی حَتَّى لَا يَثْبُتَ إِلَّا بِشَرْطٍ همدا وجه ده چي اپه قرض کي اله شرط څخه بغير ميعاد نه ثابتيږي فَكَانَ الْقَوْلُ قَوْلَ مَنْ أَنْكَرَ الشَّرْطَ نو ځکه قول به د هغه کس معتبر وي کوم چي ادميعاد اله شرط څخه منکر وي كَمَا فِي الْخِيَارِ لکه څرنګه چي په خيار کي اهم دا حکم دی ا أَمَّا الْأَجَلُ فِي الْكَفَالَةِ فَنَوْعٌ مِنْهَا پاته سو په کفاله کي ميعاد نو هغه د کفالې يو قسم دی حَتَّى يَثْبُتَ مِنْ غَيْرِ شَرْطٍ همدا وجه ده چي اپه کفاله کي ا ميعاد له شرط څخه بغير هم ثابتيږي بِأَنْ كَانَ مُؤَجَّلًا عَلَى الْأَصِيلِ په دې توګه چي پر اصيل قرض ميعادي وي وَالشَّافِعِيُّ أَلْحَقَ الثَّانِيَ بِالْأَوَّلِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله اول صورت [اوله مسئله] د دويم صورت سره لاحق کړی دی وَأَبُو يُوسُفَ فِيمَا يُرْوَى عَنْهُ أَلْحَقَ الْأَوَّلَ بِالثَّانِي او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په خپل [د نوادر] په روايت کي اول د دويم سره لاحق کړی دی وَالْفَرْقُ قَدْ أَوْضَحْنَاهُ او اپه دواړو مسئلو کي ا فرق موږ په وضاحت سره بيان کړی دی.

**اللغات:** ﴿مُقِرّ﴾ د افعال د باب فاعل دی: اقرار کونکی، ﴿مُقَرّ لَهُ﴾ د افعال د باب مفعول دی په صله کي يې "لهٗ" ذکر سوی دی: د کوم چا لپاره چي اقرار وسي، مثلاً زيد د خالد لپاره پر ځان اقرار وکړي چي پر ما د هغه سل درهمه باندي دي، نو زيد مقر دی او خالد مقرلهٗ دی. ﴿أجل﴾ ټاکل سوی وخت،

مودت. میعاد (میاد)، ﴿دَیـن﴾ قرض، قرضه (پور). ﴿مؤجّـل﴾ د کوم شي لپاره چي وخت ټاکل سوی وي، میعادي (میادي)، نښته داره.

**تشريح**:. د کفاله او ضمان سره متعلق په دې عبارت کي دوې مسئلې بیان سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده که زید اقرار وکړي او خالد ته ووايي "چي ورو ره! تا پر ما سل درهمه باندي دي، لېکن هغه دیوې میاشتي په پوره (قرض) سره دي یعني یوه میاشت وروسته زه هغه تا ته درکوم". مګر مقرلهٔ یعني خالد ووايي چي دا سل درهمه میعادي نه دي (یعني دیوې میاشتي په پور سره نه دي) بلکي في الحاله (اوس دستي) د هغه اداء کول پر تا واجب دي، لهذا ته اوس دستي هغه ما ته راکړه!، نو په دې صورت کي د مدعي او مقر لهٔ یعني د خالد قول معتبر دی.

(۲)... دویمه مسئله دا ده که (مثلاً) حامد خالد ته ووايي "چي زه د زید له طرفه ستا لپاره د سلو درهمو کفیل یم لېکن د یوې میاشتي د میعاد په شرط سره یعني یوه میاشته وروسته تا ته د مطالبې حق سته"، او مقرلهٔ (خالد) ووايي چي دا کفاله غیر میعادي ده او في الحاله ما ته د مطالبې حق سته، نو په دې صورت کي د مقر او کفیل یعني د حامد قول معتبر دی.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې دوو مسئلو کي د فرق وجه دا ده چي په اوله مسئله کي مقر (زید) اول د مقرلهٔ لپاره د قرض اقرار کړی دی او تر هغه وروسته يې د ځان لپاره د یوې میاشتي د میعاد دعویٰ کړې ده. نو په دې اعتبار سره هغه د میعاد مدعي سو، او مقر لهٔ د میعاد منکر سو، او قاعده دا ده چي که د مدعي سره بینه نه وي نو د یمین سره د منکر قول معتبر دی، نو ځکه په دې صورت کي به د منکر یعني د مقرلهٔ قول معتبر وي.

د دې په خلاف په دویمه مسئله کي مقر یعني کفیل (حامد) د قرض اقرار نه دی کړی؛ ځکه د صحیح قول مطابق پر کفیل قرض (دَین) نه لازمیږي بلکي پر هغه فقط مطالبه لازمیږي، او هغه تر یوې میاشتي وروسته د مطالبې اقرار او دعویٰ کړې ده، لېکن مقرلهٔ في الحاله د هغه دعویٰ کوي، او مقر (کفیل) د دې منکر دی یعني له دې ځخه انکار کوي او دا نه مني، نو ځکه دلته به د کفیل (کوم چي منکر دی) قول به معتبر وي.

په دې دوو مسئلو کي دویم فرق دا دی چي په قرضونو (دیون) کي میعاد یو عارضي شی دی، همدا وجه ده چي له شرط ځخه بغیر په قرضونو کي میعاد نه ثابتیږي (یعني همدا وجه ده چي له شرط کولو او ذکر کولو ځخه بغیر "قرض" میعادي نه ګرځي)، او ځرنګه چي په اوله مسئله کي مقر د میعاد د شرطولو دعویٰ کړې ده (یعني هغه ویلي دي چي سل درهمه د یوې میاشتي په پور سره دي) او مقر لهٔ د دې منکر

دی، نو ځکه په دې حواله سره به هم د منکر يعني د مقرلهٔ قول معتبر وي. لکه څرنګه چې په خيار شرط کې هم دا حکم دی چې که په عاقدينو کې يو د خيار شرط دعوىٰ وکړي او بل عاقد له هغه څخه انکار وکړي، نو که چيرې د مدعي سره بيّنه نه وي نو د منکر قول د يمين سره معتبر دی، نو همداسې به دلته هم د يمين سره د منکر يعني د مقرلهٔ قول معتبر وي.

د دې په خلاف کوم چې دويمه مسئله ده يعني د کفالې مسئله، نو څرنګه چې په کفاله کې ميعاد عارضي شی نه دی بلکې د هغه يوه نوع ده او د ميعادي کفالې (کفاله مؤجّله) له ذاتياتو څخه دی، او که چيرې قرض پر اصيل يعني پر مکفول عنه ميعادي وي (يعني د قرض لپاره څه مودت او مهلت ټاکل سوی وي) نو د غه ميعاد له شرط کولو څخه بغير هم د کفيل په حق کې ثابتيږي، نو ځکه په دې صورت کې به د کفيل (کوم چې د ميعاد مقر دی) قول به معتبر وي. (ميعاد او مهلت ځکه د کفالې له ذاتياتو څخه دی چې ميعاد په کفاله کې شامل وي، لېکن په قرض کې ميعاد او مهلت شامل نه وي، بلکې عارضي وي...).

والشافعي إلخ: فرمايي چې امام شافعي رَحِمَهُ الله دويمه مسئله د اولې مسئلې سره لاحق کړې ده، يعني څرنګه چې په اوله مسئله کې د مقرلهٔ قول معتبر دی همداسې د هغه په نېز په دويمه مسئله کې هم د مقرلهٔ قول معتبر دی. او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اوله مسئله د دويمې مسئلې سره لاحق کړې ده او په دواړو مسئلو کې يې د مقر قول معتبر کړی دی.

مګر د هدايې د عربي شارحينو د کلام او بيان مطابق دلته په عبارت کې څه ګډوډي سوې ده (يعني د امام شافعي او ابو يوسف اقوال سره ګډ سوي دي)، او شايد له کاتب څخه د امام شافعي او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله د قول په ذکر کولو کې سهو سوې وي، کنې صحيح دا ده چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اوله مسئله د دويمې مسئلې سره لاحق کړې ده او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دويمه مسئله د اولې مسئلې سره لاحق کړې ده. (بناية ج: ۷، ص: ۶۰۳، وهكذا في العناية والكفاية).

لېکن څرنګه چې په دواړو مسئلو کې فرق دی او د فرق وجه هم په تفصيل سره اوس ذکر سوه، نو ځکه يوه مسئله د بلې مسئلې سره لاحقول (لکه څرنګه چې امام شافعي او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله وايي) صحيح نه دي.

## له كفيل بالدرك څخه به كله د مستحق شوي مبيع مطالبه كيږي؟

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى جَارِيَةً فرمايي: او څوک چې مينځه رانيسي فَكَفَلَ لَهُ رَجُلٌ بِالدَّرْكِ او يو سړی د هغه مشتري لپاره كفيل بالدرک سي فَاسْتُحِقَّتْ بيا هغه مينځه مستحقه وخيږي لَمْ يَأْخُذِ الْكَفِيلَ حَتّٰى يُقْضٰى لَهُ بِالثَّمَنِ عَلَى الْبَائِعِ نو مشتري له كفيل څخه [ثمن] نه سي اخيستلای تر دې چې [د قاضي له طرفه] د هغه لپاره پر بائع د ثمن فيصله وسي لِأَنَّ بِمُجَرَّدِ الْاِسْتِحْقَاقِ لَا يَنْتَقِضُ الْبَيْعُ عَلٰى ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ مَا لَمْ يُقْضَ لَهُ بِالثَّمَنِ عَلَى الْبَائِعِ ځكه چې د ظاهر روايت مطابق محض په استحقاق سره بيع نه ماتيږي تر څو چې د مشتري لپاره پر بائع د ثمن فيصله نه وسي فَلَمْ يَجِبْ لَهُ عَلَى الْأَصِيْلِ رَدُّ الثَّمَنِ فَلَا يَجِبُ عَلَى الْكَفِيْلِ لهذا [كله چې] پر بائع د ثمن واپس كول واجب نه دي نو پر كفيل به هم واجب نه وي بِخِلَافِ الْقَضَاءِ بِالْحُرِّيَّةِ په خلاف د آزاد والي د فيصلې لِأَنَّ الْبَيْعَ يَبْطُلُ بِهَا ځكه چې د آزاد والي په فيصله سره بيع باطليږي لِعَدَمِ الْمَحَلِّيَّةِ ځكه چې محل معدوم دی [يعني تر آزادېدلو وروسته مينځه د بيع محل نه پاتيږي] فَيَرْجِعُ عَلَى الْبَائِعِ وَالْكَفِيْلِ نو ځكه به مشتري پر بائع او كفيل دواړو رجوع كوي وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ ● أَنَّهُ يَبْطُلُ الْبَيْعُ بِالْاِسْتِحْقَاقِ او [په أمالي كي] له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې د استحقاق په وجه [هم] بيع باطليږي فَعَلٰى قِيَاسِ قَوْلِهِ يَرْجِعُ بِمُجَرَّدِ الْاِسْتِحْقَاقِ نو د هغه پر دغه قول په قياس كولو سره به مشتري محض په استحقاق سره پر كفيل رجوع كوي وَمَوْضِعُهُ أَوَائِلُ الزِّيَادَاتِ فِيْ تَرْتِيْبِ الْأَصْلِ او دا مسئله په اصل ترتيب كي د زيادات په اوله حصه كي ذكر سوې ده.

**اللغات:** ﴿مجرد﴾ محض، خالي، فقط. ﴿لا ينتقض﴾ د افتعال د باب نفي صيغه ده: ماتېدل. ﴿حرية﴾ آزادي، آزاد والی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه مشتري يو مينځه رانيسي او بل سړی هغه ته ووايي "چې ته بې غمه هغه رانيسه!، كه چيري دا مينځه بل چا مستحقه وخيږي نو زه ستا د ثمن كفيل او ضامن يم"، او مشتري د دې كفيل (كفيل بالدرک) پر وينا هغه مينځه رانيسي او بائع ته ثمن وركړي، تر دې وروسته هغه مينځه د بل چا مستحقه وخيږي يعني بل څوک دعوىٰ وكړي چې دا زما مينځه ده او خپله دعوىٰ ثابته كړي او مينځه له مشتري څخه واخلي، نو اوس به مشتري څه كوي؟ فرمايي چې په دې صورت كي حكم دا دی چې تر څو.

---

● القول الراجح: هو ظاهر الرواية، قال صاحب العناية: وإنما قال على ظاهر الرواية احترازاً عما قال أبو يوسف رَحِمَهُ الله في الأمالي (العناية على هامش الفتح ج:۶، ص:۳۳۵)، وكذا في رد المحتار (ج:۴، ص:۳۱۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۰۱]

قاضي پر بائع د ثمن واپس کولو فیصله نه وکړي تر هغه وخته مشتري ته دا اختیار نسته چي له کفیل بالدرک څخه د ثمن مطالبه وکړي؛ ځکه چي د ظاهر روایت مطابق محض د مبیع په استحقاق سره بیع نه فسخ کېږي (نه ماتیږي) بلکې د مبیع تر استحقاق وروسته چي کله قاضي بائع ته د ثمن واپس کولو حکم وکړي (چي ته مشتري ته ثمن واپس کړه!) نو بیا بیع فسخ کیږي. لهذا کله چي پر بائع له فیصلې (قضاء) څخه محکې پر اصیل یعنې پر بائع د ثمن واپس کول واجب نه دي نو د هغه پر کفیل به هم ثمن واپس کول واجب نه وي.

د دې په خلاف که هغه مینځه د خپل مالک (مولی) له طرفه آزاده سي. یا مینځه په خپله د خپل آزادوالي دعوی وکړي او دعوی په بینه سره ثابته کړي او قاضي د هغې د آزادوالي (حریت) فیصله وکړي. نو په دې صورت کي محض د مینځي په آزادوالي سره مشتري ته دا اختیار حاصلیږي چي له کفیل او اصیل (بائع) څخه ثمن واپس واخلي او د قاضي د فیصلې انتظار دي نه کوي (یعني په دې صورت کې به دې ته انتظار نه کیږي چي قاضي پر بائع د ثمن واپس کولو قضاء [فیصله] وکړي بلکې د مینځي د آزادوالي سره سمدستي مشتري ته د واپس اخیستلو اختیار حاصلیږي)؛ ځکه چي په قضاء بالحریت او قضاء بالاستحقاق (یعني د آزادوالي او د استحقاق د فیصلې په صورت) کې فرق دی، ځکه چي د استحقاق والا په صورت کي محض په استحقاق (مستحقه ختلو) سره بیع نه فسخ کیږي، لېکن د حریت او آزادوالي په صورت کي فقط په قضاء بالحریت سره بیع باطلیږي؛ ځکه چي تر آزادوالي وروسته مینځه د بیع محل نه پاتیږي، نو ځکه په دې صورت کي فقط د مینځي په آزادوالي سره سمدستي مشتري ته دا اختیار حاصلیږي چي له کفیل او بائع څخه ثمن واپس واخلي. لېکن د استحقاق والا په صورت کي فقط په استحقاق سره بیع نه فسخ کیږي. بلکې تر استحقاق وروسته (د قاضي له طرفه) پر بائع د ثمن واپس کولو په فیصله سره بیع فسخ کیږي او ختمیږي (او په دې صورت کي به مشتري د فیصلې تر وخته پوري د ثمن واپس اخیستلو په هکله صبر کوي).

وعند أبي یوسف إلخ: فرمایي چي په امالي کي له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا نقل سوی دی چي د استحقاق والا په صورت کي هم محض په استحقاق سره بیع باطلیږي. نو ځکه د هغه د دې روایت مطابق محض په استحقاق سره مشتري ته دا اختیار حاصلیږي چي له بائع او کفیل څخه ثمن واپس واخلي او پر بائع د ثمن د واپس کولو تر فیصلې پوري دي انتظار نه کوي. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي دا روایت د امام محمد رَحِمَهُ الله د ترتیب ور کړل سوي زیادات په اوله حصه کي ذکر سوی دی

**فایده**: امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله چي د کومو مسئلو املاء کوله او د هغوی لپاره یې بابونه مُتعین کول، د هغه مسئلو د مجموعې نوم "امالي" دی کوم چي په حقیقت کي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله تصنیف دی. او د هغې بابونو سره متعلق څه مسئلې امام محمد رَحِمَهُ الله له خپل طرفه ور سره اضافه کړي دي. د هغه مسئلو د مجموعې نوم "زیادات" دی کوم چي په حقیقت کي د امام محمد رَحِمَهُ الله تصنیف دی. امام ابو یوسف رَحِمَهُ

الله چي کله په املاء پېل وکړی. نو د هغه شروع يې په کتاب المأذون سره وکړه. او امام محمد رَحِمَهُ الله هم تبرکاً هغه ترتيب بدل نه کړی. لېکن شيخ زعفراني رَحِمَهُ الله د زيادات ترتيب بدل کړی او پر هغه ترتيب يې زيادات مُرتّب کړی کوم چې اوس زموږ په زمانه کي موجود دی.

نو صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې دا مسئله د زيادات د اصلي ترتيب يعني د امام محمد رَحِمَهُ الله د مُرتّب زيادات په اوله حصه کي ذکر سوې ده. نه د شيخ زعفراني د مُرتّب زيادات.

## د "ضمانِ عهده" بطلان (تفصيلي بيان)

وَمَنِ اشْتَرٰى عَبْدًا او څوک چي يو غلام رانيسي فَضَمِنَ لَهُ رَجُلٌ بِالْعُهْدَةِ بيا د هغه لپاره يو سړی د "عهدة" ضامن سي فَالضَّمَانُ بَاطِلٌ نو [دا] ضمان باطل دی لِأَنَّ هٰذِهِ اللَّفْظَةَ مُشْتَبِهَةٌ ځکه دا لفظ مشتبه دی قَدْ تَقَعُ عَلَى الصَّكِّ الْقَدِيْمِ [ځکه] کله د "عهدة" لفظ د بيع پر پخواني رسيد ويل کيږي وَهُوَ مِلْكُ الْبَائِعِ حالانکي هغه د بائع ملکيت دی فَلَا يَصِحُّ ضَمَانُهُ نو ځکه د هغه ضمان [ضامن کېدل] صحيح نه دي وَقَدْ تَقَعُ عَلَى الْعَقْدِ وَعَلٰى حُقُوقِهِ او کله دا لفظ پر عقد او د هغه پر حقوقو ويل کيږي وَعَلَى الدَّرَكِ وَعَلَى الْخِيَارِ او [کله] پر ضمان بالدرک او [کله] پر خيار [ويل کيږي] وَلِكُلِّ ذٰلِكَ وَجْهٌ او د دې هر يوه لپاره دليل موجود دی فَتَعَذَّرَ الْعَمَلُ بِهَا نو پر هغه عمل کول ناممکن سو بِخِلَافِ الدَّرَكِ په خلاف د "درک" د لفظ لِأَنَّهُ أُسْتُعْمِلَ فِيْ ضَمَانِ الِاسْتِحْقَاقِ عُرْفًا ځکه چي دا لفظ په عرف عام کي د ضمان په استحقاق کي مستعمل دی وَلَوْ ضَمِنَ الْخَلَاصَ او که يو څوک د خلاص [خالص والي] ضامن سي لَا يَصِحُّ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ* نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله دا ضمان صحيح نه دی لِأَنَّهُ عِبَارَةٌ عَنْ تَخْلِيْصِ الْمَبِيْعِ وَتَسْلِيْمِهِ لَا مَحَالَةَ ځکه چي دا ضمان [يعني ضمانِ خلاص] په يقيني توګه د مبيع خالص کولو او ورسپارلو ته وايي وَهُوَ غَيْرُ قَادِرٍ عَلَيْهِ حالانکي کفيل پر دې قادر نه دی وَعِنْدَهُمَا هُوَ بِمَنْزِلَةِ الدَّرَكِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز "خلاص" د "درک" په درجه کي دی وَهُوَ تَسْلِيْمُ الْبَيْعِ أَوْ قِيْمَتِهِ او هغه د مبيع يا د مبيع قيمت ورسپارل دي فَصَحَّ نو ځکه به [دا ضمان] صحيح وي.

* القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، اى يصح، كما ذكر فى الكفاية (ج:۶، ص:۳۳۷) وهكذا فى العناية، وفى رد المختار (ج:۲، ص:۳۰۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۰۰]

**اللغات**: ﴿عهدة﴾ ذمه واري، منصب، د دې لفظ نوري معناوي به په تشريح کي ذکر سي. ﴿صك﴾ د دې معنیٰ مخکې ذکر سوه چي بيع نامه (د بيع رسيد) او د مال اقرارنامه (چک) ته وايي، ثبوتي خط. مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي "عهدة" صک قديم ته وايي، ﴿الصك القديم﴾ د بيع پخواني رسيد، يعني د مخکنی بيع رسيد (د مخکنی بيع اقرارنامه، وثيقه او سند).

**تشريح**: د ضمان درې قسمونه دي، او په دې عبارت کي د ضمان همدا درې قسمونه بيان سوي دي: ① ضمان عهده، ② ضمان درک، ③ ضمان خلاص. په دې دريو کي ضمان عهده د ټولو امامانو په اتفاق سره باطل دی، او ضمان درک بالاتفاق جائز دی، لېکن ضمان خلاص مختلف فيه دی. د ضمان عهده صورت دا دی چي مثلاً يو مشتري غلام رانيسي او بل سړی مشتري ته ووايي "چي زه ستا لپاره د "عهدې" ضامن يم"، نو دا صورت باطل دی، د دې ضمان د باطلېدلو وجه دا ده چي د "عهده" لفظ څو معناوي لري يعني په ډيرو معناوو کي مستعمل دی، او د هري معنیٰ مستقل دليل دی، لهذا تر څو چي کفيل او ضامن د هغه پوره وضاحت نه وکړي (چي زما مراد په "عهده" سره دا دی)، تر هغه وخته په دې لفظ سره ضمان او کفاله نه منعقد کيږي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د مثال په توګه د "عهدة" څو معناوي بيان کړي دي: ① "عهدة" پخواني رسيد (دستاويز) ته هم ويل کيږي، د دې معنیٰ دليل دا دی چي څرنګه کتاب العهد يعني د وعدې خط وثيقه ده، همداسي "صک قديم" يعني پخواني رسيد هم وثيقه ده (وثيقه اقرار نامه او مضبوط ليک ته وايي چي په هغه سره معامله پخه او مضبوطه کړی سي)، او په همدې مناسبت سره صک قديم ته "عهدة" وايي، او د دې معنیٰ په صورت کي په دې وجه ضمان باطل او ناجائز دی چي صک قديم (پخواني رسيد) د بائع ملکيت دی، او د بائع ملکيت پر هغه نه مضمون کيږي (يعني پر بائع د خپل ملکيت ضمان نه لازميږي)، لهذا کله چي دا شی په خپله پر اصيل (بائع) نه مضمون کيږي نو پر کفيل به څنګه مضمون سي، لنډه دا چي په دې معنیٰ سره "عهدة" غير مضمون دی (يعني ضمان يې نه لازميږي)، او د غير مضمون شي ضامن کېدل او کفيل کېدل صحيح نه دي، نو ځکه به د "عهدة" لفظ په دې معنیٰ سره استعمالول او د هغه ضامن کېدل صحيح نه وي. ② "عهدة" عقد ته هم ويل کيږي، او د دې دليل دا دی چي لفظ د عهدة له "عهد" څخه مشتق او ماخوذ دی، او عهد او عقد دواړه په يوه معنیٰ سره دي (ځکه د دواړو معنیٰ ده: تړون او معاهده) او څرنګه چي د عقد حقوق د عقد له ثمراتو څخه دي، نو ځکه د "عهدة" لفظ "حقوق" ته هم ويل کيږي. ③ او پر خيار شرط هم د دې

لفظ اطلاق کیږي، لکه څرنګه چې په دې حدیث "عُهْدَةُ الرَّقِيْقِ ثَلَاثَةُ أَيَّام" کې د "عهدة" لفظ د خیار شرط په معنیٰ سره دی (د حدیث ترجمه ده: د غلام خیار شرط درې ورځې دی)، او ګورئ! دلته له "عهدة" څخه خیار شرط مراد دی.

خلاصه دا چې دا لفظ په ډیرو معناګانو کې مستعمل دی، او په هره معنیٰ کې یې استعمالول جائز دي، نو څکه تر څو چې کفیل د یوې معنیٰ وضاحت نه وکړي (چې زما دا معنیٰ مراد ده) تر هغه وخته په دې لفظ سره کفاله صحیح نه ده، څکه تر څو چې کفیل خپل مراد بیان نه کړي نو پر دې لفظ عمل کول ناممکن دي.

(۲)... د دې په خلاف د ضمان بالدرک کفاله صحیح او جائز ده، څکه د "درک" لفظ که څه هم د څو معناګانو لپاره استعمالیږي، لیکن په عرف عام کې هغه فقط "د استحقاق د ضمان" لپاره مستعمل دی یعني له هغه څخه په عرف کې فقط همدا معنیٰ مراد ده "چې که مبیع مستحق وخیږي نو کفیل به د مشتري لپاره د ثمن ضامن وي"، لهٰذا کله چې په عرف عام کې د هغه مصداق او مطلب مُتعیّن دی او په ډیرو معناګانو کې مستعمل نه دی، نو څکه پر هغه عمل کول ممکن دی، او کله چې پر هغه عمل کول ممکن دي، نو څکه په دې لفظ سره ضمان او کفاله صحیح ده.

(۳)... ولوضمن إلخ: له دې ځایه د ضمان دریم قسم بیانوي کوم چې د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله په مینځ کې مختلف فیه دی، چې هغه ته "ضمان خلاص" وایي، د هغه صورت دا دی چې کفیل (ضامن) مشتري ته داسې ووایي "زه د دې ضامن او ذمه واریم چې مبیع به تا ته له استحقاق او داسې نورو خرابیو څخه خالص سپارم"، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا ضمان صحیح نه دی؛ څکه دلته چې کفیل د کوم شي ضامن کیږي "یعني مبیع خالص ورسپارل" هغه په یقیني توګه پر دې قادر نه دی؛ څکه کیدای سي چې مبیع د بل چا مستحق وخیږي یعني بل څوک د هغه د استحقاق دعویٰ کوي او هغه واخلي، ښکاره خبره ده چې په دې صورت کې کفیل د هغه مبیع پر ورسپارلو قادر نه دی. او د داسې ضمان صحیح نه دی چې د هغه ورسپارل د کفیل په وس او قدرت کې نه وي، نو څکه دا ضمان باطل دی.

لیکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا ضمان صحیح دی؛ د صاحبینو دلیل دا دی چې ضمان خلاص د ضمان درک په درجه کې دی، یعني ګواکې کفیل مشتري ته داسې ووېل "که زه د خالص مبیع پر سپارلو نادرم سوم نو مبیع در ته سپارم، او که د مبیع پر سپارلو قادر نه سوم نو د هغه د ثمن ضامن یم"، او داسې ضمان (ضمان درک) بالاتفاق صحیح دی، نو څکه ضمان خلاص به هم صحیح او جائز وي.



# بَابُ كَفَالَةِ الرَّجُلَيْنِ

(دا) باب د دوو خلګو د کفالت (په بیان کې) دی

**تشریح:** مخکې تر دې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله دیوه سړي د کفالت احکام او مسائل بیان کړل، اوس له دې ځایه د دوو خلګو د کفالت (کفیل کېدلو) مسائل بیانوي، او څرنګه چې "یو" مفرد دی او "دوه" مرکب دي، او مفرد له مرکب څخه مخکې وي، نو ځکه یې کفالةُ الرجل له کفالةُ الرجلین. څخه وروسته ذکر کړې ده. (بنایه ج:۷، ص:۶۰۷)

## که دوه مقروضه (پور وړي) خلګ یو د بل کفیل سي (حکم او تفصیل)

وَإِذَا كَانَ الدَّيْنُ عَلَى اثْنَيْنِ وَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَفِيلٌ عَنْ صَاحِبِهِ او که چیري قرض پر دوو خلګو وي او له هغوی څخه هریو د خپل ملګري له طرفه کفیل وي كَمَا إِذَا اشْتَرَيَا عَبْدًا بِأَلْفِ دِرْهَمٍ مثلاً دوه خلګ [په ګډه] د زرو درهمو په عوض کي یو غلام رانیسي وَكَفَلَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَنْ صَاحِبِهِ او له هغوی څخه هر یو د خپل ملګري له طرفه کفیل سي فَمَا أَدَّى أَحَدُهُمَا نو په هغوی کي چي کوم یو څه ثمن اداء کړي لَمْ يَرْجِعْ عَلَى شَرِيكِهِ نو هغه له خپل شریک ملګري څخه واپس نه سي اخیستلای حَتَّى يَزِيدَ مَا يُؤَدِّيهِ عَلَى النِّصْفِ تر دې چي اداء کړی سوی مقدار له نصف څخه زیات سي فَيَرْجِعُ بِالزِّيَادَةِ نو هغه به زیاتوب [زائد مقدار] واپس اخلي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي النِّصْفِ أَصِيلٌ وَفِي النِّصْفِ الْآخَرِ كَفِيلٌ ځکه چي له هغوی څخه هر یو په یوه نصف کي اصیل دی او په بل نصف کي کفیل دی وَلَا مُعَارَضَةَ بَيْنَ مَا عَلَيْهِ بِحَقِّ الْأَصَالَةِ وَبِحَقِّ الْكَفَالَةِ او په هغه نصف کي کوم چي پر هریوه د اصالت په حق سره [واجب] دی او په هغه نصف کي کوم چي پر هغه د کفالت په حق سره [واجب] دی هیڅ معارضه نسته [یعني په "بحق الاصالة" او "بحق الكفالة" سره په واجب مال کي هیڅ منافات او اختلاف نسته] لِأَنَّ الْأَوَّلَ دَيْنٌ وَالثَّانِيَ مُطَالَبَةٌ ځکه چي اول [یعني بحق الاصالة والا نصف] دین دی او دویم [بحق الکفالة والا نصف] مطالبه دی [ځکه چي کفاله پر ځان د مطالبي لازمولو ته وايي] ثُمَّ هُوَ تَابِعٌ لِلْأَوَّلِ

بیا دویم د اول تابع دی فَيَقَعُ عَنِ الْأَوَّلِ نو ځکه اداء کړی سوی مال به د اول له طرفه واقع کیږي وَفِي الزِّيَادَةِ لَا مُعَارَضَةَ او په زیاتوب کي [یعني له نصف څخه په زائد مقدار کي] هیڅ معارضه نسته فَيَقَعُ عَنِ الْكَفَالَةِ نو ځکه هغه به له کفالې څخه واقع کیږي وَلِأَنَّهُ لَوْ وَقَعَ فِي النِّصْفِ عَنْ صَاحِبِهِ او ځکه که په نصف کي د هغه د ملګري [شریک] له طرفه واقع سي فَيَرْجِعُ عَلَيْهِ او ملګری له هغه څخه [نصف مال] واپس واخلي فَلِصَاحِبِهِ أَنْ يَرْجِعَ نو د هغه ملګري [دویم شریک] ته به هم د واپس اخیستلو اختیار وي لِأَنَّ أَدَاءَ نَائِبِهِ كَأَدَائِهِ ځکه چي د نائب اداء کول داسي دي لکه په خپله د هغه [اصیل] اداء کول فَيُؤَدِّيْ إِلَى الدَّوْرِ نو ځکه دا به د دور [تسلسل] سبب وګرځي. [یعني دا سلسله به همداسي روانه وي. دریږي به نه. او تسلسل فضول او باطل دي].

**اللغات:** ﴿الأَصَالَة﴾ اصلي کېدل، اصیل کېدل. ﴿دَوْر﴾ مراد ځني تسلسل دی. د تسلسل معنیٰ ده: پرلپسې والي، جاري پاتېدل (روان والی). یعني یو شی ختمېدل او په هغه پسي متصل هغه شی رانلل او دا سلسله همداسي په لامتناهي توګه روانه پاتېدل او نه درېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که قرض پر دوو خلګو باندي وي، مثلاً دوه خلک په ګډه یو غلام د زرو درهمو په عوض کي له خالد څخه په قرض رانیسي، نو دا زر درهمه پر دواړو قرض دی. اوس که غلام رانیولو وروسته په دوی کي هر یو د خپل شریک له طرفه کفیل سي (یعني هر یو د بل کفیل سي)، نو په دې صورت کي چي کوم یو هم د خپل شریک له طرفه د هغه بائع (خالد) ته څه دراهم اداء کړي نو هغه (اداء کونکي شریک) ته دا اختیار نسته چي له خپل شریک څخه هغه دراهم واپس واخلي ها! که چیري دیوه شریک له طرفه اداء کړی سوي دراهم له نصف یعني له پنځه سوو څخه زیات سي نو په دې صورت کي اداء کونکی شریک ته د زائد دراهمو د واپس اخیستلو اختیار سته؛ دلیل دا دی چي په دې دواړو شریکانو کي هر یو په نصف یعني په پنځو سوو کي کفیل دی او په پنځو سوو کي اصیل (مکفول عنه) دی. په بله وینا دا چي په دوی کي پر هر یوه پنځه سوه درهمه د اصالت په حق سره (یعني د اصیل والي په وجه) پر واجب دي او پنځه سوه درهمه د کفالت په حق سره (یعني د کفیل والي په وجه) پر واجب دي. او بحق اصالت او بحق کفالت سره په واجب سوو دراهمو کي هیڅ منافات او معارضه نسته: ځکه کوم دراهم چي د اصالت په حق سره واجب دي هغه اقویٰ دي، ځکه هغه قرض (دین) دي. او د هغوی په مقابله کي چي کوم دراهم د کفالت په حق سره واجب دي هغه د مطالبې دي او اضعف دي. او دا خبره تسلیم سوې ده چي د اقویٰ او اضعف په مینځ کي هیڅ منافات نسته.

يا دا خبره داسي هم کېداى سي چي کوم دراهم "بحق اصالت" واجب دي هغه د قرض والي (دَين کېدلو) په وجه متبوع دي او کوم دراهم چي "بحق کفالت" واجب دي هغه د قرض د مطالبې په وجه تابع دي، او متبوع له تابع څخه اقوىٰ وي، نو په دې وجه هم د اصالت په حق سره واجب سوي دراهم له هغه دراهمو څخه اقوىٰ دي کوم چي د کفالت په حق سره واجب دي. اوس که له دې دوو شريکانو څخه يو د خپل ملګري شريک له طرفه څه دراهم اداء کړي نو هغه اداء کړل سوي دراهم به د اقوىٰ "بحق اصالت" يعني د قرض (دَين) وطرف ته ګرځول کيږي، لهذا د قرض په مقدار کي (يعني په پنځه سوه درهمو کي) به اداء کونکي شريک ته د واپس اخيستلو اختيار نه وي لېکن کله چي د هغه اداء کړل سوي دراهم د قرض له مقدار يعني له پنځو سوو څخه تجاوز وکړي نو هغه به په "بحق کفالت" کي شمارل کيږي، او تاسو ته معلومه چي کفيل ته دا اختيار سته چي له مکفول عنه څخه اداء کړى سوى مال واپس واخلي، نو ځکه د قرض له مقدار څخه په زائد اداء کړل سوو دراهمو کي به هم هغه ته له خپل شريک څخه د واپس اخيستلو اختيار وي (ځکه چي له نصف څخه زائد دراهم د کفالت [کفيل کېدلو] په حق سره واجب دي).

ولأنه لو وقع إلخ: له دې ځايه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د پورتنى مسئلې دويم دليل ذکر کړى دى، حاصل يې دا دى که د دويم شريک له طرفه د نصف قرض اداء کولو په صورت کي اداء کونکي شريک ته دا اختيار ورکول سي چي له هغه (دويم شريک) څخه نصف مالَ واپس واخلي نو په دې سره به تسلسل لازم سي، او تسلسل باطل دى، نو ځکه د واپس اخيستلو اختيار ورکول به هم باطل وي، او په دې مسئله کي په دې توګه تسلسل لازميږي چي اداء کونکى شريک به دويم شريک ته ووايي چي ما نصف قرض د کفيل والي په وجه اداء کړى دى نو ځکه ته! ما ته د هغه په بدله کي نصف مال (پنځه سوه دراهم) واپس راکړه!، نو دويم شريک به هغه ته نصف مال (پنځه سوه دراهم) واپس ورکړي، بيا به دويم شريک هغه ته ووايي چي ته! د قرض په اداء کولو زما نائب وې، او د نائب اداء کول په حقيقت کي د اصيل اداء کول دي، لهذا ستا اداء کول په حقيقت کي زما اداء کول سو (يعني ستا اداء کول داسي سو لکه ما [دويم شريک] چي قرض اداء کړى) او که چيري دويم شريک د اول شريک له طرفه قرض اداء کړي نو نهکاره خبره ده چي هغه ته د واپس اخيستلو اختيار سته، نو ځکه دويم شريک به له اول شريک څخه هغه نصف مال واپس واخلي کوم چي دويم شريک هغه ته ورکړى وو. او ځرنګه چي اول شريک هم د دويم شريک نائب دى (ځکه چي هغه هم په نصف قرض کي کفيل دى)، نو ځکه هغه به هم د دويم شريک په څېر تقرير او خبره وکړي چي ته! خو د قرض په اداء کولو کي زما نائب وې، لهذا ستا اداء کول په حقيقت کي زما اداء کول سو، او کله چي ما اداء کړى دى او زه ستا کفيل يم نو ځکه ما ته هغه نصف

مال واپس راکړه!، نو په دې توګه به اول شريک له دويم شريک څخه دويم وار بيا نصف مال واخلي، او تر دې وروسته به بيا دويم شريک د مخکې په څېر تقرير وکړي او هغه به يې هم دويم وار بيا له اول شريک څخه واخلي، تر دې وروسته به بيا اول شريک د مخکي په څېر تقرير وکړي او دريم وار به يې له دويم شريک څخه واخلي تر دې چې دا سلسله به همداسې روانه وي او تسلسل به لازم سي، او تسلسل باطل دی، نو ځکه د نصف د اداء کولو په صورت کې به د واپس اخيستلو اختيار هم باطل وي، او څرنګه چې له نصف څخه په زائد مقدار کې دا خرابي نه پيښيږي، نو ځکه د زائد مقدار د واپس اخيستلو اختيار به هغه (اداء کونکي شريک) ته حاصل وي.

## که دوه کفيلان يو د بل کفيل سي (حکم او تفصيل)

وَإِذَا كَفَلَ رَجُلَانِ عَنْ رَجُلٍ بِمَالٍ عَلَىٰ أَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَفِيلٌ عَنْ صَاحِبِهِ او کله چې دوه خلګ د يوه سړي له طرفه د مال کفيلان سي پر دې شرط چې له هغه دواړو څخه هر يو د خپل ملګري له طرفه کفيل وي فَكُلُّ شَيْءٍ أَدَّاهُ أَحَدُهُمَا نو کوم شی [مقدار] چې له هغه دواړو څخه يو اداء کړي رَجَعَ عَلَىٰ شَرِيكِهِ بِنِصْفِهِ نو د هغه نصف به له خپل ملګري څخه واپس اخلي قَلِيلًا كَانَ أَوْ كَثِيرًا برابره ده هغه لږ وي او که ډېر وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ فِي الصَّحِيحِ أَنْ يَكُونَ الْكَفَالَةُ بِالْكُلِّ عَنِ الْأَصِيلِ وَبِالْكُلِّ عَنِ الشَّرِيكِ او د صحيح قول مطابق د دې مسئلې مطلب دا دی چې د ټوله مال کفاله د اصيل له طرفه هم وي او د ټوله مال کفاله د شريک له طرفه هم وي وَالْمُطَالَبَةُ مُتَعَدِّدَةٌ او مطالبه متعدده ده [يعني مطالبې له يوه څخه زياتې دي] فَيَجْتَمِعُ الْكَفَالَتَانِ نو ځکه دوې کفالې به جمع سي عَلَىٰ مَا مَرَّ لکه [مخکي] چې تېر سو وَمُوجَبُهَا الْتِزَامُ الْمُطَالَبَةِ او د کفالې مُوجب "د مطالبې لازمول" دي فَتَصِحُّ الْكَفَالَةُ عَنِ الْكَفِيلِ كَمَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ عَنِ الْأَصِيلِ نو ځکه د کفيل له طرفه به کفيل کېدل [داسې] صحيح وي لکه څرنګه چې د اصيل [مکفول عنه] له طرفه کفيل کېدل صحيح دي وَكَمَا تَصِحُّ الْحَوَالَةُ مِنَ الْمُحْتَالِ عَلَيْهِ او لکه څرنګه چې د محتال عليه له طرفه حواله کول صحيح دي وَإِذَا عُرِفَ هٰذَا فَمَا أَدَّاهُ أَحَدُهُمَا او کله چې دا معلومه سوه نو په هغوی دواړو کې چې يو کوم څه اداء کړي وَقَعَ شَائِعًا عَنْهُمَا هغه به د دواړو له طرفه په مشترکه توګه واقع کيږي [اداء کيږي] إِذِ الْكُلُّ كَفَالَةٌ ځکه چې ټوله کفاله ده [يعني کفاله د ګل مال ده] فَلَا تَرْجِيحَ لِلْبَعْضِ عَلَى الْبَعْضِ نو ځکه بعض ته به پر بعضو ترجيح نه وي بِخِلَافِ مَا

تَقَدَّمَ په خلاف د مخکنۍ مسئلې فَيَرْجِعُ عَلٰى شَرِيْكِهِ بِنِصْفِهِ نو ځکه اداء کونکي کفیل به له خپل ملګري څخه نصف واپس اخلي وَلَا يُؤَدِّيْ إِلَى الدَّوْرِ او دا د تسلسل سبب هم نه ګرځي لِأَنَّ قَضِيَّتَهُ الِاسْتِوَاءُ ځکه چې د دې تقاضا برابري [مساوات] دی وَقَدْ حَصَلَ بِرُجُوْعِ أَحَدِهِمَا بِنِصْفِ مَا أَدّٰى او دا برابري [مساوات] د اداء کړی سوي مال د نصف په واپس اخیستلو سره حاصلیږي فَلَا يَنْقُضُ بِرُجُوْعِ الْآخَرِ عَلَيْهِ نو ځکه پر هغه به د بل یوه [دویم کفیل] په رجوع کولو سره برابري نه ختمیږي بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د مخکنۍ مسئلې ثُمَّ يَرْجِعَانِ عَلَى الْأَصِيْلِ بیا به دواړه کفیلان له اصیل څخه [اداء کړی سوی مال] واپس اخلي [یعني دواړو ته له اصیل (مکفول عنه) څخه د واپس اخیستلو اختیار سته] لِأَنَّهُمَا أَدَّيَا عَنْهُ أَحَدُهُمَا بِنَفْسِهِ وَالْآخَرُ بِنَائِبِهِ ځکه چې په هغوی دواړو کې یوه د اصیل له طرفه بذات خود اداء کړی دی او بل د نائب په ذریعه اداء کړی دی وَإِنْ شَاءَ رَجَعَ بِالْجَمِيْعِ عَلَى الْمَكْفُوْلِ عَنْهُ او که [اداء کونکی کفیل] وغواړي نو ټوله اداء کړی سوی مال دي له مکفول عنه څخه واپس واخلي لِأَنَّهُ كَفَلَ بِجَمِيْعِ الْمَالِ عَنْهُ بِأَمْرِهِ ځکه چې هغه د مکفول عنه له طرفه د هغه په حکم سره د ټوله مال کفیل سوی دی.

**اللغات:** ﴿کفل﴾ د نصر ماضي ده: کفیل کېدل، کفیل جوړېدل. ﴿مُوجَب﴾ د افعال مفعول دی: نتیجه، اثر، تقاضا. ﴿محتال علیه﴾ پر کوم چا چي قرض حواله کړی سوی وي. ﴿شائع﴾ د ضرب فاعل دی: غوړېدلی، خپور، مشترک. ﴿قضية﴾ تقاضا، مقتضا. ﴿استواء﴾ د استفعال مصدر دی: برابري، برابر والی. ﴿لا ینقض﴾ د نصر د باب نفي صیغه ده: ماتېدل. ﴿مکفول عنه﴾ د چا له طرفه چي یو څوک کفیل سوی وي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که دوه خلک د یوه سړي له طرفه پر دې شرط د هغه د قرض کفیلان سي چي په هغوی کي هر یو د بل یوه له طرفه هم کفیل وي (مثلاً د خالد پر زید سل درهمه بانديې وي. بیا دوه خلک مثلاً عمر او حامد هغه ته ووایي: چي موږ دواړه د زید د قرض کفیلان یو او په موږ کي هر یو د بل یوه هم کفیل او ضامن دی. لهذا ته مکفول لهٗ (خالد) بې غمه وسه!). نو په دې صورت کي چي له دې دواړو کفیلانو څخه کوم یو د مکفول عنه (زید) له طرفه څه قرض اداء کړي. نو هغه ته دا اختیار او اجازه سته چي له خپل ملګري څخه د ټوله قرض نصف (مثلاً په پورتني مثال کي پنځوس درهمه) واپس

واخلي، برابره ده هغه لږ قرض اداء کړی وي او که زیات. په دواړو صورتونو کي هغه ته له خپل ملګري شریک څخه د نصف اخیستلو اختیار سته.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي د صحیح قول مطابق د دغه مسئلې مطلب دا دی چي له دې کفیلانو څخه هر یو د مکفول عنه له طرفه هم د پوره مال (قرض) کفیل سوی دی او د خپل ملګري شریک له طرفه هم د ټوله مال کفیل سوی دی، او مطالبې هم له یوې څخه زیاتي دي، په دې توګه چي دواړو کفیلانو یو د مکفول لهٗ (خالد) لپاره پر ځان مطالبه لازمه کړې ده او بل یې د خپل ملګري لپاره مطالبه پر ځان لازمه کړې ده، نو ځکه د هر کفیل په حق کي دوې کفالې جمع سوې: ① کفاله عن الأصیل (مکفول عنه) ② کفاله عن الکفیل. او څرنګه چي د کفالې مُوجب او معنیٰ "پر خپل ځان مطالبه لازمول" دي (او د مکفول لهٗ لپاره پر کفیل هم مطالبه لازمه وي لکه څرنګه چي پر اصیل لازمه وي). نو ځکه څرنګه چي د اصیل (مکفول عنه) له طرفه کفیل کېدل صحیح دي همداسي به د خپل ملګري کفیل له طرفه هم کفیل کېدل صحیح وي، او څرنګه چي محتال علیه کوم قرض پر ځان لازم کړی وي هغه قرض پر بل چا حواله کول صحیح دي (یعني که بل څوک د محتال علیه له طرفه هغه قرض پر خپله غاړه واخلي. نو دا صحیح دي)، همداسي به د خپل ملګري کفیل (دوېم کفیل) له طرفه کفیل کېدل هم صحیح وي، لنډه دا چي کله دا معلومه سوه چي دواړه کفالې صحیح دي یعني له دواړو کفیلانو څخه هر یو د اصیل له طرفه هم د ټوله مال کفیل دی او د خپل ملګري (دوېم کفیل) له طرفه هم د ټوله مال کفیل دی، نو ښکاره خبره ده چي له دې دواړو کفیلانو څخه چي یو کفیل څومره قرض هم اداء کړي هغه به په مشترکه توګه د دواړو له طرفه واقع کیږي (اداء کیږي)، مثلاً که یو کفیل ټوله قرض (سل درهمه) اداء کړي نو دا قرض (سل درهمه) به د دواړو کفیلانو له طرفه اداء کیږي، یعني دا به ویل کیږي چي دغه اداء کونکي کفیل نصف قرض (پنځوس درهمه) د کفاله عن الاصیل په وجه اداء کړی دی او نصف قرض یې د کفاله عن الکفیل په وجه اداء کړی دی.

او د دې دلیل دا دی چي دلته د ټوله قرض کفاله ده، نو ځکه د کفاله عن الاصیل والا قرض هم "بحق کفالت" (د کفالې په حق سره) واجب دی او د کفاله عن الکفیل والا قرض هم "بحق کفالت" واجب دی، د دې په خلاف د تېر عبارت په مسئله کي نصف قرض "بحق اصالت" واجب دی او نصف قرض "بحق کفالت" واجب دی، نو ځکه هلته د واپس اخیستلو د اختیار په صورت کي دور او تسلسل لازمیږي، لیکن دلته چي کوم صورت دی هغه د تېر عبارت د مسئلې برعکس دی؛ ځکه دلته دواړه نصفونه "بحق کفالت" واجب دي، نو ځکه یوه ته به پر بل هیڅ ترجیح نه وي (چي یو اقویٰ دی او بل اضعف دی)، او کله چي یوه ته پر بل هیڅ ترجیح نسته، نو اداء کړی سوی مال (قرض) به د

دواړو كفيلانو له طرفه اداء كيږي، مطلب دا چي نصف د اداء كونكي شريک له طرفه اداء سو او نصف د هغه د ملګري له طرفه اداء سو. او ښکاره خبره ده چي كله دلته اداء كونكي شريک د خپل ملګري له طرفه هم مال اداء كړى دى، نو ځكه هغه ته به له خپل ملګري څخه د نصف مال د واپس اخيستلو اختيار وي، او دلته دور او تسلسل هم نه لازميږي؛ ځكه چي دلته د ټوله مال كفالة ده (يعني دواړه كفيلان د مكفول عنه له طرفه هم د ټوله قرض كفيلان دي او دوى دواړه يو د بل له طرفه هم د ټوله قرض كفيل دى). او د ټوله مال كفالة د دې خبري تقاضا كوي چي د دواړو كفيلانو حالت برابر او مساوي پاته سي، او مساوات (برابري) هغه وخت پاتيږي كله چي اداء كونكى كفيل له خپل ملګري "دويم كفيل" څخه نصف مال واپس واخلي (يعني مساوات هغه وخت حاصليږي كله چي يو كفيل ټوله سل درهمه اداء كړي او بيا هغه له خپل ملګري (دويم كفيل) څخه نصف مال يعني پنځوس درهمه واپس واخلي)، نو ځكه به هغه له دويم كفيل څخه نصف مال واپس اخلي، اوس كه چيري دغه دويم كفيل ته (چي له هغه څخه نصف مال واپس واخيستل سو) دا اختيار وركول سي چي له اول كفيل (اداء كونكي كفيل) څخه نصف مال واپس واخلي نو مساوات به ختم سي، لهذا د مساوات د پاتېدلو او ثابتېدلو لپاره به دويم كفيل ته د واپس اخيستلو اختيار نه وركول كيږي، او كله چي هغه ته د واپس اخيستلو اختيار نسته، نو دور يعني تسلسل به هم لازم نه سي.

د دې په خلاف د تېر عبارت په مسئله كي چي څرنګه هر شريک ټوله مال د كفالت په حكم سره (بحق كفالت) پر ځان نه دى لازم كړى، بلكي نصف مال يې د شراء (غلام رانيولو) په وجه "بحق اصالت" پر ځان لازم كړى دى او نصف يې "بحق كفالت" پر ځان لازم كړى دى، نو ځكه كه هلته اداء كړى سوى نصف مال "بحق كفالت" وګرځول سي او شريک ملګري ته د واپس اخيستلو اختيار وركول سي، نو ښکاره خبره ده چي په واپس اخيستلو كي به تسلسل لازم سي (لكه د دې پوره تفصيل چي د تېر عبارت په مسئله كي ذكر سو)، لېكن دلته په دې مسئله كي تسلسل نه لازميږي، نو ځكه دلته اداء كونكي كفيل ته له دويم كفيل څخه د واپس اخيستلو اختيار وركول سوى دى.

ثم يرجعان إلخ: فرمايي تر دې وروسته دواړه كفيلانو ته دا اختيار سته چي له خپل اصيل يعني له مكفول عنه (زيد) څخه اداء كړى سوى مال واپس واخلي؛ ځكه چي دوى دواړه د هغه په حكم سره كفيلان سوي دي، او كه څه هم په دوى كي فقط يوه كفيل ټوله مال اداء كړى دى، خو څرنګه چي هغه د نائب په توګه نصف مال د خپل ملګري يعني د دويم كفيل له طرفه اداء كړى دى، او د نائب اداء كول داسي دي لكه په خپله چي هغه (دويم كفيل) اداء كړى وي، نو ځكه دواړو ته به له مكفول عنه څخه د اداء كړى سوى مال د واپس اخيستلو حق او اختيار وي.

او که چیرې د اداء کونکي کفیل خوښه وي نو هغه دې ټوله اداء کړی سوی مال له مکفول عنه څخه واپس واخلي؛ ځکه چې دا کفاله د ټوله مال ده او هغه ټوله مال اداء کړی دی. لهذا څرنګه چې د مکفول عنه مقصد په یو کفیل سره حاصل سوی دی (یعني یوه کفیل د هغه ټوله قرض اداء کړی دی)، نو ځکه یوه کفیل ته د ټوله مال په ورکولو کې به د مکفول عنه لپاره هیڅ ممانعت او خنډ نه وي.

## له دواړو کفیلانو څخه یو بري کول (حکم)

قَالَ: وَإِذَا أَبْرَأَ رَبُّ الْمَالِ أَحَدَهُمَا فرمايي: او کله چې ربُ المال له دواړو کفیلانو څخه یو بري کړي أَخَذَ الْآخَرَ بِالْجَمِيعِ نو هغه له دویم کفیل څخه ټوله مال اخیستلای سي لِأَنَّ إِبْرَاءَ الْكَفِيلِ لَا يُوجِبُ بَرَاءَةَ الْأَصِيلِ ځکه چې د کفیل بري کول د اصیل بري کېدل نه واجبوي فَبَقِيَ الْمَالُ كُلُّهُ عَلَى الْأَصِيلِ نو ځکه ټوله مال پر اصیل باقي پاته سو وَالْآخَرُ كَفِيلٌ عَنْهُ بِكُلِّهِ او دویم کفیل د هغه له طرفه د ټوله مال کفیل دی عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکې] چې دا موږ بیان کړه وَلِهَذَا يَأْخُذُهُ بِهِ نو په همدې وجه ربُ المال کفیل په ټوله مال سره نیولای سي [یعني ټوله مال واپس ځني اخیستلای سي].

**اللغات:** ﴿ابراء﴾ د افعال د باب مصدر دی: بري کول.

**تشریح: صورت د مسئلې؛** دا دی که دوه خلک د یوه سړي (زید) له طرفه د ټوله قرض کفیلان سي او هغوی دواړه په خپل منځ کې هم یو د بل له طرفه کفیل سي، لېکن بیا ربُ المال یعني مکفول لهٗ د هغوی څخه یو کفیل بري کړي، نو په دې صورت کې مکفول لهٗ ته د دویم کفیل څخه د ټوله قرض د واپس اخیستلو اختیار حاصلېږي؛ ځکه چې د کفیل په بري کېدلو سره مکفول عنه (زید) نه بري کېږي، او کله چې مکفول عنه (زید) بري نه سو نو پر هغه ټوله قرض باقي پاته سو، او دویم کفیل د هغه له طرفه د ټوله قرض کفیل دی (لکه د مسئلې په صورت کې چې موږ ذکر کړه. ځکه په تېر عبارت کې ذکر سوه چې له دې څخه مراد ټوله قرض دی). لهذا کله چې پر مکفول عنه ټوله قرض پاته دی او دویم کفیل د هغه له طرفه د ټوله قرض کفیل دی، نو ځکه مکفول لهٗ د دویم کفیل څخه د ټوله قرض مطالبه کولای سي.

## د شرکت مفاوضه تعارف او حکم

قَالَ: وَإِذَا افْتَرَقَ الْمُتَفَاوِضَانِ فرمايي: او کله چې د شرکت مفاوضه دواړه شریکان سره جلا سي فَلِأَصْحَابِ الدُّيُونِ أَنْ يَأْخُذُوا أَيَّهُمَا شَاءُوا بِجَمِيعِ الدَّيْنِ نو د قرض مالکانو ته اختیار دی چې په هغه دواړو کې له هر یوه څخه د هغو خوښه وي ټوله قرض واخلي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَفِيلٌ عَنْ صَاحِبِهِ

ځکه چي له هغه دواړو [شریکانو] څخه هر یو د خپل ملګري له طرفه کفیل دی عَلٰى مَا عُرِفَ فِي الشَّرِكَةِ لکه په کتاب الشرکة کي چي معلومه سوه وَلَا يَرْجِعُ أَحَدُهُمَا عَلٰى صَاحِبِهٖ حَتّٰى يُؤَدِّيَ أَكْثَرَ مِنَ النِّصْفِ او په هغوی دواړو کي به یو پر خپل ملګري رجوع نه کوي تر دې چي له نصف څخه زيات اداء کړي لِمَا مَرَّ مِنَ الْوَجْهَيْنِ فِي كَفَالَةِ الرَّجُلَيْنِ د هغه دوو دليلونو په وجه کوم چي [څه مخکي] په "کفالة الرجلين" کي تېر سو.

**اللغات:** ﴿افترق﴾ د افتعال ماضي ده: جلا کېدل، بېلېدل. ﴿متفاوضان﴾ د تفاعل د باب تثنيه اسم فاعل دی: شرکت مفاوضه کونکي، د شرکت مفاوضه دواړه شریکان. ﴿أصحاب﴾ جمع د صَاحِبٌ ده: خاوندان، مراد څني د قرض مالکان دي (چي هغه ته په بله ژبه قرضخواهان هم وايي). ﴿ديون﴾ قرضونه (پورونه، قرضې).

**تشریح:** "شرکت مفاوضه" داسي کاروبار ته وايي چي په هغه کي دوه خلک سره شریکان وي او دواړه د مال، عقل او دين په اعتبار سره برابر وي. شرکت مفاوضه وکالت او کفالت دواړه لره متضمن (شامل) دی، يعني له دواړو شريکانو څخه هر شريک د خپل شريک له طرفه وکيل هم دی او کفيل هم دی.

**وجه تسميه:** مفاوضه له "تفويض" څخه مشتق دی او د "تفويض" معنیٰ ده: ورسپارل. څرنګه چي په دې عقد کي هر شريک خپل شريک ته تصرف ور سپارلی وي، نو ځکه داسي عقد او کاروبار په "مفاوضه" سره نومول سوی دی.

**صورت د مسئلي:** دا دی که د شرکت مفاوضه له دواړو شريکانو څخه هر يو له بل څخه جلا سي يعني شرکت مفاوضه ختم کړي، او پر د دواړو د خلکو قرضونه باندي وي، نو په دې صورت کي د قرض مالکانو (قرضخواهانو) ته اختيار دی په دې دواړو کي له هر يوه څخه خپل ټوله قرض اخيستلای سي؛ ځکه چي په دې دواړو کي هر يو د عقد مفاوضه په وجه د خپل شريک له طرفه کفيل دی، نو ځکه پر هر يوه نصف قرض "بحق اصالت" پر واجب دی او نصف قرض "بحق کفالت" پر واجب دی (يعني پر هر يوه نصف قرض په دې وجه واجب دی چي هغه اصيل [مکفول عنه] دی او نصف په دې وجه پر واجب دی چي هغه کفيل دی). لهٰذا چي پر هر يوه ټوله قرض لازم دی، او کله چي پر هر يوه ټوله قرض لازم دی، نو ځکه به قرضخواهانو ته له هر يوه څخه د ټوله قرض د اخيستلو اختيار وي. ليکن کله چي قرضخواهان په دې دواړو کي له يوه څخه د قرض مطالبه وکړي او هغه قرض اداء کړي، نو اداء کونکي شريک ته هغه وخت له خپل ملګري څخه د واپس اخيستلو اختيار حاصليږي کله چي هغه له

نصف قرض څخه زيات اداء کړي، يعني د نصف قرض يا له نصف څخه د کم قرض د اداء کولو په صورت کي هغه بالکل له خپل ملګري څخه اداء کړې سوې مال واپس نه سي اخيستلای، او له نصف څخه د زيات قرض اداء کولو په صورت کي فقط زائد مقدار له هغه څخه اخيستلای سي. په دې مکله دوه دليلونه مخکي د كِفالةُ الرجلين په اوله مسئله کي تېر سوه. تاسو يې هلته کتلای سئ! .

## دوه مکاتب غلامان يو د بل کفيل کېدل (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا كُوتِبَ الْعَبْدَانِ كِتَابَةً وَاحِدَةً فرمايي: او کله چي دوه غلامان په يوه کتابت سره [د زر درهمو په عوض کي] مکاتب جوړ کړل سي وَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَفِيلٌ عَنْ صَاحِبِهِ او له هغوی څخه هر يو د خپل ملګري له طرفه کفيل وي فَكُلُّ شَيْءٍ أَدَّاهُ أَحَدُهُمَا نو په هغوی دواړو کي چي يو کوم څه اداء کړي رَجَعَ عَلَى صَاحِبِهِ بِنِصْفِهِ د هغه نصف به له خپل ملګري څخه واپس اخلي وَوَجْهُهُ أَنَّ هٰذَا الْعَقْدَ جَائِزٌ اِسْتِحْسَانًا او د دې دليل دا دی چي داسي عقد کفاله استحساناً جائز دی وَطَرِيقُهُ أَنْ يُجْعَلَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَصِيلًا فِي حَقِّ وُجُوبِ الْأَلْفِ عَلَيْهِ او د دې د جواز طريقه دا ده چي له هغه دواړو [غلامانو] څخه به هر يو اصيل ګرځول کيږي پر هغه د زرو [درهمو] د واجبېدلو په حق کي [يعني هر يو به د زر درهمو په واجبېدلو کي اصيل ګرځول کيږي، يعني دا به ويل کيږي چي پر هر يوه زر درهمه أصالةً واجب دي] فَيَكُونُ عِتْقُهُمَا مُعَلَّقًا بِأَدَائِهِ نو ځکه د هغه دواړو آزادېدل به د زرو [درهمو] پر اداء کولو معلق وي وَيُجْعَلَ كَفِيلًا بِالْأَلْفِ فِي حَقِّ صَاحِبِهِ او هر يو به د خپل ملګري په حق کي کفيل ګرځول کيږي وَسَنَذْكُرُهُ فِي الْمُكَاتَبِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او موږ به دا انشاء الله په کتاب المکاتب کي ذکر کړو وَإِذَا عُرِفَ ذٰلِكَ او کله چي دا معلومه سوه فَمَا أَدَّاهُ أَحَدُهُمَا نو په هغوی دواړو کي چي يو کوم څه اداء کړي رَجَعَ بِنِصْفِهِ عَلَى صَاحِبِهِ نو د هغه نصف به له خپل ملګري څخه اخلي لِاسْتِوَائِهِمَا ځکه چي دواړه سره برابر دي وَلَوْ رَجَعَ بِالْكُلِّ [ليکن] که ټوله [اداء کړې سوې مال] واپس واخلي لَا تَتَحَقَّقُ الْمُسَاوَاةُ نو برابري به ثابته نه سي.

**اللغات:** ﴿کوتب﴾ د مفاعلې د باب ماضي مجهوله ده: مکاتب جوړول. مکاتب ګرځول. ﴿عتق﴾ د ضرب مصدر دی: آزادېدل. آزادي. ﴿استواء﴾ د افتعال مصدر دی: برابرېدل. برابري (برابر والی).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک (مولیٰ) په يوه عقد سره خپل دوه غلامان مکاتب جوړ کړي. مثلاً دوو غلامانو ته ووايي چي "زه تاسو دواړه د زر درهمه (بدل کتابت) په عوض کي مکاتب جوړوم". او غلامان دا عقد قبول کړي. او له دوی څخه هر يو د خپل ملګري له طرفه کفيل سي. نو اوس په دې دوو غلامانو کي چي کوم يو هم له بدلِ کتابت څخه څه دراهم اداء کړي. نو هغه اداء کونکي غلام ته دا حق او اختيار سته

چي له خپل ملګري څخه د هغه نصف واخلي. او دا عقد زموږ په نيز استحساناً جائز دی، قياساً جائز نه دی. (د ائمه ثلاثه وو قول هم د قياس مطابق دی).

د قياس دليل دا دی چي د مكاتب كفيل كېدل جائز نه دي او نه د بدل كتابت كفاله جائز ده. د مكاتب كفيل كېدل ځكه جائز نه دي چي كفاله (كفيل كېدل) تبرع ده او مكاتب د تبرع اهل نه دی. او د بدل كتابت كفاله ځكه صحيح نه ده چي د كفالې د صحيح والي لپاره دَين صحيح ضروري دی (لكه مخكي چي ذكر سوه، چي دَين به "دَين صحيح" وي) او بدلِ كتابت "دَين صحيح" نه دی*، نو ځكه د هغه كفاله به هم صحيح نه وي. (بنايه)

داستحسان دليل دا دی چي د دغه عقد د صحيح كولو لپاره به دا تأويل كيږي چي له دواړو غلامانو څخه پر هر يوه زر درهمه اصالةً واجب دي، نه كفالةً او دا به ويل كيږي چي د دې غلامانو آزاد والی د زر درهمو پر اداء كولو معلق كړی سوی دی (يعني ګواكي مالک په دواړو غلامانو كي هر يوه ته داسي ويلي دي: كه چيري تاسو زر درهمه اداء كړل نو تاسي دواړه آزاد ياست). لهذا په دې صورت كي به نه دا غلامان مكاتب وي او نه به هغه زر درهمه بدل كتابت وي. (دا په ياد لرئ! چي محض د دې عقد د صحيح كولو لپاره ضرورتاً پر هر غلام ټوله مال واجب سوی دی. كنې حقيقت دا دی چي دا زر درهمه د دواړو غلامانو د آزادي عوض دی، او دا زر درهمه به پر دواړو تقسيمېږي او پنځه، پنځه سوه درهمه به پر واجب وي. اشرف الهدايه)

لنډه دا چي زر درهمه "بدل كتابت" نه دی، بلكي پر هغه زر درهمو د دواړو غلامانو آزاد والی معلق كړی سوی دی، نو ځكه په هغه زر درهمو كي به دواړه برابر او مساوي وي. او په دوی كي چي كوم يو هم څه دراهم اداء كړي، نو اداء كوونكي ته به له خپل ملګري څخه د هغه د نصف اخيستلو اختيار وي. ښكاره دي وي چي اداء كوونكي غلام ته فقط د نصف اداء كړی سوي مال د اخيستلو اختيار سته، ټوله واپس نه سي اخيستلای، كنې مساوات او برابري به ثابته نه سي.

## كه دواړه مكاتب غلامان بدل كتابت اداء نه كړي او مالک يو آزاد كړي (حكم او تفصيل)

قَالَ: وَلَوْلَمْ يُؤَدِّيَا شَيْئًا حَتّٰى أَعْتَقَ الْمَوْلٰى أَحَدَهُمَا فرمايي: او كه دواړه غلامان هيڅ شي اداء نه كړي تر دې چي مالک په هغوی كي يو آزاد كړي جَازَ الْعِتْقُ نو دا آزادي [يعني آزادول] جائز دي لِمُصَادَفَتِهِ مِلْكَهُ ځكه چي دا آزادي د مالک د ملكيت سره متصل سوه [يعني د هغه په ملكيت كي واقع سوه] وَبَرِئَ عَنِ النِّصْفِ او هغه [آزاد كړی

* فايده: "دَين صحيح" هغه قرض ته وايي كوم چي د يو شي په بدله كي لازم سوی وي او كه چيري مقروض له اداء كولو څخه بغير د دې قرض ساقطول وغواړي نو هغه يې نه سي ساقطولای. او بدل كتابت دَين صحيح نه دی؛ ځكه مالک له غلام څخه احساناً مال اخيستی دی او هغه يې آزاد كړی دی، د يو شي په بدله كي نه دی، او كه چيري مكاتب د بدل كتابت له اداء كولو څخه عاجز سي نو بدلِ كتابت له هغه څخه ساقطيږي او هغه دوباره غلام ګرځي، نو معلومه سوه چي بدلِ كتابت "دَين صحيح" نه دی.

سوی غلام] به له نصف [انیم بدلِ كتابت] څخه بري کيږي لِأَنَّهُ مَا رَضِيَ بِالْتِزَامِ الْمَالِ إِلَّا لِيَكُونَ الْمَالُ وَسِيلَةً إِلَى الْعِتْقِ ځکه چې هغه غلام فقط په دې وجه پر خپل ځان د مال په لازمولو راضي سوی وو چې مال د هغه د آزادېدلو ذريعه وګرځي وَمَا بَقِيَ وَسِيلَةً لېکن [اوس] هغه مال [د آزادېدلو] ذريعه پاته نه سوه [ځکه چې غلام په خپله د مالک له طرفه آزاد کړی سو] فَيَسْقُطُ نو ځکه به [نصف بدلِ كتابت] ساقطيږي وَيَبْقَى النِّصْفُ عَلَى الْآخَرِ او نصف به پر دويم غلام باقي پاته وي لِأَنَّ الْمَالَ فِي الْحَقِيقَةِ مُقَابَلٌ بِرَقَبَتِهِمَا ځکه چې مال په حقيقت کي د دواړو غلامانو د رقبې [ذات] په مقابله کي دی وَإِنَّمَا جُعِلَ عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا احْتِيَالًا لِتَصْحِيحِ الضَّمَانِ او [په تېره مسئله کي] هغه ځکه له دوی څخه پر هر يوه واجب کړی سوی دی چې د ضمان [يعني د كفالې] صحيح کولو ته حيله جوړه سي وَإِذَا جَاءَ الْعِتْقُ لېکن کله چې آزادي [په خپله] راغله اُسْتُغْنِيَ عَنْهُ نو له هغه څخه استغناء وسوه [يعني هغه ته ضرورت پاته نه سو] فَاعْتُبِرَ مُقَابَلًا بِرَقَبَتِهِمَا نو ځکه دا مال د دواړو غلامانو د رقبې [ذات] مقابل وشمارل سو [يعني د دواړو په مقابله کي وګرځول سو] فَلِهَذَا يَتَنَصَّفُ نو په همدې وجه [اوس] هغه نصف، نصف سو وَلِلْمَوْلَى أَنْ يَأْخُذَ بِحِصَّةِ الَّذِي لَمْ يُعْتَقْ أَيَّهُمَا شَاءَ او مالک ته اختيار دی چې د هغه غلام حصه کوم چې آزاد سوی نه دی په دواړو غلامانو کي چې له کوم يوه څخه د ده خوښه وي هغه دي واخلي [يعني مالک ته اختيار دی که هغه له آزاد سوي مکاتب څخه اخلي، او که يې د هغه له ملګري يعني له نا آزاد سوي مکاتب څخه اخلي] الْمُعْتَقَ بِالْكَفَالَةِ وَصَاحِبَهُ بِالْأَصَالَةِ له آزاد سوي غلام څخه د كفالې په وجه [اخيستلای سي] او د هغه له ملګري څخه د اصالت په وجه [اخيستلای سي] وَإِنْ أَخَذَ الَّذِي أُعْتِقَ او که مالک دا له هغه غلام [مکاتب] څخه واخلي کوم چې آزاد سوی دی رَجَعَ عَلَى صَاحِبِهِ بِمَا يُؤَدِّي نو هغه به له خپل ملګري څخه اداء کړی سوی مال واپس اخلي لِأَنَّهُ مُؤَدٍّ عَنْهُ بِأَمْرِهِ ځکه چې هغه [آزاد سوی مکاتب] د خپل ملګري له طرفه د هغه په حکم سره اداء کونکی دی وَإِنْ أَخَذَ الْآخَرَ او که مالک دا له دويم يوه [نا آزاد سوي مکاتب] څخه واخلي لَمْ يَرْجِعْ عَلَى الْمُعْتَقِ بِشَيْءٍ نو هغه له آزاد سوي څخه هيڅ شی نه سي اخيستلای [يعني نا آزاد سوي مکاتب ته دا اختيار نسته چې هغه له آزاد سوي مکاتب څخه واخلي] لِأَنَّهُ أَدَّى عَنْ نَفْسِهِ ځکه چې هغه د خپل ځان له طرفه اداء کړی دی.

**اللغات:** ﴿أعتق﴾ د افعال ماضي ده: آزادول. ﴿مصادفة﴾ د مفاعلې مصدر دی: يو شی د بل شي سره مخامخ کېدل، متصل کېدل، پيدا کول، مراد ځني واقع کېدل او صادر بدل دي (احسن الهدايه). ﴿التزام﴾ د افتعال مصدر دی: پر ځان لازمول، پر خپله ذمه لازمول (په خپله غاړه اخيستل). ﴿استغني﴾ د استفعال ماضي مجهوله

ده: مستغني کېدل، بې پروا کېدل، ضرورت مند نه پاتېدل. ﴿يتنصف﴾ د تفعل د باب مضارع ده: نيمېدل، نصف، نصف کرځېدل (يو شی نيم، نيم کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که دوه غلامان په يوه عقد سره (په يوه پلا) مکاتب جوړ کړل سي او په دوارو کي هر يو د خپل ملګري له طرفه کفيل سي، بيا مالک په دوارو کي يو غلام په داسي حال کي آزاد کړي چي په دوارو کي تر اوسه يوه هم هيڅ مال (بدل کتابت) نه وي اداء کړی، نو دا آزادول جائز دي؛ ځکه چي مالک دا غلام په داسي حال کي آزاد کړی دی چي هغه د ده مملوک دی (يعني په پوره توګه د ده په ملکيت کي دی)، ځکه تر څو چي پر مکاتب غلام د بدل کتابت څه حصه پاته وي نو هغه د خپل مالک مملوک وي، او مملوک آزادول جائز دي، نو ځکه د هغه آزادول به هم جائز وي او دا آزادي به نافذيږي.

او کله چي په دوی کي يو مکاتب آزاد سو نو هغه به له نيم بدل کتابت څخه بري کيږي؛ ځکه چي هغه پر خپل ځان مال (نيم بدل کتابت) ځکه لازم کړی وو چي دا مال د هغه د آزادېدلو ذريعه وګرځي، خو څرنګه چي آزادي په بله طريقه سره حاصله سوه (يعني مالک په خپله هغه آزاد کړی)، نو ځکه دا مال د آزادېدلو ذريعه پاته نه سوه، نو ځکه له بدل کتابت څخه يو نصف ساقط سو او بل نصف پر دويم مکاتب پاته سو؛ ځکه چي مال (بدل کتابت) په حقيقت کي د دوارو مکاتبينو د آزادۍ عوض او بدل دی. او په تېر مسئله کي پر هر يوه ټوله بدل کتابت د کفالې د صحيح کولو لپاره محض يو حيله وه، لېکن کله چي يو مکاتب آزاد سو، نو دې حيلې ته ضرورت پاته نه سو، او دغه بدل کتابت د دوارو مکاتبينو د آزادۍ په مقابله کي وګرځول سو او آزاد سوی مکاتب له نصف بدل کتابت څخه بري کړی سو. او پر دويم مکاتب نصف بدل کتابت باقي پاته سو. او د دغه نصف بدل کتابت په باره کي مالک ته اختيار دی، د هغه مطالبه له دوارو مکاتبينو څخه کولای سي يعني مالک ته اختيار دی که د هغه مطالبه له آزاد سوي مکاتب څخه کوي او که يې له نا آزاد سوي مکاتب څخه کوي؛ له آزاد سوي مکاتب څخه د کفالې (کفيل والي) په وجه مطالبه کولای سي او له نا آزاد سوي مکاتب څخه په دې وجه مطالبه کولای سي چي پر هغه اصلاً واجب دی.

اوس که چيري آزاد سوی مکاتب دا (نيم بدل کتابت) اداء کړي نو هغه به له خپل ملګري څخه هغه واپس واخلي؛ ځکه چي هغه د خپل ملګري په حکم سره اداء کړی دی. او تاسو ته معلومه ده چي کله کفيل د مکفول عنه په حکم سره قرض اداء کړي نو کفيل ته له مکفول عنه څخه د واپس اخيستلو اختيار حاصليږي.

او که چيري نا آزاد سوی مکاتب دا اداء کړي نو هغه ته د واپس اخيستلو اختيار نسته؛ ځکه هغه چي کوم څه اداء کړي دي د خپل ځان له طرفه يې اداء کړي دي، او د خپل ځان له خپل طرفه اداء کوونکي کس ته د واپس اخيستلو اختيار نه حاصليږي، نو ځکه هغه ته به د واپس اخيستلو اختيار نه وي. والله أعلم بالصواب



# بَابُ كَفَالَةِ الْعَبْدِ وَعَنْهُ

دا (باب) د غلام د کفیل کېدلو او د هغه له طرفه (د بل چا) د کفیل کېدلو (په بیان کي) دی

**تشریح:** مخکي تر دې دآزاد کس د کفیل کېدلو او د هغه له طرفه د بل چا د کفیل کېدلو احکام ذکر سول. اوس په دې آخري باب کي د غلام د کفیل کېدلو او د هغه له طرفه د بل چا د کفیل کېدلو احکام ذکر کیږي، او څرنګه چي آزاد کس له غلام څخه لوړ او فائق دی (ځکه چي په انسانانو کي حُرّيت اصل دی)، نو ځکه د آزاد کس د کفالت احکام او مسائل مخکي ذکر سوي دي او تر هغه وروسته د غلام د کفالت احکام ذکر سوي دي. (عنایه، وبنایه)

## که یو څوک د غلام له طرفه کفیل سي (حکم او تفصیل)

وَمَنْ ضَمِنَ عَنْ عَبْدٍ مَالًا لَا يَجِبُ عَلَيْهِ حَتّٰى يُعْتَقَ او څوک چي د یو غلام له طرفه د داسي مال کفیل سي کوم چي د غلام تر آزادېدلو مخکي پر غلام واجب نه وي وَلَمْ يُسَمِّ حَالًا وَلَا غَيْرَهُ او کفیل د حال او غیر حال [اوس او نا اوس] یادونه نه وکړي [یعني کفیل دا خبره ذکر نه کړي چي زه هغه اوس (فی الحاله) اداء کوم یا یې اوس نه اداء کوم] فَهُوَ حَالٌّ نو دا حالي [فی الحاله] کفاله ده لِأَنَّ الْمَالَ حَالٌّ عَلَيْهِ ځکه چي پر غلام مال في الحاله [نغد] واجب دی لِوُجُودِ السَّبَبِ وَقَبُولِ الذِّمَّةِ ځکه چي سبب هم موجود دی او د نمې قبول هم موجود دی [یعني د مال واجبېدلو سبب هم موجود سو. او د غلام ذمه د مال قبلولو صلاحیت (ورتیا) هم لري. یا معنیٰ دا چي کفیل ذمه واري هم قبوله کړه] إِلَّا أَنَّهُ لَا يُطَالَبُ لِعُسْرَتِهِ خو د غلام د تنګلاسی [مفلسوالي] په وجه به له هغه څخه د مال مطالبه نه کیږي إِذْ جَمِيعُ مَا فِي يَدِهِ مِلْكُ الْمَوْلٰى ځکه کوم څه چي د غلام په قبضه کي دي هغه ټوله د مالک ملکیت دي وَلَمْ يَرْضَ بِتَعَلُّقِهِ بِهِ او مالک في الحاله د خپل غلام سره د قرض په متعلق کېدلو راضي نه دی وَالْكَفِيلُ غَيْرُ مُعْسِرٍ او کفیل تنګلاسی هم نه دی فَصَارَ كَمَا إِذَا كَفَلَ عَنْ غَائِبٍ أَوْ مُفْلِسٍ نو داسي سو لکه کفیل چي د غائب یا د مفلس کس کفیل سي [مُفلس هغه کس ته وایي چي قاضي د هغه د مفلس والي فیصله کړې وي] بِخِلَافِ

الدَّيْنِ الْمُؤَجَّلِ په خلاف د ميعادي قرض لِأَنَّهُ مُتَأَخِّرٌ بِمُؤَخِّرٍ ځکه چې هغه د مؤخر کونکي سبب په وجه مؤخر وي ثُمَّ إِذَا أَدّٰى بيا چې کله کفيل [في الحاله] هغه اداء کړي رَجَعَ عَلَى الْعَبْدِ بَعْدَ الْعِتْقِ نو هغه به يې له غلام څخه تر آزادېدلو وروسته واپس اخلي لِأَنَّ الطَّالِبَ لَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ إِلَّا بَعْدَ الْعِتْقِ ځکه چې مکفول لهٔ يې هم فقط تر آزادېدلو وروسته له هغه څخه واپس اخيستلای سي فَكَذَا الْكَفِيْلُ نو همداسې به کفيل وي [يعني همدا حکم به د کفيل هم وي] لِقِيَامِهِ مَقَامِهِ ځکه چې کفيل [په مطالبه کې] د مکفول لهٔ قائم مقام دی.

**اللغات**: ﴿لم يُسمِ﴾ د تفعيل د باب جحد صيغه ده: نومول، ذکر کول (يادونه کول)، ټاکل، ﴿حالًا﴾ اوس، في الحاله، ﴿عُسرة﴾ تنګلاسي، غريبي، ﴿معسر﴾ تنګلاسی کس، غريب او مفلس، ﴿مُفَلَّس﴾ هغه کس چې قاضي يې د مفلسوالي فيصله او اعلان وکړي (يعني دا فيصله او اعلان وکړي چې هغه مفلس او ډېوالي دی، لهذا څوک دي کار نه په لري)، ﴿دَين موجل﴾ ميعادي قرض (ميادوالا قرض) يعني هغه قرض د کوم لپاره چې وخت او مودت (نېټه) ټاکل سوې وي، مثلاً زيد له خالد څخه زر افغانۍ په قرض واخلي او خالد ته ووايي چې دا قرض زه پنځه مياشتي وروسته درکوم، نو دا ميعادي قرض سو او پنځه مياشتي ميعاد (مياد) سو، کله چې ميعاد پوره سي يعني پنځه مياشتي تېرې سي نو بيا خالد له زيد څخه د قرض مطالبه کولای سي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که غلام (مثلاً) د بل چا مال هلاک کړي او هغه د دې اقرار هم وکړي لېکن د غلام مالک (مولی) له دې څخه منکر وي، نو بيا هم پر غلام د هلاک سوي مال په اندازه مال اداء کول واجب دي، لېکن له غلام څخه به دادا کولو مطالبه د هغه تر آزادېدلو وروسته کيږي او تر آزادېدلو مخکې به د هغه مال د اداء کولو مطالبه نه ځني کيږي. اوس که يو سړی د دې غلام له طرفه د هغه مال کفيل سي او کفيل د دې خبرې هيڅ وضاحت نه وکړي چې زما څخه دې في الحاله مطالبه وسي يا وروسته (په بله وينا دا چې کفيل دا خبره ذکر نه کړي چې زه اوس دا مال اداء کوم، يا يې اوس نه اداء کوم)، نو پر دې کفيل في الحاله هغه مال واجبيږي يعني مکفول لهٔ ته دا اختيار سته چې له کفيل څخه في الحاله (سمدستي) د هغه مال مطالبه وکړي: ځکه صحيح خبره خو همدا ده چې که غلام د يو چا مال هلاک کړي او بيا د هغه اقرار وکړي نو پر هغه دي هم في الحاله ضمان واجب وي، لېکن څرنګه چې هغه غلام تر اوسه د مالک (مولی) په ملکيت کې دی، او غلام چې تر څو د مالک په ملکيت کې وي د هغه هر څه د مالک شمارل کيږي (او هر څه يې د مولی مملوک وي)، او مالک په دې خبره نه دی راضي

سوی چې د هغه د ملکیت یعني د غلام سره في الحاله د بل چا حق متعلق وي (ځکه هغه له دې ځخه منکر دی چې د هغه غلام دي د بل چا مال هلاک کړی وي)، نو ځکه اوس غلام مفلس او تنګلاسی (معسر) دي، او د مفلس او تنګلاسي کس له ذمې ځخه مطالبه مؤخره کیږي (تر دې چې هغه مالدار سي)، نو ځکه له مذکوره غلام ځخه به في الحاله د عذر پر بناء (یعني د هغه د معسر کېدلو او د هغه سره د مالک د حق متعلق کېدلو پر بناء) د ضمان مطالبه مؤخره کیږي. او هغه (هلاک سوی مال) به د غلام پر ذمه قرض وي او د هغه پر ذمه به واجب پاته وي، او کوم څوک چې د هغه له طرفه د دې قرض کفیل سي نو کفاله به صحیح وي، ځکه چې د قرض او د داسي شي کفاله صحیح ده چې هغه د یو چا پر ذمه واجب پاته وي، او څرنګه چې کفیل د "في الحاله" او "غیر في الحاله" هیڅ شرط نه دی لګولی او هغه مفلس هم نه دی، نو ځکه به مکفول لهٗ ته دا اختیار وي چې له کفیل ځخه في الحاله د ضمان مطالبه وکړي. او د کفیل له ذمې ځخه به مطالبه نه ساقطیږي. او د دې مثال داسي دی لکه یو سړی چې د یو غائب کس کفیل سي یا د داسي کس کفیل سي چې قاضي د هغه د مفلس والي فیصله او اعلان کړې وي. نو ښکاره خبره ده چې څرنګه له دغه غائب کس او مفلس کس ځخه د غائب والي او مفلس والي پر بناء د قرض مطالبه مؤخره کیږي لېکن د دوی د کفیل په حق کي د عذر د نشتوالي په وجه نه مؤخره کیږي، نو ځکه د دوی له کفیل ځخه في الحاله مطالبه کېدای سي، همداسي به په دې مسئله کي که څه هم له غلام ځخه د قرض مطالبه مؤخره سوې ده، لېکن د هغه له کفیل ځخه به نه مؤخره کیږي، نو ځکه مکفول لهٗ ته به له کفیل ځخه د في الحاله مطالبه کولو حق او اختیار وي.

<u>بخلاف الدين المؤجل إلخ</u>: دا د یو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چې کله په دې مسئله کي له غلام ځخه في الحاله د ضمان مطالبه مؤخره سوې ده یعني تر آزادېدلو وروسته له هغه ځخه د مال مطالبه کیږي، نو پکار دا ده چې دغه مال میعادي قرض وګرځول سي او د غلام (مکفول عنه) آزادېدل میعاد وګرځول سي د دې لپاره چې د میعاد تر پوره کېدلو (یعني د مکفول عنه غلام تر آزادېدلو پوري) له کفیل ځخه مطالبه مؤخره سي؟

نو د دې په جواب کي صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې په مؤجل قرض (میعادي قرض) کي د داسي امر په وجه قرض له مکفول عنه ځخه مؤخر سوی وي کوم چې تاخیر (مؤخر کول) واجبوي، او هغه امر "تاجیل" دی*، (یعني په بنیادي توګه د مؤخر کولو په وجه دا قرض مؤخر سوی وي). او د مؤجل قرض په صورت کي کفیل د هغه شي التزام کوي کوم چې پر مکفول عنه واجب وي، او پر مکفول عنه مؤجل قرض (میعادي قرض) واجب وي، نو ځکه کفاله (کفیل کېدل) به هم د مؤجل قرض وي، او

---

* د "تأجیل" معنی ده: مؤجل کول، میعادي کول (په بنیادي توګه مؤخر کول)، لنډه دا چې کوم قرض په بنیادي توګه د مؤخر کولو په وجه مؤخر سوی وي، نو هغه مؤجّل دَین دی. [أثمار الهدایه ج۹، ص۹۴]

ښکاره خبره ده چې کله کفاله د "مؤجل ترض" وي، نو له کفيل څخه في الحاله مطالبه نه سي کېدای. بلکې تر اجل او ميعاد وروسته له هغه څخه مطالبه کېدای سي. او پاته سوه د متن مسئله نو په هغه کې پر غلام في الحاله اداء کول واجب دي لېکن د يو عذر (يعنې د هغه د مفلس والي او د مالک د حق) په وجه مطالبه مؤخره سوې ده، او څرنګه چې د کفيل په حق کې دا عذر نسته، نو ځکه له هغه څخه في الحال په مطالبه کولو کې هيڅ حرج او پروا نسته.

**وإذا أدّى إلخ**: فرمايي کله چې کفيل د غلام له طرفه مال اداء کړي، نو کفيل ته د غلام تر آزادېدلو وروسته دا اختيار حاصلېږي چې هغه مال له غلام څخه واپس واخلي؛ ځکه چې په خپله مکفول لهٗ ته هم د غلام تر آزادی وروسته د مطالبې حق حاصلېږي (نه تر هغه مخکې)، نو ځکه د مکفول لهٗ قائم مقام يعني کفيل ته به هم د هغه تر آزادی وروسته د مطالبې حق وي.

## د غلام له طرفه د کفيل کېدلو په صورت کې د غلام د مرګ حکم

وَمَنِ ادَّعٰى عَلٰى عَبْدٍ مَالًا او څوک چې پر غلام د مال دعوىٰ وکړي وَكَفَلَ لَهُ رَجُلٌ بِنَفْسِهِ او يو سړی د مدعي لپاره د هغه غلام کفيل بالنفس سي فَمَاتَ الْعَبْدُ بيا هغه غلام مړ سي بَرِئَ الْكَفِيْلُ نو کفيل بري کيږي لِبَرَاءَةِ الْأَصِيْلِ ځکه چې اصيل بري سو كَمَا إِذَا كَانَ الْمَكْفُوْلُ بِنَفْسِهِ حُرًّا لکه کله چې مکفول بنفسه يو آزاد کس وي.

**اللغات**: ﴿برئ﴾ د سمع ماضي ده: بري کېدل، خلاصېدل، ذمه فارغېدل (غاړه خلاصېدل)، ﴿مکفول بنفسه﴾ هغه کس چې يو څوک د هغه د نفس کفيل سي (چې مثلاً زه د قاضي مجلس ته هغه حاضروم، هغه پر ما دی).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی پر غلام د مال دعوىٰ وکړي او بل څوک د هغه غلام کفيل بالنفس سي، يعني يو بل سړي دغه مدعي سړي ته ووايي چې زه د دې غلام د حاضرولو کفيل او ذمه وار يم (زه يې تا ته د قاضي په مجلس کې حاضروم)، بيا غلام يعني مکفول بنفسه مړ سي، نو کفيل بري کيږي؛ ځکه چې د مرګ په وجه اصيل (مکفول بنفسه) بري سو، او د اصيل په برائت سره کفيل بري کيږي. لکه څرنګه چې په هغه وخت کې به هم کفيل بري کېدای کله چې مکفول بنفسه آزاد کس وای او بري سوی وای، همداسي به دلته هم د مکفول بنفسه غلام په بري کېدلو سره کفيل بري کيږي. (لنډه دا چې د مکفول بنفسه په مړ کېدلو او بري کېدلو سره کفيل هم بري کيږي، برابره ده مکفول بنفسه غلام وي او که آزاد وي)

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

قَالَ: فَإِنِ ادَّعَى رَقَبَةَ الْعَبْدِ فرمايي: که يو څوک د غلام د رقبې [ذات] دعوىٰ وکړي [چي دا زما غلام دی] فَكَفَلَ بِهِ رَجُلٌ او يو سړی د هغه غلام کفيل بالنفس سي فَمَاتَ الْعَبْدُ بيا غلام مړ سي فَأَقَامَ الْمُدَّعِي الْبَيِّنَةَ أَنَّهُ كَانَ لَهُ نو مدعي پر دې خبره بينه پېش کړي چي هغه زما غلام وو ضَمِنَ الْكَفِيلُ قِيْمَتَهُ نو کفيل د هغه د قيمت ضامن کيږي لِأَنَّ عَلَى الْمَوْلَى رَدَّهَا عَلَى وَجْهٍ تَخْلُفُهَا قِيْمَتُهَا ځکه چي پر مالک [قابض] د دې غلام واپس کول په دې توګه واجب دي چي د غلام قيمت د هغه [غلام] خليفه وي [مطلب دا چي غلام د چا په قبضه کي وو پر هغه له دوو کارو څخه يو کار لازم دی: يا دې ژوندی غلام مدعي ته واپس کړي. يا دې د هغه قيمت ورکړي. او غلام مړ سوی دی. نو ځکه اوس به نقط د هغه قيمت ورکوي] وَقَدِ الْتَزَمَ الْكَفِيلُ ذٰلِكَ او کفيل [همداسي] د هغه التزام کړی دی وَبَعْدَ الْمَوْتِ تَبْقَى الْقِيْمَةُ وَاجِبَةً عَلَى الْأَصِيْلِ او [څرنګه چي د غلام] تر مرګ وروسته پر اصيل قيمت واجب پاتېږي فَكَذَا عَلَى الْكَفِيْلِ نو همداسي به پر کفيل هم [واجب پاته وي] بِخِلَافِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت.

**اللغات:** ﴿رقبة﴾ غاړه، مراد ځني ذات دی (د ذات ملکيت)، ﴿ردّ﴾ د نصر مصدر دی: واپس کول، ﴿تخلفها﴾ د نصر مضارع ده: خليفه کېدل، نائب کېدل، ﴿التزم﴾ د افتعال ماضي ده: پر ځان لازمول، پر ذمه لازمول (په خپله غاړه اخيستل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د خالد په قبضه کي يو غلام وو او زيد دعوىٰ وکړه چي ستا په قبضه کي کوم غلام دی هغه زما دی، او په دې مينځ کي بل سړی مثلاً حامد د دې غلام د حاضرولو کفيل سو، بيا غلام مړ سو، او مدعي (زيد) پر کفيل (حامد) دا بينه پېش کړه چي کوم غلام مړ سوی دی هغه زما وو، نو په دې صورت کي کفيل د هغه د قيمت ضامن کيږي؛ دليل دا دی چي کوم کس پر دې غلام قابض دی (يعني خالد) پر هغه واجب دي چي خاص هغه غلام (عين غلام) مدعي ته واپس کړي او که چيري قابض د غلام له واپس کولو څخه عاجز وي نو د هغه قيمت دي واپس کړي، لهذا کله چي د قيمت ضمان پر اصيل يعني پر قابض (خالد) واجب دی نو پر کفيل به هم واجب وي؛ ځکه چي کفيل پر ځان د هماغه شي مطالبه لازمه کړې ده د کوم شي مطالبه چي پر اصيل يعني پر قابض لازمه ده. او څرنګه چي د غلام تر مرګ وروسته پر اصيل (قابض) د غلام قيمت واجب دی، نو ځکه پر کفيل به هم د هغه د قيمت مطالبه واجب وي. د دې په خلاف په تېره مسئله کي (يعني په "ومن ادعیٰ علی عبدٍ) کي کفيل د ژوندي غلام (کوم چي اصيل دی) د حاضرولو کفيل سوی دی لېکن

تر مرګ وروسته په خپله له غلام (اصيل) څخه د خپل ځان ورسپارل او حاضرېدل ساقط سو، نو ځکه له کفيل څخه به هم د هغه د ورسپارلو او حاضرولو حکم ساقطيږي. او څرنګه چي دلته پر اصيل يعني پر مکفول عنه د مړ سوي غلام قيمت واجب دی، نو ښکاره خبره ده چي پر کفيل به هم هغه واجب وي.

**فائده**: د پورتني عبارت په متن کي څو خبري د پاملرني وړ دي:

①... په "لِأَنَّ عَلَى الْمَوْلَى" کي له "الْمَوْلَى" څخه مراد هغه کس دی چي غلام يې په قبضه کي وي، يعني قابض ځني مراد دی، نه مدعي.

②... په "رَدَّهَا، تَخَلُّفُهَا او قِيْمَتُهَا" کي د "ها" ضمير "رَقَبَة" ته راجع دی (يعني د غلام ذات).

③... دريمه خبره دا چي که په هغه مړ سوي غلام کي د مدعي ملکيت په بيّنه سره ثابت نه سي، بلکي د قابض په اقرار سي ثابت سي، نو په دې صورت کي فقط پر اصيل يعني پر مکفول عنه قيمت واجبيږي، پر کفيل نه واجبيږي؛ ځکه چي اقرار "حجتِ قاصره" دی کوم چي فقط د مقر (اقرار کونکي) په حق کي ثابتيږي. (عنايه، وبنايه)

## غلام د خپل مالک له طرفه يا مالک د غلام له طرفه کفيل کېدل

قَالَ: وَإِذَا كَفَلَ الْعَبْدُ عَنْ مَوْلَاهُ بِأَمْرِهِ فرمايي: او که غلام د خپل مالک له طرفه د هغه په حکم سره کفيل سي فَعَتَقَ بيا غلام آزاد سي فَأَدَّاهُ او هغه مال اداء کړي أَوْ كَانَ الْمَوْلَى كَفَلَ عَنْهُ يا مالک د خپل غلام له طرفه کفيل سي فَأَدَّاهُ بَعْدَ الْعِتْقِ او هغه د غلام تر آزادېدلو وروسته مال اداء کړي لَمْ يَرْجِعْ وَاحِدٌ مِنْهُمَا عَلَى صَاحِبِهِ نو له دې دواړو څخه به يو هم له خپل ملګري څخه هيڅ شی واپس نه اخلي وَقَالَ زُفَرُ: يَرْجِعُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي واپس به يې اخلي وَمَعْنَى الْوَجْهِ الْأَوَّلِ أَنْ لَا يَكُونَ عَلَى الْعَبْدِ دَيْنٌ او د اول صورت مراد دا دی چي پر غلام قرض نه وي حَتَّى تَصِحَّ كَفَالَتُهُ بِالْمَالِ عَنِ الْمَوْلَى د دې لپاره چي د مالک له طرفه د هغه کفيل بالمال کېدل صحيح سي إِذَا كَانَ بِأَمْرِهِ په دې شرط چي [کفيل کېدل] د مالک په حکم سره وي أَمَّا كَفَالَتُهُ عَنِ الْعَبْدِ او کوم چي د غلام له طرفه د مالک کفيل کېدل دي فَتَصِحُّ عَلَى كُلِّ حَالٍ نو هغه په هر حال کي صحيح دي لَهُ: أَنَّهُ تَحَقَّقَ الْمُوجِبُ لِلرُّجُوعِ د امام زفر دليل دا دی: چي د رجوع واجبونکی شی موجود سو [يعني د مال د واپس اخيستلو سبب موجود سو] وَهُوَ الْكَفَالَةُ بِأَمْرِهِ او هغه د مکفول عنه په حکم سره کفيل کېدل دي [چي هغه په اول

صورت کي مالک دی او په دويم صورت کي غلام دی] وَالْمَانِعُ وَهُوَ الرِّقُّ قَدْ زَالَ او کوم شی چي مانع وو يعني غلاموالی هغه [هم] زائل سو وَلَنَا: أَنَّهَا وَقَعَتْ غَيْرَ مُوْجِبَةٍ لِلرُّجُوْعِ او زموږ دليل دا دی: چي دا کفاله د رجوع واجبونکې واقع نه سوه لِأَنَّ الْمَوْلٰى لَا يَسْتَوْجِبُ عَلٰى عَبْدِهِ دَيْنًا ځکه چي مالک پر خپل غلام د قرض مستحق نه وي [يا معنیٰ دا چي مالک پر خپل غلام قرض نه سي واجبولای] وَكَذَا الْعَبْدُ عَلٰى مَوْلَاهُ او همداسي غلام پر خپل مالک فَلَا تَنْقَلِبُ مُوْجِبَةً أَبَدًا نو ځکه دا کفاله هيڅکله هم مُوجب للرجوع نه سي ګرځېدلای كَمَنْ كَفَلَ عَنْ غَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ لکه يو څوک چي د بل چا له طرفه د هغه له حکم څخه بغير کفيل سي فَأَجَازَهُ بيا هغه د دې اجازت ورکړي.

**اللغات**: ﴿تحقق﴾ د تفعل ماضي ده: ثابتېدل، (موجودېدل)، ﴿رق﴾ رقيت، غلامتوب، غلاموالی، ﴿مُوجِبة﴾ د افعال د باب مؤنث فاعل دی: واجبونکی، سبب، ﴿لا تنقلب﴾ د انفعال د باب نفي صيغه ده: ګرځېدل، بدلېدل، اوښتل.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده که غلام د خپل مالک له طرفه د هغه په حکم سره کفيل سي، نو دلته دوه صورتونه دي: ① يا پر غلام به دومره اندازه قرض باندي وي کوم چي د ده پر ذات احاطه کړې وي (يعني دَين مستغرق)، ② او يا پر هغه به قرض نه وي، که چيري پر غلام دَين مستغرق باندي وي نو د قرضخواهانو د حق په وجه د هغه کفيل کېدل صحيح نه دي که څه هم د مالک په حکم او اجازت سره کفيل سي، او که پر غلام دَين مستغرق نه وي، نو د هغه کفيل کېدل صحيح دي په دې شرط چي د مالک په حکم او اجازت سره وي.

(لنډه دا چي که پر غلام د خلکو دومره قرض باندي وي چي هغه د غلام د قيمت سره برابر وي، نو د خلکو (قرضخواهانو) د حق په وجه دا غلام د هيچا کفيل نه سي جوړېدای، ها! که پر غلام قرض نه وي، نو بيا هغه کفيل جوړېدای سي. همدا أصول دی).

(۲)... دويمه مسئله دا ده که مالک د خپل غلام له طرفه کفيل سي، نو دا جائز دي، برابره ده کفيل بالنفس سي، يا کفيل بالمال سي، او برابره ده غلام مقروض وي او که غير مقروض وي.

لهذا کله چي په دواړو مسئلو کي کفاله صحيح او جائز ده، نو که غلام تر آزادېدلو وروسته مکفول به مال اداء کړي (يعني د کوم مال چي کفيل سوی وي هغه تر آزادی وروسته اداء کړي)، يا په دويمه مسئله کي مالک د خپل غلام تر آزادېدلو وروسته مکفول به مال اداء کړي، نو په اوله مسئله کي غلام

ته له خپل مالک څخه او په دويمه مسئله کې مالک ته له خپل غلام څخه د هيڅ شي د واپس اخيستلو اختيار نسته. او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې هريوه ته د رجوع کولو (واپس اخيستلو) اختيار سته. يعني په اوله مسئله کې غلام ته پر خپل مالک د رجوع کولو او په دويمه مسئله کې مالک ته پر خپل غلام د رجوع کولو اختيار سته.

ومعنى الوجه الأول إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د اولې مسئلې مراد دا دی چې پر غلام قرض باندې نه وي، همدا خبره موږ په اوله مسئله کې دويم صورت وګرځوله چې که پر غلام دين مستغرق نه وي نو د هغه کفيل کېدل صحيح دي... (الخ). او پاتې سو د مالک کفيل کېدل نو هغه په هر صورت کې صحيح دي، برابره کفاله بالمال وي او که کفاله بالنفس وي. پر غلام قرض وي او که نه وي.

**د امام زفر دليل**: دا دی چې له مکفول عنه څخه د مکفول به (مال) د اخيستلو مُوجب او سبب دا دی چې کفاله به د مکفول عنه په حکم سره وي، او دلته دا سبب موجود دی او مانع يعني د غلام غلاموالی هم زائل سوی دی، ځکه د مالک د کفيل کېدلو په صورت کې (يعني په دويمه مسئله کې) مالک هم د خپل غلام تر آزادی وروسته مکفول به مال اداء کړی دی، لهذا کله چې د رجوع (واپس اخيستلو) سبب هم موجود سو او د رجوع مانع هم زائل سو، نو ځکه به په اوله مسئله کې غلام ته پر خپل مالک او په دويمه مسئله کې مالک ته پر خپل غلام د رجوع کولو اختيار حاصلېږي.

**زموږ دليل**: دا دی چې په دواړو مسئلو کې کفاله د رجوع واجبونکې (د رجوع سبب) نه ده، يعني غلام د خپل مالک له طرفه يا مالک د خپل غلام له طرفه کفيل کېدل مُوجب للرجوع نه دي (د رجوع کولو سبب نه دي)؛ ځکه چې مالک پر خپل غلام د قرض مستحق نه وي، همدارنګه غلام پر خپل مالک د قرض مستحق نه وي (يعني مالک او غلام ته پر يوه او بل د قرض حق نسته؛ ځکه چې د غلام هر څه د مالک وي)، لهذا کله چې يوه ته هم د قرض استحقاق حاصل نه دی، نو دا کفاله به غير مُوجب للرجوع واقع سي (يعني دا کفاله به د رجوع واجبونکې او د رجوع سبب نه وي)، او کومه کفاله چې غير مُوجب للرجوع واقع سي، هغه هيڅکله هم مُوجب للرجوع ګرځېدلای نه سي، يعني کله چې کفاله په ابتداء کې مُوجب للرجوع نه وي نو هغه په انتهاء کې هم مُوجب للرجوع (د رجوع سبب) نه ګرځي، او کله چې دا کفاله مُوجب للرجوع نه ده، نو ځکه د مکفول به مال تر اداء کولو وروسته به نه غلام ته پر مالک د رجوع کولو اختيار وي او نه به مالک ته پر غلام د رجوع کولو اختيار وي.

او د دې مثال داسې دی لکه يو سړی چې د بل چا (مثلا د خالد) له طرفه د هغه له حکم او اجازت څخه بغير کفيل سي، بيا مکفول عنه (خالد) ته خبر ورسيږي او هغه د کفالې اجازت ورکړي، بيا کفيل مکفول به مال اداء

کړي. نو په دې صورت کې کفیل ته پر مکفول عنه د رجوع کولو اختیار نه حاصلیږي؛ ځکه که څه هم دلته د بقاء (انتهاء) په حالت کې د مکفول عنه حکم او اجازت موجود دی لیکن په ابتداء کې موجود نه وو. لهذا کله چې په ابتداء کې د مکفول عنه د حکم د نشتوالي په وجه کفیل ته د رجوع حق نه وو، نو په انتهاء کې هم هغه ته د رجوع حق نسته که څه هم انتهاءً د مکفول عنه حکم موجود سو؛ ځکه کومه کفاله چې غیر مُوجب للرجوع واقع سي هغه هیڅکله بیا مُوجب للرجوع نه ګرځي.

## د مال کتابت د کفالت حکم

وَلَا يَجُوزُ الْكَفَالَةُ بِمَالِ الْكِتَابَةِ او د مال کتابت [بدلِ کتابت] کفاله جائز نه ده حُرٌّ تَكَفَّلَ بِهِ أَوْ عَبْدٌ برابره ده آزاد کس د هغه کفیل سي او که غلام لِأَنَّهُ دَيْنٌ ثَبَتَ مَعَ الْمُنَافِي ځکه چې هغه داسې قرض دی کوم چې د منافي باوجود ثابت سوی دی فَلَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ صِحَّةِ الْكَفَالَةِ نو ځکه د کفالې د صحیح والي په حق کې به هغه نه ښکاره کیږي وَلِأَنَّهُ لَوْ عَجِزَ نَفْسَهُ او ځکه چې که مکاتب خپل ځان عاجز کړي سَقَطَ نو مال کتابت ساقطیږي وَلَا يُمْكِنُ إِثْبَاتُهُ عَلَى هٰذَا الْوَجْهِ فِي ذِمَّةِ الْكَفِيلِ او د کفیل پر ذمه په دې توګه هغه ثابتول ممکن نه دي وَإِثْبَاتُهُ مُطْلَقًا يُنَافِي مَعْنَى الضَّمِّ او د هغه مطلقاً ثابتول د "ضم" [یو ځای کولو] د معنیٰ منافي دي لِأَنَّ مِنْ شَرْطِهِ الِاتِّحَادُ ځکه چې د "ضم" شرط اتحاد دی وَبَدَلُ السِّعَايَةِ كَمَالِ الْكِتَابَةِ فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ[1] او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په قول کې "بدل سعایه" د مال کتابت په څېر دی لِأَنَّهُ كَالْمُكَاتَبِ عِنْدَهُ ځکه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز سعی کونکی [ساعي] غلام د مکاتب په څېر دی.

**اللغات:** ﴿حُرّ﴾ آزاد. ﴿تکفّل﴾ د تفعّل ماضي ده: کفیل کېدل، کفیل جوړېدل. ﴿منافي﴾ د افعال د باب فاعل دی: معارض، مخالف. ﴿بدل سعایه﴾ دې ته وایي چې مالک د غلام یوه حصه آزاده کړي او غلام د خپل پاتې حصې په برابر مال وګټي او مالک ته یې ورکړي، نو دې ته "بدل سعایه" وایي. په بله وینا دا چې که مالک خپل غلام ته ووایي چې "زه ستا نیمه حصه آزادوم، او د پاتې نیمې حصې لپاره ته سعی او کوښښ وکړه! او د هغه په اندازه مال وګټه! ما ته یې راکړه، نو بیا زه ستا پاتې نیمه حصه هم آزادوم"، نو دغه د پاتې حصې مال ته "بدل سعایه" وایي.

---

[1] القول الراجح: قول ابی حنیفة رَحِمَهُ الله، کما ذکر فی فتح القدیر (ج:۶، ص:۳۴۵)، وکذا فی الکفایة (ج:۶، ص:۳۴۵).

[القول الر... ج:۲، ص:۱۰۳]

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دى چې كوم مال د عقد كتابت په وجه پر مكاتب واجب وي، د هغه مال كفالــه (كفيـل كېدل) صحيح نه دي. برابره ده آزاد سړى د هغه كفيـل سي او كه غـلام، په دواړو صور تونو كې د هغه كفاله جائز نه ده؛ ځكه چې بدل كتابت داسي قرض دى كوم چې د منافي يعني د رقيت (غلامتوب) باوجود ثابت دى په دې توګه چې تر څو پر مكاتب د بدل كتابت (مال كتابت) يوه روپۍ هم پاته وي تر هغه وخته پوري مكاتب غلام پاتيږي، او په تېر عبارت كي ستاسو مخته ذكر سوه چې مالک پر غلام او غلام پر مالک د قرض مستحق نه وي (يعني يوه ته پر بل د قرض حق نسته)، نو ځكه د قياس تقاضا دا ده چې پر مكاتب دي ګرسره بدل كتابت واجبول صحيح نه وي، لېكن د دې باوجود د قرآن كريم د دې آيت "فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا" په وجه قياس پرېښوول سوى دى او د منافي يعني د رقيت (غلامتوب) باوجود پر مكاتب بدل كتابت ثابت او صحيح ګرځول سوى دى، او كوم شى چې د منافي سره ثابت وي، هغه غير مستقر وي يعني من وجه ثابت وي او من وجه ثابت نه وي (يعني په پوره توګه ثابت نه وي او ساقطېدونكي وي)، او كله چې بدل كتابت غير مستقر دى يعني من وجه ثابت دى او من وجه ثابت نه دى، نو ځكه د كفالې د صحيح والي په حق كي به د هغه دين كېدل (قرض والي) نه ښكاره كيږي؛ ځكه چې كفاله د هغه دين صحيح كيږي كوم چې مستقر وي (يعني نه ساقطېدونكي وي)، او د غير مستقر دين كفاله نه صحيح كيږي.

ولأنه إلخ: له دې ځايه د بدل كتابت (مال كتابت) د كفالې نه جائز كېدلو په هكله دويم دليل بيان سوى دى، حاصل يې دا دى چې كـه مونږ د بدل كتابت كفالـه جائز وګرځوو، نو د هغې د جائز كېدلو دوه صورتونه دي او په دواړو صورتونو كي د هغې جائز منل ممكن نه دي: ① ... اول صورت دا دى چې بدل كتابت پر كفيل هم داسي ثابت وي لكه څرنګه چې پر اصيل (مكاتب) ثابت دى، او پر اصيل يعني پر مكاتب بدل كتابت داسي ثابت دى چې كه مكاتب د بدل كتابت له اداء كولو څخه عاجز سي نو د هغه له ذمې څخه بدل كتابت ساقطيږي او هغه دوباره د خپل مالک غلام ګرځي، لېكن كه كفيل د هغه له اداء كولو څخه عاجز سي نو كه څه هم د هغه له ذمې څخه بدل كتابت ساقطيږي لېكن دا كفيل د هيچا غلام نه ګرځي، نو په دې اعتبار سره په دواړو كي فرق دى، لهذا په دې صورت كي د بدل كتابت كفاله جائز نه ده.

② ... دويم صورت دا دى چې بدل كتابت پر كفيل مطلقاً ثابت كړى سي، لېكن دا صورت هم ممكن نه دى: ځكه چې د كفالې د صحيح والي شرط دا دى چې مكفول بهٖ مال چې په كومو اوصافو سره پر اصيل (مكفول عنه) ثابت وي په هغه اوصافو سره به پر كفيل هم ثابت وي، حال دا چې په دې صورت كي پر كفيل مكفول بهٖ مال (بدل كتابت) مطلقاً ثابت دى او پر اصيل مقيداً ثابت دى په دې

توګه چي که اصيل يعني مکاتب د هغه له اداء کولو څخه عاجز سي نو هغه له کفالې څخه بري کيږي، لهذا د هغه په حق کي د مکفول به (بدل کتابت) ثبوت مقيد سو. حال دا چي د کفالې د صحيح والي لپاره "ضم" (يعني د اصيل ذمه د کفيل د ذمې سره په مطالبه کي يو ځای کول) شرط دي، او د "ضم" (يو ځای کولو) شرط اتحاد فی الاوصاف دی، او هغه دلته نه ته، نو ځکه د دې صورت په اعتبار سره هم د بدل کتابت کفاله جائز نه ده.

وبدل السعاية إلخ: فرمايي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز "بدل سعايه" د کفالې په نه جائز کېدلو کي د "مال کتابت" په څېر دی، يعني څرنګه چي د مال کتابت کفاله صحيح نه ده، همداسي د بدل سعايه کفاله هم صحيح نه ده؛ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز سعی کونکی غلام د مکاتب په درجه کي دی (ځکه مکاتب هم د مال کتابت په اداء کولو سره آزاديږي او سعی کونکی غلام هم چي کله مال اداء کړي نو پاته حصه يې آزاديږي)، لهذا څرنګه چي د مکاتب له طرفه د بدل کتابت کفاله جائز نه ده، يعني څرنګه چي دا جائز نه دي چي يو څوک د مکاتب له طرفه د بدل کتابت کفيل سي، نو همداسي د ساعي غلام له طرفه د بدل سعايه کفاله هم جائز نه ده.

ليکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د بدل سعايه کفاله جائز ده؛ ځکه چي بدل سعايه مستقر دَين (نه ساقطېدونکي قرض) دی، په دې توګه چي که ساعي غلام له اداء کولو څخه عاجز سي نو له هغه څخه بدل سعايه نه ساقطيږي، د دې په خلاف بدل کتابت په عاجز کېدلو سره ساقطيږي، لهذا ساعي غلام داسي دی لکه آزاد مقروض، او د آزاد مقروض له طرفه د قرض کفاله جائز ده، نو ځکه د ساعي غلام له طرفه به هم د بدل سعايه کفاله جائز وي. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# كِتَابُ الْحَوَالَةِ

(دا) كتاب دحوالې (د احكامو په بيان كې) دى

**تشريح:** مخكې تر دې مصنف رَحِمَهُ الله "كتابُ الكفالة" بيان كړى. او تر هغه وروسته اوس "كتابُ الحوالة" بيانوي، د حواله او كفاله په مينځ كې مناسبت دا دى چې دا دواړه د التزام (پر ځان دلازمولو) عقدونه دي، يعني څرنګه چې په كفاله كې كفيل پر ځان هغه شى لازموي كوم چې پر اصيل (مكفول عنه) واجب وي، همداسې په حواله كې محتال عليه پر ځان هغه شى لازموي كوم چې پر محيل واجب وي. او د دې دواړو عقدونو مقصد يو دى يعني اعتماد او توثق (مضبوطوالى)، يعني په كفاله كې مكفول لهٔ ته اطمينان وركول كيږي چې هغه (پر مكفول عنه) اعتماد وكړي او مطمئن اوسي، او په حواله كې محتال لهٔ ته اطمينان وركول كيږي چې هغه مطمئن اوسي. په بله وينا دا چې كفاله د دې خبرې د مضبوطولو لپاره كيږي چې قرضخواه [مكفول لهٔ] ته به خامخا خپل قرض حاصل سي او حواله هم د دې خبرې د مضبوطولو لپاره كيږي چې قرضخواه [محتال لهٔ] ته به خامخا خپل قرض حاصل سي. او څرنګه چې حواله د اصيل برائت لره متضمنه ده (يعني په حواله كې اصيل [مقروض] بري كيږي) نو ځكه هغه د مركب په درجه كې ده. او كفاله د اصيل (مكفول عنه) برائت لره متضمنه نه وي نو ځكه هغه د مفرد په درجه كې ده. او مفرد له مركب څخه مخكې وي. نو ځكه مصنف رَحِمَهُ الله "كتاب الكفالة" مخكې ذكر كړى او تر هغه وروسته اوس "كتاب الحوالة" ذكر كوي.

**د "حوالة" لغوي او اصطلاحي معنىٰ:** د "حواله" لغوي معنىٰ ده: نقلول (منتقل كول)، زائلول.

د "حواله" اصطلاحي او شرعي معنىٰ ده: د قرض مطالبه د مقروض له ذمې څخه د بل چا (محتال عليه) ذمې ته نقل كول (يعني د پور وړي له غاړې څخه د بل چا غاړې ته پور نقلول). خلاصه دا چې د حوالې مطلب دا دى چې د مقروض له غاړې څخه قرض واوړي او بل څوک د هغه ذمه وار (كفيل) سي.

**د حوالې يو څو الفاظ:** په حواله كې څلور الفاظ ياد ساتل ضروري دي:

①... مُحِيل: پر كوم سړي چې قرض باندې وي يعني "مقروض" (چې هغه خپل قرض پر بل چا حواله كړي). هغه ته محيل وايي.

②... مُحْتَال عَلَيْه: پر کوم چا چې قرض حواله کړی سي، يعني کوم سړی چې د قرض ذمه وار سي چې اوس زه قرض اداء کوم، هغه ته محتال عليه وايي.

③... مُحْتَال لَهٗ: د قرض مالک، قرضخواه (چې د هغه لپاره د حوالې عقد وسي). يعني محتال عليه چې د چا لپاره د قرض ذمه وار سي چې ستا قرض زه اداء کوم، هغه ته محتال لهٗ وايي.

④... مُحْتَال بِهٖ: کوم مال چې حواله کړی سي، يعني محتال عليه چې د کوم قرض حواله قبوله کړې او د هغه ذمه وار سي، هغه ته محتال بهٖ وايي.

**فايده**: ځيني مشايخو ويلي دي چې کله حواله وسي نو مُحيل چې څرنګه له مطالبې څخه برې کيږي همداسي له قرض څخه هم برې کيږي، او ځينو ويلي دي چې فقط له مطالبې څخه برې کيږي، له قرض څخه نه برې کيږي،

حواله پر دوه قسمه ده: ① حواله مطلقه، ② حواله مقيده.

حواله مطلقه هغه حوالې ته وايي چې په هغه کې هيڅ قيد نه وي، بيا حواله مطلقه پر دوه قسمه ده: ① ميعادي (يعني چې په هغه کې وخت او مودت تاکل سوی وي). ② غير ميعادي (يعني في الحاله حواله).

او حواله مقيده دې ته وايي چې محيل يعني مقروض د خپل مقروض وطرف ته مطالبه نقل کړي. مثلاً د خالد پر حامد زر درهمه باندي وي او د حامد پر زيد پنځلس سوه درهمه باندي وي، بيا حامد زيد ته ووايي چې ته زما له قرض څخه زر درهمه خالد ته ورکړه!، نو دې ته حواله مقيده وايي.

## د حوالې شرعي حيثيت

قَالَ: وَهِيَ جَائِزَةٌ بِالدُّيُوْنِ فرمايي: او د قرضونو حواله جائز ده قَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ[1]: «مَنْ أُحِيْلَ عَلٰى مَلِيْءٍ فَلْيَتْبَعْ» نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: ”کوم څوک چې پر مالدار کس حواله کړی سي نو هغه دې اتباع وکړي ايعني هغه دې د قرض اخيستلو په هکله په مالدار [محتال عليه] پسې سي او مقروض (محيل) دې پريږدي] وَلِأَنَّهُ الْتَزَمَ مَا يَقْدِرُ عَلٰى تَسْلِيْمِهٖ او ځکه چې هغه [محتال عليه] پر ځان داسي شی لازم کړی دی چې د هغه پر ورسپارلو قادر دی ايعني ورسپارل يې د هغه په وس او قدرت کې دي] فَتَصِحُّ كَالْكَفَالَةِ نو ځکه د کفالې په څېر به حواله هم صحيح وي وَإِنَّمَا اخْتُصَّتْ بِالدُّيُوْنِ لِأَنَّهَا تُنْبِئُ عَنِ النَّقْلِ وَالتَّحْوِيْلِ او کفاله [په دې وجه] د قرضونو سره خاص کړی

سوې ده ځکه چې هغه د نقلولو او منتقل کولو خبر ورکوي وَالتَّحْوِيلُ فِي الدَّيْنِ لَا فِي الْعَيْنِ او نقلول په دَين کي وي. نه په عَين کي ايعني له يوې ذمې څخه بلې ذمې ته صرف دَين منتقل کيږي. عين شی نه منتقل کيږي: ځکه چې عَين شی مُتعيَن وي لېکن دَين مُتعيَن نه وي ].

**اللغات**: ﴿ملیء﴾ د دې لفظ خپله معنیٰ ده: ډک. مراد ځني موړ او مالدار (شتمن کس) دی. لکه زموږ په اصطلاح کي چې هم ویل کيږي: فلانکی ډېر موړ او ډک دی. ﴿تحويل﴾ د تفعيل مصدر دی: د دې لفظ او د النَّقْل يوه معنیٰ ده: نقلول. منتقل کول. ﴿دَين﴾ قرض. مراد ځني دراهم. دنانير. روپۍ او پيسې دي. دا په مُتعيَن کولو سره نه مُتعيَن کيږي (مثلا که څوک وواېي چې خاص دغه سل روپۍ به راکوې. نو هغه نه مُتعيَن کيږي بلکي د هغه پر ځای نوري سل روپۍ هم ورکولای سي. ځکه چې په پيسو کي هيڅ فرق نه وي ټول يو نرخ لري). ﴿عَين﴾ عَين شی. لکه غنم. وريجي او داسي نور ټوله شيان کوم چې مُتعيَن وي (نور وضاحت به د تشريح په آخر کي ذکر سي).

**تشريح**: په دې عبارت کي د حوالې جواز په نقلي او عقلي دلائلو سره ثابت سوی دی. فرمايي چې حواله جائز ده. او په دې هکله نقلي دليل د ابو هريره ﷺ حديث دی کوم چې په بخاري او مسلم کي په دې الفاظو سره ذکر سوی دی: "مَطْلُ الْغَنِيِّ ظُلْمٌ فَإِذَا أُتْبِعَ أَحَدُكُمْ عَلَى مَلِيْءٍ فَلْيَتَّبِعْ" يعني د مالدار (شتمن کس) ټال مټول ظلم دی او کله چې په تاسو کي يو څوک (قرضخواه) په مالدار پسې کړی سي (يعني پر مالدار حواله کړی سي) نو هغه دې اتباع وکړي. يعني محتال لهٔ (قرضخواه) ته پکار دي چې دا حواله قبوله کړي او په مالدار دي پسې سي او فقط له مقروض (محيل) څخه دي د قرض اخيستلو ضد نه کوي (چې زه يې خامخا ستا څخه غواړم). او په طبراني کي دا حديث په دې الفاظو سره ذکر سوی دی: " مَطْلُ الْغَنِيِّ ظُلْمٌ فَإِذَا أُحِيلَ أَحَدُكُمْ عَلَى مَلِيْءٍ فَلْيَتَّبِعْ " ترجمه يې ښکاره ده•.

حاصل دا چې که مقروض (پوروړی) خپل قرض د يو مالدار وطرف ته منتقل کړي او هغه د اداء کولو ذمه وار مقرر کړي نو مالدار ته پکار دي چې ټال مټول نه وکړي بلکي قبول يې کړي. او کله چې مالدار د قرض اداء کولو ذمه وار سي او قبول يې کړي نو قرضخواه يعني محتال لهٔ دي هم نخرې نه کوي بلکي دا حواله دي قبوله کړي او د مقروض پر ځای دي له مالدار (محتال عليه) څخه قرض واخلي.

---

• "مَطْل" ټال مټول ته وايي. د ټال مټول معنی ده: څوک په تمه کښېنول. يعني د يو چا حق له يوه وخت څخه بل وخت ته ځنډول چې ته سبا راسه زه به يې درکرم. د سبا ورځ چې راسي نو وواېي چې بل سبا به يې درکرم په همدې توګه هغه له خپل وخت څخه حق ډېر وځنډوي او حقدار ډېر ستړی او بېزاره کړي. که څوک وس او طاقت لري يعني مالدار وي. نو د هغه لپاره ټال مټول کول ظلم دی. همدارنګه که څوک مالدار وي او پر هغه د بل چا قرض را حواله کړی سي نو هغه دي په دې باره کي هم ټال مټول نه کوي يعني د قرض اداء کولو ذمه واري دي واخلي او حواله دي قبوله کړي.

**ولأنه التزم مايقدر إلخ:** عقلي دليل دا دی چي کله مقروض پر بل سړي قرض حواله کړي او دا بل سړی (محتال عليه) د قرض اداء کول قبول کړي، نو ګواکي هغه (محتال عليه) پر ځان يو شی لازم کړی، او انسان عموماً پر خپل ځان هغه شی لازموي چي د هغه ورسپارل د انسان په قدرت کي وي، او د داسي شی کفاله (کفيل کېدل) صحيح دي چي د هغه ورسپارل د انسان په قدرت کي وي. نو ځکه د هغه حواله به هم صحيح وي.

**وإنما اختصت:** فرمايي د متن په اوله جمله "وَهِيَ جَائِزَةٌ بِالدُّيُوْن" کي حواله ځکه د قرضونو (دُيون) سره خاص کړی سوې ده، نه د اعيانو سره، د دې وجه دا ده چي د حوالې معنیٰ ده "تحويل" (نقلول، منتقل کول)، او تحويل (نقلول) فقط په قرضونو کي ممکن دی لېکن په اعيانو کي ممکن نه دی، ځکه قرض غير مُتعيّن وي، لهذا هغه د هر چا پر ذمه لازمول کېدای سي او هر څوک يې اداء کولای سي، او عَين شی مُتعيّن وي، لهذا عَين فقط هغه کس اداء کولای سي د کوم چا سره چي هغه موجود وي، او د يو چا عَين د بل چا سره موجود نه وي، نو ځکه د عَين حواله جائز نه ده. (مثلا که د يو سړي پر زيد غنم باندي وي او زيد هغه سړی پر خالد حواله کړي چي ته ورسه! له خالد څخه زما د قرض غنم واخله!. نو ښکاره خبره ده چي د خالد سره خاص هغه غنم نسته کوم چي هغه سړي زيد ته په قرض ورکړي وه، ځکه غنم عَين شی دی کوم چي مُتعيّن دی او د يوه سړي عَين شی د بل چا سره نه وي [ځکه په غنمو کي ډېر فرق وي، بعضي ډېر کمزوري وي او بعضي خونلور وي]. لېکن که د يو سړي پر زيد مثلاً سل روپۍ باندي وي، او زيد هغه سړی پر خالد حواله کړي، نو ښکاره خبره ده چي د خالد سره خامخا سل روپۍ سته ځکه روپۍ [دراهم او دنانير...] دَين دی او دَين په مُتعيّن کولو سره نه مُتعيّن کيږي او د يوه سړي سره چي کوم مال او روپۍ وي هغه د بل چا سره هم وي [ځکه روپۍ چي هر څنګه وي د ټولو نرخ او قيمت يو وي]).

## د حوالې شرائط

قَالَ: وَتَصِحُّ الْحَوَالَةُ بِرِضَاءِ الْمُحِيْلِ وَالْمُحْتَالِ وَالْمُحْتَالِ عَلَيْهِ فرمايي: او حواله د محيل، محتال لهٗ او محتال عليه په رضا سره صحيح کيږي أَمَّا الْمُحْتَالُ فَلِأَنَّ الدَّيْنَ حَقُّهُ کوم چي محتال لهٗ دی نو ځکه [د هغه رضا شرط ده] چي قرض د هغه حق دی وَهُوَ الَّذِيْ يَنْتَقِلُ بِهَا او همدا قرض د حواله په ذريعه منتقل کيږي وَالذِّمَمُ مُتَفَاوِتَةٌ او تفاوت په ذمو [ذمه واريانو] کي دی [مطلب دا چي فرق او تفاوت په ذمه واري اخيستونکو خلکو (محتال عليهم) کي دی] فَلَا بُدَّ مِنْ رِضَاهُ نو ځکه د محتال لهٗ رضا ضروري ده وَأَمَّا الْمُحْتَالُ عَلَيْهِ فَلِأَنَّهُ يَلْزَمُهُ الدَّيْنُ او کوم چي محتال عليه دی نو ځکه [د هغه رضا شرط ده] چي قرض د هغه پر ذمه لازميږي وَلَا لُزُوْمَ بِدُوْنِ الْتِزَامِهِ او د هغه د لازمولو څخه بغير لزوم

نه سي کېدای (يعني بېکاره خبره ده چي قرض هغه وخت پر محتال عليه لازمېږي کله چي هغه په خپله د قرض التزام وکړي. يعني په خپله يې پر خپل ځان او ذمه لازم کړي) وَأَمَّا الْمُحِيْلُ فَالْحَوَالَةُ تَصِحُّ بِدُوْنِ رِضَاهُ او کوم چي محيل دی نو حواله د هغه له رضا څخه بغير [هم] صحيح کيږي ذَكَرَهُ فِي الزِّيَادَاتِ دا امام محمد رَحِمَهُ الله په زيادات کي ذکر کړي دي لِأَنَّ الْتِزَامَ الدَّيْنِ مِنَ الْمُحْتَالِ عَلَيْهِ تَصَرُّفٌ فِي حَقِّ نَفْسِهِ ځکه چي پر ځان قرض لازمول د محتال عليه له طرفه د خپل ځان [ذات] په حق کي تصرف دی وَهُوَ لَا يَتَضَرَّرُ بِهِ او محيل ته په دې سره هيڅ ضرر [هم] نه رسيږي بَلْ فِيهِ نَفْعُهُ بلکي په دې کي د هغه نفع ده لِأَنَّهُ لَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ إِذَا لَمْ يَكُنْ بِأَمْرِهِ ځکه کله چي حواله د محيل په حکم [او رضا] سره نه وي نو محتال عليه له هغه څخه [قرض] واپس نه سي اخيستلای.

**اللغات**: ﴿محيل﴾ حواله کونکی. د محيل، محتال لهٔ او محتال عليه پوره معنیٰ د کتاب الحواله په شروع کي ذکر سوه. ﴿محتال﴾ له دې څخه محتال لهٔ يعني قرضخواه (دائن) مراد دی. ﴿الذمة﴾ لغتپوهانو د دې څو معناوي ذکر کړي دي: ذمه، غاړه، مسووليت، عهد و پيمان، ذمه واري.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د حوالي د صحيح والي لپاره د محيل، محتال او محتال عليه ټولو رضا شرط ده.

د محتال لهٔ رضا بالاتفاق شرط او ضروري ده. د هغه په شرطوالي کي د چا اختلاف نسته؛ دليل دا دی چي قرض د محتال لهٔ حق دی او قرض د حواله کولو په ذريعه منتقل کيږي هم، لېکن د کومو خلکو ذمې ته چي نقل کيږي يعني محتال عليهم خلک، په هغوی کي فرق دی د ټولو ذمه (ذمه واري) يو ډول نه وي؛ ځکه بعضې خلک د قرض په اداء کولو کي سوچه او کره وي هيڅ ټال مټول نه کوي او خپله ذمه واري پر وخت اداء کوي او بعضي دنيا پرسته خلک په دې هکله ډېر بې پروايي کوي او ټال مټول او خيانت يې په خمير اخښلي وي، لهذا که د محتال لهٔ رضا شرط نه کړی سي نو کېدای سي چي محتال لهٔ په ضرر او نقصان کي ولوېږي، په دې توګه چي داسي کس محتال عليه وګرځي چي ډېر بد مزاجه او په ټال مټول عادي وي (او محتال لهٔ به په راضي نه وي)، نو څرنګه چي له داسي سړي څخه خپل قرض اخيستل ډېر مشکل پرېوځي، نو ځکه د حوالې د والي لپاره د محتال لهٔ رضا شرط ګرځول سوې ده.

واما المحتال عليه إلخ: او پاته سو محتال عليه، که چيري پر هغه د محيل قرض باندي نه وي نو په دې صورت کي د محتال عليه رضا بالاجماع شرط ده، او که چيري پر محتال عليه د محيل قرض باندي وي نو زموږ په نيز په دې صورت کي هم د محتال عليه رضا شرط ده (لېکن دائمه ثلاثه وو يعني د امام شافعي، امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمُ الله په نيز په دې صورت کي د محتال عليه رضا شرط نه ده).

فلأنه يلزمه الدَين إلخ: زموږ د دليل حاصل دا دی چي حواله د محيل له طرفه پر محتال عليه قرض لازمول دي، يعني په حواله کي محيل د محتال عليه پر ذمه قرض لازموي او د هغه پر غاړه يې اچوي، او لزوم له التزام څخه بغير نه سي کېدای (يعني يو شی هغه وخت پر سړي لازمېږي کله چي دا سړی په خپله هغه شی پر خپل ذمه لازم کړي. بغير د التزام [الازمولو] څخه نه پر لازمېږي) کنې هر کس به د خپل خوښې مطابق د بل چا پر ذمه يو شی لازمولای، نو ځکه پر محتال عليه د قرض لازمېدلو لپاره ضروري دي چي هغه يې په خپله پر خپل ځان لازم کړي، او کله چي محتال عليه په خپله پر خپل ځان قرض لازم کړي نو ښکاره خبره ده چي محتال عليه په دې لازمولو راضي سو، نو معلومه سوه چي پر محتال عليه د قرض لازمېدلو لپاره د هغه رضا هم شرط ده.

وأما المحيل إلخ: پاته سو محيل، نو د هغه په هکله دوه قولونه دي: ① امام قدوري رَحِمَهُ الله په متن کي ويلي دي چي د حوالي د صحيح والي لپاره د هغه رضا هم شرط ده (ځکه هغه ويلي دي: برضاء المحيل والمحتال... إلخ). ② لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله په زيادت کي ذکر کړي دي چي حواله د محيل له رضا څخه بغير هم صحيح کيږي:

د زيادت د روايت دليل دا دی چي په حواله کي محتال عليه پر خپل ځان قرض لازموي، او دا په خپل ذات کي تصرف کول دي، او انسان چي په خپل ذات کي کوم تصرف کوي د هغه لپاره د بل چا اجازت او رضا شرط نه وي (ځکه هر چا ته د خپل ذاتي تصرف اختيار سته)، نو ځکه د محيل له اجازت او رضا څخه بغير هم حواله صحيح ده. او بل دا چي په دغه تصرف کي د محيل نقصان هم نسته بلکي په دې کي د هغه نفع ده، يو نفع خو دا ده چي د محيل له ذمې څخه به د قرض مطالبه ساقطه سي (يعني تر دې وروسته به قرضخواه [محتال له] له هغه څخه د قرض مطالبه نه کوي) او بله نفع دا چي کله محتال عليه د محيل له حکم او رضا څخه بغير د هغه قرض اداء کړي، نو معلومه خبره ده چي هغه ته به دا اختيار نه وي چي له محيل څخه اداء کړی سوی مال واخلي (ځکه هغه د محيل له حکم څخه بغير د هغه قرض اداء کړی دی) او په دې کي د محيل ښکاره نفع ده.

د امام قدوري رَحِمَهُ الله د روایت دلیل دا دی چې د غیرت او مرانې خاوند (بامروته سړی) دا خبره نه خوښوي چې د هغه قرض او بار پر بل چا پرېوځي او د بل چا احسان پر ځان واچوي. او داسې کول هغه د ځان سپکاوی بولي. نو ځکه د محیل رضا هم شرط او ضروري ده.

## د حوالې تر پوره کېدلو وروسته د مُحِيل حکم

قَالَ: وَإِذَا تَمَّتِ الْحَوَالَةُ فرمايي: او کله چې حواله پوره سي بَرِئَ الْمُحِيْلُ مِنَ الدَّيْنِ بِالْقَبُوْلِ نو د حوالې د په قبلولو سره [سمدستي] محیل له قرض څخه بري کیږي وَقَالَ زُفَرُ: لَايَبْرَأُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې نه بري کیږي اِعْتِبَارًا بِالْكَفَالَةِ پر کفاله په قیاس کولو سره إِذْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَقْدُ تَوَثُّقٍ ځکه چې له دې دواړو [حواله او کفاله] څخه هر یو د توثق [مضبوطوالي] عقد دی وَلَنَا أَنَّ الْحَوَالَةَ النَّقْلُ لُغَةً زموږ دلیل دا دی: چې د حوالې لغوي معنیٰ ده "منتقل کول" وَمِنْهُ حَوَالَةُ الْغِرَاسِ او له همدې څخه "حوالةُ الغراس" [مشتق] دی وَالدَّيْنُ مَتَى انْتَقَلَ عَنِ الذِّمَّةِ او قرض چې کله له يوې ذمې څخه منتقل سي لَايَبْقَى فِيْهَا نو بیا پر هغه ذمه نه پاتېږي أَمَّا الْكَفَالَةُ فَلِلضَّمِّ او کوم چې کفاله ده نو هغه د "یو ځای کولو" په معنیٰ سره ده وَالْأَحْكَامُ الشَّرْعِيَّةُ عَلَى وِفَاقِ الْمَعَانِي اللُّغَوِيَّةِ او شرعي احکام د لغوي معنیٰ موافق وي وَالتَّوَثُّقُ بِاخْتِيَارِ الْأَمْلَإِ وَالْأَحْسَنِ فِي الْقَضَاءِ او توثق [مضبوطوالی] د زیات مالدار کس په اختیارولو سره او [د قرض] په اداء کولو کې د ښه کس په اختیارولو سره حاصلیږي وَإِنَّمَا يُجْبَرُ عَلَى الْقَبُوْلِ إِذَا نَقَدَ الْمُحِيْلُ او محیل چې کله [د قرض مال] اداء کړي نو محتال لهٔ په دې وجه [د هغه مال] پر قبلولو مجبورول کیږي لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ عَوْدُ الْمُطَالَبَةِ إِلَيْهِ بِالتَّوَى ځکه چې مال ضایع کېدلو په وجه د محیل وطرف ته د مطالبې راګرځېدلو احتمال سته فَلَمْ يَكُنْ مُتَبَرِّعًا نو ځکه به محیل متبرّع [احسان کونکی] نه وي.

**اللغات**: ﴿تمّت﴾ د ضرب له بابه د واحد مؤنث غائب صیغه ده: پوره کېدل، بشپړ کېدل. ﴿توثّق﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مضبوطېدل (پخېدل، ټینګېدل)، قوي کېدل. ﴿الغِراس﴾ (د غین په کسره سره): د درختي تازه لښته او نیالګی کوم چې په ځمکه کې شین کړی سي (چې له هغه څخه بیا غټه درخته جوړه سي). کله چې نیالګی له یوه ځای څخه بل ځای ته منتقل کړی سي او په بله ځمکه کې ودرول سي (شین کړی سي)، نو دې ته په عربي کې "حوالةُ الغِراس" وایي (یعني د نیالګي منتقل کول)، لهذا

معلومه سوه چې د "حوالې" لغوي معنیٰ ده: منتقل کول، نقلول. ﴿ضمّ﴾ د نصر د باب مصدر دی، يو ځای کول. ﴿وفاق﴾ موافق کېدل. ﴿أملأ﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات مالدار (ډېر شتمن کس).
﴿عود﴾ د ضرب مصدر دی: راګرځېدل. ﴿التوى﴾ د سمع د باب اسم مصدر دی: که د دې په باب صله کې انسان ذکر سي، نو د "هلاکېدلو" معنیٰ ورکوي، او که مال او حق ذکر سي نو د "ضايع کېدلو" او "بربادېدلو" معنیٰ ورکوي (داسي ضايع کېدل چې بيا يې هيڅ اُميد نه وي).

**تشريح:** څه مخکي دا خبره ذکر سوه چې د حوالي د صحيح والي لپاره د محتال عليه او محتال لهٗ رضا شرط ده، په دې عبارت کې دا را ښيي چې کله هم محتال عليه او محتال لهٗ په حواله راضي سي او هغه قبوله کړي، نو حواله پوره کيږي او زموږ په نېز محيل له قرض څخه بري کيږي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې د محتال عليه او محتال لهٗ په قبلولو سره خو حواله پوره کيږي لېکن محيل له قرض او مطالبې څخه نه بري کيږي.

**د امام زفر دليل:** قياس دی، يعني هغه حواله پر کفاله قياس کړې ده، او د قياس وجه يې دا ده چې له دې دواړو (کفاله او حواله) څخه هر يو د توثق او مضبوطوالي عقد دی، يعني حواله هم د کفالې په څېر د دې خبري د مضبوطولو لپاره کيږي چې قرضخواه (محتال لهٗ) ته به خامخا خپل قرض حاصل سي (په بله وينا دا چې د حوالې مطلب دا دی چې د قرض اداء کېدل مضبوطه او يقيني سي او محتال لهٗ مطمئن سي لکه د کفالې مطلب چې هم دغه دی چې د قرض اداء کېدل د کفيل په ذريعه مضبوطه او يقيني سي او مکفول لهٗ [قرضخواه] مطمئن سي)، او تاسو ته معلومه ده چې په کفاله کې اصيل يعني مکفول عنه له قرض څخه نه بري کيږي، نو همداسي به په حواله کې اصيل يعني محيل هم له قرض څخه نه بري کيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چې د حوالې لغوي معنیٰ ده "منتقل کول" (نقلول)، او له همدې څخه "حوالةُ الغِراس" د نيالګي (نهال) د منتقل کولو په معنیٰ سره مستعمل دی، لهذا د حوالې په ذريعه د قرض منتقل کېدل ضروري سوه چې هغه به د محيل له ذمې څخه منتقل کيږي، او کله چې قرض د محيل له ذمې (غاړې) څخه د محتال عليه ذمې ته منتقل سو نو د محيل ذمه فارغه سوه او قرض د محيل په ذمه کې پاته نه سو (ځکه داسي نه سي کېدای چې يو قرض دې پر دواړو ذمه پاته وي)، لهذا کله چې د محيل پر ذمه قرض باقي پاته نه سو، نو ښکاره خبره ده چې محيل بري سو. او پاته سوه کفاله نو د هغې لغوي معنیٰ ده "ضم" (يو ځای کول) يعني "ضمُّ الذمةِ إلى الذمة"، او ښکاره خبره ده چې "ضم" هغه وخت ثابتيږي يعني هغه وخت يوه ذمه د بلي ذمې سره يو ځای کيږي کله چې د اصيل (مکفول عنه)

پر ذمه هم قرض باقي پاته وي، او څرنګه چي أصول دا دی چي په شرعي احکامو کي د لغوي معنیٰ اعتبار کيږي او هغوی د خپل لغوي معنیٰ موافق وي، نو ځکه د حوالي د لغوي معنیٰ په اعتبار کولو سره به محيل له قرض څخه بري کيږي (ځکه د حوالي لغوي معنیٰ ده: منتقل کول. يعني قرض له يوې ذمې څخه بلي ذمي ته نقلول)، او د کفالي د لغوي معنیٰ په اعتبار کولو سره به پر مکفول عنه قرض باقي پاتيږي (ځکه د کفالي لغوي معنیٰ ده: يوه ذمه د بلي ذمې سره يو ځای کول).

والتوثق باختيار إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چي تاسو خو حواله د توثق عقد بللی دی، ليکن کله چي قرض له محيل څخه محتال عليه ته منتقل سو او محيل بري سو، نو په هغه کي خو هيڅ توثق (مضبوطوالی) پاته نه سو، صرف دومره وسوه چي قرض مخکي پر محيل وو، او په حواله سره هغه پر محتال عليه راغلی؟.

د دې جواب دا دی چي د توثق او مضبوطوالي لپاره دا ضروري نه ده چي قرض به پر دوو خلګو واجب وي او قرضخواه (دائن) ته به له دواړو څخه د مطالبې حق وي، بلکي د محيل د بري کېدلو باوجود هم توثق حاصليږي، په دې توګه چي د محيل (مقروض) په نسبت محتال عليه زيات مالدار وي، يا د محيل په نسبت محتال عليه د قرض په اداء کولو کي ښه سلوک او معامله کوي او په دې باره کي هيڅ بې پروايي نه کوي، نو په دغه هر صورت کي د محيل په نسبت له محتال عليه څخه د قرض په اخيستلو کي زيات توثق، باور او مضبوالی سته، نو معلومه سوه چي د محيل د بري کېدلو باوجود هم په حواله سره توثق حاصليږي.

وإنما يجبر إلخ: دا هم د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چي ستاسو دا خبره موږ نه تسليمو چي "محيل له قرض څخه بري کيږي"، ځکه که چيري محتال عليه قرض اداء نه کړي بلکي تر هغه مخکي محيل قرض اداء کړي يعني محتال لهٗ ته خپل د قرض مال ورکړي، نو حکم دا دی چي محتال لهٗ به د هغه پر اخيستلو او قبلولو مجبورول کيږي ، له دې څخه هم معلومه سوه چي محيل له قرض څخه نه دی بري سوی بلکي قرض د هغه پر ذمه پاته دی؛ ځکه که محيل له قرض څخه بري سوي وای نو محيل به د قرض په اداء کولو کي متبرّع وای (ځکه معلومه خبره ده چي کله د يو چا پر ذمه قرض پاته نه وي او بيا هم هغه قرض اداء کړي نو دا د هغه له طرفه احسان او تبرّع وي)، او متبرّع (احسان کونکي) چي کومه تبرّع (احسان) وکړي د هغه پر اخيستلو هيڅوک نه مجبورول کيږي، لهذا محتال عليه د محيل د مال پر اخيستلو مجبورول کېدل د دې خبري دليل دی چي محيل له قرض څخه نه دی بري سوی بلکي قرض د هغه پر ذمه باقي دی.

د دې جواب دا دی چې په پورتنې صورت کې د محیل نه متبرع کېدل او محتال علیه د هغه د مال پر اخیستلو مجبورول کېدل د دې احتمال په وجه دي چې که چیرې د محتال علیه سره مال ضایع سي یعني محتال علیه مفلس او ډېوالي سي یا هغه له حوالې څخه انکار وکړي نو ښکاره خبره ده چې د قرض مطالبه به بیرته د محیل (اصیل) وطرف ته را وګرځي او بیرته به هغه قرض اداء کوي. نو د دغه احتمال په وجه محیل متبرع نه ګرځي. لهذا کله چې هغه متبرع نه سو. نو ځکه هغه د محیل د مال قرض پر اخیستلو مجبورول کیږي. (په بله وینا داسي هم ویل کېدای سي چې صرف د پورتنې احتمال په وجه [یعني د دې احتمال په وجه چې کېدای سي د محیل پر ذمه به بیرته قرض راسي] د قرض اداء کولو په وخت کې د محیل پر ذمه قرض باقي شمارل کیږي. او کله چې په دې وخت وکې هغه باقي شمارل کیږي. نو ځکه هغه به تبرع نه وي. او کله چې هغه تبرع نه دی. نو په دې وجه محتال علیه د هغه پر اخیستلو مجبورول کیږي. کنې حقیقت همدا دی چې په حواله سره قرض د محیل له ذمې څخه منتقل کیږي او هغه بري کیږي. همدا وجه ده چې کله محتال علیه محتال لهٔ ته قرض ورکړي نو بیا محتال لهٔ بالکل د محیل څخه د قرض مطالبه نه سي کولای).

## پر مُحیل د محتال له د رجوع کولو حکم

قَالَ: وَلَا يَرْجِعُ الْمُحْتَالُ عَلَى الْمُحِيلِ او محتال لهٔ پر محیل رجوع نه سي کولای [یعني محتال لهٔ ته له محیل څخه د قرض اخیستلو اختیار نسته] إِلَّا أَنْ يَتْوَى حَقُّهُ مګر دا چې د محتال لهٔ حق ضایع سي وَقَالَ: الشَّافِعِيُّ: لَا يَرْجِعُ وَإِنْ تَوِيَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې رجوع به نه کوي که څه هم د هغه حق ضایع سي لِأَنَّ الْبَرَاءَةَ حَصَلَتْ مُطْلَقَةً ځکه چې بري کېدل مطلقاً حاصل سوي دي [یعني ځکه چې د کفیل بري کېدل مطلقاً ثابت دي] فَلَا تَعُودُ إِلَّا بِسَبَبٍ جَدِيدٍ نو ځکه له یو نوي سبب څخه بغیر به [پر محیل] قرض نه راګرځي وَلَنَا: أَنَّهَا مُقَيَّدَةٌ بِسَلَامَةِ حَقِّهِ لَهُ زموږ دلیل دا دی: چې بري کېدل د محتال لهٔ د حق په سالموالي [سلامتیا] سره مقید دي إِذْ هُوَ الْمَقْصُودُ ځکه چې همدا مقصود دي أَوْ تَنْفَسِخُ الْحَوَالَةُ لِفَوَاتِهِ یا د مقصود فوتېدلو په وجه به حواله فسخ کیږي لِأَنَّهُ قَابِلٌ لِلْفَسْخِ ځکه چې حواله د فسخ قبلونکې ده [یعني فسخ کېدای سي] فَصَارَ كَوَصْفِ السَّلَامَةِ فِي الْمَبِيعِ نو دا داسي سو لکه په مبیع کې د سالموالي [سلامتیا] وصف.

**اللغات**: ﴿یتوٰی﴾ د سمع د باب مضارع ده: ضایع کېدل، بربادېدل، هلاکېدل. ﴿جدید﴾ نوی. ﴿السلامة﴾ سالموالي، سلامتیا (سلامتي).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې کله حواله پوره سي نو زموږ په نېز محتال لهٔ ته دا اختیار نسته چې د قرض په هکله محیل ته رجوع وکړي، ها! که چیرې د محتال لهٔ حق ضایع سي یعنې

محتال علیه له حوالې څخه انکار وکړي، یا مړ سي یا حاکم دِ هغه د مفلس والي فیصله او اعلان وکړي، نو په دې صورت کي محتال لهٔ پر محیل رجوع کولای سي (یعني له هغه څخه قرض اخیستلای سي). او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي د محتال لهٔ د حق ضایع کېدلو باوجود هم محتال لهٔ ته پر محیل د رجوع کولو اختیار نسته (همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله قول دی).

**د امام شافعي دلیل**: دا دی چي د محیل بري کېدل مطلقاً ثابت دي (یعني د حوالې د منعقد کېدلو په وخت کي محیل مطلقاً بري کیږي) په هغه کي داسي هیڅ قید نسته چي "که چیري د محتال لهٔ حق ضایع سي نو هغه به نه بري کیږي بلکي پر هغه به محتال لهٔ ته د رجوع حق او اختیار وي". لنډه دا چي کله د محیل بري کېدل مطلقاً ثابت دي نو ځکه پر محیل به بیا (دوباره) قرض نه راګرځي، مګر دا چي کله یو نوی (جدید) سبب موجود سي، مثلاً محیل د محتال لهٔ څخه محتال بهٖ مال رانیسي یا حواله خپل طرف ته رامنتقل کړي، نو فقط په دې صورت کي محتال لهٔ ته پر هغه حق او اختیار حاصلیږي.

**زموږ دلیل**: دا دی چي د محیل بري کېدل د محتال لهٔ د حق په سالموالي (سلامتیا) سره مقید دي، ځکه د حوالې مقصد همدا دی چي د محتال لهٔ حق سالم او محفوظ پاته سي او هغه ته خپل حق صحیح سلامت ورسیږي، لېکن کله چي دا مقصد او شرط "یعني د محتال لهٔ د حق سلامتیا" فوت سي او هغه ضایع سي، نو د هغه په فوتېدلو سره به حواله فسخ کیږي، او کله چي حواله فسخ سي نو سمدستي د محتال لهٔ حق (قرض) بیرته پر محیل راګرځي، او کله چي د محتال لهٔ حق بیرته د محیل پر ذمه را وګرځي، نو ښکاره خبره ده چي محتال لهٔ ته به پر محیل د رجوع کولو اختیار هم حاصلیږي.

د دې مثال داسي دی لکه په بیع کي چي د مبیع د سالموالي وصف شرط دی (ځکه هر څوک پر دې شرط یو شی رانیسي چي ما ته به هغه صحیح سلامت راکول کیږي)، لهذا که مشتري یو مبیع رانیسي لېکن هغه له قبضه کولو څخه مخکي هلاک او ضایع سي، نو څرنګه چي د هغه مبیع په هلاکېدلو سره د بیع مقصد (یعني پر مبیع د مشتري قبضه کول) فوت سو، نو ځکه دا بیع فسخ کیږي او د مشتري حق ثمن ته راګرځي او هغه ته دا اختیار حاصلیږي چي له بائع څخه خپل ثمن واپس واخلي، نو همداسي کله چي د حوالې مقصد فوت سي، نو هغه به فسخ کیږي او د محتال لهٔ حق به پر من علیه الحق یعني پر محیل راګرځي.

## توئ (ضايع کېدل) کله ثابتيږي؟

قَالَ: وَالتَّوٰى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ أَحَدُ الْأَمْرَيْنِ فرمايي: او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [د مال] ضايع کېدل يو د دې دوو کارونو دی وَهُوَ إِمَّا أَنْ يَجْحَدَ الْحَوَالَةَ وَيَحْلِفَ او هغه دا چي يا محتال عليه د حوالې انکار وکړي او قسم واخلي وَلَا بَيِّنَةَ لَهُ عَلَيْهِ او د هغه په خلاف د محتال سره بينه نه وي أَوْ يَمُوتَ مُفْلِسًا يا دا چي محتال عليه د مفلس والي په حالت کي مړ سي لِأَنَّ الْعَجْزَ عَنِ الْوُصُولِ يَتَحَقَّقُ بِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا ځکه چي [د حق] له اخيستلو څخه عاجزه کېدل په دې دواړو کي په هر يوه سره ثابتيږي وَهُوَ التَّوٰى فِي الْحَقِيقَةِ او ضايع کېدل په حقيقت کي همدا دي وَقَالَا ۞: هَذَانِ الْوَجْهَانِ وَوَجْهٌ ثَالِثٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي دا دوې وجهي [هم] دي او بله درېيمه وجه [هم] سته وَهُوَ أَنْ يَحْكُمَ الْحَاكِمُ بِإِفْلَاسِهِ حَالَ حَيَاتِهِ او هغه دا چي د محتال عليه په ژوند کي حاکم د هغه د مفلسوالي فيصله وکړي وَهٰذَا بِنَاءٌ عَلَى أَنَّ الْإِفْلَاسَ لَا يَتَحَقَّقُ بِحُكْمِ الْقَاضِي عِنْدَهُ خِلَافًا لَهُمَا او دا اختلاف پر دې مبني دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د قاضي په فيصله کولو سره مفلسوالي نه ثابتيږي، په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله لِأَنَّ الْمَالَ غَادٍ وَرَائِحٌ ځکه چي مال تلونکی او راتلونکی دی [مطلب دا چي سهار به يو انسان مالدار وي لېکن ماښام ته به ډېوالي وي، او سهار به يو انسان مفلس وي لېکن ماښام ته به مالدار وي].

**اللغات**: ﴿التوى﴾ د ضرب اسم مصدر دی، د دې لغوي معنیٰ موږ څه مخکي ذکر کړه چي که په صله کي يې مال او حق ذکر سي نو د "ضايع کېدلو" او "بربادېدلو" معنیٰ ورکوي. ﴿يجحد﴾ د فتح مضارع ده: انکار کول. ﴿بيِّنة﴾ گواهي (شاهدي). ﴿مفلس﴾ د افعال د باب فاعل دی: مفلس، ډېوالي. ﴿وصول﴾ د ضرب د باب مصدر دی، لغوي معنیٰ يې ده: رسېدل (يعني خپل حق او مال ته رسېدل)، مراد څني د حق اخيستل او حاصلول (ترلاسه کول) دي. ﴿غَادٍ﴾ د نصر د باب اسم فاعل دی، غَدَا. يَغْدُو. غُدُوًّا: د سهار په وخت کي تلل يا راتلل (واپس کېدل)، د کثرت استعمال په وجه مطلق "تگ او راتگ" ته هم وايي هغه که په هر وخت کي وي.

---

۞ القول الراجح: قول ابی حنيفة رَحِمَهُ الله، کما قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: وظاهر کلامهم متوناً وشر[حاً] تصحيح قو[ل] الأمام (رد المحتار ج:۴، ص:۳۲۶)، وکذا فی فتح القدير (ج:۶، ص:۳۵۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۰۴]

﴿رَائِحٌ﴾ دا هم د نصر د باب اسم فاعل دی: د ماښام په وخت کي راتلل يا تلل يا يو بل کار کول. دا باب هم د "غَدَا يَغْدُو" په څېر ځيني وخت د مطلق "تګ او راتګ" په معنیٰ استعماليږي.

**تشريح**: مخکي چي د مال او حق په هکله کوم د "توی" لفظ ذکر سو د هغه معنیٰ ده: ضايع کېدل. مال بربادېدل. د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا توی له دوو کارونو څخه د يوه کار په ذريعه ثابتيږي: ①... يو دا چي محتال عليه له حوالې څخه انکار وکړي او قسم واخلي. او د محتال عليه په خلاف نه د محيل سره بيّنه وي او نه د محتال لهٔ سره بيّنه وي. ②... يا محتال عليه د مفلسوالي په حالت کي مړ سي. يعني نه هيڅ مال پرېږدي، او نه يې پر چا قرض باندي وي. او نه يې پر خپل ځان د محتال عليه لپاره کفيل پرې ايښی وي.

دليل دا دي چي په دې دواړو صورتونو کي محتال لهٔ د خپل حق له اخيستلو او حاصلولو څخه عاجز دی؛ په اول صورت کي خو ځکه چي محتال لهٔ د محتال عليه څخه پر مطالبه کولو قادر پاته نه سو. او په دويم صورت کي داسي ذمه (غاړه) باقي پاته نه سوه چي د هغې سره د محتال لهٔ حق متعلق سي.

وقالا إلخ: د دې حاصل دا د چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز له مذکوره دوو صورتونو سره د "توی" درېيم صورت دا دی چي حاکم او قاضي د محتال عليه په ژوند کي د هغه د مفلسوالي فيصله وکړي يعني دا اعلان وکړي "چي فلانکی کس (محتال عليه) مفلس ثابت سو. لهذا اوس مو د هغه په هکله د چا مطالبه نه اورو". نو څرنګه چي په دې صورت کي هم محتال لهٔ د خپل حق له حاصلولو څخه عاجز دی. نو ځکه په دې صورت کي به هم "توی" ثابتيږي.

- صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د امام صاحب او صاحبينو دغه اختلاف په اصل کي پر هغه اختلاف مبني دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د قاضي په فيصله سره افلاس (مفلس والی) نه ثابتيږي. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز ثابتيږي.

د امام صاحب دليل دا دی چي مال تلونکی او راتلونکی شی دی، يوه ورځ سړی مفلس وي او بله ورځ بيا مالدار وګرځي، نو ډېره ممکنه چي حاکم د کوم چا د مفلسوالي فيصله کړې وي هغه به په نژدې وخت کي مالدار سي. نو ځکه به د قاضي د افلاس فيصلې لره هيڅ اعتبار نه وي او دا درېيم صورت به د "توی" له صورتونو څخه نه شمارل کيږي.

## د خپل مخکني قرض په بدله کي د اوسني قرض ورکولو صورت

قَالَ: وَإِذَا طَالَبَ الْمُحْتَالُ عَلَيْهِ الْمُحِيلَ بِمِثْلِ مَالِ الْحَوَالَةِ فرمايي: او که محتال عليه له محيل څخه د حوالې د مال [د قرض د مال] په مثل سره مطالبه وکړي فَقَالَ: الْمُحِيلُ: أَحَلْتُ بِدَيْنٍ لِيْ عَلَيْكَ نو محيل ووايي: چي ما د هغه قرض په عوض کي [پر تا] حواله کړې وه کوم چي زما پر تا باندي دی لَمْ يُقْبَلْ

قَوْلُهُ إِلَّا بِحُجَّةٍ نو له حجت [دلیل] څخه بغیر به د محیل قول نه قبلول کیږي وَكَانَ عَلَيْهِ مِثْلُ الدَّيْنِ او پر محیل به د قرض مثل واجب وي لِأَنَّ سَبَبَ الرُّجُوْعِ قَدْ تَحَقَّقَ ځکه چي د رجوع کولو [واپس اخیستلو] سبب موجود سو وَهُوَقَضَاءُ دَيْنِهِ بِأَمْرِهِ او هغه د محیل قرض د هغه په حکم سره اداء کول دي إِلَّا أَنَّ الْمُحِيْلَ يَدَّعِيْ عَلَيْهِ دَيْنًا مګر دا چي محیل پر محتال علیه قرض دعوی کوي وَهُوَيُنْكِرُ او محتال علیه [له هغه څخه] منکر دی وَالْقَوْلُ لِلْمُنْكِرِ او قول د منکر معتبر وي وَلَا تَكُوْنُ الْحَوَالَةُ إِقْرَارًا مِنْهُ بِالدَّيْنِ عَلَيْهِ او دا حواله به د محتال علیه له طرفه پر خپل ځان د قرض اقرار نه وي لِأَنَّهَا قَدْ تَكُوْنُ بِدُوْنِهِ ځکه چي حواله کله له قرض څخه بغیر [هم] کیږي.

**اللغات:** ﴿حجة﴾ دلیل، ﴿دَين﴾ قرض، ﴿يدّعي﴾ د افتعال مضارع: دعوی کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله محتال علیه د محیل له طرفه قرض اداء کړي بیا له محیل څخه د اداء کړی سوي مال مطالبه وکړي (یعني محیل ته ووایي چي ما کوم مال ستا په قرض کي اداء کړی هغه راکړه!)، نو محیل هغه ته ووایي " چي دا قرض ما د هغه قرض په عوض کي پر تا حواله کړی وو کوم چي زما پر تا باندي دی"، یعني د حوالې په وخت کي ما تا ته داویلي وه "چي زما کوم قرض پر تا باندي دی هماغه قرض محتال لهٔ ته ورکړه!"، نو که په دغه صورت کي محیل بیّنه پېش کړي، نو د محتال علیه د رجوع (واپس اخیستلو) اختیار باطلیږي، او که چیري محیل بیّنه پېش نه کړی سي، نو د محتال علیه قول به د قسم (یمین) سره منل کیږي او پر محیل به هغومره مال واجب وي څومره مال چي محتال علیه د هغه په قرض کي اداء کړی وي.

دلیل دا دی چي له محیل څخه د قرض واپس اخیستلو سبب دا دی چي محتال علیه د محیل له طرفه د هغه په حکم سره قرض اداء کړي، او دلته دا سبب موجود دی، او کله چي د رجوع سبب موجود دی، نو ځکه به محتال علیه ته پر محیل د رجوع اختیار حاصلیږي. ها! څرنګه چي دلته محیل پر محتال علیه د خپل قرض دعوی کوي او محتال علیه له دې څخه منکر دی، او قاعده دا ده چي که د مدعي سره بیّنه نه وي نو قول د منکر معتبر کیږي، یعني په دې صورت کي به د منکر قول منل کیږي (د قاعدې الفاظ دا دي: "البَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِيْ وَالْيَمِيْنُ عَلَى مَنْ أَنْكَرَ")، نو ځکه دلته به هم د منکر یعني د محتال علیه قول معتبر وي.

لېکن که څوک ووایي چي کله محتال علیه حواله قبوله کړه نو ګواکي محتال علیه د هغه قرض اقرار وکړی کوم چي د محیل پر محتال علیه باندي دی؟ نو د دې جواب ښکاره دی چي له قرض څخه

بغير هم حواله کیږي (یعني د حوالې د صحیح کېدلو لپاره دا ضروري نه ده چې پر محتال علیه به خامخا د محیل قرض باندي وي). نو ځکه د حوالې په قبلولو سره به د قرض اقرار نه لازمیږي او دا به نه ګڼل کیږي چې محتال علیه د هغه قرض اقرار وکړی.

## د پورتنی مسئلي بل صورت

قَالَ: وَإِذَا طَالَبَ الْمُحِيْلُ الْمُحْتَالَ بِمَا أَحَالَهُ بِهِ فرمايي: او کله چې محیل له محتال لهٔ څخه د هغه مال مطالبه وکړي په کوم سره چې محیل هغه [محتال لهٔ] حواله کړی وي فَقَالَ: إِنَّمَا أَحَلْتُكَ لِتَقْبِضَهُ لِيْ او محیل [داسي] ووايي: چې ما ته ځکه [پر محتال علیه] حواله کړې وې چې ته زما لپاره پر هغه مال قبضه وکړې! [او ماته يې راکړې!] وَقَالَ: الْمُحْتَالُ لَا بَلْ أَحَلْتَنِيْ بِدَيْنٍ كَانَ لِيْ عَلَيْكَ او محتال لهٔ ووايي: چې نه! بلکي تا زه په هغه قرض سره حواله کړی وم کوم چې ما پر تا باندي وو فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُحِيْلِ نو [په دې صورت کي] د محیل قول معتبر دی لِأَنَّ الْمُحْتَالَ يَدَّعِيْ عَلَيْهِ الدَّيْنَ ځکه چې محتال لهٔ پر محیل د قرض دعوی کوي وَهُوَ يُنْكِرُ او محیل [له هغه څخه] منکر دی وَلَفْظَةُ الْحَوَالَةِ مُسْتَعْمَلَةٌ فِي الْوَكَالَةِ او لفظ د "حواله" د وکالت [وکیل کېدلو] په معنیٰ سره هم مستعمل دی فَيَكُوْنُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ مَعَ يَمِيْنِهِ نو ځکه د محیل قول به معتبر وي د قسم سره.

**اللغات**: ﴿طَالَبَ﴾ د مفاعلې ماضي ده: مطالبه کول. ﴿لتقبضه﴾ د ضرب د باب مضارع ده، په شروع کي يې "لام جاره" دی تر هغه وروسته "أن مصدريه" مقدر دی، تقديرِ يې داسي دی: "لِأَنْ تَقْبِضَه" (د دې لپاره چې ته قبضه پر وکړې!). ﴿دَيْن﴾ قرض، قرضه (پور).

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی چې کله محتال علیه قرض اداء کړي يعني محتال لهٔ ته د قرض مال ورکړي، نو تر دې وروسته محيل محتال لهٔ ته (مثلاً) داسي ووايي چې "دغه د قرض مال ما ته زاکړه!، دا ستا حق نه کیږي، ما خو صرف په دې وجه تا ته د دې قرض اخيستل حواله کړي وه چې ته زما لپاره قبضه پر وکړې او بيرته يې ما ته وسپارې!"، او محتال لهٔ ووايي چې "داسي نه ده بلکي پر تا چې زما کوم قرض باندي وو، تا د هغه اخيستل ما ته حواله کړي وه، لهذا د آينده لپاره د مال نوم

هم مه اخله!"، نو په دې صورت کي د محيل قول د يمين سره معتبر دی. يعني د محيل خبره به د قسم سره منل کيږي.

دليل دا دی چي دلته محتال لهٔ پر محيل د قرض دعویٰ کونکي (مدعي) دی او محيل له دې څخه منکر دی. او په تېر عبارت کي ستاسو مخته قاعده ذکر سوه چي که د مدعي سره بينه نه وي نو د منکر قول معتبر دی، نو ځکه به په دې مسئله کي د منکر يعني د محيل قول مع اليمين معتبر وي.

ولفظة الحوالة إلخ: دا د يو اعتراض جواب دی. اعتراض دا دی چي د حوالې د لفظ معنیٰ ده "قرض منتقل کول"، لهذا د محيل دا خبره چي "ما ځکه تا ته د قرض اخيستل حواله کړي وه چي ته زما لپاره پر هغه قبضه وکړې" بلا دليله او د حقيقت خلاف ده.

د دې جواب دا دی چي لفظ د "حوالې" مجازاً د وکالت په معنیٰ سره هم استعماليږي؛ ځکه چي په وکالت کي هم له مؤکل څخه د وکيل وطرف ته تصرف منتقل کيږي. نو ممکنه ده چي محيل د حوالې په لفظ سره وکالت مراد کړی وي. يعني کېدای سي چي هغه د "أَحَلْتُكَ" په لفظ سره محتال لهٔ د دې کار وکيل جوړ کړی وي چي زما قرض (له محتال عليه څخه) واخله!، نو په دې وجه به هم د محيل خبره منل کيږي مګر د قسم سره؛ ځکه چي د حوالې په لفظ سره وکالت مرادول څه غوښتني د ظاهر خلاف دي.

## حواله مقيّده

قَالَ: وَمَنْ أَوْدَعَ رَجُلًا أَلْفَ دِرْهَمٍ فرمايي: او څوک چي يو سړي ته زر درهمه په امانت کښېږدي [مثلا خالد وحامد ته زر درهمه په امانت کښېږدي] وَأَحَالَ بِهَا عَلَيْهِ آخَرَ بيا [خالد] په دې درهمو سره پر هغه [حامد] بل سړی حواله کړي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي لِأَنَّهُ أَقْدَرُ عَلَى الْقَضَاءِ ځکه چي [په دې صورت کي] مُودَع [حامد] پر اداء کولو زيات قادر دی فَإِنْ هَلَكَتْ بيا که چېرې د امانت مال [زر درهمه] ضايع سي بَرِئَ نو مُودَع [حامد (محتال عليه)] بري کيږي لِتَقَيُّدِهَا بِهَا ځکه چي حواله په همدې امانت مال سره مقيده ده فَإِنَّهُ مَا الْتَزَمَ الْأَدَاءَ إِلَّا مِنْهَا ځکه چي محتال عليه [حامد] فقط د همدې مال امانت التزام کړی دی بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتْ مُقَيَّدَةً بِالْمَغْصُوبِ په خلاف د هغه صورت کله چي حواله په مغصوب مال سره مقيده وي لِأَنَّ الْفَوَاتَ إِلَى خَلَفٍ كَلَا فَوَاتٍ ځکه چي د خليفه وطرف ته فوتېدل [يعني د نائب موجودېدلو په وخت کي ضايع کېدل] داسي دي لکه نه فوتېدل وَقَدْ تَكُونُ الْحَوَالَةُ مُقَيَّدَةً

بِالدَّيْنِ أَيْضًا او حواله ځيني وخت په قرض سره هم مقيده وي وَحُكْمُ الْمُقَيَّدَةِ فِي هٰذِهِ الْجُمْلَةِ أَنْ لَا يَمْلِكَ الْمُحِيلُ مُطَالَبَةَ الْمُحْتَالِ عَلَيْهِ او په دې ټولو صورتونو کي د "حواله مقيده" حکم دا دی چي محيل له محتال عليه څخه د مطالبې ملکيت [اختيار] نه لري لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْمُحْتَالِ عَلَى مِثَالِ الرَّهْنِ ځکه چي د هغه مال سره د محتال لهٔ حق متعلق سو، د مرهون شي په څېر [يعني لکه څرنګه چي د مرهون شي سره د مرتهن (قرض ورکونکي) حق متعلق وي. همداسي د حوالې د مال سره د محتال لهٔ (قرض ورکونکي) حق متعلق دی] وَإِنْ كَانَ أُسْوَةً لِلْغُرَمَاءِ بَعْدَ مَوْتِ الْمُحِيلِ که څه هم د محيل تر مرګ وروسته محتال لهٔ د قرضخواهانو سره برابر [حقدار] دی وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَوْ بَقِيَ لَهُ مُطَالَبَتُهُ او دا حکم ځکه دی چي که چيري د محيل لپاره د هغه مال مطالبه کول [يعني د مطالبه کولو اختيار] باقي پاته سي فَيَأْخُذُهُ مِنْهُ او محيل له محتال عليه څخه هغه واخلي لَبَطَلَتِ الْحَوَالَةُ نو حاله به باطله سي وَهِيَ حَقُّ الْمُحْتَالِ حال دا چي حواله د محتال لهٔ حق ده بِخِلَافِ الْمُطْلَقَةِ په خلاف د "حواله مطلقه" لِأَنَّهُ لَا تَعَلُّقَ لِحَقِّهِ بِهِ ځکه چي [د حواله مطلقه په صورت کي] د هغه مال سره د محتال لهٔ هيڅ حق متعلق نه دی بَلْ بِذِمَّتِهِ بلکي [د هغه حق] د محتال عليه د ذمې سره متعلق دی فَلَا تَبْطُلُ الْحَوَالَةُ بِأَخْذِ مَا عَلَيْهِ أَوْ عِنْدَهُ نو ځکه د هغه مال په اخيستلو سره به حواله نه باطليږي کوم چي پر محتال عليه باندي دی يا کوم چي د هغه سره دی.

**اللغات**: ﴿أودع﴾ د افعال د باب ماضي ده: د امانت په توګه ايښول. ﴿أقدر﴾ د ضرب د باب اسم تفضيل دی: زيات قدرت لرونکی، زيات قادر. ﴿خلف﴾ نائب، قائم مقام. ﴿اسوة﴾ برابر، يو ډول. ﴿غرماء﴾ جمع د "غَرِيمٌ" ده: قرضخواه (قرض غوښتونکی)، د قرض مالک، د قرض ورکونکی (يعني يو سړي چي بل چا ته قرض ورکړی وي. هغه ته "غريم" وايي چي هغه ته په بله وينا قرضخواه او د قرض مالک هم وايي).

**تشريح**: د عبارت تر حل مخکي د حوالې په اقسامو ځان خبر کړئ! حواله پر دوه قسمه ده: (۱) مقيده (هغه حواله کوم چي مقيده کړی سي)، (۲) مطلقه (چي په هغې کي هيڅ قيد نه وي).

بيا حواله مقيده هم پر دوه قسمه ده: (۱) يو دا چي محيل حواله په هغه عين شي سره مقيده کړي کوم چي د محتال عليه په قبضه کي وي (مثلاً محيل محتال عليه ته ووايي چي ته زما د هغه شي په عوض کي حواله قبوله کړه کوم چي ستا په قبضه کي دی. يعني هماغه شی محتال لهٔ ته ورکړه!). برابره ده هغه

د محتال علیه په قبضه کې د امانت په توګه وي یا د غصب په توګه وي. (۲) دویم دا چې محیل حواله په هغه قرض سره مقیده کړي کوم چې د هغه پر محتال علیه باندي وي.

او حواله مطلقه دا ده چې حواله هسې بې قیده وسي، یعني حواله نه په هغه قرض سره مقیده کړی سي کوم چې د محیل پر محتال علیه باندي دی او نه د محیل په هغه عَین شي سره مقیده کړی سي کوم چې د محتال علیه په قبضه کې دی (مثلاً محیل داسې نه وواییي چې زما د فلانکي قرض یا فلانکي شي په عوض کې حواله قبوله کړه! بلکې مطلقاً وواییي چې ته دغه سړي (محتال لهٔ) ته قرض ورکړه!).

بیا حواله پر دوه قسمه ده: (۱) میعادي حواله (چې د هغه لپاره موده او نېټه ټاکل سوې وي). (۲) غیر میعادي حواله (فی الحاله واجبُ الاداء حواله).

غیر میعادي حواله دا ده چې محیل خپل غیر میعادي قرض (فی الحاله واجبُ الاداء قرض) د محتال علیه وطرف ته منتقل کړي، نو په دې صورت کې پر محتال علیه هم د هغه قرض وجوب غیر میعادي او في الحاله دی (یعني څرنګه چې پر محیل سمدستي د قرض اداء کول واجب وه. همداسې پر محتال علیه هم سمدستي واجب دي)، ځکه چې د حوالې په ذریعه قرض له اصیل یعني له محیل څخه د محتال علیه وطرف ته منتقل کوي، نو ځکه قرض به د محتال علیه وطرف ته په هماغه صفت سره منتقل کیږي کوم چې پر اصیل واجب وي، لهذا کله چې پر اصیل (محیل) قرض غیر میعادي او في الحاله واجبُ الاداء وي نو پر محتال علیه به هم غیر میعادي او في الحاله واجبُ الاداء وي. او میعادي حواله دا ده چې قرض پر اصیل (محیل) مؤجل وي یعني د هغه لپاره میعاد او نېټه ټاکل سوې وي، نو په دې صورت کې هغه قرض پر محتال علیه هم میعادي ګرځي (یعني کله چې میعاد او نېټه پوره سي نو بیا به له محتال علیه څخه د قرض مطالبه کیږي، تر هغه مخکې به مطالبه نه ځني کیږي). اوس صورت د مسئلې ته ګوري!:

**صورت د مسئلې:** دا دی که خالد زر درهمه حامد ته د امانت په توګه کښېښودي او پر خالد د زید زر درهمه قرض باندي وي، بیا خالد و حامد ته ووایي چې "زما هغه زر درهمه کوم چې ستا سره د امانت په توګه پراته دي هغه زید ته ورکړه!" (دا حواله مقیده سوه)، نو ګواکي دلته خالد د زید لپاره پر حامد هغه زر درهمه حواله کړل کوم چې د حامد سره د امانت په توګه پراته دي، نو ځکه دا حواله جائز ده: ځکه چې په دې صورت کې محتال علیه (حامد) پر اداء کولو زیات قدرت لري، په دې توګه چې د محیل له طرفه (د محتال علیه سره) په خپله د اداء کولو مال موجود دی. او کله چې د محیل له طرفه د اداء کولو مال موجود دی نو پر محتال علیه به اداء کول مشکل نه وي، او کله چې اداء کول مشکل نه دي. نو ځکه محتال علیه به پر اداء کولو زیات قادر وي. دویمه خبره دا ده چې د امانت مال (ودیعت) په خپله حاصل شده وي کسب ته محتاج نه وي لیکن قرض ځیني وخت کسب ته هم محتاج کیږي، یعني د امانت مال د محتال علیه سره بعینهٖ موجود وي د هغه ګټلو او حاصلولو ته هیڅ ضرورت نه وي

لېکن که پر محتال علیه د محیل قرض باندي وي نو ځیني وخت د هغه ګټلو او حاصلولو ته ضرورت پرېوځي (ځکه چي محتال علیه هغه خوړلی وي او د هغه سره نور مال هم نه وي)، لنډه دا چي په مذکوره دواړو وجهو سره معلومه سوه چي په پورتني صورت کي پر اداء کولو د محتال علیه (حامد) قادر کېدل د دغه حواله مقیده د جواز دلیل دی. نو ثابته سوه چي کله حواله پر محتال علیه په یو مال سره مقیده وي نو حواله جائز ده.

او که د امانت مال له محتال علیه (حامد) څخه ضایع سي نو په دې صورت کي محتال علیه له حواله څخه بري کیږي؛ ځکه چي دا حواله د امانت په مال (ودیعت) سره مقیده ده، ځکه محتال علیه (حامد) فقط د امانت مال پر ځان لازم کړی دی (او محیل فقط د امانت پر مال حواله کړې ده)، نو ځکه به حواله د همدې امانت مال سره متعلقه وي او د امانت د مال په هلاکېدلو سره به حواله باطلیږي، لکه څرنګه چي زکاة د مُعیّن نصاب سره متعلق دی او د هغه مُعیّن نصاب په هلاکېدلو سره زکاة ساقطیږي، نو همداسي په دغه پورتني صورت کي هم حواله د امانت مال سره متعلقه ده، نو ځکه د امانت د مال په هلاکېدلو سره به حواله باطلیږي او محتال علیه به بري کیږي.

لېکن که چیري حواله په مغصوب مال سره مقیده وي، مثلاً محیل محتال علیه (غاصب) ته ووایي چي "ستا سره چي زما کوم مغصوب شی پروت دی هغه محتال لهٗ ته ورکړه!"، نو که په دې صورت کي مغصوب شی له محتال علیه (غاصب) څخه ضایع سي نو حواله نه باطلیږي او محتال علیه یعني غاصب نه بري کیږي، بلکي هغه مغصوب شی که له ذواتُ الامثال څخه وي نو حواله د هغه د مثل سره متعلق کیږي، او که له ذواتُ القیم څخه وي نو حواله د هغه د قیمت سره متعلق کیږي؛ او په دې صورت کي حواله ځکه نه باطلیږي چي مغصوب شی که څه هم په هلاکېدلو سره فوت سو لېکن د هغه خلیفه (مثل یا قیمت) موجود دی. او په داسي حالت کي د شي فوتېدلو ته فوتېدل نه وایي چي د هغه خلیفه موجود وي، بلکي هغه شی حکماً باقي شمارل کیږي؛ او کله چي هغه حکماً باقي دی نو حواله به باطلیږي هم نه، او کله چي حواله باطله نه سوه نو محتال علیه به بري کیږي هم نه.

وقد تكون الحوالة إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي حواله ځیني وخت په دَین سره هم مقیده کیږي. په دَین سره د مقید کېدلو صورت دا دی چي مثلاً د زید پر خالد زر درهمه باندي وي او د خالد پر حامد زر درهمه باندي وي، نو خالد پر حامد حواله وکړي چي "زما زر درهمه چي پر تا باندي دي

هغه زيد ته ورکړه!". نو دلته خالد يعني محيل حواله په هغه قرض سره مقيده کړې ده کوم قرض چې د محيل پر محتال عليه يعني پر حامد باندې دی.

وحکم المقيدة إلخ: فرمايي کله چې حواله په دَين سره مقيده وي، يا په عَين (عين شي) سره مقيده وي، برابره ده هغه عَين د امانت مال وي او که مغصوب مال وي، نو په دې ټولو صورتونو کې حکم دا دی چې محيل له محتال عليه څخه د هغه عَين يا دَين مطالبه نه سي کولای کوم چې په حواله سره مقيد سوی دی (يعني کوم چې محتال ته جوړ سوی دی)، ځکه چې اوس د دغه مال (عَين او دَين) سره د محتال لهٗ حق متعلق سو، لکه څرنګه چې د رهن اېښولو په وخت کې د مرهون شي سره د مرتهن حق متعلق کيږي او له قرض اداء کولو څخه مخکې راهن ته له مرتهن څخه د مرهون شي د مطالبه کولو اختيار نه حاصليږي، نو همداسې به په حواله مقيده کې محيل ته هم له محتال عليه څخه د مطالبه کولو اختيار حاصل نه وي.

وإن کان اسوة للغرماء إلخ: په دې عبارت سره د حواله او د رهن په حکم کې فرق رابنيي، يعني په حواله مقيده کې که څه هم محيل له محتال عليه څخه د مطالبې اختيار نه لري لېکن د محيل تر مرګ وروسته محتال لهٗ د محيل د قرضخواهانو سره برابر حقدار دی. او د راهن تر مرګ وروسته مرتهن د راهن د قرضخواهانو سره برابر نه حقداره کيږي بلکې د مرتهن حق به د نورو قرضخواهانو تر حق مخکې کيږي. د دې وضاحت دا دی چې کله حواله په يو عَين يا دَين سره مقيده وي او پر محيل ډېر قرضونه باندې وي بيا محيل مړ سي او هيڅ ميراث نه پرېږدي ما سوا له هغه مال (عَين يا دَين) څخه کوم چې د محتال عليه سره موجود وي يا پر محتال عليه باندې قرض وي، نو په دې صورت کې چې کوم خلک د هغه محيل قرضخواهان دي د هغوی او محتال عليه حالت سره برابر دی، يعني دا ټوله کسان په هغه مال (عَين يا دَين) کې برابر حقداره دي، يوه ته پر بل ترجيح او تقدم (مخکې والی) حاصل نه دی. او پاته سو د مرتهن حکم، چې که راهن مړ سي او هغه له مرهون شي څخه بغير بل هيڅ ميراث نه پرېږدي او د هغه نور قرضخواهان هم وي، نو په مرهون شي کې به د مرتهن حق مخکې او مقدم وي، يعني له مرهون شي څخه به اول مرتهن خپل قرض اخلي، بيا چې د هغه تر اخيستلو وروسته کوم څه پاته سي نو هغه به د نورو قرضخواهانو حق وي.

وهذا لأنه لو بقيت إلخ: فرمايي چې په حواله مقيده کې محيل په دې وجه هم له محتال عليه څخه د مطالبه کولو اختيار نه لري، چې که چيرې محيل ته دا اختيار ورکول سي او هغه له محتال عليه څخه خپل هغه عَين يا دَين واخلي نو حواله به باطله سي؛ ځکه په کوم مال (عَين يا دَين) سره چې حواله مقيده وي که هغه مال واخيستل سي او له منځه ولاړ سي نو آخر به حواله پر کوم شي وسي، نو ځکه

به حواله باطله سي، حال دا چي حواله د محتال لهٔ حق ده يعني په حواله سره هغه مال د محتال لهٔ حق وګرځي، او محيل ته د محتال لهٔ د حق باطلولو هيڅ اختيار نسته، لهذا کله چي محيل ته د محتال لهٔ د حق باطلولو اختيار نسته، نو ده ته به د هغه مال د مطالبه کولو اختيار هم نه وي.

ها! که چيري حواله مطلقه وي نو محيل ته له محتال عليه څخه د خپل مال (عَين يا دَين) د مطالبه کولو اختيار سته (يعني په دې صورت کي محيل ته د هغه مال د مطالبې کولو حق او اختيار سته کوم چي د محيل پر محتال عليه قرض وي يا د محتال عليه سره د امانت يا غصب په توګه موجود وي)، ځکه چي په دې صورت کي د هغه مال (عَين يا دَين) سره د محتال لهٔ هيڅ حق متعلق نه دی بلکي دلته د محتال لهٔ حق د محتال عليه د ذمې سره متعلق دی، لهذا که محيل له محتال عليه څخه هغه مال واخلي، نو په دې سره به د حوالې پر صحت هيڅ اثر نه پرېوځي او حواله به نه باطلېږي.

## د سفاتج تعريف او حکم

قَالَ: وَيُكْرَهُ السَّفَاتِجُ فرمايي: او سفاتج مکروه دي وَهِيَ قَرْضٌ اِسْتَفَادَ بِهِ الْمُقْرِضُ سُقُوْطَ خَطَرِ الطَّرِيْقِ او هغه داسي قرض دی چي د هغه په ذريعه قرض ورکونکی د لارې د خطراتو د لېرې کولو فايده حاصله کړي [يعني د هغه په ورکولو سره د قرض ورکونکي مطلب دا وي چي زما د قرض مال د لارې له خطراتو څخه په امن وي] وَهٰذَا نَوْعُ نَفْعٍ اُسْتُفِيْدَ بِهِ او دا يو قسم نفع ده کوم چي د قرض په ذريعه حاصله کړی سوې ده وَقَدْ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ عَنْ قَرْضٍ جَرَّ نَفْعًا [1] حال دا چي نبي کريم ﷺ له داسي قرض څخه منع کړې ده کوم چي نفع کش وي [يعني له داسي قرض څخه يې منع کړې ده چي په هغه سره نفع حاصله کړی سي].

**اللغات**: ﴿سَفَاتِج﴾ جمع د سُفْتَجَةٌ ده (بضم السين وفتح التاء): ① مختصر تعريف يې دا دی چي يو سړی مثلاً په پاکستان کي چا ته پر دې شرط قرض ورکړي چي ته به دا قرض ما ته په افغانستان کي راکړې، يا دا به په افغانستان کي فلانکي سړي ته ورکړې (يا مثلاً له يوه ښار څخه بل ښار ته داسي معامله وکړي). ② د "سُفْتَجَة" دويم صورت دا دی چي مثلاً د خالد دوکان او کاروبار په کندهار کي وي او حامد هغه ته په هلمند کي پر دې شرط مال په قرض ورکړي (مثلا دوه لکه روپۍ يا پنځوس منه غنم پر دې شرط په قرض ورکړي) چي ته ما ته خط وليکه! چي زه په کندهار کي ستا له دوکان څخه دا مال واخلم،

[1] ... منفعة فهو ربوا، حديث رقم:۱۰۷۱۵.

يا مثلاً ته خپل ملګري ته ټليفون وکړه! چې زه په کندهار کې له هغه څخه دا مال واخلم. ﴿استفاد﴾ داستفعال د باب ماضي ده: فايده حاصلول. فايده اخيستل. ﴿مقرض﴾ د افعال د باب فاعل دی: قرض ورکونکی، پور ورکونکی (قرضخواه). ﴿سقوط﴾ د نصر د باب مصدر دی: ساقطېدل. لوېدل. ﴿جَرَ﴾ د نصر ماضي ده: کشول. (راکشول).

**تشريح**: د "سُفْتَجَة" پوره تعريف په لغاتو کې ذکر سو، په شريعت کې "سُفْتَجَة" مکروه ده؛ ځکه چې قرض ورکونکي (حامد) د دې په ذريعه د لارې له خطراتو څخه خپل مال ساتي. مثلاً له پاکستان څخه افغانستان ته يا مثلاً له يوه ښار څخه بل ښار ته چې د مال په وړلو کې کوم خطرات دي، هغه ټول د "سفتجة" په صورت کې ليرې کېږي، او د خطراتو ليرې کېدل هم د قرض ورکونکي (حامد) لپاره يو نفع ده، او داسې قرض ناجائز دی چې په هغه کې د قرض ورکونکي نفع وي؛ ځکه چې په حديث کې له هر هغه قرض څخه منع سوې ده کوم چې پر نفع مشتمل وي او د قرض ورکونکي نفع ور سره متعلق وي، نو ځکه "سفتجه" مکروه ګرځول سوې ده.

**يادونه**: که چيري له شرط لګولو څخه بغير داسې وسي چې قرض مثلاً په پاکستان کې ورکول سي او په افغانستان کې واخيستل سي، يا مثلاً په يوه ښار کې واخيستل سي او په بل ښار کې اداء کړی سي، لکه نن سبا چې د بانکو د لارې د چک په صورت کې داسې کيږي، نو دا مکروه نه دی؛ دليل د عبد الله بن زبير رضي الله عنه عمل دی چې هغه به له شرط لګولو څخه بغير داسې کول. او بيا په دې باره کې له ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُما څخه پوښتنه وسوه، نو هغه وفرمايل "لَا بَأْسَ بِهِ" يعني د دې ګنجايش سته. دا څه پروا نه لري، په دې شرط چې په پيسو کې به کمي وزياتوب نه کيږي. (أثمار الهداية ج:٩. ص:١١١)



# كِتَابُ أَدَبِ الْقَاضِيْ

(دا) کتاب د قاضي د ادب (په بيان کي) دی

**تشريح**: قاضي به څنګه وي، کوم صفتونه به لري او څنګه فيصله به کوي؟، دې ته "أدب القاضي" وايي.

مخکي تر دې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله بيوع، کفاله او حواله بيان کړل، اوس تر هغه وروسته د قاضي او قضاء (قضاوت) احکام بيانوي، د بيوع او نورو معاملاتو سره د "کتاب أدب القاضي" مناسبت دا دی چي په بيوع او معاملاتو کي زياتره جنګ او دعوىٰ پيدا کيږي، او ښکاره خبره ده چي د عام سړي په فيصله سره دا جنګ او دعوىٰ نه ختميږي، بلکي د هغه د ختمولو لپاره د داسي کس فيصله مؤثره وي چي د هغه ولايت عام او تام وي او د خلکو په زړونو کي د هغه قدر او احترام وي، او هغه قاضي دی چي له هغه څخه بغير بل هيڅوک د دې کار لپاره زيات مناسب نه ښکاري، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د معاملاتو له بيان څخه وروسته اوس "كتابُ أدب القاضي" بيانوي.

**د ادب او قضاء معنىٰ**: د "ادب" معنىٰ ده: په ښه صفتونو او خصلتونو سره ښايسته کېدل (متصف کېدل). او د "قضاء" لغوي معنىٰ ده: لازمول. او په شريعت کي قضاء هغه قول ته وايي کوم چي ملزم وي او په ولايت عامه سره صادر وي، يعني په شريعت کي قضاء هغه قول ته وايي کوم چي له قاضي څخه صادر سي او د مخاطب لپاره پر هغه عمل کول لازم وي.

**د قضاء ثبوت**: قضاء (قضاوت) په کتابُ الله، سنت رسول، اجماع ټولو سره ثابت دی:

①... په کتابُ الله کي په دې هکله څو آيتونه ذکر سوي دي چي له هغوی څخه دوه آيتونه دا دي: ﴿وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللهُ﴾ [سورة المائدة: ۴۹]، ﴿فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوٰى﴾. [سورة ص: ۲۶]

②... سنت رسول دا دی چي نبي کريم ﷺ حضرت علي او حضر معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دواړه د قاضي په توګه يمن ته استولي وه، او حضرت معاذ رضي الله عنه ته يې د استولو په وخت کي فرمايلي وه: "كَيْفَ تَقْضِيْ إِذَا عَرَضَ لَكَ قَضَاءٌ، قَالَ: أَقْضِيْ بِكِتَابِ اللهِ، قَالَ: "فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِيْ كِتَابِ اللهِ"، قَالَ: فَبِسُنَّةِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ، قَالَ: "فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِيْ سُنَّةِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ وَلَا فِيْ كِتَابِ اللهِ"،

قَالَ: أَجْتَهِدُ رَأْيِي.... فَضَرَبَ رَسُولُ اللهِ ﷺ صَدْرَهُ وَقَالَ: "الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي وَفَّقَ رَسُولَ رَسُولِ اللّٰهِ لِمَا يُرْضِيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ". (ابو داؤد شریف، باب اجتهاد الرأی فی القضاء، ص: ۵۱۶، حدیث شمیره: ۳۵۹۲. وهکذا فی الترمذی والنسائی)

(۳)... د قضاء پر ثبوت او مشروعیت د ټولو مسلمانانو اجماع هم ده.

(۴)... او عقلاً هم قضاء ثابته ده، په دې توګه چې په قضاء بالحق سره عدل ښکاره کیږي، د ظالم ظلم لیرې کیږي او مظلوم ته انصاف رسیږي، او دا ټوله داسې شیان دي چې د هغه وطرف ته د هر عاقل عقل دعوت ورکوي، نو معلومه سوه چې عقلاً هم قضاء ثابته ده.

## د قاضي لپاره د شهادت شرائط

قَالَ: وَلَا تَصِحُّ وِلَايَةُ الْقَاضِيْ حَتّٰى يَجْتَمِعَ فِي الْمُوَلّٰى شَرَائِطُ الشَّهَادَةِ وَيَكُونَ مِنْ أَهْلِ الِاجْتِهَادِ فرمايي: او قاضي ولي کېدل صحيح نه دي [يعني يو چا ته د قاضي ولايت او منصب ورکول صحيح نه دي] تر دي چې په ولايت ورکړل سوي [قاضي] کي د شهادت شرطونه موجود وي او هغه له مجتهدينو څخه [هم] وي أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّ حُكْمَ الْقَضَاءِ يُسْتَقٰى مِنْ حُكْمِ الشَّهَادَةِ کوم چې اول دی نو ځکه چې د قضاء حکم د شهادت له حکم څخه مستفاد [او مستنبط] دی [يعني د قضاء حکم د شهادت له حکم څخه را اخيستل سوی او حاصل سوی دی] لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ ځکه چې له دې دواړو څخه هر يو د ولايت له قبيلې څخه دی فَكُلُّ مَنْ كَانَ أَهْلًا لِلشَّهَادَةِ يَكُونُ أَهْلًا لِلْقَضَاءِ لهذا کوم څوک چې د شهادت اهل وي هغه به د قضاء [قضاوت] هم اهل وي وَمَا يُشْتَرَطُ لِأَهْلِيَّةِ الشَّهَادَةِ يُشْتَرَطُ لِأَهْلِيَّةِ الْقَضَاءِ او کوم څه چې د شهادت د اهل کېدلو لپاره شرط دي هغه به د قضاء د اهل کېدلو لپاره هم شرط وي وَالْفَاسِقُ أَهْلٌ لِلْقَضَاءِ او فاسق د قضاء اهل دی حَتّٰى لَوْ قُلِّدَ يَصِحُّ تر دې که هغه قاضي جوړ کړی سي نو صحيح دي إِلَّا أَنَّهُ لَا يَنْبَغِيْ أَنْ يُقَلَّدَ لېکن مناسب نه ده چې هغه قاضي جوړ کړی سي كَمَا فِي حُكْمِ الشَّهَادَةِ فَإِنَّهُ لَا يَنْبَغِيْ أَنْ يَقْبَلَ الْقَاضِيْ شَهَادَتَهُ لکه څرنګه چې د شهادت په حکم کي دي چې دا مناسب نه ده چې قاضي د فاسق شهادت قبول کړي وَلَوْ قَبِلَ او که چيري [بيا هم] د هغه شهادت قبول کړي جَازَ عِنْدَنَا نو زموږ په نيز جائز دي وَلَوْ كَانَ الْقَاضِيْ عَدْلًا او که چيري قاضي عادل وي فَفَسَقَ بِأَخْذِ الرِّشْوَةِ أَوْ غَيْرِهٖ بيا د رشوت اخيستلو په وجه يا په بله وجه فاسق وګرځي لَا يَنْعَزِلُ نو هغه [په خپله] نه معزوله کيږي وَيَسْتَحِقُّ الْعَزْلَ او د عزل [معزوله کولو] مستحق کيږي

وَهٰذَا هُوَ ظَاهِرُ الْمَذْهَبِ او همدا ظاهر مذهب دی وَعَلَيْهِ مَشَايِخُنَا او پر همدې زموږ مشائخ رَحِمَهُمُ الله دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: اَلْفَاسِقُ لَا يَجُوْزُ قَضَاؤُهُ كَمَا لَا يُقْبَلُ شَهَادَتُهُ عِنْدَهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې د فاسق قضاء جائز نه ده، لکه څرنګه چې د هغه په نیز د فاسق شهادت [هم] مقبول نه دی وَعَنْ عُلَمَائِنَا الثَّلَاثَةِ فِي النَّوَادِرِ ● أَنَّهُ لَا يَجُوْزُ قَضَاؤُهُ او زموږ له دریو علماؤ څخه د نوادر روایت دا دی چې د فاسق قضاء جائز نه ده وَقَالَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ: إِذَا قُلِّدَ الْفَاسِقُ ابْتِدَاءً او ځیني مشائخو ویلي دي: چې کله ابتداءً فاسق کس قاضي جوړ کړی سي يَصِحُّ نو صحيح دي وَلَوْ قُلِّدَ وَهُوَ عَدْلٌ او که چیري هغه د عادل والي په حالت کي قاضي جوړ کړی سي يَنْعَزِلُ بِالْفِسْقِ نو [وروسته] د فاسق کېدلو په وجه هغه معزوله کيږي لِأَنَّ الْمُقَلِّدَ اِعْتَمَدَ عَدَالَتَهُ ځکه چې قاضي جوړونکي کس [باچا] د هغه پر عادل والي اعتماد کړی وو فَلَمْ يَكُنْ رَاضِيًا بِتَقْلِيْدِهِ دُوْنَهَا نو ځکه له عادل والي څخه بغیر به د هغه پر قاضي جوړولو راضي نه وي وَهَلْ يَصْلُحُ الْفَاسِقُ مُفْتِيًا او آیا فاسق کس مفتي جوړېدای سي؟ قِيْلَ: لَا نو ویل سوي دي: چې نه! لِأَنَّهُ مِنْ أُمُوْرِ الدِّيْنِ ځکه چې فتوی له دیني اُمور څخه ده وَخَبَرُهُ غَيْرُ مَقْبُوْلٍ فِي الدِّيَانَاتِ او د فاسق خبر په دیني اُمورو کي مقبول نه دی وَقِيْلَ ●: يَصْلُحُ او ویل سوي دي: چې فاسق مفتي جوړېدای سي لِأَنَّهُ يَجْتَهِدُ كُلَّ الْجَهْدِ حَذَرًا عَنِ النِّسْبَةِ إِلَى الْخَطَإِ ځکه چې هغه به د غلطۍ وطرف ته د منسوب کېدلو له بیرې څخه پوره کوشش کوي [چې صحیح فتوی ورکړي].

**اللغات**: ﴿ولاية﴾ د حسب او ضرب له بابه مصدر دی: ولي کېدل، د یو کار مشر کېدل، مشري، ﴿مُوَلّٰى﴾ د تفعیل د باب مفعول دی: چا ته چې د یو کار ولایت (مشري) ورکول کیږي، څوک چې ولي (مشر) جوړ کړی سي، ﴿يستقى﴾ د استفعال د باب مضارع مجهوله ده: اوبه کېدل، سیرابېدل،

---

● القول الراجح: هو ظاهر المذاهب (أي لا ينعزل ويستحق العزل)، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: هذا هو ظاهر المذهب وعليه مشائخنا البخاريون والسمرقنديون، وكذا في رد المحتار (ج:۴، ص:۳۳۹)، والبحر (ج:۶، ص:۲۶۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۰۵]

● القول الراجح: هو قول المانعين (أي لا يصلح)، كما قال العلامة التمرتاشي رَحِمَهُ الله: والفاسق لا يصلح مفتيا، وقال العلامة الحصكفي: واختاره كثير من المتأخرين وجزم به صاحب المجمع في متنه...إلخ (رد المحتار ج:۴، ص:۳۳۵)، وكذا في البحر الرائق (ج:۶، ص:۲۸۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۰۶]

مراد ځني مستفاد كېدل (حاصلېدل) دي. ﴿أهلية﴾ اهل كېدل، لائق كېدل (لياقت). ﴿لا ينبغي﴾ د انفعال د باب نفي صيغه ده، معنىٰ يې ده: پكار نه دي، مناسب نه دي. ﴿لا ينعزل﴾ د انفعال د باب نفي صيغه ده: په خپله معزوله كېدل، برطرفه كېدل، له منصبه ليري كېدل. ﴿عزل﴾ د ضرب مصدر دى: معزوله كول (يعني د بل چا له طرفه معزوله كېدل)، برطرفه كول، له منصبه ليري كول (ګوښه كول). ﴿مُقَلِّد﴾ د تفعيل د باب فاعل دى، له "قلادة" څخه مشتق دى، لغوي معنىٰ يې ده: د يو چا په غاړه امېل (هار) ځړونكى (امېل اچونكى)، مراد ځني هغه كس دى چي هغه ته د قاضي جوړولو ولايت حاصل وي يعني "قاضي جوړونكى"، چي هغه يا اميرُ المؤمنين (باچا) دى يا د هغه نائب. ﴿اعتمد﴾ د افتعال ماضي ده: اعتماد كول، بروسه كول. ﴿حذر﴾ د سمع د باب ماضي ده: له يو شي څخه بېرېدل، له يو شي څخه ځان ساتل (احتراز كول). ﴿مفتي﴾ په قاضي او مفتي كي فرق دى، قاضي هغه عالم ته وايي كوم چي د خلكو په مينځ كي د معاملاتو فيصله كوي، او مفتي هغه عالم ته وايي كوم چي د ديني اُمورو او معاملاتو فتوىٰ وركوي.

**تشريح**: په دې عبارت كي صاحب د كتاب رَحِمَهُ الله د قاضي اوصاف او شرائط بيان كړي دي، فرمايي چي يو څوک قاضي جوړول او د قضاء منصب ورسپارل په هماغه وخت كي جائز دي كله چي په هغه كي د شهادت (ګواهي) ټوله شرطونه موجود وي، مثلاً مسلمان، بالغ، عاقل وي، ړوند او محدود في القذف نه وي، او افضله خبره دا ده چي عادل او پاک لمنى (عفيف) وي، او عالم بالسنة وي. او بل دا چي كوم كس ته د قضاء منصب ورسپارل كيږي هغه به له اهل اجتهاد څخه وي. خلاصه دا چي د قاضي لپاره د شهادت او اجتهاد اهل كېدل ضروري دي.

أما الأول إلخ: په قاضي كي د شهادت شرطونه موجودېدل ځكه ضروري دي چي د قضاء حكم د شهادت (ګواهي) له حكام څخه مستفاد او را اخيستل سوى دى؛ ځكه چي قضاء او شهادت دواړه د ولايت له بابه دي، او د ولايت مطلب دى "تَنْفِيْذُ الْقَوْلِ عَلَى الْغَيْرِ" (پر بل چا خپل قول نافذول)، او تاسو ته معلومه ده چي شاهد (ګواه) خپل قول پر بل چا نافذوي، نو څرنګه چي شاهد خپل قول پر بل چا نافذوي، همداسي قاضي هم خپل قول پر بل چا نافذوي، نو ځكه كوم شرطونه چي د شهادت (او ګواه جوړېدلو) دي هغه شرطونه به د قضاء (او قاضي جوړېدلو) هم وي، بلكي د قضاء ولايت د شهادت له ولايت څخه عام او زيات كامل دى، نو ځكه د قضاء د ولايت لپاره د شهادت شرطونه موجودېدل په

درجه اولیٰ ضرري دي، لهذا کوم څوک چي د شهادت اهل وي هغه به قاضي هم جوړېدای سي، او د شهادت د اهليت لپاره چي کوم شيان شرط دي هغه به د قضاء د اهليت لپاره هم شرط وي.

والفاسق إلخ: څرنګه چي فاسق د شهادت اهل دی نو ځکه هغه د قاضي جوړېدلو هم اهل دی. تر دې که فاسق کس قاضي جوړ کړی سي (او په هغه کي د شهادت ټوله شرطونه موجود وي) نو دا جائز دي، لېکن هغه قاضي جوړول مناسب نه دي لکه د قاضي لپاره چي د فاسق ګواهي قبلول مناسب نه دي، لېکن که بيا هم د فاسق ګواهي قبوله کړی سي نو زموږ په نېز جائز دي؛ ځکه چي "عدالت" د شهادت له شرائطو څخه نه دی بلکي د شهادت له مناسباتو څخه دی.

ولوكان القاضي إلخ: فرمايي که چيري قاضي عادل وي لېکن د رشوت اخيستلو، يا شراب چيښلو يا د زنا او داسي نورو په وجه فاسق وګرځي، نو هغه په دې کار و سره نه معزوله کيږي، لېکن هغه د معزوله کولو مستحق ګرځي، مطلب دا چي په دې کار و سره هغه په خپله نه معزوله کيږي بلکي په عليحده توګه به د باچا (اميرُ المؤمنين) له طرفه معزولول کيږي او د قضاء له منصب څخه به شړل کيږي، او تر څو چي هغه معزول کړی سوی نه وي تر هغه وخته به د هغه جاري سوي احکام نافذيږي. ها! که چيري د قاضي د ټاکلو په وخت کي باچا دا شرط لګولی وي چي د حرام فعل په کولو سره قاضي معزوله دی، نو په دې صورت کي د حرام فعل په کولو سره هغه په خپله هم معزوله کيږي. همدا ظاهر مذهب دی او پر همدې زموږ د عامو مشائخو عمل دی.

وقال الشافعي إلخ: د امام شافعي رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي فاسق کس قاضي جوړول جائز نه دي؛ ځکه چي د هغه په نېز د فاسق شهادت (ګواهي) هم مقبوله نه ده. او څرنګه چي قضاء او شهادت يو د بل سره نژدې دي، لهذا کله چي د هغه په نېز فاسق د شهادت اهل نه دی او شهادت يې مقبول نه دی، نو ښکاره خبره ده چي هغه به د قضاء اهل هم نه وي.

له امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه د "نوادر" يو روايت دا دی چي فاسق کس قاضي جوړول صحيح نه دي، بيا د ځيني مشائخو قول دا دی چي که يو فاسق ابتداءً قاضي جوړ کړی سي نو صحيح دي، لېکن که هغه د عادل والي په حالت کي قاضي جوړ کړی سي او بيا هغه فاسق وګرځي نو محض په فسق (فاسق کېدلو) سره هغه معزوله کيږي او په عليحده توګه د هغه د معزوله کولو ضرورت نسته؛ ځکه کله چي هغه عادل وي نو قاضي جوړونکي کس (باچا) د هغه پر عدالت اعتماد وکړي او د عدالت په وجه هغه قاضي جوړ کړي، لهذا قاضي جوړونکی (باچا) له عدالت څخه بغير د هغه د قاضي پر جوړولو راضي نه وي، نو ګواکي په دې صورت کي قاضي جوړول د عدالت په بقاء سره

مشروط سوه، لهذا کله چې د قاضي جوړول د عدالت په بقاء سره مشروط دي، نو ځکه د عدالت په فوتېدلو سره به د قضاء عهده او منصب فوتيږي او قاضي به په خپله معزوله کيږي.

وهل يصح الفاسق إلخ: پاتـه سوه دا خبره چې آيا فاسق کس مفتي جوړېداى سي، که نه؟ نو په دې سلسله کي دوه قولونه دي ①... اول قول دا دی چې د فاسق کس مفتي کېدل (او هغه ته دافتاء منصب ورکول) جائز نه دي؛ ځکه چې فتوىٰ ورکول يو ديني کار دی، او په ديني کارو کي د فاسق خبر مقبول نه دی. ②... دويم قول دا دی چې د فاسق مفتي کېدل جائز دي؛ ځکه چې په خلکو کي د بدنامه کېدلو او دفسق ښکاره کېدلو په وجه به هغه په فتوىٰ ورکولو کي احتياط کوي او د صحيح فتوىٰ په ليکلو کي به ښه محنت او کوښښ کوي، د دې لپاره چې بيا د غلطى او خطاء وطرف ته منسوب نه کړى سي او نور بدنامه او رسوا نه سي.

## د اجتهاد د اهل کېدلو شرط

وَأَمَّا الثَّانِي فَالصَّحِيحُ أَنَّ أَهْلِيَّةَ الِاجْتِهَادِ شَرْطُ الْأَوْلَوِيَّةِ او کوم چې دويم شرط دی [چې قاضي به مجتهد وي] نو صحيح دا ده چې د اجتهاد اهل کېدل د اولىٰ والي [افضل والي] شرط دی فَأَمَّا تَقْلِيدُ الْجَاهِلِ فَصَحِيحٌ عِنْدَنَا نو د جاهل [غير مجتهد] قاضي جوړول زموږ په نېز صحيح دي [اشرف الهدايه، احسن الهدايه] خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله وَهُوَ يَقُولُ: إِنَّ الْأَمْرَ بِالْقَضَاءِ يَسْتَدْعِي الْقُدْرَةَ عَلَيْهِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د قضاء حکم د قدرت على القضاء تقاضا کوي [چې انسان به پر قضاء قادر وي] وَلَا قُدْرَةَ دُونَ الْعِلْمِ او له علم څخه بغير [پر هغه] قدرت نه وي وَلَنَا: أَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ يَقْضِيَ بِفَتْوَى غَيْرِهِ زموږ دليل دا دی: چې د جاهل [غير مجتهد] قاضي لپاره دا ممکنه ده چې د بل چا پر فتوىٰ فيصله وکړي وَمَقْصُودُ الْقَضَاءِ يَحْصُلُ بِهِ او د قضاء [قضاوت] مقصود په دې سره [هم] حاصليږي وَهُوَ إِيصَالُ الْحَقِّ إِلَى مُسْتَحِقِّهِ او د قضاء مقصود "حق خپل مستحق ته رسول" دي وَيَنْبَغِي لِلْمُقَلِّدِ أَنْ يَخْتَارَ مَنْ هُوَ الْأَقْدَرُ وَالْأَوْلَى او د قاضي جوړونکي لپاره پکار دي چې زيات قدرت والا او غوره کس منتخب کړي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ: «مَنْ قَلَّدَ إِنْسَانًا عَمَلًا وَفِي رَعِيَّتِهِ مَنْ هُوَ أَوْلَى مِنْهُ ځکه چې نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چې يو انسان ته يو کار وسپاري حال دا چې د هغه په رعيت [عوامو] کي له هغه څخه غوره انسان موجود وي فَقَدْ خَانَ اللهَ وَرَسُولَهُ وَجَمَاعَةَ الْمُسْلِمِينَ» نو هغه د

الله او د هغه د رسول او د مسلمانانو د جماعت سره خيانت وکړی وَفِي حَدِّ الاِجْتِهَادِ كَلَامٌ عُرِفَ فِي أُصُولِ الْفِقْهِ او د اجتهاد په تعريف کې کلام دی کوم چې په أصول فقه کې معلوم سوی دی وَحَاصِلُهُ أَنْ يَكُونَ صَاحِبَ حَدِيثٍ لَهُ مَعْرِفَةٌ بِالْفِقْهِ او خلاصه يې دا ده چې مجتهد داسې حديث والا [محدث] دی چې هغه ته د فقهي علم هم حاصل وي لِيَعْرِفَ مَعَانِيَ الْآثَارِ د دې لپاره چې د احاديثو معناوې وپېژني أَوْ صَاحِبَ فِقْهٍ لَهُ مَعْرِفَةٌ بِالْحَدِيثِ يا داسې فقيه دی چې هغه ته د حديث علم هم وي لِئَلَّا يَشْتَغِلَ بِالْقِيَاسِ فِي الْمَنْصُوصِ عَلَيْهِ د دې لپاره چې په هغه حکم [او مسئله] کې په قياس سره مشغول نه سي چې د هغه په باره کې نص [حديث] موجود وي وَقِيلَ: أَنْ يَكُونَ مَعَ ذَلِكَ صَاحِبَ قَرِيحَةٍ يَعْرِفُ بِهَا عَادَاتِ النَّاسِ او ويل سوي دي: چې د دې سره به هغه د طبيعت [او ملکې] خاوند هم وي چې د هغه په ذريعه د خلکو عادات پېژني لِأَنَّ مِنَ الْأَحْكَامِ مَا يَبْتَنِي عَلَيْهَا ځکه چې ځيني احکام د خلکو پر عاداتو مبني وي.

**اللغات**: ﴿اولوية﴾ اولیٰ والی. اولیٰ کېدل. غوره کېدل. افضل کېدل. ﴿يستدعي﴾ د استفعال مضارع ده: تقاضا کول. ﴿إيصال﴾ د افعال د باب مصدر دی: رسول. ﴿مُقَلِّد﴾ د دې معنیٰ د تېر عبارت په لغاتو کې ذکر سوه. ﴿خَانَ﴾ د نصر ماضي ده: خيانت کول. ﴿منصوص عليه﴾ د کوم شي په باره کې چې نص (حديث) وارد سوی وي. ﴿قريحة﴾ طبيعت (له چټلياتو څخه پاک او سپېڅلی طبيعت). ذوق. داسې ملکه چې د هغه په ذريعه انسان د کلام او رايې ايجادولو قدرت لري. جمع: قَرَائِح. (معجم وسيط)

**تشريح**: امام قدوري رَحِمَهُ الله چې د قضاء د منصب لپاره کوم دوه (۲) شرطونه ذکر کړي وه، له هغه څخه يو شرط (يعني د شهادت د شرائطو شرط) په تېر عبارت کې بيان سو، اوس په دې عبارت کې د دويم شرط تفصيل بيانيږي. لېکن تاسو دا خبره په ياد لرئ! چې په متن کې دغه شرط د صحت شرط ګرځول سوی (يعني که څوک د اجتهاد اهليت نه لري نو د هغه قاضي جوړول صحيح نه دي) لکه څرنګه چې امام قدوري رَحِمَهُ الله په "وَلَا يَصِحُّ" سره همدې ته اشاره کړې ده چې د اجتهاد شرط هم د قضاء د صحت شرط دی. حالانکې دا صحيح نه ده. بلکې صحيح دا ده چې اجتهاد د اولويت شرط دی. يعني اولیٰ دا ده چې قاضي مجتهد هم وي. لنډه دا چې د اجتهاد په اهليت سره د قاضي متصف کېدل اولیٰ او افضل دي. او داسې قاضي ته پر نورو فوقيت او فضيلت حاصل دی. کنې غير مجتهد کس هم زموږ

په نېز قاضي جوړول جائز دي، کـه څـه هـم د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز غير مجتهد کس قاضي جوړول جائز نه دي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي د يو معاملې په باره کي د قاضي حکم او فيصله کول د دې خبري تقاضا کوي چي قاضي به د هغه حکم په هر طرف واقف وي او په پوره توګه به قاضي ته پر هغه قدرت حاصل وي (لنډه دا چي د هغه معاملې په باره کي به د اجتهاد کولو صلاحيت او قدرت په قاضي کي وي).
حال دا چي واقفيت او قدرت له علم څخه بغير نه سي حاصلېدای، له دې څخه معلومه سوه چي د قضاء د حکم لپاره علم ضروري دی، نو ځکه جاهل يعني غير مجتهد کس قاضي جوړول جائز نه دي.

**زموږ دليل**: دا دی چي د قضـاء مقصود دا دی چي حقدار ته خپل حق ورسيږي، او دا مقصود چي څرنګه په مجتهد قاضي سره حاصلېدای سي همداسي په غېر مجتهد قاضي سره هم حاصلېدای سي، په دې توګه چي هغه د يو معتبر او مجتهد عالم د فتوىٰ په رڼا کي فيصله وکړي او د هغه مطابق معامله حل کړی سي، لهذا کله چي د غير مجتهد کس لپاره د يو مجتهد په فتواوو سره د قضاء اُمور حل کول ممکن دي، نو ځکه به اجتهاد د قضاء د صحت او جواز شرط نه وي، ها! هغه د اولويت (اولىٰ والي) شرط کېدای سي، په دې کي هيڅ حرج نسته.

وينبغي للمقلّد إلخ: د دې حاصل دا دی چي کوم کس ته د قاضي د جوړلو ولايت او اهليت حاصل وي، يعني امير المؤمنين (خليفة المسلمين) يا د هغه له طرفه ټاکل سوی کس، نو هغه ته پکار دي چي داسي کس قاضي جوړ کړي کوم چي پر فيصله کولو قادر وي، او په خپل علم، دينداري، پاک لمني او تقوىٰ کي تر ټولو افضل او غوره وي، او که قاضي جوړونکی د دې په خلاف کار وکړي نو هغه د الله او د هغه د رسول سره خيانت وکړی، لکه څرنګه چي په احاديثو کي همدغه وعيد ذکر سوی دی، چي له هغوی څخه يو حديث په عبارت کي مذکور دی: "مَنْ قَلَّدَ إِنْسَانًا عَمَلًا مَنْ هُوَ أَوْلَى مِنْهُ فَقَدْ خَانَ اللهَ وَرَسُوْلَهُ وَجَمَاعَةَ الْمُسْلِمِيْن".

ولحد الاجتهاد إلخ: فرمايي چي د اجتهاد تفصيلي تعريف خو د اُصول فقه په کتابونو کي ذکر سوی دی، لېکن مختصراً عرض دا دی چي د مجتهد دوه تعريفونه سوي دي: ①... يو دا چي مجتهد يا داسي محدث دی چي هغه په فقه کي هم مناسب علم او مهارت لري. د دې لپاره چي هغه پر فقهي احکامو او مسائلو د دلالت کونکو احاديثو معناوي پېژني او د هغه احاديثو الفاظ پر خپل صحيح معناوو برابرول ور ته آسانه وي. ②... يا داسي فقيه دی چي هغه ته د حديثو علم هم حاصل وي، د

دې لپاره چې د کومو مسئلو په باره کې احاديث موجود دي په هغوی کې قياس نه وکړي، او ښکاره خبره ده چې کله فقيه ته داحاديثو علم او خبر نه وي نو ديوې مسئلې په باره کې به نص او حديث موجود وي لېکن هغه فقيه به دناخبرتيا په وجه په قياس عمل وکړي.

**خلاصه**: دا چې مجتهد هغه کس دی کوم چې محدث او فقيه دواړه وي، د محدث والي په وجه به د نص (حديث) په مقابله کې له قياس کولو ځخه ځان ساتي. او د فقيه کېدلو په وجه به د حديثو هغه معناوي پېژني کوم چې داحکامو مدار دي. فرق صرف دومره دی چې د اول تعريف په اعتبار سره د حديث علم غالب دی او د فقهې علم مغلوب دی، او د دويم تعريف په اعتبار سره د دې برعکس دي.

وقيل أن يكون إلخ: ځيني حضرات فرمايي چې په پورتني تعريفونو کې د هر يوه سره دا هم ضروري دي چې مجتهد به مزاج شناس (مزاج پېژندونکی) او د خلکو په عادتونو واقف وي؛ ځکه چې ځيني مسائل د خلکو پر عادتونو هم مبني دي، او د عادت په مختلف کېدلو سره د هغه مسائلو احکام هم مختلف کېږي، نو ځکه د مجتهد لپاره دا ضروري دي چې د خلکو په عاداتو خبر وي، د دې لپاره چې په فيصله کې ديو مشکل سره مخامخ نه سي او د هر ډول مسئلې په زړه پوري فيصله کولای سي.

## د قضاء منصب قبلول

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِالدُّخُولِ فِي الْقَضَاءِ لِمَنْ يَثِقُ بِنَفْسِهِ أَنْ يُؤَدِّيَ فَرْضَهُ فرمايي: او د هغه کس لپاره [منصب د] قضاء ته په داخلېدلو کې هيڅ پروا نسته کوم چې پر ځان دا اعتماد لري چې د قضاء فريضه به اداء کړي لِأَنَّ الصَّحَابَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ تَقَلَّدُوْهُ ځکه چې صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم [منصب د] قضاء قبول کړی دی وَكَفَى بِهِمْ قُدْوَةً او د هغو اقتداء زموږ لپاره کافي ده وَلِأَنَّهُ فَرْضُ كِفَايَةٍ او ځکه چې قضاء [قاضي کېدل] فرض کفايي دي لِكَوْنِهِ أَمْرًا بِالْمَعْرُوْفِ ځکه چې هغه امر بالمعروف دي.

**اللغات**: ﴿يثق﴾ د ضرب مضارع ده: باور لرل، اعتماد لرل. ﴿قدوة﴾ اقتداء، مقتداء، پېشوا.

**صورت د مسئلې**: دا دی چې په کوم سړي کې د قاضي جوړېدلو اهليت او صلاحيت موجود وي او هغه پر ځان دا باور او اعتماد وي چې زه د قضاء فريضه او اُمور اداء کولای سم، نو د هغه لپاره د دې منصب په قبلولو کې هيڅ حرج او پروا نسته، يعني په داسي کولو کې شرعاً هيڅ بدي او ممانعت نسته؛ ځکه صحابه کرامو هم د قضاء منصب قبول کړی دی، لکه څرنګه چې نبي کريم ﷺ په خپل ژوند کې حضرت معاذ رضي الله عنه د يمن قاضي جوړ کړی، همدارنګه حضرت علي رضي الله عنه يې هم د قاضي يمن جوړ کړی. بيا حضرت ابوبکر رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه کې حضرت عمر رضي الله عنه قاضي جوړ کړی او حضرت عمر رضي الله عنه ابن مسعود رضي الله عنه قاضي جوړ کړی، او دغه حضراتو د قضاء منصب قبول هم

کړي او په خپل ایماني فراست او ذکاوت (ذهانت) سره یې هغه په ښه توګه اداء هم کړی، او د دې صحابه وو دا منصب قبلول زموږ لپاره کافي دي او دا د هغه د جواز ښکاره دلیل دی.

دویم دلیل دا دی چې قاضي کېدل فرض کفایي دي، ځکه چې امر بالمعروف او نهی عن المنکر فرض کفایي دي او قاضي هم عموماً دغه کار کوي، نو ځکه د ټ‍‌ماء د منصب په قبلولو سره دغه اهمه فریضه هم اداء کېږي. او که هیڅوک دا منصب قبول نه کړي نو ټوله به ګنهګاره وي.

دلته د قدوري پر عبارت یو اعتراض کېدای سي چې قاضي کېدل فرض کفایي دي او فرض کفایي والا مرتبه د استحباب او ندب ده، نو ځکه د هغه قبلول خو به مستحب خامخا وي، حالانکې امام قدوري رَحِمَهُ الله د "لَا بَأْسَ" لفظ ذکر کړی دی کوم چې فقط پر اباحت (روابښت) دلالت کوي. د دې جواب دا دی چې د قضاء په منصب کې عظیم خطرات سته کوم چې پوره همت او ایمانداري غواړي او هر کس هغه نه سي زغملای. نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله د "لَا بَأْسَ" په ویلو سره جواز بیان کړی دی.

## د چا لپاره د قضاء منصب قبلول مکروه دي؟

قَالَ: وَيُكْرَهُ الدُّخُولُ فِيهِ لِمَنْ يَخَافُ الْعَجْزَ عَنْهُ وَلَا يَأْمَنُ عَلَى نَفْسِهِ الْحَيْفَ فِيهِ فرمايي: او د هغه کس لپاره قضاء ته داخلېدل مکروه دي کوم چې له قضاء [بالحق] څخه د عاجزه کېدلو په هکله بېرېږي او په قضاء کې له ظلم کولو څخه پر ځان مطمئن نه وي كَيْلَا يَصِيرَ شَرْطًا لِمُبَاشَرَتِهِ الْقَبِيحَ د دې لپاره [مکروه دي] چې دا داخلېدل له هغه کس [قاضي] څخه د دې بد کار د صادرېدلو ذریعه جوړه نه سي [یعني د هغه د ظلم او نا انصافي کولو ذریعه جوړه نه سي] وَكَرِهَ بَعْضُهُمُ الدُّخُولَ فِيهِ او ځيني علماؤ مطلقاً [منصب د] قضاء ته داخلېدل مکروه ګرځولي دي مُخْتَارًا لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: «مَنْ جُعِلَ عَلَى الْقَضَاءِ فَكَأَنَّمَا ذُبِحَ بِغَيْرِ سِكِّينٍ» د هغو دا قول د نبي کریم ﷺ د دې فرمان د اختیارولو په وجه دی: "څوک چې پر قضاء مقرر کړی سي نو ګواکي هغه بغیر له چاړې ذبح کړی سو" وَالصَّحِيحُ أَنَّ الدُّخُولَ فِيهِ رُخْصَةٌ طَمَعًا فِي إِقَامَةِ الْعَدْلِ او صحیح قول دا دی چې د عدل قائمولو په غرض قضاء ته د داخلېدلو اجازه سته وَالتَّرْكُ عَزِيمَةٌ او د هغه پرېښوول عزیمت دي فَلَعَلَّهُ يُخْطِئُ ظَنُّهُ وَلَا يُوَفَّقُ لَهُ ځکه کېدای سي چې د هغه ګومان غلطي وکړي او هغه ته [د اصلاح] توفیق حاصل سي أَوْ لَا

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد، باب في طلب القضاء، ص:۱۴۷، حديث رقم:۳۵۷۲. والترمذي، باب ما جاء عن رسول الله ﷺ في القاضي، ص:۲۴۷، حديث رقم:۱۳۲۵.

يُعِينُهُ عَلَيْهِ غَيْرُهُ يا [كېدای سي] چې بل څوک د قضاء په باره کې د هغه اعانت [مرسته] نه وکړي وَلَا بُدَّ مِنَ الْإِعَانَةِ حال دا چې اعانت ضروري دي إِلَّا إِذَا كَانَ هُوَ أَهْلًا لِلْقَضَاءِ دُونَ غَيْرِهِ لېکن کله چې د قضاء اهل فقط هغه وي او بل څوک نه وي فَحِينَئِذٍ يَفْتَرِضُ عَلَيْهِ التَّقَلُّدُ نو په دې وخت کې پر هغه [منصب د] قضاء قبلول فرض دي صِيَانَةً لِحُقُوقِ الْعِبَادِ وَإِخْلَاءً لِلْعَالَمِ عَنِ الْفَسَادِ د دې لپاره چې د بندګانو حقوق وساتل سي او دنيا له فساد څخه خالي کړی سي.

**اللغات:** ﴿عجز﴾ عاجزي، بې وسي، ﴿حَيف﴾ (بفتح الحاء): ظلم، نا انصافي، ﴿مباشرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو کار په خپله کول، ارتکاب، ﴿سِكّين﴾ چاړه، ﴿شرګا﴾ دلته د وسيله او ذريعه په معنیٰ سره دی (أثمار الهدايه)، ﴿عزيمة﴾ لغوي معنیٰ يې ده: پخه اراده (ټينګه اراده)، اصطلاحي معنیٰ يې ده: اصل مشروع، صاحب د تعريفات د دې اصطلاحي معنیٰ داسي ذکر کړې ده: "وفي الشريعة اسم لما هو أصل المشروعات غير متعلق بالعوارض". او صاحب د معجم لغة الفقهاء داسي ويلي دي: "الحكم الثابت بدليل خالٍ من معارض راجح". ﴿صيانة﴾ د نصر مصدر دی: ساتل، ژغورل، حفاظت کول، ﴿عالَم﴾ (بفتح اللام): مخلوق (خلک)، دنيا، نړۍ.

**تشريح:** مخکې ذکر سوه که څوک د قضاء بالحق په هکله پر ځان اعتماد او باور لري نو د هغه لپاره د دې منصب په قبلولو کې څه حرج نسته، اوس په دې عبارت کې دا راښيي چې که يو چا ته د قضاء بالحق او د قضاء د فريضې په هکله دا ډېره او انديښنه وي چې زه به له ظلم او نا انصافي څخه محفوظ نه سم، نو د داسي کس لپاره د قضاء منصب قبلول مکروه تحريمي دي، د دې لپاره چې د قضاء د منصب قبلول د قبيح امر يعني د ظلم او نا انصافي ذريعه نه وګرځي.

او د بعضي علماؤ په نېز د قضاء منصب قبلول مطلقاً مکروه تحريمي دی، برابره ده د هغه پر ځان باور وي او که نه وي، صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چې دلته له کراهت څخه مراد عدم جواز دی او په دليل کې يې ويلي دي چې صدر الشهيد په "ادب القاضي" کې فرمايي: "وَمِنْهُمْ مَنْ قَالَ: لَا يَجُوزُ الدُّخُولُ فِيهِ إِلَّا مُكْرَهًا" يعني بعضي علماء فرمايي چې د قضاء منصب قبلول جائز نه دي مګر دا چې د حاکم له طرفه هغه مجبوره کړی سي.

**دليل:** د بعضي علماؤ دليل د حضرت ابو هريره رضي الله عنه دا حديث دی "چې که څوک قاضي وټاکل سي نو ګواکې هغه بغير له چاړې ذبح کړی سو"؛ د قضاء منصب ته ځکه د "ذبح بغير سِكّين" سره تشبيه ورکول

سوې ده چې د چاړې ذبح په ظاهر او باطن دواړو کې اثر کوي. او بغیر له چاړې ذبح د روح وتلو په وجه په باطن کې اثر کوي او په ظاهر کې اثر نه کوي؛ ځکه چې د قضاء منصب خو په ظاهره یو عظیم الشان منصب دی لېکن په باطن کې فقط هلاکت دی. همدا وجه ده چې پر امام صاحب رَحِمَهُ الله درې واره د قضاء منصب پېش کړی سو مګر هغه درې سره واره انکار وکړی او د انکار کولو په وجه هر وار دېرش (۳۰) درې ووهل سو. همداسې پر امام محمد رَحِمَهُ الله هم د قضاء منصب پېش کړی سو نو امام محمد رَحِمَهُ الله هم انکار وکړی تر دې چې هغه بندیخانې (جېل) ته واچول سو. نو بیا یې مجبوراً قبول کړی.

والصحيح إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې صحیح قول دا دی چې د عدل او انصاف قائمولو په اراده سره د قضاء منصب قبلول جائز دي، یعنې که څوک قاضي سي نو نه ګنهکاره کیږي، لېکن "عزیمت" د هغه پرېښوول دي. د دې مثال پر موزو مسح کول او په سفر کې روژه نیول دي، یعنې څرنګه چې پر موزو مسح کول رخصت دي او د پښو پرېولل عزیمت دي او په سفر کې روژه پرېښوول رخصت دي او روژه نیول عزیمت دي، همداسې د قضاء منصب قبلول رخصت دي او پرېښوول یې عزیمت دي؛ او د هغه پرېښوول ځکه عزیمت دي چې که قاضي مجتهد نه وي نو د دې امکان سته چې هغه به غلطي وکړي او د صحیح فیصلې توفیق به هغه ته حاصل نه سي، یا دا چې که قاضي مجتهد نه وي نو بل څوک به په دې کار کې د هغه اعانت او مرسته نه وکړي حال دا چې په دې صورت کې اعانت ضروري دی. نو د دغه خطراتو په خاطر د قضاء منصب پرېښوول عزیمت دي. ها! که چیري په یو ځای کې د قضاء اهل او قابل فقط یو سړی وي او له هغه څخه بغیر بل هیڅوک د قضاء اهل موجود نه وي، نو په دې صورت کې د قضاء منصب قبلول فرض دي. ځکه که هغه داسې نه وکړي نو د بندګانو حقوق به ضایع سي او ټوله سیمه به له فساد او فتنو څخه ډکه سي.

## د دې منصب د طلب کولو حکم

قَالَ: وَيَنْبَغِي أَنْ لَا يَطْلُبَ الْوِلَايَةَ وَلَا يَسْأَلَهَا فرمایي: او مناسب دا ده چې انسان نه د ولایت طلب [التون] وکړي او نه د هغه غوښتنه وکړي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ: «مَنْ طَلَبَ [1] الْقَضَاءَ وُكِلَ إِلَى نَفْسِهِ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: څوک چې د قضاء طلب وکړي، هغه به خپل نفس ته وسپارل سي وَمَنْ أُجْبِرَ عَلَيْهِ نَزَلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ يُسَدِّدُهُ» او څوک چې پر [قبلولو] د قضاء مجبوره کړی سي، پر هغه به یوه فرشته املائکه] نازله سي چې هغه به د ده اصلاح کوي وَلِأَنَّ مَنْ طَلَبَهُ او ځکه څوک چې د قضاء طلب

---

[1] تخريج: أخرجه الترمذي، باب ما جاء عن رسول الله في القاضي، ص: ۳۲۰، حديث رقم: ۱۳۲۳.

کوي يَعْتَمِدُ عَلٰى نَفْسِهٖ هغه پر خپل ځان اعتماد کوي فَيُحْرَمُ نو ځکه هغه محرومول کيږي وَمَنْ أُجْبِرَ عَلَيْهِ او څوک چې پر هغه مجبوره کړی سي يَتَوَكَّلُ عَلٰى رَبِّهٖ هغه پر خپل پروردګار توکل کوي فَيُلْهَمُ نو ځکه هغه ته الهام کيږي.

**اللغات**: ﴿ولاية﴾ د سمع د باب اسم مصدر دی: مشري، ولي کېدل (مشر کېدل)، مراد ځني د قضاء منصب دی، ﴿وکّل﴾ د تفعيل د باب ماضي مجهوله ده: سپارل، ﴿مَلَك﴾ فرشته، ملائکه، ﴿يسدّده﴾ د تفعيل مضارع ده: سيده کول (پر سيده لاره ساتل)، اصلاح کول، لارښوونه کول، ﴿يلهم﴾ د افعال د باب مضارع مجهوله ده: الهام کول.

**تشريح**: امام قدوري رَحِمَهُ الله نصيحتا فرمايي که په يو چا کي د قاضي کېدلو اهليت او صلاحيت موجود وي، نو بيا هم هغه ته پکار دي چي نه په زړه کي د هغه خواهش وکړي او نه په ژبه سره د هغه طلب او غوښتنه وکړي؛ ځکه د حضرت انس ﷺ حديث دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل "څوک چي د قضاء د منصب طلب وکړي، هغه به خپل نفس ته وسپارل سي او څوک چي پر دې منصب مجبوره کړی سي نو پر هغه به يوه فرشته را نازله سي چي هغه به دئ پر سيده لاره ساتي" او مسلسل به د ده اصلاح او مرسته کوي.

ولأن من طلبه إلخ: عقلي دليل دا دی چي کوم څوک د دې منصب طلب کوي نو ګواکي هغه پر خپل فهم، ذکاوت (ذهانت) او تقوىٰ باور کوي او پر خپل ځان عجب او کبر کوي، او کوم څوک چي د عجب (خود پسندي) او کبر په وجه پر خپل ځان باور کوي نو هغه له الهي توفيق څخه محروميږي، ځکه الله تعالىٰ فرمايلي دي: ﴿إِنَّ النَّفْسَ لَأَمَّارَةٌ بِالسُّوْءِ﴾ (يعني نفس انسان ته د بدی امر کوي)، لهذا کوم څوک چي پر خپل نفس باور کوي او له الهي توفيق څخه محرومه سي نو د هغه به څه حال وي!؟.

لېکن کوم څوک چي د دې منصب پر قبلولو مجبوره کړی سي، هغه پر خپل پروردګار باور کوي، او څوک چي پر الله تعالىٰ باور کوي هغه په الهي توفيق سره نازول کيږي، نو ځکه د قضاء د منصب طلب نه کول مناسب دي.

## د ظالم باچا له طرفه د قضاء منصب قبلول

ثُمَّ يَجُوْزُ التَّقَلُّدُ مِنَ السُّلْطَانِ الْجَائِرِ بيا د ظالم باچا له طرفه د قضاء [منصب] قبلول جائز دي كَمَا يَجُوْزُ مِنَ الْعَادِلِ لكه څرنګه چي د عادل باچا له طرفه جائز دي لِأَنَّ الصَّحَابَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ تَقَلَّدُوْهُ مِنْ مُعَاوِيَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځکه چي صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د حضرت معاويه رضي الله عنه له طرفه د قضاء [منصب] قبول کړی وَالْحَقُّ كَانَ بِيَدِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي نَوْبَتِهِ حال دا چي د حضرت علي رضي الله عنه په واري کي د خلافت حق [په خپله] د حضرت علي رضي الله عنه په لاس کي وو وَالتَّابِعِيْنَ تَقَلَّدُوْهُ مِنَ الْحَجَّاجِ او [همدارنګه] تابعينو هغه د حجاج بن يوسف له طرفه قبول کړی وَكَانَ جَائِرًا حال دا چي حجاج ظالم وو إِلَّا إِذَا كَانَ لَا يُمَكِّنُهُ مِنَ الْقَضَاءِ بِحَقٍّ مګر دا چي کله قاضي پر قضاء بالحق قادر نه وي [يا معنیٰ دا چي کله ظالم باچا هغه ته پر قضاء بالحق قدرت نه ورکوي. يعني د حق فيصلي د کولو اجازه نه ورکوي] لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ لَا يَحْصُلُ بِالتَّقَلُّدِ ځکه چي [په دې صورت کي] د قضاء په قبلولو سره مقصود نه حاصليږي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ يُمَكِّنُهُ په خلاف د هغه صورت کله چي قاضي پر هغه قادر وي.

**اللغات**: ﴿التقلّد﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مراد ځني د قضاء منصب قبلول دي (أحسن الهدايه)، ﴿جائر﴾ ظالم، غير عادل. ﴿نوبة﴾ واري، نوبت. ﴿لا يمكنه﴾ د نفي صيغه ده. که د تفعيل له بابه وي نو معنیٰ يې ده: قدرت ورکول، پر يو شي قادر کېدل. او که د افعال له بابه وي، نو د "ممکن کېدلو" معنیٰ ورکوي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي څرنګه د عادل او منصف باچا له طرفه د قضاء منصب قبلول جائز دي، همداسي د ظالم او جابر باچا له طرفه هم قبلول جائز دي، او په اسلام کي د دې مثالونه موجود دي، مثلاً د حضرت عثمان رضي الله عنه تر شهادت وروسته د خلافت حق د حضرت علي رضي الله عنه وو، او ټولو مسلمانانو ته د هغه پر لاس بيعت کول پکار وو، لېکن حضرت معاويه رضي الله عنه بغاوت وکړی او په خپله خوښه د "شام" حاکم جوړ سو. ځيني صحابه هم د هغه ملګري سول او د هغه له طرفه حضرت ابو درداء رضي الله عنه د قضاء منصب قبول کړی. همدارنګه د صحابه وو له زمانې څخه وروسته حجاج بن يوسف د مسلمانانو خليفه سو. او د هغه ظلم او جبر په ټوله دنيا کي مشهوره سو لېکن بيا هم د هغه له طرفه ځينو تابعينو د قضاء منصب قبول کړی چي له هغو څخه يو عبد الله بن ابي مريم وو. کوم چي د اصفهان قاضي و ټاکل سو. له دې څخه معلوميږي چي د ظالم او غير منصف باچا له طرفه د قضاء

منصب قبلول جائز دي. هاا که چیري دا بېره او اندېښنه وي چې باچا به قاضي پر ظلم او ناانصافي مجبور کړي او د غلط قول او فیصلې کولو په هکله به پر هغه فشار او دباؤ واچوي نو په دې صورت کې د هغه له طرفه د قضاء منصب قبلول پکار نه دي؛ ځکه چې د قضاء مقصد دا دی چې مستحق ته خپل حق ورسول سي او د خلکو په مینځ کې د عدل او انصاف بیرغ ودرول سي، لېکن کله چې د باچا د فشار او دباؤ په وجه د انصاف فیصله نه سي کېدلای نو ښکاره خبره ده چې د قضاء مقصد به هم حاصل نه سي. لېکن که د باچا له طرفه په قضاء کې د مداخلت بېره نه وي او د قاضي لپاره د حق او انصاف فیصله کول ممکن وي، نو بیا د دې منصب په قبلولو کې هیڅ پروا نسته.

**فایده:** صاحب د اشرف الهدایې "مولانا جمیل احمد سکروډوي" ویلي دي چې زما په نېز حضرت معاویه رضي الله عنه د ظالم باچا په مثال کې پېشول مناسب نه دي، ځکه دا خبره تسلیم سوې ده چې د حضرت علي رضي الله عنه څلورم خلیفه جوړېدل یو منصوص امر نه دی بلکې مجتهد فیه مسئله ده. هاا دا ویل کېدای سي چې د حضرت معاویه له طرفه د حضرت علي رضي الله عنه مخالفت کول یوه اجتهادي خطاء وه، او د مجتهد خطاء صرف بخښل کیږي نه بلکې پر هغه مجتهد ته اجر هم حاصلیږي، لهذا کومه خطاء چې بخښل سوې وي بلکې پر هغه اجر حاصلیږي، نو د هغه په وجه د جائر او ظالم الفاظ استعمالول د علامه مرغیناني رَحِمَهُ الله په څېر عظیم او متقي عالم لپاره مناسب نه دي..... لهذا په آخر کې صرف همدا ویل کېداي سي چې دا به د قلم سهو او تېروتنه وي، او له مصنفینو او مؤلفینو څخه داسي سهو کېدل له قیاسه لیرې هم نه دي. والله أعلم

## نوي ټاکل سوي قاضي به اول کوم کارونه ترسره کوي؟

قَالَ: وَمَنْ قُلِّدَ الْقَضَاءَ فرمايي: او څوک چې قاضي جوړ کړی سي يَسْأَلُ عَنْ دِيْوَانِ الْقَاضِي الَّذِيْ كَانَ قَبْلَهُ نو هغه دې [اول] د مخکني قاضي د "دیوان" غوښتنه وکړي وَهُوَ الْخَرَائِطُ الَّتِيْ فِيهَا السِّجِلَّاتُ وَغَيْرُهَا او له "دیوان" څخه مراد هغه د څرمني [چرمې] خلتې دي چې په هغه کې د قضاوت ریجسټرونه [سرکاري دوسیې] او نور د ریکارډ کاغذات موجود وي لِأَنَّهَا وُضِعَتْ فِيهَا لِتَكُوْنَ حُجَّةً عِنْدَ الْحَاجَةِ ځکه چې دا [دوسیې او نور کاغذات] په هغه خلتو کې د دې لپاره ایښوول کیږي چې د ضرورت په وخت کې حجت وي فَتُجْعَلُ فِيْ يَدِ مَنْ لَهُ وِلَايَةُ الْقَضَاءِ نو ځکه دا به د هماغه کس په قبضه کې ورکول کیږي چې هغه ته د قضاء ولایت [منصب] حاصل وي ثُمَّ إِنْ كَانَ الْبَيَاضُ مِنْ

بَيْتِ الْمَالِ بيا كه چيري [د هغوی] ساده کاغذات له بيتُ المال څخه وي فَظَاهِرٌ نو ښکاره خبره ده اچې هغه به موجوده (نوي) قاضي ته ورکول کيږي] وَكَذَا إِذَا كَانَ مِنْ مَالِ الْخُصُوْمِ فِي الصَّحِيْحِ او همدارنګه د صحيح قول مطابق [همدا حکم دی] کله چې هغه کاغذات د خصوم [مدعي او مدعیٰ عليه] له مال څخه وي لِأَنَّهُمْ وَضَعُوهَا فِي يَدِهٖ لِعَمَلِهٖ ځکه چې [په دې صورت کې] هغوی دا کاغذات د مخکني قاضي په قبضه کې د هغه [د قضاوت] د کار لپاره ايښي وي وَقَدِ انْتَقَلَ إِلَى الْمُوَلّٰى حال دا چې [د قضاوت] کار د ولايت ورکړل سوي [نوي قاضي] وطرف ته منتقل سو وَكَذَا إِذَا كَانَ مِنْ مَالِ الْقَاضِيْ او همدارنګه [دا حکم دی] کله چې هغه د قاضي له مال څخه وي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده لِأَنَّهُ اتَّخَذَهُ تَدَيُّنًا لَا تَمَوُّلًا ځکه چې مخکني [معزول] قاضي دا کاغذات د ديني کار کولو لپاره ساتلي وي، نه د ذخيره کولو لپاره وَيَبْعَثُ أَمِيْنَيْنِ لِيَقْبِضَاهَا بِحَضْرَةِ الْمَعْزُوْلِ أَوْ أَمِيْنِهٖ او نوي قاضي دې دوه امانتداره خلک واستوي چې دوی دواړه دِ مخکني [معزول] قاضي يا د هغه د امين [نائب] په موجوديت کې پر هغه خلتو قبضه وکړي وَيَسْأَلَانِهٖ شَيْئًا فَشَيْئًا او دوی دواړه دي د هر يوه کاغذ په باره کې له هغه څخه پوښتنه وکړي وَيَجْعَلَانِ كُلَّ نَوْعٍ مِنْهَا فِي خَرِيْطَةٍ كَيْلَا يَشْتَبِهَ عَلَى الْمُوَلّٰى او دوی دي له هغه څخه هر قسم په جلا خلته کې کښيږدي، د دې لپاره چې پر نوي قاضي هغه مشتبه نه سي [يعني دیو کاغذ په باره کي موجوده قاضي ته شبه نه سي] وَهٰذَا السُّؤَالُ لِكَشْفِ الْحَالِ لَا لِلْإِلْزَامِ او دا پوښتنه کول د حال د وضاحت کولو [حالت معلومولو] لپاره دي، نه د تهمت لګولو لپاره.

**اللغات:** ﴿ديوان﴾ په اصل کي هغه ريجستر او دفتر ته وايي چي په هغه کي حساب ليکل کيږي. همدارنګه هغه ريجستر چي په هغه کي د فوج او داسي نورو مهمو کسانو نومونه، پته او کوائف ليکل کيږي (مصباح منير. معجم وسيط)، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي له "ديوان" څخه هغه څرمني خلتې مراد دي چي په هغه کي د قضاوت (سرکاري) ريجسترونه يعني د خلکو د دعوو او منصلو کاغذات (دوسيې) او ريکارډونه ايښوول کيږي، او په هغه کي نور اسناد مثلاً د وقف د ځمکو دوسيې (فائلونه) ايښوول کيږي. او پر وارث او خاوند چي کوم نفقات مقررول کيږي د هغه کاغذات او دوسيې پکښي ايښوول کيږي (أشرف الهدايه)، ﴿خرائط﴾ جمع د خَرِيْطَةٌ ده: څرمني خلته (تهلی)، له څرمني (چمړې) څخه جوړ هغه پوښ چي په هغه کي کاغذات ساتل کيږي، لکه په اوسني وخت

کي چي د هغه لپاره پلاستيکي پوښونه رائج دي، دوتنه (معجم وسيط، معجم لغة الفقهاء)، ﴿سِجِلّات﴾ جمع د "سِجِلٌّ" ده: هغه ريجسټر (دفتر) ته وايي چي په هغه کي مهم او ضروري شيان ليکل چي د هغه ياد ساتل مطلوب وي، د قاضي هغه ريجسټر چي دعوې او فيصلې پکښي ليکل کيږي چي د قاضي سره محفوظ پاته سي (معجم وسيط، مصباح اللغات)، مراد څني هغه کاغذات دي چي په هغه کي د خلکو د دعوو (مقدماتو) پوره اسناد او فيصلې پکښي ثبت او درج وي، چي هغه ته دوسيه (فائل) ويل کيږي، ﴿حجة﴾ دليل، ﴿بياض﴾ ساده کاغذ، ﴿تدبّن﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: ديناري کول، مراد څني ديني کار کول دي (أثمار الهدايه)، ﴿تموّل﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: يو شی ذخيره کول (د ساتلو لپاره جمع کول)، مال ذخيره کول، مالداري حاصلول، ﴿أمينَين﴾ تثنيه د أمِينٌ ده: امانتدار، امانت ساتونکی (د امانت حفاظت کونکی).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله يو څوک نوی قاضي و ټاکل سي او هغه ته د قضاء منصب وسپارل سي، نو تر ټولو مخکي د هغه کار دا دی چي له معزول قاضي (مخکني قاضي) څخه د هغه خلتو په باره کي پوښتنه وکړي چي په هغه کي د قضاوت کاغذات (دوسيې)، اسناد او ريکارډونه اېښول سوي وي.

دليل دا دی چي په دغه خلتو کي دوسيې (فائلونه) او نور مهم کاغذات ځکه اېښول کيږي چي د ضرورت په وخت کي پکار راسي، نو ځکه هغه به د موجوده واکمن قاضي په لاس کي ورکول کيږي؛ ځکه چي اوس د ټولو معاملاتو تعلق د موجوده قاضي سره دی، د معزول قاضي سره د هيڅ معاملې تعلق نسته، بلکي هغه خو اوس د عامو خلکو په څېر يو فرد وګرځېدی.

ثم إن البياض من بيت إلخ: دا د يو سوال تفصيلي جواب دی. سوال دا دی چي دغه کاغذات هغه کسانو ته ورکول پکار دي کوم چي يې مالکان دي (يعني پر کومو کاغذاتو چي د خلکو د مقدمو او دعوو فيصلې ليکل سوي وي او هغه د همدې خلکو [مدعي او مدعیٰ عليه] له طرفه معزول قاضي ته ورکول سوي وي، دا ټوله دوسيې او فائلونه هغو ته ورکول پکار دي)، نه موجوده قاضي ته؟

د جواب حاصل دا دی چي دا کاغذات به يا معزول قاضي ته له بيتُ المال څخه ورکول سوي وي، يا به د مدعي او مدعیٰ عليه له طرفه ورکول سوي وي، يا معزول قاضي به په خپل مال سره رانيولي وي؛ په اول صورت کي له معزول قاضي څخه دا کاغذات اخيستل او معزول قاضي د هغه پر ورکولو مجبوره کول ښکاره دي؛ ځکه کوم څوک چي نوي قاضي وټاکل سي، د بيتُ المال پر شيانو فقط هغه واکمن او قابض پاتېږي، لهذا څرنګه چي دلته واک لرونکی قاضي دا موجوده نوی قاضي دی، نو ځکه به مذکوره دوسيې، اسناد او د محکمې ټوله ريکارډونه د هغه په قبضه کي پاتېږي.

او كه چيري دا ټوله كاغذات د مدعي او مدعیٰ عليه په مال سره رانيول سوي وي نو هم به معزول قاضي پر دې مجبورول كيږي چي هغه ټوله كاغذات موجوده قاضي ته وركړي؛ ځكه چي مدعي او مدعیٰ عليه دا كاغذات د معزول قاضي په قبضه كي ځكه وركړي وه چي هغه د خليفه (باچا) له طرفه د قضاوت پر كار مامور دی، لېكن كله چي قضاوت د موجوده قاضي وطرف ته منتقل سو، نو دا كاغذات به هم هغه ته سپارل كيږي او د معزول قاضي سره به هيڅ كاغذ هم نه پرېښوول كيږي.

وكذا إذا كان إلخ: او كه چيري مذكوره ټوله كاغذات د معزول قاضي په مال سره رانيول سوي وي نو هم به معزول قاضي مجبورول كيږي چي هغه ټوله كاغذات موجوده قاضي ته وركړي، همدا صحيح قول دی؛ ځكه چي معزول قاضي دا كاغذات د خپل ځان سره د امانت په توګه ځكه ايښي وي چي د خلكو د مقدماتو، دعوو او ضرورياتو حفاظت وكړي، او د هغه مقصد دا نه وي چي دغه كاغذات د ځان سره ذخيره كړي او په دې سره ځان مالدار كړي، لهذا كله چي دا كاغذات د هغه سره د امانت په توګه دي او د مملوک مال په توګه نه دي، نو ځكه كوم څوک چي تر هغه وروسته پر دغه منصب راسي، فقط هغه ته به دا سپارل كيږي.

د ځيني حضراتو خيال دا دی چي كه ټوله كاغذات د مدعي او مدعیٰ عليه يا د معزول قاضي په مال سره رانيول سوي وي نو په دې دواړو صورتونو كي به معزول قاضي د مذكوره كاغذاتو پر وركولو نه مجبورول كيږي؛ ځكه كله چي كاغذات د معزول قاضي په مال سره رانيول سوي وي نو فقط معزول قاضي د هغه مالک دی، او كه د مدعي او مدعیٰ عليه په مال سره رانيول سوي وي نو مدعي او مدعیٰ عليه خو هغه معزول قاضي ته هبه كړي وي، لهذا په دې صورت كي هم معزول قاضي د هغه مالک دی، او هيڅ انسان د خپل مملوک شي پر وركولو نه مجبورول كيږي، نو ځكه په دې دواړو صورتونو كي به معزول قاضي پر دې نه مجبورول كيږي چي دا كاغذات موجوده نوي قاضي ته وركړي، لېكن صحيح او راجح قول هماغه دی كوم چي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله ذكر كړی دی.

ويبعث أمينين إلخ: په دې عبارت سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله نوي واكمن قاضي ته د موجوده كاغذاتو د اخيستلو كيفيت او طريقه ښيي، نو فرمايي چي واک اخيستونكی قاضي دي دوه معتمد او معتبر خلک معزول قاضي ته واستوي چي دوی د معزول قاضي يا د هغه د نائب په موجوديت كي پر ټولو كاغذاتو او اسنادو قبضه وكړي، او دغه دوه نماينده ګان دي د معزول قاضي يا د هغه له نائب څخه د هر يوه كاغذ او دوسيې جلا پوښتنه وكړي او د هر قسم كاغذات دي جلا، جلا په خلتو كي كښيږدي. مثلاً د خلكو د دعوو اسناد او دوسيې دي په جلا خلته كي كښيږدي او د نفقاتو اسناد

دي په جلا خلته کي کښېږدي، همداسي د هر قسم دوسيې او کاغذات دي جلا، جلا محفوظ کړي: او داسي به ځکه کوي چي پر موجوده قاضي کاغذات مشتبه او کډوډ نه سي او د يو کاغذ په باره کي ده ته شبهه نه سي چي د هغه په وجه په خپل کار کي د ستونزي سره مخامخ سي.

وهذا السوال إلخ: فرمايي چي د موجوده قاضي د نماينده ګانو له طرفه د ټولو کاغذاتو په باره کي له معزول قاضي څخه پوښتنه کول محض د معلومات حاصلولو لپاره دي، او په دې سره پر معزول قاضي الزام او تهمت لګول مقصود نه دي.

## نوی قاضي به د بنديانو سره کوم سلوک کوي؟

قَالَ: وَيَنْظُرُ فِي حَالِ الْمَحْبُوسِينَ او نوی [موجوده] قاضي به د بنديانو په حالت کي غور کوي لِأَنَّهُ نُصِبَ نَاظِرًا ځکه چي هغه نګران ټاکل سوی دی فَمَنِ اعْتَرَفَ بِحَقٍّ نو کوم بندي چي د يو حق اقرار وکړي أَلْزَمَهُ إِيَّاهُ نو هغه حق به پر هغه لازموي لِأَنَّ الْإِقْرَارَ مُلْزِمٌ ځکه چي اقرار لازمونکي حجت دی وَمَنْ أَنْكَرَ او کوم بندي چي انکار وکړي لَمْ يُقْبَلْ قَوْلُ الْمَعْزُولِ عَلَيْهِ إِلَّا بِبَيِّنَةٍ نو د هغه په خلاف به د معزول قاضي قول نه قبلوي مګر په ګواهۍ سره لِأَنَّهُ بِالْعَزْلِ الْتَحَقَ بِالرَّعَايَا ځکه چي معزول قاضي د معزوله کېدلو په وجه د عوامو سره يو ځای سو وَشَهَادَةُ الْفَرْدِ لَيْسَتْ بِحُجَّةٍ او د يوه فرد ګواهي حجت نه ده لَا سِيَّمَا إِذَا كَانَتْ عَلَى فِعْلِ نَفْسِهِ خصوصاً کله چي هغه پر خپل ذاتي فعل وي فَإِنْ لَمْ تَقُمْ بَيِّنَةٌ او که چيري ګواهي پېش نه کړی سي لَمْ يُعَجِّلْ بِتَخْلِيَتِهِ نو نوی قاضي دي د هغه بندي په ايله کولو کي تلوار نه کوي حَتَّى يُنَادِيَ عَلَيْهِ وَيَنْظُرَ فِي أَمْرِهِ تر دې چي د هغه په باره کي آوازه [اعلان] وکړي او د هغه په معامله کي غور وکړي لِأَنَّ فِعْلَ الْقَاضِي الْمَعْزُولِ حَقٌّ ظَاهِرٌ ځکه چي په ښکاره د معزول قاضي فعل صحيح دی فَلَا يُعَجِّلُ كَيْلَا يُؤَدِّيَ إِلَى إِبْطَالِ حَقِّ الْغَيْرِ نو ځکه د بندي په ايله کولو کي به تلوار نه کوي، چي دا د بل چا د حق باطولو اضايع کولو اسبب جوړ نه سي.

**اللغات:** ﴿محبوسين﴾ جمع د مَحْبُوْسٌ ده: بندي، قيدي. ﴿نُصب﴾ د ضرب د باب ماضي مجهوله ده: درول، ټاکل. ﴿ناظر﴾ نګران، ساتونکی، پام کونکی، محافظ. ﴿ألزمه﴾ د افعال د باب ماضي ده: پر بل چا لازمول. ﴿لاسيّما﴾ خصوصاً، په ځانګړې توګه. ﴿تخلية﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: ايله

کول، خوشې کول (آزادول). ﴿ینادی﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده؛ رابلل، په زوره آواز کول (معجم وسیط)، مراد ځني اعلان کول دي.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې کله قاضي ټوله کاغذات او دوسیې (فائلونه) په خپل قبضه کې واخلي او د کار شروع کولو اراده وکړي نو هغه ته پکار دي چې تر ټولو مخکې د بندیانو په حالت کې غور وکړي، یعني خپل یو سړی دې جېل (بندیخانې) ته واستوي او د هغه په ذریعه دې د بندیانو شمېر او نومونه معلوم کړي او له هغو څخه دې پوښتنه وکړي چې دوی په کومه وجه جېل ته اچول سوي دي؛ ځکه چې قاضي د مسلمانانو پر اُمورو او معاملاتو نګران ټاکل کېږي او د معزول قاضي قول حجت نه وي، نو ځکه د بندیانو د حالت تفتیش او پلټنه ضروري ده. او د دې صورت دا دی چې موجوده (نوی) قاضي ټوله بندیان او د هغو مدعیان یو ځای سره جمع کړي. نو که یو بندي پر ځان د خپل مدعي د حق اقرار وکړي نو موجوده قاضي به پر دې بندي هغه حق لازموي او که مدعي مطالبه وکړي چې هغه دې بیرته جېل ته واستول سي نو قاضي به هغه واپس جېل ته اچوي؛ ځکه چې اقرار داسې حجت دی کوم چې پر سړي هماغه شی لازموي د کوم شي چې هغه اقرار وکړي.

که بندي د خپل مدعي د هغه حق انکار وکړي کوم چې د بندي د حبس او قید سبب دی (یعني چې د هغه په وجه بندي جېل ته اچول سوی دی) لېکن معزول قاضي ووایي چې هغه د دې بندي د حبس او قید سبب دی، نو د معزول قاضي قول به نه قبلول کېږي؛ ځکه چې معزول قاضي اوس د معزوله کېدلو په وجه د عوامو یو فرد دی او د یوه فرد ګواهي حجت نه ده، خصوصاً کله چې ګواهي د هغه د ذاتي فعل او کار په هکله وي نو بیا په درجه اولیٰ حجت نه سي کېدای، لهذا د معزول قاضي دا خبره به حجت نه وي "چې ما هغه ځکه بندي کړی دی چې پر هغه رښتیا "حبس" ثابت دی"، همدا د امام شافعي او امام مالک رَحِمَهُمَا الله قول دی، او امام احمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې د معزول قاضي قول به تر معزوله کېدلو وروسته هم هغسې قبلول کېږي لکه څرنګه چې تر هغه مخکې قبلول کېږي؛ ځکه چې هغه د شریعت امین دی.

ها! که چیري معزول قاضي د دوو ګواهانو په ګواهي سره پر بندي د "حبس" حق ثابت کړي او موجوده قاضي د ګواهانو په عدالت هم خبر وي نو د حجت قائمېدلو په وجه به موجوده قاضي هغه بندي جېل ته واپس استوي، لېکن که چیري موجوده قاضي د هغه ګواهانو په عدالت خبر نه وي نو د هغو په باره کې به معلومات ترلاسه کوي؛ که چیري په معلومات کولو سره د هغو عادل والي ثابت سي نو هم به د حجت قائمېدلو په وجه هغه بندي واپس جېل ته استوي.

**فإن لم تقم إلخ:** او که چیرې د بندي په خلاف ګواهي پېش نه کړی سي یا مدعي حاضر نه سي، او بندي دعوىٰ وکړي "چي زما په خلاف هيڅ مدعي نسته، زه په ناحقه توګه بندي سوی یم"، نو موجوده قاضي دې هغه ژر نه ايله کوي بلکي څو ورځي دې اعلان وکړي "چي فلانی د فلاني زوی کوم چي په فلان جېل کي بندي دی، د قاضي له طرفه آزادول کيږي، که چيرې پر هغه د يو چا مطالبه وي نو حاضر دې سي او خپله مطالبه دې ثابته کړي"، که چيرې مدعي حاضر سي نو ښه ده، کنې يو څو ورځي دې دا اعلان جاري وساتي، که چيرې مدعي حاضر نه سي نو موجوده قاضي دې له هغه بندي څخه کفيل بنفسه واخلي او هغه دې ايله کړي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د بندي په خلاف د ګواه نه موجودېدلو په صورت کي دژر نه ايله کولو حکم ځکه سوی دی چي د معزول قاضي فعل (يعني د هغه بندي کول) په ښکاره صحيح معلوميږي، نو ځکه دې بندي ژر نه ايله کوي؛ ځکه ډېره ممکنه ده چي مدعي غائب وي او دژر ايله کولو په وجه د مدعي حق ضايع سي، حال دا چي د يو چا حق ضايع کول جائز نه دي.

## نوی قاضي به د وقف او امانت په مال سره څه کوي؟

وَيَنْظُرُ فِي الْوَدَائِعِ وَارْتِفَاعِ الْوُقُوفِ او نوی قاضي دې د امانتونو او د وقف د مالونو په حاصلاتو [امدن] کي غور وکړي فَيَعْمَلُ فِيهِ عَلَى مَا تَقُومُ بِهِ الْبَيِّنَةُ او په کومه توګه چي بيّنه [ګواهي] پېش سي د هغه مطابق دې په هغه مالونو کي عمل وکړي أَوْ يَعْتَرِفُ بِهِ مَنْ هُوَ فِي يَدِهِ يا د کوم سړي په قبضه کي چي وي، هغه د دې اقرار وکړي لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ حُجَّةٌ ځکه چي دا هر يو حجت دی وَلَا يُقْبَلُ قَوْلُ الْمَعْزُولِ او د معزول قاضي قول به نه قبلول کيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی إِلَّا أَنْ يَعْتَرِفَ الَّذِي هُوَ فِي يَدِهِ أَنَّ الْمَعْزُولَ سَلَّمَهَا إِلَيْهِ مګر دا چي د کوم چا په قبضه کي امانتونه وي، هغه [په خپله] اقرار وکړي چي دا ما ته معزول قاضي سپارلي دي فَيُقْبَلُ قَوْلُهُ فِيهَا نو [په دې صورت کي] به د امانتونو په باره کي د معزول قاضي قول قبلول کيږي لِأَنَّهُ ثَبَتَ بِإِقْرَارِهِ أَنَّ الْيَدَ كَانَتْ لِلْقَاضِي ځکه چي د قابض په اقرار سره ثابته سوه چي حقيقي قبضه [صرف] د قاضي وه فَيَصِحُّ إِقْرَارُ الْقَاضِي كَأَنَّهُ فِي يَدِهِ فِي الْحَالِ نو ځکه د معزول قاضي اقرار به صحيح وي، ګواکي دا امانتونه في الحاله د هغه په قبضه کي دي إِلَّا إِذَا بَدَأَ بِالْإِقْرَارِ لِغَيْرِهِ ثُمَّ أَقَرَّ بِتَسْلِيمِ الْقَاضِي مګر دا چي کله قابض

اول د بل چا لپاره اقرار وکړي بيا د معزول قاضي د ورسپارلو اقرار وکړي فَيُسَلِّمُ مَا فِي يَدِهِ إِلَى الْمُقَرِّ لَهُ الْأَوَّلِ نو اپه دې صورت کې] چي د قابض په قبضه کي کوم مال وي دا به هغه کس ته سپاري چي د هغه لپاره يې اول اقرار کړی وي لِسَبْقِ حَقِّهِ ځکه چي د هغه حق مخکي دی وَيَضْمَنُ قِيمَتَهُ لِلْقَاضِي بِإِقْرَارِهِ الثَّانِي او د دويم اقرار په وجه به قابض د معزول قاضي لپاره د هغه د قيمت ضامن کيږي وَيُسَلَّمُ إِلَى الْمُقَرِّ لَهُ مِنْ جِهَةِ الْقَاضِي او دا قيمت به هغه کس ته ورکول کيږي چي د هغه لپاره د معزول قاضي له طرفه اقرار سوی وي.

**اللغات:** ﴿ودائع﴾ جمع د "وَدِيعَةٌ" ده: امانت، د امانت مال. ﴿ارتفاع﴾ حاصلات، امدن. ﴿وقوف﴾ جمع د "وقف" ده، مراد ځني د وقف مال دی. د وقف شی (مثلاً که يو څوک خپله ځمکه د الله لپاره وقف وکړي نو دا د وقف ځمکه سوه. او دا ځمکه چي کومه مېوه يا فصل کوي. هغه ته د ځمکي (وقف) آمدن يا حاصلات وايي). ﴿سَبْق﴾ د ضرب مصدر دی: مخکي کېدل، مخکي والي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د بنديانو د مسئلې تر حل کولو وروسته دي موجوده (نوی) قاضي د هغه مالونو تحقيق او پلټنه وکړي کوم چي معزول قاضي نورو خلګو ته په امانت ورکړي وي، او د وقف د شيانو پر امدن او ګټه دي هم نظر وکړي چي مثلاً د وقف له ځمکو څخه څومره امدن راځي او چيري مصرفول کيږي، او موجوده قاضي دي د امانت او وقف په مالونو کي د ګواهانو د ګواهي مطابق عمل وکړي، مثلاً که پر دې خبره ګواهي ورکول سي چي د خالد سره کوم امانت دی هغه د زيد دی، نو قاضي به هغه امانت له خالد څخه اخلي او زيد ته به يې ورکوي، يا د چا په قبضه کي چي امانت وي يعني قابض که هغه اقرار وکړي چي زما په قبضه کي دا امانت د فلانکي دی، نو موجوده قاضي به د هغه د اقرار مطابق عمل کوي؛ د بيّنه يا د قابض د اقرار مطابق د عمل کولو دليل دا دی چي د موجوده قاضي د عمل او کار کولو لپاره دا ضروري دي چي يو شرعي حجت موجود وي، او بيّنه يا د قابض اقرار هر يو شرعي حجت دی، نو ځکه قاضي به د بيّنه مطابق يا د قابض د اقرار مطابق عمل کوي.

او که چيري معزول قاضي د قابض په خلاف څه ووايي مثلاً معزول قاض ووايي چي د خالد سره د حامد زر درهمه امانتاً پراته دي، او خالد له دې څخه انکار وکړي چي دا زر درهمه خو زما دي، نو په دې صورت کي به د معزول قاضي قول نه قبلول کيږي؛ ځکه چي د معزوله کېدلو په وجه هغه اوس دعوامو يو فرد دی، او تنها د يوه فرد قول حجت نه وي، نو ځکه د معزول قاضي قول به نه قبلول کيږي. هـا! که چيري قابض اقرار وکړي چي دا "امانت" معزول قاضي ماته سپارلی وو او ما ته

معلومه نه ده چې د چا دی؟، یا هغه ووایي: ما ته معلومه ده چې د فلان بن فلان دی، او معزول قاضي د هغه لپاره اقرار کوي، نو په دې دواړو صورتونو کې به د معزول قاضي قول قبلول کیږي؛ ځکه چې د قابض په اقرار سره ثابته سوه چې پر دغه امانت اصلاً د معزول قاضي قبضه وه، او کله چې مخکې پر دې امانت د معزول قاضي قبضه وه نو ګواکې دا امانت في الحاله فقط د معزول قاضي په قبضه کې دی. او تاسو ته به معلومه وي چې د امانت په باره کې د امین یعني د قابض قول معتبر وي، نو ځکه په مذکوره دواړو صورتونو کې به د معزول قاضي قول قبلول کیږي.

إلا إذا بدأ إلخ: او که چیرې قابض یعني امین (مثلا حامد) اول داسې اقرار وکړي چې زما په قبضه کې دا مال د خالد امانت دی لیکن وروسته دا اقرار وکړي چې ما ته دا مال معزول قاضي سپارلی وو، او معزول قاضي له خالد څخه بغیر د بل چا لپاره (مثلا د عُمر لپاره) اقرار کوي، نو په دې صورت کې به قابض (حامد) ته دا حکم کیږي چې دا مال خالد ته وسپاري یعني هغه کس چې د هغه لپاره قابض اول اقرار کړی دی؛ ځکه چې د هغه لپاره د مخکې اقرار کولو په وجه صَرف د هغه حق مقدم او مخکې دی. او د دویم اقرار (چې ما ته قاضي سپارلی دی) په وجه به قابض د معزول قاضي لپاره د هغه مال د قیمت ضامن کیږي (یعني د دویم وار اقرار کولو په وجه به حامد معزول قاضي ته د هغه مال قیمت هم ورکوي) که چیرې هغه مال له ذوات القیم څخه وي او که له ذوات الامثال څخه وي نو د هغه مثل به ورکوي، او معزول قاضي به دا قیمت یا مثل هغه کس ته ورکوي چې د هغه لپاره معزول قاضي اقرار کړی دی (چې هغه عمر دی).

## قاضي به چیرې او په کوم حال کې کښیني؟

قَالَ: وَيَجْلِسُ لِلْحُكْمِ جُلُوسًا ظَاهِرًا فِي الْمَسْجِدِ او قاضي دې د فیصله کولو لپاره په ښکاره توګه په مسجد کې کښیني كَيْلَا يَشْتَبِهَ مَكَانُهُ عَلَى الْغُرَبَاءِ وَبَعْضِ الْمُقِيمِينَ د دې لپاره چې پر مسافرو او پر بعضي مقیمو خلکو د هغه ځای مشتبه نه سي وَالْمَسْجِدُ الْجَامِعُ أَوْلَى او جامع مسجد غوره دی لِأَنَّهُ أَشْهَرُ ځکه چې هغه زیات مشهوره وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُكْرَهُ الْجُلُوسُ فِي الْمَسْجِدِ لِلْقَضَاءِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې د فیصلې لپاره په مسجد کې کښېنستل مکروه دي لِأَنَّهُ يَحْضُرُهُ الْمُشْرِكُ ځکه چې مشرک به هم (د فیصلې لپاره) مسجد ته حاضریږي وَهُوَ نَجَسٌ بِالنَّصِّ حالانکې په

قرآني نص سره هغه نجس دی وَالْحَائِضُ او حائضه ښځه [به هم راځي] وَهِيَ مَمْنُوعَةٌ عَنْ دُخُولِهِ حالانکي هغه مسجد ته له داخلېدلو څخه منع کړی سوې ده وَلَنَا قَوْلُهُ ﷺ: «إِنَّمَا بُنِيَتِ الْمَسَاجِدُ [1] لِذِكْرِ اللهِ تَعَالَى وَالْحُكْمِ» او زموږ دلیل د نبي ﷺ دا فرمان دی چي: "مسجدونه خو د الله د ذکر او فیصله کولو لپاره جوړ سوي دي" وَكَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ [2] يَفْصِلُ الْخُصُومَةَ فِي مُعْتَكَفِهِ او نبي کریم ﷺ به د خپل اعتکاف په ځای کي د خصومت [دعوی] فیصله کوله وَكَذَا الْخُلَفَاءُ الرَّاشِدُونَ كَانُوا يَجْلِسُونَ فِي الْمَسَاجِدِ لِفَصْلِ الْخُصُومَاتِ او همدارنګه خلفاء راشدین به هم د خصوماتو [دعوو] د فیصله کولو لپاره په مسجد کي کښېښستل وَلِأَنَّ الْقَضَاءَ عِبَادَةٌ او ځکه چي د قاضي فیصله کول یو عبادت دی فَيَجُوزُ إِقَامَتُهَا فِي الْمَسْجِدِ كَالصَّلَاةِ نو ځکه د لمانځه په څېر هغه [هم] په مسجد کي ترسره کول جائز دي وَنَجَاسَةُ الْمُشْرِكِ فِي اعْتِقَادِهِ لَا فِي ظَاهِرِهِ او د مشرک نجاست د هغه په اعتقاد [عقیده] کي دی، نه د هغه په ظاهري جسم کي فَلَا يُمْنَعُ مِنْ دُخُولِهِ نو ځکه به هغه مسجد ته له داخلېدلو څخه نه منع کیږي وَالْحَائِضُ تُخْبِرُ بِحَالِهَا او حائضه ښځه به [قاضي ته] خپل د حال خبر ورکوي فَيَخْرُجُ الْقَاضِيْ إِلَيْهَا أَوْ إِلَى بَابِ الْمَسْجِدِ بیا به قاضي د هغې وطرف ته یا د مسجد د دروازې وطرف ته وځي أَوْ يَبْعَثُ مَنْ يَفْصِلُ بَيْنَهَا وَبَيْنَ خَصْمِهَا یا [هغې ته] به خپل داسي کس استوي چي هغه د ښځي او د هغې د خصم [مدعي] په مینځ کي فیصله وکړي كَمَا إِذَا كَانَتِ الْخُصُومَةُ فِي الدَّابَّةِ لکه کله چي خصومت [دعوی] په یو څاروي کي وي [نو هم داسي کیږي] وَلَوْ جَلَسَ فِي دَارِهِ او که قاضي په خپل کور کي کښېني لَا بَأْسَ بِهِ نو په دې کي [هم] هیڅ پروا نسته وَيَأْذَنُ لِلنَّاسِ بِالدُّخُولِ فِيهَا او هغه به خلکو ته په کور کي د داخلېدلو [عام] اجازت ورکوي وَيَجْلِسُ مَعَهُ مَنْ كَانَ

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم بمعناه في كتاب الطهارات، باب وجوب غسل البول وغيره، حديث رقم: ١٠٠ بمعناه. وليس في هذا حديث الحكم.

[2] تخريج: أخرجه البخاري و أبو داؤد بمعناه. (لنده دا چي په دې لفظ سره دا حديثونه غريب دی. لېکن د دې په معنی سره څو حديثونه سته چي له هغوی څخه په مسجد کي د فيصله کولو جواز ثابتيږي. او همدا د علامه مرغيناني رحمه الله عادت دی چي هغه څښتن ،وخت د حديث معنی ذکر کوي) م

بَجِيۡسُ قَبْلَ ذٰلِكَ او کوم خلک چي تر دې مخکي د قاضي سره کښېنستل هغه دي اوس هم د هغه سره کښېنيي (مطلب دا چي قاضي دي يوازي نه کښېني بلکي د هغه سره دي يو څو خلک ناست وي) لِأَنَّ فِي جُلُوسِهِ وَحْدَهُ تُهْمَةً ځکه چي د هغه په يوازي کښېنستلو کي تهمت دی.

**اللغات**: ﴿حکم﴾ د نصر د باب مصدر دی: حکم کول، فيصله کول. ﴿غرباء﴾ جمع د غَرِيْبٌ ده: مسافر، بېګانه، پردېسی، ﴿مقيمين﴾ جمع د مُقِيْمٌ ده: ځايي خلک، د يو ځای خپل او سېلونکي خلک. ﴿المسجد الجامع﴾ هغه مسجد چي د جمعې لمونځ پکښي اداء کيږي، مراد ځني په ښار کي غټ مسجد دی چي په هغه کي زياتره خلک د جمعې لمونځ اداء کوي. ﴿يفصل﴾ د ضرب مضارع ده: فيصله کول، پرېکړه کول. ﴿دابة﴾ سپارلی، څاروی. ﴿وحده﴾ يوازي (يوائحي)، تنها.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي د خلکو د دعوو او معاملاتو د اورېدلو او حل کولو لپاره قاضي ته په مسجد کي په ښکاره توګه کښېنستل پکار دي او په جامع مسجد کي کښېنستل نور هم ښه دي، ځکه جامع مسجد مشهوره وي او زياتره خلکو ته معلوم وي؛ او په مسجد کي به قاضي ځکه کښېني چي پر مسافرو خلکو او پر بعضي ناولده مقيمو خلکو د هغه ځای مشتبه نه سي، او په مسجد کي په کښېنستلو سره د اشتباه امکان ختميږي يا کميږي، نو ځکه د قاضي لپاره په مسجد کي کښېنستل زموږ په نيز جائز نه بلکي افضل دي.

د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د فيصله کولو لپاره په مسجد کي د قاضي کښېنستل مکروه دي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي ځيني وخت مشرک او حائضه ښځه هم قاضي ته د فيصله کولو لپاره راځي، حالانکي مشرک نجس دی او مسجد ته د هغه داخلېدل ممنوع دي لکه څرنګه چي الله تعالیٰ فرمايي: ﴿إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ...إلخ﴾ [سورة التوبة: ۲۸]، او د حائضه ښځي او جنب کس په باره کي نبي ﷺ فرمايلي دي: "إِنِّي لَا أُحِلُّ الْمَسْجِدَ لِحَائِضٍ وَلَا جُنُبٍ" (زه د حائضه ښځي او جنب کس لپاره مسجد حلال نه ګرځوم).

**دويم دليل**: دا دی چي مسجد د لمانځه او د الله د ذکر لپاره جوړيږي، حالانکي په دعوو او مقدماتو کي درواغ هم ويل کيږي او د درواغو قسمونه خوړل کيږي، نو ځکه مناسب دا ده چي قاضي د فيصله کولو لپاره په مسجد کي نه کښېني چي د درواغو له ګناه څخه مسجد وساتل سي.

**زموږ دلیل:** د احنافو اول دلیل دا حدیث دی: "إِنَّمَا بُنِيَتِ الْمَسَاجِدُ لِذِكْرِ اللهِ وَالْحُكْمِ" (یعني مساجد د الله تعالیٰ د ذکر کولو او فیصله کولو لپاره جوړېږي). له دې حدیث څخه په ښکاره توګه معلومه سوه چې په د مسجد کې د مقدماتو او دعوو فیصله کېدای سي.

**دویم دلیل:** دا دی چې نبي کریم ﷺ به د اعتکاف کولو پر مهال خپل د اعتکاف پر ځای د مقدماتو فیصله کوله، او دا خبره تسلیم سوې ده چې اعتکاف صرف په مسجد کې کېږي، له دې څخه هم معلومه سوه چې په مسجد کې د مقدماتو فیصله کېدای سي. همدارنګه له نبي کریم ﷺ څخه په مسجد کې د فیصله کولو نور واقعات هم روایت سوي دي کوم چې صاحب د بنایې په اتم (۸) جلد کې په تفصیل سره ذکر کړي دي.

**درېیم دلیل:** دا دی چې له نبي کریم ﷺ څخه وروسته خلفاء راشدینو هم په مسجدونو کې فیصلې کولې، او څرنګه چې د هغو عمل هم د امت لپاره حجت دی، نو ځکه په دې حواله سره هم په مسجد کې د فیصله کولو جواز ثابتېږي.

**څلورم دلیل:** دا دی چې د حق مطابق د یو شي فیصله کول (قضاء بالحق) یو ډول عبادت دی، او په مسجدونو کې عبادت کول جائز دي، لهذا څرنګه چې په مسجد کې لمونځ کول جائز دي، همداسي په مسجد کې د حق فیصله کول هم جائز دي.

**امام شافعي ته جواب:** ونجاسة المشرك: مخکې ذکر سوه چې امام شافعي رَحِمَهُ الله د مشرک او حائضه ښځې په وجه په مسجد کې د مقدماتو فیصله کول ناجائز ګرځولي دي، له دې ځایه صاحب د کتاب هغه ته جواب ورکوي فرمایي چې مشرک د جسم او ظاهر په اعتبار سره ناپاک نه وي، بلکې په اعتقادي توګه ناپاکه وي (یعني عقیده یې نجسه وي)، او اعتقادي نجاست له دخول مسجد څخه مانع نه دی، لکه څرنګه چې د نبي ﷺ په زمانه کې د ثمامه بن اثال په نامه یو مشرک د مسجد د میل (پیلر) سره تړل سوی وو، که چیرې په مسجد کې د مشرک داخله ممنوع وای نو ثمامه به له مسجد څخه دباندې تړل سوی وای.

همدارنګه د حائضه ښځې په حق کې هم فیصله کول ممکن دي په دې توګه چې حائضه ښځه قاضي خپل په حائضه والي خبر کړي بیا قاضي یا د هغه نائب له مسجد څخه دباندې راسي او د ښځې دعویٰ واوري او د هغه مطابق فیصله وکړي، لکه کله چې دعویٰ د یو څاروي (دابة) په هکله وي نو ښکاره خبره ده چې هغه مسجد ته نه راوستل کېږي بلکې هغه له مسجد څخه دباندې درول کېږي او د هغه په هکله فیصله کېږي. همداسي به دلته هم د حائضې ښځې فیصله له مسجد څخه دباندې کېږي.

ولو جلس في داره إلخ: د دې حاصل دا دی چې که قاضي په خپل کور کې د فيصله کولو لپاره کښېني نو دا هم پروا نه لري؛ ځکه چې اصل مقصد فيصله کول دي. لهذا چيرې چې هم فيصله کول ممکن وي هلته دې فيصله وسي. خو شرط دا دی چې په هغه کور کې به هر چا ته د راتللو اجازت وي او پر هيچا به پابندي نه وي؛ ځکه په عوامو کې هر کافر او مسلمان ته دا حق حاصل دی چې د قاضي محکمې ته داخل سي.

ويجلس معه إلخ: فرمايي کوم خلک چې له قاضي کېدلو څخه مخکې د قاضي سره ناسته ولاړه کوي، هغه دې اوس هم د هغه سره ناسته ولاړه کوي؛ ځکه چې د قاضي په يوازې (تنها) ناسته کې دا خطره سته چې پر هغه به د رشوت اخيستلو يا د زور او ظلم کولو تهمت ولګول سي. همدا وجه ده چې عثمان رضي الله عنه به تر هغه وخته هيڅ فيصله نه کوله تر څو چې به د هغه سره څلور صحابه موجود نه وای. او مستحب دا ده چې د عامو خلکو پر ځای د قاضي سره يو څو علماء او فقهاء ناست وي او قاضي د هغو سره د مسئلو په هکله مشوره کوي چې صحيح فيصله وکړی سي. لکه څرنګه چې د ابو بکر رضي الله عنه په مجلس کې به حضرت عمر، عثمان او علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُم حاضر او سېدل (له همدې کبله زموږ په ځينو علاقو کې د علماؤ يو جماعت او غونډه جوړه وي چې د ټولو په مشوره سره فيصله کوي او واقعي د انصاف فيصله کوي).

## د قاضي لپاره هديه (تحفه) قبلول

قَالَ: وَلَا يَقْبَلُ هَدِيَّةً إِلَّا مِنْ ذِيْ رَحِمٍ مَحْرَمٍ فرمايي: او قاضي دې [د هيچا] هديه نه قبلوي ما سوا د خپل ذی رحم محرم أَوْ مِمَّنْ جَرَتْ عَادَتُهُ قَبْلَ الْقَضَاءِ بِمُهَادَاتِهِ يا [ما سوا] د هغه کس کوم چې تر قاضي کېدلو مخکې [قاضي ته] د هغه د هديه ورکولو عادت وي لِأَنَّ الْأَوَّلَ صِلَةُ الرَّحِمِ ځکه چې اول د صله رحمي په توګه دی وَالثَّانِيْ لَيْسَ لِلْقَضَاءِ بَلْ جَرَى عَلَى الْعَادَةِ او دويم د قاضي والي [قاضي کېدلو] په وجه نه دی بلکې د عادت پر بناء دی وَفِيْمَا وَرَاءَ ذٰلِكَ يَصِيْرُ آكِلًا بِقَضَائِهِ او له دې څخه بغير په بل صورت کې به هغه د قاضي والي په وجه خوړونکی وي [يعني له دې څخه بغير په نورو صورتونو کې هديه د قاضي والي په وجه وي او هلته به قاضي د قاضي والي په وجه اخيستونکی او خوړونکی شمارل کيږي] حَتّٰى لَوْ كَانَتْ لِلْقَرِيْبِ خُصُوْمَةٌ تر دې که د يو قريب دعوىٰ [مقدمه] وي لَا يَقْبَلُ هَدِيَّتَهُ نو د هغه هديه به [هم] نه قبلوي وَكَذَا إِذَا زَادَ الْمُهْدِيْ عَلَى الْمُعْتَادِ او همدارنګه کله چې هديه کونکی تر عادي [او پخواني] مقدار زياته هديه ورکړي أَوْ كَانَتْ لَهُ خُصُوْمَةٌ يا [د قاضي په محکمه کې] د هغه يو دعوىٰ [روانه]

وي لِأَنَّهُ لِأَجْلِ الْقَضَاءِ ځکه چې دا د قاضي والي په وجه وي فَيَتَحَامَاهُ نو ځکه دې له هغه څخه پرېز کوي وَلَا يَحْضُرُ دَعْوَةً إِلَّا أَنْ تَكُونَ عَامَّةً او هیڅ دعوت [مېلمستيا] ته دې نه حاضرېږي، مګر دا چې هغه عام دعوت وي لِأَنَّ الْخَاصَّةَ لِأَجْلِ الْقَضَاءِ ځکه چې خصوصي دعوت د قاضي والي په وجه وي فَيُتَّهَمُ بِالْإِجَابَةِ نو ځکه د هغه په قبلولو سره به قاضي متهم سي بِخِلَافِ الْعَامَّةِ په خلاف دعام دعوت وَيَدْخُلُ فِي هٰذَا الْجَوَابِ قَرِيبُهُ او په دې حکم کې د قاضي قريب [ذي رحم محرم] هم شامل دی وَهُوَ قَوْلُهُمَا او همدا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله قول دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ* أَنَّهُ يُجِيبُهُ وَإِنْ كَانَتْ خَاصَّةً او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې د قريب دعوت به قبلوي، که څه هم خصوصي دعوت وي كَالْهَدِيَّةِ لکه هديه [دقريب چې قبلول جائز دي] وَالْخَاصَّةُ مَا لَوْ عَلِمَ الْمُضِيفُ أَنَّ الْقَاضِيَ لَا يَحْضُرُهَا او خصوصي دعوت دا دی چې که کوربه [دعوت کونکی] ته دا معلومه سي چې قاضي به [زما] دعوت ته حاضر نه سي لَا يَتَّخِذُهَا نو [بيا] هغه دا دعوت نه تياروي.

**اللغات**: ﴿هديـة﴾ تحفه، سوغات. په هديه او رشوت کې فرق دا دی چې رشوت په دې شرط ورکول کېږي چې اخيستونکی به زما مدد کوي او په هديه کې دا شرط نه وي، ﴿مهاداة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو بل ته هديه ورکول (يو تر بله تحفه ورکول). ﴿معتاد﴾ د عادت مطابق، عادي، ﴿خصومة﴾ جنګ وجنجال، دعوی (دعوه)، ﴿يُتهم﴾ د افتعال د باب مضارع مجهوله ده: متهم کېدل (تهمت پر لګېدل)، تورن کېدل، بدنامه کېدل. ﴿يتحاماه﴾ د تفاعل له بابه د واحد مذکر غائب مضارع صيغه ده: ځان ساتل، پرېز کول (پرهېز کول). ﴿يجيبه﴾ د افعال د باب مضارع ده: قبلول، ﴿مضيف﴾ د افعال د باب فاعل دی: کوربه، مېلمستيا کونکی، دعوت کونکی.

**تشريح**: امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې قاضي دې له دوو خلکو څخه بغير د بل چا هديه نه قبلوي: ① ذي رحم محرم يعني نژدې قريب، ② هغه کس چې قاضي خپل تر قاضي کېدلو مخکې له هغه څخه هديه اخيستل.

---

* القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله في دعوة القريب، كما ذكر في رد المختار (ج:۴، ص:۳۴۷).. وكذا في البحر (ج:۶، ص:۲۸۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۰۶]

او په دې باره کې چې د قاضي لپاره هديه قبلول ناجائز دي دليل دا حديث دی: " عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ رضي الله عنه قَالَ: اسْتَعْمَلَ النَّبِيُّ ﷺ رَجُلًا مِنَ الْأَزْدِ عَلَى الصَّدَقَةِ. فَلَمَّا قَدِمَ قَالَ: هٰذَا لَكُمْ وَهٰذَا أُهْدِيَ لِي. قَالَ: فَهَلَّا جَلَسَ فِي بَيْتِ أَبِيهِ أَوْ بَيْتِ أُمِّهِ فَيَنْظُرَ يُهْدٰى لَهُ أَمْ لَا ... " (بخاري شريف. حديث شمېره ۲۵۹۷)، (يعني نبي کريم ﷺ د "ازد" قبيلې يو سړی پر صدقاتو مقرر کړی، بيا چې کله هغه راغلی نو ويې ويل چې دا ستاسو مال دی او ماته هديه سوی دی. نو نبي ﷺ (وعيدا) وفرمايل چې هغه دې د مور او پلار په کور کې کښېني او بيا دې اوګوري چې هغه ته هديه ورکول کيږي، که نه! .... تر دې وروسته نبي ﷺ وفرمايل چې که څوک له دې څخه يو شئ واخلي نو د قيامت په ورځ به هغه په دې سره نيول کيږي او سزا به ورکول کيږي). همدارنګه حضرت عمر رضي الله عنه يو وخت حضرت ابو هريره د صدقاتو (زکاة او داسي نورو) عامل مقرر کړی. بيا ابو هريره رضي الله عنه د خپل ځان سره جلا مال راوړی، نو عمر رضي الله عنه پوښتنه ځني وکړه چې دا له کومي خوا سو؟، نو ابو هريره رضي الله عنه وويل چې ما ته خلګو په هديه کې راکړی، نو عمر رضي الله عنه وفرمايل: اې بدبخته! ته په کور کې کښېنه او اوګوره! چې تا ته خلګ هديه درکوي، که نه! ؛ بيا هغه له حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه دا مال واخيستی او په بيتُ المال کې يې جمع کړی.

او د ذی رحم محرم هديه قبلول ځکه جائز دي چې هغه هديه د صلهٔ رحمی په وجه وي، د قاضي والي (قاضي کېدلو) په وجه نه وي. او همدارنګه له قاضي کېدلو څخه مخکې چې قاضي د چا هديه اخلي، تر قاضي کېدلو وروسته د هغه هديه اخيستل او قبلول هم د قاضي والي په وجه نه وي، بلکې د مخکني عادت پر بناء وي. او کومه هديه چې د قاضي والي په وجه نه وي، د هغه په قبلولو کې هيڅ حرج نسته، نو ځکه د دې دوو کسانو هديه قبلول جائز دي. او څرنګه چې له دوی څخه بغير د بل چا هديه فقط د قاضي والي په وجه وي، نو ځکه د بل چا هديه قبلول نا جائز دي. حتىٰ که يو ذی رحم محرم (نژدې قريب) تر دعوې لاندې وي نو قاضي به د هغه هديه هم نه قبلوي. يا که هغه له پخواني مقدار څخه زياته هديه قاضي ته را واستوي نو زيات مقدار به نه قبلوي: ځکه چې دا د قاضي والي په وجه وي. لهذا له دې څخه به قاضي پرهېز کوي.

(پاته سوه دا خبره چې که بيا هم قاضي دا ناجائزه هديه قبوله کړي، نو څه به په کوي؟ ځيني مشايخ وايي چې هغه دې بيتُ المال ته داخله کړي. او د عامو علماؤ مذهب دا دی چې که قاضي هغه ورکونکی سړی پېژني نو هغه ته دې خپل هديه واپس وکړي، او که يې نه پېژني. يا د ليري والي په وجه هغه ته واپس کول مشکل وي. نو بيا دې هغه په بيتُ المال کې جمع کړي او د هغه حکم به د لقطې په څېر وي).

ولا يحضر دعوة إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې قاضي دې خصوصي دعوت نه قبلوي. لېکن عام دعوت قبلولای سي: ځکه خصوصي دعوت د قاضي الي په وجه وي او د هغه په قبلولو سره قاضي متهم کيږي (بدناميږي)، په خلاف د عام دعوت. ځکه د عام دعوت په قبلولو کې قاضي نه متهم کيږي.

ويدخل إلخ: فرمايي چي په دې حکم کې (يعني د خصوصي دعوت په نه قبلولو کې) د قاضي قريب هم شامل دی. يعني قاضي دې د هيچا دعوت نه قبلوي. برابره ده هغه پردی سړی وي او که د قاضي ذی رحم محرم وي. همدا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله قول دی.

امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي قاضي به د ذی رحم محرم دعوت قبلوي که څه هم خصوصي دعوت وي. لکه څرنګه چي د ذی رحم محرم هديه قبلول جائز دي.

والخاصة إلخ: او په خصوصي او عام دعوت کې فرق دا دی: ① چي که داعي (کوربه) ته دا معلومه سي چي قاضي نه راځي نو هغه ګرسره د دعوت انتظام پريږدي (يا مثلاً هغه ته معلومه سي چي قاضي په اوس وخت کې مصروفه دی. نو د هغه لپاره دعوت وځنډوي) نو دا خصوصي دعوت دی. او که داسي نه وي نو دا عام دعوت دی. ② او ځيني مشايخ فرمايي چي د لسو څخه کم دعوت خصوصي دی او له هغه څخه زيات عمومي دی. ③ او ځيني وايي چي د نکاح او ختنه له دعوت څخه بغير بل هر دعوت خصوصي (دعوت خاصه) دی. (بنايه وعنايه)

## د قاضي معاشرتي تعلقات

قَالَ: وَيَشْهَدُ الْجِنَازَةَ وَيَعُوْدُ الْمَرِيْضَ او قاضي دې جنازې ته حاضرېږي او د مريض عيادت دې کوي لِأَنَّ ذٰلِكَ مِنْ حُقُوْقِ الْمُسْلِمِيْنَ ځکه چي دا د مسلمانانو له حقوقو څخه دي قَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: «لِلْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ سِتَّةُ حُقُوْقٍ» نبي ﷺ فرمايلي دي: چي د مسلمان پر مسلمان شپږ حقونه دي وَعَدَّ مِنْهَا هٰذَيْنِ او په هغوی کې نبي ﷺ دا دوه حقونه [هم] شمارلي دي وَلَا يُضَيِّفُ أَحَدَ الْخَصْمَيْنِ دُوْنَ خَصْمِهِ او قاضي دې په دواړو خصمونو [مدعي او مدعیٰ عليه] کې له يو خصم څخه بغير د بل مېلمستيا نه کوي لِأَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهٰى [2] عَنْ ذٰلِكَ ځکه چي نبي کريم ﷺ له دې څخه منع کړې ده وَلِأَنَّ فِيْهِ تُهْمَةً او ځکه چي په دې کې تهمت دی.

اللغات: ﴿يشهد﴾ د سمع د باب ماضي ده. د دغه باب څو معناوي دي چي له هغه څخه يو معنیٰ "حاضرېدل" دي. ﴿يعود﴾ د نصر مضارع ده: عيادت کول، بيمار پرسي کول (پر مريض پوښتنه کول. د

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى، باب النهي عن سبّ الأموات، حديث رقم:٢٠٦٥. والنسائي، باب النهي عن سب الأموات، حديث رقم:١٩٣٨.

[2] تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى، باب لاينبغي للقاضي أن يضيف الخصم...، حديث رقم:٢٠٥٣٧.

مريض ليدلو ته تلل). ﴿لا يضيف﴾ د تفعيل د باب نفي صيغه ده (د افعال له بابه هم كېداى سي. دلږ معنوي تغير سره): مېلمستيا كول. دعوت كول.

**تشريح**: فرمايي كه په عوامو كي يو سړى مړ سي نو قاضي ته پكار دي چي د هغه په جنازه كي شركت وكړي، همدارنګه كه يو سړى مريض وي نو قاضي دي پر هغه پوښتنه (عيادت) وكړي؛ ځكه چي دا دواړه د مسلمان له حقوقو ځخه دي؛ او د حضرت ابو ايوب انصاري ﷺ په حديث كي د يوه مسلمان پر بل مسلمان شپږ حقوق بيان سوي دي، د حديث الفاظ دا دي: "لِلْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ سِتُّ خِصَالٍ وَاجِبَةٍ إِنْ تَرَكَ شَيْئًا مِنْهَا فَقَدْ تَرَكَ حَقًّا وَاجِبًا عَلَيْهِ: ① إِذَا دَعَاهُ أَنْ يُجِيبَهُ. ② وَإِذَا مَرِضَ أَنْ يَعُودَهُ. ④ وَإِذَا مَاتَ أَنْ يَحْضُرَهُ. ③ وَإِذَا لَقِيَهُ أَنْ يُسَلِّمَ عَلَيْهِ. ⑤ وَإِذَا اسْتَنْصَحَهُ أَنْ يَنْصَحَهُ. ⑥ وَإِذَا عَطَسَ أَنْ يُشَمِّتَهُ" (يعني د يوه مسلمان پر بل مسلمان شپږ حقونه واجب دي، كه څوك له هغه څخه يو حق پرېږدي نو ده واجب سوى حق پرېښووى (او هغه شپږ حقونه دا دي): ① كه مسلمان ده ته دعوت وركړي نو هغه دي قبول كړي، ② او كله چي مسلمان مريض سي نو د هغه عيادت دي وكړي، ③ او كله چي مړ سي نو د هغه په جنازه كي دي شريک سي، ④ او كله چي ملاقات ورسره وكړي نو هغه ته دي سلام وكړي، ⑤ او كه چيري له ده څخه يو نصيحت وغواړي نو هغه ته دي نصيحت وكړي، ⑥ او كله چي هغه ته نوړۍ (انتروشى) راسي نو د هغه جواب دي وركړي). دا ټوله شپږ حقونه دي او په دې كي د مريض عيادت او شركت فى الجنازه دواړه حقونه شامل دي، نو ځكه د عامو مسلمانانو په څېر قاضي ته هم دا حقونه اداء كول پكار دي.

ولا يضيف إلخ: د دې حاصل دا دى كه د قاضي په مجلس كي د دوو خلكو تر مينځ دعوىٰ روانه وي او قاضي مېلمستيا كول وغواړي نو قاضي دي مدعى او مدعىٰ عليه دواړو ته ست (دعوت) وكړي؛ ځكه له حضرت علي ﷺ څخه روايت سوى دى، هغه فرمايي "نَهَانَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ أَنْ نُضِيْفَ الْخَصْمَ إِلَّا أَنْ يَكُوْنَ خَصْمُهُ مَعَهُ" (يعني نبي ﷺ موږ له دې څخه منع كړي يو چي د يوه خصم مېلمستيا وكړو مګر دا چي د هغه سره خپل خصم هم وي)، يعني نبي كريم ﷺ له دې څخه منع كړې ده چي په مدعى او مدعىٰ عليه كي يوه ته ست وسي او بل پرېښوول سي.

دويم دليل دا دى چي په داسي كولو سره قاضي متهم كيږي. يعني خلک به دا تهمت لګوي چي د قاضي ميلان د دې سړي وطرف ته دى.

## د قاضي لپاره د ناستي آداب

قَالَ: وَإِذَا حَضَرَا [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او کله چي دواړه خصم [مدعی او مدعیٰ علیه] حاضر سي سَوّٰى بَيْنَهُمَا فِي الْجُلُوسِ وَالْإِقْبَالِ نو قاضي به د هغه دواړو تر مينځ په ناسته او توجه کولو کي برابري کوي لِقَوْلِهِ الطِّيلا [1]: «إِذَا ابْتُلِيَ أَحَدُكُمْ بِالْقَضَاءِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: کله چي په تاسو کي څوک په قضاء [قضاوت] سره مبتلا سي فَلْيُسَوِّ بَيْنَهُمْ فِي الْمَجْلِسِ وَالْإِشَارَةِ وَالنَّظَرِ» نو هغه دي د خصومو [دعوی کونکو خلګو] په مينځ کي برابري کوي وَلَا يُسَارُّ أَحَدَهُمَا [امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي] او قاضي دي په هغه دواړو کي د يوه سره پټي خبري نه کوي وَلَا يُشِيرُ إِلَيْهِ او نه دي د يوه وطرف ته اشاره کوي وَلَا يُلَقِّنُهُ حُجَّةً او نه دي يوه ته د دليل تلقين کوي لِلتُّهْمَةِ د تهمت په وجه [يعني د متهم کېدلو په وجه] وَلِأَنَّ فِيهِ مَكْسَرَةً لِقَلْبِ الْآخَرِ او ځکه چي په دې کي د دويم خصم د زړه ماتېدل [دل شکني] سته فَيَتْرُكُ حَقَّهُ نو ځکه هغه به خپل حق پرېږدي وَلَا يَضْحَكُ فِي وَجْهِ أَحَدِهِمَا او قاضي دي په هغوی کي د يوه مخته نه خاندي [يعني د يوه سره دي مواجهةً نه خاندي] لِأَنَّهُ يَجْتَرِئُ عَلَى خَصْمِهِ ځکه چي هغه به پر خپل خصم دلاوره سي وَلَا يُمَازِحُهُمْ وَلَا وَاحِدًا مِنْهُمْ او قاضي دي نه د خصومو سره ټوکي [مسخري] کوي او نه دي يې په هغوی کي د يوه سره کوي لِأَنَّهُ يُذْهِبُ بِمَهَابَةِ الْقَضَاءِ ځکه چي دا د قضاء هيبت [رعب] له منځه وړي.

**اللغات**: ﴿سوّى﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: برابرول. ﴿إقبال﴾ د افعال د باب مصدر دی: توجه کول (متوجه کېدل). پاملرنه کول. ﴿ابتلئ﴾ د افتعال ماضي ده: په ازمايښت مبتلا کېدل. (ازمايل کېدل). ﴿النظر﴾ د نصر اسمِ مصدر دی: کتل. نظر کول. ﴿لا يسارّ﴾ د مفاعلې د باب نفي صيغه ده. د دې ماده "سِرّ" ده: يو د بل سره پټي خبري کول (کراري خبري کول). په غوږ کي خبري کول. ﴿لايلقنه﴾ د تفعيل د باب نفي صيغه ده. لغوي معنی يې ده: پوهونه. ورښوونه. ﴿مکسرة﴾ د ضرب د باب مصدر ميمي دی: ماتېدل. ﴿يجترئ﴾ د افتعال مضارع ده: بهادر کېدل. دلاوره کېدل. ﴿لايمازحه﴾ د مفاعلې د باب نفي صيغه ده: ټوکي او مسخرې کول (مذاق کول). ﴿مهابة﴾ د سمع د باب مصدر ميمي دی: هيبت. رعب. دبدبه.

**تشريح**: په دې عبارت کي صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په عدالت (محکمه) کي د ناستي آداب بيانوي. حاصل يې دا دی چي قاضي ته د دې خبري پوره خيال ساتل پکار دي چي هغه د هر مسلمان او هر بنده په حق کي

[1] تخريج: أخرجه طبراني في المعجم الكبير عن أم سلمة، حديث رقم:١٩٨٧٥، ج:٢٣. و أبو داؤد بمعناه، باب كيف يجلس بين يدي القاضي، حديث رقم:٣٥٨٨.

قاضي وي او د هغه په نظر کي ټوله خلک برابر او مساوي وي. نو ځکه هغه دي د هر خصم سره د مساوات او برابرۍ معامله کوي. برابره ده هغه د کښېنستلو په هکله وي یا د اشاره کولو او توجه کولو په هکله وي. مثلاً هغه دي داسي نه کوي چي يو خصم ځان ته نژدې کښېنوي او بل ليري کښېنوي. يا يو په خصوصي ځای کي کښېنوي او بل په عام ځای کي. او نه دي ديوه خصم وطرف ته خصوصي اشاره او توجه کوي. بلکي د دواړو خصمونو (مدعي او مدعیٰ علیه) په مينځ کي دي برابره اشاره او توجه کوي؛ ځکه په حديث مبارک کي قاضي ته د دې کارونو په هکله د مساوات او برابرۍ حکم سوی دی (حديث په عبارت کي ذکر سو).

ولا يُسَارّ إلخ. امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي قاضي دي نه ديوه خصم سره پټي، پټي خبري کوي. او نه دي ديوه خصم وطرف ته په خپل سر، لاس يا سترګو سره اشاره کوي. او نه دي يوه ته د حجت او دليل تلقين (ښوونه) کوي، ځکه چي په داسي کولو سره قاضي په رشوت او طرفداري متهم کيږي. نو له تهمت څخه د ځان ساتلو لپاره به داسي نه کوي.

دويم دليل دا دی چي په داسي کولو سره د دويم خصم زړه ماتيږي. يعني کله چي هغه د قاضي دا حرکات او رويه ويني نو هغه به د قاضي په رويه سره مايوسه سي او خپل حق به پريږدي (يعني دا معامله او دعویٰ به داغسي ناحله پاته سي). نو ځکه قاضي ته له دې حرکاتو څخه ځان ساتل پکار دي.

ولا يضحك إلخ: فرمايي چي قاضي دي داسي هم نه کوي چي ديوه خصم سره خندا او مسکا کوي؛ ځکه د کوم خصم سره چي هغه خندا (او د شناخت اظهار) وکړي نو هغه به پر دويم خصم جرات او دلاوري ښکاره کړي او په دې توګه به د دويم خصم زړه مات سي. همدارنګه قاضي دي ديوه خصم سره مسخرې او ټوکي هم نه کوي؛ ځکه چي ګپه، ټوکي او مسخرې قضاء د منصب رعب او دروند والی له منځه وړي. حال دا چي د قاضي لپاره دروند او با رعبه او سپېدل ضروري دي.

## د قاضي لپاره ګواه ته د تلقين کولو حکم

قَالَ: وَيُكْرَهُ تَلْقِينُ الشَّاهِدِ او ګواه ته تلقين کول مکروه دي وَمَعْنَاهُ أَنْ يَقُولَ لَهُ: أَتَشْهَدُ بِكَذَا وَكَذَا او د دې مطلب دا دی چي قاضي ګواه ته داسي ووايي: آيا ته د دې خبري ګواه يې! وَهٰذَا لِأَنَّهُ إِعَانَةٌ لِأَحَدِ الْخَصْمَيْنِ او دا ځکه [مکروه دي] چي دا ديوه خصم سره مرسته کول دي فَيُكْرَهُ كَتَلْقِينِ الْخَصْمِ نو ځکه داسي به مکروه وي لکه خودي خصم ته تلقين کول وَاسْتَحْسَنَهُ أَبُو يُوسُفَ ﷺ فِي غَيْرِ مَوْضِعِ التُّهْمَةِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د تهمت له ځايه بغير په بل ځای کي هغه مستحسن [غوره] ګرځولي دي لِأَنَّ الشَّاهِدَ قَدْ يَحْصُرُ لِمَهَابَةِ

ﷺ القول الراجح هو أنه لا يسعد رَحِمَهُ الله كما ذكر الدر المختار (ج:۴، ص:۲۴۷)، وكذا في مجمع الأنهر (ج:۳،

الْمَجْلِسِ ځکه ګواه ځیني وخت د مجلس (محکمې) له هیبته په ژبه کې بند سي فَكَانَ تَلْقِينُهُ إِحْيَاءً لِلْحَقِّ نو هغه ته تلقین کول به د حق ژوندي کول وي بِمَنْزِلَةِ الْإِشْخَاصِ وَالتَّكْفِيلِ لکه (د خصم وطرف ته) یو سړی استول یا (له خصم څخه) کفیل اخیستل.

**اللغات:** ﴿تلقین﴾ د تفعیل د باب مصدر دی، لغوي معنی یې ده: پوهونه، ځبرې ورښوونه (ور زده کونه).

﴿شاهد﴾ ګواه، ګواهي ورکونکی. ﴿یحصر﴾ بندېدل، درېدل، مراد ځني په ژبه او خبرو کې بندېدل دي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دي چې د قاضي لپاره ګواه ته تلقین کول مکروه دي، دلته د تلقین مطلب دا دی چې قاضي ګواه ته داسي خبره وکړي کوم چې د شهادت (ګواهی) سره متعلق وي، مثلاً قاضي ګواه ته داسي وايي چې "ایا ته د فلانکي خبري ګواه یې!" (یا مثلاً "ایا ته ددې ګواه یې! چې د خالد پر زید سل درهمه باندي دي"، یا مثلاً ووايي: "ته داسي ګواهي ورکړه!")، داسي تلقین کول مکروه دي؛ د کراهت وجه یې دا ده چې د ګواه په تلقین کي له خصمینو (مدعي او مدعیٰ علیه) څخه د یوه خصم مرسته کول لازمیږي، لهذا څرنګه چې د قاضي لپاره یوه خصم ته تلقین کول مکروه دي همداسي ګواه ته تلقین کول هم مکروه دي.

**واستحسنه إلخ:** امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې د تهمت له ځایه بغیر په بل ځای کي د قاضي لپاره ګواه ته تلقین کول مستحسن او غوره دي؛ ځکه چې قضاء د خلکو د حقوقو د ژوندي کولو لپاره مشروع سوې ده، او ځیني وخت ګواه د عدالت (محکمې) د هیبت او رعب په وجه په ژبه کي بند سي او خبري یې ودربیږي، نو په داسي صورت کي به ګواه ته تلقین کول د انساني حق د ژوندي کولو لپاره وي. او د دې مثال داسي دی لکه یو خصم چې عدالت ته نه راځي نو قاضي د هغه د رابللو لپاره یو سړی هغه ته واستوي، نو دا که څه هم په ظاهره بنه نه معلومیږي لېکن د حق ژوندي کولو لپاره دا مستحسن او غوره دي، او لکه قاضي چې له یو خصم څخه کفیل واخلي، نو داسي کول هم مستحسن دي، نو ځکه د تهمت له ځایه بغیر په بل ځای کي به د تلقین کولو په ذریعه د ګواه مرسته کول هم مستحسن وي.

د تهمت د ځای مثال دا دی چې مثلاً مدعي د پنځلس سوه درهمو دعویٰ کوي لېکن مدعیٰ علیه د زر درهمو دعویٰ کوي او له پنځه سوه درهمو څخه انکار کوي او ګواه هم د زر درهمو ګواهي ورکړي، نو په دې مینځ کي قاضي ګواه ته ووايي چې شاید مدعي به پنځه سوه درهمه معاف کړي وي، او په دې توګه ګواه خپل ګواهي سمه کړي، نو داسي تلقین بالاتفاق ناجائز دی.



# فَصْلٌ فِي الْحَبْس

## (دا) فصل د بندي کولو (په بیان کې) دی

**تشریح**: څرنګه چې حبس او قید (قیدول) د قضاء له احکامو څخه یو حکم دی او د قاضي په عدالت او محکمه کې د انکار کونکو او ټال متهول کونکو لپاره غوره سزا همدا ده چې هغوی قید او بندي کړل سي تر دې چې حقیقي حالت ښکاره سي، نو ځکه په کتاب القاضي کې د حبس (بندي کولو) احکام او مسائل بیان سوي دي، او څرنګه چې د حبس سره ډېر احکام متعلق دي، نو ځکه هغه په جلا فصل کې بیان سوي دي.

**ضروري یادونه**: د قاضي له فیصلې څخه مخکې چې د حالاتو د تحقیق لپاره متهم مجرم قیدول کیږي، هغه ته عموماً "حَبْس" وایي، او تر فیصلې وروسته چې مجرم قید کړی سي، هغه ته "سِجْن" وایي. (أثمار الهدایه)

حبس په کتاب او سنت دواړو سره ثابت او مشروع دی: ① په کتابُ الله سره ځکه، چې په دې آیت "أَوْ يُنفَوْا مِنَ الْأَرْضِ" کې له "نفي" څخه مراد حبس دی. ② او په سنت سره ځکه، چې نبي کریم ﷺ د تهمت په جرم کې یو سړی محبوس کړی. او امام خصاف رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چې د اهل حجاز ځیني خلګو جنګ سره وکړی تر دې چې په خپل مینځ کې یې یو سړی قتل کړی، نو نبي ﷺ هغوی محبوس کړل. د نبي کریم ﷺ په زمانه کې باقاعده بندیخانه موجوده نه وه، وروسته حضرت عمر رضي الله عنه د خپل خلافت په دور کې یو کور په مکه مکرمه کې په څلور زره درهمه رانیوی او له هغه څخه یې بندیخانه جوړه کړه. او د ځیني حضراتو خیال دا دی چې د حضرت عمر او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په زمانه کې هم باقاعده بندیخانه موجوده نه وه. بلکې تر ټولو مخکې حضرت علي رضي الله عنه بندیخانه جوړه کړه، ③ او عقلاً هم د حبس او بندیخانې مشروعیت ثابت دی. په دې توګه چې د قاضي اصل کار خلګو ته خپل حق رسول دي. لېکن کله چې مطلوب د طالب له حق اداء کولو څخه انکار وکړي نو قاضي به هغه د حق پر اداء کولو مجبوره کوي. او پر دې ټوله متفق دي چې د وهلو او ډبولو په ذریعه به نه مجبوروول کیږي بلکې د حبس (بندي کولو) په ذریعه جبر کول اولیٰ دي. لهذا کله چې جبر د حبس په ذریعه کیږي. نو ځکه حبس به هم مشروع وي او د بندیخانې جوړول به هم مشروع او جائز وي.

# په قیدولو (بندي کولو) کي د تلوار نه کولو بیان

قَالَ: وَإِذَا ثَبَتَ الْحَقُّ عِنْدَ الْقَاضِيْ فرمايي: او کله چي د قاضي په نېز [پر مقروض] حق ثابت سي وَطَلَبَ صَاحِبُ الْحَقِّ حَبْسَ غَرِيْمِهِ او د حق خاوند د خپل مقروض [پور وړي] د قیدولو طلب وکړي لَمْ يُعَجِّلْ بِحَبْسِهِ نو قاضي دي د هغه په قیدولو کي تلوار نه کوي وَأَمَرَهُ بِدَفْعِ مَا عَلَيْهِ او مقروض ته دي پر هغه د ثابت سوي قرض د ورکولو حکم وکړي لِأَنَّ الْحَبْسَ جَزَاءُ الْمُمَاطَلَةِ ځکه چي قیدول [بندي کول] د ټال متهول کولو سزا ده فَلَا بُدَّ مِنْ ظُهُوْرِهَا نو ځکه [د مقروض له طرفه] د ټال متهول ښکاره کېدل ضروري دي وَهٰذَا إِذَا ثَبَتَ الْحَقُّ بِإِقْرَارِهِ او دا [حکم] هغه وخت دی کله چي د مدعی علیه په اقرار سره حق ثابت سوی وي لِأَنَّهُ لَمْ يُعْرَفْ كَوْنُهُ مُمَاطِلًا فِيْ أَوَّلِ الْوَهْلَةِ ځکه چي [په دې صورت کي] په اوله پلا [یعني په شروع، شروع کي] کي د هغه ټال متهول والی معلوم نه سو فَلَعَلَّهُ طَمِعَ فِي الْإِمْهَالِ فَلَمْ يَسْتَصْحِبِ الْمَالَ نو شاید هغه د مهلت ترلاسه کولو اُمید کړی وي او [په همدې اُمید] هغه مال د ځان سره نه وي راوړی فَإِذَا امْتَنَعَ بَعْدَ ذٰلِكَ لهذا کله چي تر دې وروسته هغه [له حق ورکولو څخه] منع سي [انکار وکړي] حَبَسَهُ نو قاضي به هغه قیدوي لِظُهُوْرِ مَطْلِهِ ځکه چي [اوس] د هغه ټال متهول کول ښکاره سو أَمَّا إِذَا ثَبَتَ بِالْبَيِّنَةِ لېکن که چیري د ګواهۍ په ذریعه حق ثابت سوی وي حَبَسَهُ كَمَا ثَبَتَ نو د حق ثابتېدلو سره سمدستي به قاضي هغه قیدوي لِظُهُوْرِ الْمَطْلِ بِإِنْكَارِهِ ځکه چي [په دې صورت کي] د هغه د انکار کولو په وجه ټال متهول کول ښکاره سو.

**اللغات:** ﴿حَبْس﴾ د ضرب د باب مصدر دی: قیدول، بندي کول. ﴿غريم﴾ مقروض (قرضدار)، پور وړی. ﴿لم يعجل﴾ د تفعیل د باب جحد صیغه ده: تلوار کول، یو کار ژر کول. ﴿المماطلة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: ټال متهول کول. (ټال متالول)، په تمه کښېښول، په حیله او بانه کښېباسل (د ټال متهول معنی ده: څوک په تمه او په حیلو او بانو کښېباسل، یعني د یو چا حق (قرض) له یوه وخت څخه بل وخت ته ځنډول چي ته سبا راسه زه به یې درکړم، د سبا ورځ چي راسي نو وایي چي بل سبا به یې درکړم په همدې توګه هغه له خپل وخت څخه حق ډېر وځنډوي او حقدار بېزاره کړي)، ﴿وهلة﴾ لغوي معنی یې ده: خوف او بېره، او ''وَاهِلَة'' د شي اول ته وایي. کله چي د ''وَهْلَةٌ'' څخه مخکي د ''أَوَّل'' لفظ راسي یعني ''أَوَّلَ وَهْلَةٍ'' نو هم یې دغه معنی ده: د شي اول او شروع، د کار ابتداء او شروع (چي هغه ته په اصطلاحي پښتو اول ګشت یا اوله پلا او داسي نور

وايي). تر ټولو مخکې، لکه څرنګه چې په عربي کې ويل کيږي: لَقِيْتُهُ أَوَّلَ وَهْلَةٍ: تر ټولو مخکې (يا په اوله پلا) ما د هغه سره ملاقات وکړی. ﴿طمع﴾ د سمع د باب ماضي ده: لالچ کول، طمع کول. ﴿إمهال﴾ د افعال د باب مصدر دی: مهلت ورکول (وخت ورکول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله د قاضي په عدالت (محکمه) کې پر يوه سړي د بل سړي حق ثابت سي او بيا د حق خاوند (حقدار) د خپل مقروض د قيدولو مطالبه وکړي، نو د دې دوه صورتونه دي: ① د هغه حق به يا د اقرار په ذريعه ثابت سوی وي، ② او يا به د ګواهانو په ذريعه ثابت سوی وي.

①... که چيري اول صورت وي نو قاضي دي د مقروض په قيدولو (بندي کولو) کې تلوار نه کوي، بلکې مقروض ته دي حکم وکړي چې د حقدار سړي قرض اداء کړي، برابره ده قرض يو درهم وي يا له هغه څخه هم کم يا زيات وي.

دليل دا دی چې قيد او حبس د ټال مټول کولو سزا ده، لهذا د قيدولو لپاره دا ضروري دي چې د مقروض له طرفه ټال مټول ښکاره سي، نو کله چې د مقروض د خپل اقرار په وجه د حقدار حق ثابت سي نو دلته په اوله وهله (په شروع، شروع کې) خو د مقروض له طرفه د ټال مټول اظهار نه سي کېدای، ځکه هغه دا ويلای سي چې "زما دا اُميد وو چې ما ته به مهلت راکول سي نو ځکه ما د خپل ځان سره مال نه راوړی، لهذا اوس چې تاسو مهلت نه راکوی نو زه د مقروض حق اوس اداء کوم". لېکن که چيري تر حق ثابتېدلو وروسته مقروض له حق ورکولو څخه منع سي، نو څرنګه چې اوس د مقروض له طرفه ټال مټول ثابت سو، نو ځکه په دې صوورت کې به قاضي هغه قيدوي.

②... او که چيري دويم صورت وي، يعني حق د ګواهانو په ذريعه ثابت سوی وي، نو قاضي به د حق ثابتېدلو سره سمدستي مقروض (مدعیٰ عليه) قيدوي؛ ځکه د ګواهانو په ذريعه هغه وخت حق ثابتول کيږي کله چې مدعیٰ عليه له حق څخه منکر وي .لهذا کله چې مدعیٰ عليه يعني مقروض د قرض انکار وکړي نو هغه ټال مټول کونکی (مماطل) وګرځېدی، او د ټال مټول سزا حبس او قيد ده، نو ځکه د حق ثابتېدلو سره به سمدستي مقروض قيدول کيږي.

## د کوم قرض په عوض کې به مقروض قيدول کيږي؟

قَالَ: فَإِنِ امْتَنَعَ بيا که چيري مقروض [د قرض له اداء کولو څخه] منع سي حَبَسَهُ فِي كُلِّ دَيْنٍ لَزِمَهُ بَدَلًا عَنْ مَالٍ حَصَلَ فِي يَدِهِ نو قاضي به مقروض په هر هغه قرض کې قيدوي کوم چې د داسي مال په عوض کې پر ده لازم سوی وي چې هغه [مال] د ده په قبضه کې راغلی وي كَثَمَنِ الْمَبِيعِ لکه د

مبيع ثمن أَوِالْتَزَمَهُ بِعَقْدٍ يا اداسي قرض وي چي امقروض هغه د يو عقد په ذريعه پر ځان لازم کړی وي كَالْمَهْرِوَالْكَفَالَةِ لکه د مهر او کفالې مال لِأَنَّهُ إِذَا حَصَلَ الْمَالُ فِي يَدِهِ ځکه کله چي د ده قبضې ته مال راغلی ثَبَتَ غِنَاهُ بِهِ نو په هغه مال سره د ده مالدار والی ثابت سو وَإِقْدَامُهُ عَلَى الْتِزَامِهِ بِاخْتِيَارِهِ دَلِيلُ يَسَارِهِ او په خپل اختيار سره پر ځان د مال لازمولو اقدام کول د هغه د مالدار والي دليل دی إِذْ هُوَ لَا يَلْتَزِمُ إِلَّا مَا يَقْدِرُ عَلَى أَدَائِهِ ځکه چي هغه فقط هغه مال پر ځان لازموي چي پر اداء کولو يې قادر وي وَالْمُرَادُ بِالْمَهْرِ مُعَجَّلُهُ دُونَ مُؤَجَّلِهِ او له مهر څخه مراد مهر معجل دی، نه مهر مؤجل.

**اللغات**: ﴿امتنع﴾ د افتعال د باب ماضي ده: منع کېدل، انکار کول. ﴿غِنَاهُ﴾ مالداري، مالدار والی (موړوالی). ﴿التزم﴾ د افتعال د باب ماضي ده: پر ځان لازمول، په خپله ذمه اخيستل. ﴿يسار﴾ مالداري (د مال زياتوالی او پراخوالی).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که مقروض د قاضي تر حکم او فيصلې وروسته له قرض اداء کولو څخه منع سي او قرضخواه (د قرض خاوند) د هغه د قيدولو مطالبه وکړي، نو قاضي به مقروض د هر داسي قرض په باره کي قيدوي کوم چي د داسي مال (شي) په عوض کي وي چي مقروض پر هغه قبضه کړې وي، مثلاً د مبيع ثمن، يعني پر مقروض که څه هم د ثمن قرض واجب دی لېکن مبيع د هغه په قبضه کي راغلې ده (مقروض قبضه پر کړې ده). يا داسي قرض وي کوم چي هغه د عقد په ذريعه پر ځان لازم کړی وي، مثلاً د نکاح کولو په وجه هغه پر ځان مهر لازم کړی وي، يا د کفيل کېدلو په وجه يې مکفول به مال پر ځان لازم کړی وي.

دليل دا دی چي کله د مقروض په قبضه کي مال راغلی (او هغه قبضه پر وکړه) نو د دې مال په ذريعه د هغه مالدار والی ثابت سو. او ښکاره خبره ده چي کله مالدار کس له قرض اداء کولو څخه منع سي نو هغه قيدول کيږي. نو ځکه په دې قرض کي به دا مقروض هم قيدول کيږي يعني له هغه څخه به دا مطالبه کيږي چي کومه مبيع ستا په قبضه کي ده هغه خرڅه کړه او د بائع ثمن اداء کړه!.

همدارنګه په خپل اختيار سره پر ځان مال لازمول د مالدار والي دليل دی: ځکه انسان پر خپل ځان داسي مال لازموي کوم چي د هغه په قدرت کي وي او هغه يې پر اداء کولو قادر وي. لهذا کله چي هغه د مهر او کفالې مال پر خپل ځان لازم کړی نو ګواکي هغه يې پر اداء کولو قادر دی. او ښکاره خبره ده که انسان پر قرض قادر وي بيا هم قرض اداء نه کړي نو هغه د ټال متول کولو (مماطلت) په وجه

قیدول کیږي. نو ځکه دا مقروض به هم قیدول کیږي. (لنډه دا چي په دې وجهو به د پورتني هر قرض په عوض کي مقروض بندي کول کیږي).

والمراد بالمهر الخ: فرمايي چي په متن کي له مهر څخه "مهر معجل" مراد دی، ځکه هغه واجبُ الاداء وي (یعني فقط د هغه اداء کول فوراً واجب وي). "مهر مؤجل" مراد نه دی، ځکه چي هغه میعادي وي (یعني د هغه لپاره وخت او نېټه ټاکل سوې وي). لهذا که خاوند د مهر معجل له اداء کولو څخه منع سي نو بیا به هغه قیدول کیږي. او مهر مؤجل له دې حکم څخه مستثنیٰ دی، مګر دا چي کله د مهر مؤجل د اداء کولو وخت پوره سي، نو بیا به خاوند د هغه په وجه هم قیدول کیږي.

## په کومو صورتونو کي به مقروض نه قیدول کیږي؟

قَالَ: وَلَا يَحْبِسُهُ فِيمَا سِوَى ذٰلِكَ إِذَا قَالَ: إِنِّي فَقِيرٌ فرمايي: او له مذکوره قرضونو څخه بغیر دي قاضي په بل قرض کي مقروض نه قیدوي، کله چي هغه ووايي: زه غریب [مسکین] یم إِلَّا أَنْ يُثْبِتَ غَرِيمُهُ أَنَّ لَهُ مَالًا مګر دا چي د هغه قرضخواه دا ثابته کړي چي د هغه سره مال سته فَيَحْبِسُهُ نو [بیا] به قاضي هغه قیدوي لِأَنَّهُ لَمْ تُوجَدْ دَلَالَةُ الْيَسَارِ ځکه چي د مالدار والی دلیل موجود نه سو فَيَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَ مَنْ عَلَيْهِ الدَّيْنُ نو ځکه قول به د هغه کس معتبر وي چي پر هغه قرض دی [یعني د مقروض قول به قبلول کیږي] وَعَلَى الْمُدَّعِي إِثْبَاتُ غِنَاهُ او پر مدعي د مقروض مالداري ثابتول واجب دي وَيُرْوٰى أَنَّ الْقَوْلَ لِمَنْ عَلَيْهِ الدَّيْنُ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ او روایت نقل سوی دی چي په دې ټولو صورتونو کي د مقروض قول معتبر دی لِأَنَّ الْأَصْلَ هُوَ الْعُسْرَةُ ځکه چي اصل تنګلاسي [مفلس والی] دی وَيُرْوٰى أَنَّ الْقَوْلَ لَهُ إِلَّا فِيمَا بَدَلُهُ مَالٌ ● او یو روایت دا [هم] نقل سوی دی چي د مقروض قول معتبر دی مګر په داسي صورت کي کله چي د هغه عوض مال وي وَفِي النَّفَقَةِ الْقَوْلُ قَوْلُ الزَّوْجِ أَنَّهُ مُعْسِرٌ او په نفقه کي د خاوند قول معتبر دی چي "زه تنګلاسی [مفلس] یم" وَفِي إِعْتَاقِ الْعَبْدِ الْمُشْتَرَكِ الْقَوْلُ لِلْمُعْتِقِ او د مشترک غلام د آزادولو په صورت کي د آزادونکي شریک قول معتبر دی وَالْمَسْأَلَتَانِ

---

● القول الراجح: قال استاذ صاحب الكتاب "القول الراجح": فالحاصل ان قول الراجح في مسئلة الحبس هو قول المد (أي حبسه في كل دين لزمه بدلاً عن مال أو التزمه بعقد ولا يحبسه فيما سوى ذالك...إلخ). والقول الراجح في اعتبار القول هو أن القول لمن عليه الدين في جميع ذالك، لأن الأصل هو العسرة...(إلخ) [القول الراجح ج:٢، ص:١٠٩]

تُؤَيِّدَانِ الْقَوْلَيْنِ الْأَخِيرَيْنِ او دا دواړي مسئلې دآخري دوو قولونو تائيد کوي وَالتَّخْرِيجُ عَلٰى مَا قَالَ فِي الْكِتَابِ: أَنَّهُ لَيْسَ بِدَيْنٍ مُطْلَقٍ بَلْ هُوَ صِلَةٌ او په کتاب [يعني په متن] کي د امام قدوري رَحِمَهُ الله د ذکر سوي قول مطابق تخريج دا ده: چي هغه [يعني نفقه] مطلق قرض نه دی بلکي هغه يو صله ده حَتّٰى تَسْقُطَ النَّفَقَةُ بِالْمَوْتِ عَلَى الاِتِّفَاقِ همدا وجه ده چي نفقه بالاتفاق [د خاوند] په مرګ سره ساقطيږي وَكَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ضَمَانُ الْإِعْتَاقِ او همداسي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د آزادولو ضمان [هم ساقطيږي] ثُمَّ فِيمَا كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَ الْمُدَّعِي أَنَّ لَهُ مَالًا بيا په کوم صورت کي چي د مدعي [دا] قول معتبر وي چي "د مدعیٰ عليه سره مال سته" أَوْ ثَبَتَ ذٰلِكَ بِالْبَيِّنَةِ فِيمَا كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَ مَنْ عَلَيْهِ يا په کوم صورت کي چي د مقروض قول معتبر وي، په هغه صورت کي د بيّنه په ذريعه دا ثابته سي [چي د مدعیٰ عليه سره مال سته] يَحْبِسُهُ شَهْرَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً [په دې دواړو صورتونو کي] قاضي به هغه دوې يا درې مياشتي قيدوي [دا روايت امام محمد له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت کړی دی] ثُمَّ يَسْأَلُ عَنْهُ بيا به قاضي د هغه په باره کي پوښتنه [او معلومات] کوي فَالْحَبْسُ لِظُهُورِ ظُلْمِهِ فِي الْحَالِ نو بندي کول في الحاله د هغه د ظلم ښکاره کېدلو په وجه دي وَإِنَّمَا يَحْبِسُهُ مُدَّةً لِيَظْهَرَ مَالُهُ لَوْ كَانَ يُخْفِيهِ او يو مودت به [يعني دوې يا درې مياشتي به] يې ځکه قيدوي چي د ده [مقروض] مال ښکاره سي که چيري دئ هغه پټ ساتي فَلَا بُدَّ مِنْ أَنْ تَمْتَدَّ الْمُدَّةُ لِيُفِيدَ هٰذِهِ الْفَائِدَةَ لهذا ه مودت اوږدېدل ضروري دي چي دا فايده ورکړي فَقَدَّرَ بِمَا ذَكَرَهُ نو ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله [دا مودت] په مذکوره مياشتو سره مقدر کړی دی وَيُرْوٰى غَيْرُ ذٰلِكَ مِنَ التَّقْدِيرِ بِشَهْرٍ أَوْ أَرْبَعَةٍ إِلٰى سِتَّةِ أَشْهُرٍ او له دې څخه بغير د يوې مياشتي يا له څلورو څخه تر شپږو مياشتو پوري [هم] مقدار ټاکل سوی دی وَالصَّحِيحُ أَنَّ التَّقْدِيرَ مُفَوَّضٌ إِلٰى رَأْيِ الْقَاضِي ❁ او صحيح دا ده چي [د دغه مودت] مقدار ټاکل د قاضي رايي ته سپارل سوی دی [يعني د دې مودت مقدار دي قاضي ته وسپارل سي] لِاخْتِلَافِ أَحْوَالِ الْأَشْخَاصِ فِيهِ ځکه چي په دې هکله د خلکو حالات مختلف وي.

---

❁ وهذا هو القول الراجح، كمال قال العلامة جلال الدين الخوارزمي رَحِمَهُ الله: والصحيح أن التقدير مفوض إلى رأى القاضي...الخ (الكفاية ج:٦، ص:٣٧٩)، وكذا فى الدر المنتقى (ج:٣، ص:٢٢٥). [القول الراجح ج:٢، ص:١١١]

**اللغات**: ﴿غریم﴾ دا لفظ له اضدادو څخه دی، یعني "مقروض" او "قرضخواه" دواړو ته وایي. دلته ځني مراد قرضخواه (د قرض مالک) دی. ﴿عسرة﴾ تنګلاسي، مفلسي، غریبوالی. ﴿تقدیر﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: اندازه کول (اندازه لګول)، وقت یا مقدار ټاکل. مقدار مقرر کول (أحسن الهدایه)

﴿مفوّض﴾ د تفعیل د باب مفعول دی: سپارل سوی.

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که پر مقروض داسي قرض وي کوم چي د یو مال (شي) په عوض کي پر هغه لازم سوی وي یا د یو عقد په وجه هغه پر ځان لازم کړی وي. او دا مقروض قاضي ته داسي ووایي چي "زه مسکین یم" نو په دې دواړو صورتونو کي به قاضي هغه قیدوي، لېکن که له دې څخه بغیر په بل صورت کي مقروض داسي ووایي چي "زه مسکین یم" نو قاضي به هغه نه قیدوي. ها! که چیري قرضخواه (د قرض خاوند) د ګواهانو په ذریعه دا ثابته کړي چي هغه مسکین نه دی بلکي مالدار دی (یعني د هغه سره دومره مال سته چي زما قرض اداء کړي). نو قاضي به هغه قیدوي. مثلاً یو سړی د بل چا مال هلاک کړي، یا د بل چا مال غصب کړي او ضایع یې کړي، یا پر هغه یو تاوان (ضمان) واجب وي، بیا دا سړی دعوی وکړي چي "زه اوس مسکین او تنګلاسی" یم، نو د هغه دا قول به قبلول کیږي او قاضي به هغه نه قیدوي، لېکن که قرضخواه (د مال او قرض خاوند) ووایي چي هغه مسکین نه دی بلکي هغه د اداء کولو قدرت لري، او قرضخواه دا خبره د بینه په ذریعه ثابته کړي، نو بیا به قاضي هغه قیدوي.

دلیل دا دی چي تر څو د قرضخواه له طرفه د مقروض د مالدار والي هیڅ دلیل موجود نه سي، تر هغه وخته به د مقروض قول معتبر وي: ځکه چي خپل په حال هغه زیات خبر دی (لکه څرنګه چي عربي مقوله ده: "صَاحِبُ الْبَيْتِ أَدْرَىٰ مَا فِي الْبَيْت" یعني په کورني حالت او په کورني شیانو د کور مالک زیات خبر دی). لېکن کله چي قرضخواه د بینه په ذریعه د مقروض مالدار والی ثابت کړي، نو اوس د مدعی علیه مال پر اداء کولو قدرت موجود سو. او کله چي مقروض د قرض پر اداء کولو قادر وي لېکن بیا هم هغه نه اداء کوي او ټال مټول کوي، نو د ټال مټول ثابتېدلو په وجه به هغه قیدول کیږي.

ويُروىٰ أن القول لمن إلخ: فرمایي یو روایت دا دی چي په ټولو صورتونو کي (برابره ده پر مقروض د یو مال په عوض کي قرض لازم سوی وي. یا یې په عقد سره پر ځان لازم کړی وي. یا له دې څخه بغیر بل صورت وي. په ټولو صورتونو کي) به د مقروض قول معتبر وي: ځکه چي د سړي مفلس والی اصل دی. او مفلس والی ځکه اصل دی چي په پیدایښي توګه د انسان سره هیڅ مال نه وي. نو ځکه د مقروض دا خبره چي "زه مسکین او مفلس یم" د اصل مطابق ده او د قرضخواه دا خبره چي "هغه مالدار دی" خلاف الاصل ده.

او د چا قول چې د اصل مطابق وي هغه ته مدعیٰ علیه وايي، او که قول يې د اصل خلاف وي نو هغه ته مدعي وايي (همدا اصول دی). نو ځکه به قرضخواه مدعي وي او مقروض به مدعیٰ علیه وي. او د مدعي سره د بينه (ګواهي) نه موجودېدلو په صورت کې د مدعیٰ علیه قول معتبر وي (لکه مخکې چې دا قاعده تېره سوه)، نو ځکه د مدعیٰ علیه يعني د مقروض قول "زه مسکين يم" به د قسم سره معتبر وي او هغه به قبلول کيږي، لېکن که مدعي يعني قرضخواه د بينه په ذريعه د مقروض مالدار والی ثابت کړي نو بيا د مقروض قول معتبر نه دی او نه به قبلول کيږي (ځکه قاعده همدا ده چې کله د مدعي سره بينه وي نو بيا فقط د هغه قول معتبر دی، نه د مدعیٰ علیه [مقروض]).

ويُروى أن القول له إلخ: او يو روايت دا دی چې که پر مقروض د يو مال په عوض کې قرض لازم سوی وي، نو په دې صورت کې به د مقروض قول نه قبلول کيږي، لېکن له دې څخه بغير نور په تمام صورتونو کې به قبلول کيږي.

وفي النفقة إلخ: فرمايي که ښځه دا دعویٰ وکړي چې "زما خاوند مالدار دی، لهذا ما ته د مالدارانو په څېر نفقه راکول پکار دي"، او خاوند دعویٰ وکړي چې "زه مسکين او غريب يم، لهذا پر ما د غريبانو په څېر نفقه واجبېدل پکار دي"، نو څرنګه چې د خاوند قول د اصل مطابق دی، نو ځکه د هغه قول به معتبر وي، لېکن که چيرې ښځه د بينه په ذريعه د خپل خاوند مالدار والی ثابت کړي نو بيا د خاوند قول معتبر نه دی.

همدارنګه که يو غلام د دوو خلکو په مينځ کې مشترک وي او يو شريک خپله حصه آزاده کړي او بيا د خپل غريب والي دعویٰ وکړي چې "زه مسکين او غريب يم" د دې لپاره چې د پاته نيمې حصې له ضمان (تاوان) څخه خلاص سي (يعني د دې لپاره د غريب والي دعویٰ وکړي چې د خپل شريک لپاره د پاته نيم غلام د قيمت ضامن نه سي)، او دويم شريک دعویٰ وکړي چې "هغه مالدار دی، لهذا هغه دې زما د حصې ضمان اداء کړي"، نو په دې صورت کې به د آزادونکي شريک (کوم چې خپله حصه آزاده کړې ده) قول معتبر وي؛ ځکه چې د هغه قول د اصل مطابق دی، لېکن که دويم شريک د بينه په ذريعه د هغه مالدار الي ثابت کړي، نو بيا د آزادونکي شريک قول معتبر نه دي او پر هغه به د دويم شريک ضمان (تاوان) واجبول کيږي.

والمسألتان إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې دا دواړې مسئلې (يعني د ښځې د نفقې مسئله او د مشترک غلام د آزادولو مسئله) د آخري دواړو قولونو تائيد کوي، يعني د "ويروی أن القول لمن

عليه الدين" او "ويروىٰ أن القول له إلا فيما بدله" روايتونو ته په پورتني دوو مسئلو سره تائيد او تقويت حاصليږي لکه څنګه چې دا ښکاره خبره ده. او دا پورتنی دوې مسئلې د اول قول مخالف دي، يعني د هغه قول مخالف دي کوم چې په متن کې ذکر سوی دی؛ ځکه چې د متن والا په قول (مسئله) کې د مقروض قول معتبر نه دی ګڼل سوی بلکي د هغه د قرضخواه دعوىٰ او قول معتبر ګڼل سوی دی.

والتخريج على قال إلخ: له دې ځايه صاحب د هدايې د پورتنی دوو مسئلو تأويل په داسې اندازه سره کوي چې پر اول قول (د متن پر قول) هيڅ نقض او اعتراض وارد نه سي او دا دواړې مسئلې د اول قول مخالف نه سي، نو فرمايي چې د متن په عبارت "حَبَسه في كل دَين لزمه بدلاً عن مال أو التزمه بعقدٍ" کې له "دَين" څخه مراد مطلق دَين دی، او همدې مطلق دَين ته "دَينِ صحيح" وايي (دَينِ صحيح او دَينِ مطلق هغه قرض ته وايي کوم چې فقط هغه وخت ساقطيږي کله چې اداء کړی سي يا د مالک [صاحبُ الحق] له طرفه مقروض بري کړی سي)، لنډه دا چې د متن په عبارت کې له "دين" څخه مطلق دَين مراد دی، او په پورتنی دوو مسئلو کې يعني د نفقې په مسئله کې "دين" مطلق نه دی بلکي د خاوند له طرفه يو صله ده، همدا وجه ده چې د خاوند په مرګ سره بالاتفاق نفقه ساقطيږي، همدارنګه په دويمه مسئله کې د مشترک غلام د آزادولو ضمان (تاوان) هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مطلق دَين نه دی، لهذا کله چې په اول قول کې يعني د متن په عبارت کې له "دين" څخه مطلق دَين مراد دی او په دې دوو کې مسئلو کې نفقه او ضمانِ مطلق دَين نه دي، نو بيا څنګه دا دوې مسئله د اول قول (د متن د قول) موافق کېدای سي او په دې دوو سره څنګه پر اول قول نقض وارېدای سي!؟. (يعني ښکاره خبره ده چې اوس دا دوې مسئلې د اول قول مخالف پاته نه سوې، او په دې سره پر اول قول نقض نه وارديږي).

ثم فيما كان القول إلخ: فرمايي په کوم صورت کې چې د قرضخواه قول (چې "مقروض مالدار دی") معتبر وي، يا په کوم صورت کې چې د مقروض قول (چې "زه مسکين يم") معتبر وي لېکن قرضخواه د بينه په ذريعه ثابته کړي چې هغه مالدار دی، نو په دې دواړو صورتونو کې به قاضي د دوو يا دريو مياشتو لپاره مقروض قيدوي، بيا به د مقروض له همسايه ګانو او د هغه له متعلقينو څخه د هغه د مفلس والي او مالدار والي معلومات کوي چې دا ځوی مړی مسکين دی که مالدار؟.

فرمايي چې دا مقروض به ځکه قيدول کيږي چې د ټال متهول کولو په وجه في الحاله د هغه ظالم کېدل ښکاره سوه، او څرنګه چې د ظلم سزا قيد او حبس ده، نو ځکه هغه به قيدول کيږي؛ او

درې میاشتي به ځکه قیدول کیږي چي هغه مال په دې مودت کي ښکاره سي کوم چي یې مقروض پټوي، نو د همدې مقصد په خاطر د قید مودت اوږدول او دوې یا درې میاشتي ټاکل ضروري دي.

ویروي الخ: فرمایي چي د دوو یا دریو میاشتو له مودت څخه بغیر نور مودتونه هم نقل سوي دي. مثلاً امام طحاوي رَحِمَهُ الله د یوې میاشتي مودت ټاکلی دی. او له امام صاحب څخه حسن بن زیاد رَحِمَهُ الله له څلورو څخه تر شپږو میاشتو مودت نقل کړی دی. لېکن صحیح قول دا دی چي د مودت ټاکلو معامله به قاضي ته سپارل کیږي. قاضي صاحب چي څومره مودت مناسب وګڼي هغه دي قید کړي: ځکه چي په دې سلسله کي د خلګو حالات مختلف وي، بعضي شریفه او د عزت شوقیان خلګ د قید او زندان د خوارۍ او رسوایی له بیرې څخه ډېر ژر د معاملې ختمولو کوشش کوي. او بعضي داسي بې شرمه او بې حیا خلګ وي چي په معمولي قید سره د هغو بې شرمي نه ختمیږي او له ډېر قید څخه وروسته هم دا اقرار نه کوي چي زما سره مال سته. او څرنګه چي قاضي ته خپل د عوامو مزاج معلوم وي. نو ځکه د قید او حبس د مودت معامله به فقط د قاضي رایي ته سپارل کیږي.

## کله چي محبوس (بندي) غریب او مفلسه ثابت سي

فَإِنْ لَمْ يَظْهَرْ لَهُ مَالٌ بیا که د هغه هیڅ مال ښکاره نه سي خَلّٰى سَبِيْلَهُ نو قاضي دي د هغه لاره ایله کړي يَعْنِيْ بَعْدَ مُضِيِّ الْمُدَّةِ یعني له مودت تېرېدلو څخه وروسته لِأَنَّهُ اسْتَحَقَّ النَّظِرَةَ إِلَى الْمَيْسَرَةِ ځکه چي [اوس] هغه د مالداره کېدلو تر وخته پوري د مهلت مستحق سو فَيَكُوْنُ حَبْسُهُ بَعْدَ ذٰلِكَ ظُلْمًا نو ځکه تر دې وروسته به د هغه قیدول ظلم وي وَلَوْ قَامَتِ الْبَيِّنَةُ عَلٰى إِفْلَاسِهِ قَبْلَ الْمُدَّةِ او که له مودت تېرېدلو څخه مخکي د هغه پر مفلس والي بیّنه پېش سي تُقْبَلُ فِيْ رِوَايَةٍ نو د یوه روایت مطابق به هغه بیّنه قبلول کیږي وَلَا تُقْبَلُ فِيْ رِوَايَةٍ● او د بل روایت مطابق به نه قبلول کیږي وَعَلَى الثَّانِيَةِ عَامَّةُ الْمَشَايِخِ او عام [زیاتره] مشائخ پر دویم روایت دي قَالَ فِي الْكِتَابِ: خَلّٰى سَبِيْلَهُ وَلَا يَحُوْلُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ غُرَمَائِهِ او په متن کي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله ویلي دي: چي د هغه لاره دي پرېږدي او د هغه او د قرضخواهانو په مینځ کي دي حائل نه جوړیږي وَهٰذَا كَلَامٌ فِي الْمُلَازَمَةِ او دا کلام د ملازمت [لازم نیولو] په باره کي دی وَسَنَذْكُرُهُ فِيْ كِتَابِ الْحَجْرِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى او هغه به موږ انشاء الله

● القول الراجح: الرواية الثانيه، كما قال صاحب الهداية: وعلى الثانية عامة المشائخ. وكذا في مجمع الأنهر (ج:۳، ص:۲۲۶). البحر الرائق (ج:۶، ص:۲۸۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۱۲]

په کتاب الحجر کي ذکر کړو وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: رَجُلٌ أَقَرَّ عِنْدَ الْقَاضِيْ بِدَيْنٍ او په جامع صغير کي [ذکر سوي] دي: چي که يو سړی د قاضي سره د قرض اقرار وکړي فَإِنَّهُ يَحْبِسُهُ ثُمَّ يَسْأَلُ عَنْهُ نو قاضي به هغه قيدوي بيا به د هغه په باره کي پوښتنه [معلومات] کوي فَإِنْ كَانَ مُوْسِرًا نو که چيري هغه مالدار وي أَبَّدَ حَبْسَهُ نو د هغه قيد به باقي ساتي وَإِنْ كَانَ مُعْسِرًا او که تنګلاسی [غريب] وي خَلَّى سَبِيلَهُ نو د هغه لاره به ايله کوي وَمُرَادُهُ إِذَا أَقَرَّ عِنْدَ غَيْرِ الْقَاضِي أَوْ عِنْدَهُ مَرَّةً فَظَهَرَتْ مُمَاطَلَتُهُ او د دې مراد دا دی چي کله هغه له قاضي څخه بغير د بل چا سره اقرار کړی وي يا يې يو وار د قاضي سره اقرار کړی وي بيا د هغه ټال مټول کول ښکاره سي وَالْحَبْسُ أَوَّلًا وَمُدَّتُهُ قَدْ بَيَّنَّاهُ او د حبس [قيدولو] ابتداء او د هغه مودت موږ [مخکي] بيان کړي دي [يعني دا خبره مخکي ذکر سوه چي له کوم وخت څخه به قيدول کيږي او څومره مودت به قيدول کيږي؟] فَلَا نُعِيْدُهُ نو ځکه موږ هغه [دلته] نه راګرځوو.

**اللغات:** ﴿خَلَّى﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: ايله کول، پرېښوول، خوشي کول. ﴿مضئ﴾ د ضرب د باب مصدر دی: تېرېدل، ختمېدل. ﴿النَّظِرة﴾ (لکه کلمة): مهلت، تاخير، انتظار. ﴿لا يحول﴾ د نصر د باب نفي صيغه ده: حائل جوړېدل، د دوو شيانو تر مينځ مانع جوړېدل. (د دوو کسانو په مينځ کي ور لوېدل). ﴿ملازمة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو ځوک لازم نيول، په پسې کېدل (يعني په مقروض لازم پسې کېدل او ټينګه مطالبه ځني کول چي قرض اداء کړه!). ﴿أَبَّدَ﴾ د تفعيل د باب ماضي ده، أَبَّدَ يُؤَبِّدُ تَأْبِيْدًا: همېشه ساتل (دائمي او باقي ساتل)، همېشه کول. ﴿مماطلة﴾ ټال مټول، ټال متال، د دې پوره تعريف مخکي ذکر سو.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که چيري د حبس مودت ختم سي (کوم چي په تېر عبارت کي ذکر سو) او په دې مودت کي د محبوس (قيدي) مال ښکاره نه سي، نو اوس حکم دا دی چي قاضي دې هغه له بنديخاني څخه وباسي او هغه او خپل قرضخواه دې سره پرېږدي؛ ځکه چي اوس دا مقروض د مالداره کېدلو تر وخته پوري د مهلت مستحق سو (يعني هغه ته اوس شريعت تر مال پيدا کولو پوري مهلت ورکړی، لکه په قرآن کريم کي چي هم داسي الفاظ ذکر سوي دي: "وَإِنْ كَانَ ذُوْ عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَى مَيْسَرَةٍ"). لهذا کله چي دا مقروض د مهلت مستحق سو، نو ځکه اوس هغه محبوس ساتل ظلم او نا انصافي ده، او قاضي د انصاف قائمولو لپاره ټاکل سوی دی، نه د ظلم او ستم د بازار ګرمولو لپاره.

ولوقامت البيّنة إلخ: فرمايي که چيري د حبس له مودت ختمېدلو څخه مخکي د بينه په ذريعه د دې مقروض مفلس والي ثابت سي (يعني د هغه پر غريب والي گواهي پېش کړی سي)، نو آيا هغه بينه به قبلول کيږي، که نه؟ په دې سلسله کي دوه روايتونه نقل سوي دي: ① يو روايت دا دی چي هغه بينه به قبلول کيږي او قاضي به مقروض ايله کوي، ② دويم روايت دا دی چي هغه به نه قبلول کيږي او د حبس تر مودته پوري به قاضي دا مقروض محبوس ساتي، همدا د عامو مشائخو مذهب دی، او همدا صحيح روايت دی.

قال في الكتاب خلي سبيله إلخ: فرمايي چي د متن په عبارت (د قدوري په متن) کي چي کوم د "خلّى سَبِيْلَه" جمله ذکر سوې ده، د هغه مطلب دا دی چي د حبس له مودت څخه وروسته که د مقروض سره مال ښکاره نه سي نو بيا دي قاضي مقروض ايله کړي او د هغه او د قرضخواه په مېنځ کي دي حائل نه جوړېږي (يعني دوی دي سره پرېږدي)، لنډه دا چي دا کلام په دې باره کي دی چي د مقروض تر ايله کېدلو او آزادېدلو وروسته به قرضخواه په هغه لازم پسي کيږي، که نه؟ (يعني په تينګه به د قرض مطالبه ځني کوي، که نه؟) چي د هغه پوره وضاحت به انشاء الله په کتاب الحجر کي ذکر سي.

وفي الجامع الصغير إلخ: له دې ځايه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د قدوري او د جامع صغير د عبارت په مېنځ کي تعارض او تناقض ختموي؛ ځکه په دې عبارتونو کي تناقض دی، په دې توګه چي د فصل په شروع کي د قدوري د متن په تشريح کي ذکر سوه چي که قرض په اقرار سره ثابت سوی وي نو قاضي دي سمدستي مقروض نه قيدوي (لم يُعجّل بحبسه)، او د جامع صغير عبارت دا دی چي که يو څوک د قاضي سره د قرض اقرار وکړي نو قاضي دي سمدستي هغه قيد کړي او بيا دي د هغه په باره کي د هغه له همسايه ګانو او متعلقينو څخه معلومات وکړي چي هغه مالدار دی، که مفلس؟ که چيري هغه مالدار وي نو د ټال مټول کولو په وجه دي هغه محبوس وساتي او که مفلس وي نو هغه دي ايله کړي. لهذا د جامع صغير په ذغه عبارت او د قدوري په مخکني عبارت (متن) کي په ظاهره تناقض سته، نو ځکه صاحب د هدايې د جامع صغير د عبارت صحيح مطلب بيانوي او دا تناقض ختموي. فرمايي په جامع صغير کي چي تر اقرار وروسته سمدستي د قيدولو حکم سوی دی له هغه څخه اول اقرار مراد نه دی، بلکي د هغه مطلب دا دی چي مقروض يو وار له قاضي څخه بغير د بل چا مخ ته د قرض اقرار کړی وي او بيا د قاضي مخ ته اقرار وکړي، يا يو وار يې د قاضي مخ ته اقرار کړی وي او بيا قاضي ته راسي، نو ښکاره خبره ده چي د دويم وار په ليدلو سره به قاضي ته دېر ښښم ورسي چي هغه تر اوسه حقدار ته خپل حق نه دی ورکړی او اوس بيا را روان دی!، مطلب دا چي د هغه له

طرفه ټال متهول ثابت سو او معلومه سوه چي د هغه نيت سم نه دی، نو ځکه دي قاضي هغه سملستي قيد کړي. (تر دې تأويل وروسته د قدوري او جامع صغير په عبارت کي هيڅ تناقض پاتـه نه سو)

والحبس أولا إلخ: فرمايي چي د حبس (قيدولو) ابتداء او د هغه مودت مونږ مخکي ذکر کړل، نو ځکه اوس د هغه راګرځولو ته ضرورت نسته.

## ښځي ته نفقه نه ورکونکي خاوند قيدول

قَالَ: وَيُحْبَسُ الرَّجُلُ فِي نَفَقَةِ زَوْجَتِهِ فرمايي: او سړی به د خپل ښځي په نفقه کي قيدول کيږي لِأَنَّهُ ظَالِمٌ بِالِامْتِنَاعِ ځکه چي هغه په انکار کولو [نفقه نه ورکولو] کي ظالم دی وَلَا يُحْبَسُ وَالِدٌ فِي دَيْنِ وَلَدِهِ او پلار به د خپل ځوی په قرض کي نه قيدول کيږي لِأَنَّهُ نَوْعُ عُقُوبَةٍ ځکه چي دا يو قسم سزا ده فَلَا يَسْتَحِقُّهُ الْوَلَدُ عَلَى الْوَالِدِ نو ځوی به پر پلار د دې مستحق نه وي كَالْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ لکه حدود او قصاص إلَّا إذَا امْتَنَعَ مِنَ الْإِنْفَاقِ عَلَيْهِ مګر دا چي کله پلار خپل ځوی ته له نفقې ورکولو څخه انکار وکړي لِأَنَّ فِيهِ إحْيَاءً لِوَلَدِهِ ځکه چي په نفقه ورکولو کي د هغه د بچي ژوندی دی وَلِأَنَّهُ لَا يُتَدَارَكُ او ځکه چي د نفقې تدارک [تلافي] نه سي کېدای لِسُقُوطِهَا بِمُضِيِّ الزَّمَانِ ځکه چي نفقه د وخت په تېرېدلو سره ساقطيږي.

**اللغات**: ﴿امتناع﴾ د افتعال د باب مصدر دی: منع کېدل، انکار کول. ﴿عقوبة﴾ سزا. ﴿انفاق﴾ د افعال د باب مصدر دی: پر يو چا مال خرچول (مصرفول)، نفقه ورکول. ﴿إحياء﴾ مخکني صيغه ده: ژوندي کول. ﴿لا يُتدارك﴾ د تفاعل له بابه د نفي مجهول صيغه ده: تلافي کول (د تاوان تلافي. جبران)، د فوت سوي شي اصلاح او سمون کول، د فوت سوي شي د حاصلولو کوشش کول، خطاء او غلطي صحيح کول (دا ټوله د تدارک او تلافي معناوي دي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که پر يو خاوند د ښځي نفقه قاضي مقرره کړې وي ډيا خاوند او ښځي د نفقې پر مقدار اتفاق کړی وي. بيا خاوند نفقه نه ورکوي، او ښځه د قاضي په عدالت (محکمه) کي دعوی وکړي. نو قاضي به خاوند قيدوي، ځکه چي د نفقه نه ورکولو په وجه د خاوند ظالم والي ښکاره سوه (چي هغه ظالم دی). او د ظالم سزا حبس او قيد دی. نو ځکه به خاوند قيدول کيږي.

او پلار به د خپل ځوی په قرض کي نه قيدول کيږي، يعني که پر پلار د يو ځوی قرض باندي وي او پلار هغه نه اداء کوي او ځوی د قاضي مخ ته دعوی او شکايت وکړي نو قاضي به پلار نه قيدوي؛ ځکه چي قيدول يو ډول سزا ده، او ځوی ته پر خپل پلار د داسي سزا هيڅ حق نسته، حتی که پلار خپل ځوی عمداً قتل کړي نو هم له پلار څخه قصاص نه اخيستل کيږي. او که پلار پر خپل ځوی د زنا تهمت ولګوي نو پر پلار حدّ قذف نه جاري کيږي، همداسي که پلار د ځوی قرض نه اداء کوي نو ځوی ته دا حق هم نه حاصليږي چي د خپل قرض په وجه پلار بندي کړي، او ځوی ته به څنګه دا حق حاصل سي حال دا چي رب العالمين فرمايلي دي: ﴿وَلَا تَقُلْ لَّهُمَا أُفٍّ وَّلَا تَنْهَرْهُمَا وَقُلْ لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيْمًا. وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ... (الخ)﴾. [سورة بني اسرائيل: ۲۳، ۲۴]

إلا إذا امتنع الخ: هوا! که چيري پلار د خپل ځوی له نفقې څخه انکار وکړي (چي زه نفقه نه ورکوم)، نو هغه به قيدول کيږي؛ ځکه چي په نفقه ورکولو کي د هغه د بچي ژوند او بقاء ده، او نفقه نه ورکول ګواکي د هغه د هلاکولو کوشش کول دی، نو د بچي د هلاکولو له ارادې څخه د منع کولو لپاره به هغه قيدول کيږي.

دويم دليل دا دی چي د نفقي حالت له نورو قرضونو څخه مختلف دی، ځکه نور قرضونه د وخت په تيريدلو (مرورُ الزمان) سره نه ساقطيږي بلکي هر وخت د مقروض پر غاړه باقي پاتيږي نو ځکه د هغوی تلافي ممکن ده، ليکن د بچي نفقه د وخت په تيريدلو سره ساقطيږي (ځکه چي هغه يو قسم صله رحمي ده) لهذا د هغه تلافي ممکن نه ده، نو ځکه د بچي له نفقې څخه د انکار کولو په صورت کي به پلار قيدول کيږي او په دې هکله به هغه مجبورول کيږي. فقط والله أعلم و علمهٗ أتم



# بَابُ كِتَابِ الْقَاضِيْ إِلَى الْقَاضِيْ

## (دا) باب یوه قاضي ته بل قاضي د خط ورلو (په بیان کې) دی

**تشريح**: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله ځکه له "فصل في الحبس" څخه وروسته د "كتابُ القاضي إلى القاضي" باب ذکر کړی دی؛ ځکه څرنګه چې د حبس (قیدولو) لپاره قاضي ته ضرورت سته همداسي قاضي ته د خط استولو لپاره هم قاضي ته ضرورت سته. لېکن څرنګه چې په حبس کي صرف په یوه قاضي سره کار کیږي او په "كتاب القاضي إلى القاضي" کي دوو قاضیانو ته ضرورت وي، نو ځکه قضاء بالحبس د مفرد په درجه کي سوه او "کتاب القاضي..." د مرکب په درجه کي سو، او ښکاره خبره ده چې مفرد له مرکب څخه مخکي وي، نو ځکه یې اول "فصل في الحبس" ذکر کړی دی، او اوس تر هغه وروسته "باب کتاب القاضي إلى القاضي" ذکر کوي. (بنایه)

د دې باب اهمیت او نور وضاحت په خپله صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په آینده عبارتونو کي بیان کړی دی.

### د بل قاضي خط به په کومو حقونو کي قبلول کیږي؟

قَالَ: وَيُقْبَلُ كِتَابُ الْقَاضِيْ إِلَى الْقَاضِيْ فِي الْحُقُوْقِ فرمايي: او "یوه قاضي ته د بل قاضي خط به" په حقونو کي قبلول کیږي إِذَا شُهِدَ بِهِ عِنْدَهُ [په دې شرط] کله چې د دویم قاضي سره د هغه خط ګواهي ورکول سي لِلْحَاجَةِ [د دې جائز کېدل] د ضرورت په وجه دي عَلَى مَا نُبَيِّنُ چې وروسته به موږ د دې بیان وکړو فَإِنْ شَهِدُوْا عَلَى خَصْمٍ حَاضِرٍ بیا که ګواهان د حاضر خصم په خلاف ګواهي ورکړي حَكَمَ بِالشَّهَادَةِ نو [کاتب] قاضي به د شهادت موافق فیصله کړي لِوُجُوْدِ الْحُجَّةِ ځکه چې حجت موجود سو وَكَتَبَ بِحُكْمِهِ او خپل فیصله به لیکي وَهُوَ الْمَدْعُوُّ سِجِلًّا او دې خط ته "سجل" وایي وَإِنْ شَهِدُوْا بِهِ بِغَيْرِ حَضْرَةِ الْخَصْمِ او که چیري ګواهان د خصم په نا موجودیت [غائبوالي] کي ګواهي ورکړي لَمْ يَحْكُمْ نو [کاتب] قاضي به فیصله نه کوي لِأَنَّ الْقَضَاءَ عَلَى الْغَائِبِ لَا يَجُوْزُ ځکه چې د غائب سړي په خلاف فیصله جائز نه ده وَكَتَبَ بِالشَّهَادَةِ [لېکن] قاضي به ګواهي لیکي

لِيَحْكُمَ الْمَكْتُوبُ إِلَيْهِ بِهَا د دې لپاره چې مكتوب إليه قاضي د هغه ګواهۍ موافق فيصله وكړي وَهٰذَا هُوَ الْكِتَابُ الْحُكْمِيُّ او دا "خط حكمي" دى [يعني دې خط ته "خط حكمي" وايي] وَهُوَ نَقْلُ الشَّهَادَةِ فِي الْحَقِيقَةِ او دا په حقيقت كې د ګواهۍ نقلول [منتقل كول] دي وَيَخْتَصُّ بِشَرَائِطَ او دا [كتابُ القاضي إلى القاضي] په څو شرائطو سره مختص دى نَذْكُرُهَا إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى چې هغه به موږ انشاء الله ذكر كړو وَجَوَازُهُ لِمَسَاسِ الْحَاجَةِ او د دې جواز د ضرورت په وجه دى [يعني كتابُ القاضي ته ضرورت داعي دى او هغه ته ځيني وخت ضرورت پيښيږي] لِأَنَّ الْمُدَّعِيَ قَدْ يَتَعَذَّرُ عَلَيْهِ الْجَمْعُ بَيْنَ شُهُودِهِ وَخَصْمِهِ ځكه ځيني وخت پر مدعي د خپل ګواهانو او د مدعىٰ عليه تر مينځ جمع كول مشكل وي فَأَشْبَهَ الشَّهَادَةَ عَلَى الشَّهَادَةِ نو دا د "شهادة على الشهادة" سره مشابه سو.

**اللغات:** ﴿كتاب﴾ په معنىٰ سره د "مَكْتُوب" دى، يعني خط. ﴿خصم﴾ مخالف فريق، مخالف طرف، يعني مدعي ته هم ويل كيږي او مدعىٰ عليه ته هم ويل كيږي. ﴿حجة﴾ دليل. ﴿سِجِلّ﴾ په اصل كې د فيصلو رجستر ته وايي (يعني هغه غټه كتابچه او كاغذات چې په هغه كې قاضي دعوې او فيصلې ليكي). دلته ځني مراد هغه خط او كتاب دى كوم چې په عبارت كې مذكور دى. ﴿حضرة﴾ حاضر والي، موجوديت (موجودګي). ﴿مكتوب إليه﴾ كوم چا ته چې خط ليكل سوى وي (د كوم قاضي په نامه چې خط ليكل سوى وي). ﴿مساس﴾ د سمع د باب مصدر دى: مسه كول، مراد: داعي كېدل، (ضرورت پيدا كېدل).

**تشريح: مسئله:** دا ده چې د يوه قاضي خط د بل قاضي په نامه په داسې حقونو كې مقبول دى كوم چې د شبهاتو باوجود ثابتيږي، په دې شرط چې دوه ګواهان د مكتوب إليه قاضي مخ ته ګواهي وركړي چې دا خط د فلانكي قاضي دى او دا د هغه خپل مهر (ټاپه) ده، او هغه حقوق كوم چې د شبهاتو په وجه ساقطيږي لكه حدود او قصاص، په هغوى كې به د يوه قاضي خط د بل قاضي په نامه نه قبلول كيږي.

بيا د قاضي خط پر دوه قسمه دى: ① سِجِلّ، ② خط حكمي.

ځكه ګواهانو به يا د مدعىٰ عليه په موجوديت كې (د كاتب قاضي سره) ګواهي وركړې وي يا د هغه په ناموجوديت كې به يې ګواهي وركړې وي، كه چيرې ګواهانو د مدعىٰ عليه په موجوديت كې ګواهي وركړې وي نو څرنګه چې په دې صورت كې شرعي حجت موجود سو، نو ځكه كاتب قاضي

به د ګواهۍ (شهادت) موافق فيصله کوي او خپل دا فيصله به ليکي چې "ما د ګواهۍ موافق پر فلانکي مدعیٰ عليه فيصله کړې ده"، همدې خط ته "سِجِل" وايي. لېکن دلته دا سوال پيدا کيږي چې کله د مدعیٰ عليه په موجوديت کې ګواهي ورکول سي او قاضي د هغه مخ ته فيصله وکړي، نو بيا بل قاضي ته د خط استولو څه ضرورت سته؟. د دې جواب دا دی چې ځيني وخت داسې هم کيږي چې قاضي پر حاضر مدعیٰ عليه فيصله وکړي لېکن هغه سمدستي جاري نه کړي او په دې دوران کې مدعیٰ عليه بل ښار ته ولاړ سي، نو ځکه د فيصلې جاري کولو لپاره د هغه ښار قاضي ته د خط ليکلو او استولو ضرورت پيښ سي.

او که چيري ګواهانو د خصم (مدعیٰ عليه) په ناموجوديت کې ګواهي ورکړې وي نو څرنګه چې زموږ په نيز د غائب په خلاف فيصله کول (قضاء على الغائب) جائز نه ده، نو ځکه په دې صورت کې به کاتب قاضي فيصله نه کوي بلکې فقط ګواهي (شهادت) به ليکي، د دې لپاره چې مکتوب إليه قاضي د هغه ګواهۍ موافق فيصله وکړي، همدې خط ته "خط حکمي" وايي. د سجل او خطي حکمي په مينځ کې فرق دا دی چې "سجل" چې کله مکتوب إليه قاضي ته ورسيږي نو مکتوب إليه قاضي به هغه خامخا نافذوي، برابره ده هغه د مکتوب إليه د رايي موافق وي او که مخالف؛ ځکه چې په دې خط (سجل) کې د کاتب قاضي له طرفه صادره سوې فيصله موجوده وي. او پاته سو خط حکمي نو مکتوب إليه قاضي به دا فقط په هغه وخت کې نافذوي کله چې هغه د مکتوب إليه د رايي موافق وي، کنې نه به يې نافذوي؛ ځکه چې په هغه کې د کاتب قاضي فيصله موجوده نه وي. همدا وجه ده چې صاحب د هدايې ويلي دي چې خط حکمي په حقيقت کې د شهادت (ګواهۍ) نقلولو ته وايي، يعني کاتب قاضي د مکتوب إليه قاضي وطرف ته صرف شهادت نقل کړی دی، د دې لپاره چې مکتوب إليه قاضي د هغه مطابق فيصله وکړي.

ويختص بشرائط إلخ: فرمايي د کتاب القاضي إلى القاضي لپاره څو شرطونه دي چې هغه به په آينده کې انشاء الله ذکر سي، خو مختصراً تاسو دا په ياد لرئ! چې په کتاب القاضي إلى القاضي کې د پنځو شيانو معلومېدل ضروري دي چې هغه صاحب د عنايې داسې ذکر کړي دي: "مِنْ مَعْلُوْمٍ إِلَى مَعْلُوْمٍ فِيْ مَعْلُوْمٍ لِمَعْلُوْمٍ عَلَى مَعْلُوْمٍ" يعني (۱) کاتب قاضي به معلوم وي، (۲) مکتوب إليه قاضي به معلوم وي، (۳) د کوم شي په باره کې چې خط ليکل سوی وي، هغه به معلوم وي، (۴) او د چا لپاره چې خط ليکل سوی وي يعني مدعي، هغه به معلوم وي، (۵) او د چا په خلاف چې خط ليکل سوی وي، هغه به معلوم وي.

وجوازه إلخ: له دې ځایه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د "کتاب القاضي إلى القاضي" جواز او ثبوت بیانوي، فرمايي چي ځیني وخت داسي کیږي چي مدعي په یوه ښار کي وي او مدعیٰ علیه په بل ښار کي وي او ځیني وخت ګواهان هم په بل (دریم) ښار کي وي، او ګواهان دې ته تیار نه وي چي د مدعیٰ علیه ښار ته ولاړ سي، او مدعیٰ علیه هم دې ته اماده نه وي چي د ګواهانو ښار ته راسي، او په دې صورت کي د مدعي لپاره دا ډېر مشکله وي چي ګواهان او مدعیٰ علیه سره یو ځای کړي، او په کتاب القاضي إلى القاضي سره دا مشکل آسانه کیږي، نو ځکه هغه ته ضرورت پیدا سو، او د همدې ضرورت په خاطر هغه جائز ګرځول سوی دی. د دې مثال "شهادة على الشهادة" دی (پر یوه ګواهي د پاسه بله ګواهي پېشول)، یعني څرنګه چي د حقدار کس د حق ژوندي کولو په غرض "شهادة على الشهادة" مشروع او جائز دی، همداسي "کتابُ القاضي إلى القاضي" هم جائز ګرځول سوی دی، ځکه چي د دې په ذریعه هم حقدار کس ته خپل حق حاصلیږي او هغه له ډېر زحمت او تکلیف څخه ژغورل کیږي. فقط والله أعلم

## ﴿ د یوه خط نمونه ﴾

ستاسو د معلوماتو لپاره موږ د نمونې په توګه له اشرف الهدایې څخه یو خط د څه تغیر سره نقل کوو، کوم چي صاحب د اشرف الهدایې له فتح القدیر څخه نقل کړی دی:

بسم الله الرحمن الرحيم

**د کابل د فلان بن فلان قاضي له طرفه د کندهار فلان بن فلان قاضي ته!**

السلام عليكم و رحمة الله وبركاته!

له حمد و صلاة څخه وروسته! ښکاره دي وي چي ما (کابلي قاضي) ته یو سړی راغلی چي د هغه نوم "خالد بن حامد" دی، او دا بیان یې وکړی چي ما د کندهار پر یوه سړي "زید بن سلیم" دوه لکه کلداري قرض باندي دی، او زما څخه یې غوښتنه وکړه چي زه د هغه ګواهي (شهادت) واورم او تا ته یې ولیکم. نو ما له هغه څخه ګواهان طلب کړل، او هغه زما مخته فلان، فلان ګواهان حاضر کړل (د ګواهانو پوره تعارف، نوم، نسب او د استوګني ځای دي ولیکل سي)، او هغه ګواهانو زما مخته دا ګواهي پېش کړه چي د مدعي "خالد بن حامد" پر مدعیٰ علیه "زید بن سلیم کندهاري" دوه لکه کلداري في الحاله واجبُ الاداء دي. زما په نېز دا ثابته سوې ده چي پر مدعیٰ علیه دوه لکه کلداري قرض باندي

دی. او د مدعي پر غوښتنه ما تا ته دا خط ولیکی، او ما پر دې هم ګواهان مقرر کړل چې دا زما خط او زما مهر دی. او ما دا خط په ګواهانو هم واورېدی. والسلام

تر دې وروسته دې قاضي خط وپېچي او هغه دې مدعي ته وسپاري. بیا چې کله مدعي دا خط مکتوب إلیه قاضي (د کندهار قاضي) ته راوړي چې دا ستا په نامه د فلان قاضي خط دی، نو مکتوب إلیه قاضي دې پر دې خبره ګواهان طلب کړي چې دا زما په نامه د فلان قاضي خط دی. بیا چې تر څو مدعیٰ علیه حاضر سوی نه وي تر هغه وخته دې د ګواهانو ګواهي نه اوري، او کله چې هغه حاضر سي چې زه فلان بن فلان یم یعني "زید بن سلیم کندهاري" یم، نو مکتوب إلیه قاضي دې د ګواهانو ګواهي واوري. او که چیري مدعیٰ علیه انکار وکړي، نو مدعي دې په خپل ګواهانو سره دا ثابته کړي چې همدا مدعیٰ علیه "زید بن سلیم کندهاري" دی. نو د مدعیٰ علیه تر ثابتېدلو وروسته دې قاضي د مدعي د ګواهانو ګواهي واوري چې دا خط د فلانکي قاضي دی، بیا چې کله هغوی ګواهي ورکړي چې دا د هغه (کابلي قاضي) خط دی او دا مهر د هغه دی، نو قاضي دې د هغه ګواهانو د عادل والي او دینداری معلومات وکړي، کله چې د هغو دینداري او عادل والي ثابت سي، نو مکتوب إلیه قاضي دې په مدعیٰ علیه خط واوروي او فیصله دې صادره کړي.

## د حقونو تفصیل او بیان

وَقَوْلُهُ فِي الْحُقُوقِ يَنْدَرِجُ تَحْتَهُ الدَّيْنُ وَالنِّكَاحُ وَالنَّسَبُ وَالْمَغْصُوبُ وَالْأَمَانَةُ الْمَجْحُودَةُ وَالْمُضَارَبَةُ الْمَجْحُودَةُ او د مصنف رَحِمَهُ الله تر دې قول "فی الحقوق" لاندي [دا ټوله شیان] داخلیږي: قرض، نکاح، نسب، مغصوب، انکار کړی سوی امانت او انکار کړی سوی مضاربت لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ بِمَنْزِلَةِ الدَّيْنِ ځکه چې له دې شیانو څخه هریو د قرض په درجه کي دی وَهُوَ يُعْرَفُ بِالْوَصْفِ لَا يُحْتَاجُ فِيهِ إِلَى الْإِشَارَةِ او دا [هر شی] په وصف بیانولو سره پېژندل کېدای سي [او] په هغه کي اشارې ته ضرورت نه وي وَيُقْبَلُ فِي الْعَقَارِ أَيْضًا او په غیرِ منقوله جایداد کي به هم [خط حکمي] قبلول کیږي لِأَنَّ التَّعْرِيفَ فِيهِ بِالتَّحْدِيدِ ځکه چې د حدودو په بیانولو سره د عقار تعریف [پېژندنه] کېدای سي [مثلاً که دیوې ځمکي چارطرفه حدود بیان کړی سي چې د فلانکي او فلانکي سرې تر ځمکي پوري زما ځمکه ده. نو ځمکه مُتعین کیږي او اشارې ته ضرورت نه پرېوځي] وَلَا يُقْبَلُ فِي الْأَعْيَانِ الْمَنْقُولَةِ او په منقوله شیانو کي به د قاضي خط نه قبلول کیږي لِلْحَاجَةِ إِلَى الْإِشَارَةِ ځکه چې [په هغوی کي]

اشارې ته ضرورت سته وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يُقْبَلُ فِي الْعَبْدِ دُونَ الْأَمَةِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې په غلام کې به د قاضي خط قبلول کيږي، نه په مينځه کې لِغَلَبَةِ الْإِبَاقِ فِيهِ دُونَهَا ځکه چې په غلام کې د تښتېدلو [احتمال] غالب وي، نه په مينځه کې وَعَنْهُ أَنَّهُ يُقْبَلُ فِيهِمَا بِشَرَائِطَ تُعْرَفُ فِي مَوْضِعِهَا او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه بل روايت دا هم دی چې په غلام او مينځه دواړو کې به د قاضي خط قبلول کيږي [مګر] د څو شرطونو سره چې هغه به په خپل ځای کې معلوم سي وَعَنْ مُحَمَّدٍ ۞ أَنَّهُ يُقْبَلُ فِي جَمِيعِ مَا يُنْقَلُ وَيُحَوَّلُ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دا دی چې په هغه ټولو شيانو کې به د قاضي خط قبلول کيږي کوم چې [له يوه ځای څخه بل ځای ته] نقلول کېدای سي وَعَلَيْهِ الْمُتَأَخِّرُونَ او پر همدې روايت متأخرين فقهاء دي.

**اللغات:** ﴿يندرج﴾ د انفعال د باب مضارع ده: په ضمن کې راتلل، (داخليدل)، ﴿مجحودة﴾ د فتح د باب مفعول دی: انکار کړی سوی، له کوم شي څخه چې انکار وسي، ﴿عقار﴾ غير منقوله جايداد، يعني ځمکه، کور او داسې نور کوم چې له يوه ځای څخه بل ځای ته نه سي نقل کېدای، ﴿تحديد﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: حد بندي، حدود بيانول، (مثلاً د ځمکې حدود مُتعين کول چې له دې ځايه تر دې ځايه پورې)، ﴿اعيان منقوله﴾ منقوله شيان کوم چې له يوه ځای څخه بل ځای ته نقل کېدای سي، لکه پيسه، غوا، غلام، مينځه او داسې نور، ﴿يُحوّل﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده، دا هم د "يُنقل" په معنیٰ سره دی، يعني نقلول، منتقل کول. (أثمار الهدايه)

**تشريح**: په تېر عبارت کې امام قدوري رَحِمَهُ الله ووېل چې د قاضي خط به په حقونو کې قبلول کيږي، دلته صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د هغه حقونو تفصيل بيانوي چې د "حقوق" په لفظ کې قرض، نکاح، نسب، مغصوب شی، هغه امانت مال او مضاربت چې انکار څني سوی وي دا ټول (پکښې) داخل دي؛ ځکه چې له دې شيانو څخه هر يو د قرض په درجه کې دی، يعني څنګه چې قرض پر ذمه واجب شي (ما وجب فی الذمه) ته وايي او هغه په وصف بيانولو سره پېژندل کيږي او د هغه وطرف ته د اشاره کولو ضرورت نسته. همداسې دغه مذکوره شيان هم پر ذمه واجب دي او د هغوی تعارف او پېژندنه په وصف بيانولو سره کيږي او د هغوی وطرف ته د اشاره کولو ضرورت نسته.

---

۞ القول الراجح: هو هذه الراوية، أی رواية محمد، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: وعليه المتأخرون، ونصّ الاسبيجابی على ان الفتوی عليه (فتح القدير ج:۶، ص:۳۸۴)، وكذا فی الدر المختار (ج۴، ص:۳۹۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۱۳]

او ښکاره خبره ده چي په قرض کي به د قاضي خط قبلول کیږي، نو ځکه کوم شیان چي د قرض په درجه کي دي، په هغوی کي به هم د قاضي خط قبلول کیږي.

الدَين والنكاح والنسب إلخ: ① ... د نکاح صورت دا دی چي يو سړی پر ښځي د نکاح دعوی وکړي (چي ما دې سره نکاح کړې ده. او ښځه له نکاح څخه انکار کوي) يا ښځه پر سړي د نکاح دعوی وکړي. ② ... د نسب صورت دا دی چي يو سړی دعوی وکړي چي زه د فلانکي سړي ځوی يا پلار يم. ③ ... د غصب صورت دا دی چي يو سړی دعوی وکړي چي زما دومره مال فلانکي سړي غصب کړی دی. ④ او د امانت محجوره صورت دا دی چي يو سړی دعوی وکړي چي زما زر درهمه د فلانکي سره امانتاً پراته دي لېکن اوس هغه نه راکوي او انکار کوي. ⑤ د مضاربت محجوره صورت دا دی چي يو سړی دعوی وکړي چي ما فلانکي ته زر درهمه د مضاربت په توګه ورکړي دي لېکن هغه (مضارب) اوس د مضاربت انکار کوي.

ويُقبل في العقار إلخ: فرمايي چي په غیرِ منقوله جایداد يعني په ځمکه او داسي نورو کي هم کتاب القاضي إلى القاضي مقبول او معتبر دی؛ ځکه چي د ځمکي تعارف د حدود اربعه وو په بیانولو سره هم کیږي او په هغه کي اشارې ته ضرورت نه وي، او مخکي ذکر سوه چي کوم شی اشارې ته محتاج نه وي په هغه کي به د قاضي خط قبلول کیږي، نو ځکه په عقار کي به هم د قاضي خط قبلول کیږي. او په منقوله شیانو کي يعني په څاروي، غلام، مینځه او داسي نورو کي به د قاضي خط نه قبلول کیږي؛ ځکه چي منقوله شیان اشارې ته محتاج وي.

وعن أبي يوسف إلخ: له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روایت دا دی چي د قاضي خط به د غلام په باره کي خو قبلول کیږي، لېکن د مینځي په باره کي به نه قبلول کیږي؛ ځکه چي په غلام کي د تېښتېدلو زيات احتمال سته او هغه پر تېښتېدلو زيات قادر هم دی او (ځکه هغه دبانديني اخلمتونه کوي)، لېکن مینځه پر تېښتېدلو زيات قدرت نه لري (ځکه هغه نقط کورني خدمتونه کوي)، نو څرنګه چي په غلام کي د تېښتېدلو زيات او قوي احتمال سته او په مینځه کي د دې احتمال ډېر کم دی، نو ځکه صرف د غلام په باره کي به د قاضي خط ته ضرورت پېښیږي، نه د مینځي په باره کي، لهذا په کوم صورت کي چي د قاضي خط ته ضرورت سته صرف هلته به د قاضي خط قبلول کیږي؛ ځکه مخکي تاسو ته ذکر سوه چي کتاب القاضي إلى القاضي د ضرورت پر بناء مشروع او جائز ګرځول سوی دی.

د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دویم روایت دا دی چي په غلام او مینځه دواړو کي به د قاضي خط قبلول کیږي، مګر په هغه شرطونو سره کوم چي په مبسوط او داسي نورو کي ذکر سوي دي.

وعن محمد إلخ: فرمايي چې د امام محمد رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې په هر هغه شي کې د قاضي خط مقبول او معتبر دی چې په هغه کې د منتقل کېدلو صلاحيت وي (يعني له يوه ځای څخه بل ځای ته نقلول کېدای سي) هغه که له هري قبيلې څخه وي، او پر همدې د متأخرينو فقهاؤ فتوی ده، او د ائمه ثلاثه وو رَحِمَهُمُ الله مسلک هم دا دی. (بنايه ج:۸)

## مكتوب إليه قاضي به كله د كاتب قاضي خط قبلوي؟ (اول شرط)

قَالَ: وَلَا يُقْبَلُ الْكِتَابُ إِلَّا بِشَهَادَةِ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ او مكتوب إليه قاضي دي د كاتب قاضي خط نه قبلوي مگر د دوو خلکو يا يوه سړي او دوو ښځو په گواهۍ سره لِأَنَّ الْكِتَابَ يُشْبِهُ الْكِتَابَ ځکه چې يو خط د بل خط سره مشابه وي فَلَا يَثْبُتُ إِلَّا بِحُجَّةٍ تَامَّةٍ نو ځکه له حجت تامه [بشپړ حجت] څخه بغير به د قاضي خط نه ثابتيږي وَهَٰذَا لِأَنَّهُ مُلْزِمٌ او دا ځکه چې د قاضي خط لازمونکي دی فَلَا بُدَّ مِنَ الْحُجَّةِ نو ځکه حجت ضروري دی بِخِلَافِ كِتَابِ الِاسْتِئْمَانِ مِنْ أَهْلِ الْحَرْبِ په خلاف د هغه خط کوم چې د حربيانو له طرفه د امان غوښتو لپاره [را استول سوی] وي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمُلْزِمٍ ځکه چې هغه لازمونکی نه دی وَبِخِلَافِ رَسُولِ الْقَاضِي إِلَى الْمُزَكِّي او په خلاف د تزکيه کونکي کس وطرف ته د قاضي د قاصد [استازی] وَرَسُولِهِ إِلَى الْقَاضِي او [په خلاف] د قاضي وطرف ته د تزکيه کونکي کس د قاصد: لِأَنَّ الْإِلْزَامَ بِالشَّهَادَةِ لَا بِالتَّزْكِيَةِ ځکه چې لازمول په گواهۍ سره کيږي، نه په تزکيه سره.

**اللغات**: ﴿شهادة﴾ گواهي، شاهدي، ﴿مُلزِم﴾ د افعال د باب فاعل دی: لازمونکی، ﴿استيمان﴾ د استفعال د باب مصدر دی: د امان طلب کول، امان غوښتل، ﴿مُزَكِّي﴾ د تفعيل د باب فاعل دی: تزکيه بيانونکی، د گواهانو اهليت بيانونکی، قاضي چې يو سړی د دې لپاره واستوي چې د گواهانو حالت او عدالت معلوم کړي چې آيا هغوی عادلان دي، که نه، يا مثلاً د مجرم د حالت معلومولو لپاره يې واستوي، نو هغه ته مزکي وايي، په تزکيه سره فقط په فيصله کولو کې مرسته حاصليږي لېکن پر هغه فيصله نه کيږي، بلکې فيصله خو پر گواهۍ کيږي، ﴿رسول﴾ استازی، قاصد، خبر وړونکی، پيغام رسونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله کاتب قاضي بل قاضي ته خپل خط واستوي نو مکتوب إليه (مرسل إليه) قاضي به هغه وخت د کاتب قاضي دا خط قبلوي کله چې پر هغه بينه پېش کړی سي، يعني دوه عادلان خلک يا يو سړی او دوې ښځې ګواهي ورکړي چې دا د فلانکي قاضي خط او مهر دی او هغه مورږ پر دې ګواهان مقرر کړو.

دا د جمهورو فقهاؤ مسلک دی، لېکن امام شعبي، امام مالک او په يوه روايت کې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې له بيّنه څخه بغير هم د کاتب قاضي خط قبلول جائز دي، په دې شرط چې مکتوب إليه قاضي به د کاتب قاضي خط او مهر پېژني.

د جمهور فقهاؤ دليل دا دی چې يو خط د بل خط سره مشابه وي، نو ځکه د کاتب قاضي خط به له حجت تامه څخه بغير نه ثابتيږي؛ او حجت تامه بيّنه ده، او بيّنه ځکه شرط ده چې د قاضي د خط په ذريعه پر مدعیٰ عليه هغه شی لازمول کيږي کوم چې په خط کې ليکل سوی وي، او پر يو چا يو شی لازمول له بيّنه څخه بغير نه کيږي، نو ځکه د قاضي د خط قبلولو لپاره بيّنه شرط او ضروري ده.

بخلاف کتاب الاستيمان إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د دارُ الحرب باچا د امان غوښتلو لپاره د دارُ الاسلام باچا (اميرُ المؤمنين) ته خط واستوي، نو دا خط له بيّنه څخه بغير هم قبلول جائز دي؛ ځکه چې د باچا په خط سره پر يو چا شی نه لازميږي او اميرُ المؤمنين ته د هغه د قبلولو يا نه قبلولو اختيار دی، لهذا کله چې د حربي باچا خط ملزم نه دی، نو له بيّنه څخه بغير به د هغه قبلول هم جائز وي.

وبخلاف رسول إلخ: همدارنګه که قاضي مزکي کس ته (يعني د ګواهانو تزکيه او تعديل کونکي) ته خپل قاصد (استازی) واستوي، يا مزکي کس قاضي ته خپل قاصد واستوي، نو دا دواړه هم له بيّنه څخه بغير قبلول جائز دي (يعني دا ضروري نه ده چې دوه ګواهان د قاضي مخته پر دې ګواهي ورکړي چې دا واقعي د مزکي قاصد دی)؛ ځکه چې تزکيه ملزم نه وي، بلکې ګواهي ملزم وي، لهذا کله چې تزکيه ملزم نه ده، نو ښکاره خبره ده چې له بيّنه څخه بغير به د هغه قبلول هم جائز وي او دا به پر کتاب القاضي إلى القاضي قياسول هم صحيح نه وي (ځکه کتابُ القاضي يعني د قاضي خط مُلزِم وي).

## د کاتب قاضي ذمه واري

قَالَ: وَيَجِبُ أَنْ يَقْرَأَ الْكِتَابَ عَلَيْهِمْ فرمايي: او د کاتب قاضي لپاره واجب دي چې ګواهانو ته خط ولوستي لِيَعْرِفُوْا مَا فِيْهِ د دې لپاره چې هغوی هغه څه وپېژني کوم چې په خط کې دي ايغني چې هغوی د خط په مضمون خبر سي] أَوْ يُعْلِمَهُمْ بِهِ يا قاضي دي [بغير له لوستلو] هغوی د خط په مضمون

خبر کړي لِأَنَّهُ لَا شَهَادَةَ بِدُوْنِ الْعِلْمِ ځکه چي له علم څخه بغير ګواهي نه وي [يعني له علم او خبرتيا څخه بغير ګواهي نه سي ورکول کېدای] ثُمَّ يَخْتِمُهُ بِحَضْرَتِهِمْ وَيُسَلِّمُهُ إِلَيْهِمْ بيا دې قاضي د هغو په موجوديت کي مهر ولګوي او خط دي هغو ته وسپاري كَيْلَا يُتَوَهَّمَ التَّغْيِيْرُ د دې لپاره چي [په خط کي] د تغير کولو وهم نه وسي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا [حکم] د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی لِأَنَّ عِلْمَ مَا فِي الْكِتَابِ وَالْخَتْمِ بِحَضْرَتِهِمْ شَرْطٌ ځکه چي د خط د مضمون علم [يعني د خط په مضمون خبرېدل] او د ګواهانو په موجوديت کي مهر لګول شرط دي وَكَذَا حِفْظُ مَا فِي الْكِتَابِ عِنْدَهُمَا او همدارنګه د خط مضمون ياد ساتل [هم] د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز شرط دي [يعني دا هم شرط دي چي ګواهانو ته به خط ياد وي] وَلِهٰذَا يَدْفَعُ إِلَيْهِمْ كِتَابٌ آخَرُ غَيْرُ مَخْتُوْمٍ او له همدې کبله به کاتب قاضي ګواهانو ته بغير له مهره يو بل خط [هم] ورکوي لِيَكُوْنَ مَعَهُمْ مُعَاوَنَةٌ عَلَى حِفْظِهِمْ د دې لپاره چي د هغو سره د هغو [د خط] پر ياد ساتلو مرسته وسي [يعني د دې لپاره چي ګواهان د خط هېرېدلو په وخت کي هغه ته ګوري او په ياد يې وساتي] وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ آخِرًا: شَيْءٌ مِنْ ذٰلِكَ لَيْسَ بِشَرْطٍ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په آخر کي وفرمايل: چي له دې څخه يو شی شرط نه دی وَالشَّرْطُ أَنْ يُشْهِدَهُمْ أَنَّ هٰذَا كِتَابُهُ وَخَتْمُهُ [بلکي] شرط دا دی چي هغوی پر دې خبره ګواه جوړ کړي چي دا د هغه خط او د هغه مهر دی [يعني شرط دا دی چي قاضي فقط هغوی پر دې خبره ګواهان کړي! چي دا زما خط او زما مهر دی] وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ ۞ أَنَّ الْخَتْمَ لَيْسَ بِشَرْطٍ أَيْضًا او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه بل روايت دا دی چي د کاتب قاضي مهر هم شرط نه دی فَسَهَّلَ فِيْ ذٰلِكَ لَمَّا ابْتُلِيَ بِالْقَضَاءِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په دې باره کي هغه وخت آساني وکړه کله چي هغه د قضاء په منصب مبتلا سو [يعني امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله هغه وخت دا آسانياني پيدا کړې او شرطونه يې ختم کړه کله چي هغه په خپله قاضي سو او په خپلو سترګو [مشاهده] سره يې د قضاء احوال وليدل] وَلَيْسَ الْخَبَرُ كَالْمُعَايَنَةِ او خبر د مشاهدې په څېر نه وي [يعني اورېدل سوی خبر داسي نه دی لکه په سترګو ليدل سوی حالت] وَاخْتَارَ شَمْسُ الْأَئِمَّةِ السَّرْخَسِيُّ قَوْلَ أَبِيْ يُوْسُفَ او شمس

---

۞ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في فتح القدير (ج:۶، ص:۳۸۷)، والدر المختار (ج:۴، ص:۳۹۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۱۴]

الائمه سرخي رَحِمَهُ الله [هم] د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول اختيار کړی دی.

**اللغات**: ﴿يختمه﴾ د ضرب مضارع ده: مهر لګول. ﴿حضرة﴾ حاضر والی، موجوديت، موجودګي. ﴿تغيير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: بدلول، متغيّر کول، بدلون پکښې راوستل. ﴿خاتم﴾ مراد ځني مهر دی. ﴿سهّل﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: آسانه کول، آساني کول. ﴿ابتلي﴾ د افتعال ماضي مجهوله ده: مبتلا کېدل، ازمايل کېدل. ﴿معاينة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: په سترګو سره لیدنه (مخامخ ليدنه)، مشاهده.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کله کاتب قاضي په خپل خط کي شهادت (ګواهي) او داسي نور مضمون وليکي او له خط څخه فارغ سي، نو هغه ته پکار دي چي ټوله مضمون ګواهانو ته ووايي او په هغوی يې واوري، د دې لپاره چي هغوی د خط په مضمون خبر سي، يا قاضي دي له ويلو او لوستلو څخه بغير هغوی د خط په مضمون خبر کړي؛ ځکه چي بغير له علم او خبر څخه ګواهي نه سي ور کول کېدای (يعني دا ګواهان هغه وخت د مکتوب إليه قاضي سره پر خط ګواهي ور کولای سي کله چي دوی په خپله هم د خط په مضمون او مفهوم خبر وي)، نو ځکه ګواهان د خط په مضمون خبرول ضروري دي.

او کله چي ګواهان په هغه خبر سي نو بيا د قاضي کار دا دی چي پر خط خپل مهر ولګوي او هغه سره بند کړي او بيا دي هغه ګواهانو ته وسپاري؛ پر خط مهر لګول او بندول به په دې وجه کوي چي د ګواهانو له طرفه په خط کي د تغيّر و تبدل کولو وهم ختم سي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د صاحبينو په نيز ګواهان د خط په مضمون خبرول او د هغوی په موجوديت کي مهر لګول، خط بندول او د ګواهي د اداء کولو تر وخته پوري ګواهانو ته د خط مضمون ياد پاتېدل شرط دي، له همدې کبله حکم دا دی چي کاتب قاضي دي ګواهانو ته يو بل خلاص خط هم ور کړي چي پر هغه مهر نه وي لګېدلی او بند سوی نه وي، د دې لپاره چي د هرېدلو په وخت کي ګواهان هغه ته ګوري او ټوله لاره خط په ياد وساتي. همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اول قول دی.

لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله آخري قول دا دی چي د خط په مضمون د ګواهانو خبرېدل او ګواهانو ته د هغه مضمون ياد پاتېدل شرط نه دي، بلکي شرط دا دی چي قاضي دي ګواهان فقط پر دې خبره ګواه جوړ کړي چي دا زما خط او زما مهر دی او دا خط ما ستاسو په مخ کي بند کړی؛ او تر دې وروسته امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله وفرمايل چي د قاضي لپاره پر خط مهر لګول او بندول هم ضروري نه

دي. صاحب د هدايې وايي چې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله هغه وخت دا آسانياني پيدا کړې کله چې هغه په خپله قاضي سو او د قضاوت احوال يې په سترګو وليدل. لهذا امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله چې تر مشاهدې او تجربې وروسته کوم څه ويلي دي هغه زيات صحيح دي؛ ځکه چې خبر د مشاهدې په څېر نه سي کېداى. او پر خلګو د آساني کولو لپاره شمس الائمه سرخسي هم د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول اختيار کړى دى.

## مکتوب إليه حصي به خط كله قبلوي؟ (دويم شرط)

قَالَ: فَإِذَا وَصَلَ إِلَى الْقَاضِيْ بيا چې کله دا خط مکتوب إليه قاضي ته ورسيږي لَمْ يَقْبَلْهُ إِلَّا بِحَضْرَةِ الْخَصْمِ نو هغه دي دا نه قبلوي مګر د مدعىٰ عليه په موجوديت کې لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ أَدَاءِ الشَّهَادَةِ ځکه چې دا خط د ګواهي اداء کولو په درجه کې دى فَلَا بُدَّ مِنْ حُضُوْرِهِ نو ځکه د مدعىٰ عليه حاضر والى ضروري دى بِخِلَافِ سَمَاعِ الْقَاضِيْ الْكَاتِبِ په خلاف د ليکونکي قاضي د اورېدلو [يعني کاتب قاضي چې کله ګواهي اوري نو په هغه وخت کې د مدعىٰ عليه حاضر والى ضروري نه دى] لِأَنَّهُ لِلنَّقْلِ لَا لِلْحُكْمِ ځکه چې هغه [ګواهي] د نقلولو [منتقل کولو] لپاره وي، نه د فيصله کولو لپاره.

**اللغات:** ﴿وصل﴾ د ضرب ماضي ده: رسېدل. ﴿حضرة﴾ حضور (حاضر والى)، موجوديت، موجودګي. ﴿خصم﴾ مخالف فريق، مدعي او مدعىٰ عليه دواړو ته وايي، دلته مدعىٰ عليه مراد دى.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چې کله د کاتب قاضي خط مکتوب إليه قاضي ته ورسيږي، نو مکتوب إليه قاضي دي د مدعىٰ عليه په موجوديت کې هغه خط قبول کړي. يعني د مدعىٰ عليه د حاضر والي په وخت کې دي هغه خط له مدعي يا ګواهانو څخه واخلي. او د هغه په ناموجوديت (نا حاضر والي) کې دي خط ته لاس هم نه ور وړي؛ ځکه چې د کاتب قاضي دا خط د ګواهي ورکولو په درجه کې دى. او تاسو ته معلومه ده چې د ګواهي ورکولو په وخت کې د مدعىٰ عليه حاضر والى ضروري دى. نو ځکه د هغه خط د اخيستلو په وخت کې به هم د مکتوب إليه قاضي سره د مدعىٰ عليه حاضر والى ضروري وي.

د دې په خلاف کاتب قاضي چې کله د ګواهانو څخه ګواهي اوري نو په هغه وخت کې د مدعىٰ عليه موجوديت ضروري نه دى. يعني که کاتب قاضي د مدعىٰ عليه په ناموجوديت کې د مدعي د ګواهانو ګواهي واوري نو هم جائز دي؛ ځکه چې د کاتب قاضي له طرفه ګواهي اورېدل د فيصله کولو

لپاره نه وي، بلکي د ګواهۍ د الفاظو د نقلولو لپاره وي (يعني کاتب قاضي فقط د دې لپاره ګواهي اوري چې هغه وليکي او بل قاضي ته يې منتقل کړي)، نو ځکه په دې صورت کي د مدعیٰ عليه حاضر والی ضروري نه دی.

لېکن څرنګه چې د کاتب قاضي خط ته د مکتوب إليه قاضي په نامه د فيصله کولو لپاره وي (چې مکتوب إليه قاضي د هغه مطابق فيصله وکړي)، نو ځکه د خط قبلولو لپاره د مکتوب إليه قاضي سره د مدعیٰ عليه حاضر والی ضروري دی، کنې قضاء على الغائب به لازم سي، حالانکي قضاء على الغائب (د غائب سړي په هکله فيصله کول) جائز نه دي.

## د قاضي پر خط د عمل کولو طريقه

قَالَ: فَإِذَا سَلَّمَهُ الشُّهُوْدُ إِلَيْهِ فرمايي: او کله چې ګواهان دا خط مکتوب إليه قاضي ته وسپاري نَظَرَ إِلٰى خَتْمِهِ نو مکتوب إليه قاضي دي د خط مهر ته او ګوري فَإِذَا شَهِدُوْا أَنَّهُ كِتَابُ فُلَانٍ الْقَاضِي سَلَّمَهُ إِلَيْنَا فِي مَجْلِسِ حُكْمِهِ وَقَضَائِهِ بيا چې کله ګواهان ګواهي ورکړي چې دا خط د فلانکي قاضي دی [او] هغه موږ ته دا د خپل حکم په مجلس [محکمه] کي وسپاری وَقَرَأَهُ عَلَيْنَا وَخَتَمَهُ او هغه موږ ته ولوستی او خپل مهر يې پر ولګوی [بند يې کړی] فَتَحَهُ الْقَاضِي وَقَرَأَهُ عَلَى الْخَصْمِ نو مکتوب إليه قاضي دي هغه خلاص کړي او مدعیٰ اليه ته دي يې ولوستي وَأَلْزَمَهُ مَا فِيهِ او کوم څه چې په خط کي دي هغه دي پر مدعیٰ عليه لازم کړي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دي وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ ❁: إِذَا شَهِدُوْا أَنَّهُ كِتَابُهُ وَخَاتَمُهُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې کله ګواهان دا ګواهي ورکړي چې دا د هغه خط او د هغه مهر دی قَبِلَهُ نو مکتوب إليه قاضي دي هغه قبول کړي عَلٰى مَا مَرَّ لکه مخکي چې تير سو وَلَمْ يُشْتَرَطْ فِي الْكِتَابِ ظُهُوْرُ الْعَدَالَةِ لِلْفَتْحِ او په متن [قدوري] کي د خط خلاصولو لپاره د ګواهانو عادل والی ښکاره کېدل نه دي شرط کړی سوي وَالصَّحِيْحُ أَنَّهُ يَفُضُّ الْكِتَابَ بَعْدَ ثُبُوْتِ الْعَدَالَةِ او صحيح دا ده چې خط دې له عدالت ثابتېدلو څخه وروسته خلاص کړي كَذَا ذَكَرَهُ الْخَصَّافُ همداسې امام خصاف رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي لِأَنَّهُ رُبَّمَا

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف كما ظهر من قبل، وكذا ذكر في العناية (ج:۶، ص:۳۸۸)، وكذا في البحر الرائق (ج:۷، ص:۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۱۵]

يُحْتَاجُ إِلَى زِيَادَةِ الشُّهُوْدِ ځکه چي ځيني وخت نورو ګواهانو ته ضرورت پرېوځي وَإِنَّمَا يُمْكِنُهُمْ أَدَاءُ الشَّهَادَةِ بَعْدَ قِيَامِ الْخَتْمِ او د دې نورو ګواهانو لپاره [فقط] هغه وخت ګواهي اداء كول ممكن ده كله چي مهر موجود وي وَإِنَّمَا يَقْبَلُهُ الْمَكْتُوبُ إِلَيْهِ إِذَا كَانَ الْكَاتِبُ عَلَى الْقَضَاءِ او مكتوب إليه قاضي به دا خط هغه وخت قبلوي كله چي كاتب قاضي خپل د قضاء پر منصب پاته وي حَتّٰى لَوْ مَاتَ أَوْ عُزِلَ أَوْ لَمْ يَبْقَ أَهْلًا لِلْقَضَاءِ قَبْلَ وُصُولِ الْكِتَابِ تر دې كه له خط رسېدلو څخه مخكي كاتب قاضي مړ سي، يا معزوله كړى سي، يا د قضاء اهل پاته نه سي لَا يَقْبَلُهُ نو مكتوب إليه قاضي به [د هغه] خط نه قبلوي لِأَنَّهُ الْتَحَقَ بِوَاحِدٍ مِنَ الرَّعَايَا ځکه چي [اوس] هغه له عوامو څخه يو فرد وګرځېدى وَلِهٰذَا لَا يُقْبَلُ إِخْبَارُهُ قَاضِيًا آخَرَ فِي غَيْرِ عَمَلِهِ أَوْ فِي غَيْرِ عَمَلِهِمَا او له همدې كبله بل قاضي ته د هغه خبر وركول به د هغه له عمل اولايت (حكومت)] څخه بغير يا د دواړو له عمل څخه بغير [په جلا ولايت (حكومت)] كي نه قبلول كيږي وَكَذَا لَوْ مَاتَ الْمَكْتُوبُ إِلَيْهِ او همدارنګه كله چي مكتوب إليه قاضي مړ سي [نو همدا حكم دى] إِلَّا إِذَا كَتَبَ: إِلَى فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ قَاضِيْ بَلَدِ كَذَا وَإِلَى كُلِّ مَنْ يَصِلُ إِلَيْهِ مِنْ قُضَاةِ الْمُسْلِمِيْنَ مګر كله چي هغه داسي ليكلي وي: "چي د فلانكي ښار د قاضي فلان بن فلان وطرف ته او له مسلمانو قاضيانو څخه د هر هغه قاضي وطرف ته كوم ته چي دا خط ورسيږي" لِأَنَّ غَيْرَهُ صَارَ تَبَعًا لَهُ ځکه چي [په دې صورت كي] غير مكتوب إليه قاضي د مكتوب إليه قاضي تابع سو وَهُوَ مُعَرَّفٌ او [په دې صورت كي] دا غير مكتوب إليه قاضي [هم] معلوم دى بِخِلَافِ مَا إِذَا كَتَبَ ابْتِدَاءً: إِلَى كُلِّ مَنْ يَصِلُ إِلَيْهِ په خلاف د دې صورت كله چي هغه ابتداءً داسي ليكلي وي: "چي د هغه قاضي وطرف ته كوم ته چي دا خط ورسيږي" عَلَى مَا عَلَيْهِ مَشَايِخُنَا لكه څرنګه چي پر دې زموږ مشائخ دي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُعَرَّفٍ ځکه چي [په دې صورت كي] هغه معلوم نه دى [بلكي مجهول دى] وَلَوْ كَانَ مَاتَ الْخَصْمُ او كه چيري مدعىٰ عليه مړ سي يَنْفُذُ الْكِتَابُ عَلَى وَارِثِهِ نو مكتوب إليه قاضي به دا خط د هغه پر وارث نافذوي لِقِيَامِهِ مَقَامَهُ ځکه چي [اوس] د هغه وارث د هغه قائم مقام دى.

**اللغات:** ﴿سلّمه﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: ورسپارل، ﴿فتحه﴾ د فتح د باب ماضي ده: خلاصول، ﴿ألزم﴾ د افعال د باب ماضي ده: لازمول (ديو چا پر ذمه شي لازمول)، ﴿يفض﴾ د نصر د باب مضارع ده:

مهر ماتول. مهر ځني لیرکول. خلاصول او پرانیستل. ﴿فی غیر عمله﴾ د قاضي ولایت او حکومت چې په کوم ښار او کومه ولسوالي کي وي، هغه ته د قاضي "عمل" وايي. او له هغه ځخه بغیر نورو ښارونو ته "غیر عمل" وايي (اثمار الهدایه). ﴿معرّف﴾ د تفعیل د باب مفعول دی: پېژندل سوی. معلوم. متعین.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې کله د کاتب قاضي ګواهان د مدعیٰ علیه په موجودیت کي مکتوب إلیه قاضي ته د هغه خط وسپاري، نو د مکتوب إلیه قاضي کار دا دی چې تر ټولو مخکي د خط مهر او ګوري. بیا چې کله ګواهان دا ګواهي ورکړي چې دا د فلان بن فلان او د فلان ښار د قاضي خط دی او هغه قاضي په موږ دا خط واورېدی او پر هغه یې خپل مهر ولګوی (بندیې کړی) او موږ ته یې وسپاری؛ نو اوس دي مکتوب إلیه قاضي هغه خط خلاص کړي او په مدعیٰ علیه دي یې واوروي. او کوم څه چې په هغه خط کي لیکل سوي دي هغه دي پر مدعیٰ علیه لازم کړي. دا ټوله تفصیلات د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دي. او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې که د مکتوب إلیه قاضي سره ګواهان فقط د دې خبري ګواهي ورکړي چې دا فلان قاضي خط دی او دا مهر هم د هغه دی، نو مکتوب إلیه قاضي دي خط قبول کړي او له هغو ځخه دي نور تحقیق او تفتیش نه کوي.

ولم یشترط إلخ: د دې حاصل دا دی چې امام قدوري رَحِمَهُ الله په متن کي د خط خلاصولو لپاره دا شرط نه دی لګولی چې د ګواهانو عدالت (عادل والي) به ښکاره وي، لېکن صحیح خبره دا ده چې مکتوب إلیه قاضي دي له خط خلاصولو ځخه مخکي د ګواهانو د عدالت په هکله معلومات وکړي، او کله چې د هغه په نېز د ګواهانو عادل والی ثابت سي نو بیا دي له خط ځخه پاسنی مهر لیري کړي او خط دي خلاص کړي، همدا د امام خصاف رَحِمَهُ الله رایه هم ده؛ د دې دلیل دا دی چې که د ګواهانو عدالت ثابت نه سي او مدعیٰ علیه پر هغه عیب ولګوي او مدعي ته ووایي چې نور ګواهان پېش کړه!، او مدعي د هغه پر ځای نور ګواهان پېش کړي، نو د دې نورو ګواهانو لپاره هغه وخت ګواهي اداء کول ممکن ده کله چې مهر موجود وي او خط نه وي خلاص سوی، ځکه چې نور ګواهان هم دا ګواهي ورکوي چې دا د فلانکي قاضي خط او د هغه مهر دی او هغه بند کړی دی. لېکن کله چې مهر لیري سوی وي او خط خلاص کړی سوي وي، نو ښکاره خبره ده چې بیا به د هغو لپاره دا ګواهي ځنګه صحیح وي چې دا د فلانکي قاضي مهر دی، لهذا غوره همدا ده چې د مکتوب إلیه قاضي دي د ګواهانو له عدالت ثابتېدلو ځخه مخکي خط نه خلاصوي.

**وإنما يقبله إلخ:** فرمايي چي مکتوب إليه قاضي به فقط هغه وخت د کاتب قاضي خط قبلوي کله چي هغه د قضاء پر منصب باقي پاته وي او معزوله کړی سوی نه وي، لېکن که کاتب قاضي د قضاء له منصب څخه معزوله کړی سي، يا هغه مړ سي، يا د فاسق کېدلو يا مرتد کېدلو په وجه د هغه د قضاء اهليت ختم سي او تر اوسه د هغه خط مکتوب إليه قاضي ته نه وي را رسېدلی، نو په دې صورت کي به (د طرفينو په نېز) مکتوب إليه قاضي هغه خط نه قبلوي؛ ځکه چي اوس کاتب قاضي د عوامو يو فرد وګرځېدی، او څرنګه چي د عوامو د يو فرد حکم نه نافذېږي همداسي به د دې کاتب قاضي خط او حکم هم نه نافذېږي؛ همدا وجه ده که يو قاضي له خپل ښار څخه بغير په بل ښار کي د هغه ښار قاضي ته يو خبر ورکړي، مثلاً داسي ورته ووايي چي پر فلاني د فلاني حق ثابت دی، نو د هغه بل ښار قاضي به د مخبر قاضي خبر نه قبلوي؛ ځکه چي مخبر (خبر ورکونکي) قاضي په دې ښار کي د يو عام سړي په څېر دی، او د عام سړي قول حجت نه وي. همدارنګه که دوه قاضيان په داسي ښار کي سره يو ځای سي چي هغه د دواړو له ولايت او حکومت څخه بهر وي (يعني په هغه ښار کي د بل قاضي ولايت وي او د هغو د قضاء ولايت نه چلېږي) او بيا په هغو کي يو بل ته ووايي چي زما په نېز د فلان سړي پر فلاني حق ثابت دی، لهذا ته په دې باره کي فيصله وکړه!، نو دا بل قاضي فيصله نه سي کولای؛ ځکه چي هغه دواړه قاضيان په دغه پردي ښار کې د عام سړي په څېر دي، او د عام سړي قول حجت نه وي او د هغه فيصله شرعاً نه نافذېږي، نو همداسي په دې مسئله کي چي مکتوب إليه قاضي ته له خط رسېدلو څخه مخکي کاتب قاضي د قضاء پر منصب پاته نه سو، نو هغه د عام سړي په څېر سو، او د عام سړي قول حجت نه وي، نو ځکه به مکتوب إليه قاضي د هغه خط نه قبلوي.

همدارنګه که مکتوب إليه قاضي ته له خط رسېدلو څخه مخکي په خپله مکتوب إليه قاضي مړ سي، نو هم به د کاتب قاضي خط نه قبلول کېږي؛ ځکه چي کاتب قاضي د مکتوب إليه قاضي پر امانت او دينداری (ديانت) په اعتماد کولو سره هغه ته خط استولی وي، او پر بل قاضي هغه دومره اعتماد نه لري (ځکه چي بل قاضي هغه ته معلوم نه وي)، نو ځکه د بل قاضي په حق کي به د مکتوب إليه قاضي په نامه را استول سوی خط حجت نه وي.

**إلا إذا كتب إلخ:** لېکن که کاتب قاضي خپل خط په دې انداز سره ليکلی وي چي دا خط د فلانکي ښار د قاضي (فلان بن فلان) وطرف ته او د هر مسلمان قاضي وطرف ته (کوم ته چي دا خط ورسيږي) زما له طرفه استول سوی دی، نو په دې صورت کي د مکتوب إليه قاضي په مرګ سره دا خط نه بېکاره کېږي بلکي د هغه پر ځای چي بل کوم قاضي ټاکل کېږي، د هغه لپاره دا خط قبلول او پر دې فيصله کول جائز دي: ځکه چي د مکتوب إليه قاضي پر ځای چي کوم نوی قاضي راځي هغه به يې قائم مقام وي

او د هغه ښار قاضي به وي، نو ځکه د خط د مذکوره صورت او انداز "وإلى كُل من يصل إليه من قضاة المسلمين" په خاطر به دا نوی قاضي هم د هغه خط مکتوب إليه وي او معلوم او مُتعيّن به هم وي، نو ځکه د هغه لپاره به د دې قبلول جائز وي. لیکن که چیرې کاتب قاضي ابتداءً پر هغه خط داسې لیکلي وي چې دا خط د هر هغه قاضي وطرف ته زما له خوا استول سوی دی کوم ته چې دا خط ورسیږي، نو په دې صورت کې به هغه خط نه قبلول کیږي او د یوه قاضي لپاره به هم د هغه اخیستل او خلاصول صحیح نه وي؛ ځکه کله چې ابتداءً دا خط د هیڅ قاضي په نامه نه دی او هغه د "کل من يصل إليه" وطرف ته استول سوی دی، نو ښکاره خبره ده چې مکتوب إليه (مرسل إليه) قاضي مجهول دی، او د مکتوب إليه د مجهول والي په وجه خط لغو او بېکاره کیږي، نو ځکه دا خط به هم لغو وي او نه به قبلول کیږي.

ولوكان مات الخصم إلخ: فرمايي که چیرې مدعیٰ علیه مړ سي نو په دې صورت کې هم خط نه بېکاره کیږي، بلکې مکتوب إليه قاضي به دا خط د هغه پر وارث نافذوي؛ ځکه چې اوس د مدعیٰ علیه وارث د مدعیٰ علیه قائم مقام دی.

## په حدود او قصاص کې د قاضي خط مقبول نه دی

وَلَا يُقْبَلُ كِتَابُ الْقَاضِي إِلَى الْقَاضِي فِي الْحُدُوْدِ وَالْقِصَاصِ او په حدودو او قصاص کې به "د یوه قاضي خط بل قاضي ته" نه قبلول کیږي لِأَنَّ فِيْهِ شُبْهَةَ الْبَدَلِيَّةِ ځکه چې په دې کې د بدل والي [بدل کېدلو] شبهه سته فَصَارَ كَالشَّهَادَةِ عَلَى الشَّهَادَةِ نو دا د شهادت على الشهادت په څېر سو وَلِأَنَّ مَبْنَاهُمَا عَلَى الْإِسْقَاطِ او ځکه چې د حدونو او قصاص بنیاد پر ساقطولو دی وَفِي قَبُوْلِهِ سَعْيٌ فِي إِثْبَاتِهِمَا او د خط قاضي په قبلولو کې د هغوی د ثابتولو کوشش کول دي.

**اللغات:** ﴿بدلية﴾ بدل والي، یو شی د بل شي بدل کېدل. ﴿مبنا﴾ بنیاد. ﴿سعی﴾ د فتح د باب مصدر دی: کوشش کول (کوښښ کول).

**تشريح: مسئله:** دا ده چې په قصاص او حدونو کې به خط قاضي إلى القاضي نه قبلول کیږي؛ دلیل دا دی چې په خط قاضي کې د بدلیت شبهه سته، په دې توګه چې اصلي ګواهانو فقط د کاتب قاضي مخته ګواهي ورکړې ده، نه د مکتوب إليه قاضي مخته، او بیا کاتب قاضي فقط هغه شهادت (ګواهي) ولیکي او د مکتوب إليه قاضي وطرف ته یې منتقل کړي، نو ګواکي دا لیکل سوی شهادت

د هغه اصلي شهادت بدل جوړ سو، نو ځکه په دې حواله سره د قاضي خط د "شهادة علی الشهادة" په څېر سو (يعني داسې سو لکه پريوه ګواهي د پاسه بله ګواهي)، او په حدونو او قصاص کې شهادت على الشهادت نه قبلول کيږي، نو ځکه خط قاضي إلی القاضي به هم نه پکښې قبلول کيږي.

دويم دليل دا دی چې د حدونو او قصاص بنياد پر ساقطولو دی، يعنې حتی الامکان به دا کوشش کيږي چې هغوی ساقط کړی سي، حال دا چې د هغوی په باره کې د قاضي خط قبلول داسې دي لکه د هغوی د ثابتولو کوشش کول (او د ثابتولو کوشش کول د هغوی د مبنا خلاف دي)، نو ځکه په دې حواله سره به هم په حدونو او قصاص کې د قاضي خط نه قبلول کيږي.



# فَصْلٌ آخَرُ

دا بل فصل دی

**تشريح**: دا فصل د کتاب القاضي إلی القاضي تتمه (بشپړېز) دی، لېکن تر "فَصْلٌ" وروسته د "آخَرُ" لفظ ذکر کول په ظاهره صحيح نه معلوميږي؛ ځکه د "آخَرُ" معنیٰ ده "بل، دويم"، حالانکې په "کتابُ القاضي إلی القاضي" کې تر دې مخکې بل هيڅ فصل نسته. او صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ويلي دي چې دا فصل د "باب أدب القاضي" دويم فصل شمارل زيات مناسب دي؛ ځکه چې په "باب ادب القاضي" کې تر دې مخکې "فصل في الحبس" هم ذکر سوی دی، نو ځکه دا به د هغه دويم فصل شمارل صحيح وي.

## د ښځې د قضاء حکم

وَيَجُوزُ قَضَاءُ الْمَرْأَةِ فِي كُلِّ شَيْءٍ إِلَّا فِي الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ او د ښځې قضاء [قاضي کېدل] په هر شي کې جائز دي، ما سوا له حدود او قصاص څخه اِعْتِبَارًا بِشَهَادَتِهَا فِيهِمَا د هغې پر ګواهی په قياس کولو سره، په دې دواړو کې [يعني په حدود او قصاص کې د ښځې پر ګواهی قياس سوی دی] وَقَدْ مَرَّ الْوَجْهُ او [د دې] دليل مخکې تېر سوی دی.

**اللغات**: ﴿قضاء﴾ د ضرب د باب مصدر دی: فيصله کول، قاضي کېدل (قاضي جوړېدل).

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی چې زموږ په نيز له حدونو او قصاص څخه بغير بل په هره مسئله او معامله کې ښځه قاضيه جوړول او د هغې فيصله نافذول جائز دي؛ او دا جواز په اصل کې د هغې له شهادت (ګواهی) څخه را اخيستل سوی دی، او مخکې ذکر سوه چې د قضاء حکم د شهادت له حکم څخه مستفاد او را اخيستل سوی دی، يعني کوم څوک چې د شهادت اهل وي هغه د قضاء هم اهل دی، او ښځه بغير له حدود او قصاص څخه په نورو معاملاتو کې د شهادت اهل ده، نو ځکه هغه به په نورو معاملاتو کې د قضاء هم اهل وي او هغه به قاضي جوړول جائز او صحيح وي. (أحسن الهدايه)

(ښکاره دي چې دا زموږ مذهب دی. لېکن د ائمه ثلاثه وو په نيز په هيڅ معامله کې هم ښځه قاضي جوړول جائز نه دي)

## د قاضي لپاره د خپل نائب ټاکلو حکم

وَلَيْسَ لِلْقَاضِيْ أَنْ يَسْتَخْلِفَ عَلَى الْقَضَاءِ او قاضي ته دا اختيار نسته چې پر قضاء خليفه [نائب] وټاکي إِلَّا أَنْ يُفَوَّضَ إِلَيْهِ ذٰلِكَ مګر دا چې [د باچا له طرفه] هغه ته دا اختيار وسپارل سي لِأَنَّهُ قُلِّدَ الْقَضَاءُ دُوْنَ التَّقْلِيْدِ بِهٖ ځکه چې هغه فقط د قضاء [فيصله کولو] لپاره قاضي جوړ سوی دی، نه د قاضي جوړولو [او ټاکلو] لپاره فَصَارَ كَتَوْكِيْلِ الْوَكِيْلِ نو دا داسي سو لکه وکيل چې [بل څوک خپل] وکيل جوړ کړي بِخِلَافِ الْمَأْمُوْرِ بِإِقَامَةِ الْجُمُعَةِ په خلاف د هغه امام چې هغه ته د جمعې د لمانځه قائمولو حکم سوی وي [يعني د باچا له طرفه د جمعې پر امامت ټاکل سوی وي] حَيْثُ يَسْتَخْلِفُ نو هغه خپل نائب ټاکلای سي لِأَنَّهُ عَلٰى شَرَفِ الْفَوَاتِ لِتَوَقُّتِهٖ ځکه چې د جمعې لمونځ د وخت متعين کېدلو [وخت محدود کېدلو] په وجه فوتېدلو ته نژدې وي فَكَانَ الْأَمْرُ بِهٖ إِذْنًا بِالْاِسْتِخْلَافِ دَلَالَةً نو ځکه د جمعې قائمولو حکم کول به دلالتاً د نائب ټاکلو اجازت [هم] وي وَلَا كَذٰلِكَ الْقَضَاءُ او قضاء داسي نه ده وَلَوْ قَضَى الثَّانِيْ بِمَحْضَرٍ مِنَ الْأَوَّلِ او که چيرې دويم قاضي [نائب] د اول قاضي په موجوديت کې فيصله وکړي أَوْ قَضَى الثَّانِيْ فَأَجَازَ الْأَوَّلُ يا دويم قاضي [د هغه په ناموجوديت کې] فيصله وکړي بيا اول قاضي د هغه اجازت ورکړي جَازَ نو دا جائز دي كَمَا فِي الْوَكَالَةِ لکه څرنګه چې په وکالت کې [جائز دي] وَهٰذَا لِأَنَّهُ حَضَرَهُ رَأْيُ الْأَوَّلِ او دا [جواز] ځکه دی چې په دې فيصله کې د اول قاضي رايه شامله سوه وَهُوَ الشَّرْطُ او همدا شرط دي وَإِذَا فُوِّضَ إِلَيْهِ او کله چې [د باچا له طرفه]

قاضي ته د نائب ټاکلو اختیار وسپارل سي يَمْلِكُهُ نو قاضي د هغه مالک کيږي ايعني قاضي ته هغه اختيار حاصليږي ا فَيَصِيْرُ الثَّانِيْ نَائِبًا عَنِ الْأَصِيْلِ او دويم قاضي به د اصل [باچا] نائب ګرځي حَتّٰى لَا يَمْلِكَ الْأَوَّلُ عَزْلَهُ تر دې چې اول قاضي ته به د هغه د معزوله کولو ملکيت [اختيار] نه وي إِلَّا إِذَا فُوِّضَ إِلَيْهِ الْعَزْلَ مګر دا چې کله هغه ته د معزوله کولو اختيار هم سپارل سوی وي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده.

**اللغات**: ﴿يستخلف﴾ د استفعال مضارع ده: يو څوک خپل نائب ټاکل. يو څوک خپل خليفه جوړول. (ځای ناسي ټاکل)، ﴿يفوّض﴾ د تفعيل د باب مضارع ده. فَوَّضَ يُفَوِّضُ تَفْوِيْضًا: ورسپارل. ﴿قُلّد﴾ د تفعيل د باب ماضي ده. قَلَّدَ يُقَلِّدُ تَقْلِيْدًا: مراد ځني "قاضي جوړول" دي. ﴿توقت﴾ د تفعل د باب مصدر دی: مؤقت کېدل. په وخت سره مُتعيّن کېدل. (د محدود او لږ وخت لپاره کېدل). ﴿شَرَف﴾ کناره، غاړه، څنډه (ژی). مثلاً که يو څوک د غره پر څنډه ولاړ وي نو ويل کيږي فُلَان عَلٰى شَرَفِ الْهَلَاكِ (فلانکی د هلاکت پر غاړه دی). يعني هلاکېدلو او لوېدلو ته نژدې دی. نو د "عَلٰى شَرَفِ الْفَوَاتِ" معنیٰ ده: ساقطېدلو ته نژدې. ﴿محضر﴾ د نصر د باب مصدر ميمي دی: حضور، حاضر والی، موجوديت. ﴿عزل﴾ د ضرب د باب مصدر دی: معزوله کول. برطرفه کول. له منصبه ليري کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې قاضي ته دا اختيار نسته چې د عذر په وجه يا بغير له عذره د قضاء (قضاوت) په سلسله کي بل قاضي خپل نائب او خليفه وټاکي، ځکه چې د باچا (اميرُ المؤمنين) له طرفه هغه صرف قاضي ټاکل سوی دی او هغه ته د بل قاضي د ټاکلو اختيار نه دی ورکول سوی، نو ځکه هغه ته د بې اختياره کار د نافذولو اختيار نسته. ها! که چيري باچا او حاکم هغه ته د نائب ټاکلو اختيار هم ورکړی وي. نو بيا د هغه لپاره بل قاضي خپل نائب ټاکل جائز دي؛ لکه څرنګه چې وکيل ته پر خپل ځای د بل وکيل ټاکلو اختيار نسته لېکن که چيري مؤکل هغه ته د دې اختيار ورکړی وي نو بيا د هغه لپاره بل څوک وکيل ټاکل جائز دي، بالکل همدا حکم د دغه مسئلې هم دی.

د دې په خلاف که باچا (امير) يو امام د جمعې پر امامت ټاکلی وي، نو د هغه لپاره خپل نائب او خليفه ټاکل جائز دي که څه هم باچا هغه ته د نائب ټاکلو (استخلاف) اجازت نه وي ورکړی؛ ځکه چې د جمعې د لمانځه وخت محدود او لږ وي (ځکه محض د مازیګر د وخت په داخلېدلو سره سمدستي هغه ختميږي)، نو اوس که چيري امام ته يو عذر پېښ سي او هغه د نائب ټاکلو لپاره د باچا د اجازت ا حکم طلب وکړي نو کېدای چې په دې دوران کي به جمعه فوت سي، حال دا چې هغه د جمعې لمانځه پر امامت ټاکل سوی دی، نو ځکه د باچا له طرفه د جمعې د لمانځه امام ټاکل به دلالة

استخلاف (نائب ټاکلو) اجازت هم شمارل کيږي، يعني باچا (امير) چي يو امام د جمعې د لمانځه اداء کولو لپاره وټاکي او د لمانځه اداء کولو اجازت ورکړي نو هغه به دلالتاً د دې خبرې اجات هم وي چې د عذر او ضرورت په وخت کي هغه امام خپل نائب وټاکي، نو ځکه بيا د باچا اجازت ته هيڅ ضرورت نسته.

او د قضاء (قضاوت) معامله د دې په خلاف ده، ځکه چي د قضاء هيڅ وخت متعين نه دی او د هغه د فوتېدلو خطره نسته، نو ځکه محض د قضاء اجازت به دلالتاً د استخلاف اجازت نه شمارل کيږي.

ولوقضى الثاني إلخ: د دې حاصل دا دی چي که قاضي د باچا له اجازت څخه بغير بل څوک خپل نائب وټاکي، او نائب د اصل قاضي په موجوديت کي يو فيصله وکړي يا د هغه په ناموجوديت کي يو فيصله وکړي خو کله چي هغه (اصل قاضي) ته د فيصلې خبر ورسيږي، هغه دا فيصله نافذ کړي، نو په دې دواړو صورتونو کي د نائب فيصله جائز ده (يعني هغه به نافذيږي)، لکه څرنګه چي يو وکيل د مؤکل له اجازت څخه بغير بل څوک خپل نائب وټاکي او هغه نائب د اصل وکيل په موجوديت کي يو کار وکړي يا د هغه په ناموجوديت کي يو کار وي او بيا اصل وکيل هغه نافذ کړي نو دا جائز دي، همداسي به په دې مسئله کي هم د نائب قاضي کار (فيصله) جائز وي؛ او د هغه د جائز کېدلو دليل دا دی چي د نائب د کار د جواز او نفاذ لپاره د اصل (اصل قاضي) رضا شرط ده. (يعني د نائب کار هغه وخت جائز کيږي او نافذيږي کله چي د نائب اصل هم په هغه کار راضي وي). او ښکاره خبره ده چي کله نائب د هغه په موجوديت کي يو کار وکړي يا د هغه په ناموجوديت کي يو کار وکړي خو بيا وروسته هغه د خپل نائب کار نافذ کړي، نو ښکاره ده چي د نائب په کار کي د اصل رايه او د هغه رضا موجوده سوه، او همدا خبره د جواز او نفاذ لپاره شرط ده، نو ځکه د هغه د موجودېدلو په وجه به د نائب کار صحيح او نافذ وي.

وإذا فوّض إلخ: د دې حاصل دا دی چي که باچا يو قاضي ته د ځان د نائب ټاکلو اختيار ورکړي (مثلا باچا قاضي ته داسي ووايي: "وَلِّ مَنْ شِئْتَ" يعني څوک چي ستا خوښه وي هغه د ځان نائب وټاکه!)، نو دغه قاضي ته دا اختيار حاصليږي چي بل قاضي د خپل ځان نائب وټاکي، ليکن دا قاضي چي کوم قاضي وټاکي، هغه به د باچا نائب وي، همدا وجه ده چي د دې قاضي (اول قاضي) لپاره دا جائز نه دي چي هغه معزوله کړي، ځکه چي په اصل کي د هغه تقرر (ټاکل کېدل) د باچا له طرفه سوي دي، نو ځکه د معزوله کولو اختيار به هم فقط باچا ته وي. ها! که چيري باچا قاضي ته د معزوله کولو اختيار هم ورکړی وي (مثلا داسي ورته ووايي: "وَاسْتَبْدِلْ مَنْ شِئْتَ" يعني څوک چي ستا خوښه وي د هغه په بدل

کې یې وټاکه!)، نو په دې صوورت کې اول قاضي ته د معزوله کولو اختیار هم سته او هغه بېله شکه ټاکل سوی قاضي برطرفه کولای سي.

او که چیري باچا یو قاضي ته د "قاضي القُضاة" منصب وسپاري، نو هغه ته په هر صورت کې دې ښېړ اختیار سته چې خپل ماتحت قاضیان معزوله کړي یا یې وټاکي؛ ځکه چې قاضي القضاة هماغه کس ته وایي چې هغه ته د قاضیانو د معزوله کولو او درولو هم پوره اجازت وي.

## که د یوه حاکم او قاضي فیصله د قاضي عدالت (محکمې) ته پېش کړی سي نو قاضي به څه حکم کوي؟

قَالَ: وَإِذَا رُفِعَ إِلَى الْقَاضِيْ حُكْمُ حَاكِمٍ فرمایي: او کله چې قاضي ته د یو حاکم فیصله پېش کړی سي أَمْضَاهُ نو قاضي دې هغه فیصله نافذ کړي إِلَّا أَنْ يُخَالِفَ الْكِتَابَ أَوِ السُّنَّةَ أَوِ الْإِجْمَاعَ مګر دا چې هغه فیصله د کتاب یا سنت یا اجماع خلاف وي بِأَنْ يَكُوْنَ قَوْلًا لَا دَلِيْلَ عَلَيْهِ په دې توګه چې داسي قول وي چې پر هغه هیڅ دلیل موجود نه وي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ: وَمَا اخْتَلَفَ فِيْهِ الْفُقَهَاءُ او په جامع صغیر کي [ذکر سوي] دي؟ چې په کومه مسئله کي د فقهاوُ اختلاف وي فَقَضَى بِهِ الْقَاضِيْ بیا یو قاضي په هغه کي یو فیصله وکړي ثُمَّ جَاءَ قَاضٍ آخَرُ يَرَى غَيْرَ ذٰلِكَ بیا بل [دویم] قاضي راسي چې د هغه رایه د دې په خلاف وي [یعني هغه فیصله د دویم قاضي د رایې سره خلاف او ټکر وي] أَمْضَاهُ نو هم دې دا [دویم] قاضي هغه نافذ کړي وَالْأَصْلُ أَنَّ الْقَضَاءَ مَتٰى لَاقٰى فَصْلًا مُجْتَهَدًا فِيْهِ او قاعدهٔ کلیه دا ده چې کله د مختلف فیه صورت سره د قضاء حکم یو ځای سي [یعني کله چې په مجتهد فیه مسئله کي قاضي فیصله صادره کړي] يُنْفَذُ وَلَا يَرُدُّهُ غَيْرُهُ نو هغه به نافذیږي او بل [دویم] قاضي هغه نه سي ردولای لِأَنَّ اجْتِهَادَ الثَّانِيْ كَاجْتِهَادِ الْأَوَّلِ ځکه چې د دویم قاضي اجتهاد د اول قاضي د اجتهاد په څېر دی وَقَدْ تَرَجَّحَ الْأَوَّلُ بِاتِّصَالِ الْقَضَاءِ بِهِ او [دلته] د اول اجتهاد سره د قضاء متصل کېدلو په وجه هغه راجح ګرځېدلی دی فَلَا يُنْقَضُ بِمَا هُوَ دُوْنَهُ نو ځکه هغه به په داسي اجتهاد سره نه ماتول کیږي کوم چې له هغه څخه کم [د کمي درجې والا] دی.

**اللغات**: ﴿رُفِعَ﴾ د فتح د باب ماضي مجهوله ده: پورته کول، پورته کېدل، د قاضي په محکمه کي یو مسئله او فیصله پېش کېدل. ﴿أَمضَاه﴾ د افعال د باب ماضي ده: نافذول، جاري کول. ﴿لاقٰى﴾ د

مفاعلې د باب ماضي ده: ورسره يوځاى كېدل. ﴿مجتهد فيه﴾ په كومه مسئله كي چي د فقهاؤ اختلاف وي او د دواړو طرفونو سره شرعي دلائل موجود وي او دا مسئله د قرآن، حديث او اجماع په خلاف نه وي، نو دې ته مجتهد فيه مسئله وايي. لكه څرنګه چي په را روان عبارت كي به صاحب د هدايې هم د مجتهد فيه مسئلې تعريف ذكر كړي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دى كه د يو مسئلې په باره كي يو حاكم او قاضي فيصله وكړي او بيا هغه فيصله د بل قاضي په عدالت كي پېش كړى سي (چي دا فيصله څنګه ده؟). يا له دې بل قاضي څخه دا غوښتنه وسي چي د هغه حاكم او قاضي پر فيصلې نظر ثاني وكړي. نو په دې صورت كي حكم دا دى چي كه چيري د حاكم فيصله د كتاب، سنت او اجماع خلاف نه وي نو قاضي ته پكار دي چي د هغه حاكم او قاضي فيصله نافذ كړي او په هغه كي دي خپله رايه نه شاملوي. او كه چيري د حاكم فيصله د قرآن، حديث او اجماع خلاف وي، نو بيا دي قاضي هغه نه نافذوي.

صاحب د كفايې او نورو د هغه د مثالونو په لړ كي ليكلي دي چي د قرآن د مخالف كېدلو مثال دا دى ①... چي يو حاكم مثلاً د داسي پسه د حلال والي فيصله وكړي چي هغه له بسم الله څخه بغير ذبح كړى سوى وي (چي هغه ته متروكُ التسمية عامداً وايي). نو ښكاره خبره دا چي دا فيصله د قرآن كريم د دې آيت ﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ﴾ خلاف ده. نو ځكه دا فيصله به نه نافذيږي.
②... د حديث د مخالف كېدلو مثال دا دى چي مثلاً يو خاوند خپلي ښځي ته درې طلاقه وركړي (چي هغه ته مطلقۀ ثلاثه وايي). نو د داسي ښځي سره تر هغه وخته د خاوند نكاح روا نه ده تر څو چي دويم خاوند د هغې سره نكاح او وطي نه وكړي؛ ځكه چي د دې حديث "لَا، حَتّٰى تَذُوْقِيْ مِنْ عُسَيْلَتِهٖ وَيَذُوْقَ مِنْ عُسَيْلَتِكِ" په وجه د دويم خاوند وطي كول شرط دي. لېكن كه يو حاكم او قاضي محض په نكاح سره مطلقۀ ثلاثه د اول خاوند لپاره حلاله وګرځوي، نو د حديث د مخالف كېدلو په وجه به د هغه فيصله نه نافذيږي. ③... د اجماع د مخالف كېدلو مثال دا دى چي د "نكاح متعه" پر حرمت د امت اجماع سوې ده. لېكن كه قاضي او حاكم د دې نكاح د جواز فيصله وكړي، نو د هغه فيصله به نه نافذيږي؛ ځكه چي دا د اجماع مخالف ده.

بأن يكون قول بلا دليل إلخ: د دې مطلب دا دى چي څرنګه د قرآن، سنت او اجماع سره د حاكم د فيصلې موافق كېدل ضروري دي، همداسي دا هم ضروري دي چي هغه به داسي فيصله نه وي چي هيڅ سند او دليل يې نه وي. مثلاً پر يو سړي د بل چا (مثلاً د خالد) قرض باندي وي. لېكن قرضخواه (خالد) له ډېرو كلونو څخه د هغه قرض مطالبه نه وي كړې. او بيا حاكم د مطالبه نه كولو په وجه مقروض له قرض څخه بري كړي، نو ښكاره خبره ده چي دا فيصله بلا دليله قول دى. نو ځكه داسي فيصله به هم قاضي نه نافذوي. (احسن الهدايه)

**وفي الجامع الصغير إلخ:** فرمايي چي په جامع صغير کي پورتني خبره (يعني د "وإذا رفع إلى القاضي.." خبره) داسي ذکر سوې ده چي که په يو مسئله کي د فقهاؤ اختلاف وي او بيا يو قاضي په خپل اجتهاد سره په هغه مسئله کي يو فيصله وکړي، بيا د هغه پر ځاى بل قاضي راسي. نو دا دويم قاضي دي هم د هغه مخکني قاضي فيصله نافذ کړي که څه هم هغه فيصله د ده د رايي سره ټکر وي، لېکن شرط دا دی چي د قرآن، سنت او اجماع به موافق وي. (احسن الهدايه)

**والأصل:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د مخکني قاضي د فيصلې نافذېدلو او د هغه د نه رد کېدلو په سلسله کي قاعدهٔ کليه دا ده چي کله په يو مختلف فيه (مجتهد فيه) مسئله کي د يو قاضي فيصله صادره سي نو هغه فيصله به نافذيږي او بل قاضي هغه نهٔ سي ردولای؛ ځکه په مختلف فيه مسئله کي چي کله يو قاضي فيصله کوي، نو هغه يې په خپل اجتهاد سره کوي، او ښکاره خبره ده چي د هغه فيصلې ردونکي قاضي به هم خپل اجتهاد کړی وي، او د يوه قاضي اجتهاد د بل قاضي د اجتهاد په څېر دی، او د دوو کسانو اجتهاد برابر وي؛ ځکه چي له دواړو څخه په هر يوه کي د خطاء احتمال سته، لېکن کله چي د يوه اجتهاد لپاره د ترجيح وجه حاصله سي نو هغه راجح کيږي، او څرنګه چي په دې مسئله کي د مخکني (اول) قاضي د اجتهاد سره د ترجيح وجه لاحقه سوې ده يعني د هغه اجتهاد سره قضاء متصله ده، نو ځکه د همدې مخکني قاضي اجتهاد او فيصله به نافذ او راجح وي او دويم قاضي ته به د هغه د ردولو اختيار نه وي.

## د پورتنی مسئلې بل صورت

وَلَوْقَضٰى فِي الْمُجْتَهَدِ فِيهِ مُخَالِفًا لِرَأْيِهِ نَاسِيًا لِمَذْهَبِهِ او که قاضي په يو مختلف فيه مسئله کي داسي فيصله وکړي چي [په هغه فيصله کي قاضي] د خپل رايي مخالفت کونکي وي او د خپل مذهب هېرونکي وي [يعني که قاضي په يوه مجتهد فيه مسئله کي په هېره د خپل مذهب او رايي په خلاف فيصله وکړي] نَفَذَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه فيصله نافذيږي [يعني هغه به نافذول کيږي] وَإِنْ كَانَ عَامِدًا او که چيري هغه قصداً [داسي] کونکي وي فَفِيهِ رِوَايَتَانِ نو په دې که دوه روايتونه دي وَوَجْهُ النَّفَاذِ أَنَّهُ لَيْسَ بِخَطَإٍ بِيَقِيْنٍ او د نافذېدلو دليل دا دی چي دا فيصله په يقيني توګه غلطه نه ده وَعِنْدَهُمَا[*] لَا يَنْفُذُ فِي الْوَجْهَيْنِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دواړو صورتونو

---

[*] القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما هو ظاهر من داب المصنف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۳۷۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۱۵]

کي نه نافذيږي لِأَنَّهُ قَضٰى بِمَا هُوَ خَطَأٌ عِنْدَهُ ځکه چي [دلته] قاضي د داسي شي فيصله کړې ده کوم چي د هغه په نيز غلط دی وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى او پر همدې فتوىٰ ده ثُمَّ الْمُجْتَهَدُ فِيهِ أَنْ لَا يَكُونَ مُخَالِفًا لِمَا ذَكَرْنَا بيا مجتهد فيه مسئله دا ده چي د هغه څه مخالف نه وي کوم چي موږ ذکر کړه [يعني قرآن، حديث او سنت] وَالْمُرَادُ بِالسُّنَّةِ الْمَشْهُورَةِ مِنْهَا او له سنت څخه مراد هغه سنت دی کوم چي مشهور وي وَفِيمَا اجْتَمَعَ عَلَيْهِ الْجُمْهُورُ لَا يُعْتَبَرُ مُخَالَفَةُ الْبَعْضِ او پر کوم امر چي جمهورو اتفاق کړی وي په هغه کي د بعضو مخالفت معتبر نه دی وَذٰلِكَ خِلَافٌ وَلَيْسَ بِاخْتِلَافٍ او هغه [د بعضو مخالفت] خلاف دی، اختلاف نه دی وَالْمُعْتَبَرُ الِاخْتِلَافُ فِي الصَّدْرِ الْأَوَّلِ او معتبر د صدر اول اختلاف دی.

**اللغات**: ﴿ناسيًا﴾ د سمع د باب فاعل دی: هېرونکی، په هېره کار کونکی، ﴿عامدًا﴾ د ضرب د باب فاعل دی: قصداً کونکی، په قصده کونکی، ﴿الصدر الأول﴾ د شروع زمانه، اول قرن، يعني د صحابه او تابعينو زمانه.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که په يو مختلف فيه مسئله کي قاضي په هېره خپل د رايي او مذهب په خلاف فتوىٰ ورکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د دې قاضي دا فتوىٰ او فيصله نه نافذيږي، او که چيري يو قاضي قصداً د خپل رايي او مذهب په خلاف فتوىٰ ورکړي، نو په دې باره کي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه دي: ① د اول روايت مطابق په دې صورت کي هم د هغه فتوىٰ او فيصله نافذيږي، ② او د دويم روايت مطابق نه نافذيږي. د اول روايت (يعني د نافذېدونکي روايت) دليل دا دی چي قاضي چي کومه فتوىٰ او فيصله خپل د مذهب خلاف ورکړې ده هغه په يقيني توګه غلطه نه ده؛ ځکه چي په هغه کي د صحت او خطاء دواړو احتمال سته، او کله چي د دواړو احتمال پکښي سته نو هغه مجتهد فيه مسئله سوه، او په مجتهد فيه مسئله کي د قاضي فصله نافذ او معتبر وي، برابره ده هغه د قاضي د رايي موافق وي او که مخالف، نو ځکه په دې صورت کي به هم د مذکوره قاضي فيصله او فتوىٰ معتبره وي.

لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په دې مسئله کي مطلق د قاضي فيصله نه نافذيږي، برابره ده هغه فيصله يې په هېره کړې وي او که قصداً، په دواړو صورتونو کي به د قاضي فيصله نه نافذيږي؛ ځکه چي قاضي د هغه شي فيصله کړې ده کوم چي د ده په ګومان کي غلط دی، او د انسان په حق کي د هغه د ګومان مطابق فيصله کيږي، لهذا څرنګه چي د قاضي په ګومان سره دا فيصله غلطه ده او

غلطه فیصله نه نافذیږي، نو ځکه د قاضي دا فیصله به نه نافذیږي. برابره ده هغه قصداً داسي کړي وي او که خطاءً، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله پر قول فتویٰ هم ده.

ثم المجتهد فیه إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي، چي مجتهد فیه هغه مسئلې ته وایي کوم چي د کتاب الله، سنت رسول او د اجماع امت مخالفه نه وي، او له سنت څخه دلته "سنت مشهوره" مراد دی، او سنت مشهوره هغه سنت (حدیث) دی کوم چي په صحابه وو او تابعینو کي مشهور او معروف وي او په همدې شهرت او صحیح سند سره تر موږ پوري را رسېدلی وي.

او په کومه مسئله کي چي د جمهورو فقهاؤ او علماؤ اتفاق وي او د بعضي حضراتو اختلاف وي، نو د دې بعضي حضراتو اختلاف د جمهورو پر اتفاق هیڅ اثر نه کوي او د اتفاق مخته د بعضو اختلاف هیڅ ارزښت او حیثیت نه لري؛ ځکه چي د بعضي حضراتو په حقیقت کي اختلاف نه وي بلکي خلاف وي، او خلاف لره اعتبار نسته بلکي اختلاف معتبر دی، او په اختلاف کي هم داولي ابتدائي زماني اختلاف معتبر دی (ځکه چي وروسته خو هوس غالب سو).

ښکاره دي وي چي په خلاف او اختلاف کي په څو وجهو سره فرق دی: ① اول فرق یې دا دی چي د اختلاف بنیاد پر دلیل وي او د خلاف بنیاد پر تعصب او عناد وي، ② دویم فرق یې دا دی چي په اختلاف کي طریقه که څه هم مختلفه وي لېکن مقصد متحد وي، لېکن په خلاف کي طریقه او مقصد دواړه مختلف وي. (أحسن الهدایه)

**یادونه**: صاحب د اثمارُ الهدایې (مولانا ثمیر الدین دیوبندي) وایي زما ناقصه رایه دا ده چي که چیري پر بل مذهب فتویٰ ورکولو ته سخته مجبوري وي او د هغه احادیث هم موجود وي، نو فتویٰ ورکول هم جائز دي او هغه به نافذیږي هم. مثلاً د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز بغیر له ولي څخه د ښځي نکاح جائز نه ده، لېکن په اوسني وخت کي (په بعضي هیوداو کي) په زرهاوو ښځي په خپله خوښه بغیر له ولي څخه نکاح ګاني کوي، نو ځکه په دې صورت کي که د حنفیت پر مذهب فتویٰ ورکول سي نو د سخت ضرورت په وجه به نکاح جائز کیږي، همداسي زموږ په مذهب کي هم د دې بعضي مثالونه سته. په آخر کي هغه وایي چي دا زما رایه ده. (اثمار الهدایه ج:۹، ص:۱۶۶)

## د قاضي فیصله په ظاهر او باطن دواړو کي نافذیږي

قَالَ: وَكُلُّ شَيْءٍ قَضَى بِهِ الْقَاضِي فِي الظَّاهِرِ بِتَحْرِيمِهِ فرمایي: او هر هغه شی چي قاضي په ظاهر کي د هغه د حرام کېدلو فیصله وکړي فَهُوَ فِي الْبَاطِنِ كَذَلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز هغه په باطن کي هم داسي [حرام] دی [یعني په هغه کي د قاضي فیصله باطناً هم نافذیږي] وَكَذَا إِذَا قَضَى

بِالْحَلَالِ او همداسي كله چي قاضي د يو شي د حلال كېدلو فيصله وكړي وَهٰذَا إِذَا كَانَتِ الدَّعْوٰى بِسَبَبٍ مُعَيَّنٍ او دا حكم په هغه صورت كي دى كله چي دعوىٰ په يو مُعيّن سبب سره وي ايعني دعوىٰ په املاكِ مُقيّده وو كي وي! وَهِيَ مَسْأَلَةُ قَضَاءِ الْقَاضِيْ فِي الْعُقُوْدِ وَالْفُسُوْخِ بِشَهَادَةِ الزُّوْرِ او دا په عقدونو او فسخو كي په دروغجنه ګواهي سره د قاضي د فيصلې كولو مسئله ده وَقَدْ مَرَّتْ فِي النِّكَاحِ او په كتاب النكاح كي دا مسئله تېره سوې ده.

**اللغات**: ﴿تحريم﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: حرامول. ﴿إحلال﴾ د افعال د باب مصدر دى: حلالول، حلال ګرځول. ﴿زُور﴾ باطل، دراغ (د دروغو ګواهي، دروغجنه ګواهي).

**تشريح**: د عبارت له تشريح څخه مخكي د تمهيد او معلومات په توګه په دوو خبرو ځان پوه كړئ!:

(۱)... اوله خبره دا چي املاك (ملكيتونه) پر دوه قسمه دي: ① أَمْلَاكِ مُرْسَلَه. ② أَمْلَاكِ مُقَيَّدَه.

①... املاك مرسله هغه املاك (ملكيتونو) ته وايي چي په هغوى كي د ملكيت سبب ذكر نه سي، مثلاً يو څوک د قاضي مخته مطلق دعوىٰ وكړي چي دا زما شى دى، زه يې مالک يم، لېكن دا ذكر نه كړي چي په كوم سبب سره يې زه مالک يم يعني دا نهووايي چي ما رانيولى دى يا ما ته په ميراث كي پاته سوى دى يا ما ته يو چا په تحفه كي راكړى دى او داسي نور، نو دې ته "ملک مرسل" (ملک مطلق) وايي. او بل مثال يې دا دى چي يو سړى دعوىٰ وكړي چي دا زما ښځه ده، لېكن دا خبره نه وكړي څنګه زما ښځه ده او كله زما په نكاح سوه؟، نو څرنګه چي هغه د مالک كېدلو وجه ذكر نه كړه بلكي مطلق يې پرېښووله، نو دې ته "ملک مرسل" وايي چي جمع يې "املاک مرسله" راځي.

②... او املاک مقيده هغه املاک ته وايي چي په هغوى كي د ملكيت سبب ذكر سي، مثلاً يو سړى دعوىٰ وكړي چي دا مينځه ما رانيولې ده يا مثلاً ما ته په ميراث كي پاته سوې ده نو ځكه د دې مالک زه يم، نو دې ته "ملک مقيد" وايي.

(۲)... دويمه خبره دا ده چي نفاذ (نافذېدل) پر دوه قسمه دي: ① نفاذ ظاهري. ② نفاذ باطني.

①... نفاذ ظاهري دې ته وايي چي حكم او فيصله فيما بين الناس (د خلكو په ظاهر كي) نافذ كړى سي. ② او نفاذ باطني فيمابيّنه وبين الله (عند الله) نافذولو ته وايي، مثلاً زيد دعوىٰ وكړي چي فاطمه زما ښځه ده او ما په فلانكي تاريخ نكاح ورسره كړې ده او پر دې ګواهي هم پېش كړي، لهذا قاضي فيصله وكړي چي فاطمه د زيد ښځه ده، نو د هغه فيصله ظاهراً هم نافذېږي او باطناً هم، د ظاهراً

نافذېدلو مطلب دا دی چې ښځه دې خپل ځان زيد ته وسپاري او زيد دې د هغې نفقه اداء کوي، او د باطناً نافذېدلو مطلب دا دی چې عندالله فاطمه د خالد لپاره حلاله سوه (يعني اوس د هغې سره د خالد وطي کول روا سو) او د فاطمې لپاره دا خبره حلاله سوه چې خالد ته پر خپل ځان قدرت ورکړي.

**حکم**: که په املاک مرسله کي قاضي د درواغو پر گواهي فيصله وکړي نو قاضي دا فيصله بالاجماع باطناً نه نافذيږي، لېکن ظاهراً نافذيږي، مثلاً يو سړی (زيد) د قاضي مخ ته دعوىٰ وکړي چي دا زما مينځه ده لېکن د ملکيت سبب ذکر نه کړي، بيا مدعي (زيد) دوه گواهان پېش کړي (چې هغه په حقيقت کي درواغجن گواهان وي)، او قاضي د گواهانو د گواهي پر بناء د مينځي فيصله وکړي، نو دا فيصله فقط ظاهراً نافذيږي، يعني مدعي (زيد) د هغې مالک کيږي او پر هغه نفقه واجبيږي او پر مينځي د هغه خدمت کول واجبيږي، لېکن دا فيصلة باطناً نه نافذيږي يعني فيما بينهما وبين الله (عندالله) د مدعي لپاره د دې مينځي سره وطي کول نه حلاليږي او مينځي ته دا حلال نه دي چي هغه ته پر خپل ځان قدرت ورکړي.

او که په املاک مقيده کي قاضي د درواغو پر گواهي فيصله وکړي، نو هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز ظاهراً او باطناً دواړه ډوله نافذيږي، مثال به يې لاندي ذکر سي.

**صورت د مسئلې**: دا دی چي هر هغه شی کوم چي له املاک مقيده وو څخه وي (يعني مدعي يې د ملکيت سبب ذکر کړي) او قاضي په ظاهر کي د هغه د حلال کېدلو يا حرامېدلو فيصله او فتوىٰ جاري کړي، نو دا فيصله باطناً هم نافذيږي، يعني د هغه شي د ظاهر چي کوم حکم وي هغه به يې د باطن هم وي، نو که هغه د قاضي له طرفه په ظاهر کي (فيما بين الناس) حلال وگرځول سي نو په باطن کي (عند الله) به هم حلال وي، او که په ظاهر کي حرام وگرځول سي نو په باطن کي به هم حرام دي، دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی. (همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اول قول دی)

مثال يې دا دی چي که ښځه پر خاوند دا دعوىٰ وکړي چي هغه ما ته دري طلاقه راکړي دي او پر خپله دعوىٰ درواغجن گواهان پېش کړي، بيا قاضي د دواړو په مينځ کي د تفريق فيصله وکړي او ښځه له عدت تېرېدلو څخه وروسته د دويم خاوند سره نکاح وکړي، بيا قاضي ته د گواهانو کاذب والي معلوم سي (چي هغوی خو درواغجن وو)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د قاضي دا فيصله ظاهراً او باطناً دواړه ډوله نافذيږي، يعني د اول خاوند لپاره د دې ښځي سره وطي کول حراميږي او پر هغه د دې نفقه نه واجبيږي، او دويم خاوند لپاره دا ښځه ظاهراً او باطناً دواړه ډوله حلاليږي.

او که چیري یو شی له املاک مرسله وو څخه وي (یعني مدعي یې د ملکیت سبب ذکر نه کړي او ګواهې هم درواغجنه وي)، نو په هغه کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د قاضي فیصله ظاهراً نافذیږي او باطناً نه نافذیږي، لېکن د امام محمد او امام ابو یوسف (فی القول الآخر) او د ائمه ثلاثه وو رَحِمَهُمُ الله په نېز په املاک مرسله او املاک مقیده دواړو کي د قاضي فیصله فقط ظاهراً نافذیږي، باطناً نه نافذیږي.

وهی مسألة إلخ: فرمایي چي دغه مسئلې ته د "قضاء القاضی فی العقود والفسوخ بشهادة الزور" عنوان ورکول سوی دی (یعني د دراغجني ګواهۍ پر بنیاد په عقدونو او فسوخو کي د قاضي فیصله)، خلاصه دا چي د قاضي داسي فیصله (په املاکِ مقیده وو کي) د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په اول قول کي ظاهراً او باطناً دواړه ډوله نافذیږي، لېکن د امام محمد، امام ابو یوسف (فی القول الآخر) او د امام مالک، امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمُ الله په نېز ظاهراً خو نافذیږي، لېکن باطناً نه نافذیږي. د دې پوره تفصیل په کتاب النکاح کي ذکر سوی دی. (او راجح قول د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دی [القول الراجح ج: ۲، ص: ۱۱۶])

## د غائب سړي په باره کي د فیصله کولو حکم

قَالَ: وَلَا يَقْضِي الْقَاضِيْ عَلىٰ غَائِبٍ إِلَّا أَنْ يَحْضُرَ مَنْ يَقُوْمُ مَقَامَهُ فرمایي: او قاضي به د غائب کس په باره کي فیصله نه کوي مګر دا چي د هغه قائم مقام [نائب] حاضر وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجُوْزُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چي [د غائب کس په باره کي فیصله کول] جائز دي لِوُجُوْدِ الْحُجَّةِ وَهِيَ الْبَيِّنَةُ ځکه چي حجت موجود دی او هغه بیّنه ده فَظَهَرَ الْحَقُّ نو ځکه حق ښکاره سو وَلَنَا: أَنَّ الْعَمَلَ بِالشَّهَادَةِ لِقَطْعِ الْمُنَازَعَةِ او زموږ دلیل دا دی چي پر ګواهۍ [بیّنه] عمل کول د جنګ ختمولو لپاره وي وَلَا مُنَازَعَةَ دُوْنَ الْإِنْكَارِ او له انکار څخه بغیر جنګ نه پیښیږي وَلَمْ يُوْجَدْ او [دلته] انکار موجود نه سو وَلِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الْإِقْرَارَ وَالْإِنْكَارَ مِنَ الْخَصْمِ او ځکه چي د مدعیٰ علیه له طرفه د انکار او اقرار دواړو احتمال سته فَيَشْتَبِهُ وَجْهُ الْقَضَاءِ نو ځکه د قضاء وجه مشتبه سوه لِأَنَّ أَحْكَامَهُمَا مُخْتَلِفَةٌ ځکه چي د دواړو احکام مختلف دي.

**اللغات**: «قطع» د فتح د باب مصدر دی: غوڅول، ختمول. «منازعة» د مفاعلې د باب مصدر دی: جنګ او جنجال کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که چیري مدعیٰ علیه د قاضي په مجلس کي موجود نه وي نو د قاضي لپاره د هغه په باره کي فیصله کول زموږ په نېز جائز نه دي، برابره ده هغه فیصله د مدعیٰ علیه په حق کي وي یا د هغه په خلاف وي، ها! که چیري مدعیٰ علیه موجود وي یا د هغه نائب موجود وي، نو بیا د قاضي لپاره فیصله کول جائز دي.

د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي که مدعیٰ علیه موجود وي او که نه وي، په دواړو صورتونو کي د قاضي لپاره د هغه په باره کي فیصله کول جائز دي.

**د امام شافعي دليل**: د "قضاء علی الغائب" پر جواز د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي د دې حدیث "البَيِّنَةُ عَلَى المُدَّعِيْ وَالْيَمِيْنُ عَلىٰ مَنْ أَنْكَرَ" پر بناء پر مدعي فقط بیّنه پېشول لازم دي، لهذا کله چي مدعي بیّنه پېش کړي نو د قاضي په نېز به د هغه حق ثابتیږي، او تر حق ثابتېدلو وروسته د قاضي لپاره فیصله کول واجب دي، برابره ده مدعیٰ علیه حاضر وي او که غائب وي، او که قاضي داسي نه وکړي نو پر هغه به د "مَطْل" تهمت لازم سي (یعني دا تهمت به پر لازم سي چي هغه په فیصله کي ټال متول او بې ځایه تأخیر کوي، لهذا د هغه نیت سم نه ښکاري بلکي طرفداري کوي او داسي نور)، نو ځکه قاضي به له دغه تهمت څخه د ځان ساتلو لپاره د بیّنه او حق تر ثابتېدلو وروسته سمدستي د حقدار کس لپاره فیصله کوي او د مدعیٰ علیه د حاضرېدلو انتظار به نه کوي.

**زموږ دليل**: د قضاء علی الغائب نه جائز کېدلو په هکله زموږ دوه دلیلونه دي: ①... د اول دلیل حاصل دا دی چي پر بیّنه (ګواهي) د جنګ او جنجال ختمولو لپاره عمل کیږي، او جنګ او جنجال (منازعه) هغه وخت کیږي کله چي د مدعیٰ علیه مخته قاضي یو فیصله وکړي او مدعیٰ علیه له هغه فیصلې څخه انکار وکړي (یعني مدعي هغه وخت بیّنه پېشوي کله چي مدعیٰ علیه د قاضي په حضور کي انکار وکړي او د قاضي فیصله نه مني)، او څرنګه چي د قضاء علی الغائب په صورت کي مدعیٰ علیه حاضر نه وي نو ځکه د هغه له طرفه به انکار هم موجود نه سي، او کله چي انکار موجود نه سو نو ښکاره خبره ده چي منازعه به هم نه وسي، او کله چي منازعه نسته نو بیا به د هغه ختمولو ته څه ضرورت وي؟.

او څرنګه چي دا ټوله شیان د مدعیٰ علیه په ناموجودیت کي د مدعي د بیّنې د قبلولو په وجه پیدا کیږي، نو ځکه موږ د مدعیٰ علیه په ناموجودیت (غائبوالي) کي بیّنه او ګواهي قبلول او د مدعیٰ علیه په باره کي فیصله کول ناجائز ګرځولي دي.

(۲)... د قضاء على الغائب نه جائز کېدلو په هکله زموږ دويم دليل دا دی چي د مدعی عليه د غائبېدلو په صورت کي چي څرنګه د هغه د انکار احتمال سته همداسي د هغه د اقرار احتمال هم سته، او د اقرار او انکار په وجه د قاضي فيصله بدلېږي رابدلېږي، نو ځکه تر څو چي په يقيني توګه د مدعیٰ عليه انکار يا اقرار معلوم نه سي تر هغه وخته به د قاضي د قضاء (فيصلې) جهت متعين نه وي او د قضاء جهت به مشتبه پاته وي، حال دا چي د قاضي د قضاء پوره واضح کېدل ضروري دي (يعني دا ضروري ده چي د قاضي په قضاء کي به هيڅ اشتباه نه وي). نو ځکه په دې حواله سره هم قضاء على الغائب جائز نه ده.

د مدعیٰ عليه په انکار او اقرار سره د قاضي د قضاء مختلف کېدلو مثال علامه عيني رَحِمَهُ الله داسي بيان کړی دی چي که قاضي د مدعیٰ عليه د انکار په صورت کي د بيّنه (ګواهی) پر بناء فيصله وکړي نو هغه فيصله له مدعیٰ عليه څخه بغير د نورو خلکو په حق کي هم نافذېږي او د مدعیٰ عليه د اقرار په وجه چي کومه فيصله وسي هغه فقط پر مدعیٰ عليه واقع کېږي. او بل مثال دا چي کله د بيّنه په وجه فيصله وسي نو په هغه کي وروسته مدعیٰ عليه پر خپل برائت (بري کېدلو) هم بيّنه او ګواهي پېشولای سي، لېکن کله چي د اقرار په وجه فيصله وسي نو تر هغه وروسته مدعیٰ عليه خپل پر برائت ګواهي نه سي پېشولای. (بنايه)

## له دعوې څخه تر انکار کولو وروسته د غائبېدونکي مدعیٰ عليه فيصله

وَلَوْ أَنْكَرَ ثُمَّ غَابَ او که چيري مدعیٰ عليه انکار وکړي [او] بيا غائب سي فَكَذٰلِكَ نو هم دغه حکم دی لِأَنَّ الشَّرْطَ قِيَامُ الْإِنْكَارِ وَقْتَ الْقَضَاءِ ځکه چي د قضاء [فيصله کولو] په وخت کي د انکار موجودېدل شرط دي وَفِيهِ خِلَافُ أَبِي يُوسُفَ او په دې کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَمَنْ يَقُومُ مَقَامَهُ او کوم کس چي د مدعیٰ عله قائم مقام [نائب] وي قَدْ يَكُونُ نَائِبًا بِإِنَابَتِهِ هغه کله د مدعیٰ عليه په نائب جوړولو سره قائم مقام کيږي [نائب کيږي] كَالْوَكِيلِ لکه وکيل أَوْ بِإِنَابَةِ الشَّرْعِ يا [هغه کله] د شريعت په نائب جوړولو سره [نائب کيږي] كَالْوَصِيِّ مِنْ جِهَةِ الْقَاضِي لکه د قاضي له طرفه [ټاکل سوی] وصي وَقَدْ يَكُونُ حُكْمًا او کله حکماً نائب کيږي بِأَنْ كَانَ مَا يَدَّعِي عَلَى الْغَائِبِ سَبَبًا لِمَا يَدَّعِيهِ عَلَى الْحَاضِرِ په دې توګه چي مدعي چي پر غائب د کوم شي دعوىٰ کوي دا

دعوىٰ د هغه شي سبب وي چي مدعي پر حاضر د هغه دعوىٰ کوي وَهٰذَا فِي غَيْرِ صُوَرَةٍ فِي الْكُتُبِ او دا په کتابو کي په بيخي ډېرو صورتونو کي ذکر سوي دي أَمَّا إِذَا كَانَ شَرْطًا لِحَقِّهِ لېکن که هغه د مدعي د حق ثابتېدلو شرط وي فَلَا مُعْتَبَرَ بِهِ فِي جَعْلِهِ خَصْمًا عَنِ الْغَائِبِ نو د غائب له طرفه د حاضر په نائب جوړولو کي به دغه شرط لره اعتبار نه وي وَقَدْ عُرِفَ تَمَامُهُ فِي الْجَامِعِ او دا ټوله کلام په جامع صغير کي معلوم سوی دی.

**اللغات**: ﴿إِنَابَة﴾ نائب جوړول، ﴿يدّعي﴾ د افتعال د باب مضارع ده: دعوىٰ کول (دعوه کول).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چيري "مدعىٰ عليه" د مدعي له دعوې څخه انکار وکړي (چي ستا پر ما هيڅ نسته)، او بيا قاضي د مدعىٰ عليه په باره کي تر اوسه يو فيصله نه وي کړې چي هغه غائب سي، نو په دې صورت کي هم حکم دا دی چي د قاضي لپاره د هغه په باره کي فيصله کول جائز نه دي، او که فيصله وکړي نو هغه به نه نافذيږي؛ ځکه چي د قضاء د جواز لپاره دا شرط دي چي د قضاء (فيصله کولو) تر وخته پوري به د مدعىٰ عليه انکار موجود وي يعني هغه به د قضاء تر وخته پوري پر خپل انکار قائم پاته وي ، لېکن دلته د مدعىٰ عليه د غائبېدلو په وجه د قضاء په وخت کي د هغه انکار موجود نه سو، لهذا کله چي انکار موجود نه سو نو د فقهي قاعدې "إِذَا فَاتَ الشَّرْطُ فَاتَ الْمَشْرُوْطُ" پر بناء د هغه په باره کي فيصله کول جائز پاته نه سو.

وفيه خلاف أبي يوسف إلخ: فرمايي چي په دې مسئله کي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله له جمهورو څخه جلا دی. د هغه په نېز تر انکار وروسته د مدعىٰ عليه د غائبېدلو په صورت کي د قاضي قضاء (فيصله کول) جائز دي.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي کله مدعىٰ عليه تر انکار کولو وروسته غائب سو او د قضاء په وخت کي هم غائب وو، نو د استصحابُ الحال په وجه به دا ويل کيږي (يعني د مدعىٰ عليه مخکنی انکار به دليل ګرځول کيږي او دا به ويل کيږي) چي هغه تر اوسه پر خپل انکار قائم پاته دی او د قضاء په وخت کي د هغه انکار موجود دی، لهذا کله چي د قاضي د فيصله کولو شرط يعني د قضاء تر وخته پر خپل انکار قائم پاتېدل موجود سو، نو ځکه د قاضي فيصله کول به هم جائز وي.

لېکن صاحب د عنايې او بنايې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د دليل دا جواب ورکړی دی چي استحصاب الحال دليل ګرځول او د هغه په ذريعه يو شی رفع کول (ختمول) خو ممکن او صحيح دي، لېکن د استصحابُ الحال په ذريعه د يو شي اثبات (ثابتول) ناممکن او ناصحيح دي، او څرنګه چي د

دې مسئلې تعلق د اثبات سره دی (ځکه د قاضي په فیصله سره پر "مدعیٰ علیه" مدعیٰ به شی ثابتیږي). نو ځکه دلته د استصحابُ الحال په ذریعه به د قضاء تر وخته پر انکار قائم پاتېدل نه ثابتیږي، او کله چې د قضاء تر وخته پر انکار قائم پاتېدل ثابت نه سو، نو د قاضي د قضاء شرط هم موجود نه سو، او کله چې د هغه شرط موجود نه سو، نو ځکه په دې صورت کې به د قاضي فیصله کول هم جائز نه وي.

ومن يقوم إلخ: مخکې چې (په متن کې) کوم دا خبره ذکر سوه چې که مدعیٰ علیه موجود نه وي او د هغه نائب موجود وي نو د هغه د نائب په موجودیت کې د قاضي لپاره فیصله کول جائز دي، په دې عبارت سره صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د هغه (من يقوم مقامه) تفصیل ذکر کوي فرمایي چې قائم مقام او نائب ځیني وخت په خپله د مدعیٰ علیه په ټاکلو سره جوړیږي، مثلاً مدعیٰ علیه یو څوک خپل وکیل وټاکي، او ځیني وخت د شریعت په ټاکلو سره یو څوک نائب او قائم مقام کیږي، مثلاً قاضي یو څوک د یو چا له طرفه وصي وټاکي نو دا نائب من جهة الشرع دی، او ځیني وخت یو څوک حکماً د یو چا نائب او قائم مقام کیږي، مثلاً مدعي چې پر غائب مدعیٰ علیه د کوم شي دعویٰ کوي دا د هغه شي سبب وي کوم چې مدعي پر حاضر (نائب) د هغه دعویٰ کوي، مثلاً خالد د قاضي په دربار کې پر حامد دعویٰ وکړه "چې دا کور زما دی کوم چې د حامد په قبضه کې دی، ما دا کور له زید څخه رانیولی دی او زید اوس غائب دی لېکن حامد په زوره (جبرا) زما پر دې کور قبضه کړې ده"، او حامد له دې خبرې څخه انکار کوی (چې دا د خالد کور نه دی بلکې زما کور دی)، لهذا مدعي یعني خالد بیّنه پېش کړه، نو د خالد دا بیّنه به قبلول کیږي او د خالد لپاره به د کور فیصله کیږي، نو دا فیصله چې څرنګه پر حامد (قابض) نافذیږي همداسې به پر غائب زید (بائع) هم نافذیږي، ځکه چې د مدعي (خالد) د دعوې سبب له زید څخه رانیول دي، یعني پر حامد د هغه د دعویٰ کولو سبب همدا دی چې هغه له زید څخه کور رانیولی دی، لهذا څوک چې پر دې کور قابض دی یعني حامد هغه به د غائب بائع حکماً نائب شمارل کیږي، او قاضي به د قابض په موجودیت کې د مدعي بیّنه قبلوي او د مدعي لپاره به د هغه کور فیصله کوي (په لنډه توګه د دې مثال داسې هم ویل کېدای سي چې مثلاً یو کور د زید او حامد دواړو دی، پر هغه کور یو چا د ملکیت دعویٰ وکړه چې دا زما کور دی، او د دعوې په وخت کې صرف زید د قاضي په دربار کې حاضر وو او حامد غائب وو، او قاضي د زید په خلاف فیصله وکړه چې دا کور د مدعي دی، نو دا فیصله به پر حامد غائب هم نافذیږي، ځکه چې اوس به زید حکماً د حامد نائب وي، او دوی دواړه به په دې فیصله کې سره شریک وي (الثمار الهدایه))، صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې دا حکماً نائب کېدل د کتابو په ډېرو صورتونو کې ذکر سوي دي (چې له هغه څخه موږ دلته دوه صورتونه ذکر کړه).

أما إذا كان إلخ: فرمايي پر غائب کس چي مدعي کومه دعوىٰ کړې وي که چيري هغه سبب نه وي بلکي پر حاضر کس د حق ثابتېدلو شرط وي. نو د غائب کس له طرفه د حاضر کس په حکماً نائب جوړولو کي به د دغه شرط اعتبار نه کيږي او حاضر به د غائب نائب نه شمارل کيږي؛ د دې مثال دا دی چي که زيد خپلي ښځي ته ووايي "که چيري خالد خپلي ښځي ته طلاق ورکړی نو ته هم پر ما طلاقه يې". بيا وروسته د زيد ښځي دعوىٰ وکړه چي "خالد خو خپلي ښځي ته طلاق ورکړی. لهذا پر ما هم طلاق واقع سو" او د زيد ښځي خپل پر دعوىٰ بينه (ګواهي) پېش کړه، نو دا بينه به نه قبلول کيږي يعني قاضي به د زيد پر ښځي د طلاق واقع کېدلو فيصله نه کوي؛ ځکه دلته چي ښځي پر غائب کس يعني پر خالد کومه دعوىٰ کړې ده (چي هغه خو خپلي ښځي ته طلاق ورکړی) دا دعوىٰ پر حاضر کس يعني د زيد پر ښځي د حق ثابتېدلو يعني د طلاق واقع کېدلو شرط دی. سبب نه دی. او اوس ذکر سوه چي پر غائب کس چي مدعي کومه دعوىٰ کړې وي که هغه پر حاضر کس د حق ثابتېدلو شرط وي، نو هغه لره اعتبار نسته. نو ځکه دلته به هم د دې شرط اعتبار نه کيږي او د زيد پر ښځي به طلاق نه واقع کيږي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د دې پوره تفصيل او وضاحت په جامع صغير کي ذکر سوی دی. د تفصيل شوقي حضرات دي جامع صغير مطالعه کړي.

## د يتيمانو مالونه په قرض ورکول

قَالَ: وَيُقْرِضُ الْقَاضِيْ أَمْوَالَ الْيَتَامٰى فرمايي: او قاضي دي د يتيمانو مالونه په قرض ورکړي وَيَكْتُبُ ذِكْرَ الْحَقِّ او د حق ذکر [خط] دي وليکي لِأَنَّ فِي الْإِقْرَاضِ مَصْلَحَتَهُمْ ځکه چي په قرض ورکولو کي د هغو مصلحت [ښېګڼه] ده لِبَقَاءِ الْأَمْوَالِ مَحْفُوْظَةً مَضْمُوْنَةً ځکه چي د هغو مالونه به محفوظ او [د مقروضه خلکو] پر ذمه واجب پاته سي وَالْقَاضِيْ يَقْدِرُ عَلَى الْاِسْتِخْرَاجِ او قاضي [له مقروض خلکو څخه د هغوی] پر واپس اخيستلو قدرت لري وَالْكِتَابَةُ لِتَحَفُّظِهِ او خط ليکل د يادښت لپاره دي [يعني د حق ذکر او خط به ځکه ليکي چي قاضي ته هغه په ياد وني] وَإِنْ أَقْرَضَ الْوَصِيُّ او که چيري وصي [د يتيم مال] په قرض ورکړي ضَمِنَ نو هغه به ضامن وي لِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى الْاِسْتِخْرَاجِ ځکه چي وصي پر واپس اخيستلو قدرت نه لري وَالْأَبُ بِمَنْزِلَةِ الْوَصِيِّ فِيْ أَصَحِّ الرِّوَايَتَيْنِ او په دوو روايتونو کي د اصح روايت مطابق پلار د وصي په درجه کي دی لِعَجْزِهِ عَنِ الْاِسْتِخْرَاجِ ځکه چي پلار [هم] له واپس اخيستلو څخه عاجز دی.

**اللغات:** ﴿يُقرض﴾ د افعال د باب مضارع ده: په قرض ورکول، په پور ورکول. ﴿مضمونة﴾ د سمع د باب مفعول دی: د کوم شي ضمان چي پر ذمه واجب وي (کوم شی چي د انسان پر غاړه لازم وي). ﴿تحفظ﴾ د تفعل د باب مصدر دی: ياد ساتل. يادښت (ياد دلښت). ﴿استخراج﴾ د استفعال د باب مصدر دی: را ايستل. مراد

ځني "واپس اخيستل" دي. ﴿وصي﴾ چا ته چي مړي وصيت کړی وي، هغه کس چي مړي ورته يو کار سپارلی وي. ﴿أصح﴾ د ضرب له بابه د اسم تفضيل صيغه ده: زيات صحيح.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي قاضي مصلحتاً د يتيمانو مال خلګو ته په قرض ورکولای سي؛ ځکه د ډېرو مصروفياتو په وجه د قاضي لپاره دا مشکل دي چي د هغه مالونو حفاظت وکړي، او په قرض ورکولو سره په آسانه توګه د هغوی حفاظت کېدای سي، او قاضي چي کومو خلګو ته د يتيمانو مالونه په قرض ورکړي، نو د هغو نومونه، پته (ادرس) او د قرض د مال اندازه دي نوټ او درج کړي او د ځان سره دي يې محفوظ کړي، او کله چي ضرورت سي نو له مقروضو خلګو څخه دي هغه واپس واخلي، او که له مقروضه خلګو څخه مالونه ضايع سوي وي نو د هغه ضمان (تاوان) دي ځني واخلي، او که چيري هغه خلک ټال متهول کوي نو قاضي دي هغو ته زور او قدرت ورښکاره کړي، ځکه چي قاضي پر واپس اخيستلو پوره قدرت لري، نو ځکه قاضي ته دا اختيار او اجازه سته چي د يتيمانو مالونه په قرض ورکړي، او د يادښت لپاره دي خط او تفصيل خامخا وليکي.

او له قاضي څخه بغير نورو خلګو ته د دې حق نسته، لهذا که يو وصي د يتيم مال په قرض وکړي، يعني که چيري يو سړی مړ سي او د مرګ په وخت کي هغه يو چا ته وصيت وکړي چي زما د يتيم بچي مال محفوظ ساته! (چي هغه ته وصي وايي)، نو هغه ته دا اختيار نسته چي د يتميم مال په قرض ورکړي؛ ځکه چي وصي د قرض له واپس اخيستلو څخه عاجز دی، ځکه د وصي سره د قاضي په څېر طاقت نسته، او نه وصي جبراً له مقروض څخه د قرض پر اخيستلو قدرت لري، او نه د نن سبا وصيان دومره امانتداره او ديندار دي چي په خپله ضمان اداء کړي، نو ځکه د وصي لپاره ښه خبره دا ده چي د يتيم مال په قرض نه ورکړي، او که چيري هغه په قرض ورکړي او بيا مقروض له قرض ورکولو څخه انکار وکړي، نو وصي به له خپل جېب څخه د هغه تاوان او ضمان ورکوي.

او د يتيم پلار هم د وصي په درجه کي دی، يعني که چيري د يو سړي د بچي سره مال وي مثلاً بچي ته له يو طرفه حاصل سوي وي، نو د پلار لپاره هم هغه په قرض ورکول غوره او مناسب نه دي؛ ځکه که چيري مقروض له قرض څخه انکار وکړي، نو پلار هم د وصي په څېر د هغه له واپس اخيستلو څخه عاجز دی او دا کار هغه ته مشکل او ستونزمن دی، نو ځکه د پلار لپاره هم د دې اختيار او اجازه نسته؛ او که چيري بيا هم داسي وکړي نو د انکار په صورت کي به له خپل جېب څخه ضمان اداء کوي، همدا اصح روايت دی، لېکن په غير اصح روايت کي پلار ته د دې اجازه ورکول سوې ده.



# بَابُ التَّحْكِيمِ

(دا) باب د حَکَم (دریمګړي) د ټاکلو (په بیان کې) دی

**تشریح**: حَکَم ته په پښتو کې دریمګړی، منصف او منځګړی (فیصله کونکي) وایي، یعني هغه بې طرفه منځګړی کوم چې د فیصله کولو لپاره وټاکل سي. (پښتو سیند)

د حَکَم او قاضي په مینځ کې فرق دا دی چې قاضي د باچا او امیر له طرفه ټاکل کیږي او د هغه فیصله پر هر چا نافذیږي، او حَکَم (دریمګړی) د مدعي او مدعیٰ علیه له طرفه ټاکل کیږي او د هغه فیصله فقط پر هغه دواړو نافذیږي، پر بل چا نه نافذیږي. او که چیري مدعي یا مدعیٰ علیه حَکَم (دریمګړی) ساقط کړي چې زه د هغه فیصله نه منم، نو بیا هغه فیصله نه سي کولای.

صاحب د عنایې رَحِمَهُ الله لیکلي دي چې تحکیم (دریمګړی جوړول) هم د قضاء له انواعو څخه یو نوع ده، او د تحکیم بیان ځکه د قضاء له بیان څخه وروسته ذکر سوی دی چې د حَکَم او دریمګړی (دړمان) درجه د قاضي له درجې څخه ډېره کمه ده، همدارنګه د هغه فیصله په حدودو او قصاص کې نه نافذیږي، لېکن د قاضي فیصله په حدودو او قصاص ټولو کې نافذیږي، همدارنګه نور فرقونه یې هم په مینځ کې سته، لهذا په دې حوالو سره د قاضي مقام او مرتبه د حَکَم له مرتبې څخه لوړه ده، نو په همدې وجه د قاضي احکام او مسائل مخکې ذکر سول، او اوس تر هغه وروسته د حَکَم (دریمګړي) احکام او مسائل ذکر کیږي.

د تحکیم جواز په کتاب، سنت او اجماع ټولو سره ثابت دی، او له هغوی څخه موږ دلته صرف په کتابُ الله کفایت کوو. په کتابُ الله کې ذکر سوي دي: ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوا حَكَمًا مِنْ أَهْلِهِ وَحَكَمًا مِنْ أَهْلِهَا﴾ [سورة النساء: ۳۵] (او که تاسو ته بېره وي چې هغوی په خپل اپس کې ضد او نفرت لري، نو تاسو یو حَکَم [دریمګړی] د خاوند له قریبانو څخه او یو حَکَم د ښځې له قریبانو څخه وټاکئ او واستوئ!)، دا آیت که څه هم د خاوند او ښځې په مینځ کې د حَکَم ټاکلو پر جواز دلالت کوي، لېکن کله چې د خاوند او ښځې په مینځ کې حَکَم ټاکل جائز دي نو په نورو معاملاتو کې به هم حَکَم ټاکل جائز وي.

## د تحکيم (دريمګړي ټاکلو) حکم او شرائط

وَإِذَا حَكَّمَ رَجُلَانِ رَجُلًا او کله چې دوخلک يو سړي خپل حَکَم [دريمګړی] جوړ کړي فَحَكَمَ بَيْنَهُمَا او هغه سړی د دوی دواړو په مينځ کې فيصله وکړي وَرَضِيَا بِحُكْمِهِ او دوی د هغه په فيصله راضي سي جَازَ نو دا جائز دي لِأَنَّ لَهُمَا وِلَايَةً عَلَى أَنْفُسِهِمَا ځکه چې دوی ته پر خپلو ځانو ولايت حاصل دی فَصَحَّ تَحْكِيمُهُمَا نو ځکه د دوی حَکَم جوړول [دريمګړی ټاکل] به هم صحيح وي وَيَنْفُذُ حُكْمُهُ عَلَيْهِمَا او د هغه حَکَم فيصله به پر دوی دواړو نافذيږي وَهٰذَا إِذَا كَانَ الْمُحَكَّمُ بِصِفَةِ الْحَاكِمِ او دا [حُکم] په هغه صورت کې دی کله چې حَکَم [دريمګړی] د حاکم [قاضي] په صفت سره وي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْقَاضِيْ فِيمَا بَيْنَهُمَا ځکه چې حَکَم د دوی دواړو په مينځ کې د قاضي په درجه کې دی فَيُشْتَرَطُ أَهْلِيَّةُ الْقَضَاءِ نو ځکه د قضاء اهليت [اهل کېدل] شرط دي وَلَا يَجُوزُ تَحْكِيمُ الْكَافِرِ وَالْعَبْدِ وَالذِّمِّيِّ وَالْمَحْدُودِ فِي الْقَذْفِ وَالْفَاسِقِ وَالصَّبِيِّ او حَکَم جوړول جائز نه دي دکافر، غلام، ذمي، محدود فی القذف، فاسق او کوچني لِانْعِدَامِ أَهْلِيَّةِ الْقَضَاءِ ځکه چې [په دې ټولو کې] د قضاء اهليت نسته اعْتِبَارًا بِأَهْلِيَّةِ الشَّهَادَةِ د شهادت پر اهليت په قياس کولو سره وَالْفَاسِقُ إِذَا حُكِّمَ او فاسق چې کله حَکَم [دريمګړی] جوړ کړی سي يَجِبُ أَنْ يَجُوزَ عِنْدَنَا نو زموږ په نيز جائز کېدل پکار دي كَمَا مَرَّ فِي الْمُوَلَّى لکه څرنګه چې د قاضي په مسئله کې [دابحث] تېر سو.

**اللغات**: ﴿حَكَّمَ﴾ د تفعيل د باب ماضي ده، حَكَّمَ يُحَكِّمُ تَحْكِيمًا: حَکَم جوړول، حَکَم ټاکل، يعني يو څوک دريمګړی (درېمان) ټاکل. ﴿ولاية﴾ د ضرب اسم مصدر دی: اختيار، مشري، ولي کېدل (مشر کېدل). ﴿مُحکَّم﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: کوم کس چې حَکَم ټاکل سوی وي، ﴿قذف﴾ د ضرب مصدر دی: پر يو چا په درواغو سره د زنا تهمت لګول. ﴿محدود في القذف﴾ هغه کس چې په درواغه پر يو چا د زنا تهمت ولګوي او بيا د هغه په وجه حد پر جاري کړی سي، ﴿انعدام﴾ د انفعال د باب مصدر دی: ختمېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د زيد او خالد په مينځ کې پر يوه معامله جنګ او جنجال وي، او بيا دوی په خپل اتفاق سره يو دريم کس مثلاً حامد خپل حَکَم (دريمګړی او فيصله کوونکی) جوړ

کړي او دا وعده سره وکړي چې خالد زموږ په مینځ کې کومه فیصله هم وکړي هغه موږ ته قبوله ده او موږ به یې منو. برابره ده هغه فیصله زموږ موافقه وي او که مخالفه؛ بیا حکَم (خالد) د دوی په مینځ کې فیصله وکړي، نو د هغه فیصله کول جائز هم دي او هغه به نافذیږي هم؛ ځکه چې مُحکمینو ته یعني حَکَم جوړونکو (زید او خالد) ته پر خپل ذات ولایت حاصل دی، نو ځکه د دوی لپاره به دریم کس حَکَم جوړول جائز وي، او کله چې حَکَم جوړول جائز دي نو ښکاره خبره ده چې د حَکَم فیصله به هم جائز او نافذ وي.

وهذا إلخ: فرمایي چې یو شوک حَکَم جوړول او د حَکَم فیصله نافذیدل صرف په هغه وخت کې جائز دي کله چې په هغه کې د حَکَم جوړیدلو (درپمان کیدلو) اهلیت او صلاحیت موجود وي، ځکه چې حَکَم د مُحکَمینو په مینځ کې د قاضي په درجه کې دی، لهذا څرنګه چې د قاضي لپاره د قضاء او شهادت (ګواهی) په اهلیت سره متصف کیدل شرط دي، همداسي د حَکَم لپاره هم په دې اوصافو سره متصف کیدل شرط او ضروري دي، کنې بیا هغه حَکَم جوړول صحیح نه دي.

ولایجوز إلخ: د دې حاصل دا دی چې د قضاء اهلیت د شهادت له اهلیت څخه مشتق او رااخیستل سوی دی، لهذا په کوم سړي کې چې د شهادت (ګواهي ورکولو) اهلیت نه وي په هغه کې به د قضاء اهلیت هم نه وي، او نا اهل کس حَکَم او قاضي جوړول جائز نه دي، نو ځکه کافر، غلام، ذمي، محدود في القذف، فاسق او کوچنی (صبي) حَکَم جوړول جائز نه دي؛ ځکه چې له دغو کسانو څخه په یوه کې هم د شهادت اهلیت نسته (یعني دا ټوله د ګواهي ورکولو اهل نه دي او د دوی ګواهي مقبوله نه ده).
لهذا کله چې په دوی کې د شهادت اهلیت نسته نو په لازمي توګه به په هغو کې د قضاء (قاضي کیدلو) اهلیت هم نه وي، او حَکَم هم د قاضي په درجه کې دی، نو ځکه په هغو کې به د حَکَم جوړیدلو اهلیت هم نه وي او هغوی به حَکَم جوړول جائز نه وي.

والفاسق إلخ: فرمایي چې فاسق کس حَکَم جوړول او هغه په خپل مینځ کې درېمګړی ټاکل خو جائز نه دي، لیکن که پر یو موقع هغه حَکَم جوړ کړی سي، نو زموږ په نیز جائز کیدل پکار دي، ځکه چې په "کتابُ أدبِ القاضي" کې دا خبره تېره سوه چې یو فاسق کس (عالم) قاضي جوړول مناسب نه دي. لیکن که بیا هم هغه قاضي جوړ کړی سي نو جائز دي، همداسي فاسق کس حَکَم جوړول هم غوره او مناسب نه دي. لیکن که جوړ کړی سي نو جائز کیدل پکار دي.

## له تحکيم څخه د رجوع کولو بيان

وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْمُحَكِّمَيْنِ أَنْ يَرْجِعَ او په هغه دواړو حَکَم جوړونکو کي هر يوه ته دا اختيار سته چي [له حَکَم جوړلو (تحکيم)] څخه رجوع وکړي مَا لَمْ يَحْكُمْ عَلَيْهِمَا تر هغه وخته پوري [هر يوه ته دا اختيار سته] تر څو چي حَکَم پر دوی يو فيصله نه وي کړې لِأَنَّهُ مُقَلَّدٌ مِنْ جِهَتِهِمَا ځکه چي هغه د دوی دواړو له طرفه حَکَم جوړ سوی دی [يعني هغه د دواړو په رضا سره بريمګړی ټاکل سوی دی] فَلَا يَحْكُمُ إِلَّا بِرِضَاهُمَا جَمِيعًا نو ځکه هغه به د دواړو له رضا څخه بغير فيصله نه سي کولای وَإِذَا حَكَمَ او کله چي حَکَم [دريمګړی] فيصله وکړي لَزِمَهُمَا نو هغه فيصله پر دوی دواړو لازميږي لِصُدُورِ حُكْمِهِ عَنْ وِلَايَةٍ عَلَيْهِمَا ځکه چي پر دوی دواړو د ولايت حاصليدلو په وجه د هغه له طرفه فيصله صادر سوې ده وَإِذَا رُفِعَ حُكْمُهُ إِلَى الْقَاضِي او کله چي د حَکَم [دريمګړي] فيصله قاضي ته پيش کړی سي فَوَافَقَ مَذْهَبَهُ او هغه فيصله د قاضي د مذهب موافقه وي أَمْضَاهُ نو قاضي به هغه نافذوي لِأَنَّهُ لَا فَائِدَةَ فِي نَقْضِهِ ثُمَّ فِي إِبْرَامِهِ عَلَى ذَلِكَ الْوَجْهِ ځکه چي د هغه فيصلې په ماتولو او بيا پر هغسي طريقه د هغې په مضبوطولو کي هيڅ فايده نسته [يعني کله چي فيصله د قاضي مذهب مطابقه وي نو بيا په دې کي هيڅ فايده نسته چي قاضي هغه ماته کړي او بيا په خپله هغسي فيصله صادره کړي] وَإِنْ خَالَفَهُ او که د حَکَم فيصله د قاضي د مذهب مخالفه وي أَبْطَلَهُ نو قاضي به هغه باطلوي لِأَنَّ حُكْمَهُ لَا يَلْزَمُهُ ځکه چي د حَکَم فيصله پر قاضي لازمه نه وي لِعَدَمِ التَّحْكِيمِ مِنْهُ ځکه چي د قاضي له طرفه هغه حَکَم نه دی جوړ سوی.

**اللغات:** ﴿مُحَكِّمَيْن﴾ د مُحَكِّمٌ تثنيه ده: حَکَم جوړونکی، حَکَم ټاکونکی، کوم څوک چي بل څوک د ځان حَکَم جوړ کړي. ﴿رُفِع﴾ د فتح د باب ماضي مجهوله ده: پورته کيدل، پيش کيدل. ﴿نقض﴾ د نصر د باب مصدر دی: ماتول. ﴿إبرام﴾ د افعال د باب مصدر دی: مضبوطول، ټينګول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که دوه خلک يو څوک حَکَم او دريمګړی جوړ کړي (چي ته زموږ په مينځ کي فيصله وکړه!). او بيا د حَکَم تر فيصله کولو مخکي په هغه خلګو کي يو سړی له حَکَم جوړولو (تحکيم) څخه رجوع کول وغواړي (چي زه حَکَم او دريمګړی نه ټاکم)، نو هغه ته دا اختيار سته او هغه له خپل تحکيم څخه رجوع کولای سي: ځکه چي دواړو خلګو په ګډه حَکَم ټاکلی دی، نو

ځکه د حَکَم د حُکم او فیصلې د باقي پاتېدلو لپاره به د دواړو خلګو رضا ضروري وي. لهٰذا که چیري په دواړو کي یو د هغه پر حَکَم کېدلو راضي نه وي نو د هغه حَکَم کېدل به باطلیږي.

لېکن دا خبره په یاد لرئ! چي له تحکیم څخه د رجوع کولو اختیار فقط تر هغه وخته پوري سته کله چي حَکَم تر اوسه فیصله نه وي کړې، لېکن که هغه فیصله وکړي نو بیا یو رجوع نه سي کولای بلکي هغه فیصله به پر دواړو لازمه وي او پر دواړو به نافذیږي؛ ځکه چي دلته هغه د حَکَم کېدلو په حالت کي فیصله کړې ده، او د حَکَم کېدلو په حالت کي هغه ته پر دواړو خلګو ولایت حاصل دی، او څوک چي د ولایت خاوند وي نو د هغه حُکم نافذ او لازم وي، نو ځکه د حَکَم کېدلو په حالت کي به د حَکَم فیصله او حَکَم هم لازم وي.

وإذا رفع إلخ: د دې حاصل دا دی چي که حَکَم د دواړو خلګو په مینځ کي فیصله وکړه او بیا هغه فیصله د قاضي په محکمه کي پېش کړی سوه (چي قاضي صاحب! دا څنګه فیصله ده؟)، نو حُکم دا دی چي که هغه فیصله د قاضي د مذهب مطابق وي نو قاضي دي هغه نافذ کړي او هغه دي نه ردوي؛ ځکه کله چي دیو شي فیصله سوې وي او هغه فیصله د قاضي د مذهب مطابقه هم وي نو ښکاره خبره ده چي هغه ردول بیا هغسي فیصله بیر ته صادرول هیڅ فایده نه لري او نه دا څه هوښیاري ده، نو ځکه د مذهب سره د مطابق کېدلو په صورت کي دي قاضي د حَکَم فیصله سمدستي نافذ کړي، او که چیري د هغه فیصله د مذهب مخالفه وي، نو قاضي دي هغه ردّ کړي، ځکه چي قاضي هغه حَکَم نه دی جوړ کړی، بلکي نور دوو خلګو هغه حَکَم جوړ کړی دی، نو ځکه پر قاضي به د هغه فیصله هم لازمه نه وي، او کله چي پر قاضي د هغه فیصله لازمه نه ده، نو ځکه قاضي ته به د هغه د ردولو او ماتولو پوره اختیار وي او قاضي به هغه ردوي.

## په حدود او قصاص کي د تحکیم بیان

وَلَا يَجُوزُ التَّحْكِيمُ فِي الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ او په حدونو او قصاص کي حَکَم جوړول [دریمګړی ټاکل] جائز نه دي لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُمَا عَلَى دَمِهِمَا ځکه چي دوی دواړو [حَکَم جوړونکو] ته پر خپلي وینې [پر خپل ځان] هیڅ ولایت نسته وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكَانِ الإِبَاحَةَ او له همدې کبله دوی د وینې د مباح کولو ملکیت [اختیار] نه لري [یعني د دې اختیار نه لري چي بل چا ته د خپل ځان د وژلو قدرت ورکړي] فَلَا يُسْتَبَاحُ بِرِضَاهُمَا نو ځکه د دوی دواړو په رضا سره به هم وینه [خون] نه مباح کیږي قَالُوا: وَتَخْصِيصُ الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ يَدُلُّ عَلَى جَوَازِ التَّحْكِيمِ فِي سَائِرِ الْمُجْتَهَدَاتِ كَالطَّلَاقِ وَالنِّكَاحِ وَغَيْرِهِمَا مشایخ رَحِمَهُمُ

نـ فرمايي: چې د حدونو او قصاص تخصيص کول پر دې خبره دلالت کوي چې په نورو اجتهادي معاملو انورو مسئلوا کې حـکَم جوړول جائز دي لکه طلاق او نکاح وَهُوَ صَحِيحٌ او همدا صحيح ده إِلَّا أَنَّهُ لَا يُفْتَى بِهِ وَيُقَالُ: يُحْتَاجُ إِلَى حُكْمِ الْمَوْلَى لېکن پر هغه به فتوىٰ نه ورکول کيږي او دا به وېل کيږي چې په دې کې د قاضي فيصلې ته ضرورت سته دَفْعًا لِتَجَاسُرِ الْعَوَامِ فِيهِ د دې لپاره چې په دې باره کې د عوامو جرات [دلاوري] ليرې سي ايعني چې عوام په هره معامله کې د حکم پر جوړولو جرأت نه وکړي ا وَإِنْ حَكَّمَاهُ فِي دَمِ خَطَإٍ او که دوه خلک په قتلِ خطاء کې يو څوک حـکَم جوړ کړي فَقَضَى بِالدِّيَةِ عَلَى الْعَاقِلَةِ او هغه حـکَم پر عاقله وو د ديت فيصله وکړي لَمْ يَنْفُذْ حُكْمُهُ نو د هغه فيصله نه نافذيږي لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَيْهِمْ ځکه چې پر عاقله وو هغه ته ولايت حاصل نه دى إِذْ لَا تَحْكِيمَ مِنْ جِهَتِهِمْ ځکه د هغو له طرفه [دهغه] حـکَم جوړول نه دي صادر سوي وَلَوْ حَكَمَ عَلَى الْقَاتِلِ بِالدِّيَةِ فِي مَالِهِ او که چېري حـکَم د قاتل په ذاتي مال کې پر هغه د ديت فيصله وکړي رَدَّهُ الْقَاضِي وَيَقْضِي بِالدِّيَةِ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو قاضي به هغه ردوي او پر عاقله وو به د ديت فيصله کوي لِأَنَّهُ مُخَالِفٌ لِرَأْيِهِ وَمُخَالِفٌ لِلنَّصِّ أَيْضًا ځکه چې [دلته] د حـکَم فيصله د قاضي د رايې هم مخالفه ده او د نص [حديث] هم مخالفه ده إِلَّا إِذَا ثَبَتَ الْقَتْلُ بِإِقْرَارِهِ مګر دا چې کله قتل د قاتل په اقرار سره ثابت سوى وي لِأَنَّ الْعَاقِلَةَ لَا تَعْقِلُهُ ځکه چې عاقله دا ديت نه اداء کوي.

**اللغات**: ﴿إِباحة﴾ د افعال د باب مصدر دى: مباح کول، روا کول، روا ګرځول. ﴿عاقله﴾ د قاتل قريبان او د هغه نژدې قوميان او هغه خلک چې د قاتل سره تجارت کوي، هغو ته "عاقله" وايي (أثمار الهدايه). ﴿دية﴾ خون بها. هغه مالي بدل چې قاتل يې د مقتول وارثانو ته ورکوي. که يو سړى په خطاء سره يو څوک قتل کړي چې هغه ته "قتل خطاء" وايي. نو په هغه کې د مقتول ديت سل اوښان دي، هغه پر ټوله عاقله وو لازميږي او پر ټولو به تقسيمول کيږي او په درې کاله کې دننه به هغه د مقتول وارثانو ته ورکول کيږي. ﴿لا تعقله﴾ د ضرب د باب نفي صيغه ده: ديو چا له طرفه ديت اداء کول. (مصباح منير)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى چې په احنافو کې د امام خصاف رَحِمَهُ الله په نېز په حدونو او قصاص کې حکم جوړول (درمیګری ټاکل) جائز نه دي. لېکن د شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله په

نېز په حد قذف او قصاص کي حَکَم جوړول جائز دي. خو څرنګه چي د امام قدوري رَحِمَهُ الله په نېز نه جائز کېدلو قول مختار او راجح دی نو ځکه هغه همدا قول (د امام خصاف قول) په متن کي ذکر کړی دی؛ او په حدود او قصاص کي د تحکیم نه جائز کېدلو دلیل دا دی چي د حَکَم جوړونکو (مُحکَمینو) لپاره دا ضروري ده چي دوی ته به پر هغه شي ولایت او اختیار حاصل وي د کوم شي په باره کي چي دوی یو څوک حَکَم جوړوي، او پر قصاص یعني پر خون او دویني پر بهولو هیڅ یو انسان ته ولایت نسته، لهذا مُحکّمینو ته نه د خپل ویني پر بهولو ولایت حاصل دی او نه د دې ولایت ورته حاصل دی چي بل چا ته پر ځان د خپل ویني د بهولو قدرت ورکړي، نو ځکه په قصاص کي تحکیم جائز نه دی. (احسن الهدايه)

پاته سوه د حدونو مسئله، نو صاحب د عنایې او داسي نورو د هغه دلیل دا بیان کړی دی چي د حَکَم فیصله او حُکم فقط د محکمینو په حق کي حجت وي او له دوی څخه بغیر د بل چا په حق کي حجت نه وي، نو ځکه د حَکَم په فیصله کي به شبهه وي، او حدود او قصاص دواړه په شبهې سره ساقطیږي، لهذا که حَکَم په یو حد کي فیصله وکړي نو د هغه په فیصله کي به شبهه وي، او د شبهې په وجه به حد نه سي جاري کېدای بلکي هغه به ساقط سي. لهذا کلهٔ چي د حَکَم په فیصله سره حدود او قصاص نه سي جاري کېدای بلکي ساقطیږي، نو ځکه په حدود او قصاص کي به یو څوک حَکَم جوړول (تحکیم) هم جائز نه وي.

قالوا وتخصيص إلخ: متأخرین مشایخ فرمایي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله چي په متن کي د تحکیم د نه جائز کېدلو سره فقط حدود او قصاص خاص کړي دي، دا د دې خبري دلیل دی چي له حدوداو قصاص څخه بغیر په نورو مسئلو (طلاق، نکاح او داسي نورو) کي حَکَم ټاکل او جوړول جائز دي، او همدا صحیح ده، لېکن د هغه د جواز فتویٰ به له ورکول کیږي بلکي دا جواز به پټ ساتل کیږي او دا به ویل کیږي چي په دې کي د قاضي فیصلې ته ضرورت سته، ځکه که چیري د حَکَم جوړولو د جواز فتویٰ ورکول سي نو عوام به په دې سلسله کي جرأت او دلاوري کوي او هر سړی به د خپلي خوښې مطابق حَکَم (دریمګړی) ټاکي او په دې توګه به د حرام شي د جائز ګرځولو او د جائز شي د حرام ګرځولو کوشش کوي. مثلاً یو سړی خپلي ښځي ته په یوه وار درې طلاقه ورکړي تر دې چي هغه ښځه زموږ په نېز بغیر له حلاله (تحلیل) څخه جائز پاته نه سي، نو اوس که چیري هغه سړي ته دا فتویٰ معلومه وي چي په دې سلسله کي حَکَم (دریمګړی) ټاکل جائز دي، نو هغه سړی او ښځه به په ګډه یو شافعي المذهب یا غیر مقلد کس په دې معامله کي حَکَم وټاکي او هغه به د یوه طلاق واقع کېدلو فیصله وکړي. همدارنګه که یو کس ته په یو مسئله کي ضرورت پیښ سي نو هغه به د داسي

سړي تلاش کوي چي د هغه په نېز دا مسئله جائز وي او هغه به خپل حُکَم ټاکي که څه هم د هغه کس په نېز دا مسئله حرامه وي، نو په دې وجه مشائخو ويلي دي چي حَکَم جوړول (ټاکل) که څه هم جائز دي لېکن د هغه فتویٰ به نه ورکول کيږي او د هغه جواز به پټ او مخفي ساتل کيږي.

وإن حكماه إلخ: د دې حاصل دا دی که چيري دوه خلک په قتلِ خطاء کي يو څوک خپل حَکَم جوړ کړي او حَکَم پر عاقله وو د ديت فيصله وکړي نو د حَکَم دا فيصله به نه نافذيږي؛ ځکه چي عاقله وو خو هغه له خپل طرفه حَکَم نه دی جوړ کړی (بلکي هغه صرف د دوو خلکو له طرفه حَکَم جوړ سوی دی)، نو ځکه پر عاقله وو به حَکَم ته ولايت هم حاصل نه وي، او کله چي پر عاقله وو حَکَم ته ولايت حاصل نه دی نو پر عاقله وو به د حَکَم فيصله هم لازم او نافذ نه وي.

او که چيري حَکَم فقط پر قاتل د هغه له ذاتي مال څخه د ديت ورکولو فيصله وکړي نو قاضي به دغه فيصله ردوي او پر عاقله وو به د ديت ورکولو فيصله کوي، ځکه چي د حَکَم دا فيصله د قاضي د مذهب هم خلاف ده او د حديث هم خلاف ده؛ د مذهب د مخالف کېدلو دليل خو به انشاء په کتاب المعاقل کي راسي، او د حديث د مخالف کېدلو دليل دا دی چي په يوه حديث کي دا قصه ذکر سوې ده چي دوې ښځي په خپل مينځ کي سره ښې وې (يعني د يو صحابي "حمل بن مالک" دوې ښځي وې چي هغه په خپل مينځ کي يوه د بلې بنُ وه)، بيا يوې خپله بن په ډبره يا د خېمې په مېخ وويشتله چي د هغه په وجه د هغې حمل (د نس بچی) ساقط سو، او کله چي دا معامله د نبي ﷺ په خدمت کي پېش کړی سوه، نو نبي ﷺ د ويښتونکي ښځي پر عاقله وو ديت واجب کړی او د هغې عاقله وو ته يې حُکم وکړی "قُومُوا فَدُوْه" (ځی ولاړ سئ! او د قاتل ديت اداء کړئ!)، له دې څخه معلومه سوه چي ديت پر عاقله واجبيږي او د قاتل په ذاتي مال کي نه واجبيږي.

إلا إلخ: فرمايي که چيري قتل د قاتل په اقرار سره ثابت سوی وي (يعني قاتل په خپله اقرار کړی وي چي قتل ما کړی دی)، نو په دې صورت کي د قاتل له ذاتي مال څخه د ديت ورکولو فيصله کول جائز دي؛ ځکه چي په دې صورت پر عاقله وو ديت نه واجبيږي بلکي پر قاتل واجبيږي.

## د بيِّنه پېښولو يا له قسم څخه د انکار کولو په صورت کي د حَکَم کار

وَيَجُوْزُ أَنْ يَسْمَعَ الْبَيِّنَةَ وَيَقْضِيَ بِالنُّكُوْلِ او د حَکَم [دريمګړي] لپاره جائز دي چي ګواهي واوري [يعني ګواهي قبوله کړي] او د قسم پر انکار فيصله وکړي وَكَذَا بِالْإِقْرَارِ او همدارنګه [د هغه لپاره جائز دي چي] پر اقرار فيصله وکړي لِأَنَّهُ حُكْمٌ مُوَافِقٌ لِلشَّرْعِ ځکه چي دا د شريعت مطابق فيصله ده وَلَوْ أَخْبَرَ بِإِقْرَارِ

أَحَدِ الْخَصْمَيْنِ أَوْ بِعَدَالَةِ الشُّهُوْدِ وَهُمَا عَلٰى تَحْكِيمِهِمَا او که چيري حَکَم [دريمګړی] د يوه خصم د اقرار يا د ګواهانو د عدالت خبر ورکړي، په داسې حال کې چې دوی دواړه خپل پر تحکيم باقي وي يُقْبَلُ قَوْلُهُ نو د هغه قول به قبلو کيږي لِأَنَّ الْوِلَايَةَ قَائِمَةٌ ځکه چې ولايت موجود دی وَلَوْ أَخْبَرَ بِالْحُكْمِ او که حَکَم د فيصلې خبر وکړي [چې ما ستا په خلاف فيصله وکړه] لَا يُقْبَلُ قَوْلُهُ نو د هغه قول به نه قبلول کيږي لِانْقِضَاءِ الْوِلَايَةِ ځکه چې د هغه ولايت ختم سو كَقَوْلِ الْمُوَلّٰى بَعْدَ الْعَزْلِ لکه څرنګه چې تر معزوله کېدلو وروسته قول [نه قبلول کيږي].

**اللغات**: ﴿يسمع﴾ اورېدل، کله چې يې په صله کې "بيّنه" راسي نو د قبلولو معنیٰ ورکوي (مصباح منير)، ﴿بيّنة﴾ ګواهي، ﴿نکول﴾ د نصر د باب مصدر دی: له قسم څخه انکار کول، ﴿الخصمَين﴾ د خَصْمٌ تثنيه ده: د جنګ او دعوې يو طرف والا (يو فريق)، يعني مدعي "يا" مدعیٰ عليه، ﴿انقضاء﴾ د انفعال د باب مصدر دی: تېرېدل، پوره کېدل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چې کله دوه خلک يو څوک خپل حَکَم وټاکي، نو د حَکَم لپاره دا خبره جائز ده چې که مدعي بيّنه پېش کړي نو د هغه بينې ته دې غوږ ونيسي يعني هغه دې قبوله کړي، او که د مدعي سره بيّنه نه وي او هغه له مدعیٰ عليه څخه د قسم مطالبه وکړي، لېکن مدعیٰ عليه له قسم څخه انکار وکړي يا هغه د مدعي د حق اقرار وکړي، نو حَکَم دې د مُدعي په حق کې فيصله وکړي (دا د هغه لپاره جائز دي).

ولوأخبرباقرار إلخ: او که چيري حَکَم يوه خصم يعني مدعي يا مدعیٰ عليه ته داسې ووايي چې "تا ما ته د خپل ملګري د حق اقرار کړی دی، نو ځکه زه دا فيصله کوم چې ته هغه ته خپل حق ورکړه!"، يا مثلاً حَکَم يوه ته ووايي چې "ستا په خلاف زما مخته بيّنه (ګواهي) پېش کړی سوه او کومو ګواهانو چې بيّنه پېش کړه هغه ټول عادلان هم وه، نو ځکه ستا په خلاف زه دا فيصله کوم چې د فلانکي سړي پر تا حق ثابت دی"، نو د حَکَم دا قول او فيصله به قبلول کيږي په دې شرط چې مدعي او مدعیٰ عليه دواړه تر اوسه د هغه پر حَکَم جوړولو باقي او راضي وي؛ ځکه چې د حَکَم کېدلو په وجه پر دوی دواړو د هغه ولايت باقي دی، او د ولايت خاوند چې فيصله وکړي نو په هغه کې د انکار کولو ګنجايش نسته بلکې هغه به قبلول کيږي، نو ځکه په دې صورت کې به د حَکَم دا فيصله قبلول کيږي. يعني هغه خصم به دا فيصله قبلوي او که هغه انکار وکړي چې ما تا ته اقرار نه

دی کړی یا زما په خلاف بینه نسته نو قاضي به د هغه خبره نه مني بلکي د حَکَم خبره به مني او د هغه فیصله به نافذوي.

ولو أخبر بالحکم إلخ: او که چیري حَکَم یوه خصم داسي ته ووایي چي "ما ستا په خلاف د فلانکي شي فیصله وکړه"، نو هغه دا قول به نه قبلول کیږي چي "ما فیصله وکړه (یا مي فیصله کړې ده)"، ځکه حَکَم چي کله فیصله وکړه نو هغه معزوله سو (ځکه حَکَم فقط د فیصله کولو تر وخته پوري حَکَم پاتیږي او تر فیصله کولو وروسته حَکَم نه پاتیږي)، او کله چي هغه معزوله سوه نو د هغه ولایت هم ختم سو. او تر ولایت ختمېدلو وروسته د هغه قول د خصم په حق کي حجت نه پاتیږي، نو ځکه د هغه دا قول "إِنِّيْ حَكَمْتُ بِكَذَا" (ما د فلانکي شي فیصله وکړه) دا به وروسته نه قبلول کیږي. د دې مثال دا دی لکه یو څوک چي قاضي وي بیا هغه معزوله کړی سي. نو اوس که تر معزوله کېدلو وروسته هغه ووایي چي "ما خپل د قاضي کېدلو په وخت کي د فلانکي شي فیصله وکړه" نو د هغه دغه قول او خبر لره اعتبار نسته او دا به نه قبلول کیږي، ځکه چي تر معزوله کېدلو وروسته د هغه ولایت ختم سو. همداسي په دې مسئله کي هم تر فیصلې وروسته د حَکَم ولایت ختم سوی دی، نو ځکه اوس به د هغه قول او خبر لره اعتبار نه وي.

## د خپل مور وپلار، ښځي او بچیانو په باره کي د فیصله کولو حکم

وَحُكْمُ الْحَاكِمِ لِأَبَوَيْهِ وَزَوْجَتِهِ وَوَلَدِهِ بَاطِلٌ او د خپل مور وپلار، خپلي ښځي او خپل اولاد په حق کي د حاکم [فیصله کونکي] فیصله کول باطل دي وَالْمُوَلَّى وَالْمُحَكَّمُ فِيْهِ سَوَاءٌ او قاضي او حَکَم دواړه په دې کي بڼابر دي وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ لِهٰؤُلَاءِ لِمَكَانِ التُّهْمَةِ او دا ځکه چي د تهمت په وجه د دې کسانو په حق کي د حاکم ګواهي نه قبلول کیږي فَكَذٰلِكَ لَا يَصِحُّ الْقَضَاءُ لَهُمْ نو ځکه د دوی په حق کي به فیصله کول هم صحیح نه وي بِخِلَافِ مَا إِذَا حَكَمَ عَلَيْهِمْ په خلاف د هغه صورت کله چي حَکَم د دوی په خلاف فیصله وکړي لِأَنَّهُ تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ عَلَيْهِمْ ځکه چي د دوی په خلاف د هغه ګواهي قبلول کیږي لِانْتِفَاءِ التُّهْمَةِ ځکه چي [په دې صورت کي] تهمت نسته فَكَذَا الْقَضَاءُ نو همداسي به قضاء هم [قبلول کیږي] وَلَوْحَكَّمَا رَجُلَيْنِ او که چیري دوه خلک [د یوه سړي پر ځای] دوه سړیان حَکَم جوړ کړي لَا بُدَّ مِنْ اجْتِمَاعِهِمَا نو پر یوه فیصله د هغه دواړو جمع کېدل ضروري دي لِأَنَّهُ أَمْرٌ يُحْتَاجُ فِيْهِ إِلَى الرَّأْيِ ځکه چي دا داسي معامله ده چي په هغه کي رایې او مشورې ته ضرورت سته.

**اللغات**: ﴿حاكم﴾ د نصر د باب فاعل دی: حُکم کونکی، فیصله کونکی، ﴿مولّٰی﴾ د تفعیل د باب مفعول دی: چا ته چې د باچا (امیرُ المؤمنین) له طرفه د فیصله کولو ولایت وسپارل سي، یعني قاضي، ﴿مُحَکَّم﴾ چا ته چې د طرفینو (مدعي او مدعیٰ علیه) له طرفه د فیصله کولو ولایت وسپارل سي، یعني دریمګړی، درېمان (منځګړی).

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې که حَکَم یا قاضي د خپل مور و پلار، یا د اولاد، یا د خپلې ښځې په باره کې یو فیصله وکړي، نو هغه معتبره نه ده بلکې باطله ده.

دلیل دا دی چې د قضاء (فیصله کولو) لپاره د شهادت اهل کېدل شرط دي، یعني هغه څوک قاضي او حَکَم جوړېدای سي کوم چې د شهادت (ګواهي ورکولو) اهل وي، او د خپل مور و پلار، اولاد او ښځې په حق کې د یو چا شهادت مقبول او معتبر نه دی، یعني که یو څوک مثلاً د خپل مور په حق کې ګواهي ورکړي، نو هغه به نه قبلول کېږي؛ ځکه چې په دې کې د طرفدارۍ تهمت سته چې شاید هغه به د خپل مور طرفداري وکړي؛ لهذا کله چې د یو چا ګواهي او شهادت د خپل مور و پلار، اولاد او ښځې په حق کې مقبول نه دی، نو ځکه د هغه فیصله او حُکم به هم د هغو په حق کې مقبول او معتبر نه وي.

لیکن که چیري حَکَم یا قاضي د خپل مور و پلار، یا د اولاد، یا د ښځې په خلاف فیصله وکړي، نه د هغو په حق کې، نو هغه به قبلول کېږي؛ ځکه کله چې یو څوک د خپل مور و پلار یا د داسي نورو په خلاف ګواهي ورکړي نو هغه قبلول کېږي، ځکه په دې صورت کې د طرفدارۍ تهمت نسته (او مخکې تاسو ته معلومه سوه چې د قضاء [فیصله کولو] حُکم د شهادت [ګواهۍ] له حُکم څخه را اخیستل سوی دی)، نو ځکه د هغو په خلاف به فیصله او حُکم هم قبلول کېږي.

ولوحکما رجلین إلخ: او که چیري مدعي او مدعیٰ علیه په خپل مینځ کې دوه کسان حَکَم او دریمګړي وټاکي (چې دا دواړه به په مشوره سره زموږ په مینځ کې فیصله وکړي). نو دا جائز دي او په دې صورت کې دا ضروري ده چې کومه فیصله وسي پر هغه به دواړه دریمګړي متفق وي؛ ځکه چې په ځینې معاملاتو کې مشورې او رایې ته ضرورت وي. نو دوه کسان حَکَم ټاکل د دې خبره علامت دی چې مدعي او مدعیٰ علیه د دواړو دریمګړو (درېمانو) په رایه او مشوره سره فیصله کول غواړي. لهذا کله چې مدعي او مدعیٰ علیه دواړه په اجتماعي توګه د دواړو دریمګړو په رایه سره فیصله کول غواړي. نو ځکه که له هغو څخه یو دریمګړی فیصله وکړي او بل فیصله نه وکړي. نو دا فیصله به جائز نه وي او نه به قبلول کېږي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# مَسَائِلُ شَتّٰى مِنْ كِتَابِ الْقَضَاءِ

## له کتاب القضاء څخه بېلابېلې مسئلې

**تشريح**: د مصنفينو عادت دا دی چې که په يو باب يا کتاب کې ځينې مسئلې پاتې سي، نو دا مسئلې د هغه باب يا کتاب په آخر کې د "مسائل شتّٰى، يا مسائل منثورة، يا مسائل متفرّقة" په عنوان سره ذکر کوي، نو دلته هم صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د کتابُ القاضي په آخر کې د "مسائل شتّٰى" په عنوان سره هغه مسئلې ذکر کوي کوم چې په کتاب القاضي کې (له ذکر څخه) پاتې سوي دي.

### د پاسنۍ خونې او لاندينۍ خونې حقوق

قَالَ: وَإِذَا كَانَ عُلْوٌ لِرَجُلٍ وَسُفْلٌ لِآخَرَ فرمايي: او که چيري بالاخانه [پاسنۍ خونه] د يوه سړي وي او لاندې ځای [لاندينۍ خونه] د بل چا وي فَلَيْسَ لِصَاحِبِ السُّفْلِ أَنْ يَتِدَ فِيهِ وَتَدًا نو د لاندې ځای والا ته دا اختيار نسته چې په هغه کې ميخ ټک وهي وَلَا يَنْقُبَ فِيهِ كُوَّةً او نه دي په هغه کې دريڅه [روشندان] جوړوي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ [دا حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [دی] مَعْنَاهُ بِغَيْرِ رِضَا صَاحِبِ الْعُلْوِ د دې مطلب دا دی چې د بالاخانې والا له رضا څخه بغير [د داسې کولو اختيار نسته] وَقَالَا: يَصْنَعُ مَا لَا يَضُرُّ بِالْعُلْوِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې [هر] هغه کار کولای سي کوم چې بالاخانې ته ضرر نه رسوي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا أَرَادَ صَاحِبُ الْعُلْوِ أَنْ يَبْنِيَ عَلَى عُلْوِهِ او پر همدې اختلاف دي کله چې بالاخانې والا وغواړي چې پر خپله بالاخانه يو ځای جوړ کړي قِيلَ*: مَا حُكِيَ عَنْهُمَا تَفْسِيرٌ لِقَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ ويل سوي دي: چې کوم روايت چې له صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه نقل سوی دی هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول تفسير دی [او جلا قول نه دی] فَلَا خِلَافَ نو څکه اد

---

* القول الراجح: هو هذا القول (أى التطبيق بين رواية الإمام والصاحبين) كما ذكر في فتح القدير (ج:۶، ص:۴۱۱). وفى البحر الرائق: والمختار للفتوى أنه إذا أشكل (اشتبه) أنه يضر أم لا؟، لا يملك، وإذا عُلِم لا أنه لا يضر يملك (ج:۷، ص:۲۹). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۱۸]

ووی په میخ کي] به هیڅ اختلاف نه وي وَقِيلَ: الْأَصْلُ عِندَهُمَا الْإِبَاحَةُ او ویل سوي دي چي اصل د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز اباحت دی لِأَنَّهُ تَصَرَّفَ فِي مِلْكِهِ ځکه چي دا په خپل ملکیت کي تصرف کول دي وَالْمِلْكُ يَقْتَضِي الْإِطْلَاقَ او ملکیت د مطلق کېدلو تقاضا کوي [یعني ملکیت د مطلق اباحت تقاضا کوي] وَالْحُرْمَةُ بِعَارِضِ الضَّرَرِ او حرمت د ضرر [تاوان] د عارض په وجه دی فَإِذَا أُشْكِلَ لیکن کله چي [د ضرر ثابتېدل] مشتبه سوه لَمْ يَجُزِ الْمَنْعُ نو ممانعت به جائز نه وي وَالْأَصْلُ عِندَهُ الْحَظْرُ او اصل د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز ممانعت دی لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ فِي مَحَلٍّ تَعَلَّقَ بِهِ حَقٌّ مُحْتَرَمٌ لِلْغَيْرِ ځکه هغه په داسي محل کي تصرف کول دي چي د هغه سره د بل چا حق محترم متعلق دی كَحَقِّ الْمُرْتَهِنِ وَالْمُسْتَأْجِرِ لکه د مرتهن او مستأجر حق وَالْإِطْلَاقُ بِعَارِضٍ او مطلق اباحت د عارض په وجه دی فَإِذَا أُشْكِلَ لیکن کله چي هغه مشتبه سو لَا يَزُولُ الْمَنْعُ نو ځکه ممانعت به نه زائلیږي عَلَى أَنَّهُ لَا يَعْرَى عَنْ نَوْعِ ضَرَرٍ بِالْعُلْوِ مِنْ تَوْهِينِ بِنَاءٍ أَوْ نَقْضِهِ سره د دې چي داسي کول د بالاخانې د بناء [دېوالو] د کمزوري کولو یا ماتولو له ضرر څخه هم خالي نه دي فَيُمْنَعُ عَنْهُ نو ځکه له دې څخه به منع کول کیږي.

**اللغات:** ﴿علو﴾ په دې لفظ کي درې لغات دي: عُلو، عَلو، عِلو: پورتنی منزل (پوړ)، پر یوه ځای د پاسه بل ځای، پاسنی خونه، بالاخانه. ﴿سفل﴾ په دې لفظ کي دوه لغات دي: سُفل، سِفل: لاندینی منزل، لاندینی ځای چي پر هغه د پاسه بل ځای وي، لاندینی خونه. ﴿يتد﴾ د ضرب د باب مضارع ده: میخ ټک وهل (په دېوال یا داسي بل شي کي میخ دننه کول). ﴿وَتَد﴾ او وَتِد: میخ. ﴿ينقب﴾ د نصر مضارع ده: په دېوال کي سوری (سوره) جوړول، سوری کول. ﴿الكُوَّة﴾ پورتنی کوچنی دریچه (کړکی)، په دېوال کي هغه پورتنی سوره (سوری) چي له هغه څخه خوني ته باد او رڼا داخلیږي چي په اردو ژبه کي ورته "روشندان" وایي. ﴿يصنع﴾ د فتح مضارع ده: جوړول، یو کار او عمل کول (معجم وسیط). ﴿حظر﴾ ممانعت (ممنوع کېدل)، بندیز. ﴿محترم﴾ د افتعال د باب مفعول دی: د احترام او درناوي وړ، حق محترم: داسي حق چي د هغه خیال ساتل پر انسان لازم وي. ﴿توهين﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: مراد ځني "کمزوري کول" دي. ﴿نقض﴾ د نصر د باب مصدر دی: ماتول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که پريوې خونې (کمرې) د پاسه بله خونه وي، او پاسنی خونه (بالاخانه) ديوه سړي وي او لاندې خونه د بل سړي وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چې د لاندې خونې مالک ته دا اختيار نسته چې د بالاخانې د مالک له اجازت څخه بغير په ديوال کې ميخونه ټک وهي يا په ديوال کې دريچه (روشندان) جوړ کړي، او نه د بالاخانې مالک ته دا اختيار سته چې د لاندې خونې د مالک له اجازت څخه بغير پر خپل بالاخانې د پاسه بل ځای جوړ کړي، يا پر بالاخانې د پاسه کوچنی ديوال يا بيت الخلاء جوړه کړي.

لېکن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې په دې دواړو خلکو کې هر يوه ته د داسې کار کولو اختيار سته کوم چې د بل يوه د خونې لپاره تاواني (مضر) نه وي، يعنې د لاندې خونې مالک هر هغه شی جوړولای سي کوم چې د بالاخانې لپاره مضر نه وي، او د بالاخانې مالک هر هغه شی جوړولای سي کوم چې د لاندينې خونې لپاره مضر نه وي.

**قيل: ماحُکِی إلخ:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د بعضې مشايخو رايه دا ده چې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول تفسير دی، يعنې امام صاحب رَحِمَهُ الله په هماغه صورت کې منع کړې ده کله چې ديوه په کار سره د بل يوه خونې ته ضرر او تاوان رسيږي، يعنې امام صاحب رَحِمَهُ الله له مضر کار څخه منع کړې ده، لېکن کله چې کار مضر نه وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هم ممانعت نسته، لکه څنګه چې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دی. نو د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله دواړو په نيز د پاسنی خونې او لاندينی خونې په مالکانو کې هر يوه ته په خپله خونه کې داسې تصرف کول جائز دي چې په هغه سره د بل يوه خونې ته ضرر نه رسيږي. (همدا راجح قول دی)

**دليل:** د بعضې مشايخو د دغه قول دليل دا دی چې دلته هر سړی په خپل ملکيت کې تصرف کونکی دی، او په خپل ملکيت کې تصرف کول جائز دي، نو ځکه د دواړو لپاره به په خپله خونه کې تصرف کول جائز وي. او پاته سو ممانعت نو هغه فقط هغه وخت سته کله چې بل يوه ضرر او تاوان رسيږي.

**وقيل: الأصل:** لېکن بعضې مشايخ وايي چې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دا[م] صاحب رَحِمَهُ الله د قول تفسير نه دی، بلکې د صاحبينو په نيز اصل اباحت دی، نه ممانعت؛ ځکه د لاندې خونې مالک يا د بالاخانې مالک چې په خپله خونه کوم تصرف کړی دی هغه يې په خپل ملکيت کې تصرف کړی دی، او ملکيت دا تقاضا کوي چې مطلقاً تصرف دې مباح او جائز وي، او تصرف فقط په هغه صورت کې حراميدای سي کله چې بل يوه ته ضرر رسيږي، يعنې ديوې خونې د مالک لپاره د تصرف کولو

ممانعت صرف په دې وجه دی چې د بل يوه خوني ته به ضرر ورسيږي، لېکن دا خبره مشتبه او شکمنه ده چې ديوه د تصرف کولو په وجه به د بل يوه خوني ته ضرر ورسيږي، که نه؟ لهذا کله چې دا مشتبه امر دی، نو ځکه هغه به له تصرف کولو څخه منع کول جائز نه وي؛ ځکه چې د تصرف اباحت (روايت) خو په يقين سره ثابت دی، او ممانعت په شک سره ثابت دی، او يقين د شک په وجه نه زائليږي، نو ځکه د مشتبه ضرر په وجه به يقيني امر يعني اباحت نه زائليږي.

والأصل عنده إلخ: او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز اصل ممانعت دی؛ ځکه کله چې د لاندي خوني مالک په خپله خونه کي يا د بالاخانې مالک په خپله خونه کي تصرف وکړي نو هغه په داسي محل کي تصرف وکړی چې د هغه سره د بل يوه حق متعلق دی (يعني دلاندي خوني سره د بالاخانې والا حق متعلق دی او د پاسني خوني سره د لاندي خوني والا حق متعلق دی، ځکه چې دواړي خوني پر يوه بنياد جوړي سوي دي او دواړي ديوه عمارت دوې حصې دي)، او د مالک سرې د ملکيت سره د بل چا حق متعلق کېدل مالک له دې څخه منع کوي چې هغه په خپل ملکيت کي تصرف وکړي، لکه څرنګه چې د مرتهن حق په مرهون شي کي مالک له تصرف کولو څخه منع کوي، يا لکه څرنګه چې د مستأجر حق په مستأجر شي کي مالک له تصرف کولو څخه منع کوي، يعني مثلاً خالد زيد ته قرض ورکړي او زيد هغه ته د قرض په عوض کي يو شی په رهن (په ګرو) ورکړي (په دې مثال کي خالد مرتهن سو او زيد [يعني د شي مالک] راهن سو)، نو اوس د هغه شي سره د مرتهن (خالد) حق متعلق سو، نو ځکه اوس د شي مالک (زيد) ته د مرتهن له اجازت څخه بغير په هغه شي کي د تصرف کولو اختيار نسته، يا مثلاً حامد له عمر څخه يو موټر په کرايه واخلي (په دې مثال کي عُمر [يعني د موټر مالک] مُجير سو او حامد مستأجر سو)، نو اوس د هغه موټر سره د مستأجر (حامد) متعلق سو، لهذا اوس مالک (عُمر) ته د مستأجر له اجازت څخه بغير په دې موټر کي د تصرف کولو اختيار نسته. نو همداسي د لاندي خوني سره د بالاخانې د مالک حق متعلق سوی دی او د بالاخانې سره د لاندي خوني د مالک حق متعلق سوی دی، نو ځکه يوه ته به هم د بل يوه له اجازت څخه بغير په خپله خونه کي د تصرف کولو اجازت نه وي.

حاصل دا چې اصل د تصرف ممانعت (ممنوع کېدل) دي، او اباحت صرف د رضا د عارض کېدلو په وخت کي ستېه، يعني د لاندي خوني يا د بالاخانې مالک ته صرف په هغه وخت کي د تصرف کولو اختيار ستېه کله چې د هغه ملګری راضي وي، لېکن له راضي کېدلو (اجازت ورکولو) څخه مخکي د

رضا او عدم رضا معامله مشتبه ده، نو ځکه حکم به پر خپل اصل یعني پر ممانعت باقي پاته وي او تصرف به ممنوع وي؛ ځکه چي د تصرف "ممانعت" اصل او یقیني شی دی، نو ځکه اصل او یقیني شی به د شکمن او مشتبه شي "اباحت" په وجه نه زائلیږي.

علی أنه إلخ: د تصرف د ممانعت دویمه وجه دا ده چي دیوه د تصرف کولو په وجه د بل یوه خوني ته د ضرر او تاوان رسېدلو خطره هم سته، ځکه ښکاره خبره ده چي د تصرف کولو (یعني د میخ ټک وهلو، سوري جوړولو او داسي نورو) په وجه په دېوال کي کمزوري او ماتېدل راځي، او د دېوال په کمزوري کېدلو کي بل یوه ته د تاوان رسېدلو خطره سته. او د خپلي فایدې لپاره بل چا ته تاوان رسول جائز نه دي، لکه څرنګه چي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي "لَا ضَرَرَ وَلَا ضِرَارَ فِي الإِسْلَامِ" (یعني په اسلام کي د ضرر رسولو او ضرر پورته کولو [زغملو] اجازت نسته)، نو ځکه د هر یوه لپاره به داسي تصرف کول ناجائز او ممنوع وي چي په هغه سره بل یوه ته ضرر او تاوان رسیږي.

## په بنده یا خلاصه کوڅه کي د بلي کوڅې والا کور لپاره د دروازې خلاصولو بیان

قَالَ: وَإِذَا كَانَتْ زَائِغَةٌ مُسْتَطِيلَةٌ تَنْشَعِبُ مِنْهَا زَائِغَةٌ مُسْتَطِيلَةٌ فرمایي: او که چیري یوه اوږده کوڅه [عمومي لاره] وي چي له هغه څخه بله اوږده کوڅه راوځي وَهِيَ غَيْرُ نَافِذَةٍ او دا بله [دویمه] کوڅه بنده وي فَلَيْسَ لِأَهْلِ الزَّائِغَةِ الْأُولَى أَنْ يَفْتَحُوا بَابًا فِي الزَّائِغَةِ الْقُصْوَى نو د اولي کوڅې [عمومي لاري] والا خلکو ته دا اختیار نسته چي په هغه بنده کوڅه کي دروازه را خلاصه کړي لِأَنَّ فَتْحَهُ لِلْمُرُورِ ځکه چي د دروازې خلاصول د تېرېدلو [تګ راتګ] لپاره وي وَلَا حَقَّ لَهُمْ فِي الْمُرُورِ حالانکي د اولي کوڅې والا [زائغه اولی] لپاره د تېرېدلو حق نسته إِذْ هُوَ لِأَهْلِهَا خُصُوصًا ځکه چي دا [تګ راتګ] صرف د بندي کوڅې والا د خلکو حق دی حَتَّى لَا يَكُونَ لِأَهْلِ الْأُولَى فِيمَا بِيعَ فِيهَا حَقُّ الشُّفْعَةِ همدا وجه ده چي په هغه بنده کوڅه کي چي کوم ځای خرڅ کړی سي نو د اولي کوڅې [زائغه اولي] والا خلکو ته په هغه کي د شفعې حق نسته بِخِلَافِ النَّافِذَةِ به خلاف د خلاصي کوڅې [چي د هغې دواړه طرفونه خلاص وي] لِأَنَّ الْمُرُورَ فِيهَا حَقُّ الْعَامَّةِ ځکه چي په خلاصه کوڅه کي تېرېدل د عامو خلکو حق دی

قِيلَ: الْمَنْعُ مِنَ الْمُرُورِ لَا مِنْ فَتْحِ الْبَابِ ويل سوي دي چي ممانعت له تېرېدلو [تګ راتګ] څخه دی، نه له دروازې خلاصولو څخه لِأَنَّهُ رَفْعُ جِدَارِهِ ځکه چي دروازه خلاصول د خپل دېوال [د بعضې حصې] ماتول دي وَالْأَصَحُّ أَنَّ الْمَنْعَ مِنَ الْفَتْحِ او زياته صحيح دا ده چي ممانعت له دروازې خلاصولو څخه دی لِأَنَّ بَعْدَ الْفَتْحِ لَا يُمْكِنُهُ الْمَنْعُ مِنَ الْمُرُورِ فِي كُلِّ سَاعَةٍ ځکه چي له دروازې خلاصولو څخه وروسته به هر ګړی له تېرېدلو [تګ راتګ] څخه منع کول ممکن نه وي وَلِأَنَّهُ عَسَاهُ يَدَّعِي الْحَقَّ فِي الْقُصْوَى بِتَرْكِيبِ الْبَابِ او په دې وجه هم چي کېدای سي د دروازې جوړولو [لګولو] په وجه هغه سړی په بنده کوڅه کي د يو حق دعوی وکړي.

**اللغات:** ﴿زائغة﴾ مراد ځني کوڅه ده. يعني په کلي او ښار کي د کورونو تر مينځ اوږده فاصله چي هغه ته ګلی هم وايي، ﴿مستطيلة﴾ اوږده، مراد ځني هغه کوڅه ده کوم چي په اوږدول پرته وي، ﴿تنشعب﴾ د انفعال د باب مضارع ده: ښاخ راوتل، له يوې کوڅې څخه بله کوڅه راجلا کېدل، ﴿قُصوی﴾ ليري والا کوڅه، مراد ځني بنده کوڅه ده، ﴿مرور﴾ د ضرب د باب مصدر دی: په لاره کي تېرېدل.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکي په دې خبره ځان پوه کړئ! چي دا مسئله پر دې اُصول مبني ده چي په کومه کوڅه او کومه لاره کي انسان د تېرېدلو حق نه لري، هلته د خپل کور دروازه نه سي را خلاصولای. او بل په دې ځان پوه کړئ! چي په عبارت کي له اول "زائغة مستطيلة" څخه عمومي لاره او غټه کوڅه مراد ده چي هغه ته مصنف رَحِمَهُ الله "زائغه اُولیٰ" هم ويلي دي، او له دويم "زائغة مستطية" څخه هغه کوڅه مراد ده کوم چي له دغه عمومي لارې (غټې کوڅې) څخه راوتلې وي چي هغه ته "زائغه ثانيه (منشعبه)" ويل کيږي. د کومي کوڅې دواړه طرفونه چي خلاص وي هغه ته "زائغه نافذه" وايي، او کومه کوڅه چي په آخر کي بنديږي هغه ته "زائغه غيرِ نافذه" وايي، او له "قصویٰ" څخه هم بنده کوڅه مراد ده.

**صورت د مسئلې:** دا دی چي که يوه عمومي لاره وي، برابره ده هغه بنده وي او که خلاصه وي، او بيا له هغې يوه کوڅه راوتلې وي کوم چي بنده وي (چي هغه ته زائغه غيرِ نافذه وايي)، نو که په داسي صورت

کي د يو سړي کور د دغه بندي کوڅې په سر کي وي يعني يو طرف ته يې عمومي لاره وي او بل طرف ته يې بنده کوڅه وي، نو هغه ته دا حق او اجازت نسته چي بندي کوڅې ته دروازه راخلاصه کړي او خپل د تګ راتګ لاره يې جوړه کړي. له دليل څخه مخکي نقشې ته اوګورئ! چي په صورت د مسئلې مو ښه سر خلاص سي:




**دليل:** دا دی چي د دروازې خلاصولو مقصد تګ راتګ دی، حال دا چي د عمومي لاري (زائغه اولیٰ) والا خلکو لپاره په بنده کوڅه (زائغه ثانيه غيرِ نافذه) کي د تګ راتګ هيڅ حق نسته، ځکه بنده کوڅه خو خاص د هغه خلکو لپاره ده کوم چي په هغه کي اباد (استوګن) وي، همدا وجه ده که په بنده کوڅه کي يو کور يا ځمکه خرڅه سي، نو د عمومي لاري (زائغه اولیٰ) خلکو ته په هغه کي د شفعي حق نه حاصليږي، معلومه سوه چي د بندي کوڅې وطرف ته د عمومي لاري د خلکو هيڅ حق نسته، لهذا کله چي د عمومي لاري والا خلکو ته په بنده کوڅه کي هيڅ حق نسته، نو ځکه د عمومي لاري د طرف سړي ته به دا حق او اجازت هم نه وي چي د بندي کوڅې وطرف ته دروازه را خلاصه کړي.

بخلاف النافذة إلخ: ها! که چيري هغه کوڅه بَنده نه وي کوم چي له عمومي لاري (زائغه اولیٰ) څخه راوتلې وي بلکي نافذه وي يعني په آخر کي بلې لاري ته را خلاصه وي (لکه عامي کوڅې چي د هغه په ذريعه خلک يوې لاري او بلې لاري ته وځي)، نو په دې صورت کي د عمومي لاري (زائغه اولیٰ) د طرف سړي ته دا پوره حق سته چي په هغه کوڅه کي لاره را خلاصه کړي او تګ راتګ پري جاري کړي؛ ځکه چي په دغه خلاصه کوڅه (زائغه ثانيه نافذه) کي عامو خلکو ته د تګ راتګ حق حاصل دی او هغه د

هیڅا لپاره خاص نه ده، او کله چې په هغه کې عامو خلکو د تګ راتګ حق سته، نو ځکه په هغه کې به د دروازې خلاصولو حق او اجازت هم وي.

د خلاصې کوڅې (زائغه ثانیه نافذه) شکل داسې دی:




قیل: إلخ؛ فرمايي څه مخکې چې کوم دا خبره ذکر سوه چې په بنده کوڅه (زائغه ثانیه غیر نافذه) کې د عمومي لارې والا سړي ته د دروازې خلاصولو حق نسته، د ځینې مشایخو په قول د دې مطلب دا دی چې له هغه څخه صرف د تګ راتګ ممانعت مراد دی، یعني د عمومي لارې (زائغه اولیٰ) د سړي لپاره په بنده کوڅه (زائغه ثانیه نافذه) کې صرف تګ راتګ ممنوع دي، د هغه لپاره دروازه خلاصول ممنوع نه دي (بلکي هغه په بنده کوڅه کې هم دروازه راخلاصولای سي، د دې لپاره چې د ضرورت په وخت کې دیو چا سره ورښې)، ځکه د دروازې خلاصولو معنیٰ دا ده چې انسان خپل د دېوال یوه حصه ماته کړي، حالانکې هغه ته خپل د ټوله دېوال د ماتولو حق سته. نو دیوې حصې د ماتولو حق خو به هغه ته په درجه اولیٰ وي.

لېکن زیاته صحیح خبره دا ده چې د دروازې خلاصولو ممانعت مراد دی، نه صرف د تګ راتګ ممانعت؛ ځکه کله چې یو وار دروازه را خلاصه کړی سي نو بیا پر تګ راتګ پابندي لګول او هر وخت له هغه څخه منع کول تقریباً ناممکن دي (ځکه عموماً دروازه د همدې تګ راتګ لپاره لګول کیږي)، نو ځکه له تګ راتګ څخه د منع کولو لپاره به د دروازې خلاصول (لګول) هم ممنوع وي.

او دویمه وجه دا ده چې که د عمومي لارې (زائغه اولیٰ) د طرف سړي ته په بنده کوڅه (زائغه ثانیه) کې د دروازې خلاصولو او لګولو اجازت ورکول سي نو ډېره ممکنه ده چې هغه به یو څو وخت وروسته دا دعویٰ وکړي چې "په دې کوڅه کې زه د تګ راتګ حق هم لرم، یا د شفعي حق هم لرم (که مې حق نه درلودای نو بیا ما ولې دروازه لګوله)"، او ښکاره خبره ده چې په دې کې د بندې کوڅې د استوګنو

خلکو لپاره نقصان دی. نو ځکه په دې وجه به هم د عمومي لارې د طرف سرې ته د دروازې خلاصولو حق او اجازت نه وي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَإِنْ كَانَتْ مُسْتَدِيرَةً قَدْ لَزِقَ طَرَفَاهَا او که دا بله [دویمه] کوڅه ګردې [ګول] وي چې د هغې دواړه طرفونه [د زائغه اُولیٰ سره] لګېدلي وي فَلَهُمْ أَنْ يَفْتَحُوا بَابًا نو د زائغه اولیٰ [عمومي لارې] والا خلکو ته دا اختیار هم سته چې [د ګردې کوڅې وطرف ته] دروازه را خلاصه کړي [همدارنګه د ګردې کوڅې والا خلکو ته دا اختیار هم سته چې د عمومي لارې وطرف ته دروازه را خلاصه کړي] لِأَنَّ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ حَقَّ الْمُرُورِ فِي كُلِّهَا ځکه چې له هغو څخه هر یوه ته په هره کوڅه کې د تېرېدلو [تګ راتګ] حق سته إِذْ هِيَ سَاحَةٌ مُشْتَرَكَةٌ ځکه چې دا یو مشترک صحن [خالي ګاه] ده وَلِهَذَا يَشْتَرِكُونَ فِي الشُّفْعَةِ إِذَا بِيعَتْ دَارٌ مِنْهَا او همدا وجه ده که چیرې په دې کوڅه کې یو کور خرڅ کړی سي نو ټوله د شفعې په حق کې شریک کیږي.

**اللغات**: ﴿مستديرة﴾ ګردې، ګول مول، مراد ځنې هغه کوڅه ده کوم چې په ګردې والي پرته وي، ﴿لزق﴾ د سمع د باب ماضي ده: متصل کېدل، یو شي د بل شي سره لګېدل. ﴿ساحة﴾ صحن، غولی، میدان، خالي ګاه.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که چیرې له عمومي لارې (کوڅې) څخه راوتلې کوڅه داسې نه وي لکه عامي کوڅې چې په اوږدوالي ځغېدلي وي، بلکې هغه ګول او ګردې کوڅه وي او د هغې دواړه طرفونه یعني دواړه سرونه د عمومي لارې (زائغه اُولیٰ) سره لګیدلي وي (چې د هغه په ذریعه خلک عمومي لارې ته ځي راځي)، نو په دې صورت کې د عمومي لارې (زائغه اولیٰ) د طرف خلکو ته دا حق سته چې په هغه ګردې کوڅه (زائغه ثانیه مستدیره) کې دروازه راخلاصه کړي؛ ځکه د دې ګردې کوڅې چې کوم صحن او خالي ګاه ده، هغه د ټولو په مینځ کې مشترکه ده، نو ځکه په هغو کې هر یوه ته د تګ راتګ حق هم سته، همدارنګه د ګردې کوڅې او د عمومي لارې په مینځ کې چې کوم خلک پراته دي، هغو ته هم دا حق سته چې د عمومي لارې (زائغه اولیٰ) وطرف ته خپل دروازه راخلاصه کړي؛ ځکه چې په عمومي لاره کې هم د هغو حق سته. لنډه دا چې دا ګردې کوڅه د ټولو په مینځ کې مشترکه ده، خپل خلک هم حق پکښې لري او د عمومي لارې د طرف سړي هم حق پکښې لري؛ همدا وجه ده که چیرې په دغه ټوله کوڅه کې یو کور خرڅ سي، نو د شریعت مطابق ټولو ته د شفعې حق

حاصلیږي (یعني هر سړی د شفعې دعوی کولای سي. برابره ده هغه د عمومي لارې د طرف سړی وي او که د ګردی کوڅې والا سړی وي).

(۱)... د اثمار الهدایې د بیان مطابق نقشه :




(۲)... د اشرف الهدایې او احسن الهدایې د بیان مطابق نقشه :




**یادونه**: دواړې نقشې صحیح دي، لږ څه غور پکښې وکړئ!، د دویمې نقشې مطابق د ګردی کوڅې او د عمومي لارې په مینځ کې کور نسته او کوڅه د کورو مختته تېره سوې ده. خبره صرف په خالي ګاه (ساحه) کې ده، د دویمې نقشې مطابق خالي ګاه غټه ده او په اوله نقشه کې صرف د کوڅې مطابق خالي ګاه ده.

## پر انکار صلح کول (صلح عن الانکار)

قَالَ: وَمَنِ ادَّعٰى فِي دَارٍ دَعْوٰى فرمايي: او که څوک په يو کور دعوىٰ وکړي وَأَنْكَرَهَا الَّذِي هِيَ فِي يَدِهِ او د چا په قبضه کي چي دا کور وي، هغه انکار وکړي ثُمَّ صَالَحَهُ مِنْهَا بيا منکر د هغه دعوىٰ په سلسله کي د مدعي سره صلح وکړي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي وَهِيَ مَسْأَلَةُ الصُّلْحِ عَلَى الْإِنْكَارِ او دا پر انکار د صلح کولو مسئله ده وَسَنَذْكُرُهَا فِي الصُّلْحِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى او هغه به موږ انشاء الله په کتاب الصلح کي ذکر کړو وَالْمُدَّعٰى وَإِنْ كَانَ مَجْهُولًا او مدعىٰ بِهٖ که څه هم مجهول دی فَالصُّلْحُ عَلٰى مَعْلُومٍ عَنْ مَجْهُولٍ جَائِزٌ عِنْدَنَا لېکن پر معلوم شي د مجهول شي [مجهول حق] په عوض کي صلح کول زموږ په نېز جائز دي لِأَنَّهُ جَهَالَةٌ فِي السَّاقِطِ ځکه چي دا جهالت په ساقطېدونکي شي کي دی فَلَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ نو ځکه دا به جنګ ته رسول نه کوي عَلٰى مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سو.

**اللغات**: ﴿مُدَّعٰى﴾ دافتعال د باب مفعول دی: مدعي چي د کوم شي دعوىٰ کړې وي، هغه ته مُدَّعٰى او مُدَّعٰى بِهٖ وايي، ﴿لا تفضی﴾ دافعال د باب نفي صيغه ده: رسول، رسېدل، سبب جوړېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي يو کور مثلاً د خالد په قبضه کي دی او زيد په هغه دعوىٰ وکړه چي "په دې کور کي زما هم حق سته"، او زيد د حق مقدار بيان نه کړی، لېکن قابض يعني خالد بالکل د هغه له دعوې څخه انکار وکړی چي ستا دعوی زه نه تسليموم، بيا ناڅاپه قابض د مدعي (زيد) دعوىٰ تسليم کړه او د هغه حق په باره کي يې د مدعي سره صلح وکړه (مثلا قابض وويل چي زه ستا د حق په عوض کي سل درهمه درکوم، او مدعي هغه قبول کړل) نو دا صلح جائز ده، او د دې مسئلې نوم "صلح عن الانکار" دی چي پوره تفصيل به يې انشاء الله په کتاب الصلح کي ذکر سي.

لېکن دا خبره په ياد لرئ! چي دلته مدعي چي د کوم حق دعوىٰ کړې ده (يعني مدعىٰ بِهٖ) هغه مجهول دی، ځکه چي د هغه مقدار معلوم نه دی، حال دا چي د دعوې د صحت (صحيح کېدلو) لپاره دا شرط دي چي د مدعىٰ بِهٖ مقدار به معلوم وي، لېکن دلته معلوم نه دی، خو بيا هم زموږ په نېز پر دغه دعوىٰ صلح کول صحيح دي؛ ځکه زموږ په نېز که د مجهول حق په عوض کي پر يو معلوم مقدار صلح وسي نو هغه صحيح ده؛ ځکه چي مدعىٰ بِهٖ که څه هم مجهول دی لېکن د هغه جهالت په يو څو دقيقو کي ساقطېږي په دې توګه چي د صلح په وجه د مدعىٰ عليه (قابض) له ذمې څخه د مدعي حق

او مطالبه دواړه ساقطيږي، او په کوم ځای کې چې جهالت ساقطيدلو ته نژدې وي هلته جهالت مُفضي الى النزاع (دجنګ سبب) نه ګرځي، نو ځکه په دې صورت کې به هم د مدعیٰ بِه جهالت مُفضِي الى النِزاع نه وي او د جهالت باوجود به هم صلح کول جائز وي.

## د متضاده دعوو او ګواهيانو حکم

قَالَ: وَمَنِ ادَّعَى دَارًا فِي يَدِ رَجُلٍ أَنَّهُ وَهَبَهَا لَهُ فِي وَقْتِ كَذَا [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي: او که يو څوک د يو سړي په قبضه کې په موجود کور [داسي] دعوىٰ وکړي چې هغه دا کور ما ته په فلانکي وخت کې هبه کړی دی فَسُئِلَ الْبَيِّنَةَ بيا چې له هغه [مُدعي] څخه ګواهي طلب کړې سوه فَقَالَ: جَحَدَنِي الْهِبَةَ فَاشْتَرَيْتُهَا مِنْهُ نو مدعي وويل: لېکن بيا هغه [واهب] ما ته [د کور] له هبه کولو څخه انکار وکړی نو ما دا کور له هغه څخه رانيوی وَأَقَامَ الْمُدَّعِي الْبَيِّنَةَ عَلَى الشِّرَاءِ قَبْلَ الْوَقْتِ الَّذِي يَدَّعِي فِيهِ الْهِبَةَ او مدعي خپل پر رانيولو له هغه وخت څخه مخکې بيّنه پېش کړه په کوم وخت کې چې هغه د هبې دعوىٰ کوي لَا تُقْبَلُ بَيِّنَتُهُ نو د هغه بيّنه به نه قبلول کيږي لِظُهُورِ التَّنَاقُضِ ځکه چې [د هغه په دعوىٰ او بيّنه کې] تناقض ښکاره سو إِذْ هُوَ يَدَّعِي الشِّرَاءَ بَعْدَ الْهِبَةِ وَهُمْ يَشْهَدُونَ بِهِ قَبْلَهَا ځکه مدعي له هبې څخه وروسته د رانيولو دعوىٰ کوي او ګواهان له هبې څخه مخکې د رانيولو ګواهي ورکوي وَلَوْ شَهِدُوا بِهِ بَعْدَهَا او که چيري ګواهان له هبې څخه وروسته د رانيولو ګواهي ورکړي تُقْبَلُ نو هغه قبلول کيږي لِوُضُوحِ التَّوْفِيقِ ځکه چې توافق [موافقت پيدا کول] ښکاره دی وَلَوْ كَانَ ادَّعَى الْهِبَةَ او که چيري هغه د هبې دعوىٰ وکړي ثُمَّ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ عَلَى الشِّرَاءِ قَبْلَهَا وَلَمْ يَقُلْ: جَحَدَنِي الْهِبَةَ فَاشْتَرَيْتُهَا بيا له هبې څخه مخکې پر رانيولو بيّنه پېش کړي او داسي نه وواېي: چې هغه ما ته [د کور] له هبه کولو څخه انکار وکړی نو ما هغه رانيوی لَمْ تُقْبَلْ أَيْضًا نو هم به بيّنه نه قبلول کيږي ذَكَرَهُ فِي بَعْضِ النُّسَخِ همداسي امام محمد رَحِمَهُ الله [د جامع صغير] په بعضي نسخو کې ذکر کړي دي لِأَنَّ دَعْوَى الْهِبَةِ إِقْرَارٌ مِنْهُ بِالْمِلْكِ لِلْوَاهِبِ ځکه چې د هبې دعوىٰ کول د مدعي له طرفه د هبه کونکي کس د ملکيت اقرار دی وَدَعْوَى الشِّرَاءِ رُجُوعٌ عَنْهُ او د رانيولو دعوىٰ کول [بيرته] له دغه اقرار څخه رجوع کول دي فَعُدَّ مُنَاقِضًا نو ځکه هغه به مناقض [تناقض والا] شمارل کيږي بِخِلَافِ

مَا إِذَا ادَّعَى الشِّرَاءَ بَعْدَ الْهِبَةِ په خلاف د هغه صورت کله چې تر هبې وروسته د رانیولو دعویٰ وکړي لِأَنَّهُ تَقْرِيْرُ مِلْكِهِ عِنْدَهَا ځکه چې دا د هبې په وخت کې د هبه کوونکي ملکیت ثابتوي.

**اللغات**: ﴿يد﴾ قبضه، ﴿بيّنة﴾ گواهي، ﴿جحد﴾ د فتح د باب ماضي ده: انکار کول، ﴿التوفيق﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: موافق کول، مواقت پیدا کول (تطبیق ورکول).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې یو کور مثلاً د خالد په قبضه کې دی، او زید د قاضي په دربار کې په هغه دا دعویٰ وکړه چې "چې خالد هغه کور ما ته د دې کال د رجب د میاشتې پر شلم تاریخ هبه کړی"، قاضي وویل چې صحیح ده! خپل پر دعویٰ بیّنه پېش کړه!، نو په دې خبرې سره د زید (مدعي) دماغ ځای ته راغلی او ویې ویل "جَحَدَنِيْ فَاشْتَرَيْتُهَا" یعني "اول خالد هغه کور ما ته هبه کړی لیکن وروسته هغه له هبې څخه انکار وکړی، نو بیا ما کور ځني رانیوی" او پر رانیولو زما سره بیّنه سته، قاضي وویل چې خپل بیّنه او گواهان حاضر کړه!، کله چې گواهان راغله نو هغو دا گواهي یې پېش کړه چې زید له خالد څخه هغه کور د رجب د میاشتې پر پنځم تاریخ رانیوی. یعني گواهانو د هبې له وخت (شلم رجب) څخه پنځلس ورځې مخکې د رانیولو وخت بیان کړی، نو په دې صورت کې به قاضي د مدعي (زید) دعویٰ نه قبلوي؛ ځکه چې د گواهانو د گواهي او د مدعي د دعوې تر مینځ ښکاره تضاد سته. په دې توگه چې د رانیولو دعویٰ او گواهي باید پر شلم رجب وای یا تر هغه وروسته وای (یعني باید گواهان داسې ویلي وای چې زید هغه کور د رجب د میاشتې پر شلم یا مثلاً پنځویشتم تاریخ له خالد څخه رانیوی، نو په دې صورت کې به د دعویٰ او بیّنې په مینځ کې مطابقت وای) حال دا چې دلته بیّنه (گواهي) له شلم رجب څخه د مخکې تاریخ ده، او ښکاره خبره ده چې د دعویٰ د صحت لپاره دا هم شرط او ضروري دي چې بیّنه به د دعوې مطابق وي، نو ځکه به قاضي د مدعي (زید) دا دعوی ردوي. لیکن که چیري گواهان مثلاً په پنځویشتم رجب د رانیولو گواهي ورکړي (چې زید هغه کور په پنځویشتم یا مثلاً په نهه ویشتم تاریخ رانیولی دی)، نو څرنگه چې په دې صورت کې بیّنه د مدعي تر دعوې د وروسته تاریخ والا ده او د دعوې مطابق ده، نو ځکه قاضي به هغه قبلوي او په قابض (خالد) به هغه کور خالي کوي.

ولوکان ادّعٰی إلخ: فرمایي چې که زید دا دعویٰ وکړه چې "خالد د رجب پر شلم تاریخ دا کور ما ته هبه کړی"، او دا خبره یې نه وکړه "جَحَدَنِيْ فَاشْتَرَيْتُهَا"، بلکې صرف د رانیولو دعویٰ یې وکړه او گواهانو له شلم رجب څخه د مخکې تاریخ گواهي ورکړه، مثلاً هغو وویل چې زید دا کور په پنځم رجب له

خالد څخه رانيوى، نو په دې صورت کي به هم د مدعي (زيد) دعوىٰ نه قبلول کيږي، همداسي د جامع صغير په بعضي نسخو کي ذکر سوي دي.

د دې دليل دا دى چي مدعي (زيد) چي کله د دې کور د هبې دعوىٰ وکړه (چي دا کور واهب ما ته پر شلم رجب هبه کړى) نو ګواکي زيد د واهب د مالک کېدلو اقرار وکړى چي واهب (خالد) پر شلم رجب د دې کور مالک وو، لېکن بيا چي کله هغه پر پنځم تاريخ د رانيولو دعوىٰ وکړه نو ګواکي هغه له خپل مخکني اقرار څخه رجوع وکړه، يعني کله چي ګواهانو وويل چي زيد دغه کور په پنځم رجب له خالد څخه رانيوى، نو دا د دې خبره دعوىٰ ده چي په شلم رجب خالد د دې کور مالک نه وو، حال دا چي زيد مخکي په شلم رجب د خالد د مالک کېدلو اقرار کړى دى، نو څرنګه چي په دې صورت کي هم د مدعي په دعوو کي تضاد او تناقض دى، نو ځکه دلته به هم نه د هغه د رانيولو دعوىٰ معتبره وي او نه به د هغه بيّنه معتبره او مقبوله وي (يعني بيّنه به يې نه قبلول کيږي).

بخلاف ما ادعٰى: ها! که چيري هغه تر هبې وروسته د رانيولو دعوىٰ وکړي او بيّنه هم د وروسته تاريخ والا پېش کړي، مثلاً داسي ووايي چي "خالد پر شلم رجب دا کور ما ته هبه کړى بيا په پنځويشتم رجب ما دا کور له هغه څخه رانيوى"، نو څرنګه چي دلته د هبې او رانيولو په دواړو دعوو کي صرف واهب (خالد) د هغه کور مالک شمارل سوى دى، يعني په دواړو دعوو کي د خالد د مالک کېدلو اقرار سوى دى، نو ځکه د هغه په دعوو کي تضاد او تناقض پاته نه سو، او کله چي د هغه (زيد) په دعوو کي تضاد پاته نه سو، نو ځکه په دې صورت کي به د هغه بيّنه هم قبلول کيږي.

## د مشتري له رانيولو څخه د انکار کولو بيان

وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ: اِشْتَرَيْتَ مِنِّيْ هٰذِهِ الْجَارِيَةَ او که څوک بل چا ته ووايي: چي تا زما څخه دا مينځه رانيولې وه فَأَنْكَرَ الْآخَرُ او دا بل يوه انکار وکړى إِنْ أَجْمَعَ الْبَائِعُ عَلٰى تَرْكِ الْخُصُوْمَةِ نو که [په دې صورت کي] بائع د دعوى [او جنګ] پرېښوولو پخه اراده وکړي وَسِعَهُ أَنْ يَطَأَهَا نو بيا د بائع لپاره دا جائز دي چي د هغه مينځي سره وطي وکړي [يعني د خصومت پرېښوولو د عزم په صورت کي د هغې سره د بائع وطي کول حلال دي] لِأَنَّ الْمُشْتَرِيَ لَمَّا جَحَدَ ځکه کله چي مشتري انکار وکړى كَانَ فَسْخًا مِنْ جِهَتِهٖ نو دا د هغه له طرفه [د بيع] فسخ کول سو إِذِ الْفَسْخُ يَثْبُتُ بِهٖ ځکه چي په انکار سره فسخ ثابتيږي كَمَا إِذَا تَجَاحَدَا لکه څرنګه چي [په هغه وخت کي فسخ ثابتيږي] کله چي دواړه انکار وکړي فَإِذَا عَزَمَ الْبَائِعُ

عَلٰى تَرْكِ الْخُصُوْمَةِ بيا چي كله بائع د خصومت پرېښوولو عزم وكړي تَمَّ الْفَسْخُ نو فسخ پوره سوه وَبِمُجَرَّدِ الْعَزْمِ إِنْ كَانَ لَا يَثْبُتُ الْفَسْخُ او محض په عزم كولو سره كه څه هم فسخ نه ثابتيږي فَقَدِ اقْتَرَنَ بِالْفِعْلِ لېكن [دلته] هغه ديو فعل سره متصل سوه وَهُوَ إِمْسَاكُ الْجَارِيَةِ وَنَقْلُهَا وَمَا يُضَاهِيْهِ او هغه [فعل] مينځه د ځان سره راګرځول او هغه [خپل كور ته] نقلول او داسي نور دي وَلِأَنَّهُ لَمَّا تَعَذَّرَ اِسْتِيْفَاءُ الثَّمَنِ مِنَ الْمُشْتَرِيْ او ځكه كله له مشتري څخه د ثمن اخيستل ناممكن سو فَاتَ رِضَاءُ الْبَائِعِ نو د بائع رضا فوت سوه فَيَسْتَبِدُّ بِفَسْخِهِ نو ځكه هغه به د دې عقد په فسخ كولو كي مستقل وي.

**اللغات**: ﴿أجمع﴾ د افعال د باب ماضي ده: مراد ځني ټينګه او پخه اراده كول دي، همدا معنیٰ د عَزَمَ ده. ﴿خصومة﴾ جنګ او جنجال، دعوىٰ. ﴿وسعه﴾ د سمع د باب ماضي صيغه ده، وَسِعَ يَسَعُ سَعَةً: ګنجايش كېدل، په يو شي كي تنګي نه كېدل او پراخي پكښي راتلل، مراد ځني جائز كېدل دي، ځكه ديو كار د جائز كېدلو مطلب همدا دی چي په هغه كي تنګي نه كېدل بلكي پراخي او ګنجايش پكښي راتلل (معجم وسيط). ﴿يُضاهيه﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: مشابه كېدل، ورته كېدل. ﴿يستبدّ﴾ د استفعال د باب مضارع ده: مستقل كېدل، منفرد كېدل، يوازېنی كېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی كه يو سړی (مثلا خالد) بل سړي (حامد) ته ووايي چي "تا زما څخه دا مينځه رانيولې وه" مګر مشتري (حامد) له دې څخه انكار وكړي، اوس كه بائع (خالد) دا عزم او پخه اراده وكړي چي "زه به وروسته د مشتري سره د بيع په باره كي جنجال او دعوىٰ نه كوم"، نو بيا د بائع (خالد) لپاره د دې مينځي سره وطي كول حلال دي، كه څه هم بائع په ژباني توګه دا عزم ښكاره نه كړي، يعني په ژبه سره دا پورتنۍ خبره نه وكړي چي "زه به وروسته د مشتري سره... الخ".

دليل دا دی چي كله مشتري (حامد) د بيع له عقد څخه انكار وكړي نو د مشتري له طرفه د بيع فسخ كېدل ثابت سو؛ ځكه بيع چي څرنګه د فسخ په لفظ سره فسخ كيږي همداسي په جحود (انكار) سره هم فسخ كيږي؛ ځكه د جحود معنیٰ ده "له عقد څخه انكار كول"، او د فسخ معنیٰ ده "عقد ماتول او ختمول"، او په دې دواړو معناوو كي مناسبت ښكاره دی، لهذا كله چي په دواړو معناوو كي مناسبت سته نو ځكه دا دواړه لفظونه يعني "جحود او فسخ" به يو د بل پر ځای استعمالول صحيح وي.

لهذا څرنګه چي په هغه وخت کي په يقيني توګه فسخ ثابتيږي کله چي بائع او مشتري دواړه په ګډه د بيع له عقد څخه انکار وکړي، نو همداسي کله چي مشتري د بيع له عقد څخه انکار وکړي نو دا هم به د مشتري له طرفه فسخ وي. لنډه دا چي د مينځي دغه بيع د مشتري له طرفه فسخ سوه، او بيا چي کله بائع د خصومت او دعوىٰ پرېښوولو ټينګه اراده وکړه، نو له دواړو طرفو څخه فسخ پوره سوه، او کله چي د بائع او مشتري دواړو له طرفه بيع فسخ سوه، نو ځکه د بائع لپاره به په خپل مبيع يعني په مينځه کي تصرف کول حلال او جائز وي.

وبمجرد العزم إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دى. سوال دا دى چي فسخ يو فعل دى او محض په عزم او اراده سره هيڅ فعل او هيڅ حکم نه ثابتيږي، لهذا په ژبه سره ويل او په ژبه سره فسخ کول ضروري دي، نو ځکه دلته به محض د بائع په عزم (چي زه به خصومت نه ورسره کوم) سره فسخ نه ثابتيږي، او کله چي د بائع په عزم سره فسخ ثابته نه سوه، نو بيا به څنګه د هغه مينځي سره د بائع وطي کول حلال وي؟

ددې جواب دا دى چي د بيع فسخ که څه هم محض په عزم او اراده سره نه ثابتيږي، لېکن دلته د عزم او ارادې سره، سره د بائع له طرفه يو فعل هم صادر سوى دى او هغه دا چي بائع مينځه د ځان سره راګرځولې ده او هغه يې خپل کور ته راوستې ده (او اوس په هغې خپل خدمتونه کوي)، او معلومه خبره ده چي د بائع له طرفه دا ټوله افعال بغير له فسخ نه صادريږي، نو ځکه دلالتاً د بائع له طرفه هم د بيع فسخ موجوده سوه، او کله چي د بيع فسخ موجوده سوه، نو د بائع لپاره به د هغه مينځي سره وطي کول هم حلال او جائز وي.

ولأنه لما تعذر إلخ: دويم دليل دا دى چي کله مشتري د بيع له عقد څخه انکار وکړى نو ښکاره خبره ده چي اوس له هغه څخه ثمن اخيستل ناممکن شو (يعني اوس بائع له هغه څخه ثمن نه سي اخيستلاى)، حال دا چي بائع صرف د ثمن په خاطر په دې عقد (بيع) راضي سوى دى، لېکن کله چي د ثمن اخيستل ناممکن سوه، نو ځکه د بائع رضا هم فوت سوه او بائع په خپله د دې عقد په فسخ کولو کي مستقل او منفرد سو، لهذا کله چي هغه د عقد په فسخ کولو کي مستقل دى، نو برابره ده هغه په عزم او اراده سره عقد فسخ کړي او که په ژباني توګه يې فسخ کړي، په هر صورت کي به د هغه له طرفه فسخ ثابتيږي.

## له يو چا څخه پر خپل څه مال د قبضه کولو اقرار کول (تفصيلي بيان)

| |
|---|
| قَالَ: وَمَنْ أَقَرَّ أَنَّهُ قَبَضَ مِنْ فُلَانٍ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ فرمايي: او که څوک اقرار وکړي چي ما له فلانکي څخه [خپل] لس دراهم قبضه کړل ثُمَّ ادَّعَىٰ أَنَّهَا زُيُوفٌ بيا هغه دعوىٰ وکړي چي هغه دراهم کوټه دي صُدِّقَ نو د هغه تصديق به کيږي [يعني قول او دعوىٰ به يې قبلول کيږي] وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ: اِقْتَضَى وَهُوَ عِبَارَةٌ عَنِ الْقَبْضِ أَيْضًا او [د جامع صغير] په بعضي نسخو کي د "اقتضى" لفظ ذکر سوى دى او |

هغه هم له قبضې څخه عبارت دی. وَوَجْهُهُ: أَنَّ الزُّيُوفَ مِنْ جِنْسِ الدَّرَاهِمِ او د دې وجه دا ده چې کوټه دراهم [هم] د دراهمو له جنس څخه دي إِلَّا أَنَّهَا مَعِيبَةٌ مګر دا چې هغه عيبجن دي وَلِهَذَا لَوْ تَجَوَّزَ بِهِ فِي الصَّرْفِ وَالسَّلَمِ او همدا وجه ده كه يو څوک په بيع صَرف او بيع سَلم کې د کوټه دراهمو په اخيستلو کې چشم پوشي وکړي [يعني کوټه دراهم ووينې خو بيا هم قصداً سترګې پر پټې کړي او قبول يې کړي] جَازَ نو جائز دي وَالْقَبْضُ لَا يَخْتَصُّ بِالْجِيَادِ او قبضه کول د کَرَه دراهمو سره خاص نه دي فَيُصَدَّقُ نو ځکه د هغه تصديق به کيږي لِأَنَّهُ أَنْكَرَ قَبْضَ حَقِّهِ ځکه چې هغه پر خپل حق له قبضه کولو څخه انکار وکړی بِخِلَافِ مَا إِذَا أَقَرَّ أَنَّهُ قَبَضَ الْجِيَادَ أَوْ حَقَّهُ أَوِ الثَّمَنَ أَوِ اسْتَوْفَى په خلاف د هغه صورت کله چې هغه پر کَرَه دراهمو د قبضه کولو يا پر خپل حق د قبضه کولو يا پر ثمن د قبضه کولو يا په پوره توګه [د خپل حق] د اخيستلو اقرار وکړي [د دې جملې ترجمه داسې هم ويل کېدای سي: په خلاف د هغه صورت کله چې هغه داسې اقرار وکړي چې ما پر کَرَه دراهمو قبضه وکړه. يا مې پر خپل حق يا پر ثمن قبضه وکړه. يا مې خپل حق په پوره توګه واخيستی] لِإِقْرَارِهِ بِقَبْضِ الْجِيَادِ صَرِيحًا أَوْ دَلَالَةً ځکه چې [په دې صورتونو کې] هغه پر کَرَه دراهمو د قبضه کولو صراحتاً يا دلالتاً اقرار کړی دی فَلَا يُصَدَّقُ نو ځکه د هغه تصديق به نه کيږي وَالنَّبَهْرَجَةُ كَالزُّيُوفِ او نبهرجه دراهم د کوټه دراهمو په څېر دي وَفِي السَّتُّوقَةِ لَا يُصَدَّقُ او د ستوقه دراهمو په صورت کې به د هغه تصديق نه کيږي لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ جِنْسِ الدَّرَاهِمِ ځکه چې هغه د دراهمو له جنس څخه نه دي حَتَّى لَوْ تَجَوَّزَ بِهِ فِيمَا ذَكَرْنَا همدا وجه ده که زموږ په ذکر سوي عقدونو [يعني په بيع صَرف او بيع سَلم] کې يو څوک په ستوقه دراهمو کې چشم پوشي وکړي لَا يَجُوزُ نو جائز دي وَالزَّيْفُ مَا زَيَّفَهُ بَيْتُ الْمَالِ او زيف هغه درهم دی کوم چې يې بيتُ المال کوټه وګرځوي وَالنَّبَهْرَجَةُ مَا يَرُدُّهُ التُّجَّارُ او نبهرجه هغه دراهم دي کوم چې يې تاجران ردوي وَالسَّتُّوقَةُ مَا يَغْلِبُ عَلَيْهِ الْغِشُّ او ستوقه هغه دراهم دي چې پر هغوی کوټ [کوټه والې] غالب وي.

**اللغات:** ﴿زُيُوف﴾ جمع د زَيْفٌ ده: کوټه درهم، يعني هغه درهم کوم چې خالص سپين زر نه وي بلکې بل شی (مثلاً ژړ يا ګيلټ يا داسې بل فلز) هم په ګډ وي لېکن سپين زر پکښې غالب وي، او صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله يې داسې تعريف کړی دی چې "زيف" هغه درهم ته وايي کوم چې يې

بیتُ المال کوټه وشماري لیکن کاروباري حضرات هغه قبلوي. ﴿تجوّز﴾ د تفعل ماضي ده: چشم پوشي کول، پر تاوان سترګي پټول، نقصان برداشت کول (مثلا که مالک د مزدور په کار کي خرابي وویني، خو بیا هم قصداً سترګي پر پټي کړي او هغه برداشت کړي [وزغمي] او معاف یې کړي. نو دې ته "تجوز" وایي).

﴿جِیاد﴾ جمع د جَیِّدٌ ده: کَرَه درهم، یعني هغه درهم کوم چي له خالص سپینو زرو څخه جوړ وي، ﴿استوفٰی﴾ حق په پوره توګه اخیستل، ترلاسه کول. ﴿النبهرجة﴾ دا د مصنف رَحِمَهُ الله په علاقو کي یو قسم کوټه درهم وو یعني کوټ (ژړ یا داسي بل فلز) به په ګډ وو. او سپین زر به پې غالب وو، لیکن تاجرانو به هغه نه قبلوی، ګواکي نبهرجه دراهم له زیوف څخه هم کمزوري ول. ﴿ستوقة﴾ د دې لغوي معني ده: "درې طاقه والا"، هغه درهم ته وایي کوم چي له ژړو یا داسي بل فلز او معدن څخه جوړ وي او فقط د پاسه د سپینو زرو رنګ ورکول سوی وي، یعني ستوقه درهم دننه ټوله کوټ وي. ﴿غش﴾ کوټ (مراد ځني د بل شي ګډون دی).

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی (مثلا خالد) دا اقرار وکړي چي "ما له فلانکي سړي څخه د خپل قرض یا د خپل ثمن پر لسو درهمو قبضه وکړه" بیا متصلاً یا څه وخت وروسته دا دعویٰ وکړي چي "هغه دراهم کوټه وه"، نو د دغه مقر (خالد) قول مع الیمین معتبر دی، یعني د هغه قول او دعویٰ به د قسم سره قبلول کیږي.

وفی بعض النسخ إلخ د جامع صغیر په ځیني نسخو کي د "قَبَضَ" پر ځای د "اِقْتَضٰی" لفظ ذکر سوی دی، په دې ځای کي د دواړو معنیٰ یوه ده یعني "قبضه کول".

ووجهه إلخ: د پورتني مسئلې دلیل دا دی چي کوټه دراهم (زیوف) هم د درهم له جنس څخه دي، یعني کوټه دراهم خو هم دراهم دي، صرف خبره دا ده چي کوټه دراهم عیبجن دراهم دي؛ دلیل د دې خبري چي کوټه دراهم (زیوف) هم درهم له جنس څخه دي، دا دی چي په بیع صَرف او بیع سَلَم کي پر دواړو عوضونو له قبضه کولو څخه مخکي استبدال جائز نه دی، یعني په بیع صَرف او بیع سَلم کي پر یوه عوض له قبضه کولو څخه مخکي د هغه په بدله کي بل شی اخیستل (یعني یو عوض په بل شي سره بدلول) جائز نه دي، حالانکي که په بیع صَرف کي یو عاقد د کره (جیاد) دراهمو پر ځای بل عاقد ته کوټه درهم ورکړي او دا بل عاقد هغه کوټه دراهم قصداً قبول کړي، نو دا جائز دي (یعني په دې صورت کي بیع صَرف جائز ده). له دې څخه معلومه سوه چي کوټه دراهم (زیوف) هم دراهم دي، ځکه که هغه دراهم نه وای بلکي بل شی وای نو پر دراهمو (بدل صرف) به له قبضه کولو څخه مخکي استبدال لازم سوي وای (یعني دا به ویل کېدای چي ګواکي دغه عاقد د کَرَه دراهمو په بدله کي بل شی واخیستی) او په بیع

صرف کي استبدال ناجائز دی. لنډه دا چي د کَرَه دراهمو پر ځای د کوټه دراهمو د ورکولو جائز کېدل د دې خبرې علامت دی چي کوټه دراهم (زیوف) هم دراهم دي. او د بیع سَلم صورت دا دی چي مثلاً یو څوک د پنځوس درهمو په عوض کي پنځه منه غنم په بیع سَلم سره رانیسي. بیا ربُ السلم د پنځوس کَرَه دراهمو پر ځای کوټه دراهم ورکړي او مسلم الیه هغه قبول کړي، نو دا جائز دي. له دې څخه هم معلومه سوه چي کوټه دراهم (زیوف) دراهم دي؛ ځکه که هغه دراهم نه وای بلکي بل شی وای نو دا بیع سَلم به جائز نه وای؛ ځکه چي پر رأسُ المال له قبضه کولو څخه مخکي د هغه په بدله کي بل شی اخیستل ناجائز دي.

والقبض لا یختص بالجیاد إلخ: دا د یو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چي کله مقر (خالد) پر لسو درهمو د قبضه کولو اقرار وکړی نو ګواکي هغه پر خپل حق د قبضه کولو اقرار وکړی (یعني ګواکي هغه وویل چيَ ما پر خپل حق قبضه وکړه)؛ ځکه چي د قبضې اقرار کول پر خپل حق د قبضه کولو اقرار لره مستلزم وي، او ښکاره خبره ده چي د هغه حق په کَرَه دراهمو کي دی، نو د مقر مطلقاً اقرار کول پر کَرَه دراهمو د قبضه کولو اقرار لره مستلزم سو، یعني ګواکي مقر پر کَرَه دراهمو قبضه وکړه، او کله چي مقر پر کَرَه دراهمو د قبضې اقرار کړی دی، نو ځکه وروسته د مقر په دې دعویٰ "چي هغه کوټه دراهم وه" سره به د مقر په قول کي تناقض راسي، او ښکاره خبره ده چي د تناقض په صورت کي دعویٰ نه قبلول کیږي، نو ځکه د مقر دغه قول او دعویٰ هم قبلول پکار نه دي.

د دې جواب دا دی چي قبضه فقط د کَرَه دراهمو سره خاص نه ده بلکي په کره او کوټه دواړو درهمو کي ثابتیږي، مثلاً که یو څوک داسي ووایي چي "ما پر لسو درهمو قبضه وکړه" نو دا قبضه پر کره او کوټه دواړو درهمو صادقیږي، یعني دا هم کېدای سي چي هغه دي لس کَرَه دراهم وي او دا هم کېدای سي چي هغه دي کوټه دراهم وي. لهذا کله چي قبضه د کَرَه دراهمو سره خاص نه ده، نو پر لس درهمو د قبضه کولو اقرار به پر کَرَه دراهمو د قبضه کولو اقرار لره مستلزم نه وي، او کله چي پر لس درهمو د قبضې اقرار پر کَرَه دراهمو د قبضې اقرار لره مستلزم نه دی ، نو ځکه تر قبضې وروسته به د هغه دراهمو د کوټه والي په دعویٰ سره د مقر په قول کي تناقض رانه ي، بلکي مقر به پر خپل حق له قبضه کولو څخه منکر وي (یعني د مُقِر مطلب دا دی چي ما پر خپل حق [کَرَه دراهمو] قبضه نه ده کړې)، او د منکر قول مع الیمین معتبر وي. نو ځکه د هغه قول به هم مع الیمین معتبر وي او د هغه قول او دعویٰ به قبلول کیږي.

بخلاف إلخ: ها! که یو سړی دا اقرار وکړي چي "ما پر کره لس دراهمو قبضه وکړه، یا مي پر خپل حق قبضه وکړه، یا مي پر ثمن قبضه وکړه، یا مي په پوره توګه خپل حق واخیستی"، او تر دې وروسته

دا سړی د هغه دراهمو د کوټه والي (زيافت) دعوىٰ وکړي، نو د هغه قول به نه منل کيـږي، يعني د کوټه والي (زيافت) دعوىٰ به يې نه قبلول کيږي؛ ځکه چي دلته دغه سړي صراحتاً يا دلالتاً پر کَـرَه دراهمو د قبضه کولو اقرار کړی دی؛ په اول صورت کي خو پر کَرَه دراهمو د قبضې اقرار صراحتاً ثابت دی. او په دويم صورت کي ځکه (پر کَرَه دراهمو د قبضې اقرار دی، ځکه) چي هغه داسي ويلي دي چي ما پر خپل حق قبضه وکړه، او د هغه حق په کَرَه دراهمو کي دي، نو ځکه پر خپل حق د قبضې اقرار کول پر کَرَه دراهمو د قبضې اقرار کول دي. او همدارنګه کله چي هغه داسي ووېل چي ما پر خپل ثمن قبضه وکړه او ثمن مي واخستی، نو دا هم پر کَـرَه دراهمو د قبضې اقرار دی، ځکه چي په ثمن کي کَرَه دراهم تاکل کيـږي، نه کوټه دراهم. همدارنګه کله چي هغه د "استوفى" لفظ ذکر کړی يعني "ما په پوره توګه خپل حق واخيستی"، نو دا هم پر کَـرَه دراهمو د قبضې اقرار دی؛ ځکه په پوره توګه اخيستل هغه وخت ثابتيږي کله چي په وصف تام (کامل وصف) سره قبضـه سوې وي، او وصف تام جودت (کَرَه والي) دی، نه زيافت (کوټه والی). نو معلومه سوه چي په دې صورت کي هم مقر پر کَـرَه دراهمو د قبضې اقرار کړی دی، لهذا کله چي په دې ټولو صورتونو کي هغه صراحتاً يا دلالتاً پر کَـرَه دراهمو د قبضه کولو اقرار کړی دی، نو ځکه تر دې وروسته به د هغوی د کوټه والي دعوىٰ کول د مقر په قول کي تناقض پيدا کړي، او د تناقص په صورت کي دعوىٰ معتبره نه وي يعني نه قبلول کيـږي، نو ځکه په مذکوره صورتونو کي به هم د مقر د کوټه والي دعوىٰ نه قبلول کيـږي.

والنبهرجة إلخ: فرمايي چي د نبهرجه دراهمو حکم هم د کوټه دراهمو په شان دي، يعني که يو سړی (مثلاً خالد) ووايي چي "ما له فلانکي شخه پر لسو درهمو قبضـه وکړه"، او بيا دا سړی (خالد) دعوىٰ وکړي چي "هغه نبهرجه دراهم وه" نو د هغه قول او دعوىٰ به قبلول کيـږي، لکه څرنګه چي د کوټه والي د دعوې په صورت کي د هغه قول قبلول کيـږي. لنډه دا چي څرنګه کوټه دراهم د دراهمو له جنس شخه دي همداسي نبهرجه هم د دراهمو له جنس شخه دي.

لېکن که دا سړی د قبضې تر اقرار وروسته د هغه دراهمو د ستوقه والي دعوىٰ وکړي (چي هغه ستوقه دراهم وه) نو دا دعوىٰ به نه قبلول کيـږي؛ ځکه چي ستوقه دراهم د دراهمو له جنس شخه نه دي، همدا وجه ده که يو عاقد له قبضه کولو شخه مخکي په بيع صَرف يا بيع سَلم کي د کَرَه دراهمو په بدله کي ستوقه دراهم ورکړي او بل عاقد يې قصداً قبول کړي، نو دا جائز نه دي؛ ځکه چي دراهم ستوقه د دراهمو له جنس شخه نه دي.

والزيف ما زيفه إلخ: د زيوف، نبهرجه او ستوقه پوره تعريف په لغاتو کي ذکر سو.

## له اقرار ردولو څخه وروسته دعوىٰ کول

قَالَ: وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ: لَكَ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ فرمايي: او که يو سړی بل سړي ته ووايي: چي ستا پر ما زر درهمه دي فَقَالَ: لَيْسَ لِيْ عَلَيْكَ شَيْءٌ نو هغه ووايي: چي ستا پر ما هيڅ شی نسته ثُمَّ قَالَ فِيْ مَكَانِهِ: بَلْ لِيْ عَلَيْكَ أَلْفُ دِرْهَمٍ بيا اول سړی پر هغه ځای ووايي: چي بلکي زما پر تا زر درهمه دي فَلَيْسَ عَلَيْهِ شَيْءٌ نو پر هغه هيڅ شی واجب نه دي لِأَنَّ إِقْرَارَهُ هُوَ الْأَوَّلُ ځکه چي د هغه اقرار [تر دعوىٰ] مخکي دی وَقَدِ ارْتَدَّ بِرَدِّ الْمُقَرِّ لَهُ او هغه د مقرلهٗ په ردولو سره رد شو وَالثَّانِي دَعْوٰى او دويم دعوی ده فَلَا بُدَّ مِنَ الْحُجَّةِ أَوْ تَصْدِيْقِ خَصْمِهِ نو ځکه حجت يا د هغه د خصم تصديق ضروري دی بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ لِغَيْرِهِ: اشْتَرَيْتَ په خلاف د هغه صورت کله چي [يوڅوک] بل چا ته ووايي: تا [زما څخه] رانيوی وَأَنْكَرَ الْآخَرُ او هغه بل يو انکار وکړي لَهُ أَنْ يُصَدِّقَهُ نو [هم] هغه ته دا اختيار سته چي د مشتري د قول تصديق وکړي لِأَنَّ أَحَدَ الْمُتَعَاقِدَيْنِ لَا يَتَفَرَّدُ بِالْفَسْخِ ځکه چي [فقط] يو عاقد يوازي [عقد] نه سي فسخ کولای كَمَا لَا يَتَفَرَّدُ بِالْعَقْدِ لکه څرنګه چي هغه يوازي عقد نه سي کولای وَالْمَعْنٰى أَنَّهُ حَقُّهُمَا او په دې کي راز دا دی چي فسخ د هغوی دواړو حق ده فَبَقِيَ الْعَقْدُ نو ځکه عقد به باقي پاته سي فَيَعْمَلُ التَّصْدِيْقُ او پر تصديق به عمل کيږي أَمَّا الْمُقَرُّ لَهُ يَتَفَرَّدُ بِرَدِّ الْإِقْرَارِ او پاته سو مقرلهٗ نو هغه يوازي اقرار ردولای سي فَافْتَرَقَا نو ځکه دواړه مسئلې يو له بل څخه جلا سوې.

**اللغات**: ﴿ارتدّ﴾ د افتعال د باب ماضي ده: ردېدل (رد کېدل)، ﴿تصديق﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: رېښتونی بلل (گنل)، خبره ورسره منل، ﴿خصم﴾ مخالف فريق (بل طرف والا)، مدعي او مدعیٰ عليه يو د بل خصم دي، ﴿يتفرّد﴾ د تفعّل مضارع ده: يوازي کېدل (په يو کار کي يوازېنی کېدل). تنها کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مثلاً خالد وحامد ته ووايي چي ستا پر ما زر درهمه باندي دي". او مقر لهٗ يعني حامد ووايي چي "ما پر تا هيڅ ثمن نسته". بيا مقر يعني خالد پر هغه ځای ناسي ووايي "بلکي ما پر تا زر درهمه باندي دي". نو پر مقر يعني پر خالد هيڅ شی نه واجبېږي.

دليل دا دی چي دلته د مقر (خالد) له طرفه دوې خبري سوي دي: ① يو د مقرلهٗ (حامد) لپاره د زرو درهمو اقرار. ② او دويم پر حامد د زرو درهمو دعوىٰ. اوله خبره يعني د زرو درهمو اقرار، نو هغه

خو د مقرلهٔ (حامد) په ردولو سره رد سو؛ ځکه چې اقرار بالدین او همدارنګه اقرار بالعین د مقرلهٔ په ردولو سره رد کیږي، لهذا کله چې د مقر (خالد) له طرفه د زر درهمو اقرار د مقرلهٔ (حامد) په ردولو سره رد سو. نو ځکه پر مقر (خالد) به هیڅ شی واجب نه وي. لهذا که چیرې له ردولو څخه وروسته مقرلهٔ د مقر تصدیق وکړي (چې "هو! ما پر تا زر درهمه باندې دي")، نو د هغه تصدیق به معتبر نه وي.

او پاته سوه دویمه خبره یعني پر حامد د زرو درهمو دعوی. نو د هغه د ثابتولو لپاره به یا خالد بیّنه پېشوي یا خصم یعني حامد به د هغه تصدیق کوي.

بخلاف إلخ: فرمایي که خالد مثلاً و حامد ته وایي چې "تا زما څخه دا غلام رانیولی دی". او حامد انکار وکړي، نو په دې صورت کې که څه هم تر انکار وروسته حامد د خالد د قول تصدیق وکړي. نو د هغه تصدیق کول به صحیح او معتبر وي. لهذا د اقرار بالدین او اقرار بالبیع د مسئلې په مینځ کې فرق دا سو چې اقرار بالدین د مقرلهٔ په ردولو سره ردّ کیږي، او اقرار بالبیع د مقرلهٔ په ردولو سره نه ردّ کیږي: او وجه د فرق یې دا ده چې څرنګه یو عاقد یوازې (پر خپل سر) بیع نه سي منعقد کولای (ځکه چې بیع د دواړو عاقدَینو په ایجاب و قبول سره منعقد کیږي) همداسې یو عاقد یوازې هغه فسخ کولای هم نه سي؛ ځکه چې فسخ د دواړو عاقدَینو حق ده. نو ځکه د مقرلهٔ یعني د حامد په ردولو سره به بیع نه فسخ کیږي. او کله چې د حامد د ردولو باوجود بیع باقي پاته سوه. نو ځکه له ردولو څخه وروسته به د حامد تصدیق کول مفید او مؤثر وي. او کله چې د حامد تصدیق کول مفید او مؤثر دي. نو د هغه تصدیق به معتبر هم وي.

او پاته سوه د اقرار بالدین مسئله. نو اقرار بالدین یوازې مقرلهٔ ردولای سي. او کله چې مقرلهٔ یوازې اقرار بالدین ردولای سي، نو ځکه د هغه له ردولو څخه وروسته دَین باقي پاته نه سو، او کله چې دَین باقي نه سو پاته. نو ځکه له ردولو څخه وروسته به د مقرلهٔ له طرفه د قرض تصدیق کول هم معتبر نه وي. همدا د اقرار بالدین او اقرار بالبیع په مینځ کې فرق دی.

## که منکر کس د مدعي تر بیّنې وروسته خپل پر اداء کولو یا بري کولو بیّنه پېش کړي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَمَنِ ادَّعٰى عَلٰى آخَرَ مَالًا فرمایي: او که یو سړي د بل چا په مال دعویٰ وکړه فَقَالَ: مَا كَانَ لَكَ عَلَيَّ شَيْءٌ قَطُّ نو مدعیٰ علیه وویل: چې ستا پر ما هیڅکله هیڅ شی نه وو فَأَقَامَ الْمُدَّعِي الْبَيِّنَةَ عَلَى أَلْفٍ وَأَقَامَ هُوَ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْقَضَاءِ نو مدعي پر زر درهمو بیّنه پېش کړه او مدعیٰ علیه پر اداء کولو بیّنه پېش کړه قُبِلَتْ بَيِّنَتُهُ نو د مدعیٰ علیه بیّنه به قبلول کیږي وَكَذٰلِكَ عَلَى الْإِبْرَاءِ او همدارنګه پر بري کولو وَقَالَ زُفَرُ: لَا تُقْبَلُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي: چې د مدعیٰ علیه بیّنه به نه قبلول

کیږي لِأَنَّ الْقَضَاءَ يَتْلُو الْوُجُوْبَ ځکه چي اداء کول تر وجوب وروسته وي وَقَدْ أَنْكَرَهُ حال دا چي هغه له وجوب څخه انکار کړی دی فَيَكُونُ مُنَاقِضًا نو ځکه هغه به مناقض [تناقض پیدا کونکی] وي وَلَنَا: أَنَّ التَّوْفِيْقَ مُمْكِنٌ او زمونږ دلیل دا دی چي توافق [موافقت پیدا کول] ممکن دي لِأَنَّ غَيْرَ الْحَقِّ قَدْ يُقْضٰى وَيُبْرَأُ مِنْهُ دَفْعًا لِلْخُصُوْمَةِ او ځکه چي ځیني وخت د خصومت دفع کولو لپاره نا حق مال هم اداء کول کیږي او له هغه څخه ځان بري کول کیږي أَلَا تَرٰى أَنَّهُ يُقَالُ: قَضٰى بِبَاطِلٍ آیا ته نه ګورې! ویل کیږي: چي فلانکي په نا حقه توګه اداء کړی [یا فلانکي نا حق مال اداء کړی] وَقَدْ يُصَالَحُ عَلٰى شَيْءٍ او ځیني وخت پر یو شي صلح کیږي فَيَثْبُتُ ثُمَّ يُقْضٰى نو هغه شی ثابتیږي بیا اداء کول کیږي وَكَذَا إِذَا قَالَ: لَيْسَ لَكَ عَلَيَّ شَيْءٌ قَطُّ او همدارنګه کله چي مدعیٰ علیه ووایي: تا پر ما هیڅ شی نسته لِأَنَّ التَّوْفِيْقَ أَظْهَرُ ځکه چي توافق ممکن دی.

**اللغات:** ﴿بیّنه﴾ ګواهي، ﴿یتلو﴾ د نصر مضارع ده: یو شی له بل څخه وروسته کېدل، تابع کېدل (وروسته کېدل)، ﴿توفیق﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: موافق کول، موافقت پیدا کول (تطبیق ورکول).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړي پر بل چا (مثلا پر زید) د مال دعویٰ وکړه چي "ما پر تا مال باندي وو"، او مدعیٰ علیه (زید) وویل چي "ستا پر ما هیڅکله هیڅ شی نه وو"، نو بیا مدعي پر زر درهمو بیّنه پېش کړه (چي ما پر هغه زر درهمه مال باندي وو)، او مدعیٰ علیه (زید) پر دې خبره بیّنه پېش کړه چي "ما د هغه مال اداء کړی، یا زه مدعي بري کړم"، نو په دې صورت کي به د مدعیٰ علیه بیّنه قبلول کیږي. لیکن امام زفر او ابن ابي لیلیٰ رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي د مدعیٰ علیه بیّنه به نه قبلول کیږي.

**دلیل:** د امام زفر او ابن ابي لیلیٰ رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي اداء کول تر وجوب وروسته کیږي (یعني اول یو شی واجبیږي، او تر واجبېدلو وروسته هغه اداء کیږي)، نو د مدعیٰ علیه له طرفه خپل د قرض اداء کولو یا د بري کولو په هکله بیّنه پېشول د دې خبرې علامت دی چي مدعیٰ علیه د مال د وجوب اقرار کوي (چي "پر ما ستا مال باندي وو")، حالانکي هغه تر دې مخکي د مال له وجوب څخه انکار کړی دی (چي "ستا پر ما هیڅ شی نه وو")، نو ځکه د مدعیٰ علیه په دعویٰ کي تناقض راغلی، او په دعویٰ کي تناقض دعویٰ فاسدوي، نو ځکه د مدعیٰ علیه د قرض اداء کولو یا د مدعي د بري کولو دعویٰ به فاسده

وي، او ښکاره خبره ده چي بيّنه صرف هماغه بيّنه قبلول کيږي کوم پر صحيح دعویٰ پېش کړی سي، پر فاسده دعویٰ چي کومه بيّنه پېش کړی سي هغه نه قبلول کيږي، نو ځکه د قرض اداء کولو يا بري کولو په هکله به د مدعیٰ عليه بيّنه نه قبلول کيږي، او کله چي د مدعیٰ عليه بيّنه قبوله نه سوه، نو ځکه د قرض د وجوب په هکله به د مدعي بيّنه قبلول کيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چي دلته د مدعیٰ عليه د انکار په دعویٰ کي او د قرض اداء کولو په دعویٰ کي تطبيق ورکول (موافقت پيدا کول) ممکن دي، نو ځکه هيڅ تناقض به نه وي، او تطبيق ځکه ممکن دی چي ځيني وخت شريف انسان د جنګ او جنجال د ليري کولو لپاره نا حق مال هم اداء کوي او د خپل عزت د ساتلو لپاره له هغه شخخه ځان بري کوي، همدا وجه ده چي داسي ويل کيږي "قَضٰى بِبَاطِلٍ" (فلانکي ناحق مال اداء کړی) لکه څرنګه چي "قَضٰى بِحَقٍ" ويل کيږي (فلانکي پر حق مال اداء کړی)، له دې څخه معلومه سوه چي څرنګه اداء کول په حقه طريقه سره کيږي همداسي په ناحقه طريقه سره هم کيږي. همدارنګه ځيني وخت مدعیٰ عليه له ناحق مال څخه انکار وکړي، لېکن بيا له جنګ او ذلالت څخه د ځان ساتلو لپاره د مدعي سره پر څه مال صلح وکړي او د صلح په نتيجه کي هغه مال ثابت سي او بيا هغه اداء کړی سي، يعني هغه مال اول په ناحقه توګه ثابت سي او بيا هغه اداء کړی سي، له دې څخه هم معلومه سوه چي د مال اداء کول په ناحقه توګه هم کيږي. نو ځکه د مدعیٰ عليه (زيد) دا خبره چي "ستا پر ما هيڅکله هيڅ شی باندي نه وو"، د دې مطلب دا دی چي "ستا پر ما په حقه توګه هيڅ شی باندي نه وو"، او د مدعیٰ عليه د اداء کولو د دعوې مطلب دا دی چي "ستا که څه هم هيڅ شی پر ما باندي نه وو، مګر ما له جنګ او جنجال څخه د ځان ساتلو لپاره په ناحقه سره ستا مال اداء کړی". اوس تاسو غور وکړی! د مدعیٰ عليه په دې دعوې کي هيڅ تناقض نسته، او کله چي د مدعیٰ عليه په دعویٰ کي تناقض نسته، نو د مدعیٰ عليه له طرفه به د مال اداء کولو يا د مدعي د بري کولو دعویٰ هم صحيح وي، او کله چي د مدعیٰ عليه دعویٰ صحيح ده، نو پر هغه پېش کړل سوې بيّنه به هم قبلول کيږي.

وكذا إلخ: همدارنګه که يو سړی پر بل څه د مال دعویٰ وکړي او مدعیٰ عليه انکار وکړي چي "ستا پر ما هيڅکله هيڅ شی نسته"، بيا مدعي پر خپله دعویٰ او مدعیٰ عليه د مال پر اداء کولو بيّنه پېش کړي، نو هم به د مدعیٰ عليه بيّنه قبلول کيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي د مدعیٰ عليه په قول کي تطبيق او موافقت زيات ښکاره دی، په دې توګه چي په "لَيْسَ لَكَ عَلَيَّ شَيْءٌ قَطُّ" کي د "لَيْسَ"

لفظ د حال د نفي لپاره دى، يعني مدعىٰ عليه وايي چې "په اوسني (حالي) وخت كې د مدعي پر ما بالكل هيڅ شى باندې نه دى"، او كوم مال كه په تېر وخت (ماضي) كې پر ما باندې وو، نو هغه ما اداء كړى دى يا مدعي زه په تېر وخت كې بري كړى يم او اوس زما او د هغه هيڅ حساب سره نشته. نو ځكه په دې صورت كې هم د مدعىٰ عليه په قول او انكار كې هيڅ تناقض نشته، او كله چې تناقض نشته، نو ځكه د مدعىٰ عليه له طرفه پېش كړل سوې بيّنه به هم قبلول كيږي.

## د پورتنى مسئلې بل صورت

وَلَوْقَالَ: مَاكَانَ لَكَ عَلَيَّ شَيْءٌ قَطُّ وَلَا أَعْرِفُكَ او كه چيري مدعىٰ عليه ووايي: چې ستا پر ما هيڅكله هيڅ شى نه وو او نه زه تا پېژنم لَمْ تُقْبَلْ بَيِّنَتُهُ عَلَى الْقَضَاءِ نو د هغه بيّنه به نه قبلول كيږي وَكَذَا عَلَى الْإِبْرَاءِ او همداسې پر بري كولو لِتَعَذُّرِ التَّوْفِيقِ ځكه چې توافق ناممكن دى لِأَنَّهُ لَا يَكُونُ بَيْنَ اثْنَيْنِ أَخْذٌ وَإِعْطَاءٌ وَقَضَاءٌ وَاقْتِضَاءٌ وَمُعَامَلَةٌ وَمُصَالَحَةٌ بِدُوْنِ الْمَعْرِفَةِ ځكه چې د دوو خلكو په مينځ كې [د قرض] اخيستل او وركول، اداء كول او ترلاسه كول، معامله او صلح كول له پېژندلو څخه بغير نه سي كېداى وَذَكَرَ الْقُدُوْرِيُّ أَنَّهُ تُقْبَلُ أَيْضًا او امام قدوري رَحِمَهُ الله ذكر كړي دي چې د هغه بيّنه به قبلول كيږي لِأَنَّ الْمُحْتَجِبَ أَوِ الْمُخَدَّرَةَ قَدْ يُؤْذَى بِالشَّغَبِ عَلَى بَابِهِ ځكه چې گوښه ناستى [يعني د خلكو سره تعلق نه ساتونكى كس] او پردناكه ښځه ځيني وخت خپل پر دروازه له شر [او شور] جوړېدلو څخه په تكليف كيږي [او شرم محسوسوي] فَيَأْمُرُ بَعْضَ وُكَلَائِهِ بِإِرْضَائِهِ نو ځكه په خپلو وكيلانو كې يو وكيل ته حكم كوي چې هغه شر جوړونكى راضي كړي وَلَا يَعْرِفُهُ حال دا چې دئ هغه نه پېژني ثُمَّ يَعْرِفُهُ بَعْدَ ذٰلِكَ [لېكن] بيا هغه تر دې وروسته وپېژني فَأَمْكَنَ التَّوْفِيْقُ نو ځكه [دلته هم] توافق ممكن سو.

**اللغات**: ﴿أخذ﴾ د نصر مصدر دى: اخيستل، ﴿عطاء﴾ د افعال د باب اسم مصدر دى: وركول، وركړه، ﴿قضاء﴾ د ضرب د باب مصدر دى: اداء كول، ﴿اقتضاء﴾ د افتعال مصدر دى، كله چې د دې باب په صله كې مال، قرض يا بل حق ذكر سي نو د "ترلاسه كولو" او "حاصلولو" معنىٰ وركوي، ﴿محتجب﴾ د افتعال د باب فاعل دى: پټېدونكى كس، گوښه ناستى، گوشه نشين (په گوښه [كونج] كې ځانله كښېنستونكى)، د خلكو سره تعلق او اختلاط نه كونكى كس، ﴿مخدّرة﴾ پردناكه ښځه

(سترناکه ښځه). ﴿الشغب﴾ د فتح د باب مصدر دی: شر جوړول، شر او فساد جوړېدل. (صاحب د أحسنُ الهدايي ليکلي چي مراد ځني شور او جنجال جوړول، چيغي او نعرې وهل دي).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی د بل سړي په مال دعویٰ وکړي، او دا بل سړی يعني مدعیٰ عليه په دې الفاظو سره انکار وکړي چي "ستا پر ما هيڅ شی نه وو، او زه تا نه پېژنم"، بيا مدعي پر خپله دعویٰ بيّنه پېش کړي او مدعیٰ عليه د مال پر اداء کولو يا د مدعي پر بري کولو بيّنه پېش کړي (چي ما د قرض مال اداء کړی دی يا زه مدعي بري کړی يم)، نو د جمهورو علماؤ په نيز به دلته د مدعیٰ عليه بيّنه نه قبلول کيږي؛ ځکه دلته د مدعیٰ عليه په قول کي داسي تناقض دی چي د هغه ختمول او د هغه په دواړو قولونو کي توافق او تطبيق ورکول ناممکن دي، او ناممکن په دې وجه دي، ځکه کله چي مدعيٰ هغه د قرض مال اداء کړی دی، نو په دې صورت کي د مدعي له طرفه اخيستل او ترلاسه کول او د مدعیٰ عليه له طرفه ورکول (اداء کول) موجود سول، لنډه دا چي کله مدعیٰ عليه د قرض مال اداء کړی دی نو د مدعي او مدعیٰ عليه دواړو په مينځ کي معامله او صلح وسوه، او د دوو خلکو په مينځ کي له پېژندلو (معرفت) څخه بغير معامله او صلح نه سي کېدای، نو ځکه د مدعیٰ عليه له دې وينا "لَا أَعرِفُكَ" څخه وروسته د هغه د اداء کولو دعویٰ غلطه ده، او کله چي د مدعیٰ عليه د اداء کولو دعویٰ غلطه ده نو د هغه پېش کړل سوې بيّنه به هم نه قبلول کيږي. (حاصل دا چي څرنګه په مخکني صورتونو کي تطبيق ورکول ممکن نه دي، دلته هغسي تطبيق ورکول ممکن نه دي).

وذکر القدوري إلخ: امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې صورت کي به د مدعیٰ عليه بيّنه قبلول کيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي تطبيق ورکول ممکن دي، او هغه په دې توګه چي ځيني وخت مدعیٰ عليه ډېر شريف انسان وي او د عامو خلکو سره تعلق نه ساتي او د هغو سره ناسته، ولاړه او اختلاط نه کوي، يا مثلاً مدعیٰ عليه يوه پرده ناکه شريفه ښځه وي او هغه د هيچا مخته تلل نه خوښوي، او مدعي هره ورځ د مدعیٰ عليه پر دروازه شر جوړوي، چيغي او نعرې ووهي او د خپل قرض تقاضا کوي، چي په دغه سپک حرکت سره شريف مدعیٰ عليه ته ډېر تکليف رسيږي، نو ځکه مدعیٰ عليه له دغه تکليف څخه د ځان ساتلو لپاره د خپل يو وکيل په ذريعه دا معامله ختمه کړي او د هغه قرض اداء کړي، حال دا چي مدعیٰ عليه هغه (شر جوړونکی) نه پېژني او نه يې تر اوسه ليدلی وي، بيا چي يو وخت دوی دواړه په يو مجلس کي سره ووېني او مدعي خپل ځان ورپېژني (چي مثلاً زه هماغه نعرې وهونکی کس يم)، نو په هغه وخت کي مدعیٰ عليه هغه وپېژني. نو له دغه تقرير

او وضاحت څخه وروسته دا خبره ممکنه ده چې مدعیٰ علیه اول داسې ووایې چې "ستا پر ما هیڅ شی نه وو او نه زه تا پېژنم" او بیا د اداء کولو دعویٰ وکړي؛ ځکه د مذکوره تقریر په رڼا کې دا دواړه خبرې سره جمع کېدای سي، لهذا کله چې تطبیق ورکول ممکن دي، نو د مدعیٰ علیه په دعویٰ کې هیڅ تناقض پاته نه سو، او کله چې یې په دعویٰ کې هیڅ تناقض پاته نه سو، نو ځکه د مدعیٰ علیه د اداء کولو دعویٰ او بیّنه به قبلول کیږي.

(لیکن د جمهورو له طرفه امام قدوري رَحِمَهُ الله ته دا جواب ورکول کېدای سي چې صحیح ده! د مذکوره وضاحت او تقریر په صورت کې د مدعیٰ علیه د قول او بیّنې قبلول موږ تسلیموو، لیکن که مدعیٰ علیه پورتني صفات نه لري [یعني ګوشه نشیني او داسې نور] نو بیا د هغه د بیّنې قبلول موږ نه سو زغملای).

## که د خرخولو منکر وروسته د برائت عن کل العیوب په هکله بیّنه پېش کړي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَمَنِ ادَّعَى عَلَى آخَرَ أَنَّهُ بَاعَهُ جَارِيَةً [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمایي: او که یو سړي پر بل چا دعویٰ وکړه چې هغه پر ما خپله مینځه خرڅه کړې ده فَقَالَ: لَمْ أَبِعْهَا مِنْكَ قَطُّ نو مدعیٰ علیه ورېل: چې ما پر تا هیڅکله نه ده خرڅه کړې فَأَقَامَ الْمُشْتَرِي الْبَيِّنَةَ عَلَى الشِّرَاءِ بیا مدعي پر رانیولو بیّنه پېش کړه فَوَجَدَ بِهَا أُصْبُعًا زَائِدَةً او هغه په مینځه کې یوه زیاته [اضافه] ګوته ولیدله فَأَقَامَ الْبَائِعُ الْبَيِّنَةَ أَنَّهُ بَرِئَ إِلَيْهِ مِنْ كُلِّ عَيْبٍ بیا بائع [مدعیٰ علیه] پر دې خبره بیّنه پېش کړه چې زه د هغه له هر عیب څخه بري یم لَمْ تُقْبَلْ بَيِّنَةُ الْبَائِعِ نو د بائع [مدعیٰ علیه] بیّنه به نه قبلول کیږي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهَا تُقْبَلُ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دې چې د بائع بیّنه به قبلول کیږي اعْتِبَارًا بِمَا ذَكَرْنَا پر [مخکنیو] مذکوره مسئلو په قیاس کولو سره وَوَجْهُ الظَّاهِرِ: أَنَّ شَرْطَ الْبَرَاءَةِ تَغْيِيرٌ لِلْعَقْدِ مِنِ اقْتِضَاءِ وَصْفِ السَّلَامَةِ إِلَى غَيْرِهِ او د ظاهر روایت دلیل دا دی: چې د بري کېدلو شرط لګول [داسې دي لکه] عقد د سالموالي د وصف له اقتضاء څخه د نا سالموالي وطرف ته متغیّر کول فَيَسْتَدْعِي وُجُودَ الْبَيْعِ نو ځکه هغه د بیع د موجود والي تقاضا کوي [ځکه د بیع له موجودوالي څخه بغیر بیع له یوه وصف څخه د بل وطرف ته نه سي متغیّر کېدلای] وَقَدْ أَنْكَرَهُ حال دا چې بائع د بیع انکار کړی دی فَكَانَ مُنَاقِضًا نو ځکه هغه به [په خپله دعویٰ کې] مناقض وي بِخِلَافِ الدَّيْنِ په خلاف د قرض لِأَنَّهُ

قَدْ يُقْضَى وَإِنْ كَانَ بَاطِلًا ځکه قرض که څه هم باطل [ناحقه] وي نو [بيا هم] هغه اداء کيږي عَلَى مَا مَرَّ لکه [مخکې] چې تېر سو.

**اللغات**: ﴿أُصْبُع﴾ او إِصْبَع: ګوته، جمع: أَصَابِع. ﴿يستدعي﴾ د استفعال د باب مضارع ده: تقاضا کول، غوښتل، ﴿تغيير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: متغيّر کول، بدلول. ﴿سلامة﴾ سلامتي، سلامتيا، سالموالی (سالم والی).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مثلاً خالد پر حامد دا دعویٰ وکړه چې "حامد پر ما خپله فلانکۍ مينځه خرڅه کړې ده"، لېکن مدعیٰ عليه يعني حامد له بيع څخه انکار وکړی چې "ما هيڅکله پر تا مينځه نه ده خرڅه کړې"، نو وروسته مدعي يعني خالد د مينځې پر رانيولو بيّنه پېش کړه (چې ما دا مينځه له حامد [مدعیٰ عليه] څخه رانيولې ده او هغه پر ما خرڅه کړې ده) او په دې توګه يې له مدعیٰ عليه څخه مينځه واخيستله او قبضه يې پر وکړه، او له قبضې څخه وروسته مدعي (مشتري يعني خالد) د مينځې په داسي عيب خبر سو چې د هغه په قبضه کي د داسي عيب پيدا کېدل ناممکن وي، يعني په داسي عيب خبر سو چې د مدعیٰ عليه يعني د بائع (حامد) په قبضه کي د هغه پيدا کېدل يقيني وي، مثلاً د مينځې په لاس کي يوه ګوته زياته وه (يعني د مينځې د يوه لاس ګوتي شپږ وې)، نو د خيار عيب پر بناء مدعي (مشتري) د مينځې د واپس کولو اراده وکړه لېکن مدعیٰ عليه (بائع) پر دې خبره بيّنه پېش کړه چې "ما له هر عيب څخه د بري کېدلو پر شرط مينځه پر مدعي (مشتري) خرڅه کړې وه، لهذا زه له هر عيب څخه بري يم"، نو په داسي صورت کي به د ظاهر روايت مطابق د مدعیٰ عليه (بائع) بيّنه نه قبلول کيږي.

لېکن له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې په دې صورت کي به هم د مدعیٰ عليه (بائع) بيّنه قبلول کيږي؛ د هغه دليل قياس دی، يعني امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دغه د بيع مسئله د قرض پر مخکنيو مسئلو قياس کړې ده، يعني څرنګه چې په تېرو مسئلو کي د مدعیٰ عليه په اقوالو کي د تطبيق او موافقت د ممکن والي په وجه د هغه بيّنه قبلول کيږي، همداسي به په دې مسئله کي هم د تطبيق ممکن والي په وجه د هغه بيّنه قبلول کيږي؛ او په دې مسئله کي په دې وجه تطبيق او موافقت ممکن دی، ځکه کله چې مدعیٰ عليه (بائع) د مينځې له خرڅولو څخه انکار وکړی نو د دې مطلب دا دی چې "زما او د مدعي په مينځ کي هيڅ بيع نه ده سوې لېکن کله چې مدعي د بيع دعویٰ او ټينګار وکړی (چې بيع سوې ده) نو ما له هر عيب څخه د بري کېدلو پر شرط پر هغه مينځه خرڅ کړه".

نو ګواکي مدعیٰ علیه د مدعي له دعوې څخه مخکي د بیع انکار کړی دی او د دعوې په وخت کي یې د بیع اقرار کړی دی، نو ځکه د مدعیٰ علیه په اقوالو او دعویٰ کي هیڅ تناقض پاته نه سو، او کله چي تناقض نسته، نو ځکه د هغه د بینې په قبلولو کي به هیڅ حرج او پروا نه وي.

و وجه الظاهر الخ: د ظاهر روایت دلیل دا دی چي له هر عیب څخه د مبیع د بري کېدلو شرط لګول داسي دي لکه عقد (بیع) چي د سالموالي له وصف څخه د غیر سالموالي د وصف وطرف ته متغیر کول، ځکه که د بري کېدلو شرط نه وای لګول سوای نو مبیع (مینځه) به د مشتري لپاره صحیح سالم پاته وای، لېکن کله چي دا شرط ولګول سو نو اوس د مبیع صحیح سالم کېدل ضروري نه سلو (لهذا داله سالموالي څخه د غیر سالموالي وطرف ته د عقد متغیّر کول سو)، او عقد د سالموالي له وصف څخه د غیر سالموالي د وصف وطرف ته متغیّر کول د دې خبري تقاضا کوي چي اصل عقد موجود وي (ځکه کله چي عقد [بیع] موجود نه وي نو بیا څنګه هغه له یوه وصف څخه د بل وصف وطرف ته متغیّر کېدای سي، لهذا د دې لپاره د اصل عقد [بیع] موجودېدل ضروري دي)، حال دا چي مدعیٰ علیه (بائع) مخکي د اصل عقد انکار کړی دی، نو ځکه د هغه په دعویٰ کي تناقض پیدا سو، او په دعویٰ کي د تناقض پیدا کېدلو په صورت کي بیّنه نه قبلول کیږي، نو ځکه په دې صورت کي به هم د مدعیٰ علیه (بائع) بیّنه نه قبلول کیږي.

د دې په خلاف د قرض مسئله ده؛ ځکه چي قرض کله په ناحقه توګه هم اداء کیږي، او د قرض په صورت کي د مدعیٰ علیه په اقوالو کي پیدا سوی تناقض د تطبیق او توافق په ذریعه لیري کول ممکن دي، نو په دې وجه د قرض په مسئلو کي د مدعیٰ علیه قول او بیّنه قبلول کیږي، لېکن څرنګه چي د بیع په دې مسئله کي د تطبیق ورکولو په ذریعه تناقض لیري کول ممکن نه دي، نو ځکه دلته به د مدعیٰ علیه بیّنه نه قبلول کیږي، او د بیع مسئله به د قرض پر مسئلو قیاسول قیاس مع الفارق وي.

## له مجهول تملیک څخه وروسته "انشاء الله" ویل

قَالَ: ذِكْرُ حَقٍّ كُتِبَ فِي أَسْفَلِهِ: "وَمَنْ قَامَ بِهٰذَا الذِّكْرِ الْحَقِّ فَهُوَ وَلِيُّ مَا فِيهِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى" فرمایي: [که] د یو حق [په باره کي] خط وي چي د هغه په آخر کي داسي لیکلي وي: "او کوم سړی چي د دې خط مالک سي نو څه چي په دې خط کي دي هغه سړی د هغوی ولي [مستحق] دی" أَوْ كُتِبَ فِي الشِّرَاءِ: "فَعَلَى فُلَانٍ خَلَاصُ ذٰلِكَ وَتَسْلِيمُهُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى" یا خط د رانیولو په باره کي لیکل سوی وي [او د هغه په آخر کي داسي جمله وي]: "نو پر فلانکي د هغه خلاصول او مشتري ته ورسپارل لازم دي" بَطَلَ الذِّكْرُ كُلُّهُ نو دا ټوله خط باطلیږي [ابېکاره کیږي] وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام

صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا: إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ هُوَ عَلَى الْخَلَاصِ وَعَلَىٰ مَنْ قَامَ بِذِكْرِ الْحَقِّ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د "انشاء الله" لفظ فقط د "خَلَاص" او د "عَلَىٰ مَنْ قَامَ بِذِكْرِ الْحَقِّ" سره متعلق دی وَقَوْلُهُمَا اسْتِحْسَانٌ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول استحسان دی ذَكَرَهُ فِي الْإِقْرَارِ [او] هغه امام محمد رَحِمَهُ الله [د مبسوط] په كتاب الاقرار كي ذكر كړی دی لِأَنَّ الِاسْتِثْنَاءَ يَنْصَرِفُ إِلَىٰ مَا يَلِيهِ ځكه چي استثناء د خپل متصل جملې وطرف ته ګرځي لِأَنَّ الذِّكْرَ لِلِاسْتِيثَاقِ ځكه خط [د معاملې] د مضبوطوالي لپاره وي وَكَذَا الْأَصْلُ فِي الْكَلَامِ الِاسْتِبْدَادُ او همدارنګه په كلام كي مستقل كېدل اصل دي [يعني اصل دا دی چي كلام مستقل وي] وَلَهُ: أَنَّ الْكُلَّ كَشَيْءٍ وَاحِدٍ بِحُكْمِ الْعَطْفِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د عطف په وجه ټوله خط د يوه شي په څېر دی فَيُصْرَفُ إِلَى الْكُلِّ نو ځكه د "انشاء الله" لفظ به د ټوله خط وطرف ته ګرځول كيږي كَمَا فِي الْكَلِمَاتِ الْمَعْطُوفَةِ لكه څرنګه چي په معطوفه كلماتو كي [داسي كيږي] مِثْلَ قَوْلِهِ: عَبْدُهُ حُرٌّ وَامْرَأَتُهُ طَالِقٌ وَعَلَيْهِ الْمَشْيُ إِلَىٰ بَيْتِ اللهِ تَعَالَىٰ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ مثلاً د يو سړي دا قول: زما غلام آزاد دی او زما ښځه طلاقه ده او پر ما بيت الله ته تلل واجب دي انشاء الله تعالیٰ وَلَوْ تَرَكَ فُرْجَةً او كه ليكونكی [كاتب] په مينځه كي څه ځای خالي پرېږدي [بيا انشاء الله وليكي] قَالُوا: لَا يَلْتَحِقُ بِهِ نو مشايخو فرمايلي دي: چي دا [انشاء الله] د مخكني خط سره نه متصل كيږي وَيَصِيرُ كَفَاصِلِ السُّكُوتِ او هغه [كاتب] داسي وګرځي لكه د چوپدلو په ذريعه فاصله كونكی [يعني دا به داسي وي لكه د خبرو په مينځ كي چي څه وخت چپ ودرېږي او بيا انشاء الله ووايي].

**اللغات:** ﴿ذكر﴾ مراد ځني خط او يادښتليک دی، د يو حق ثابتولو خط چي هغه ته سند او دستاويز هم وايي. ﴿خلاص﴾ د نصر د باب مصدر دی: خلاصول، خلاصېدل، نجات موندل. ﴿استيثاق﴾ د استفعال د باب مصدر دی: مضبوطول، ټينګول. ﴿مشي﴾ د ضرب د باب مصدر دی: تلل (پياده تلل). ﴿فُرجة﴾ خالي ځای، فاصله. ﴿فاصل﴾ د ضرب د باب فاعل دی: جلا كونكی، فاصله كونكی (فاصله راوستونكی).

---

القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كماقال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: هو استحسان راجح على قوله (الدر المختار ج:۴، ص:۴۰۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۲۰]

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړي پرخپل ځان د بل چا د حق اقرار وکړي (چې د هغه پر ما مثلاً قرض او نور حقوق باندي دی) او د سند او ثبوت په توګه دا اقرار خط وليکي او د هغه په آخر کي داسي وليکي "وَمَن قَامَ بِهٰذَا الذِّكرِ فَهُوَ وَلِيُّ مَا فِيْهِ إنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالىٰ" (يعني دا اقرارنامه [سند] چي د کوم چا سره وي هغه به په دې سند کي د ليکل سوي حقوقو مستحق وي، انشاء الله تعالى). يا مثلاً يو سړي د يو شي د خرڅولو او رانيولو خط يعني بيعنامه وليکي او د هغه په آخر کي داسي وليکي چې "که د دې شي مشتري ته دَرَك لاحق سي، يعني که يو سړی د دې شي د مستحق کېدلو دعوىٰ وکړي او هغه له مشتري څخه واخلي "فَعَلىٰ فُلَانٍ خَلَاصُ ذٰلِكَ وَتَسْلِيْمُهُ" نو پر فلانکي کس يعني پر ماد هغه خلاصول او مشتري ته ورسپارل واجب دي، انشاء الله تعالى".

لنډه دا چي د خط په آخر کي "انشاء الله" وليکي، نو په دې دواړو صورتونو کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز ټوله خط باطليږي او كالعدم ګرځي، او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي د "انشاء الله" تعلق فقط د آخري جملې سره دی، يعني په اول صورت کي "انشاء الله" د "وَمَنْ قَامَ بِهٰذَا الذِّكرِ فَهُوَ وَلِيُّ مَا فِيْه" سره متعلق دی، او په دويم صورت کي د "فَعَلىٰ فُلَانٍ خَلَاصُ ذٰلِكَ وَتَسْلِيْمُه" سره متعلق دی، او لفظ د "انشاء الله" چي د کومي جملې سره متعلق وي هغه باطلوي؛ ځکه چي "انشاء الله" داسي کلمه ده چي په هغه سره هيڅ امر نه لازم نه پاتيږي (يعني د هغه په ويلو سره هيڅ کار او هيڅ شی نه لازميږي)؛ ځکه په "انشاء الله" سره هغه کار د الله پر مشيت (خوښه) معلق سوی وي، او د الله تعالىٰ مشيت هيچا ته معلومېدای نه سي، لهذا کوم شی چي د الله پر مشيت معلق وي، هغه به هم نه واقع کيږي بلکي باطل او كالعدم به وي. لکه کله چي يو څوک خپلي ښځي ته ووايي "أَنْتِ طَالِقٌ إِنْشَاءَ الله"، نو دا طلاق نه واقع کيږي. لنډه دا چي په مذکوره مسئله کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي د "انشاء الله" په ليکلو سره ټوله خط باطليږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مذهب دا دی چي فقط آخري عبارت باطليږي د کوم سره چي د "انشاء الله" لفظ متعلق دی.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مذهب استحسان دی او د هغو دليل دا دی چي سند (ثبوتي خط) ځکه ليکل کيږي چي په هغه سره معامله مضبوطه او پخه سي، نو ځکه انشاء الله د ټوله خط وطرف ته ګرځول او هغه باطل او كالعدم کول خلاف الاصل دي. او کله چي ټوله خط باطلول خلاف الاصل دي نو ځکه د انشاء الله لفظ به د هغه څه وطرف ته ګرځول کيږي کوم چي د دې لفظ تر څنګ دي، يعني په اول صورت کي به د "وَمَن قَامَ بِهٰذَا الذِّكرِ فَهُوَ وَلِيُّ مَا فِيْه" وطرف ته ګرځول کيږي او په دويم صورت کي به د "فَعَلىٰ فُلَانٍ خَلَاصُ ذٰلِكَ وَتَسْلِيْمُه" وطرف ته ګرځول کيږي.

همدارنګه په کلام کې اصل دا دی چې هغه مستقل وي، نو ګواکې د خط هره جمله مستقله ده، او کله چې د خط هره جمله مستقله ده، نو ځکه د "انشاء الله" لفظ به فقط د آخري مستقلې جملې سره متعلق وي او فقط هغه به باطلیږي، او باقي نور خط به هغسې صحيح پاتې وي.

وله أن الكل إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چې بېشکه په کلام کې اصل دا دی چې هغه مستقل وي، مګر دا په هغه وخت کې دي کله چې د دې پر خلاف دلیل موجود نه وي، لهذا که چیرې د کلام پر مستقل کېدلو دلیل موجود وي نو هغه کلام به مستقل نه وي بلکې غیر مستقل به وي، او دلته دلیل موجود دی په دې توګه چې د خط آخري جمله "وَمَنْ قَامَ بِهٰذَا الذِّكْرِ فَهُوَ وَلِيُّ مَا فِيْهِ" په عطف سره ذکر سوې ده، یعنې د اولې جملې په شروع کې "واو" دی او د دویمې جملې په شروع کې "فاء" ده (او دا دواړه د عطف حرفونه دي). او قاعده دا ده چې د عطف په وجه ټوله خط او ټولې خبرې د یوه شي په څېر ګرځي، مثلاً که یو څوک ووايي: "عَبْدِيْ حُرٌّ وَامْرَأَتِيْ طَالِقٌ وَعَلَيَّ الْمَشْيُ إِلٰى بَيْتِ اللهِ تَعَالٰى" او بیا په آخر کې "انشاء الله" ووايي، نو د "انشاء الله" په وجه نه غلام آزادیږي، نه ښځه طلاقیږي او نه پر هغه بیت الله ته تلل (حج) واجبیږي، نو څرنګه چې دلته هم د خط او سند عبارت په عطف سره لیکل سوی دی، نو ځکه ټوله خط به د یوه شي په څېر وي، او د "انشاء الله" په وجه به ټوله خط لازم نه وي بلکې هغه ټوله به باطل او کالعدم وي.

ولو ترك إلخ: فرمايي چې دا اختلاف په هغه وخت کې دی کله چې لیکونکي کس د عبارت سره "انشاء الله" متصل لیکلې وي، لېکن که هغه په مینځ کې څه ځای پرې ایښې وي او بیا یې انشاء الله لیکلې وي (مثلا داسې: "وَمَنْ قَامَ بِهٰذَا الذِّكْرِ فَهُوَ وَلِيُّ مَا فِيْهِ..... إِنْ شَاءَ الله")، نو مشایخو فرمايلي دي چې په دې صورت کې به د "انشاء الله" لفظ د خط سره متصل نه شمارل کیږي او د هغه په وجه به د خط هیڅ حصه نه باطلیږي، لکه څرنګه چې د ویلو په صورت کې یو څوک داسې وکړي نو د "انشاء الله" لفظ نه مؤثر کیږي (یعنې که یو څوک مثلاً ووايي: عَبْدِيْ حُرٌّ" بیا څه وخت چپ پاته سي او وروسته ووايي "انشاء الله" نو په دغه فصل بالسکوت والا "انشاء الله" سره د غلام آزادوالی نه متأثر کیږي او هغه آزادیږي)، نو همداسې به د "انشاء الله" د لیکلو په صورت کې هم د څه ځای پرېښوولو په وجه د خط هیڅ حصه نه متاثر کیږي بلکې پر ټوله خط به عمل کیږي.



# فَصْلٌ فِي الْقَضَاءِ بِالْمَوَارِيْثِ

(دا) فصل د میرا ثونو په باره کې (د قاضي) د فیصله کولو (په بیان کې) دی

**تشریح**: څرنګه چې په دنیاوي حالاتو کې دانسان تر ټولو آخري حالت مرګ دی، نو ځکه په همدې مناسبت مصنف رَحِمَهُ الله د مرګ سره اړوند احکام په آخر کې ذکر کړي دي.

**مواریث**: جمع د میراث ده، معنیٰ یې ده: د مړي پاته سوی مال، یعني مړی چې خپل تر شا کوم مال او کوم شیان پریږدي، هغه ته میراث او اِرْث وایي.

## د نصراني خاوند د میراث دعویٰ کونکې ښځې بیان

قَالَ: وَإِذَا مَاتَ نَصْرَانِيٌّ فَجَاءَتْ اِمْرَأَتُهُ مُسْلِمَةً فرمايي: او که چیرې یو نصراني مړ سو او د هغه ښځه د مسلمان والي په حالت کې راغله وَقَالَتْ: أَسْلَمْتُ بَعْدَ مَوْتِهِ او هغې وویل: چې ما د هغه تر مرګ وروسته اسلام راوړی دی وَقَالَتِ الْوَرَثَةُ: أَسْلَمَتْ قَبْلَ مَوْتِهِ او وارثانو وویل: چې تا د هغه تر مرګ مخکې اسلام راوړی دی فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْوَرَثَةِ نو قول د وارثانو معتبر دی وَقَالَ زُفَرُ*: اَلْقَوْلُ قَوْلُهَا او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې قول د ښځې معتبر دی لِأَنَّ الْإِسْلَامَ حَادِثٌ ځکه چې اسلام نوی دی [یعني د هغې اسلام راوړل یو حادث او نوی امر دی] فَيُضَافُ إِلَى أَقْرَبِ الْأَوْقَاتِ نو ځکه هغه به تر ټولو د نږدې وخت وطرف ته منسوب کیږي وَلَنَا: أَنَّ سَبَبَ الْحِرْمَانِ ثَابِتٌ فِي الْحَالِ او زموږ دلیل دا دی: چې له میراث څخه د محروموالي سبب في الحاله [اوس] ثابت دی [ځکه چې ښځه مسلمانه ده] فَيَثْبُتُ فِيمَا مَضَى، تَحْكِيمًا لِلْحَالِ نو ځکه په تېره [ماضي] زمانه کې به هم محروم والي ثابتیږي، د حالي زمانې په

---

* القول الراجح: هو قولنا، كما ذكر في رد المحتار (ج:۴، ص:۴۰۶). وكما قال المفتى غلام قادر النعماني بدليل آخر: القول قول الورثة؛ لأن النـزاع ليس على إسلام المرأة، بل النـزاع على الميراث، وفي الميراث تدعي المرأة وتنكر الورثة، والقول قول المنكر دون المدعي. [القول الراجح ج:۲، ص:۱۲۲]

حـکَم جوړولو سره [يعني پر استصحابُ الحال په عمل کولو سره] کَمَا فِي جَرَيَانِ مَاءِ الطَّاحُونَةِ لکه څرنګه چي د "اُوبو د ژرندي" د اوبو جاري کېدلو په هکله [داسي کيږي] وَهٰذَا ظَاهِرٌ نَعْتَبِرُهُ لِلدَّفْعِ او دا ظاهري حالت موږ د دفع کولو لپاره معتبر ګڼو [يعني استصحابُ الحال موږ د دفع لپاره استعمالوو] وَهُوَيَعْتَبِرُهُ لِلِاسْتِحْقَاقِ او امام زفر رَحِمَهُ الله هغه د مستحق کېدلو لپاره معتبر ګڼي.

**اللغات**: ﴿اسلمتُ﴾ د افعال له بابه د واحد متکلم ماضي صيغه ده: اسلام راوړل، مسلمان کېدل (مسلمانېدل)، ﴿حادث﴾ د نصر د باب فاعل دی: نوی، نوی پېښېدونکی شی، ﴿تحکيمًا﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: حـکَم جوړول، فيصله کونکی (فيصل) جوړول، ﴿حال﴾ حالي زمانه، اوسنۍ زمانه، اوسنی وخت، ﴿تحکيما للحال﴾ د اوسنۍ زماني په حـکَم (فيصل) جوړولو سره، يعني کوم حُکم او فيصله چي اوس ده، هغه فيصله په ماضي کي هم وکړی سي، همدې ته استصحابُ الحال وايي چي د هغه پوره تعريف او تفصيل به په عبارت کي هم ذکر سي، ﴿الطاحونة﴾ هغه ژرنده چي د اوبو په ذريعه ګرځول کيږي (چلول کيږي)، لکه مخکي چي د داسي ژرندو عادت وو، ﴿استحقاق﴾ د استفعال د باب مصدر دی: مستحق کېدل، حقداره کېدل.

**تشريح**: د عبارت له حل څخه مخکي دا خبره په یاد لرئ! چي ښځه هغه وخت د خپل خاوند د ميراث مستحقه کيږي، کله چي د خاوند او د هغې دين سره متحد وي، لېکن که د دواړو دين سره مختلف وي نو بيا ښځه د خاوند له ميراث څخه محروميږي، مثلاً که خاوند نصراني وي او ښځه مسلمانه وي نو بيا هغې ته ميراث نه حاصليږي، يعني د خاوند په ميراث کي به حصه نه ورکول کيږي.

**صورت د مسئلې**: دا دی که يو نصراني سړی مړ سو بيا د هغه ښځه د مسلمان والي په حالت کي د قاضي دربار ته راغله او دعویٰ يې وکړه چي "زه د هغه تر مرګ وروسته مسلمانه سوې يم، يعني د هغه د مرګ په وخت کي زه نصرانيه وم، لهٰذا د ديني اتحاد په وجه ما ته د هغه ميراث حاصلېدل پکار دي"، لېکن د نصراني خاوند وارثانو ويل چي "هغه خو د خاوند تر مرګ مخکي د هغه په ژوند کي مسلمانه سوې ده، لهٰذا د ديني اختلاف په وجه هغه د ميراث حقداره نه ده"، نو په داسي صورت کي د وارثانو قول معتبر دی (يعني د هغو قول او دعویٰ به منل کيږي)، لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي د ښځي قول معتبر دی، همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی.

**د امام زفر دليل:** دا دی چې مسلمان کېدل د دې ښځې په حق کې حادث امر دی (يعني اسلام راوړل د هغې په حق کې نوی کار او نوی شی دی)، او قاعده دا ده چې کوم شی حادث (نوی) وي هغه د خپل نږدې وخت وطرف ته منسوب کېږي، او د دې ښځې د مسلمان کېدلو نږدې وخت د نصراني تر مرګ وروسته وخت دی، نه د هغه تر مرګ مخکې وخت، نو ځکه د هغې مسلمان کېدل به د نصراني تر مرګ وروسته وخت ته منسوبول کېږي، يعني دا به ويل کېږي چې دا ښځه د خپل نصراني خاوند تر مرګ وروسته مسلمانه سوې ده. او ښکاره خبره ده چې په دې صورت کې هغه د خاوند د مرګ په وخت کې هم نصرانيه ده، نو ځکه د ديني اتحاد په وجه به هغه د خپل خاوند د ميراث مستحقه وي.

**زموږ دليل:** اول تاسو د استصحابُ الحال په معنیٰ او تفصيل ځان پوه کړئ!، بيا به دليل ذکر سي[1]، زموږ د دليل حاصل دا دی چې في الحاله د دَين مختلف کېدلو په وجه دا ښځه له ميراث څخه محرومه ده، او کوم حکم چې في الحاله ثابت وي هغه د استصحابُ الحال په وجه په ماضي کې هم ثابتيږي، نو دا به ويل کېږي چې څرنګه في الحاله دا ښځه د اختلاف الدين په وجه له ميراث څخه محرومه ده همداسې د نصراني خاوند د مرګ په وخت کې هم محرومه وه. او د نصراني خاوند د مرګ په وخت کې دا ښځه په هغه صورت کې محرومېدای سي کله چې د هغه تر مرګ وروسته دا مسلمانه سوې وي، او څرنګه چې د نصراني خاوند وارثان هم دغه خبره کوي نو ځکه د هغو قول به معتبر وي.

د دې مثال دا دی لکه د اوبو د ژرندې (طاحونة الماء) د اوبو جاري کېدلو په هکله چې د مالک او مستأجر اختلاف سي، مثلاً د ژرندې مالک ووايي چې ټوله شپه پر ژرندې اوبه جاري وې نو ځکه زما د ژرندې اُجرت راکړه!، او مستأجر ووايي چې ټوله شپه اوبه بندې وې، لهذا پر ما اُجرت واجب نه دی، نو دې ته به کتل کېږي چې في الحاله اوبه جاري دي، که نه؟، که چيري في الحاله اوبه جاري وي نو د ژرندې د مالک قول به معتبر وي يعني د شپې به هم اوبه جاري شمارل کېږي او پر مستأجر به د اُجرت واجبېدلو فيصله کېږي. د استصحابُ الحال په وجه. او که في الحاله اوبه بندې وي نو د مستأجر قول به معتبر وي يعني د استصحابُ الحال په وجه به په شپه کې هم اوبه جاري نه شمارل کېږي او پر مستأجر به اُجرت نه واجبيږي. او څرنګه چې دلته هم ښځه في الحاله د ميراث حقداره نه ده نو ځکه د استصحابُ الحال په وجه به په ماضي کې هم هغه د ميراث حقداره نه شمارل کېږي.

---

[1] استصحابُ الحال د اُصول فقه يوه اصطلاح ده. د استصحابُ الحال مختصر او آسانه تعريف دا دی چې کوم حالت له مخکې څخه را روان وي او د هغه په خلاف هيڅ قرينه نه وي نو هغه حالت به اوس هم موجود شمارل کېږي او پر هغه به فيصله کېږي. يا کوم حالت چې اوس روان دی نو هغه به په ماضي کې هم ثابت او موجود شمارل کېږي، دې ته استصحابُ الحال وايي. او همدا د استصحاب دوه صورتونه دي. حکم: استصحابُ الحال زموږ په نيز حجت دافعه دی، حجت مُثبته نه دی. يعني د استصحابُ الحال په ذريعه خو يو شی دفع کېدای سي، ليکن ثابتېدای نه سي. او د امام زفر رَحمَهُ الله په نيز هغه حجت مُثبِته دی.

وهذا ظاهرالخ: فرمايي چې استصحابُ الحال يو ظاهري حالت دی، او هغه مونږ صرف د دعوىٰ دفع کولو لپاره استعمالوو، نه د استحقاق ثابتولو لپاره، لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله يې د استحقاق ثابتولو لپاره استعمالوي (لنډه دا چې استصحابُ الحال زمونږ په نيز حجتِ دافعه دی، حجتِ مُثبته نه دی، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز حجتِ مُثبته دی)، همدا وجه ده چې امام زفر رَحِمَهُ الله په دې مسئله کې مدعيه ښځې ته حق ورکړی دی او مونږ نه دی ورکړی.

## د مسلمان خاوند د ميراث دعوىٰ کونکي ښځي بيان

وَلَوْ مَاتَ الْمُسْلِمُ وَلَهُ امْرَأَةٌ نَصْرَانِيَّةٌ او که مسلمان مړ سو او د هغه ښځه نصرانيه وه فَجَاءَتْ مُسْلِمَةً بَعْدَ مَوْتِهِ وَقَالَتْ: أَسْلَمْتُ قَبْلَ مَوْتِهِ بيا هغه د خاوند تر مرګ وروسته راغله او ويې ويل: چې ما د خاوند له مرګ څخه مخکې اسلام راوړی دی وَقَالَتِ الْوَرَثَةُ: أَسْلَمَتْ بَعْدَ مَوْتِهِ او وارثانو وويل: چې تا د هغه تر مرګ وروسته اسلام راوړی دی فَالْقَوْلُ قَوْلُهُمْ أَيْضًا نو هم د وارثانو قول معتبر دی وَلَا يُحَكَّمُ الْحَالُ او حال [استصحابُ الحال] به حَکَم نه جوړول کيږي لِأَنَّ الظَّاهِرَ لَا يَصْلُحُ حُجَّةً لِلِاسْتِحْقَاقِ ځکه چې ظاهري حالت [يعني استصحابُ الحال] د استحقاق [ثابتولو لپاره] د حجت جوړېدلو صلاحيت نه لري وَهِيَ مُحْتَاجَةٌ إِلَيْهِ حال دا چې ښځه همدې [استحقاق] ته محتاجه ده أَمَّا الْوَرَثَةُ فَهُمُ الدَّافِعُونَ او پاته سو وارثان نو هغوی [د استحقاق] دفع کونکي دي وَيَشْهَدُ لَهُمْ ظَاهِرُ الْحُدُوثِ أَيْضًا او د حادث والي [يعني د دې ښځي د نوي مسلمان کېدلو] ظاهر هم د هغو لپاره ګواه دی.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو مسلمان مړ سو او د هغه نصرانيه ښځه د مسلمان والي په حالت کې د قاضي دربار ته راغله او دعوىٰ يې وکړه چې "زه د خپل مسلمان خاوند تر مرګ وروسته مسلمانه سوې يم، يعني زه د هغه د مرګ په وخت کې مسلمانه وم، لهذا د ديني اتحاد په وجه ماته ميراث راکول پکار دي"، لېکن د خاوند وارثانو وويل چې "هغه د خاوند تر مرګ مخکې مسلمانه سوې ده، لهذا د ديني اختلاف په وجه هغه د ميراث حقداره نه ده"، نو په دې صورت کې هم د وارثانو قول معتبر دی يعني دغه ښځې ته به ميراث نه ورکول کيږي. او د دې ښځې په حق کې به استصحابُ الحال حجت نه ګرځول کيږي، يعني دا به نه ويل کيږي چې دا ښځه خو في الحاله مسلمانه ده نو ځکه د خاوند تر مرګ مخکې به هم د هغې مسلمان والی ثابتيږي؛ ځکه چې په داسې کولو سره به د دې ښځي لپاره د ميراث استحقاق ثابت سي يعني استصحابُ الحال به حجت مُثبته وګرځي، حال دا

چي زموږ په نيز استصحابُ الحال حجت دافعه دی، نو هغه به حجت مُثبته نه ګرځول کيږي يعني د استصحابُ الحال په وجه به د ښځي لپاره د ميراث د استحقاق فيصله نه کيږي. او څرنګه چي د مړي وارثان هم دغه خبره کوي، يعني هغوی له دغه ښځي څخه ميراث دفع کوي. نو ځکه دلته به استصحابُ الحال د هغو لپاره حجت وي او دا به ويل کيږي چي دا ښځه په ماضي کي يعني د مسلمان خاوند په ژوند کي نصرانيه وه نو ځکه د خاوند د مرګ په وخت کي او تر مرګ وروسته هم نصرانيه ده، لهذا د اختلاف الدين په وجه به د ميراث مستحقه نه وي.

ويشهدهم إلخ: دا دويم دليل دی، حاصل يې دا دی چي اسلام (يعني د نصراني ښځي مسلمان کېدل) يو حادث او نوی امر دی، او حادث امر د خپل نژدې وخت وطرف ته منسوبول کيږي، او نژدې وخت د خاوند تر مرګ وروسته وخت دی، نه د هغه تر مرګ مخکي والا وخت، نو ځکه د نژدې وخت وطرف ته په منسوب کولو سره به همدا ويل کيږي چي دا ښځه د خپل خاوند تر مرګ وروسته مسلمانه سوې ده او د هغه د مرګ په وخت کي نصرانيه وه، نو ځکه د ديني اختلاف په وجه به هغه د خپل خاوند د ميراث مستحقه نه وي.

## د امانت اقرار کونکی چي کله په خپله يو څوک د مړي وارث وشمېري (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ مَاتَ وَلَهُ فِي يَدِ رَجُلٍ أَرْبَعَةُ آلَافِ دِرْهَمٍ وَدِيعَةً فرمايي: او که يو څوک مړ سي او د هغه څلور زره درهمه د يو سړي سره امانتاً پراته وي فَقَالَ: الْمُسْتَوْدَعُ: هٰذَا ابْنُ الْمَيِّتِ لَا وَارِثَ لَهُ غَيْرُهُ بيا مستودع [امانت ساتونکی] ووايي: چي دا د مړي ځوی دی او له ده څخه بغير د مړي بل وارث نسته فَإِنَّهُ يَدْفَعُ الْمَالَ إِلَيْهِ نو مستودع به د امانت مال د هغه وځوی ته ورکوي لِأَنَّهُ أَقَرَّ أَنَّ مَا فِي يَدِهِ حَقُّ الْوَارِثِ خِلَافَةً ځکه چي مستودع دا اقرار وکړی چي کوم څه چي زما په قبضه کي دي هغه نيابتاً د مړي د وارث [ځوی] حق دی فَصَارَ كَمَا إِذَا أَقَرَّ أَنَّهُ حَقُّ الْمُوَرِّثِ وَهُوَ حَيٌّ أَصَالَةً نو دا داسي سو لکه کله چي مستودع د مړي په ژوند کي اقرار وکړي چي دا مال اصالتاً د مورث حق دی بِخِلَافِ مَا إِذَا أَقَرَّ لِرَجُلٍ أَنَّهُ وَكِيلُ الْمُودِعِ بِالْقَبْضِ په خلاف د هغه صورت کله چي مستودع د يو سړي لپاره دا اقرار وکړي چي دا سړی د امانت ايښونکي وکيل بالقبض دی أَوْ أَنَّهُ اشْتَرَاهُ مِنْهُ يا [دا اقرار وکړي چي] دغه سړي له امانت ايښونکي څخه هغه مال رانيولی دی حَيْثُ لَا يُؤْمَرُ بِالدَّفْعِ إِلَيْهِ نو مستودع ته به دا حکم نه کيږي چي هغه و دې سړي ته د امانت مال ورکړي لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِقِيَامِ حَقِّ الْمُودِعِ ځکه چي

مستودع دا قرار وکړی چې د امانت ایښونکي حق باقي دی إِذْ هُوَ حَيٌّ ځکه چې هغه ژوندی دی فَيَكُونُ إِقْرَارًا عَلَى مَالِ الْغَيْرِ نو دا اقرار به [داسي وي لکه] د بل چا پر مال اقرار کول وَلَا كَذَلِكَ بَعْدَ مَوْتِهِ او د مُودِع تر مرګ وروسته [اقرار کول] داسي نه دي بِخِلَافِ الْمَدْيُونِ إِذَا أَقَرَّ بِتَوْكِيلِ غَيْرِهِ بِالْقَبْضِ په خلاف د مقروض کله چې هغه د بل چا په باره کي د قرضخواه له طرفه د وکیل بالقبض کېدلو اقرار وکړي لِأَنَّ الدُّيُونَ تُقْضَى بِأَمْثَالِهَا ځکه چې قرضونه بالمثل اداء کیږي فَيَكُونُ إِقْرَارًا عَلَى نَفْسِهِ نو دا به پر خپل ځان اقرار وي فَيُؤْمَرُ بِالدَّفْعِ إِلَيْهِ نو ځکه مقروض ته به حکم کیږي چې هغه وکیل بالقبض ته ورکړي.

**اللغات**: ﴿المستودع﴾ د استفعال د باب مفعول دی: چا ته چې امانت ایښول سوي وي، او هغه ته مُودَع (بفتح الدال) هم وایي، ﴿وارث﴾ د ضرب فاعل دی: میراث خور، ﴿مورث﴾ له افعال او تفعیل دواړو بابونو څخه راتلای سي، د فاعل صیغه ده: میراث پرېښوونکی، مراد ځني مړی دی کوم چې خپل تر شا میراث پرېږدي، ﴿مودِع﴾ (بکسر الدال) د افعال د باب فاعل دی: امانت ایښونکی، امانت ورکونکی (هغه کس چې بل چا ته خپل شی په امانت کښېږدي)، ﴿المدیون﴾ مقروض، پوروړی، ﴿توکیل﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: وکیل جوړول (بل څوک خپل وکیل ټاکل).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی مثلاً خالد مړ سي او د هغه څلور زره درهمه د بل سړي مثلاً د حامد سره امانتاً پراته وي، او د خالد تر مرګ وروسته مستودع یعني حامد ووایي چې "دا سړی مثلاً زید د هغه مړي (خالد) ځوی دی او له دې څخه بغیر د مړي بل هیڅ وارث نسته"، حاصل دا چې مستودع یعني حامد یو دا دعویٰ وکړي چې زید د مړي (خالد) ځوی دی او بل دا دعویٰ وکړي چې له دې څخه بغیر د مړي بل هیڅ وارث نسته، نو په دې صورت کي به قاضي مستودع (حامد) ته حکم کوي چې امانت مال د مړي ځوي یعني زید ته وسپاري.

دلیل دا دی چې مستودع دا اقرار کړی دی چې کوم امانت چې زما په قبضه کي دی هغه د مړي (خالد) د نائب کېدلو په حیثیت سره د وارث (زید) حق او ملکیت دی، او کوم څوک چې داسي اقرار وکړي چې زما سره د بل سړي ملکیت موجود دی نو پر هغه واجب دي چې دا ملکیت هغه سړي (مقرلهٔ) ته وسپاري. لکه کله چې مورث یعني خالد ژوندی وای او مستودع د هغه د حق اقرار کړي وای نو اصالتاً به مورث ته امانت ورسپارل واجب وای، نو همداسي د مورث تر مرګ وروسته چې کله مستودع د وارث (زید) لپاره نیابتاً اقرار وکړی نو پر مستودع به وارث (زید) ته امانت ورسپارل واجب او ضرري وي.

**بخلاف ما إلخ:** د دې په خلاف كه د يو سړي مثلاً د حامد سره د زيد څلور زره درهمه امانتاً پراته وي (او مودع [امانت ايښونكى] يعني زيد تر اوسه ژوندى وي). بيا حامد اقرار وكړي چې فلانكى سړى مثلاً سلمان د مُودِع يعني د زيد له طرفه پر دغه امانت (زر درهمه) د قبضه كولو وكيل دى (يعني سلمان د دغه امانت وكيل بالقبض دى)، يا مثلاً د حامد سره د زيد يو پُسه امانتاً موجود وي او حامد اقرار وكړي چې سلمان دغه امانت (پسه) له مُودِع يعني له زيد څخه رانيولى دى (يعني سلمان د دغه امانت مشتري دى)، نو په دې صورت كې به قاضي مستودع (حامد) ته دا حكم نه كوي چې دغه امانت وكيل بالقبض يا مشتري (يعني سلمان) ته وسپاري؛ ځكه چې مستودع د مُودِع (امانت ايښونكي) د حق او ملكيت اقرار كړى دى په داسې حال كې چې مودِع (زيد) ژوندى هم دى؛ ځكه كله چې مستودع دا خبره وكړه چې سلمان د مودِع يعني د زيد له طرفه پر دغه امانت د قبضه كولو وكيل دى، نو ګواكې مستودع دا اقرار وكړى چې دغه امانت د هغه يعني د زيد حق او ملكيت دى، همدارنګه كله چې مستودع دا خبره وكړه چې سلمان دغه امانت مال له زيد څخه رانيولى دى نو ګواكې هغه دا اقرار وكړى چې زيد د دې امانت مالک دى.

لنډه دا چې مستودع د مودِع (زيد) د حق او ملكيت اقرر كړى دى چې دغه امانت د هغه حق دى او هغه ژوندى هم دى، نو ځكه د مستودع له طرفه دا اقرار چې سلمان د مودِع يعني د زيد وكيل بالقبض دى، دا د بل چا يعني د مودَع پر مال اقرار دى (يعني د مستوع له طرفه د وكيل بالقبض په حق كې اقرار كول داسې دي لكه د بل چا [زيد] پر مال اقرار كول، نه پر خپل مال، يعني ګواكې مستودَع د بل چا (يعني د زيد) د مال اقرار د بل سړي لپاره وكړى، چې د ده مال د هغه دى)، او تاسو ته به معلومه وي چې اقرار "حجت قاصره" دى، نو ځكه د بل چا په حق كې به د هغه اقرار صحيح نه وي، او كله چې د مستودع دا اقرار صحيح نه دى، نو ځكه مستودع ته دا به حكم هم نه كيږي چې هغه امانت مال وكيل بالقبض يعني سلمان ته وسپاري.

همدارنګه كله چې مستودع دا خبره وكړه چې سلمان دغه امانت (پسه) له مودِع يعني له زيد څخه رانيولى دى، نو ګواكې مستودع د مودِع (زيد) د ملكيت زائلېدلو اقرار وكړى، حال دا چې مستودع ته دا اختيار نشته چې د مودِع ملكيت زائل او باطل كړي، نو ځكه د مستودع په اقرار سره به د مودِع ملكيت نه زائليږي، او كله چې ملكيت زائل نه سو، نو ځكه قاضي به مستودع ته دا حكم هم نه كوي چې مشتري يعني سلمان ته هغه امانت وسپاري.

او كه د مودِع تر مرګ وروسته مستودع اقرار كړى وي (لكه په اول صورت كې)، نو دا د بل چا يعني د مودِع پر مال قرار كول نه دي؛ ځكه چې د مودِع ملكيت د هغه د مرګ په وجه زائل سو، يعني تر مرګ وروسته مودِع د امانت مالک پاته نه سو بلكې د هغه وارث د امانت مالک سو، او كله چې وارث مالک سو، او مستودع هم د هغه لپاره اقرار كړى دى، نو ښكاره خبره ده چې دا د بل چا پر مال اقرار نه دى، نو ځكه په دې صورت كې د مستودع له طرفه د مودِع د وارث لپاره اقرار كول صحيح دي.

بخلاف المديون إلخ: فرمايي که چيري مقروض دا اقرار وکړي چي قرضخواه (د قرض مالک) فلانکی سړی پر قرض د قبضه کولو وکيل جوړ کړی دی، نو قاضي به مقروض ته دا حکم کوي چي د قرض مال وکيل ته وسپاري؛ ځکه چي قرض بعينه نه اداء کيږي بلکي بالمثل اداء کيږي، يعني په قرض کي چي کوم شی اخيستل سوی وي، خاص هغه شی نه اداء کيږي بلکي د هغه مثل اداء کيږي، او د مثل مالک په خپله مقروض دی، نه قرضخواه، لهذا د مقروض له طرفه د وکيل بالقبض په باره کي اقرار کول داسي دي لکه پر خپل ځان اقرار کول، او ښکاره خبره ده چي په دې کي هيڅ حرج او پروا نسته چي څوک پر خپل ځان اقرار وکړي، نو ځکه دا اقرار به صحيح وي، او کله چي دا اقرار صحيح دی، نو ځکه مقروض ته به دا حکم هم کيږي چي د قرض مال هغه (وکيل بالقبض) ته وسپاري.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَلَوْقَالَ: الْمُوْدَعُ لِآخَرَ: هٰذَا ابْنُهُ أَيْضًا او که مستودع د بل چا په باره کي ووايي: چي دا هم د مړي ځوی دی وَقَالَ الْأَوَّلُ: لَيْسَ لَهُ ابْنٌ غَيْرِيْ او اول ځوی ووايي: چي زما څخه بغير د هغه بل ځوی نسته قُضِيَ بِالْمَالِ لِلْأَوَّلِ نو د مال فيصله به د اول ځوی لپاره کيږي لِأَنَّهُ لَمَّا صَحَّ إِقْرَارُهُ لِلْأَوَّلِ ځکه کله چي د اول ځوی لپاره د مستودع اقرار صحيح سو اِنْقَطَعَ يَدُهُ عَنِ الْمَالِ نو له مال څخه د هغه قبضه منقطع سوه فَيَكُوْنُ هٰذَا إِقْرَارًا عَلَى الْأَوَّلِ نو ځکه دا [د مستودع دويم اقرار] به پر اول ځوی اقرار کول وي [او اقرار على الغير صحيح نه دی] فَلَا يَصِحُّ إِقْرَارُهُ لِلثَّانِيْ نو ځکه د دويم يوه لپاره به د هغه اقرار صحيح نه وي كَمَا إِذَا كَانَ الْأَوَّلُ ابْنًا مَعْرُوْفًا لکه [په هغه صورت کي] کله چي اول مشهوره ځوی وي وَلِأَنَّهُ حِيْنَ أَقَرَّ لِلْأَوَّلِ او ځکه کله چي مستودع د اول ځوی لپاره اقرار وکړی لَا مُكَذِّبَ لَهُ نو [په هغه وخت کي] د ده هيڅ تکذيب کونکی نه وو فَصَحَّ نو ځکه هغه اقرار صحيح سو وَحِيْنَ أَقَرَّ لِلثَّانِيْ او کله چي هغه د دويم لپاره اقرار وکړی لَهُ مُكَذِّبٌ نو [په دې وخت کي] د ده تکذيب کونکی موجود دی [چي هغه اول ځوی دی] فَلَمْ يَصِحَّ نو ځکه دا [دويم] اقرار به صحيح نه وي.

**اللغات**: ﴿مودَع﴾ د افعال د باب مفعول دی، د "مستودع" په معنیٰ سره دی يعني: چا ته چي امانت ايښول سوی وي. ﴿انقطع﴾ د انفعال د باب ماضي ده: ختمېدل، قطع کېدل. ﴿مکذِّب﴾ د تفعيل د باب فاعل دی: درواغجن ګڼونکی (هغه کس کوم چي بل څوک درواغجن ګڼي)، درواغجن ګرځونکي، تکذيب کونکی.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که مستودع (امانت ساتونکی) د مودِع (امانت ایښونکي) تر مرګ وروسته د يو سړي په باره کي ووايي چي دا هم د مړي ځوي دی، مګر اول ځوی د هغه انکار وکړي او داسي ووايي چي زما څخه بغير د مړي بل هيڅ ځوی نشته. نو په دې صورت کي به قاضي مستودع ته دا حکم کوي چي ټوله امانت مال اول ځوی ته وسپاري او دويم سړي ته به هيڅ شی نه ورکوي (يعني مستودع چي ثانياً د کوم سړي لپاره د ځوي والي اقرار کړی دی چي دا هم د مړي ځوی دی، هغه ته به په امانت مال کي هيڅ حصه نه ورکوي).

دليل دا دی چي د مستودع اقرار د اول ځوی لپاره په داسي وخت کي صحيح سو چي په هغه وخت کي هيڅ مزاحم نه وو، او کله چي د هغه لپاره اقرار صحيح سو، نو له امانت مال څخه د مستودع قبضه ختمه سوه، او کله چي د هغه قبضه ختمه سوه نو تر دې وروسته د دويم سړي لپاره د مستودع اقرار کول (چي دا هم د مړي ځوی دی) داسي دي لکه پر بل چا يعني پر اول ځوی اقرار کول، او دا خبره تسليم سوې ده چي پر بل چا (غير) اقرار کول صحيح نه دي، لهذا کله چي پر غير اقرار کول صحيح نه دي، نو ځکه د مستودع له طرفه به د دويم سړي لپاره هم اقرار کول هم صحيح نه وي. لکه څرنګه چي په هغه صورت کي د دويم سړي لپاره د مستودع اقرار صحيح نه دی کله چي د مړي اول ځوی مشهوره وي يعني ټوله خلک يې پېژني چي دا د مړي ځوی دي. لهذا کله چي د دويم سړي لپاره اقرار کول صحيح نه سو، نو ځکه مستودع ته به دا حکم کيږي چي ټوله امانت مال اول ځوی ته وسپاري.

ولأنه حين إلخ: دويم دليل دا دی چي کله مستودع د اول ځوی لپاره اقرار وکړی، نو د ده هيڅ تکذيب کونکي نه وو (يعني داسي هيڅوک نه وو چي مستودع په خپل اقرار کي دروغجن وشماري چي دا د مړي ځوی نه دی)، نو ځکه د اول ځوی لپاره اقرار کول صحيح سو، لېکن کله چي مستودع د دويم سړي لپاره هم د ځوي والي اقرار وکړی نو اول ځوی د ده تکذيب کونکی سو، لهذا د دويم ځوی لپاره اقرار صحيح نه سو، او کله چي د هغه لپاره اقرار صحيح نه سو، نو ځکه د امانت ټوله مال به اول ځوی ته ورکول کيږي او دويم ځوی ته به د امانت مال هيڅ حصه نه ورکول کيږي.

## د مړي له وارثانو او قرضخواهانو څخه د کفيل اخيستلو حکم

قَالَ: وَإِذَا قُسِّمَ الْمِيْرَاثُ بَيْنَ الْغُرَمَاءِ وَالْوَرَثَةِ فرمايي: او کله چي [د قاضي له طرفه] د مړي ميراث د قرضخواهانو او وارثانو په مينځ کي تقسيم کړی سي فَإِنَّهُ لَا يُؤْخَذُ مِنْهُمْ كَفِيْلٌ نو له هغو څخه به کفيل نه اخيستل کيږي وَلَا مِنْ وَارِثٍ او نه له وارث څخه وَهٰذَا شَيْءٌ احْتَاطَ بِهِ بَعْضُ الْقُضَاةِ او دا [کفيل اخيستل] داسي شی دی چي د هغه په باره کي ځيني قاضيانو احتياط کړی دی وَهُوَ ظُلْمٌ

حال دا چي دا ظلم دی [یعني ښه کار نه دی] وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَا ❁ : يُؤْخَذُ الْكَفِيْلُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي [له هغو څخه] به کفيل اخيستل کيږي وَالْمَسْأَلَةُ فِيمَا إِذَا ثَبَتَ الدَّيْنُ وَالْإِرْثُ بِالشَّهَادَةِ او دا مسئله په هغه صورت کي ده کله چي قرض او ميراث په ګواهی [بيّنه] سره ثابت سوي وي وَلَمْ يَقُلِ الشُّهُودُ: لَا نَعْلَمُ لَهُ وَارِثًا غَيْرَهُ او ګواهانو دا نه وي ويلي: چي مورږ له هغه څخه بغير د مړي بل وارث نه پيژنو لَهُمَا: أَنَّ الْقَاضِيَ نَاظِرٌ لِلْغُيَّبِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي قاضي د غائبو خلکو [حقدارانو] نګران دی [یعني د هغو د حق حفاظت کونکي دی] وَالظَّاهِرُ أَنَّ فِي التَّرِكَةِ وَارِثًا غَائِبًا أَوْ غَرِيمًا غَائِبًا او ښکاره دا ده چي په ميراث کي به يو وارث غائب وي يا يو قرضخواه به غائب وي لِأَنَّ الْمَوْتَ قَدْ يَقَعُ بَغْتَةً ځکه چي مرګ کله ناڅاپه واقع کيږي فَيَحْتَاطُ بِالْكَفَالَةِ نو ځکه په کفيل اخيستلو سره به قاضي احتياط کوي [یعني احتياطاً به له هغو څخه کفيل واخلي] كَمَا إِذَا دَفَعَ الْآبِقَ وَاللُّقَطَةَ إِلَى صَاحِبِهِ لکه کله چي قاضي تښتېدلی غلام يا په لاره کي لوېدلی شی خپل مالک ته واپس کړي أَوْ أَعْطَى امْرَأَةَ الْغَائِبِ النَّفَقَةَ مِنْ مَالِهِ يا [لکه کله چي] قاضي د غائب ښځي ته د هغه له مال څخه نفقه ورکړي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ حَقَّ الْحَاضِرِ ثَابِتٌ قَطْعًا أَوْ ظَاهِرًا او د امام صاحب دليل دا دی: چي د حاضر [خلکو] حق په يقيني توګه ثابت دی يا په ظاهري توګه ثابت دی فَلَا يُؤَخَّرُ لِحَقٍّ مَوْهُومٍ إِلَى زَمَانِ التَّكْفِيلِ نو ځکه د وهمي حق په وجه به د کفيل اخيستلو [کفيل جوړولو] تر زمانې پوري د حاضر حق نه ځنډول کيږي كَمَنْ أَثْبَتَ الشِّرَاءَ مِمَّنْ فِي يَدِهِ لکه څوک چي له قابض څخه [د مقبوض شي] رانيول ثابت کړي [چي ما هغه څني رانيولی دی او زه مشتري يم] أَوْ أَثْبَتَ الدَّيْنَ عَلَى الْعَبْدِ حَتَّى بِيعَ فِي دَيْنِهِ يا پر غلام قرض ثابت کړي [چي زه د هغه قرضخواه يم] تر دې چي غلام د هغه په قرض کي خرڅ کړی سي لَا يُكَفَّلُ نو [په دې صورت کي له مشتري يا قرضخواه څخه] کفيل نه اخيستل کيږي وَلِأَنَّ الْمَكْفُولَ لَهُ

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال صاحبُ الكتاب "القول الراجح": يظهر من دأب المصنفين رَحِمَهُ الله ترجيح قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، وأيضاً قوله مذكور في المتون، وكذا في رد المحتار (ج:۴، ص:۴۰۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۲۲]

مَجْهُولٌ او ځکه چي مکفول لهٔ مجهول دی فَصَارَ كَمَا إِذَا كُفِّلَ لِأَحَدِ الْغُرَمَاءِ نو داسي سو لکه د يو قرضخواه لپاره چي کفيل سوی وي بِخِلَافِ النَّفَقَةِ په خلاف د نفقې لِأَنَّ حَقَّ الزَّوْجِ ثَابِتٌ وَهُوَ مَعْلُومٌ ځکه چي د خاوند حق ثابت دی او خاوند معلوم [هم] دی وَأَمَّا الْآبِقُ وَاللُّقَطَةُ فَفِيهِ رِوَايَتَانِ او کوم چي تښتېدلی غلام او لقطه دي نو په دې باره کي دوه روايتونه دي وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ عَلَى الْخِلَافِ او زياته صحيح دا ده چي دا مسئله [هم] مختلف فيه ده وَقِيلَ: إِنْ دَفَعَ بِعَلَامَةِ اللُّقَطَةِ أَوْ إِقْرَارِ الْعَبْدِ او ويل سوي دي: چي که قاضي [لقطه خپل مالک ته] د لقطې د علامت بيانولو پر بناء ورکړي يا [غلام خپل مالک ته] د غلام د اقرار کولو پر بناء ورکړي يُكَفِّلُ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق به [له مالک څخه] کفيل اخيستل کيږي لِأَنَّ الْحَقَّ غَيْرُ ثَابِتٍ ځکه چي حق ثابت نه دی وَلِهَٰذَا كَانَ لَهُ أَنْ يَمْنَعَ او له همدې کبله قاضي ته دا اختيار سته چي مالک هغه منع کړي [يعني خپل مالک ته يې نه ورکړي] وَقَوْلُهُ وَهُوَ ظُلْمٌ أَيْ مَيْلٌ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيلِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول "وَهُوَ ظُلْمٌ" [معنیٰ دا ده] يعني له سيده لاري څخه اوښتل وَهٰذَا يَكْشِفُ عَنْ مَذْهَبِهِ أَنَّ الْمُجْتَهِدَ يُخْطِئُ وَيُصِيبُ او دا [د "وهو ظلمٌ" ويل] دا خبره ښکاره کوي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي مجتهد [ځيني وخت] غلطي هم کوي او سحيح [فيصله] هم کوي لَا كَمَا ظَنَّهُ الْبَعْضُ [او] داسي نه ده لکه ځيني خلک چي گومان کوي.

**اللغات:** ﴿غرماء﴾ جمع د غَرِيمٌ ده، دا لفظ له اضدادو څخه دی مقروض ته هم وايي او قرضخواه (يعني د قرض مالک) ته هم وايي، ﴿غيّب﴾ جمع د غَائِبٌ ده: نا حاضر، غائب، ﴿غريم﴾ قرضخواه، د قرض مالک، قرض ورکونکی، ﴿بغتة﴾ ناڅاپه، نابيره، ﴿التركة﴾ (د راء په کسره سره) مړي چي کوم مال پرې ايښی وي هغه ته ترکه وايي، ميراث، ﴿لقطة﴾ هغه شی کوم چي په عامه لاره کي له يو چا څخه لوېدلی وي او بل څوک يې پيدا کړي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی مړ سو، او پر هغه د خلکو قرض باندي وو لېکن دا قرض ښکاره نه وو، او هغه خلکو (قرضخواهانو) په بيّنه سره دا ثابته کړه چي زموږ پر هغه قرض باندي دی، همدارنگه د دې مړي يو ځمکه د بل چا په قبضه کي وه، او د مړي وارثانو د بيّنه او گواهۍ په ذريعه دا ثابته کړه، او قاضي د هغو په مېنځ کي تقسيم شروع کړی، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قاضي نه له يو قرضخواه څخه کفيل اخيستلای سي او نه يې له يو وارث څخه اخيستلای سي.

که څه هم ځيني قاضيانو (مثلا ابن ابي ليلیٰ) په داسي صورت کي کفيل اخيستی دی لېکن شرعاً دا ظلم دی (دا تفصيل دامام صاحب په نېز دی). او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دواړو شاګردانو (صاحبينو) په دې مسئله کي د قاضي لپاره کفيل اخيستل جائز ګرځولي دي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي قاضي د غائبو حقداره خلکو د حقونو د حفاظت او ساتلو لپاره مقرر ول کيږي، او دا ښکاره خبره ده چي شايد په ميراث کي له موجوده حقداره خلکو (يعني له وارثانو او غرماؤ) څخه بغير يو بل حقدار غائب وي، ځکه مرګ کله ناڅاپه واقع کيږي، لهذا د احتياط تقاضا همدا ده چي قاضي له موجوده حقدارانو څخه کفيل واخلي، د دې لپاره چي قاضي د هغه کفيل په ذريعه د غائب حقدار حق اداء کړی سي.

صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د خپل مسلک په تائيد کي درې مثالونه پېش کړي دي: ①..... که يو غلام وتښتي او قاضي هغه ونيسي، بيا د هغه مالک راسي او د قاضي په نېز د هغه مالک والي ثابت سي، نو حکم دا دی چي قاضي به تښتېدلی (ابق) غلام هغه ته ورکوي او له هغه څخه به کفيل اخلي.
②... دويم مثال دا دی که يو شی په لاره کي لوېدلی وي (چي هغه ته لقطه وايي)، او هغه قاضي ته په لاس ورسي، بيا يو سړی د هغه د مالک کېدلو دعویٰ وکړي (چي د دې لقطې مالک زه يم)، نو قاضي چي کله هغه ته د لقطه ورکولو اراده وکړي نو له هغه څخه به کفيل اخلي. ③... درېيم مثال دا دی که خالد بل سړي ته (مثلا حامد ته) خپل مال امانتاً کښېښودي او په خپله غائب سي، بيا د خالد ښځه له قاضي څخه د نفقې غوښتنه وکړي (چي زما د خاوند [خالد] مال د فلانکي سړي [حامد] سره پروت دی او ما ته له هغه څخه نفقه راکړه!)، او تر تحقيق وروسته ثابته سي چي د هغه سړي (حامد) سره د غائب خاوند مال پروت دی او هغه سړي (حامد) د دې اقرار هم کوي، نو قاضي به له هغه څخه مال اخلي او د غائب خاوند ښځي ته به نفقه ورکوي او له ښځي څخه به يو کفيل اخلي. لهذا څرنګه چي په دغه صورتونو کي قاضي کفيل اخلي او کفيل اخيستل جائز دي، همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم قاضي کفيل اخلي او کفيل اخيستل به جائز وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي له قرضخواهانو او وارثانو څخه چي کوم خلک في الحاله حاضر او موجود دي، د هغو حق په يقيني توګه ثابت دی، او که چيري له هغو څخه بغير بل حقداره کس هم وي لېکن هغه في الحاله حاضر نه وي، نو په دې صورت کي د حاضرينو حق په ظاهري توګه ثابت دی او کوم کس چي حاضر نه دی د هغه حق ثابت نه دی بلکي موهوم (شکمن) دی، او د موهوم حق په وجه موجود او ثابت حق نه ځنډول کيږي، نو ځکه په دې مسئله کي به د کفيل اخيستلو په وجه د حاضرينو د حقوقو اداء کول نه ځنډول کيږي بلکي له کفيل اخيستلو څخه بغير به د هغو حقونه ورکول کيږي.

د دې يو مثال دا دی لکه خالد چې مثلاً پر دې خبره بيّنه پېش کړي چې کوم پُسه د زيد په قبضه کي دی، هغه ماله زيد څخه رانيولی دی، نو په دې صورت کي به قاضي وقابض (زيد) ته دا حکم کوي چې هغه پُسه مشتري (خالد) ته وسپاري، لېکن قاضي به د دې وهم په وجه له مشتري څخه کفيل نه اخلي چې شايد بل سړی به هم د دې پُسه د رانيولو دعویٰ وکړي (چې ما دا پُسه له زيد څخه رانيولی دی). او بل مثال يې دا دی که يو سړی (مثلاً خالد) دعویٰ کړي چې پر فلانکي غلام زما دومره قرض باندي دی او مدعي (خالد) هغه قرض په بيّنه سره ثابت کړي، نو قاضي به دا غلام د هغه (خالد) په قرض کي خرڅوي، لېکن د دې وهم په وجه به له هغه (خالد) څخه کفيل نه اخلي چې کېدای سي پر غلام به د بل چا قرض باندي وي او هغه به هم دعویٰ وکړي. لهذا څرنګه چې په دغه مثالو کي قاضي ته دوهم پر بنياد د کفيل اخيستلو اختيار نسته، همداسي په پورتنی مسئله کي هم قاضي ته له موجوده قرضخواهانو او وارثانو څخه د کفيل اخيستلو اختيار نسته.

ولأن المكفول إلخ: د کفيل نه اخيستلو دويم دليل دا دی چې د کفالې (کفيل کېدلو) د صحيح والي لپاره دا ضروري ده چې مکفول لهٗ به معلوم وي، حالانکي دلته چې کوم حقدار غائب دی هغه مجهول دی، او د مجهول کفاله صحيح نه ده. او څرنګه چې په ټولو قرضخواهانو کي د يو نا معلوم قرضخواه لپاره کفيل کېدل صحيح نه دي همداسي د يو غائب او نا معلوم حقدار لپاره هم کفيل کېدل صحيح نه دي.

بخلاف النفقه إلخ: له دې ځايه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د مذکوره مثالونو جواب ورکوي، نو د ښځي د نفقې والا مثال (دريم مثال) په جواب کي فرمايي چې دا پورتنی مسئله د ښځي پر نفقې قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چې دا نفقه د خاوند له امانت مال (وديعت) څخه ورکول سوې ده او په دې مال کي د خاوند حق ثابت دی او په خپله خاوند هم معلوم دی، او د معلوم کفاله صحيح ده، نو په همدې وجه د نفقې والا په مسئله کي کفيل اخيستل صحيح دي، لېکن په پورتنی مسئله کي مکفول لهٗ مجهول دی، نو ځکه هلته به کفيل اخيستل صحيح نه وي.

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د نورو مثالونو (يعني د آبق او د لقطې له مالک څخه د کفيل اخيستلو) جواب دا دی چې په دې سلسله کي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه نقل سوي دي: په يوه روايت کي امام صاحب رَحِمَهُ الله د کفيل اخيستل اختيار کړي دي (چې کفيل به ځني اخيستل کيږي)، او په دويم روايت کي يې دا نه دي خوښ کړي، لېکن صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې زياته صحيح دا ده چې په آبق او لقطه کي د کفيل اخيستلو صورتونه مختلف فيه دي او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په

دې صورتونو کي کفیل نه اخیستل کیږي، او کله چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دغه صورتونو کي کفیل نه اخیستل کیږي نو ښکاره خبره ده چي په دې صورتونو سره به د هغه په خلاف دلیل نیول هم صحیح نه وي.

وقیل إلخ: فرمایي چي د ځیني حضراتو په نېز که مدعي کس د لقطې علامت بیان کړي (چي مثلاً د هغې رنګ او شکل داسي دی او دومره شی دی) او د علامت بیانولو پر بناء قاضي دا لقطه مدعي ته وسپاري، یا غلام اقرار وکړي چي زه د فلانکي سړي غلام یم او د غلام د اقرار پر بناء قاضي دا غلام هغه سړي (مقر لهٗ) ته وسپاري، نو (ځیني حضرات وایي چي) په دې صورت کي د امام صاحب او صاحبینو ټولو په نېز له مالک څخه کفیل اخیستل کیږي؛ ځکه چي نه په علامت بیانولو سره د یو چا ملکیت (مالکانه حق) ثابتیږي او نه د غلام په اقرار سره د مقر لهٗ لپاره ملکیت ثابتیږي، ځکه د علامت بیانولو او اقرار کولو باوجود هم په لقطه او غلام کي د بل چا د مملوک کېدلو احتمال باقي پاتیږي (چي شاید دا لقطه او غلام به د بل چا وي)، نو ځکه د دغه احتمال په وجه به قاضي له هغه څخه کفیل اخلي. له همدې قاضي ته دا اختیار هم سته چي علامت بیانونکي کس ته لقطه نه ورکړي او مقر لهٗ ته غلام نه ورکړي، لهذا کله چي قاضي ته د نه ورکولو اختیار سته، نو قاضي ته به د کفیل اخیستلو تر وخته پوري د هغوی د ځنډولو اختیار هم وي.

وقوله إلخ: فرمایي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په دې قول "وهو ظُلم" کي د ظلم معنیٰ ده "له سیده لاري څخه اوښتل یعني انحراف" (لنډه دا چي امام صاحب رَحِمَهُ الله په مجتهد فیه کي مسئله کي د کفیل پر اخیستلو د ظلم [انحراف] اطلاق کړی دی)، نو په مجتهد فیه مسئله کي د ظلم په اطلاق کولو سره دا خبره ښکاره سوه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي کله مجتهد په یو مسئله کي اجتهاد وکړي نو ځیني وخت د هغه اجتهاد صحیح وي او ځیني وخت غلط او خطاء وي، یعني د مجتهد په اجتهاد کي د صحیح او خطاء دواړو احتمال سته، داسي نه ده لکه معتزله چي وایي چي د مجتهد اجتهاد همېشه صحیح وي (او هغه همېشه صحیح فیصله کوي)، او داسي نه ده لکه معتزله چي ګومان کوي چي همدا د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب دی (یعني د احنافو په نېز هم د مجتهد اجتهاد همېشه صحیح دی)، د امام صاحب او احنافو وطرف ته د دې عقیدې نسبت کول بالکل غلط دي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

قَالَ: وَإِذَا كَانَتِ الدَّارُ فِي يَدِ رَجُلٍ فرمايي: کله چې يو کور د يو سړي په قبضه کې وي وَأَقَامَ الْآخَرُ الْبَيِّنَةَ أَنَّ أَبَوهُ مَاتَ وَتَرَكَهَا مِيرَاثًا بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَخِيهِ فُلَانٍ الْغَائِبِ او بل سړی پر دې خبره بينه پېش کړي چې زما پلار مړ سو او هغه دا کور زما او زما د فلانکي غائب ورور په مېنځ کې ميراث پرېښووی قُضِيَ لَهُ بِالنِّصْفِ نو د هغه لپاره به د نصف کور فيصله کيږي وَتُرِكَ النِّصْفُ الْآخَرُ فِي يَدِ الَّذِي هِيَ فِي يَدِهِ او بل [پاته] نصف به د هغه کس په قبضه کې پرېښوول کيږي د کوم په قبضه کې چې کور دی [يعني د غائب ورور نصف کور به د قابض په قبضه کې پرېښوول کيږي] وَلَا يُسْتَوْثَقُ مِنْهُ بِكَفِيلٍ او له قابض شخخه به د وثوق [مضبوطوالي او اعتماد] لپاره کفيل نه اخيستل کيږي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا ❀: إِنْ كَانَ الَّذِي هِيَ فِي يَدِهِ جَاحِدًا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: که چېرې قابض [د مدعي د دعوې] منکر وي أُخِذَ مِنْهُ وَجُعِلَ فِي يَدِ أَمِينٍ نو پاته نصف به [هم] له هغه شخخه اخيستل کيږي او د يو امين [امانت ساتونکي] کس په قبضه کې به ورکول کيږي وَإِنْ لَمْ يَجْحَدْ او که هغه منکر نه وي تُرِكَ فِي يَدِهِ نو د هغه په قبضه کې به پرېښوول کيږي لَهُمَا: أَنَّ الْجَاحِدَ خَائِنٌ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې [د حق او دعوې] منکر خائن وي فَلَا يُتْرَكُ الْمَالُ فِي يَدِهِ نو ځکه د هغه په قبضه کې به مال نه پرېښوول کيږي بِخِلَافِ الْمُقِرِّ په خلاف د اقرار کونکي لِأَنَّهُ أَمِينٌ ځکه چې هغه امين وي وَلَهُ: أَنَّ الْقَضَاءَ وَقَعَ لِلْمَيِّتِ مَقْصُودًا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې فيصله بالقصد د مړي لپاره واقع سوې ده [يعني د قاضي فيصله اصلاً او اولاً د مړي لپاره سوې ده] وَاحْتِمَالُ كَوْنِهِ مُخْتَارًا لِلْمَيِّتِ ثَابِتٌ او د مړي له طرفه د قابض د اختيار من کېدلو احتمال ثابت دی فَلَا يُنْقَضُ يَدُهُ نو ځکه د هغه قبضه به نه ختمول کيږي كَمَا إِذَا كَانَ مُقِرًّا لکه [په هغه صورت کې چې نه ختمول کيږي] کله چې هغه اقرار کونکی وي وَجُحُودُهُ

---

❀ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة الحصكفي:...وقولهما استحسان (الدر المنتقى ج:۳ ص:۲۵۰)، والاستحسان مقدّم على القياس [القول الراجح ج:۲، ص:۱۲۳]

قَدِ ارْتَفَعَ بِقَضَاءِ الْقَاضِيْ او د هغه انکار د قاضي د فيصلې په وجه ختم سو وَالظَّاهِرُ عَدَمُ الْجُحُوْدِ فِي الْمُسْتَقْبَلِ او په را روان وخت کې [د هغه] انکار نه کول ښکاره دي لِصَيْرُوْرَةِ الْحَادِثَةِ مَعْلُوْمَةً لَهُ وَلِلْقَاضِيْ ځکه چې دا واقعه هغه او قاضي دواړو ته معلومه ده.

**اللغات:** ﴿جحود﴾ د فتح د باب مصدر دی: انکار کول. ﴿ارتفع﴾ د افتعال د باب ماضي ده: پورته کېدل، ليرې کېدل، ختمېدل. ﴿صيرورة﴾ د ضرب د باب مصدر دی: ګرځېدل، کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو کور د زيد په قبضه کې وي، او بل سړی مثلاً خالد پر دې خبره بيّنه پيښ کړي چې "زما په پلا مړ سو او هغه دا کور زما او زما د ورور حامد لپاره په ميراث کې پرېښوو او زما ورور حامد اوس غائب دی"، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چې د دې کور يو نصف (نيمه حصه) به خالد ته ورکول کيږي او بل نصف به د قابض يعني د زيد په قبضه کې پرېښوول کيږي، تر دې چې غائب ورور (حامد) راسي. او له قابض (زيد) څخه به بالاجماع کفيل نه اخيستل کيږي.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې که قابض (زيد) د مدعي (خالد) له دعوې څخه انکار کوي او مدعي (خالد) پر خپله دعویٰ بيّنه پېش کړي، نو په دې صورت کې به د کور يو نصف هغه (خالد) ته ورکول کيږي او بل نصف يعني د غائب ورور نصف به د قابض (زيد) له قبضې څخه ايستل کيږي او د داسې کس په قبضه کې به ورکول کيږي کوم چې امين او ديندار وي. او که چيرې قابض (زيد) د خالد يعني د مدعي له دعوې څخه منکر نه وي، نو په دې صورت کې به د کور بل نصف د قابض په قبضه کې پرېښوول کيږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې کله قابض (زيد) د مدعي (خالد) له دعوې څخه منکر وي، نو د انکار په وجه د قابض خيانت ښکاره سو، او د خائن کس په قبضه کې د بل چا مال نه پرېښوول کيږي، نو په دې وجه د انکار کولو په صورت کې به د کور بل نصف د قابض (زيد) په قبضه کې نه پرېښوول کيږي بلکې يو امين او ديندار کس ته به ورسپارل کيږي. او د خائن کس په قبضه کې د نه پرېښوولو حکم ځکه دی چې هغه د خيانت په وجه په دې کور کې تصرف کولای سي (ځکه قابض دا کور خپل ملکيت ګڼي او ګواهان درواغجن ګڼي)، نو ځکه د غائب ورور (حامد) د حصې د حفاظت په خاطر به پاته نصف کور د قابض له قبضې څخه ايستل کيږي او يو امين او ديندار کس ته به ورسپارل کيږي. او که چيرې قابض (زيد) د مدعي (خالد) د دعوې اقرار کوي، نه انکار، نو د دعوې د اقرار په وجه هغه امين دی، او په دې کې هيڅ حرج او پروا نسته چې د امين کس په قبضه کې د بل چا مال

پرېښوول سي، بلکي غوره هم دا ده چي د اقرار په صورت کي کور د قابض (زيد) په قبضه کي پرېښوول سي؛ ځکه چي مړي هغه ته په اعتماد سره کور امانتاً ورکړی وو، او د هغه له طرفه تر اوسه خيانت ښکاره سوی نه دی، نو ځکه د مړي د اعتماد کولو په وجه هغه (زيد) د دې زيات حقدار دی چي د غائب (حامد) تر راتګه پوري د هغه د نصف کور حفاظت وکړي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي د مدعي (خالد) د بيّنه پر بناء چي قاضي کوم فيصله کوي هغه اولاً او اصلاً پر مړي واقع کيږي او هغه کور اول د مړي لپاره ثابتيږي، او که له هغه کور څخه بغير د مړي بل مال نه وي نو تر ټولو مخکي به له هغه څخه د مړي قرضونه (پورونه) اداء کيږي او د هغه له دريمي حصې څخه به د مړي وصيت نافذول کيږي. او د قابض (زيد) د انکار باوجود دا احتمال سته چي مړي به قابض د همدې کار لپاره اختيار کړی وي، او کله چي دا احتمال سته، نو ځکه د هغه قبضه به نه ختمول کيږي، لکه څرنګه چي په هغه صورت کي د قابض قبضه نه ختمول کيږي کله چي هغه د مدعي د دعوې اقرار کوي. (لکه مخکي چي ذکر سوه چي که قابض د دعوې اقرار کوي نو د هغه له قبضې څخه به پاته نصف کور نه ايستل کيږي)

وجحوده قد ارتفع إلخ: دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د دليل جواب دی، د جواب حاصل دا دی چي ستاسو دا خبره صحيح ده چي کله قابض د مدعي د دعوې منکر وي نو د هغه خيانت ښکاره سو او د خائن په قبضه کي د بل څه مال نه پرېښوول کيږي (دا خبره مونږ منو چي صحيح ده)، ليکن د دعوې د منکر کېدلو په وجه د خيانت ښکاره کېدل به يا د ماضي په اعتبار سره وي يا د مستقبل په اعتبار سره به وي، که چيري د ماضي په اعتبار سره وي يعني د قاضي له فيصله کولو څخه مخکي قابض د مدعي د دعوې انکار وکړي او بيا مدعي بيّنه پېش کړي او خپله دعویٰ ثابته کړي، نو په دې صورت کي چي کله قاضي د بيني پر بناء فيصله وکړي نو د فيصله کولو په وجه د قابض د انکار دعویٰ ختمه سوه، او کله چي د قابض انکار ختم سو، نو د هغه سره لازم شی يعني خيانت هم ختم سو، او کله چي خيانت ختم سو، نو ځکه اوس به د هغه په قبضه کي د پاته نصف کور په پرېښوولو کي هيڅ حرج او پروا نه وي. او پاته سوه دا خبره چي په مستقبل کي به قابض د مدعي د دعوې انکار وکړي، نو دا په ښکاره (ظاهراً) معلوم دي، يعني ظاهري حالت همدا دی چي هغه به انکار نه وکړي؛ ځکه چي د دې واقعې حال قاضي او قابض دواړو ته معلوم دی او دا واقعه د قاضي په دفتر (يعني د فيصلو په کتابچه) کي هم ليکل سوې ده، نو ظاهراً همدا اُميد سته چي قابض به په آينده وخت کي د هغه انکار نه وکړي (ځکه په انکار کولو سره هغه په خپله رسوا کيږي)، لهذا کله چي په آينده وخت کي په ښکاره د انکار دعویٰ کول معلوم دي، نو ځکه په دې کي به هيڅ ضرر او پروا نه وي چي پاته نصف کور د قابض په قبضه کي پرېښوول سي.

او که څوک دا اعتراض وکړي چې که چیري قاضي او ګواهان مړه سي یا له دواړو څخه دا واقعه هېره سي او دفتر (د نیصلو کتابچه) وسوځي، نو په دې صورت کې خو د قابض (زید) له طرفه د انکار کولو احتمال سته؟ نو د هغه جواب دا دی چې دا احتمال نادر دی، او نادر لره هیڅ حکم او اعتبار نه وي.

## د پورتنۍ مسئلې یو بل صورت

وَلَوْ كَانَتِ الدَّعْوٰى فِيْ مَنْقُوْلٍ او که چیري دعوىٰ په منقول مال [سامان] کې وي فَقَدْ قِيْلَ: يُؤْخَذُ مِنْهُ بِالْاِتِّفَاقِ نو ویل سوي دي: چې بالاتفاق به له قابض څخه پاته مال اخیستل کیږي لِأَنَّهُ يَحْتَاجُ فِيْهِ إِلَى الْحِفْظِ ځکه چې په منقول مال کې حفاظت ته ضرورت سته وَالنَّزْعُ أَبْلَغُ فِيْهِ او [د قابض له قبضې څخه د مال] په ایستلو کې حفاظت زیات دی بِخِلَافِ الْعَقَارِ په خلاف د غیرِ منقوله جایداد لِأَنَّهَا مُحَصَّنَةٌ بِنَفْسِهَا ځکه چې هغه بذات خود محفوظ وي وَلِهٰذَا يَمْلِكُ الْوَصِيُّ بَيْعَ الْمَنْقُوْلِ عَلَى الْكَبِيْرِ الْغَائِبِ دُوْنَ الْعَقَارِ او له همدې کبله د مړي وصي د غائب وارث په حق کې د منقول مال د خرڅولو ملکیت [اختیار] لري، نه د غیرِ منقوله جایداد وَكَذَا حُكْمُ وَصِيِّ الْأُمِّ وَالْأَخِ وَالْعَمِّ عَلَى الصَّغِيْرِ او همدا حکم د مور او د ورور او د اکا د وصي دی د نابالغه کوچني په حق کې وَقِيْلَ: الْمَنْقُوْلُ عَلَى الْخِلَافِ أَيْضًا او ویل سوي دي: چې منقول مال هم مختلف فیه دی وَقَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ فِيْهِ أَظْهَرُ او د منقول په باره کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول زیات ښکاره دی لِحَاجَتِهِ إِلَى الْحِفْظِ ځکه چې منقول مال حفاظت ته محتاج دی وَإِنَّمَا لَا يُؤْخَذُ الْكَفِيْلُ لِأَنَّهُ إِنْشَاءُ خُصُوْمَةٍ او کفیل به په دې وجه نه اخیستل کیږي، ځکه کفیل اخیستل خصومت [جنګ او جنجال] پیدا کوي وَالْقَاضِيْ إِنَّمَا نُصِبَ لِقَطْعِهَا لَا لِإِنْشَائِهَا او قاضي خو صرف د خصومت ختمولو لپاره ټاکل کیږي، نه د خصومت پیدا کولو لپاره.

**اللغات:** ﴿النزع﴾ د فتح د باب مصدر دی: ایستل، کښل. ﴿عقار﴾ غیرِ منقوله جایداد، یعني کور او داسي نور. ﴿محصنة﴾ د افعال او تفعیل د باب مفعول دی: محفوظ، خوندي. ﴿وصي﴾ چا ته چې مړي وصیت کړی (د کوچني نګران او ساتونکی). ﴿خصومة﴾ جنګ او جنجال، دعوىٰ. ﴿نُصب﴾ د نصر او ضرب له بابه د ماضي مجهولي صیغه ده: درول، ټاکل، مقرر کول.

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی که مخکنی دعویٰ د منقول مال په باره کې وي، يعني منقول مال (سامان) د يو سړي په قبضه کې وي او بل سړی دا بيّنه پېش کړي چې "زما پلار مړ سو او هغه دا مال زما او زما د غائب ورور لپاره په ميراث کې پرېښووی"، نو په دې صورت کې د ځيني مشايخو رايه دا ده چې قاضي به پاته نصف مال (يعني د غائب ورور حصه) هم له قابض شخصه اخلي او يو امين کس ته به يې سپاري؛ ځکه چې په منقول مال کې د حفاظت ضرورت سته يعني منقول مال حفاظت ته محتاج دی، په دې توګه چې هغه بذات خود محفوظ نه دی او له يوه ځای څخه بل ځای ته منتقل کېدای سي، او د قابض له قبضې څخه په ايستولو کې هغه زيات محفوظه کېږي؛ ځکه کله چې قابض د مدعي د دعوې منکر دی چې زما په قبضه کې د مړي هيڅ مال نسته، نو د خيانت کولو په وجه په هغه کې تصرف هم کولای سي، لهذا کله چې قاضي د هغه له قبضې څخه مال وباسي او د يو امين سړي په قبضه کې يې ورکړي او هغه امين سړی عادل هم وي، نو دا مال به زيات محفوظ سي، نو ځکه د حفاظت په خاطر به پاته نصف مال هم د قابض له قبضې څخه ايستل کېږي.

ها! که چيري دعویٰ په غير منقول جايداد (کور) کې وي نو هغه بذات خود محفوظ وي او په هغه کې د غصب او غلا هيڅ احتمال نسته، نو ځکه د قابض په قبضه کې د هغه مال په پرېښوولو کې هيڅ حرج او پروا نسته.

ولهذا يملك إلخ : څرنګه چې څه مخکې ذکر سوه چې منقول مال حفاظت ته محتاج دی، نو ځکه د مړي وصي ته دا اختيار حاصل دی چې که د مړي يو بالغ وارث غائب وي، نو وصي د هغه له اجازت څخه بغير د هغه منقول مال خرڅولای سي، او کله چې وصي هغه خرڅ کړي نو د وصي دا بيع پر بالغ وارث (غائب) نافذيږي. لېکن که د بالغ وارث مال غير منقوله وي نو وصي ته د هغه د خرڅولو اختيار نسته؛ ځکه چې غير منقوله مال (کور) په خپله محفوظ وي، نو ځکه د هغه د خرڅولو هيڅ ضرورت نسته. او څرنګه چې منقول مال بذات خود محفوظ نه وي، نو ځکه د خرڅولو په ذريعه به د هغه د قيمت حفاظت کېږي.

همدارنګه د مور وصي، يا د ورور وصي، يا د اکا وصي د نابالغه وارث منق[illegible] مال خرڅولای سي. که څه هم د مور، ورور او د اکا وصي ته د تصرف کولو اختيار نسته بلکې فقط د حفاظت کولو اختيار ورته سته، خو څرنګه چې د منقول مال خرڅول هم د حفاظت کولو يوه طريقه ده، نو په دې وجه د هغو وصي ته د نابالغ وارث د منقول مال د خرڅولو اختيار ورکول سوی دی.

وقيل إلخ : ځيني مشايخو ويلي دي چې د غير منقول مال په څېر په منقول مال کې هم د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دی، د صاحبينو مسلک دا دی چې که قابض منکر وي نو د هغه له قبضې څخه

به د پاته منقول مال نصف هم ایستل کیږي او یو امین کس ته به ایښوول کیږي، او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چې په منقول مال کې به هم پاته نصف د قابض په قبضه کې پرېښوول کیږي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د منقول مال په صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول اظهر دی یعنې د صاحبینو له قول څخه زیات واضح دی؛ ځکه چې په منقول مال کې د حفاظت ضرورت سته. او د قابض په قبضه کې د منقول مال د پرېښوولو په صورت کې د هغه حفاظت زیات کیږي، په نسبت ودې ته چې د قابض له قبضې څخه هغه ویستل سي او د بل امین سړي په قبضه کې ورکول سي؛ ځکه چې د قابض سره مال صورتاً او معناً دواړه ډول محفوظ دی، ځکه که مال له هغه څخه هلاک سي نو پر هغه د مال ضمان (تاوان) واجبیږي، او ځکه پر واجبیږي چې قابض د مدعي له دعوې څخه د انکار کولو په وجه د هغه ضامن سوی دی. لېکن که له قابض څخه مال واخیستل سي او یو امین سړي ته ورکول سي نو دا مال به معناً محفوظ نه وي؛ ځکه د هغه هلاکېدلو په صورت کې پر امین ضمان نه واجبیږي (لکه مخکې چې څو ځله ذکر سوي دي چې که امانت مال هلاک سي. نو پر امانت ساتونکي [امین] د هغه ضمان نه واجبیږي)، حاصل دا چې نصف مال د قابض سره په هر صورت کې محفوظ دی برابره ده هغه هلاک سوی وي او که نه. او د امین سره د هلاکېدلو په صورت کې بالکل محفوظ نه دی. او د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول هم دا دی چې پاته نصف مال به د قابض سره پرېښوول کیږي، نو ځکه د صاحبینو د قول په مقابله کې د امام صاحب قول زیات واضح دی.

وانما لايؤخذ إلخ: فرمايي په متن کې چې کوم دا خبره ذکر سوې ده چې له قابض څخه به کفیل نه اخیستل کیږي؛ د هغه دلیل دا دی چې کفیل اخیستل جنګ او جنجال پیدا کوي، په دې توګه چې قابض به له کفیل ورکولو څخه انکار کوي او قاضي به له هغه څخه مطالبه کوي او په دې ډول به معامله لانجمنه او اوږده سي، حال دا چې قاضي د جنګ او جنجال د ختمولو لپاره ټاکل کیږي، نه د هغه د پیدا کولو لپاره، نو ځکه به له قابض څخه کفیل نه اخیستل کیږي.

## په پورتني صورت کې د غائب وارث د راتللو بیان

وَإِذَا حَضَرَ الْغَائِبُ او کله چې غائب وارث حاضر سي لَا يَحْتَاجُ إِلَى إِعَادَةِ الْبَيِّنَةِ نو هغه ته د ګواهی راګرځولو ضرورت نسته [یعني پر هغه دا ضروري نه دہ چې دوباره بیّنه پېش کړي] وَيُسَلَّمُ النِّصْفُ إِلَيْهِ بِذٰلِكَ الْقَضَاءِ او پاته نصف کور به ده ته په هغه [مخکنی] فیصلې سره ورسپارل کیږي لِأَنَّ أَحَدَ الْوَرَثَةِ يَنْتَصِبُ خَصْمًا عَنِ الْبَاقِينَ فِيمَا يَسْتَحِقُّ لَهُ وَعَلَيْهِ ځکه چې یو وارث [حاضر وارث] د باقي وارثانو

له طرفه په هر هغه معامله کي خصم ګرځي کوم چي د هغه لپاره مستحق وي يا پر هغه مستحق وي دَيْنًا كَانَ أَوْ عَيْنًا برابره ده هغه قرض وي او که عَين شی وي لِأَنَّ الْمَقْضِيَّ لَهُ وَعَلَيْهِ إِنَّمَا هُوَ الْمَيِّتُ فِي الْحَقِيقَةِ ځکه فيصله چي د چا لپاره يا پر چا سوې ده هغه په حقيقت کي مړی دی [نه وارث] وَوَاحِدٌ مِنَ الْوَرَثَةِ يَصْلُحُ خَلِيفَةً عَنْهُ فِي ذٰلِكَ او يو وارث هم په دې معامله کي د مړي له طرفه نائب کېدای سي بِخِلَافِ الِاسْتِيفَاءِ لِنَفْسِهِ په خلاف د خپل ځان لپاره د حق حاصلولو لِأَنَّهُ عَامِلٌ فِيهِ لِنَفْسِهِ ځکه په دې صورت کي هغه [حاضر وارث] د خپل ذات لپاره کار کونکي دی فَلَا يَصْلُحُ نَائِبًا عَنْ غَيْرِهِ نو ځکه د بل چا له طرفه نائب نه سي جوړېدای وَلِهٰذَا لَا يَسْتَوْفِي إِلَّا نَصِيبَهُ او له همدې کبله هغه فقط پر خپله حصه قبضه کولای سي وَصَارَ كَمَا إِذَا قَامَتِ الْبَيِّنَةُ بِدَيْنِ الْمَيِّتِ او دا داسي سو لکه د مړي پر قرض چي ګواهي پېش سي إِلَّا أَنَّهُ إِنَّمَا يَثْبُتُ اسْتِحْقَاقُ الْكُلِّ عَلَى أَحَدِ الْوَرَثَةِ إِذَا كَانَ الْكُلُّ فِي يَدِهِ مګر دا چي پر يوه وارث [حاضر وارث] د ټوله مال استحقاق فقط په هغه صورت کي ثابتېږي کله چي ټوله ميراث د هغه په قبضه کي وي ذَكَرَهُ فِي الْجَامِعِ دا امام محمد رَحِمَهُ الله په "جامع کبير" کي ذکر کړي دي لِأَنَّهُ لَا يَكُونُ خَصْمًا بِدُونِ الْيَدِ ځکه چي حاضر وارث له قبضې څخه بغير خصم نه سي ګرځېدای فَيَقْتَصِرُ الْقَضَاءُ عَلَى مَا فِي يَدِهِ نو ځکه [د قاضي] فيصله به پر هغومره مال منحصره وي څومره چي د حاضر وارث په قبضه کي وي.

**اللغات**: ﴿يلتصب﴾ د افتعال مضارع ده: مقرر کېدل، ټاکل کېدل، ﴿مقضي له﴾ د چا لپاره چي ديو شي فيصله سوې وي، مقضي عليه: پر چا چي ديو شي فيصله سوې وي، ﴿عَين﴾ معين شی، لکه پسه، آس، غوا، غنم او داسي نور، ﴿يستوفى﴾ د استفعال د باب مضارع ده: خپل حق پوره اخيستل، حاصلول، ترلاسه کول، ﴿نصيب﴾ حصه، برخه.

**تشريح**: مخکي چي کوم دا مسئله ذکر سوه چي "که يو کور ديو سړي په قبضه کي وي او بل سړی پر دې خبره بيّنه پېش کړي چي دا کور زما د مړه پلار دی او هغه دا زما او زما د غائب ورور لپاره په ميراث کي پرېښووی، نو قاضي به د نصف کور فيصله د مدعي لپاره کوي او پاته نصف کور به د غائب وارث تر راتګه پوري د قابض په قبضه کي پرېښوول کيږي"، اوس چي کله هغه غائب وارث حاضر سي نو د خپل حق ثابتولو لپاره پر هغه دوباره بيّنه پېشول ضروري دي، که نه؟ نو په دې

باره کي دځيني حضراتو قول دا دی چي پر غائب وارث تر حاضرېدلو وروسته بيّنه پېشول ضروري دي؛ ځکه مدعي چي کومه بيّنه پېش کړې وه هغه خاص د مدعي لپاره وه، نو ځکه دا غائب به دخپل حق ثابتولو لپاره جلا بيّنه پېشوي. او صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي غائب ته د دې هيڅ ضرورت نسته چي بيّنه پېش کړي، بلکي د قاضي پر مخکني فيصله به اکتفاء کيږي او په همدې مخکني فيصله سره به غائب ته خپل پاته نصف کور ورسپارل کيږي؛ ځکه چي د حاضر مدعي بيّنه په خپله د هغه لپاره هم ده او د هغه د غائب ورور لپاره هم ده.

لېکن که څوک دا سوال وکړي چي د غائب له طرفه هيڅ دعوىٰ سوې نه ده او د هغه له طرفه خصم موجود نه دی نو د حاضر مدعي پېش کړل سوې بيّنه به څنګه د غائب له طرفه معتبره وي؟. د دې جواب دا دی چي يو وارث د باقي وارثانو له طرفه په هره هغه معامله کي خصم ګرځي چي په هغه کي د مړي لپاره يو حق ثابت وي يا پر مړي يو حق ثابت وي (برابره ده هغه حق قرض وي يا مُعيّن مال وي)، يعني که د قاضي په فيصله سره د يوه وارث په حضور کي د مړي لپاره يو حق ثابت سي يا پر مړي يو حق ثابت سي، نو د قاضي دا فيصله پر ټولو وارثانو نافذيږي او ټوله وارثان په دې کي شريک دي، ګواکي ټوله وارثان حاضر دي يعني يو حاضر وارث د باقي ټولو وارثانو له طرفه قائم مقام او خصم ګرځي. لهذا کله چي يو وارث د باقي ټولو وارثانو له طرفه خصم ګرځي، نو په مذکوره مسئله (د عبارت په مسئله) کي به هم حاضر مدعي د خپل غائب ورور له طرفه خصم وي او د هغه پېش کړل سوې بيّنه چي څرنګه د هغه له طرفه معتبره ده همداسي به د هغه د غائب ورور له طرفه هم معتبره وي، او کله چي د حاضر مدعي پېش کړل سوې بيّنه د هغه د غائب ورور له طرفه معتبره ده، نو بيا د جلا بينې پېشولو ته څه ضرورت سته!.

لأن المقضى له وعليه إلخ: پاته سوه دا خبره چي يو وارث د باقي وارثانو له طرفه ولي خصم ګرځي؟، نو د هغه جواب دا دی چي په دا ډول مسئله کي چي قاضي د کوم چا لپاره فيصله کوي يا پر کوم چا چي فيصله کوي هغه په حقيقت کي مړی (ميت) دی، او مړی فقط يو دی، نو ځکه د هغه له طرفه فقط يو وارث خليفه او نائب کېدای سي، لهذا په مذکوره مسئله کي چي د حاضر مدعي لپاره د کور فيصله سوې ده. هغه په حقيقت کي د مړي لپاره سوې ده، يعني قاضي دا فيصله کړې ده چي دا کور د مړي دي. او کله چي دا ثابته سوه چي کور د مړي دی نو دا کور به د حاضر او غائب دواړو لپاره وي، ځکه چي دواړه د مړي وارثان دي. لهذا کله چي په يوه فيصله سره د حاضر او غائب دواړو لپاره په کور کي حق ثابت سو، نو ځکه د حق ثابتولو لپاره غائب وارث ته دوباره د جلا بينې پېشولو هيڅ ضرورت نسته.

بخلاف الاستيفاء إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چې تاسو ووېل چې فقط يو وارث د مړي له طرفه نائب کېدای سي، او دا معلومه خبره ده چې مړي ته خپل پر ټوله کور قبضه کول جائز وه، نو ځکه د نائب کېدلو په وجه دا هم جائز کېدل پکار دي چې حاضر وارث هم پر ټوله کور قبضه وکړي (يعني د غائب وارث پر حصه هم قبضه وکړي)، حال دا چې هغه بالاجماع له خپلې حصې څخه بغير د بل وارث پر حصې قبضه نه سي کولای؟.

جواب دا دی چې نائب (حاضر وارث) پر خپلې حصې د قبضه کولو په صورت کي د خپل ذات لپاره کار کونکي دی، نه د مړي لپاره، او کوم څوک چې د خپل ذات لپاره کار کوي هغه د بل چا له طرفه نه سي نائب کېدای، په همدې وجه يو وارث فقط پر خپله حصه قبضه کولای سي، د بل وارث پر حصه د قبضه کولو اجازت هغه ته نسته. او د دې مثال داسي دی لکه يو وارث چې د بېنه په ذريعه پر يو سړي د مړي قرض ثابت کړي (يعني يو وارث پر دې خبره بېنه پېش کړي چي پر فلانکي سړي زموږ د مړي قرض باندې دی)، او قاضي له هغه سړي څخه د مړي ټوله قرض واخلي، نو په دې صورت کي دا وارث له هغه قرض څخه فقط خپله حصه اخيستلای سي، د باقي وارثانو پر حصو قبضه نه سي کولای، همداسي به په مذکوره مسئله کي هم حاضر مدعي ته په کور کي فقط پر خپله حصه د قبضه کولو اجازت وي، او د غائب وارث د کور پر حصه به هغه ته د قبضه کولو اجازت نه وي.

إلا أنه إنما يثبت إلخ: دا عبارت د "لأن أحد الورثة ينتصب خصمًا إلخ" څخه استثناء ده، يعني يو حاضر وارث په هره هغه معامله کي د باقي وارثانو له طرفه خصم ګرځي چې په هغه معامله کي د مړي لپاره يا پر مړي حق ثابت وي يعني قاضي چې کله د مړي لپاره يا پر مړي د يو حق فيصله وکړي نو دا فيصله پر ټولو وارثانو نافذيږي، لېکن دا حکم په هغه صورت کي دی کله چې ټوله ميراث د هغه حاضر وارث په قبضه کي وي؛ ځکه چې له قبضې څخه بغير هيڅوک خصم نه سي ګرځېدای، لهذا که چيري د حاضر وارث په قبضه کي لږ ميراث وي نو د قاضي فيصله به پر حاضر وارث د هغه ميراث په اندازه نافذيږي، او د ميراث کوم مقدار چې د هغه په قبضه کي نه وي پر هغه به د قاضي فيصله نه نافذيږي. دا د "جامع کبير" مسئله ده.

## څوک چې ووايي: زما مال صدقه دی نو له هغه څخه کوم مالونه مراديږي؟

وَمَنْ قَالَ: مَالِيْ فِي الْمَسَاكِيْنِ صَدَقَةٌ او څوک چې ووايي: زما مال مسکينانو ته صدقه دی فَهُوَ عَلَى مَا فِيْهِ الزَّكَاةُ نو دا [د مال لفظ] په هر هغه مال باندې واقع کيږي چې په هغه کي زکاة وي وَإِنْ أَوْصٰى بِثُلُثِ مَالِهِ او که هغه د خپل مال د دريمې حصې وصيت وکړي فَهُوَ عَلٰى ثُلُثِ كُلِّ شَيْءٍ نو دا وصيت د هر شي [هر مال] پر دريمه حصه واقع کيږي وَالْقِيَاسُ أَنْ يَلْزَمَهُ التَّصَدُّقُ بِالْكُلِّ او قياس دا دی چې پر

هغه [صدقه کونکي سړي] د ټوله مال صدقه کول واجب وي وَبِهِ قَالَ زُفَرُ او همدا امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايلي دي لِعُمُومِ اسْمِ الْمَالِ ځکه چي د مال لفظ عام دی كَمَا فِي الْوَصِيَّةِ لکه د وصيت په صورت کي چي دي وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ إِيجَابَ الْعَبْدِ مُعْتَبَرٌ بِإِيجَابِ اللهِ تَعَالَى د استحسان دليل دا دی: چي د بنده واجبول د الله پر واجبولو قياس کړی سوي دي فَيَنْصَرِفُ إِيجَابُهُ إِلَى مَا أَوْجَبَ الشَّارِعُ فِيهِ الصَّدَقَةَ مِنَ الْمَالِ نو ځکه د بنده واجبول به د هغه مال وطرف ته راجع کيږي چي په هغه کي شريعت صدقه واجب کړې ده أَمَّا الْوَصِيَّةُ فَأُخْتُ الْمِيرَاثِ کوم چي وصيت دی نو هغه د ميراث خور ده لِأَنَّهَا خِلَافَةٌ كَهِيَ ځکه وصيت هم د ميراث په څېر خلافت دی [يعني څرنګه چي ميراث تر مرګ وروسته ثابتيږي همداسي وصيت هم تر مرګ وروسته نافذيږي] فَلَا يَخْتَصُّ بِمَالٍ دُونَ مَالٍ نو ځکه هغه به د يو [مخصوص] مال سره خاص نه وي [يعني هغه به داسي نه وي چي د يوه مال سره خاص وي او د بل سره خاص نه وي] وَلِأَنَّ الظَّاهِرَ الْتِزَامُ الصَّدَقَةِ مِنْ فَاضِلِ مَالِهِ او ځکه ښکاره دا ده چي انسان په خپل زائد [اضافه] مال کي پر ځان صدقه لازموي وَهُوَ مَالُ الزَّكَاةِ او هغه [زائد مال] د زکاة مال دی أَمَّا الْوَصِيَّةُ تَقَعُ فِي حَالِ الِاسْتِغْنَاءِ کوم چي وصيت دی نو هغه د مستغني والي په حالت کي واقع کيږي فَيَنْصَرِفُ إِلَى الْكُلِّ نو ځکه د ټوله مال وطرف ته به راجع کيږي وَتَدْخُلُ فِيهِ الْأَرْضُ الْعُشْرِيَّةُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز په هغه [صدقه کولو] کي عُشري ځمکه هم داخليږي لِأَنَّهَا سَبَبُ الصَّدَقَةِ ځکه چي هغه د صدقې سبب ده إِذْ جِهَةُ الصَّدَقَةِ فِي الْعُشْرِيَّةِ رَاجِحَةٌ عِنْدَهُ ځکه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز په عُشري ځمکه کي د صدقې اړخ راجح دی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ لَا تَدْخُلُ ❁ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز نه داخليږي لِأَنَّهَا سَبَبُ الْمُؤْنَةِ ځکه چي هغه د مؤنت سبب ده إِذْ جِهَةُ الْمُؤْنَةِ رَاجِحَةٌ عِنْدَهُ ځکه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز [په عُشري ځمکه کي] د مؤنت اړخ راجح دی وَلَا

---

❁ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، لأن معه أبي حنيفة كما قال صاحبُ العناية: وذكر الإمام التمرتاشي قول أبي حنيفة مع محمد رَحِمَهُمَا الله (العناية ج:۶، ص:۲۳۷). وقال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: وإن كانت المسألة مختلفًا فيها بين أصحابنا؛ فإن كان مع أبي حنيفة أحد صاحبيه، يأخذ بقولهما لوفور الشرائط واستجماع أدلة الصواب فيها (شرح عقود رسم المفتي ص:۷۱).[القول الراجح ج:۲، ص:۱۲۴]

تَدْخُلُ أَرْضُ الْخَرَاجِ بِالْإِجْمَاعِ او خراجي ځمکه بالاتفاق نه [ پکښې ] داخلیږي لِأَنَّهُ يَتَمَحَّضُ مُؤْنَةً ځکه چي هغه خالص مؤنت دی.

**اللغات**: ﴿يتمحّض﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: خالص کېدل، محض کېدل. ﴿مؤنة﴾ خرچه، لګښت، مشقت، خرچ او بار، د یو شي د پاتېدلو او بقاء چي کوم خرچ او سبب وي هغه ته مؤنت ویل کیږي، لکه نفقه چي د بنځي د بقاء و ژوندون خرچ او سبب دی همدارنګه عُشر او خراج هم د مالک په قبضه کي د ځمکي د بقاء (پاتېدلو) اسباب دی، نور تفصیل او تحقیق د هدایې په حاشیه کي ذکر سوی دی.

**تشریح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې بیان سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده که یو سړی داسي ووايي: "مَالِيْ فِي الْمَسَاكِيْنِ صَدَقَةٌ" (زما مال مسکینانو ته صدقه دی)، نو زموږ په نېز د هغه دا قول پر هغو مالونو صادقیږي چي په هغوی کي زکاة واجبیږي، لکه نغدي پیسې، سره او سپین زر، د تجارت مالونه او سامانونه، سائمه څارویان، غله او عشري مېوې (برابره ده هغه نصاب ته رسېدلي وي، که نه)، همدا استحسان دی، لېکن له احنافو څخه امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي د هغه سړي دا قول د هغه هر مال ته شامليږي، برابره ده په هغه کي زکاة واجبیږي، که نه، لکه کورنی سامان، دِ خدمت غلامان او د ذاتي استعمال شیان، او د قیاس تقاضا هم دا ده چي په هر مال کي دي صدقه واجب سي.
(۲)... دویمه مسئله دا ده که یو سړی د خپل مال په درېیمه حصه کي وصیت وکړي چي (چي زما د مال له درېیمي حصې څخه دي زما وصیت نافذ کړی سي)، نو د هغه دا وصیت د هغه د هر مال پر درېیمه حصه واقع کیږي، برابره ده هغه د زکاة له جنس څخه وي (یعني د زکاة مال وي)، که نه وي، دا مسئله متفق علیه ده.

**دلیل**: په اوله مسئله کي د امام زفر رَحِمَهُ الله او د قیاس دلیل دا دی چي په دې قول "مَالِيْ فِي الْمَسَاكِيْنِ صَدَقَةٌ" کي لفظ د "مال" عام دی او پر هر ډول مال د هغه اطلاق کیږي، نو ځکه په هر مال کي به صدقه واجب وي، برابره ده هغه مال د زکاة له جنس څخه وي، که نه وي، لکه څرنګه چي د وصیت کولو په صورت کي وصیت د هر مال پر درېیمه حصه واقع کیږي او د هیڅ مال سره نه خاص کیږي.

وجه الاستحسان إلخ: زموږ او د استحسان دلیل دا دی چي د بنده له طرفه پر خپل ځان واجبول به د شریعت پر واجبولو قیاسول کیږي، او شریعت چي په کومو مالونو کي زکاة واجب کړی دی په هغه مالونو کي به بنده ته هم پر ځان د صدقې واجبولو اختیار وي، او څرنګه چي شریعت فقط په مخصوص مالونو کي زکاة واجب کړی دی، نو ځکه د بنده له طرفه د صدقې واجبول (مالي في المساكين

صدقة) به هم د مخصوص مالونو سره خاص وي او فقط هغه مالونو ته به شامليږي چي په هغوی کي زکاة واجبيږي او پر هر مال به د هغه اطلاق نه کيږي.

او دا پر وصيت قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چي وصيت د ميراث په څېر دی، ځکه څرنګه چي ميراث د مورث تر مرګ وروسته ثابتيږي، همداسي وصيت هم د موصي تر مرګ وروسته ثابتيږي، او څرنګه چي ميراث د يو مال سره خاص نه دی او په ټول مال کي واقع کيږي، همداسي به وصيت هم د يو مال سره خاص نه وي او د هر مال په دريمه حصه کي به واقع کيږي.

ولأن الظاهر إلخ: دويم دليل دا دی چي د صدقه کونکي سړي له ظاهري حالت څخه هم دا ښکاره کيږي چي هغه د زائد او اضافه مال صدقه کول غواړي؛ ځکه په ژوند کي هغه ډېرو شيانو ته محتاج او ضرورت مَن دی، او هر ضرورت پر مال منحصر دی، او ښکاره خبره ده چي که هغه ټوله مال صدقه کړي نو په خپله به ډېوالي او صدقه غوښتونکی (خيرات غوښتونکی) وګرځي، نو په دې حواله سره به هم د هغه دا قول فقط پر مخصوص مالونو يعني د زکاة پر مالونو صادقيږي؛ ځکه چي همدا د زکاة مالونه له ضرورت څخه زائد وي.

د دې په خلاف د وصيت مسئله ده، ځکه وصيت په هغه وخت کي واقع کيږي کله چي انسان له مال څخه مستغني سي، يعني وصيت د انسان تر مرګ وروسته نافذيږي او تر مرګ وروسته انسان له خپل مال څخه مستغني او بې پروا کيږي، نو ځکه وصيت به د هر مال په دريمه حصه کي واقع کيږي او د مخصوص مالونو سره به خاص نه وي.

وتدخل إلخ: د دې حاصل دا دی که يو څوک " "مَالِيْ فِي الْمَسَاكِيْنِ صَدَقَةٌ"" ووايي، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز عُشري ځمکه هم په دې قول کي داخليږي يعني د هغه صدقه کول هم واجب دي؛ ځکه چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز په عُشري ځمکه کي د صدقې جهت راجح دی، نو ځکه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز هغه د صدقې سبب ده نو د هغې صدقه کول به هم واجب وي. د دې په خلاف د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په عُشري ځمکه کي د مؤنت جهت راجح دی، نو ځکه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هغه د صدقې سبب نه ده او د "مَالِيْ فِي الْمَسَاكِيْنِ صَدَقَةٌ" په ويلو سره به د هغې صدقه کول واجب نه وي.

ولا يدخل إلخ: د عُشري ځمکي مسئله خو مختلف فيه ده، لېکن د خراجي ځمکي په مسئله کي اختلاف نسته او بالاتفاق خراجي ځمکه د "مَالِيْ فِي الْمَسَاكِيْنِ صَدَقَةٌ" په قول کي نه داخليږي او د

هغه صدقه کول نه واجبیږي؛ ځکه چې خراج سر ترپایه مؤنت دی او په هغه کې بالکل د صدقې معنیٰ نشته.

## د پورتني مسئلې بل صورت

وَلَوْ قَالَ: مَا أَمْلِكُهُ صَدَقَةٌ فِي الْمَسَاكِيْنِ او که چیرې یو څوک ووایي: د کوم شي چې زه مالک یم هغه مسکینانو ته صدقه دی [یعني کوم شیان چې زما په ملکیت کې دي هغه مساکینو ته صدقه دي] فَقَدْ قِيْلَ: يَتَنَاوَلُ كُلَّ مَالٍ نو ویل سوي دي: چې دا هر مال ته شاملیږي لِأَنَّهُ أَعَمُّ مِنْ لَفْظِ الْمَالِ ځکه چې د "ملکیت" [املك] لفظ د "مال" له لفظ څخه عام دی وَالْمُقَيِّدُ إِيْجَابُ الشَّرْعِ او [د زکاة د مال سره] مقید کونکی شی د شریعت ایجاب دی وَهُوَ مُخْتَصٌّ بِلَفْظِ الْمَالِ او هغه د "مال" د لفظ سره خاص دی وَلَا مُخَصِّصَ فِي لَفْظِ الْمِلْكِ او د "ملکیت" په لفظ کې هیڅ تخصیص کونکی نشته فَبَقِيَ عَلَى الْعُمُوْمِ نو ځکه د "ملکیت" لفظ به پر خپل عموم پاته وي وَالصَّحِيْحُ أَنَّهُمَا سَوَاءٌ او صحیح دا ده چې د ملکیت لفظ او د مال لفظ دواړه سره برابر دي لِأَنَّ الْمُلْتَزَمَ بِاللَّفْظَيْنِ الْفَاضِلُ عَنِ الْحَاجَةِ ځکه چې په دې دواړو لفظونو سره هغه مال لازم کړی سوی دی کوم چې له ضرورت څخه زائد دی [یعني صدقه کونکي سړي په دې دواړو لفظونو سره زائد از ضرورت مال پر ځان لازم کړی دی] عَلَى مَا مَرَّ لکه [مخکې] چې تېر سوه ثُمَّ إِذَا لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ سِوَى مَا دَخَلَ تَحْتَ الْإِيْجَابِ بیا که د هغه [صدقه کونکي] سره هیڅ مال نه وي ماسوا له هغه مال څخه کوم چې تر ایجاب [صدقه کولو] لاندې داخل سو يُمْسِكُ مِنْ ذٰلِكَ قُوْتَهُ نو له هغه [صدقه کړي سوي مال] څخه به خپل د خوراک مال راګرځوي ثُمَّ إِذَا أَصَابَ شَيْئًا بیا چې کله هغه ته یو شی حاصل سي تَصَدَّقَ بِمَا أَمْسَكَ نو راګرځول سوی مال دې صدقه کړي لِأَنَّ حَاجَتَهُ هٰذِهِ مُقَدَّمَةٌ ځکه چې د هغه دا حاجت مخکې دی وَلَمْ يُقَدَّرْ بِشَيْءٍ او هغه په هیڅ مقدار سره اندازه کړی سوی نه دی [چې څومره مال به راګرځوي] لِاخْتِلَافِ أَحْوَالِ النَّاسِ فِيْهِ ځکه چې په دې باره کې د خلکو حالتونه مختلف دي وَقِيْلَ: الْمُحْتَرِفُ يُمْسِكُ قُوْتَهُ لِيَوْمٍ او ویل سوي دي: چې پېشه ګر [کسب ګر] سړی به د یوې ورځې لپاره د خوراک مال راګرځوي وَصَاحِبُ الْغَلَّةِ لِشَهْرٍ او

د غلې والا به يې د يوې مياشتې لپاره راګرځوي وَصَاحِبُ الضِّيَاعِ لِسَنَةٍ او د کښت او کرنې والا به يې د يوه کال لپاره راګرځوي عَلٰى حَسَبِ التَّفَاوُتِ فِيْ مُدَّةِ وُصُوْلِهِمْ إِلَى الْمَالِ [او دا تفصيل] هغو ته د مال رسېدلو په مودت کې د تفاوت په اعتبار سره دی وَعَلٰى هٰذَا صَاحِبُ التِّجَارَةِ يُمْسِكُ بِقَدْرِ مَا يَرْجِعُ إِلَيْهِ مَالُهُ او په همدې اعتبار سره به تاجر د دومره مودت مال راګرځوي په څومره مودت کې چې هغه ته خپل [د تجارت] مال واپس راځي.

**اللغات**: ﴿مخصص﴾ د تفعيل د باب فاعل دی: تخصيص کونکی، خاصونکی سبب. ﴿محترف﴾ د افتعال د باب فاعل دی: کسب او پېشې والا، پېشه ګر، کسب ګر، مراد څنې هغه مزدور او پېشه ګر دی کوم ته چې روزانه څه مال په لاس ورځي. ﴿قُوت﴾ د ګزارې خوراک، دومره خوراک چې په هغه سره د انسان ګزاره وسي او ژوندی پاته سي (مصباح منير). ﴿صاحبُ الغلة﴾ د غَلَّة د لفظ څلور معناوي دي: ① پيداوار، يعني له ځمکې څخه راوتلی فصل او دانې، لکه غنم، وريجې او داسې نور. ② د ځمکې او جايداد اُجرت او کرايه، يعني پر کور، دوکان او داسې نورو چې کومه کرايه اخيستل کيږي. ③ د غلام ګټه، يعني غلام چې په کسب او مزدورۍ سره کوم مال ګټلی وي. ④ هغه کوټه دراهم کوم چې يې بيتُ المال (سرکار) نه قبلوي لېکن تاجران يې قبلوي، نو "صاحبُ الغلة" هغه سړي ته وايي کوم چې خپل جايداد د مياشتې په کرايه ورکړی وي، مراد څنې هغه کس دی کوم ته چې يوه مياشت او بله مياشت مال په لاس ورځي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی داسې ووايي: "مَا أَمْلِكُهُ صَدَقَةٌ فِي الْمَسَاكِيْنِ" (يعني زه چې د کومو شيانو مالک يم هغه مسکينانو ته صدقه دي)، نو په دې صورت کې د بعضې مشايخو رايه دا ده چې د هغه سړي (صدقه کونکي) دا قول هر ډول مال ته شامل دی، برابره ده هغه د زکاة مال وي، که نه وي؛ ځکه چې هغه د "ملکيت" (أَمْلِكُ) لفظ استعمال کړی دی، او دا لفظ د "مال" له لفظ څخه عام دی او د دې اطلاق د اموال ظاهره سره، سره پر اموال باطنه وو هم کيږي، نو ځکه په هغه کې به هر ډول مال شامليږي او د ټولو صدقه کول به واجب وي.

والتقييد إلخ: دا د يو سوال جواب دی. سوال دا دی چې څرنګه چې د "مَالِيْ... إلخ" په صورت کې صدقه د شريعت د مقيد سوي مال (زکاة) سره خاص ده، همداسې په دې مذکوره صورت کې هم صدقه د هغه مال يعني د زکاة سره خاص کېدل پکار دي؟ نو د دې جواب دا دی چې د "مال" د لفظ په صورت کې چې شريعت کوم تخصيص کړی دی، هغه يې د يو مخصص په وجه کړی دی او

مخصص د قرآن کریم دا آیت دی "خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً ... إلخ" اسورة التوبة: ۱۰۳، او د ملکیت د لفظ په هکله هیڅ داسې مخصص نسته، نو ځکه دا لفظ به پر خپل عموم پاته وي او د انسان هر ملکیت لره به شامل وي، برابره ده هغه د زکاة مال وي او که نه وي، په هر صورت کې به د هغه صدقه کول واجب وي (ځکه انسان چې کوم مالونه لري هغه ټول ده د په ملکیت کې داخل دي).

والصحیح إلخ: مخکې خو د بعضي مشایخو رایه ذکر سوه، اوس صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې صحیح رایه دا ده چې د مال او ملکیت دواړه لفظونه په حکم کې سره برابر دي، یعني څرنګه چې د "مَالِي فِي الْمَسَاكِينِ صَدَقَةٌ" په صورت کې د صدقې وجوب د زکاة د مالونو سره خاص دی، همداسې به په دې مسئله یعني د "مَا أَمْلِكُهُ ... إلخ" د ویلو په صورت کې هم د صدقې وجوب د زکاة د مالونو سره خاص وي او په دواړو صورتونو کې به د زکاتي مالونو صدقه کول واجب وي؛ ځکه صدقه کونکي (نذر منونکي) سړي د هماغه مال د صدقه کولو اراده کړې ده کوم چې د هغه له ضرورت څخه زائد او اضافه وي، او زائد مال خاص د زکاة مال دی، نو ځکه فقط هغه به واجبُ التصدق وي او هر ټول مال به په هغه کې نه داخلیږي. کنې بېچاره صدقه کونکي به په خپله ډېوالي او د صدقې مستحق وګرځي.

ثم إذا لم یکن إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د ټوله مال د صدقه کونکي سړي سره فقط د زکاة مال وي لو له هغه څخه بغیر نور مال ورسره نه وي، نو د ده لپاره حکم دا دی چې له هغه مال څخه خپل د ګذارې او خرچې لپاره مال را وګرځوي، کنې هغه به په خپله فقیر او د صدقې مستحق وګرځي او دا سخاوت به هغه د لوږې کندې ته وغورځوي، حال دا چې په اسلام کې د دې هیڅ مثال نسته او اسلام پر هره موقع د اعتدال او منځلارې تېنګار کړی دی او د انسان حاجت او ضرورت اسلام له خپلو حقوقو څخه مخکې کړی دی، نو ځکه غوره دا ده چې داسې صدقه کونکی سړی خپل د ګذارې مال را وګرځوي، بیا چې کله هغه ته نور مال په لاس ورسي نو د هغه را ګرځول سوی مال په اندازه دې بیرته صدقه کړي.

ولم یقدر إلخ: فرمایي د خوراک، لباس او د اهل وعیال د لږوالي او ډېروالي په اعتبار سره د خلکو حالات مختلف وي، نو ځکه فقهاؤ د مال را ګرځولو هیڅ مقدار نه دی بیان کړی، لېکن له بعضي مشایخو څخه دا نقل سوي دي چې که صدقه کونکی سړی پېشه ګر او روزانې والا مزدور وي، نو هغه دې د یوې ورځې خرچه را وګرځوي؛ ځکه را روانه ورځ به هغه ته انشاء الله بیا مال په لاس ورسي. او که هغه ته یوه میاشت او بله میاشت اُجرت او تنخا په لاس ورځي. نو د یوې میاشتې خرچه دې

راوګرځوي؛ ځکه چې له يوې مياشتې ځخه مخکې هغه ته نور مال په لاس نه ورځي. او که چېرې هغه کښتګر او بزګر وي نو د ټوله کال خرچه دې راوګرځوي؛ ځکه چې هغه ته په کال کې يو وار امدن په لاس ورځي. همدارنګه که هغه تاجر وي نو په څومره ورځو کې چې د هغه د مال راتللو اُميد وي، د هغومره ورځو خرچه او نفقه دې راوګرځوي. لنډه دا چې دا تفصيل د مال حاصلېدلو د مودت پر تفاوت مبني دی، يعني چا ته چې په څومره مودت کې د مال حاصلېدلو اُميد وي، د هغومره مودت خرچه او نفقه دې د صدقې له مال ځخه راوګرځوي.

## که وصي خپل په وصي کېدلو خبر نه وي او بيا له ميراث ځخه يو شی خرڅ کړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ أُوْصِيَ إِلَيْهِ فرمايي: او چا ته چې وصيت وکړی سي [يعني وصي جوړ کړی سي] وَلَمْ يَعْلَمْ بِالْوِصَايَةِ [لېکن] هغه خپل په وصي کېدلو خبر نه سي [چې ما ته وصيت سوی دی] حَتّٰى بَاعَ شَيْئًا مِنَ التَّرِكَةِ تر دې چې هغه له ميراث ځخه يو شی خرڅ کړي فَهُوَ وَصِيٌّ وَالْبَيْعُ جَائِزٌ نو هغه وصي دی او بيع جائز ده [دا ظاهر روايت دی] وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الْوَكِيْلِ حَتّٰى يَعْلَمَ او د وکيل بيع جائز نه ده تر دې چې هغه [خپل په وکيل کېدلو] خبر سي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ۞ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ أَيْضًا او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ځخه روايت سوی دی چې په اول صورت کې هم بيع جائز نه ده لِأَنَّ الْوِصَايَةَ إِنَابَةٌ بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه چې وصي کېدل تر مرګ وروسته قائم مقام کېدل دي فَتُعْتَبَرُ بِالْإِنَابَةِ قَبْلَهُ نو ځکه دا به له مرګ ځخه پر مخکې قائم مقام کېدلو قياسول کيږي وَهِيَ الْوَكَالَةُ او هغه وکالت [وکيل کېدل] دي وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى الظَّاهِرِ أَنَّ الْوِصَايَةَ خِلَافَةٌ او د ظاهر روايت مطابق د فرق وجه دا ده چې وصي کېدل خليفه کېدل دي لِإِضَافَتِهَا إِلٰى زَمَانِ بُطْلَانِ الْإِنَابَةِ ځکه چې هغه د داسې وخت وطرف ته منسوب دي چې په هغه کې نائب جوړول باطل دي [ځکه مړی تر مرګ وروسته يو څوک خپل نائب نه سي جوړولای] فَلَا يَتَوَقَّفُ عَلَى الْعِلْمِ نو ځکه دا به [د وصي] پر خبرېدلو موقوف نه وي كَمَا فِي تَصَرُّفِ الْوَارِثِ لکه د وارث په تصرف کې [چې هم دغه حکم دی] أَمَّا الْوَكَالَةُ فَإِنَابَةٌ او کوم چې وکالت

---

۞ القول الراجح: هو ظاهر الرواية، كما ذكر في الدر المختار (ج:۴، ص:۴۰۸)، وكذا في منحة الخالق (ج:۷، ص:۴۹). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۲۵]

دی نو هغه نيابت دی لِقِيَامِ وِلَايَةِ الْمَنُوبِ عَنْهُ ځکه چې د منوب عنهٗ ولايت باقي دی فَيَتَوَقَّفُ عَلَى الْعِلْمِ نو ځکه وکالت به [د وکيل] پر خبرېدلو موقوف وي وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَوْ تَوَقَّفَ عَلَى الْعِلْمِ او دا حکم ځکه دی چې که وکالت [د وکيل] پر خبرېدلو موقوف وي لَا يَفُوْتُ النَّظَرُ نو هيڅ مصلحت به نه فوتيږي لِقُدْرَةِ الْمُوَكِّلِ ځکه چې مؤکل قادر دی وَفِي الْأَوَّلِ يَفُوْتُ او په اول صورت کې مصلحت فوتيږي لِعَجْزِ الْمُوْصِيْ ځکه موصي [يعني مړی] په خپله عاجز دی وَمَنْ أَعْلَمَهُ مِنَ النَّاسِ بِالْوَكَالَةِ او که له [عامو] خلکو څخه يو څوک هغه ته د وکالت خبر ورکړي [چې ته فلانکي سړي خپل وکيل جوړ کړې!] يَجُوْزُ تَصَرُّفُهُ نو د هغه تصرف جائز دی لِأَنَّهُ إِثْبَاتُ حَقٍّ لَا إِلْزَامُ أَمْرٍ ځکه چې دا د يو حق ثابتول دي نه د يو حکم لازمول.

**اللغات:** ﴿أُوصى﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: وصيت کول، يو څوک خپل وصي جوړول (وصي ټاکل)، ﴿وِصَايَة﴾ او وَصَايَة: اسمِ مصدر دی: وصي والي، وصي کېدل. ﴿وصيّ﴾ چا ته چې مړي وصيت کړی وي، چا ته چې مړي يو کار او يو شی سپارلی وي. ﴿مُوصِي﴾ د افعال د باب فاعل دی: وصيت کونکی، وصي جوړونکی. ﴿وکالة﴾ اسمِ مصدر دی: وکيل والی، وکيل کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي په خپل ژوند کې بل څوک (مثلا خالد) د خپل مال وصي مقرر کړي (مثلا يو سړي خپل د ميراث مال خالد ته وسپاری چې زما تر مرګ وروسته دا مال د خالد پر ذمه دی)، لېکن وصي (خالد) په دې خبر نه سو او د سړي (مُوصِي) تر مرګ وروسته هغه (خالد) له ميراث څخه يو شی خرڅ کړي، نو د ظاهر روايت مطابق د هغه (خالد) وصي کېدل هم صحيح دي او د هغه خرڅول هم صحيح دي. د دې په خلاف که يو سړي بل څوک خپل وکيل مقرر کړي او وکيل په دې خبر نه سو، بيا وکيل د هغه سړي (مؤکل) يو شی خرڅ کړي، نو د دغه وکيل بيع جائز نه ده.

له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه د نوادر روايت دا دی چې څرنګه د وکيل والا په صورت کې بيع جائز نه ده، همداسي په اول صورت يعني د وصي والا په صورت کې هم بيع جائز نه ده. او د دې روايت دليل قياس دی، يعني امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د وصي والا صورت د وکيل پر صورت قياس کړی دی او دليل يې دا پېش کړی دی چې وصي کېدل داسي دي لکه د موصي تر مرګ وروسته د هغه نائب کېدل، لکه څرنګه چې وکيل کېدل داسي دي لکه د مؤکل په ژوند کې د هغه نائب کېدل، او په

وكالت (وكيل كېدلو) له خبرېدلو څخه مخكې د وكيل لپاره تصرف جائز نه دی، نو ځكه په وصايت (وصي كېدلو) كې به هم له خبرېدلو څخه مخكې د وصي تصرف جائز نه وي.

**ووجه الفرق إلخ:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په ظاهر روايت كې د وصي او وكيل حكم سره جلا او مختلف دی، او په دواړو كې د فرق وجه دا ده چې وصي كېدل انابت نه دی بلكې خلافت دی، يعني وصي (خالد) هغه وخت د موصي نائب او وصي ګرځي كله چې موصي مړ سي يعني تر مرګ وروسته د هغه وصي او نائب ګرځي (او دا ډول وروستنی نائب ته خليفه ويل كيږي)، او تر مرګ وروسته د موصي (وصي جوړونكي) لپاره دا نامكنه ده چې يو څوک خپل نائب جوړ كړي، ځكه چې تر مرګ وروسته هيڅوک د تصرف اهل نه پاتيږي، نو ځكه وويل سوه چې وصيت انابت نه دی بلكې خلافت (خليفه كېدل) دي، او د خليفه تصرف پر دې موقوف نه دی چې هغه به خپل په خليفه كېدلو خبر وي (يعني په خلافت له خبرېدلو څخه مخكې هم د خليفه لپاره تصرّف كول جائز دي)، نو ځكه وصي كوم چې په حقيقت كې د مړي خليفه دی د هغه تصرف او د هغه بيع به جائز وي، كه څه هم تر اوسه هغه خپل په خليفه كېدلو (خلافت) خبر نه وي. د دې مثال دا دی لكه د مړي يو وارث چې د هغه په ميراث كې تصرف وكړي په داسي حال كې چې وارث د هغه په مرګ خبر نه وي، نو د هغه دا تصرف جائز دی، لهذا همداسي به د مذكوره مسئلې په اول صورت كې د وصي تصرف هم په وصايت له خبرېدلو څخه مخكې جائز او صحيح وي. او پاته سوه د وكالت مسئله، نو وكالت انابت دی، نه خلافت، يعني وكيل د مؤكل په ژوند كې د هغه نائب دی، او د ژوندي سړي لپاره دا ممكنه ده چې يو څوک خپل نائب جوړ كړي، نو ځكه د وكيل تصرف به د وكالت پر خبر موقوف وي (يعني هغه ته به خپل د وكيل كېدلو خبر وي، بيا د هغه له تصرّف كول جائز دي)، او څرنګه چې په مذكوره مسئله كې وكيل په وكالت له خبرېدلو څخه مخكې تصرف كړی دی، نو ځكه د ظاهر روايت مطابق د هغه تصرف جائز نه دی.

**وهذا إلخ:** اوس ذكر سوه چې د وكيل د تصرف كولو لپاره دا ضروري ده چې هغه خپل په وكالت (وكيل كېدلو) خبر وي؛ ځكه كله چې د وكيل تصرف د وكالت پر خبر موقوف وي نو په دې صورت كې هيڅ مصلحت او ښېګنه نه فوتيږي؛ ځكه چې مؤكل بذات خود پر تصرف كولو قادر دی، لهذا كله چې د مصلحت موقع يا د يو نقصان خطره پېښه سي نو مؤكل به په خپله تصرف وكړي. د دې په خلاف كه چيري د وصي تصرف د وصايت پر خبر موقوف سي، نو مصلحت به فوت سي؛ ځكه چې موصي (مړی) بذات خود له تصرف څخه عاجز او بې وسه دی، نو په دې وجه د وصي تصرف د وصايت (وصيُ كېدلو) پر علم او خبر نه دي موقوف كړی سوي.

ومن أعلمه إلخ: دا مسئله د وکالت سره متعلق ده. څرنګه چې اوس ذکر سوه چې د وکيل د تصرف لپاره دا ضروري ده چې هغه به خپل په وکيل کېدلو خبر وي، نو که يو عاقل، بالغ او معتمد کس بل سړي ته (مثلا خالد ته) دا خبر ورکړي چې فلانکي سړي ته خپل وکيل جوړ کړی يې!، او دا سړی (خالد) د هغه کس پر خبره اعتماد وکړي او د مؤکل په مال کې تصرف وکړي، نو د ده تصرف جائز او صحيح دی؛ ځکه کوم سړي چې ده ته د وکيل کېدلو خبر ورکړی دی هغه د ده لپاره د تصرف کولو حق ثابت کړی دی او پر هغه يې هيڅ شی لازم کړی نه دی، او د اثباتُ الحق (حق ثابتولو) په باره کې د يوه نفر (شخصِ واحد) خبر معتبر او صحيح دی، نو ځکه د مذکوره سړي خبر ورکول هم صحيح دي او د وکيل تصرف هم صحيح دی.

## د وکيل د معزوله کولو (برطرفه کولو) بيان

قَالَ: وَلَا يَكُونُ النَّهْيُ عَنِ الْوَكَالَةِ حَتَّى يَشْهَدَ عِنْدَهُ شَاهِدَانِ أَوْ رَجُلٌ عَدْلٌ فرمايي: او له وکالت څخه منع کول نه ثابتيږي تر دې چې دوه خلک يا يو عادل سړی د وکيل سره ګواهي ورکړي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا ❁: هُوَ وَالْأَوَّلُ سَوَاءٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې دا او اول دواړه سره برابر دي لِأَنَّهُ مِنَ الْمُعَامَلَاتِ ځکه چې دا [دواړه] د معاملاتو له قبيلې څخه دي وَبِالْوَاحِدِ فِيهَا كِفَايَةٌ او په معاملاتو کې د يوه سړي خبر کافي دی وَلَهُ: أَنَّهُ خَبَرٌ مُلْزِمٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې دا خبر لازمونکی دی فَيَكُونُ شَهَادَةً مِنْ وَجْهٍ لهذا دا به په يوه اعتبار سره شهادت [ګواهي] وي فَيُشْتَرَطُ أَحَدُ شَطْرَيْهَا نو ځکه د شهادت له دواړو جزؤنو څخه به يو جزء شرط وي وَهُوَ الْعَدَدُ أَوِ الْعَدَالَةُ او هغه عدد يا عدالت دی بِخِلَافِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول وَبِخِلَافِ رَسُوْلِ الْمُوَكِّلِ او په خلاف د مؤکل د قاصد لِأَنَّ عِبَارَتَهُ كَعِبَارَةِ الْمُرْسِلِ ځکه چې د قاصد عبارت د استونکي [مؤکل] د عبارت په څېر دی لِلْحَاجَةِ إِلَى الْإِرْسَالِ ځکه [د قاصد] استولو ته ضرورت پېښېږي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا أُخْبِرَ الْمَوْلَى بِجِنَايَةِ عَبْدِهِ او پر همدغه اختلاف دي کله چې مالک ته د هغه د غلام د جرم خبر ورکول سي وَالشَّفِيعُ وَالْبِكْرُ يا شفيع يا باکره ښځې ته [خبر

❁ القول الراجح: هو قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، لأن قولهما أوفق بهذا الزمان، وكذا ذكر في فتح القدير (ج:۶، ص:۴۳۹)، ورد المختار (ج:۴، ص:۴۰۸). [القول الراجح ج:۲، ص: ۱۲۶]

ورکول سي] وَالْمُسْلِمُ الَّذِي لَمْ يُهَاجِرْ إِلَيْنَا يا هغه مسلمان ته [خبر ورکول سي] کوم چي زموږ وطرف ته هجرت نه وي کړی.

**اللغات**: ﴿شَطرِيها﴾ په اصل کي شَطْرَيْن دی، د "ها" ضمير ته د مضاف کېدلو په وجه نون حذف کړی سوی دی، تثنيه د شَطْرٌ ده: حصه، جزء. د شهادت دوې حصې او دوه جزئه دي: ① عدد، ② عدالت. د عدد مطلب دا دی چي ګواهان به دوه خلک وي، يا يو سړی او دوې ښځي به وي، د عدالت مطلب دا دی چي يا يو عادل سړی به وي. (اثمار الهدايه)

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که مؤکل خپل وکيل له وکالت څخه معزوله کړي (چي اوس هغه زما وکيل نه دی)، نو تر څو چي هغه ته دوه خلک يا يو عادل سړی د عزل اطلاع او ګواهي نه ورکړي، تر هغه وخته پوري د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه نه معزوله کيږي. لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز وکيل جوړول او له وکالت څخه معزوله کول دواړه سره برابر دي، يعني څرنګه چي د يوه فاسق (نا عادله) سړي په اطلاع او خبر سره انسان وکيل جوړيږي، همداسي د يوه فاسق په خبر سره هغه معزوله کيږي هم، او په دې کي نه عدد شرط دی (چي دوه خلک به وي) او نه عدالت شرط دی (چي يو عادل سړی به وي).

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي وکيل جوړول او له وکالت څخه معزوله کول د معاملاتو له قبيلې او جنس څخه دي، او په معاملاتو کي د يوه سړي اطلاع او خبر معتبر او صحيح دی (يعني جنس د معاملې د يوه سړي په خبر سره هم ثابتيږي)، برابره هغه يو سړی عادل وي او که فاسق. مثلاً وکالت د يوه فاسق سړي په خبر (اطلاع) سره هم ثابتيږي او د غلام مأذون فی التجارة کېدل د يوه فاسق په خبر سره هم ثابتيږي، نو همداسي به معزوله کېدل هم د يوه فاسق سړي په خبر (اطلاع) سره ثابتيږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي له وکالت څخه د معزوله کېدلو خبر "خبر ملزم" (لازمونکی خبر) دی، په دې توګه چي دا خبر پر وکيل له تصرف څخه منع کېدل لازموي (لکه څرنګه چي شهادت [ګواهي] شی لازموي)، نو ځکه په يوه اعتبار سره دا خبر د شهادت (ګواهی) په معنیٰ سره دی، او شهادت هغه وخت ثابتيږي کله چي د شهادت له دواړو جزؤنو څخه يو جزء يعني عدد يا عدالت موجود وي، نو په همدې وجه موږ ووېل چي وکيل به هماغه وخت معزوله کيږي کله چي دوه خلک يا يو عادل سړی د عزل شهادت او ګواهي ورکړي. د دې په خلاف د وکيل جوړولو په صورت کي ځکه د يوه سړي ګواهي او خبر معتبر دی (که څه هم هغه فاسق وي)؛ ځکه په دې خبر کي فقط اثبات الحق سته، نه الزام الامر، لهذا هغه په يوه اعتبار سره هم د شهادت په معنیٰ سره نه دی، نو ځکه د هغه لپاره به نه عدد شرط وي او نه عدالت، بلکي د يوه فاسق سړي خبر به هم کافي وي.

همدارنګه که مؤکیل د وکیل د معزوله کولو لپاره یو سړی (قاصد) واستوي، نو په دې صورت کې به هم نه عدد شرط وي او نه عدالت، بلکې که قاصد یوازې وي او فاسق وي، نو د هغه په خبر سره به هم وکیل معزوله کیږي؛ ځکه چې د قاصد له طرفه د عزل خبر ورکول داسې دي لکه په خپله چې مؤکل هغه معزوله کړي، او کله چې مؤکل په خپله وکیل معزوله کړي، نو ښکاره خبره ده چې په دې صورت کې نه عدد شرط دی او نه عدالت، نو همداسې به د قاصد په ذریعه د معزولو په صورت کې هم عدد او عدالت شرط نه وي. او بل دا چې هر وخت د عادل کس ترلاسه کول مشکل دي او د قاصد استولو ته ضرورت متحقق دی، نو ځکه په دې حواله سره په دې خبر کې عدد او عدالت شرط نه دی.

وعلى هذا الخلاف إلخ: فرمایي د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله تر مینځ په دې مسئلو کې هم اختلاف دی: ①... که یو مالک (مولیٰ) ته خبر ورکول سي چې ستا غلام جرم وکړی، مثلاً یو څوک یې خطاءً قتل کړی، یا د یو سړي مال یې ضایع کړی، نو که چیرې خبر ورکونکی (مُخبر) یو او عادل وي، نو په دې صورت کې د ټولو په نیز د غلام جرم ثابتیږي، او که چیرې هغه یو وي او فاسق وي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د غلام جرم نه ثابتیږي او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز ثابتیږي. ②... دویمه مسئله دا ده که زید خپل کور خرڅ کړي او خالد د هغه همسایه وي، بیا خالد ته خبر ورکول سي چې ستا د څنګ والا کور خرڅ کړی سو، او خالد خاموش پاته سي، نو دلته له هم که مخبر دوه خلک وي یا یو عادل سړی وي نو بالاتفاق د خالد په خاموشي (چوپتیا) سره د هغه د شفعې حق ساقطیږي، لیکن که مخبر یو فاسق سړی وي نو د صاحبینو په نیز په دې صورت کې هم د هغه د شفعې حق ساقطیږي لیکن د امام صاحب په نیز نه ساقطیږي؛ ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د الزام الامر په هکله د یوه فاسق خبر معتبر نه دی (لکه مخکې چې ذکر سوه). ③... دریمه مسئله دا ده که باکره ښځې ته دا خبر ورکول سي چې ستا "ولي" د فلانکي سړي سره ستا نکاح وکړه، او هغه خاموشه پاته سي. نو که مخبر دوه خلک وي یا یو عادل سړی وي نو بالاتفاق د هغې سکوت او خاموشي د هغې د رضا (راضي کېدلو) دلیل دی، او که مخبر یو فاسق سړی وي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د هغې سکوت د رضا دلیل نه دی. او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز په دې صورت کې هم د هغې سکوت د رضا دلیل دی. ④... څلورمه مسئله دا ده که یو کافر په دارُ الحرب کې مسلمان سي لیکن هغه دارُ الاسلام ته هجرت نه وکړي بلکې په دارُ الحرب کې پاته سي، نو په دې صورت کې که هغه ته د اسلامي احکامو (فرائضو او واجباتو) خبر ورکول سي. نو حکم دا دی چې که مخبر دوه خلک وي یا یو عادل سړی وي نو بالاتفاق پر هغه احکام لازمیږي، او که مخبر یو فاسق سړی وي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د تصدیق نه کولو په صورت کې پر هغه احکام نه لازمیږي، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز په هر صورت کې پر هغه احکام لازمیږي، برابره ده مخبر د هغه تصدیق وکړي او که یې نه وکړي. (احسن الهدایه)

## د قاضي او داسي نورو په بيع کي د مبيع د استحقاق په صورت کي د ضمان حکم او تفصيل

قَالَ: وَإِذَا بَاعَ الْقَاضِيْ أَوْ أَمِيْنُهُ عَبْدًا لِلْغُرَمَاءِ فرمايي: او که چيري قاضي د قرضخواهانو لپاره [د مقروض مړي] غلام خرڅ کړي وَأَخَذَ الْمَالَ او مال [ثمن] واخلي فَضَاعَ وَاسْتُحِقَّ الْعَبْدُ بيا هغه مال ضايع سي او غلام مستحق وخيږي لَمْ يَضْمَنْ نو [يو هم] نه ضامن کيږي لِأَنَّ أَمِينَ الْقَاضِيْ قَائِمٌ مَقَامَ الْقَاضِيْ وَالْقَاضِيْ مَقَامَ الْإِمَامِ ځکه چي د قاضي امين د قاضي قائم مقام وي او قاضي د امام المسلمين [اميرُ المؤمنين] قائم مقام وي وَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ لَا يَلْحَقُهُ ضَمَانٌ، كَيْلَا يَتَقَاعَدَ عَنْ قَبُوْلِ هٰذِهِ الْأَمَانَةِ او په دې کسانو کي يوه ته هم ضمان نه لاحق کيږي، د دې لپاره چي خلک د دې امانت [منصب] له قبلولو څخه انکار نه وکړي فَتَضِيْعُ الْحُقُوْقُ نو [په دې توګه] به حقونه ضايع سي وَيَرْجِعُ الْمُشْتَرِيْ عَلَى الْغُرَمَاءِ او مشتري به خپل مال [ثمن] له قرضخواهانو څخه واپس اخلي لِأَنَّ الْبَيْعَ وَاقِعٌ لَهُمْ ځکه چي بيع د هغو لپاره واقع سوې ده فَيَرْجِعُ عَلَيْهِمْ عِنْدَ تَعَذُّرِ الرُّجُوْعِ عَلَى الْعَاقِدِ نو ځکه له عاقد څخه [د ثمن] واپس اخيستلو د ناممکن والي په صورت کي به مشتري له هغو څخه [ثمن] واپس اخلي كَمَا إِذَا كَانَ الْعَاقِدُ مَحْجُوْرًا عَلَيْهِ لکه کله چي عاقد محجور عليه وي وَلِهٰذَا يُبَاعُ بِطَلَبِهِمْ او له همدې کبله د قرضخواهانو په طلب [او غوښتنه] سره غلام خرڅول کيږي.

**اللغات**: ﴿محجور عليه﴾ هغه کس چي له يو کار څخه منع کړی سوی وي، مراد ځني هغه غلام او کوچنی دی چي د خپل مشر له طرفه د تجارت کولو پابندي پر لګول سوې وي چي کاروبار او تجارت به نه کوي، ﴿الغرماء﴾ جمع د غَـرِيْمٌ: د قرض مالک، قرض ورکوونکی، قرض غوښتونکی، قرضخواه.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که قاضي يا د هغه امين او معتمد سړی د يو مقروض مړي غلام د دې لپاره خرڅ کړي چي د مړي د قرضخواهانو قرض په اداء کړي، بيا قاضي يا د هغه امين پر ثمن قبضه وکړي لېکن له قاضي يا امين څخه هغه ثمن ضايع سي او مبيع يعني غلام د بل چا مستحق وخيږي (يعني يو څوک دعویٰ وکړي چي دا غلام زما دی او خپله دعویٰ ثابته هم کړي او غلام واخلي)، نو په دې صورت کي عاقد يعني قاضي يا امين د هغه ثمن نه ضامن کيږي (يعني د غلام د ثمن ضمان [تاوان] پر

قاضي او د هغه پر امين نه واجبيږي يعني مشتري به له هغو څخه خپل د ثمن تاوان نه اخلي)؛ ځکه د قاضي امين د قاضي قائم مقام وي او قاضي د اميرُ المؤمنين قائم مقام وي، او له دې کسانو څخه يو هم نه سي ضامن کېداى؛ ځکه که چيري دغه حضرات ضامن وګرځول سي نو هيڅوک به دا امانت "يعني د قضاوت او امارت منصب" نه قبلوي او په دې توګه به د خلګو حقوق ضايع سي (ځکه هيڅ نيمله کونکي مشر به نه وي)، نو ځکه شريعت د "حقوق العباد" د حفاظت کولو په خاطر قاضي او د هغه امين او اميرُ المؤمنين له ضمان څخه بري کړي دي.

ويرجع الخ: فرمايي چې په دې صورت کي به مشتري خپل ثمن د مړي له قرضخواهانو څخه واپس اخلي؛ ځکه چي د مړي غلام د همدې قرضخواهانو لپاره خرڅ کړى سوى دى، يعني قاضي يا امين فقط د قرضخواهانو د قرض اداء کولو لپاره هغه غلام پر مشتري خرڅ کړى دى، همدا وجه ده چي قاضي يا د هغه امين به د قرضخواهانو په طلب او غوښتنه سره د مړي غلام خرڅوي (يعني کله چي قرضخواهان له قاضي څخه غوښتنه او طلب وکړي چي دا مقروض غلام دي زموږ په قرض کي خرڅ کړى سي. نو بيا به قاضي هغه خرڅوي)، لنډه دا چي کله بيع د قرضخواهانو لپاره واقع سوې ده او له عاقد يعني له قاضي يا امين څخه د ثمن واپس اخيستل ناممکن او متعذر دي (لکه څنګه مخکي چي دليل ذکر سو)، نو ځکه اوس به ثمن له همدې قرضخواهانو څخه واپس اخيستل کيږي (بله لاره نسته). د دې مثال دا سي دى لکه عاقد چي محجور عليه وي، يعني نابالغه کوچنى وي يا غير مأذون في التجارة غلام وي بيا هغه د وکيل په توګه د يو سړي شى خرڅ کړي او پر ثمن قبضه وکړي، لېکن ثمن له هغه څخه ضايع سي او مبيع د بل چا مستحق وخيږي، نو څرنګه چي په دې صورت کي عاقد محجور عليه دى او له هغه څخه ثمن واپس اخيستل ناممکن دي، نو ځکه مشتري به د هغه له مؤکل څخه ثمن واپس اخلي (يعني کوم سړي چي دغه محجور عليه کوچنى يا غلام د خپل ځان وکيل کړى دى، مشتري به له هغه څخه ثمن اخلي)، ځکه چي عاقد يعني محجور عليه فقط د هغه لپاره دا عقد کړى دى يعني دا بيع فقط د مؤکل لپاره واقع سوې ده. نو همداسي دلته هم بيع فقط د مړي د قرضخواهانو لپاره واقع سوې ده، نو ځکه مشتري به له هغو څخه ثمن واپس اخلي.

## په پورتنۍ مسئله کې د وصي د بيع حکم

وَإِنْ أَمَرَ الْقَاضِيْ الْوَصِيَّ بِبَيْعِهِ لِلْغُرَمَاءِ او که چيرې قاضي [د مقروض مړي] وصي ته د قرضخواهانو لپاره د مړي د غلام خرڅولو حکم وکړي ثُمَّ اُسْتُحِقَّ أَوْ مَاتَ قَبْلَ الْقَبْضِ وَضَاعَ الْمَالُ بيا هغه غلام مستحق وخيږي يا [د مشتري] له قبضې څخه مخکې مړ سي او ثمن ضايع سي رَجَعَ الْمُشْتَرِيْ عَلَى الْوَصِيِّ نو مشتري به خپل ثمن له وصي څخه واپس اخلي لِأَنَّهُ عَاقِدٌ نِيَابَةً عَنِ الْمَيِّتِ ځکه چې وصي د مړي له طرفه د نائب په توګه عقد کونکی دی وَإِنْ كَانَ بِإِقَامَةِ الْقَاضِيْ عَنْهُ که څه هم قاضي هغه د مړي له طرفه مقرر کړی دی فَصَارَ كَمَا إِذَا بَاعَهُ بِنَفْسِهِ نو داسې سوه لکه مړی چې په خپله هغه خرڅ کړی وي قَالَ: وَيَرْجِعُ الْوَصِيُّ عَلَى الْغُرَمَاءِ فرمايي: او وصي به [د ثمن تاوان] له قرضخواهانو څخه واپس اخلي لِأَنَّهُ عَامِلٌ لَهُمْ ځکه چې هغه د قرضخواهانو لپاره کار کونکی دی وَإِنْ ظَهَرَ لِلْمَيِّتِ مَالٌ [بيا] که چيرې د مړي لپاره يو مال ښکاره سي يَرْجِعُ الْغَرِيمُ فِيهِ بِدَيْنِهِ نو قرضخواه به له هغه څخه خپل قرض اخلي قَالُوا: وَيَجُوزُ أَنْ يُقَالَ: يَرْجِعُ بِالْمِائَةِ الَّتِيْ غَرِمَهَا أَيْضًا مشايخو فرمايلي دي: او دا ويل هم جائز دي: چې قرضخواه هغه سل درهمه هم واپس واخلي کوم چې يې [وصي ته] د تاوان په توګه ورکړي دي لِأَنَّهُ لَحِقَهُ فِيْ أَمْرِ الْمَيِّتِ ځکه چې دا هم قرضخواه ته د مړي په معامله کې لاحق سوي دي وَالْوَارِثُ إِذَا بِيعَ لَهُ او که د وارث لپاره [د ميراث يو شی] خرڅ کړی سي بِمَنْزِلَةِ الْغَرِيمِ نو هغه د قرضخواه په درجه کې دی لِأَنَّهُ إِذَا لَمْ يَكُنْ فِي التَّرِكَةِ دَيْنٌ ځکه کله چې په ميراث کې قرض نه وي كَانَ الْعَاقِدُ عَامِلًا لَهُ نو عاقد به د وارث لپاره کار کونکی وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که قاضي د مړي وصي ته دا حکم وکړي چې "ته د مړي غلام د هغه د قرضخواهانو لپاره خرڅ کړه او د هغو قرضونه په اداء کړه!". بيا وصي د مړي غلام خرڅ کړي او پر ثمن قبضه وکړي. لېکن هغه ثمن له وصي څخه ضايع سي او غلام د بل چا مستحق وخيږي يا د مشتري له قبضې کولو څخه مخکې غلام د وصي (بائع) په قبضه کې مړ سي، نو په دې دواړو صورتونو کې به مشتري خپل ثمن له وصي څخه واپس اخلي؛ ځکه چې وصي د مړي نائب دی او د نيابت په توګه د مړي له طرفه عقد کونکی دی؛ او نائب ځکه دی، ځکه که چيرې مړي په خپله هغه وصي مقرر کړی وي نو په دې صورت کې خو د هغه نائب کېدل ښکاره دي او که چيرې قاضي مقرر

کړی وي نو بيا هم هغه د مړي نائب دی؛ ځکه چي قاضي هغه د مړي له طرفه نائب مقرر کړی دی، نه د خپل ځان له طرفه. لنډه دا چي وصي د مړي نائب دی، او د نائب عقد کول داسي دي لکه د اصل (منوب عنهٔ) عقد کول. نو د وصي خرڅول داسي سوه لکه مړي چي په خپل ژوند کي غلام خرڅ کړی وي، او که مړي په خپل ژوند کي غلام خرڅ کړي وای او بيا پوره تنی. صورت (يعني د غلام د مستحق ختلو یاد هغه د مړ کېدلو صورت) پېښ سوي وای نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي به مشتري له هغه ځخه خپل ثمن واپس اخيستلای، نو ځکه په دې مسئله کي به هم مشتري د هغه (مړي) له نائب يعني له وصي څخه ثمن واپس اخلي. او وصي به د مړي له قرضخواهانو څخه ثمن (د ثمن تاوان) واپس اخلي؛ ځکه چي وصي د هغو لپاره دا کار کړی دی. بيا که چيري د مړي يو مال ښکاره سي نو قرضخواهان به له هغه څخه خپل قرضونه اخلي.

قالوا إلخ: فرمايي قرضخواهانو چي وصي ته څومره ثمن (د ثمن تاوان) ورکړی وي مثلاً سل درهمه، آيا قرضخواهان هغه هم د مړي له مال څخه اخيستلای سي، که نه؟، نو په دې باره کي ځيني مشايخو ويلي دي چي هغه هم اخيستلای سي، ځکه چي هغو دا ثمن هم د مړي په معامله کي ورکړی دی، نو ځکه د هغه تاوان يعني سل درهمه به هم د مړي له مال څخه اخلي. او ځيني مشايخو ويلي دي چي هغو ته دا حق نسته چي د مړي له مال څخه تاوان (ضمان) واخلي.

والوارث إلخ: او که چيري د وارث لپاره يو شی خرڅ کړی سي نو په دې صورت کي د وارث حکم هم د قرضخواه په څېر دی، يعني که وارث نابالغه وي او د مړي وصي له ميراث څخه د دغه نابالغ وارث لپاره يو شی خرڅ کړي او پر ثمن قبضه وکړي، او بيا له وصي څخه ثمن ضايع سي او هغه شی مستحق وخيږي، نو په دې صورت کي به مشتري خپل ثمن له وصي څخه واپس اخلي، او وصي به يې له وارث څخه اخلي؛ ځکه کله چي د مړي په ميراث کي د هيچا قرض نه وي نو عاقد يعني وصي د همدې وارث لپاره کارکونکی دی (نه د قرضخواه لپاره، ځکه چي قرضخواه سته نه)، او کار چي د کوم چا لپاره کيږي، د کار نفع او نقصان هغه ته راجع کيږي (يعني د چا لپاره چي يو کار سوی وي، د کار نفع هم د هغه ده، او د کار نقصان هم پر هغه دی).



# فَصْلٌ آخَرُ

دا بل فصل دی

**تشريح**: په دې فصل کې دا اصل بيان سوی دی چې آيا تنها د قاضي قول تر معزوله کېدلو مخکې يا تر معزوله کېدلو وروسته مقبول دی او که نه؟.

## د قاضي له طرفه د يو حدّ يا قصاص فيصله کېدل (حکم او تفصيل)

وَإِذَا قَالَ الْقَاضِيْ: قَدْ قَضَيْتُ عَلَى هٰذَا بِالرَّجْمِ فَارْجُمْهُ او که قاضي وايي: ما پر دغه سړي د رجم فيصله کړې ده نو ته هغه رجم کړه! أَوْ بِالْقَطْعِ فَاقْطَعْهُ يا ما پر هغه د لاس پرېکولو فيصله کړې ده نو ته د هغه لاس پرېکړه! أَوْ بِالضَّرْبِ فَاضْرِبْهُ يا ما په درو سره د وهلو فيصله پر کړې ده نو ته هغه ووهه! وَسِعَكَ أَنْ تَفْعَلَ نو ستا لپاره داسې کول جائز دي وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ رَجَعَ عَنْ هٰذَا وَقَالَ[❁]: لَا تَأْخُذْ بِقَوْلِهِ حَتّٰى تُعَايِنَ الْحُجَّةَ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې هغه له دې قول څخه رجوع وکړه او ويې ويل: چې ته د هغه قول مه قبلوه تر دې چې حجت مشاهده کړې [يعني تر هغه وخته د قاضي قول او حکم مه قبلوه تر دې چې د هغه دليل په سترګو وويني!] لِأَنَّ قَوْلَهُ يَحْتَمِلُ الْغَلَطَ وَالْخَطَأَ ځکه چې د قاضي قول د غلطۍ او خطاء احتمال لري وَالتَّدَارُكُ غَيْرُ مُمْكِنٍ او تلافي ممکن نه ده [يعني که د قاضي غلط قول ومنل او د هغه په غلط حکم سره مثلاً د سړي لاس پرېکړل سي او وروسته پرېکونکي ته معلومه سي چې د قاضي قول او فيصله غلطه وه نو په دې صورت کې د هغه پرېکړل سوي لاس تلافي ممکن نه ده چې د هغه پر ځای بل لاس ولګول سي] وَعَلَى هٰذِهِ الرِّوَايَةِ لَا يُقْبَلُ كِتَابُهُ او د همدې روايت پر بناء به د قاضي خط هم نه قبلول کېږي وَاسْتَحْسَنَ الْمَشَايِخُ هٰذِهِ الرِّوَايَةَ او مشايخو دغه روايت مستحسن ګرځولی دی لِفَسَادِ حَالِ أَكْثَرِ الْقُضَاةِ فِي زَمَانِنَا ځکه چې زموږ په زمانه کې د زياتره

---

❁ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما قال المصنف: واستحسن المشايخ هذه الرواية لفساد...إلخ. وقال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: وعليه الفتوىٰ (الدر المختار ج:۴، ص:۴۰۹). وكذا في مجمع الأنهر (ج:۳، ص:۲۰۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۲۷]

قاضیانو حالت خراب دی إِلَّا فِي كِتَابِ الْقَاضِيْ ما سوا د قاضي له خط څخه لِلْحَاجَةِ إِلَيْهِ ځکه چې هغه ته ضرورت دی وَجْهُ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ: أَنَّهُ أَخْبَرَ عَنْ أَمْرٍ يَمْلِكُ إِنْشَاءَهُ د ظاهر روایت دلیل دا دی: چې قاضي د داسې امر خبر ورکړی دی چې قاضي د هغه د ایجادولو مالک دی [یعني قاضي هغه کولای سي] فَيُقْبَلُ لِخُلُوِّهِ عَنِ التُّهْمَةِ نو ځکه له تهمت څخه د خالي کېدلو په وجه به د قاضي حکم قبلول کیږي [او د هغه د قول تصدیق به کیږي] وَلِأَنَّ طَاعَةَ أُولِي الْأَمْرِ وَاجِبَةٌ او ځکه چې د حاکمانو اطاعت [فرمانبرداري] واجب ده وَفِي تَصْدِيقِهِ طَاعَةٌ او اطاعت د هغه په تصدیق کولو کي دی وَقَالَ الْإِمَامُ أَبُو مَنْصُورٍ: إِنْ كَانَ عَدْلًا عَالِمًا او امام ابو منصور رَحِمَهُ الله ویلي دي: چې که قاضي عالم او عادل وي يُقْبَلُ قَوْلُهُ نو د هغه قول به قبلول کیږي لِانْعِدَامِ تُهْمَةِ الْخَطَإِ وَالْخِيَانَةِ ځکه چې [په دې صورت کي] د خطاء او خیانت کولو تهمت نسته وَإِنْ كَانَ عَدْلًا جَاهِلًا او که قاضي عادل او جاهل وي يُسْتَفْسَرُ نو د تفسیر [تشریح] پوښتنه به ځني کیږي فَإِنْ أَحْسَنَ التَّفْسِيرَ نو که چیري هغه ښه تفسیر [او دلیل] بیان کړي وَجَبَ تَصْدِيقُهُ نو د هغه تصدیق کول واجب دي وَإِلَّا فَلَا کني نو واجب نه دي وَإِنْ كَانَ جَاهِلًا فَاسِقًا أَوْ عَالِمًا فَاسِقًا او که جاهل فاسق وي یا عالم فاسق وي لَا يُقْبَلُ نو د هغه قول به نه قبلول کیږي إِلَّا أَنْ يُعَايِنَ سَبَبَ الْحُكْمِ مګر دا چي د حکم [او فیصلې] سبب مشاهده کړي لِتُهْمَةِ الْخَطَإِ وَالْخِيَانَةِ ځکه چي [په دې صورت کي] د خطاء او خیانت کولو تهمت سته.

**اللغات**: ﴿تُعاين﴾ د مفاعلې له بابه د واحد مذکر مخاطب صیغه ده: په سترګو لیدل، مشاهده کول. ﴿التدارك﴾ تفاعل له بابه مصدر دی: تلافي کول (د تاوان تلافي، جبران)، د فوت سوي شي اصلاح او سمون کول، د فوت سوي شي د حاصلولو کوشش کول. ﴿یستفسر﴾ د استفعال د باب مضارع مجهوله ده: د تفسیر او تشریح پوښتنه ځني کول، په یو چا خبره سپینول (څرګندول).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که قاضي یو سړي ته (مثلا خالد ته) ووایي چي "ما پر فلانکي سړي د رجم حکم او فیصله کړې ده لهذا ته ولاړ سه او هغه رجم کړه!". یا "ما پر فلانکي سړي د لاس پرېکولو یا په درو سره د وهلو فیصله کړې ده، نو ته د هغه لاس پرېکړه! یا یې په درو سره ووهه!. نو ظاهر روایت دا دی چي هغه سړي (خالد) ته د قاضي پر دغه حکم او فیصله عمل کول جائز دي. لېکن له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د نوادر روایت دا دی چي هغه په دې مسئله کي له ظاهر روایت

ځخه رجوع کړې ده او ويلي يې دي چي قاضي کوم سړي ته داسي حکم وکړي، نو هغه ته پکار ده چي په ښه توګه د هغه د حجت او دليل تحقيق وکړي او پر هغه دي ګواهي طلب کړي (يعني ګواهان دي د خالد په موجوديت کې د مجرم د جرم ګواهي ورکړي). تر دې وروسته دي هغه د قاضي د فيصلې مطابق سزا نافذ کړي؛ ځکه چي د قاضي په قول کي د خطاء او غلطۍ شبهه سته . او د شبهاتو په وجه حدود ساقطيږي لکه څرنګه چي دا د فقه مشهوره قاعده ده "الحُدُوْدُ تَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ". او بل دا چي که څوک په داسي صورت کي سمدستي د قاضي پر حکم او خبره عمل وکړي او وروسته معامله غلطه ثابته سي نو بيا د هغه تلافي نه سي کېداى، نو ځکه په دې حواله سره هم د هغه سړي لپاره دا ضروري دي چي د معاملې او دليل تحقيق وکړي او دليل په خپله ووينې.

وعلى هذه إلخ: فرمايي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله د دې روايت مطابق د قاضي خط هم قبلول پکار نه دي؛ ځکه چي په هغه کي هم د خطاء او غلطۍ احتمال سته. لېکن څرنګه چي "کتابُ القاضي إلى القاضي" ته ضرورت متحقق دى، نو ځکه حنفي مشايخو په دې باره کي دغه روايت پرې ايښى دى، لېکن له "کتابُ القاضي" (د قاضي له خط) ځخه بغير په نورو ځايو کي حنفي مشايخو د امام محمد رَحِمَهُ الله دا روايت مستحسن او غوره ګڼلى دى: ځکه چي زموږ په زمانه کي د زياتره قاضيانو حالت خراب سوى دى او د مال او رشوت په خاطر غلطي فيصلې کوي (خصوصاً په اوسني وخت کي چي د آخري زمانې زياتره علامات ښکاره سوي دي).

وجه الظاهر إلخ: د ظاهر روايت دليل دا دى چي په دې صورت کي چي قاضي د کوم شي خبر ورکړى دى يعني رجم کول، لاس پرې کول او په درو سره وهل، هغه د دې شيانو پر ايجاد قادر دى (يعني هغه ته د دې شيانو د فيصله کولو او صادرولو حق سته)، ځکه قاضي د همدې کار متولي دى، او کوم څوک چي د هغه شي پر ايجاد قدرت لري د کوم شي چي هغه خبر ورکړى وي، نو هغه په خپل خبر کي متهم او تورن نه وي يعني د هغه خبر له تهمت ځخه خالي وي، لهذا کله چي د قاضي حکم او خبر له تهمت ځخه خالي دى، نو ځکه د هغه حکم او فيصله به منل کيږي.

دويم دليل دا دى چي قاضي له اولي الامر کسانو ځخه دى، او د اولو الامر اطاعت واجب دى، لکه څرنګه چي الله تعالىٰ فرمايلي دي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا أَطِيْعُوا اللهَ وَأَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ﴾ [سورة النساء: ۵۹]، او اطاعت په همدې کي دى چي د قاضي تصديق وسي يعني د هغه قول او حکم ومنل سي، نو ځکه د هغه حکم به منل کيږي.

وقال الإمام ابو منصور إلخ: شيخ ابو منصور ماتريدي رَحِمَهُ الله فرمايي چي كه قاضي عالم (مجتهد) هم وي او عادل هم وي، نو سمدستي به د هغه قول او حكم منل كيږي؛ ځكه چي د عالم والي (مجتهد والي) په وجه د خطاء او غلطۍ تهمت ختم سو چي هغه به په فيصله كي غلطي وكړي، او د عال والي په وجه د خيانت تهمت ختم سو. او كه قاضي عادل وي لېكن جاهل وي، نو د داسي قاضي د فيصلې په باره كي به له هغه څخه تحقيق كيږي او د هغه د تشريح پوښتنه به ځني كيږي (چي ستا د قول او فيصلې تشريح او دليل بيان كړه!)، ځكه چي د جاهل والي په وجه د غلطۍ تهمت موجود دى. نو كه چيري هغه قاضي د شريعت مطابق د خپل قول او فيصلې تشريح بيان كړي، نو هم د هغه تصديق كول واجب دي، او كه قاضي د شريعت مطابق تشريح بيان نه كړي، نو بيا د هغه تصديق كول واجب نه دى او د هغه قول او حكم به نه منل كيږي.

او كه چيري قاضي جاهل وي او فاسق هم وي، يا عالم وي او فاسق هم وي نو په دې دواړو صورتونو كي به د هغه قول او حكم نه منل كيږي؛ ځكه چي په اول صورت كي د خطاء او خيانت دواړو احتمال سته او په دويم صورت كي د خيانت احتمال سته. ها! كه چيري هغه سړى (كوم ته چي قاضي حكم كړى دى) په خپله د فيصلې تحقيق وكړي او د هغه دلائل او تفصيل خپله وويني نو بيا دي د قاضي پر حكم او فيصله عمل وكړي، كنې په يوه غوږ دي يې واوري او تر بل غوږ دي يې وباسي.

## تر معزوله كېدلو وروسته د قاضي دعوې او مخاصمات (حكم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا عُزِلَ الْقَاضِيْ فرمايي: او كله چي قاضي معزوله كړى سو فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ أَخَذْتُ مِنْكَ أَلْفًا وَدَفَعْتَهَا إِلَىٰ فُلَانٍ قَدْ قَضَيْتُ بِهَا لَهُ عَلَيْكَ نو هغه يو سړي ته وويل: چي ما ستا څخه زر درهمه واخيستل او فلانكي ته مي وركړه [په هغه وخت كي] چي ما د هغه لپاره پر تا د زرو درهمو فيصله وكړه فَقَالَ الرَّجُلُ: أَخَذْتَهَا ظُلْمًا نو هغه سړي وويل: چي تا هغه دراهم [زما څخه] په ناحقه توګه واخيستل فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْقَاضِيْ نو قول د قاضي معتبر دى [يعني په دې صورت كي به د قاضي قول منل كيږي] وَكَذَا لَوْ قَالَ: قَضَيْتُ بِقَطْعِ يَدِكَ فِيْ حَقٍّ او همدارنګه كه قاضي ووايي: چي ما په حق [او صحيح] معامله كي ستا د لاس پرېكولو فيصله وكړه [نو هم د قاضي قول معتبر دى] هٰذَا إِذَا كَانَ الَّذِيْ قُطِعَتْ يَدُهُ وَالَّذِيْ أُخِذَ مِنْهُ الْمَالُ مُقِرَّيْنِ أَنَّهُ فَعَلَ ذٰلِكَ وَهُوَ قَاضٍ او دا حكم هغه وخت دى كله چي هغه كس د كوم چي لاس پرېكړل سوى وي او هغه كس له كوم څخه چي مال اخيستل سوى وي [دواړه] د دې خبري اقرار كونكي وي چي قاضي دا كار خپل د قاضي والي په حالت كي كړى دى

[يعني د قاضي قول هغه وخت معتبر دی کله چې مقطوع اليد او مأخوذ منه المال د دې خبرې اقرار وکړي چې قاضي دا فيصله او عمل خپل د قضاوت (قاضي والي) په زمانه کې کړې دی] وَوَجْهُهُ أَنَّهُمَا لَمَّا تَوَافَقَا أَنَّهُ فَعَلَ ذٰلِكَ فِي قَضَائِهِ او د دې وجه دا ده چې کله هغوی دواړه اتفاق وکړي چې قاضي دا فعل خپل د قضاوت په زمانه کې کړی دی كَانَ الظَّاهِرُ شَاهِدًا لَهُ نو ظاهري حال به د قاضي په حق کې ګواه وي إِذِ الْقَاضِي لَا يَقْضِي بِالْجَوْرِ ظَاهِرًا ځکه چې په ظاهره قاضي د ظلم فيصله نه کوي وَلَا يَمِينَ عَلَيْهِ او پر دغه معزوله قاضي قسم [هم] نشته لِأَنَّهُ ثَبَتَ فِعْلُهُ فِي قَضَائِهِ بِالتَّصَادُقِ ځکه چې د قاضي فعل د هغه د قضاوت په زمانه کې په خپل مينځوي اتفاق سره ثابت سوی دی [يعني پر دې خبره قاضي او مقضي عليه (مجرم) دواړو اتفاق کړی دی چې دا کار قاضي خپل د قضاوت په زمانه کې کړی دی] وَلَا يَمِينَ عَلَى الْقَاضِي او پر قاضي قسم نه وي.

**اللغات**: ﴿التصادق﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو د بل تصديق كول (يو بل ته رښتوني ويل)، يو تر بله پر يو خبره اتفاق كول يعني پر يو خبره د دوو كسانو متفق كېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو قاضي د قضاوت له منصب څخه معزوله کړی سو، تر دې وروسته هغه يو سړي ته مثلاً خالد ته وويل چې "ما خپل د قضاوت په زمانه کې پر تا د حامد لپاره د زرو درهمو فيصله وکړه او ستا څخه مې زر درهمه واخيستل او حامد ته مې ورکړه"، لېکن خالد وويل چې "تا زما څخه هغه زر درهمه ظلماً او په نا حقه اخيستي وه لهذا اوس هغه په سمه راکړه!"، نو که په دې صورت کې دا سړی (مأخوذ منه المال) يعني خالد خپل د ظلم دعویٰ په بيّنه سره ثابته نه کړي، نو د قاضي قول معتبر دی او پر هغه ضمان (تاوان) واجب نه دی. همدارنګه که قاضي يو سړي ته وويل چې "ما په صحيح او حق معامله کې ستا د لاس پرېکولو فيصله کړې وه"، لېکن هغه وويل چې "ستا زما لاس په ناحقه پرېکړئ!، لهذا زه اوس تاوان غواړم"، نو که دا سړی (مقطوعُ اليد) خپل د ظلم دعویٰ په بيّنه سره ثابته نه کړي، نو د قاضي قول معتبر دی. او په دې دواړو صورتونو کې د قاضي قول هغه وخت معتبر دی کله چې مقطوع اليد او ماخوذ منه المال دواړه د دې خبرې اقرار وکړي چې "قاضي د مال اخيستلو او لاس پرېکولو فيصله او عمل خپل د قضاوت په زمانه کې کړې دی"؛ او د دې وجه دا ده چې دلته ماخوذ منه المال او قاضي، يا مقطوع اليد او قاضي پر دې خبره اتفاق وکړي چې قاضي دغه عمل خپل د قضاوت په زمانه کې کړی دی، او ظاهري حال همدا دی چې کله قاضي د قضاوت پر منصب ناست وي نو د ظلم فيصله نه کوي، لهذا ظاهري حال د قاضي لپاره ګواه سو، او

قاعده دا ده چي ظاهري حال د کوم چا لپاره ګواه وي د هغه قول معتبر دی، نو ځکه به د قاضي قول معتبر وي. او پر دغه معزوله قاضي قسم هم نه لازمیږي؛ ځکه چي د دې قاضي فعل د هغه د قضاوت په زمانه کي د هغه او مقضی علیه (مجرم) په اتفاق سره ثابت سوی دی، یعني د دواړو په اتفاق سره دا خبره ثابته سوه چي د قاضي دغه فعل د قاضي د قضاوت په زمانه کي صادر سوی دی. او څوک چي قاضي وي اؤ د قضاوت پر منصب ناست وي پر هغه قسم نسته. لهذا په دې صورت کي به هم پر قاضي قسم نه وي.

او پر قاضي په دې وجه قسم نسته، ځکه که پر هغه قسم لازم کړی سي نو علماء به د قضاوت منصب نه قبلوي او د قضاوت منصب به هسي خالي پاته وي، او په دې توګه به د خلکو حقوق ضایع سي. دویم دلیل دا دی چي قاضي امین دی، خصم نه دی (یعني مدعي یا مدعیٰ علیه نه دی) او قسم پر خصم لازمیږي، نه پر امین، نو په دې وجه هم پر قاضي قسم نه لازمیږي.

## د پورتنی مسئلې بل صورت

وَلَوْ أَقَرَّ الْقَاطِعُ وَالْآخِذُ بِمَا أَقَرَّ بِهِ الْقَاضِيْ او که چیري لاس پرېکونکی او مال اخیستونکي د هماغه شه اقرار وکړي د کوم شه چي قاضي اقرار کړی دی لَا يَضْمَنُ أَيْضًا نو هغه هم نه ضامن کیږي لِأَنَّهُ فَعَلَهُ فِي حَالِ الْقَضَاءِ ځکه چي هغه د قضاوت په حالت کي داسي کړي دي وَدَفْعُ الْقَاضِيْ صَحِيْحٌ او د قاضي ورکول صحیح دي كَمَا إِذَا كَانَ مُعَايَنًا لکه [په هغه صورت کي چي صحیح دي] کله چي مشاهد [او مخامخ] وي.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي کوم سړي د قاضي په حکم د بل چا لاس پرېکړی وي یا کوم سړي چي د قاضي په حکم له بل چا څخه مال اخیستی وي، که چیري دا دواړه خلک د پرېکولو او اخیستلو په وجه کي د قاضي د بیان کړی سوي وجهي موافقت وکړي او دا اقرار وکړي چي "مورږ د قاضي په حکم او فیصله سره د هغه د قضاوت په زمانه کي داسي کړي دي"، نو څرنګه چي پر قاضي ضمان (تاوان) نه واجبیږي، همداسي پر دوی هم هیڅ ضمان نه واجبیږي؛ ځکه چي قاضي خپل د قضاوت په حالت کي دا کار ونه کړي او په کړي دي، او ښکاره خبره ده چي څوک د قضاوت پر منصب ناست وي د هغه لپاره دا صحیح دي چي خپله یا د بل سړي په ذریعه مثلاً د مدعي په ذریعه له مدعیٰ علیه (مقروض) څخه مال واخلي او مدعي یعني حقدار کس (قرضخواه) ته یې ورکړي. لکه په هغه صورت کي چي صحیح دي کله چي مدعیٰ علیه (مقروض) د قاضي مخته حاضر وي او د هغه په موجودیت کي قاضي له هغه څخه مال واخلي او د هغه مخته یې مدعي یعني حقدار کس ته ورکړي،

نو څرنګه چي دا صحيح دي او اخيستونکی (حقدار کس) نه ضامن کيږي، همداسي که مدعیٰ عليه (مقروض) موجود نه وي او قاضي د بل سړي په ذريعه له هغه څخه مال واخلي، نو هم به اخيستونکی نه ضامن کيږي.

## د پورتني مسئلې بل صورت

وَلَوْزَعَمَ الْمَقْطُوْعُ يَدُهُ أَوْ الْمَأْخُوْذُ مَالُهُ أَنَّهُ فَعَلَ قَبْلَ التَّقْلِيْدِ أَوْ بَعْدَ الْعَزْلِ او که چيري مقطوع اليد يا ماخوذ منه المال دا ګومان وکړي چي قاضي تر قاضي جوړېدلو مخکي يا تر معزوله کېدلو وروسته داسي کړي دي [يعني هغوی ووايي چي قاضي خپل د قضاوت له زمانې څخه مخکي يا وروسته دا فيصله کړې ده، او قاضي له دې څخه انکار کوي] فَالْقَوْلُ لِلْقَاضِيْ أَيْضًا نو هم د قاضي قول معتبر دی هُوَالصَّحِيْحُ همدا صحيح ده لِأَنَّهُ أَسْنَدَ فِعْلَهُ إِلَى حَالَةٍ مَعْهُوْدَةٍ مُنَافِيَةٍ لِلضَّمَانِ ځکه چي قاضي خپل قول د داسي معلوم حالت وطرف ته منسوب کړی دی کوم چي د ضمان منافي دی [چي هغه د قضاوت زمانه ده، ځکه تر څو چي قاضي د قضاوت پر منصب وي نو پر هغه ضمان نه لازميږي] فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: طَلَّقْتُ أَوْ أَعْتَقْتُ وَأَنَا مَجْنُوْنٌ نو دا داسي شو لکه يو څوک چي ووايي: ما [خپل ښځي ته] طلاق ورکړی يا ما [خپل غلام] آزاد کړی په داسي حال کي چي زه لېونی وم وَالْجُنُوْنُ مِنْهُ كَانَ مَعْهُوْدًا او [په هغه وخت کي] د ده لېونتوب معلوم وو.

**اللغات:** ﴿تقليد﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مراد څني قاضي جوړېدل دي، قاضي کېدل، لکه مخکي چي د دې لفظ تشريح وسوه. ﴿معهود﴾ د سمع د باب مفعول دی: مراد څني معلوم دی، معروف.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که قاضي خالد ته ووېل چي "ما خپل د قضاوت په زمانه کي ستا څخه زر درهمه واخيستل او حامد ته مي ورکړه"، يا قاضي يو سړي ته ووېل چي "ما خپل د قضاوت په زمانه کي ستا لاس پرېکړی وو" لېکن ماخوذ منه المال (خالد) او مقطوع اليد ووېل چي "تا تر قاضي جوړېدلو مخکي يا تر معزوله کېدلو وروسته داسي وکړه"، نو هم د صحيح قول مطابق د قاضي قول معتبر دی او پر هغه ضمان واجب نه دی؛ ځکه چي قاضي خپل فعل د داسي حالت وطرف ته منسوب کړی دی کوم چي د ضمان منافي دی يعني قاضي خپل فعل د قضاوت زمانې ته منسوب کړی دی او د قضاوت وخت د ضمان منافي دی (يعني پر قاضي ضمان نه سي لازمېدای)، نو ګواکي قاضي د دې منسوب کولو په وجه د ضمان منکر سو، او تاسو ته معلومه ده چي که د مدعي سره بيِّنه نه وي نو

په دې صورت کې د منکر قول معتبر دی، نو ځکه دلته به هم د قاضي قول معتبر وي. د دې مثال داسې دی لکه یو څوک چې ووایي "ما خپلې ښځې ته د لېونتوب په حالت کې طلاق ورکړی، یا خپل غلام مې د لېونتوب په حالت کې آزاد کړی (یعني زه مجنون وم په ځان نه پوهېدم)"، او په هغه وخت کې د ده مجنون والی خلکو ته هم معلوم وو، نو د ده قول معتبر دی، یعني نه پر ښځې طلاق واقع کېږي او نه غلام آزادېږي؛ ځکه چې ده طلاق او اعتاق د داسې حالت وطرف ته منسوب کړي دي کوم چې د طلاقولو او آزادولو منافي دی (یعني په داسې حالت کې طلاقول او آزادول نه سي واقع کېدای).

وَلَوْ أَقَرَّ الْقَاطِعُ أَوِ الْآخِذُ فِيْ هٰذَا الْفَصْلِ بِمَا أَقَرَّ بِهِ الْقَاضِيْ او که چېرې لاس پرېکونکی یا مال اخیستونکی په دې صورت کې د هغه څه اقرار وکړي د کوم څه چې قاضي اقرار کړی دی يَضْمَنَانِ نو دوی دواړه ضامن کېږي لِأَنَّهُمَا أَقَرَّا بِسَبَبِ الضَّمَانِ ځکه چې دوی د ضمان د سبب اقرار کړی دی وَقَوْلُ الْقَاضِيْ مَقْبُوْلٌ فِيْ دَفْعِ الضَّمَانِ عَنْ نَفْسِهِ او د قاضي قول [فقط] له خپل ذات څخه د ضمان په لیرې کولو کې مقبول دی لَا فِيْ إِبْطَالِ سَبَبِ الضَّمَانِ عَلٰى غَيْرِهِ [لېکن] پر بل چا د ضمان د سبب په باطلولو کې مقبول نه دی بِخِلَافِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت لِأَنَّهُ ثَبَتَ فِعْلُهُ فِيْ قَضَائِهِ بِالتَّصَادُقِ ځکه چې هلته په اتفاق سره د قاضي فعل د قضاوت په زمانه کې ثابت سوی دی.

**اللغات**: ﴿فصل﴾ د دې لفظ څو معناوي دي، دلته یې د "صورت" معنیٰ مراد ده.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که لاس پرېکونکی سړی (جلاد) یا مال اخیستونکي سړی د هغه څه اقرار وکړي د کوم څه چې قاضي اقرار کوي، یعني قاطع او آخذ هم د دې خبرې اقرار وکړي چې "موږ دا کار د قاضي په حکم او فیصله سره د هغه د قضاوت په زمانه کې کړی دی"، لېکن مقطوع الید او ماخوذ منه المال ووېل چې "هغو دا کار د قاضي د قضاوت له زمانې څخه مخکې یا د قاضي تر معزوله کېدلو وروسته کړی دی"، نو په دې صورت کې پر قاطع او آخذ ضمان (تاوان) واجبېږي او پر قاضي نه واجبېږي؛ ځکه چې دوی دواړو د ضمان د سبب اقرار کړی دی (یعني دوی د لاس پرېکولو او مال اخیستلو اقرار کړی دی)، او د قاضي قول فقط له خپل ځان څخه په ضمان لیرې کولو کې معتبر دی لېکن له بل چا څخه د ضمان د سبب په باطلولو کې معتبر نه دی، لهذا کله چې مقطوع الید او ماخوذ منه المال د قضاوت د زمانې اقرار نه کوي نو ځکه پر قاطع او آخذ به ضمان واجب وي. په خلاف د اول صورت: ځکه چې هلته د قاضي فعل د ټولو په اتفاق او تصدیق سره د قضاوت په زمانه کې ثابت سوی دی.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَلَوْ كَانَ الْمَالُ فِي يَدِ الْآخِذِ قَائِمًا او که چیري مال د اخیستونکي سره موجود وي وَقَدْ أَقَرَّ بِمَا أَقَرَّ بِهِ الْقَاضِيْ او دئ د هغه څه اقرار وکړي د کوم څه چي قاضي اقرار کړی دی وَالْمَأْخُوذُ مِنْهُ الْمَالُ صَدَّقَ الْقَاضِيَ فِي أَنَّهُ فَعَلَهُ فِي قَضَائِهِ او ماخوذ منه المال په دې باره کي د قاضي تصدیق وکړي چي قاضي دا کار خپل د قضاوت په زمانه کي کړی دی أَوِ ادَّعَى أَنَّهُ فَعَلَهُ فِي غَيْرِ قَضَائِهِ یا هغه دا دعویٰ وکړي چي قاضي دا کار خپل د قضاوت له زمانې څخه بغیر په بل وخت کي کړی دی يُؤْخَذُ مِنْهُ نو له آخذ [اخیستونکي] څخه به مال اخیستل کیږي لِأَنَّهُ أَقَرَّ أَنَّ الْيَدَ كَانَتْ لَهُ ځکه چي د دې خبري اقرار وکړی چي [پر مال] د ماخوذ منه قبضه وه فَلَا يُصَدَّقُ فِي دَعْوَى تَمَلُّكِهِ إِلَّا بِحُجَّةٍ نو د هغه د مالک کېدلو په دعویٰ کي به د هغه تصدیق نه کیږي مګر په حجت سره وَقَوْلُ الْمَعْزُوْلِ فِيهِ لَيْسَ بِحُجَّةٍ او د معزوله قاضي قول په دې باره کي حجت نه دی.

**اللغات**: ﴿قائما﴾ د نصر د باب فاعل دی: ولاړ، موجود، باقي، ﴿تملك﴾ د تفعل د باب مصدر دی: د یو شي مالک کېدل، مالک جوړېدل، ﴿معزول﴾ ذ ضرب د باب مفعول دی: له منصبه لیري سوی، برطرفه سوی.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کوم مال د قاضي په حکم او فیصله له ماخوذ منه څخه اخیستل سوی دی، که هغه مال بعینهٖ د آخذ (اخیستونکي) سره موجود وي او آخذ د هغه څه اقرار وکړي کوم چي یې قاضي کوي، یعني قاضي ووېل چي "ما خپل د قضاوت په دور کي له فلانکي سړي څخه د مال اخیستلو فیصله وکړه او مال مي دغه سړي (آخذ) ته ورکړی"، او هغه سړی (آخذ) ووېل چي "هو! قاضي د قضاوت په زمانه کي زما لپاره د مال اخیستلو فیصله وکړه او مال یې ما ته راکړی". نو په دې صورت کي به هغه مال له آخذ څخه اخیستل کیږي او ماخوذ منه ته به ورکول کیږي. برابره ده ماخوذ منه په دې باره کي د قاضي تصدیق وکړي (چي "هو! هغه خپل د قضاوت په زمانه کي داسي وکړه") او که د هغه تکذیب وکړي (چي "نه! هغه خپل د قضاوت له وخت څخه مخکي یا تر معزوله

کېدلو وروسته داسي وکړه")، په هر صورت کي به هغه مال له آخذ څخه اخيستل کيږي؛ ځکه چي دلته آخذ په حقيقت کي دا اقرار کوي چي مخکي پر دغه مال د ماخوذ منه قبضه او حق وو (يعني د هغه له اقرار څخه دا خبره ښکاره ده چي مخکي پر دې مال د مأخوذ منه قبضه وه، او دا مال د هغه وو). ليکن د دې سره، سره هغه (آخذ) خپل د مالک کېدلو دعوىٰ هم کوي چي زه د دې مال مالک يم، نو ځکه د هغه دا دعوىٰ به په شرعي حجت سره معتبره وي او له حجت څخه بغير به نه قبلول کيږي؛ او دلته د آخذ سره شرعي حجت (يعني ګواهان) نسته او د معزوله قاضي قول او ګواهي هم حجت نه ده؛ ځکه تر معزوله کېدلو وروسته هغه د عام سړي په څېر وګرځېدی او د دعوې د قبلولو لپاره فقط د يوه سړي قول او ګواهي معتبره نه ده، لهذا کله چي د آخذ سره هيڅ حجت نسته، نو ځکه له هغه څخه به مال اخيستل کيږي او ماخوذ منه ته به ورکول کيږي.

ليکن که چيري هغه مال بعينه د آخذ سره موجود نه وي بلکي هلاک سوی وي، نو په دې صورت کي د قاضي قول حجت دی او معتبر دی؛ ځکه چي د مال هلاکېدلو په صورت کي قاضي په حقيقت کي له ضمان واجبېدلو څخه منکر دی، او قول د منکر معتبر دی، په دې شرط چي د مدعي سره ګواهان نه وي. (بنايه ج:۸، ص:۱۱۹)

الحمد لله رب العالمين، والصلاة والسلام على سيد المرسلين

ربنا تقبل منا إنك أنت السميع العليم، وتُب علينا

إنك انت التواب الرحيم



# كِتَابُ الشَّهَادَةِ

(دا) کتاب د ګواهۍ (د احکامو په بيان کي) دی

**تشريح**: مخکي تر دې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله "کتاب ادب القاضي" بيان کړی، او اوس له دې ځايه "کتاب الشهادة" بيانوي، په دواړو کي مناسبت دا دی چي کله قاضي ته يو دعویٰ او مخاصمه (لانجمنه معامله) پېش کړل سي او خصم يعني مدعیٰ عليه انکار کوي، نو په دې وخت کي قاضي د ګواهانو شهادت (ګواهۍ) ته محتاج وي، نو ځکه يې دا کتاب له "کتاب ادب القاضي" څخه وروسته بيان کړی دی.

**د شهادت لغوي او اصطلاحي معنی**: د شهادت لغوي معنیٰ ده: "الإِخْبَارُ بِالشَّيْءِ عَنْ مُشَاهَدَةٍ وَعِيَانٍ، لَا عَنْ تَخْمِيْنٍ وَحُسْبَانٍ" (تر مشاهده او ليدني وروسته د يو شي خبر ورکول، نه په اټکل او اندازه سره خبر ورکول) يعني شهادت او ګواهي په لغت کي دې ته وايي چي کله انسان په خپلو سترګو يو شی ويني (چي هغه ته مشاهده او معاينه وايي) بيا د هغه په باره کي قاضي يا بل چا ته خبر او ګواهي ورکړي.

د شهادت اصطلاحي معنیٰ ده: "إِخْبَارٌ عَنْ صِدْقٍ بِلَفْظِ الشَّهَادَةِ فِيْ مَجْلِسِ الْقَضَاءِ وَالْحُكْمِ" (يعني د قاضي په مجلس کي د شهادت په لفظ [أَشْهَدُ] سره ريښتونی خبر ورکول).

**د شهادت حکم**: "وُجُوْبُ الْحُكْمِ عَلَى الْقَاضِيْ بِمَا يَثْبُتُ بِهَا" (په شهادت سره د ثابتېدونکي شي مطابق پر قاضي د فيصلې کولو وجوب) يعني د شهادت حکم دا دی چي کله د شهادت او ګواهۍ په ذريعه يو شی ثابت سي نو پر قاضي د هغه مطابق فيصله کول واجب دي.

**﴿د شهادت شپږ قسمونه﴾**

شهادت يعني ګواهي پر شپږ قسمه ده او شپږ مرتبې لري، چي ستاسو د معلومات لپاره مورډ په مختصره توګه هغه دلته ذکر کوو:

① ... اول قسم د زنا ګواهي ده، دا تر ټولو اعلیٰ ده، د زنا د ثابتولو لپاره د څلورو خلکو ګواهي ضروري ده او هغوی به ټوله عادلان وي، او په دې کي د ښځي ګواهي نه چلېږي.

⑵... دويم قسم له زنا څخه بغير د نورو حدونو او قصاص ګواهي ده، د هغه د ثابتولو لپاره دوو عادلو خلکو ګواهي ضروري ده، او په دې کي هم د ښځي ګواهي مقبوله نه ده.

⑶... درېيم قسم د معاملاتو ګواهي ده، د هغه د ثابتولو لپاره د دوو عادلو خلکو يا د يوه عادل سړي او دوو ښځو ګواهي ضروري ده.

⑷... څلورم قسم "شطرُ الشهادة" دی، يعني که يو عادل سړی وي يا دوه مستور الحاله خلک وي، نو بيا هم ګواهي مقبوله نه ده، دا په حقيقت کي ګواهي نه ده بلکي خبر دی، همدا وجه ده چي د معاملاتو د ثابتولو لپاره داسي ګواهي کافي نه ده.

⑸... څلورم قسم خبر دی، چي په هغه کي د ښځي او مينځي خبر هم کافي دی، مثلاً يو کوچنی شاګرد خپل استاذ ته د خوراک يو شی راوړي او خبر ورکړي چي دا زما مور تا ته په تحفه کي را استولی دی، نو د استاد لپاره د هغه خوړل جائز دي. او په دا ډول کوچنی خبره کي د ښځي او مينځي خبر هم مقبول دی.

⑹... شپږم قسم د هغه شي ګواهي ده چي سړی (نارينه) په هغه نه سي خبرېدای، لکه د ښځي د لنګوالي او د ښځي د پيدا کېدلو (ولادت) مسئله، نو هلته صرف د ښځي ګواهي مقبوله ده؛ ځکه چي مجبوري ده.

**يادونه**: په دغو اقسامو کي څلورم قسم د خبر حيثيت لري او پنځم قسم بعينهٖ خبر دی، نو په همدې وجه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د ګواهۍ په مراتبو او اقسامو کي دا دوه قسمه نه دي ذکر کړي، چي وروسته به تاسو معلومه سي، لېکن څرنګه چي دا هم د ګواهۍ په ضمن کي داخل دي نو ځکه صاحب د اثمار الهدايې هغه د ګواهۍ اقسام شمېرلي دي.

## د ګواهۍ ورکولو شرعي حيثيت

قَالَ: اَلشَّهَادَةُ فَرْضٌ تَلْزَمُ الشُّهُوْدَ فرمايي: ګواهي داسي فرض ده کوم چي پر ګواهانو لازم ده ايا: ګواهي داسي فريضه ده کوم چي پر ګواهانو لازم ده | وَلَا يَسَعُهُمْ كِتْمَانُهَا إِذَا طَالَبَهُمُ الْمُدَّعِيْ او د ګواهانو لپاره د ګواهۍ پټول جائز نه دي کله چي مدعي له هغو څخه مطالبه وکړي لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: ﴿وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَاءُ إِذَا مَا دُعُوْا﴾ ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: "او ګواهان دي انکار نه کوي کله چي هغوی [ګواهۍ] ته راوبلل سي" وَقَوْلِهِ تَعَالٰى: ﴿وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ وَمَنْ يَّكْتُمْهَا فَإِنَّهُ اٰثِمٌ قَلْبُهُ﴾ او [ځکه چي] الله تعالیٰ فرمايلي دي: او تاسي [اې ګواهانو!] ګواهي مه پټوئ او څوک چي هغه پټه کړي نو

ښکته د هغه زړه ګنهګار دی وَإِنَّمَا يُشْتَرَطُ طَلَبُ الْمُدَّعِىْ لِأَنَّهَا حَقُّهُ او د مدعي مطالبه کول په دې وجه شرط دي ځکه چې ګواهي د مدعي حق ده فَيَتَوَقَّفُ عَلٰى طَلَبِهِ كَسَائِرِ الْحُقُوْقِ نو ځکه د نورو حقونو په څېر به ګواهي هم د هغه پر مطالبه کولو موقوف وي.

**اللغات**: ﴿لا يسعهم﴾ د سمع له بابه د نفي صيغه ده، وَسِعَ يَسَعُ سَعَةً: پراخېدل، نه تنګېدل، ګنجايش کېدل، مراد ځني جائز کېدل، ځکه د يو کار د جائز کېدلو مطلب همدا دی چې په هغه کې تنګي نه کېدل بلکې پراخي او ګنجايش پکښې راتلل (معجم وسيط). ﴿کتمان﴾ د نصر د باب مصدر دی: پټول، پرده پر اچول. ﴿لا يأبى﴾ د فتح د باب نفي صيغه ده: انکار کول. ﴿آثم﴾ ګنهکار (ګناهکار).

**تشريح**: امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې کله مدعي له ګواهانو څخه د ګواهۍ مطالبه وکړي، نو پر ګواهانو دا فرض او لازم دي چې د قاضي مجلس ته حاضر سي او ګواهي ورکړي، په دې صورت کې ګواهي پټول او له هغه څخه ځان کښل جائز نه دي؛ ځکه په قرآن کريم په ښکاره توګه دا اعلان سوی دی ﴿وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَاءُ إِذَا مَا دُعُوا﴾ [البقرة: ۲۸۲]، يعني کله چې ګواهان د ګواهۍ لپاره طلب کړل سي نو هغوی دې انکار نه کوي بلکې سمدستي دې ګواهۍ ته حاضر سي، او په بل آيت کې ذکر سوي دي ﴿وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ وَمَنْ يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ﴾ [البقرة: ۲۸۳]، يعني تاسو شهادت (ګواهي) مه پټوئ او څوک چې شهادت پټوي د هغه زړه ګنهکار دی. او ښکاره خبره ده چې زړه رئيس الاعضاء دی، لهذا کله چې زړه ګنهکار وي نو لازماً به ټوله اعضاء (اندامونه) ګنهکاره وي، او دا خبره تسليم سوې ده چې انسان د واجب او لازم کار په پرېښوولو سره ګنهکاره کيږي، نو ځکه د ګواهۍ اداء کول لازم او ضروري دي او د هغه پرېښوول په شريعت کې ناجائز او ناروا دي.

وانما يشترط الخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په متن کې د "إِذَا طَالَبَهُمُ الْمُدَّعِيْ" په عبارت سره د ګواهۍ د اداء کولو لپاره د مدعي مطالبه ځکه شرط ګرځول سوې ده، چې ګواهي د مدعي حق ده. نو څرنګه چې د مدعي نور حقوق د هغه پر مطالبه موقوف دي، همداسي به د هغه دا حق هم د هغه پر مطالبه او غوښتنه موقوف وي، او کله چې هم هغه د دې حق يعني د ګواهۍ مطالبه او غوښتنه وکړي، نو پر "من عليه الحق" يعني پر ګواه به د هغه حق اداء کول واجب وي.

## د گواهی په وجوب کي د حقوقُ الله او حقوقُ العباد فرق

وَالشَّهَادَةُ فِي الْحُدُوْدِ يُخَيَّرُ فِيْهَا الشَّاهِدُ بَيْنَ السَّتْرِ وَالْإِظْهَارِ او د حدونو په گواهی کي گواه ته د پټولو او ښکاره کولو په مينځ کي اختيار دی لِأَنَّهُ بَيْنَ حِسْبَتَيْنِ: إِقَامَةِ الْحَدِّ وَالتَّوَقِّيْ عَنِ الْهَتْكِ ځکه [د حد په گواهی کي] گواه دوو اجرونو [ثوابونو] تر مينځ دی: د حد قائمولو [ثواب] او د مسلمان له پردې ليري کولو ځخه د ځان ساتلو [ثواب] وَالسَّتْرُ أَفْضَلُ لېکن پټول [او د مسلمان پرده ساتل] افضل دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ لِلَّذِيْ شَهِدَ عِنْدَهُ [1]: «لَوْ سَتَرْتَه بِثَوْبِكَ لَكَانَ خَيْرًا لَكَ» ځکه کوم سړي چي نبي ﷺ ته [د حضرت ماعز رضي الله عنه د زنا] گواهي ورکړه هغه ته نبي ﷺ وفرمايل: "که چيري تا هغه په خپل جامه سره پټ کړي وای نو ستا لپاره به دا خير وای" وَقَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ [2]: «مَنْ سَتَرَ عَلَىٰ مُسْلِمٍ سَتَرَ اللهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ» [همدارنګه] نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: "او څوک چي د يو مسلمان پر عيب پرده واچوي الله تعالیٰ به په دنيا او آخرت کي د هغه پر عيبونو پرده واچوي" وَفِيْمَا نُقِلَ مِنْ تَلْقِيْنِ الدَّرْءِ عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [3] وَأَصْحَابِهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ دَلَالَةٌ ظَاهِرَةٌ عَلَىٰ أَفْضَلِيَّةِ السَّتْرِ او د حد دفع کولو د تلقين په هکله چي له نبي کريم ﷺ او صحابه وو ځخه کوم اقوال نقل سوي دي هغوی د پټولو د افضل والي ښکاره دليل دی إِلَّا أَنَّهُ يَجِبُ أَنْ يَشْهَدَ بِالْمَالِ فِي السَّرِقَةِ لېکن په غلا کي دا واجب دي چي گواه به د مال گواهي ورکوي فَيَقُوْلُ: أَخَذَ إِحْيَاءً لِحَقِّ الْمَسْرُوْقِ مِنْهُ نو ځکه [د غلا په گواهي کي] به گواه د مسروق منهٔ د حق ژوندي کولو لپاره داسي وايي: أَخَذَ [فلانکي مال واخيستی] وَلَا يَقُوْلُ: سَرَقَ مُحَافَظَةً عَلَى السَّتْرِ او د پردې ساتلو په خاطر به داسي نه وايي: سرق [چي فلانکي مال غلا کړی] وَلِأَنَّهُ لَوْ ظَهَرَتِ السَّرِقَةُ او ځکه.که چيري غلا ښکاره سي لَوَجَبَ الْقَطْعُ نو د [د لاس] پرېکول به واجب سي وَالضَّمَانُ لَا يُجَامِعُ الْقَطْعَ او [څرنګه چي] د قطع سره ضمان جمع کېدای نه سي فَلَا يَحْصُلُ إِحْيَاءُ حَقِّهِ نو ځکه د حق ژوندي کول به [هم] حاصل نه سي.

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد فی كتاب الحدود، باب الستر على أهل الحدود، حديث رقم:۴۳۷۷.

[2] تخريج: أخرجه الترمذی فی كتاب الحدود، باب ما جاء في الستر على المسلم، حديث رقم:۱۴۲۵.

[3] تخريج: أخرجه ابو داؤد، كتاب الحدود، باب رجم معز بن مالک، حديث رقم:۴۴۲۶، ۴۴۲۷.

**اللغات:** ﴿حِسبتين﴾ تثنيه د حِسْبَةٌ ده: اجر او ثواب، داسي کار چي پر هغه د ثواب ترلاسه کېدل ګومان وي، ﴿التوقّي﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: ځان ساتل، پرهېز کول، ﴿الهتك﴾ د ضرب مصدر دی: پرده لیري کول، (عیب ښکاره کول)، رسوا کول، ﴿ستر﴾ د نصر د باب مصدر دی: پټول، عیب پټول، پرده ساتل (پرده پوشي)، ﴿تلقين﴾ د تفعیل د باب د مصدر دی: لارښوونه، د چا مخته په لوړ آواز سره څه ویل چي هغه یې ووایي، لکه په حدیث کي چي راځي چي د سړي د زکندن پر وخت تاسو هغه ته د کلمې تلقین کوئ!، یعني د هغه مخته کلمه وایاست د دې لپاره چي د هغه پر خوله هم کلمه راسي، ﴿الدرء﴾ د فتح د باب مصدر دی: دفع کول، لیري کول، ﴿مسروق منهٔ﴾ هغه کس چي مال څني غلا سوی وي، یعني د غلا سوي مال مالک.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي په تېر عبارت کي چي د ګواهي د فرضیت په هکله کومه خبره ذکر سوه (چي د ګواهي اداء کول فرض او لازم دي)، د هغه تعلق د حقوق العباد سره دی، یعني په حقوق العباد کي همدغه حکم دی چي انسان به ګواهي نه پټوي بلکي هغه به لازماً اداء کوي، لېکن په حقوق الله مثلاً په حدونو کي ګواه ته د ګواهي ورکولو او نه ورکولو اختیار دی؛ ځکه دا یو داسي موقع ده چي هلته په ګواهي ورکولو کي هم ثواب سته او په نه ورکولو کي یې هم ثواب سته؛ ځکه که یو څوک پر دې موقع ګواهي ورکړي نو هغه ته به د حد قائمولو او جاري کولو ثواب حاصل سي، او که ګواهي نه ورکړي او د مسلمان پر عیب پرده واچوي نو هغه ته به د ستر (عیب پټولو) ثواب حاصل سي، نو ځکه هغه ته د دواړو اختیار سته، مګر بیا هم که هغه ستر او عیب پټول اختیار کړي نو دا به زیات غوره وي؛ ځکه په حدیث کي د ستر او پرده ساتلو فضیلت بیان سوی دی، لکه څرنګه چي د نبي ﷺ په زمانه کي د هزال په نامه یوه سړي حضرت ماعز اسلمي رضي الله عنه دې ته تیار کړی چي د نبي ﷺ په دربار کي د زنا اقرار وکړي، او کله چي حضرت ماعز رضي الله عنه د زنا اقرار وکړی نو نبي کریم ﷺ هزال ته وفرمایل: "لَوْ سَتَرْتَهُ بِثَوْبِكَ لَكَانَ خَيْرًا لَكَ" یعني که تا د ماعز رضي الله عنه عیب پټ کړي وای او هغه دې اقرار ته اماده کړي نه وای، نو دا به ستا لپاره خیر وای. همداسي په یو بل حدیث کي ذکر سوي دي "مَنْ سَتَرَ عَلَى مُسْلِمٍ سَتَرَ اللهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَة" یعني څوک چي د یو مسلمان عیب پټ کړي، الله تعالیٰ به په دنیا او آخرت دواړو کي د هغه عیبونه پټ کړي.

همدارنګه له نبي ﷺ او د هغه له صحابه وو څخه ډېر داسي واقعات صادر سوي دي چي په هغوی کي حتی الامکان د حد لیري کولو او دفع کولو کوشش سوی دی، لکه څرنګه چي د همدې ماعز اسلمي رضي الله عنه په واقعه کي نبي کریم ﷺ له هغه څخه څو ځله د حد دفع کولو کوشش وکړی او

هغه ته يې وفرمايل "لَعَلَّكَ قَبَّلْتَ أَوْ غَمَزْتَ أَوْ نَظَرْتَ" (بخاري شريف، حديث رقم: ۶۸۲۴)، يعني کېداى سي تا به صرف هغه ښځه مچ کړې وي، يا به دې اشاره ورته کړې وي يا به دې ضرف ورته کتلي وي (او پر دې شيانو به تا د زنا خيال کړى واى چي ګواکي ما زنا وکړه)، يعني نبي کريم ﷺ هغه ته د حد دفع کولو تلقين او لارښوونه وکړه، لېکن کله چي هغه د دې باوجو د زنا پر اقرار ټينګار وکړى چي ما بالکل زنا کړې ده، نو بيا نبي ﷺ د هغه د رجم کولو (سنګسارولو) فيصله وکړه.

همدا ډول په يو اثر کي ذکر سوي دي چي حضرت ابو مسعود انصاري رضی الله عنه ته يوه ښځه راوستل سوه چي هغې اوښ غلا کړى وو، نو ابو مسعود رضی الله عنه هغې ته وويل "أَسَرَقْتِ" آيا ته اوښ غلا کړى دى او بيا يې ورته وويل "قُوْلِيْ: لَا!" يعني ته انکار وکړه چي نه!، نو کله چي هغې "لَا!" وويل او انکار يې وکړى چي ما نه دى غلا کړى، نو ابو مسعود رضی الله عنه هغه پرېښووله. او له ابو درداء رضی الله عنه څخه هم بالکل داسي واقعه نقل سوې ده. همدارنګه له حضرت عمر، حضرت علي او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ څخه هم په دې سلسله کي تلقين او لارښوونه منقول ده، نو دا ټوله واقعات د دې خبري ښکاره دليل دى چي په حدونو کي ګواهي پټول افضل او غوره دي.

لېکن چيري چي حقُ الله او حقُ العبد دواړه سره جمع سي، مثلاً دلته په غلا کي حقُ الله هم سته او حقُ العبد هم سته، يعني که غلا ثابته سي نو د غله لاس به پرېکول کيږي دا د الله تعالىٰ حق دى، او غلا سوى مال د بنده حق دى، نو په داسي صورت کي د حقُ الله يعني د غلا ګواهي پټول افضل دي لېکن د حقُ العبد يعني د مال ګواهي ورکول واجب دي، نو ځکه په دې صورت کي به ګواه داسي وايي "أَخَذَ" يعني فلانکي سړى مال واخيستى او داسي به نه وايي "سَرَقَ" چي هغه غلا کړى، کنې ستر به فوت سي.

په دې باره کي دويم دليل دا دى چي ضمان او قطع اليد دواړه نه سي سره جمع کېداى، يعني که ګواه د "سَرَقَ" په لفظ سره ګواهي ورکړي نو د غله لاس به پرېکړل سي او کله چي د غله لاس پرېکړل سي نو بيا پر هغه د مالک لپاره ضمان نه سي واجبېداى (که چيري د غله سره غلا سوى مال موجود نه وو)، نو په دې صورت کي به حقُ العبد فوت سي او حقُ الله به پوره سي، حالانکي ضروري دا ده چي حقُ العبد پوره سي، ځکه الله تعالىٰ غني ذات دى او هيڅ څه ته محتاج نه دى (په همدې وجه په شريعت کي حقُ العبد له حقُ الله څخه مخکي سوى دى)، نو ځکه پر دې موقع ګواه ته پکار ده چي "أَخَذَ" ووايي او د مال اخيستلو ګواهي ورکړي، د دې لپاره چي حقُ العبد ژوندى او پوره سي (يعني مالک ته خپل مال په لاس ورسي)، او د "سَرَقَ" په لفظ سره دې ګواهي نه ورکوي، د دې لپاره چي مجرم له قطع اليد څخه محفوظ سي.

## د ګواهۍ مراتب او اقسام

قَالَ: وَالشَّهَادَةُ عَلٰى مَرَاتِبَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او د ګواهۍ څو مرتبې [درجې] دي مِنْهَا الشَّهَادَةُ فِي الزِّنَا چي له هغوی څخه يوه د زنا ګواهي ده يُعْتَبَرُ فِيهَا أَرْبَعَةٌ مِنَ الرِّجَالِ په زنا کي د څلورو خلکو ګواهي معتبره ده لِقَوْلِهِ تَعَالٰى ﴿وَاللَّاتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِسَائِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِنْكُمْ﴾ ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: ”او ستاسو [د مسلمانانو] له ښځو څخه چي کومي ښځي بدکاري وکړي نو تاسي [اې قاضيانو!] پر هغه [متهمو] ښځو له خپلو [مسلمانانو] څخه څلور ګواهان وغواړئ!“ وَلِقَوْلِهِ تَعَالٰى: ﴿ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ﴾ او ځکه چي الله تعالیٰ فرمايلي دي: ”بيا که هغوی څلور ګواهان پېش نه کړي“ وَلَا يُقْبَلُ فِيهَا شَهَادَةُ النِّسَاءِ او په زنا کي د به د ښځو ګواهي نه قبلول کيږي لِحَدِيثِ الزُّهْرِيِّ[1]: مَضَتِ السُّنَّةُ مِنْ لَدُنْ رَسُولِ اللهِ ﷺ وَالْخَلِيفَتَيْنِ مِنْ بَعْدِهِ أَنْ لَا شَهَادَةَ لِلنِّسَاءِ فِي الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ د حضرت زهري رضي الله عنه د حديث په وجه چي [په هغه کي ذکر سوي دي:] د نبي کريم ﷺ او د هغه د دوو خليفه ګانو له وخت څخه دا سنت جاري دی چي په حدونو او قصاص کي د ښځو ګواهي معتبره نه ده وَلِأَنَّ فِيهَا شُبْهَةَ الْبَدَلِيَّةِ او ځکه چي د ښځو په ګواهۍ کي د بدليت [بدل والي] شبهه سته لِقِيَامِهَا مَقَامَ شَهَادَةِ الرِّجَالِ ځکه د هغوی ګواهي د خلکو د ګواهۍ قائم مقام ده فَلَا تُقْبَلُ فِيمَا يَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ نو ځکه د ښځو ګواهي به په هغه معاملو کي نه قبلول کيږي کوم چي په شبهاتو سره ساقطيږي وَمِنْهَا الشَّهَادَةُ بِبَقِيَّةِ الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ او له هغه [مراتبو] څخه [دويمه مرتبه] د نورو حدونو او قصاص ګواهي ده تُقْبَلُ فِيهَا شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ په هغوی کي به د دوو خلکو ګواهي قبلول کيږي لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: ﴿وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِنْ

[1] تخريج: اخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه، باب في شهادة النساء في الحدود، ج:۵، ص:۵۲۸، رقم:۲۸۷۰۵. مصنف عبد الرزاق ج:۸، ص:۲۵۴، رقم:۱۵۸۴. سنن بيهقي ج:۱۰، ص:۲۵۰، رقم:۲۰۵۲۸.

رِجَالِكُمْ﴾ څکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: او تاسيٰ [په معاملو کي] له خپلو خلکو څخه دوه ګواهان ودرویٔ! وَلَا يُقْبَلُ فِيهَا شَهَادَةُ النِّسَاءِ او په دې حدونو او قصاص کي به هم د ښځو ګواهي نه قبلول کيږي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليلونو په وجه کوم چي موږ ذکر کړل.

**اللغات**: ﴿فاحشة﴾ بدکاري، ﴿مضت﴾ د ضرب د باب ماضي ده، د دې باب څو معناوي دي: تېرېدل، جاري کېدل، نافذېدل، جاري کول (مصباح منير. مصباح اللغات)، ﴿إِسْتَشْهِدُوْا﴾ د استفعال له بابه د جمع مذکر امر حاضر صيغه ده: ګواه درول، د ګواه تلاش او طلب کول. ګواه غوښتل، ﴿ينـدرئ﴾ د انفعال د باب مضارع ده: ليري کېدل، دفع کېدل.

**تشريح**: د ګواهي شپږ مرتبې او قسام دي چي له هغوی څخه دوه په دې عبارت کي بيان سوي دي:

① ... د ګواهي اول قسم او مرتبه د زنا ګواهي ده، او د هغه لپاره د څلورو خلکو ګواهي معتبره ده، يعني کله چي څلور خلک د يو سړي په هکله د زنا ګواهي ورکړي نو بيا پر هغه زنا ثابتيږي، کنې نه ثابتيږي؛ د دې اول دليل د قرآن کريم دا آيت دی ﴿وَاللَّاتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ مِن نِّسَائِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِّنكُمْ﴾ [النساء:۱۵]، يعني کومي ښځي چي بدکاري وکړي نو د هغوی په خلاف دي څلور خلک ګواهي پېش کړي. او دويم دليل دا آيت دی ﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَانِينَ جَلْدَةً﴾ [النساء:۴]، يعني کوم خلک چي پر پاک لمنو ښځو د زنا تهمت ولګوي بيا څلور نارينه ګواهان پېش نه کړل سي، نو تهمت لګونکو خلکو ته دي اتيا درې سزا ورکول سي. په دې دوو آيتونو سره موږ داسي دليل نيسو چي دا آيتونه د ګواهانو د شمېر او نارينه والي په هکله نص او صريح دي؛ يعني د "أَرْبَعَة" په لفظ سره په ښکاره توګه د ګواهانو څلور والي ثابت دی چي هغوی به څلور کسان وي، او د ګواهانو نارينه والي په دې توګه ثابت دی چي په دې دواړو آيتونو کي د "أَرْبَعَة" لفظ مؤنث ذکر سوی دی، او عربي قاعده دا ده چي له دريو څخه تر نهو پوري که چيري عدد مذکر وي نو معدود مؤنث راځي او که عدد مؤنث وي نو معدود مذکر راځي، او څرنګه چي په دې آيتونو کي د "أَرْبَعَة" عدد مؤنث دی نو څکه به د هغه معدود مذکر وي، نو ثابته سوه چي د زنا د ثابتېدلو لپاره د څلورو نارينه وو ګواهي ضروري ده.

ولایقبل إلخ: د دې حاصل دا دی چې د زنا په ثابتېدلو کې به د ښځو ګواهي نه قبلول کېږي او په دې هکله هغه معتبره نه ده؛ دلیل د حضرت زهري حدیث دی چې په هغه کې ذکر سوي دي چې د نبي کریم ﷺ او تر هغه وروسته د حضرت ابو بکر او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا له زمانې څخه دا سنت جاري دی چې په حددنو او قصاص کې د ښځې ګواهي نه قبلول کېږي. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله ځکه په خصوصې توګه د حضرت ابوبکر او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا یادونه کړې ده، ځکه چې د دې حضراتو په حق کې نبي کریم ﷺ فرمایلي دي "اِقْتَدُوْا بِالَّذَيْنَ مِنْ بَعْدِيْ: أَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ" یعني له ما څخه وروسته تاسو د ابو بکر او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا اقتداء کوئ! (په دې حدیث کې نبي کریم ﷺ په خصوصي توګه د هغو ذکر کړی دی).

ولأن فیها شبهة إلخ: په حدونو او قصاص کې د ښځو د ګواهۍ نه قبلولو عقلي دلیل دا دی چې د ښځو په ګواهۍ کې د بدلیت (بدل والي) شبهه سته، یعني د ښځو ګواهي د خلکو د ګواهۍ بدل او قائم مقام ده، په دې توګه چې په دې آیت ﴿وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ فَإِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَّامْرَأَتَانِ﴾ [البقرة: ۲۸۲] کې ذکر سوي دي چې که دوه خلک نه وي نو بیا دې دوې ښځې ګواهي ورکړي، له دې څخه دا محسوسه او معلومه سوه چې په ګواهۍ کې سړی (نارینه) اصل دی او ښځه د هغه بدل او قائم مقام ده. لیکن څرنګه چې د سړي په موجودیت کې ښځه هم ګواهي ورکولای سي یعني یو سړی او دوې ښځې په ګډه ګواهي ورکولای سي، نو ځکه د ښځې ګواهي په حقیقت کې بدل نه ده بلکې په هغه کې د بدلیت شبهه سته، لهذا په هغه معاملو کې به د ښځو ګواهي معتبره نه وي کوم چې په شبهې سره ساقطیږي، او څرنګه چې حدود او قصاص هم په شبهې سره ساقطیږي، نو ځکه په هغوی کې به د ښځو ګواهي معتبره (مقبوله) نه وي.

ومنها إلخ: (۲) ... د ګواهۍ دویم قسم او مرتبه له زنا څخه بغیر د نورو حدونو او قصاص ګواهي ده، مثلاً حدّ قذف، حدّ شرب الخمر، حدّ سرقه، په دغو حدونو او قصاص کې د دوو خلکو ګواهي معتبره ده؛ دلیل دا آیت دی ﴿وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ﴾، ځکه په دې آیت کې د "شَهِيْدَيْنِ" لفظ پر دوو ګواهانو او د "مِنْ رِّجَالِكُمْ" لفظ د ګواهانو پر نارینه والي دلالت کوي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې له زنا څخه بغیر په نورو حدونو او قصاص کې هم د ښځو ګواهي معتبره نه ده؛ دلیل د حضرت زهري حدیث او د بدلیت شبهه ده کوم چې څه مخکې ذکر سول.

## د ګواهۍ مراتب او اقسام

قَالَ: وَمَا سِوٰى ذٰلِكَ مِنَ الْحُقُوْقِ يُقْبَلُ فِيْهَا شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ فرمايي: او له حدونو او قصاص څخه بغير په نورو حقونو کي به د دوو خلکو يا د يوه سړي او دوو ښځو ګواهي قبلول کيږي سَوَاءٌ كَانَ الْحَقُّ مَالًا أَوْ غَيْرَ مَالٍ برابره ده هغه حق مال وي او که غير مال وي. مِثْلُ النِّكَاحِ وَالطَّلَاقِ وَالْوَكَالَةِ وَالْوَصِيَّةِ وَنَحْوِ ذٰلِكَ لکه نکاح، طلاق، وکالت، وصيت او داسي نور وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ النِّسَاءِ مَعَ الرِّجَالِ إِلَّا فِي الْأَمْوَالِ وَتَوَابِعِهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د ښځو ګواهي به د خلکو سره [په هيڅ معامله کي] نه قبلول کيږي ماسوا له مال او د هغه له توابعو څخه لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيْهَا عَدَمُ الْقَبُوْلِ ځکه چي د ښځو په ګواهۍ کي اصل نه قبلول دي [يعني اصل دا دی چي قبوله نه سي] لِنُقْصَانِ الْعَقْلِ وَاخْتِلَالِ الضَّبْطِ وَقُصُوْرِ الْوِلَايَةِ د عقل د ناقص والي او ضبط د مختل والي او د ولايت د کمږالي په وجه [يعني ځکه چي ښځي ناقصاتُ العقله دي او په ضبط کي يې خلل دی او په ولايت کي يې کوتاهي او کمي ده] فَإِنَّهَا لَا تَصْلُحُ لِلْإِمَارَةِ همدا وجه ده چي هغوی د امير جوړېدلو قابله نه دي وَلِهٰذَا لَا يُقْبَلُ فِي الْحُدُوْدِ او په همدې وجه په حدونو کي د هغوی ګواهي نه قبلول کيږي وَلَا يُقْبَلُ شَهَادَةُ الْأَرْبَعِ مِنْهُنَّ وَحْدَهُنَّ او تنها د څلورو ښځو ګواهي هم نه قبلول کيږي إِلَّا أَنَّهَا قُبِلَتْ فِي الْأَمْوَالِ ضَرُوْرَةً ليکن په مالونو کي هغه د ضرورت پر بناء قبوله کړی سوې ده وَالنِّكَاحُ أَعْظَمُ خَطَرًا وَأَقَلُّ وُقُوْعًا او [څرنګه چي] د نکاح مرتبه غټه ده او د هغې واقع کېدل لږ دي فَلَا يَلْتَحِقُ بِمَا هُوَ أَدْنٰى خَطَرًا وَأَكْثَرُ وُجُوْدًا نو ځکه نکاح به د هغه شي سره نه لاحق کيږي چي د هغه مرتبه کمه او موجودېدل يې زيات دي [يعني د مال سره به نه لاحقول کيږي] وَلَنَا: أَنَّ الْأَصْلَ فِيْهَا الْقَبُوْلُ او زموږ دليل دا دی: چي د ښځو په ګواهۍ کي قبلول اصل دي لِوُجُوْدِ مَا يُبْتَنٰى عَلَيْهِ أَهْلِيَّةُ الشَّهَادَةِ ځکه چي [په ښځو کي هم] هغه شيان موجود دي چي پر هغوی د ګواهۍ د اهليت مدار دی وَهُوَ الْمُشَاهَدَةُ وَالضَّبْطُ وَالْأَدَاءُ او هغه مشاهده، ضبط او اداء دي إِذْ بِالْأَوَّلِ يَحْصُلُ الْعِلْمُ لِلشَّاهِدِ ځکه چي په مشاهده [ليدلو] سره ګواه ته علم [خبر] حاصليږي وَبِالثَّانِيْ يَبْقٰى او په ضبطولو سره هغه علم باقي پاتيږي وَبِالثَّالِثِ يَحْصُلُ الْعِلْمُ لِلْقَاضِيْ او [د ګواهۍ] په اداء کولو سره قاضي ته علم حاصليږي

وَلِهٰذَا يُقْبَلُ إِخْبَارُهَا فِي الْأَخْبَارِ او په همدې وجه په احاديثو کې د ښځو خبر ورکول مقبول دي وَنُقْصَانُ الضَّبْطِ بِزِيَادَةِ النِّسْيَانِ انْجَبَرَ بِضَمِّ الْأُخْرٰى إِلَيْهَا او د هېرې د زياتوب په وجه چې [په ښځه کې] کوم نقصان دی هغه د يوې ښځې سره د بلې ښځې د يو ځای کولو په وجه پوره سوه [تلافي يې وسوه] فَلَمْ يَبْقَ بَعْدَ ذٰلِكَ إِلَّا الشُّبْهَةُ نو تر دې وروسته [د بدليت] له شبهې څخه بغير بله هيڅ نقصان [کمی] پاته نه سو فَلِهٰذَا لَا تُقْبَلُ فِيمَا يَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ نو په همدې وجه په هغه معاملاتو کې د ښځو ګواهي نه قبلول کېږي کوم چې په شبهاتو سره ساقطيږي وَهٰذِهِ الْحُقُوقُ تَثْبُتُ مَعَ الشُّبُهَاتِ او دغه [بيان سوي] حقوقو د شبهاتو باوجود ثابتيږي وَعَدَمُ قُبُولِ الْأَرْبَعِ عَلٰى خِلَافِ الْقِيَاسِ او [تنها] د څلورو ښځو ګواهي نه قبلول خلاف القياس دي كَيْلَا يَكْثُرَ خُرُوجُهُنَّ د دې لپاره چې د ښځو بهر وتل زيات نه سي.

**اللغات:** ﴿قَبُول﴾ او قُبُول (بضم القاف و بفتح القاف): قبلول. ﴿اهلية﴾ اهل کېدل، قابليت (د يو شي قابل کېدل، لايق کېدل). ﴿ضبط﴾ د ضرب مصدر دی: ټينګ ياد ساتل، په ښه توګه په يو معامله ځان پوه کول او بيا په ښه توګه ياد ساتل، ﴿خطر﴾ اهميت او مرتبه، ﴿يبتنى﴾ د افتعال د باب مضارع مجهوله ده: مبني کېدل، مدار کېدل. ﴿لا يلتحق﴾ د سمع له بابه د نفي صيغه ده: لاحق کېدل، يو شي بل شي سره لګېدل (ورسره منښلېدل، ورسره يوځای کېدل، متصل کېدل). ﴿ضمّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: ورسره يوځای کول. ﴿أخبار﴾ جمع د "خَبَر" ده، مراد ځني احاديث دي. ﴿إخبار﴾ د افعال د باب مصدر دی: خبر ورکول، مراد ځني روايت کول دي. ﴿انجبر﴾ د انفعال د باب ماضي ده: د نقصان (تاوان) تلافي کېدل، يعني پېښ سوی تاوان ليري کېدل او پوره کېدل، د فوت سوي شي اصلاح کېدل او سمېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کې د ګواهي دريم قسم او مرتبه بيان سوې ده، حاصل يې دا دی چې زموږ په نيز له حدود او قصاص څخه بغير په نورو حقونو کې د دوو خلګو يا د يوه سړي او دوو ښځو ګواهي مقبوله او معتبره ده، برابره ده هغه مالي حقوق وي لکه د بيع و شراء معامله، او که غير مالي حقوق وي لکه نکاح، طلاق، وکالت، وصيت، رجعت او داسې نور معاملات. د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې په هيڅ معامله کې هم د خلګو سره د ښځو ګواهي مقبوله نه ده ماسوا له مال او د

هغه له توابعو څخه، د مال توابع لکه اعاره، اجاره، کفاله او داسې نور، يعني د مال او د هغه په توابعو کي د ښځو ګواهي هم مقبوله ده لېکن له دې څخه بغير په نورو معاملو مثلاً په نکاح او طلاق کي د ښځو ګواهي مقبوله نه ده که څه هم سړی ور سره وي. همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله مسلک دی او د امام احمد رَحِمَهُ الله يو روايت هم دا دی (لنډه دا چي که د دوو ګواه ښځو سره يو نارينه ګواه وي نو بيا هم د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په نورو معاملو کي د هغو ګواهي مقبوله نه ده. لېکن زموږ په نېز مقبوله ده).

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي د ښځو په ګواهي کي نه قبلول اصل دي يعني اصل دا دی چي د هغوی ګواهي قبوله نه سي، ځکه چي د ګواهي د اهليت لپاره دا ضروري ده چي انسان به کامل العقل، تام الضبط او د ولايت اهل وي، حال دا چي ښځي ناقصات العقله دي، او د هيري د غلبې په وجه د هغوی په ضبط (يادابنت) کي هم خلل سته او د هغوی په ولايت کي هم قصور او کمي سته همدا وجه ده چي ښځه اميره نه سي جوړېدای، او په همدې وجه په حدود او قصاص کي د ښځو ګواهي معتبره نه ده او په همدې وجه تنها د څلورو ښځو ګواهي هم معتبره نه ده، نو ځکه له مال او د هغه له توابعو څخه بغير به هيڅ ځای هم د ښځو ګواهي مقبوله او معتبره نه وي، لېکن په مال او د هغه په توابعو کي به د حقوق العباد د ژوندي کولو او پوره کولو په خاطر د هغوی ګواهي مقبوله او معتبره وي.

او که څوک دا سوال وکړي (پر امام شافعي رَحِمَهُ الله) چي له مال څخه بغير نور معاملات يعني نکاح، طلاق او داسي نور هم د مال سره لاحقول پکار دي او په هغوی کي هم د ښځو ګواهي قبلول پکار دي.

نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله له طرفه د هغه جواب دا دی چي "النكاحُ أعظمُ خطراً" يعني نکاح، طلاق او داسي نور معاملات د مرتبې په اعتبار سره عظيم (غټ) دي او د وقوع په اعتبار سره قليل (لږ) دي (يعني په ژوند کي ډېر لږ پېښېږي)، او اموال د مرتبې په اعتبار سره کم او حقير دي او د وقوع په اعتبار سره کثير (زيات) دي، او يو عظيم المرتبه قليل الوقوع شی د حقير المرتبه کثيرُ الوقوع شي سره نه سي لاحقول کېدای؛ ځکه چي د الحاق لپاره دا ضروري ده چي د ملحق او ملحق بِهٖ په مېنځ کي به څه مناسبت وي. حالانکي د مال او د غير مال يعني د نکاح او داسي نورو په مېنځ کي د مذکوره تفاوت په وجه هيڅ مناسبت نسته. لهذا کله چي هيڅ مناسبت پکښې نسته، نو بيا نکاح او داسي نور معاملات د مال سره لاحقول کېدای هم نه سي.

**زموږ دليل**: دا دی چي د ښځو په ګواهي کي قبلول اصل دي يعني اصل دا دی چي د هغوی ګواهي قبوله سي: ځکه پر کومو شيانو چي د ګواهي د اهليت مدار دی يعني ① مشاهده، ② اداء ③ او ضبط، دا شيان په ښځو کي هم موجود دي (يعني په ښځو کي هم د معاملې د ليدلو او مشاهده کولو، ياد ساتلو او د ګواهي اداء کولو قابليت سته)، او پر دغه شيانو د ګواهي د اهليت مدار ځکه دی چي د مشاهدې

(ليدني) په ذريعه گواه ته د هغه شي خبر حاصليږي د کوم شي په باره کي چي گواهي ورکوي. او د ضبط يعني په ښه توگه د ياد ساتلو په وجه د شهادت اداء کولو تر وخته پوري (د هغه ليدل سوي معاملې) علم او خبر باقي پاتيږي، او د گواهي اداء کولو په وجه قاضي ته علم (خبر) حاصليږي. او کله چي په ښځو کي هم هغه شيان موجود دي پر کوم چي د گواهي داهليت مدار دی، نو ځکه د ښځو گواهي به هم قبوله او مقبوله وي او د هغوی په گواهي کي به قبلول اصل وي، او څرنگه چي د ښځو په گواهي کي اصل دا دی چي قبوله سي نو په همدې وجه په احاديثو کي د ښځي خبر ورکول يعني د ښځي روايت کول معتبر دي او محدثينو هغه قبول کړی دی. لهذا کله چي په احاديثو کي د ښځو خبر مقبول دی (سره ددې چي په احاديثو کي زيات احتياط کيږي) نو ځکه په نورو معاملو کي به په درجه اولیٰ د ښځو گواهي او شهادت مقبول او معتبر وي.

ونقصان الضبط إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب دی. حاصل يې دا دی چي که موږ ستا سره دا خبره تسليم هم کړو چي د ښځو ضبط او يادانښت کمزوري دی نو هم دا خبره د گواهي له قبلولو څخه مانع نه ده؛ ځکه کله چي يوه ښځه د بلې ښځي سره يوځای کړل سي نو ددې کمزورۍ تلافي به وسني او د دواړو ښځو ضبط به په گډه د يوه سړي د ضبط برابر سي او د ضبط کمزوري او نقصان به پاته نه سي، او فقط د بدليت د شبهي خرابي به پاته سي، نو ځکه کوم حقوق او معاملات چي په شبهاتو سره ساقطيږي (يعني حدود او قصاص)، فقط په هغوی کي به د ښځو گواهي مقبوله نه وي، او کوم حقوق چي د شبهاتو باوجود ثابتيږي، په هغوی کي به د ښځو گواهي مقبوله وي، او دلته چي کوم حقوق بيان سوي دي يعني نکاح، طلاق او داسي نور، هغوی د شبهاتو باوجود ثابتيږي، نو ځکه په هغوی کي به د ښځو گواهي هم مقبوله او معتبره وي.

وعدم قبول الأربع إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب دی. حاصل يې دا دی چي د څلورو ښځو گواهي نه قبليدل خلاف القياس دي (يعني په دې کي قياس پرېښوول سوی دی)؛ که څه هم د قياس تقاضا دا ده چي کله د يوه سړي پر ځای د دوو ښځو گواهي مقبوله ده نو د دوو خلکو پر ځای د څلورو ښځو گواهي هم قبلول پکار دي، لېکن څرنگه چي په داسي کولو سره به د ښځو خروج او بهر وتل زيات سي او په هره معامله کي به هغوی د گواهي لپاره حاضريږي چي د دې په وجه به نور فساد او فتنه پيدا سي، نو ځکه په څلورو ښځو کي قياس پرېښوول سوی دی او خلاف القياس تنها د څلورو ښځو گواهي هم معتبره نه ده گرځول سوې.

**يادونه:** امام شافعي رَحِمَهُ الله چي کوم دليل ذکر کړی دی. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله صرف د هغه د يوه جزء يعني د "نقصانُ الضبط" جواب ورکړی دی، نه د نقصانُ العقل او قصورُ الولايه جواب، او صاحب د بنايې رَحِمَهُ

الله د دې جواب ورکړی دی. هغه فرمايي چې د انساني نفس څلور مرتبې دي: ① استعداد عقل ② عقل بالملكه ③ عقل بالفعل ④ عقل مستفاد. له دې څلورو څخه چې کوم دويمه مرتبه ده يعني د عقل بالملکه والا مرتبه. د هغه په ذريعه حواس په جزئياتو کې استعمالول کيږي او په دې سره بديهيات حاصلول کيږي او پر همدې عقل د احکاماتو د مکلف کېدلو مدار دی او دا ملکه په نر او ښځه کې برابره وي. همدا وجه ده چې دواړه په شرعي احکامو، فرائضو او واجباتو سره مکلف کيږي، نو ځکه په ښځو کې د نقصان عقل او قصور ولايت دعوىٰ کول صحيح نه دي، او چيرې چې ښځو ته ناقصات العقله ويل سوي دي هلته د عقل بالفعل په اعتبار سره ورته ويل سوي دي (او د اوسني وخت يو اسلامي محقق [عبد الدائم الكحيل] ويلي دي چې تر ډېر تحقيق وروسته ما ته معلومه سوه چې په حديث مبارک کې له نقصانُ العقل څخه مادي نقصان مراد دی. نه معنوي. يعني د دې مطلب دا دی چې د ښځې عقل او دماغ د وزن او ترکيب په اعتبار سره مختلف دی او په وزن کې د سړي تر دماغ څه کم دی. لکه اوسنيّ ساينسپوهان چې هم دا خبره کوي)، لنډه دا چې ښځو ته د عقل بالفعل په اعتبار سره ناقصات العقله ويل سوي دي، او څرنګه چې د مکلف کېدلو مدار پر هغه نه دی (بلکې پر عقل بالملکه دی)، نو ځکه هغه لره به هيڅ اعتبار هم نه وي. (بنايه ج:٨، ص:١٢٩)

## د ګواهۍ مراتب او اقسام

قَالَ: وَيُقْبَلُ فِي الْوِلَادَةِ وَالْبَكَارَةِ وَالْعُيُوبِ بِالنِّسَاءِ فِيْ مَوْضِعٍ لَا يَطَّلِعُ عَلَيْهِ الرِّجَالُ شَهَادَةُ امْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ فرمايي: او په ولادت، بکارت او د ښځو په هغه عيبونو کې چې خلک په هغوی خبرېدای نه سي د يوې ښځې ګواهي مقبوله ده لِقَوْلِهِ عليه السلام [1]: «شَهَادَةُ النِّسَاءِ جَائِزَةٌ فِيمَا لَا يَسْتَطِيعُ الرِّجَالُ النَّظَرَ إِلَيْهِ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "چې په کوم ځای کې خلک نه سي کتلای هلته د ښځو ګواهي جائز ده" وَالْجَمْعُ الْمُحَلَّى بِالْأَلِفِ وَاللَّامِ يُرَادُ بِهِ الْجِنْسُ او هغه جمع کوم چې په الف لام سره معرف وي، په هغه سره جنس مراديږي فَيَتَنَاوَلُ الْأَقَلَّ نو ځکه هغه به اقل [کمترين فرد] لره شامل وي [چې هغه واحد (يو) دی] وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ فِي اشْتِرَاطِ الْأَرْبَعِ او دا حديث د څلورو ښځو په شرط لګولو کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی وَلِأَنَّهُ إِنَّمَا سَقَطَتِ الذُّكُورَةُ لِيَخِفَّ النَّظَرُ او ځکه چې د مذکر کېدلو قيد د دې لپاره ساقط سوی دی چې کتل خفيف [سپک] سي [يعني د دې لپاره چې د

---

[1] تخريج: أخرجه دار قطنى بمعناه، فى كتاب الأقضية، غريب هٰذا اللفظ، حديث رقم:٤٥١١، ٤٥١٢. همدارنګه په بخاري شريف، ابوداؤد شريف او نورو کې هم داسي احاديث ذکر سوي دي چې په هغه سره د يوې ښځې د ګواهۍ جواز او قبول ثابتيږي: بخاري شريف، باب شهادة الاماء والعبيد، حديث رقم:٢٦٥٩، ابو داؤد شريف، باب الشهادة على الرضاع، حديث رقم:٣٦٠٣.

ښځي وطرف ته داسي کتل واقع سي کوم چي خفيف او سپک دی. او هغه د ښځي کتل دي] لِأَنَّ نَظَرَ الْجِنْسِ إِلَى الْجِنْسِ أَخَفُّ ځکه چي د جنس وطرف ته د جنس کتل اخف [سپک] دي [يعني د ښځي وطرف ته د ښځي ته کتل اخف دي او ډېر بد نه دي] فَكَذَا يَسْقُطُ اعْتِبَارُ الْعَدَدِ نو همداسي به د عدد اعتبار هم ساقطيږي إِلَّا أَنَّ الْمُثَنَّى وَالثَّلَاثَ أَحْوَطُ لېکن په دوو او درېو ښځو کي زيات احتياط دی لِمَا فِيهِ مِنْ مَعْنَى الْإِلْزَامِ ځکه چي په دې کي [يعني دېوې ښځي په ګواهي کي هم] د لازمولو معنیٰ سته ثُمَّ حُكْمُهَا فِي الْوِلَادَةِ شَرَحْنَاهُ فِي الطَّلَاقِ بيا د ولادت په باره کي د يوې ښځي د ګواهۍ حکم موږ په کتاب الطلاق کي په وضاحت سره ذکر کړی دی وَأَمَّا حُكْمُ الْبَكَارَةِ فَإِنْ شَهِدْنَ أَنَّهَا بِكْرٌ او کوم چي د بکارت حکم دی نو که [يو څو] ښځي دا ګواهي ورکړي چي دا ښځه باکره ده يُؤَجَّلُ فِي الْعِنِّينِ سَنَةً نو [د هغې] عنين خاوند ته به يو کال مهلت ورکول کيږي وَيُفَرَّقُ بَعْدَهَا او تر هغه وروسته به [د خاوند او ښځي په مينځ کي] تفريق کيږي لِأَنَّهَا تَأَيَّدَتْ بِمُؤَيِّدٍ ځکه چي دغه ګواهۍ ته تائيد حاصل سو إِذِ الْبَكَارَةُ أَصْلٌ ځکه چي باکره کېدل اصل دي وَكَذَا فِي رَدِّ الْمَبِيعَةِ إِذَا اشْتَرَاهَا بِشَرْطِ الْبَكَارَةِ او همداسي د رانيول سوي مينځي دغه حکم دی [په دې شرط] کله چي مشتري هغه د باکره والي په شرط رانيولې وي فَإِنْ قُلْنَ إِنَّهَا ثَيِّبٌ نو که ښځي ووايي چي هغه ثيبه ده يُحَلَّفُ الْبَائِعُ نو له بائع څخه به قسم اخيستل کيږي لِيَنْضَمَّ نُكُولُهُ إِلَى قَوْلِهِنَّ د دې لپاره چي د بائع انکار [د ګواهي ورکونکو] ښځو د قول سره يو ځای سي [او د هغو ګواهي ته تائيد حاصل سي] وَالْعَيْبُ يَثْبُتُ بِقَوْلِهِنَّ او عيب [ثيبه والي] خو د ښځو په قول سره ثابتيږي [دا ديو سوال جواب دی چي هغه به په تشريح کي ذکر سي] فَيُحَلَّفُ الْبَائِعُ نو له بائع څخه به قسم اخيستل کيږي وَأَمَّا شَهَادَتُهُنَّ عَلَى اسْتِهْلَالِ الصَّبِيِّ لَا تُقْبَلُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فِي حَقِّ الْإِرْثِ او د پيدا کېدلو [زېږيدلو] په وخت کي د بچي پر آواز کولو [ژړلو] د ښځو ګواهي د ميراث په حق کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مقبوله نه ده لِأَنَّهُ مِمَّا يَطَّلِعُ عَلَيْهِ الرِّجَالُ ځکه چي د بچي آواز کول له هغو شيانو څخه دي چي په هغوی خلک خبرېدای سي إِلَّا فِي حَقِّ الصَّلَاةِ مګر [پر بچي د جنازې] د لمانځه کولو په حق کي [د هغه ښځو ګواهي مقبوله ده] لِأَنَّهَا مِنْ أُمُورِ الدِّينِ ځکه چي

لمونځ له ديني امورو څخه دی وَعِنْدَهُمَا ۞ تُقْبَلُ فِي حَقِّ الْإِرْثِ أَيْضًا او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز [د ښځو ګواهي] د ميراث په حق کي هم مقبوله ده لِأَنَّهُ صَوْتٌ عِنْدَ الْوِلَادَةِ ځکه چي استهلال د ولادت [ازېږېدلو] په وخت کي آواز دی وَلَا يَحْضُرُهَا الرِّجَالُ عَادَةً او خلک عموماً [د ولادت په وخت کي] د ښځي سره حاضر نه وي فَصَارَ كَشَهَادَتِهِنَّ عَلَى نَفْسِ الْوِلَادَةِ نو دا داسي سو لکه پر خودي ولادت د ښځو ګواهي ورکول.

**اللغات**: ﴿بكارة﴾ باکره والي، پېغلتوب (چي تر اوسه جماع ور سره سوې نه وي او د بکر پرده يې پاته وي). ﴿أحوط﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات احتياط والا. ﴿يؤجّل﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده: مهلت ورکول. ﴿عِنّين﴾ (بكسر العين والنون المشددة) له وطي او جماع څخه عاجز، هغه سړی کوم چي پر جماع کولو هيڅ قدرت نه لري، نامرد (معجم لغة الفقهاء). ﴿ذكورة﴾ مذکر کېدل، نارينه کېدل، سړي والی. ﴿نكول﴾ د نصر د باب مصدر دی: له قسم (يمين) څخه انکار کول. ﴿يحلّف﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده: په بل چا قسم اخيستل، قسم په کول. ﴿استهلال﴾ د استفعال د باب مصدر دی: د پيدايښت په وخت کي د بچي چيغه وهل، د پيدايښت پر مهال د کوچني ژړل او آواز کول، آواز پورته کول.

**تشريح**: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په دې عبارت کي د ګواهۍ څلورمه مرتبه بيانوي، نو فرمايي چي د ګواهۍ څلورم قسم او مرتبه دا ده چي ولادت (يعني د بچي پيدا کېدل)، بکارت (باکره کېدل) او د ښځو هغه مخفي عيبونه چي په هغوی صرف ښځي خبرېدای سي په دې ټولو کي زموږ په نيز د يوې ښځي ګواهي کافي ده، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د څلورو ښځو ګواهي ضروري ده.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي د ګواهۍ په باب کي دوې ښځي د يوه سړي قائم مقام دي، نو ځکه څلوري ښځي به د دوو خلکو قائم مقام وي، او چيري د خلکو لپاره ګواهي ممکن نه وي، هلته به د څلورو ښځو ګواهي شرط او ضروري وي.

**زموږ دليل**: دا حديث دی "شَهَادَةُ النِّسَاءِ جَائِزَةٌ...إلخ"، يعني کومو شيانو او ځايونو ته چي سړي (نارينه) نه سي کتلای په هغوی کي د ښځو ګواهي جائز ده. په دې حديث سره موږ په دې توګه دليل

---

۞ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في فتح القدير: وهو راجح وبقولهما قال الشافعي و أحمد رَحِمَهُمَا الله، وكذا في الدر المختار (ج:۲، :۴۱۳)، وفي الهندية (ج:۳، ص:۴۵۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۲۸]

نیسو چي لفظ د ''النِسَاء'' جمع ده او الف لام پر داخل دی (چي هغه ته جمع معرّف باللام وايي)، او له جمع معرف باللام څخه جنس مرادیږي او د جنس اطلاق پر کثیر هم کیږي او پر قلیل هم کیږي، او د جنس قلیل او کمترین فرد یو دی، نو ځکه لفظ د ''نساء'' به د یوې ښځي گواهی ته هم شامل وي او یوازي د یوې ښځي په گواهی سره به هم ولادت، بکارت او داسي نور ثابتیږي، او د څلورو ښځو د گواهی شرط لګول به د دې حدیث پر اطلاق زیاتوب کول وي لکه څرنګه چي امام شافعي رَحِمَهُ الله هغه شرط کړی ده، په همدې وجه صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله دغه حدیث د امام شافعي په خلاف حجت او دلیل ګرځولی دی.

ولأنه إلخ: دا په ولادت، بکارت او داسي نورو کي د یوې ښځي د ګواهی پر کافي کېدلو زموږ عقلي دلیل دی، حاصل یې دا دی چي په ولادت، بکارت او داسي نورو کي موږ د ګواه مذکر کېدل (سړی کېدل) د دې لپاره ساقط کړي دي، چي د ښځي وطرف ته خفیف او سپک کتل واقع سي، نه غلیظ او سنګین کتل؛ ځکه چي د ښځي وطرف ته کتل حرام دي، او ښکاره خبره ده چي د ښځي وطرف ته د ښځي کتل خفیف او سپک دي په نسبت د سړي د کتلو، یعني د ښځي وطرف ته چي د سړي کتل څومره غلیظ (سنګین) او بد دي، د ښځي وطرف ته د ښځي کتل دومره غلیظ او بد نه دي؛ ځکه کله چي ښځه د بلي ښځي بدن او اندامونو ته او ګوري نو ښکاره ده چي د هغې د شهوت راپورته کېدلو خطره نسته، لېکن د سړي د کتلو په صورت کي د شهوت راپورته کېدلو خطره نه بلکي یقین یې سته ځکه چي سړی د ښځي وطرف ته په کتلو سره زیات مشتعل او بې حواسه کیږي، نو ځکه د ښځي وطرف ته د سړي د کتلو په مقابله کي د ښځي کتل اخف او سپک دي، لهذا کله چي د ښځي وطرف ته د کتني د سپکولو لپاره په ګواه کي د مذکر کېدلو شرط ساقط کړی سوی دی، نو د همدې مقصد په خاطر به د عدد (شمېر) شرط هم ساقطول کیږي؛ ځکه دا ښکاره خبره ده چي د یوې ښځي کتل د دوو یا څلورو ښځي له کتلو څخه زیات خفیف دي، یعني د ښځي وطرف ته د یوې ښځي کتل خفیف دي او د ډیرو ښځو وړته کتل غلیظ دي، نو ځکه د ښځي په کتلو کي به د عدد یعني د دوو، درېو او څلورو قید ساقطول کیږي او فقط د یوې ښځي ګواهي به هم کافي وي.

إلا أن المثنى والثلث أحوط إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په ولادت، بکارت او داسي نورو کي که څه هم د یوې ښځي ګواهي کافي ده، لېکن که دوې، یا درې ښځي ګواهي ورکړي، نو په دې کي زیات احتیاط دی؛ ځکه چي د ولادت، بکارت او داسي نورو په سلسله کي د یوې ښځي په ګواهی کي هم د لازمولو معنیٰ سته، مثلاً د ولادت په مسئله کي د یوې ښځي په ګواهی سره پر بل

چابچی لازمول کیږي یعني که یوه ښځه د دې ګواهي ورکړي چې زه د فلانکۍ ښځې د لنګوالي په وخت کې موجوده وم چې له هغې څخه دا بچی پیدا سو نو د هغه لنګې ښځې پر خاوند دا بچی لازمیږي، (څرنګه چې دیوې ښځې په ګواهۍ کې هم د لازمولو معنیٰ سته. نو په همدې وجه دا شرط او ضروري ده چې ګواهي ورکونکې ښځه به آزاده، عاقله، مسلمانه وي او د قاضي په مجلس کې به ګواهي ورکوي)، او د لازمولو د معنیٰ تقاضا دا ده چې د ښځې په ګواهۍ کې د عدد اعتبار وسي یعني غوره دا ده چې دوې یا درې ښځې ګواهي ورکړي (ځکه چې پر یوبل چا شی لازمول یو سنګین کار دی)، نو ځکه د احتیاط پر بناء مورد دا جائز او غوره ګرځولي دي.

ثم حکمها إلخ: فرمایي چې د ولادت په هکله د یوې ښځې د ګواهۍ حکم مورږ د کتاب الطلاق په "باب ثبوت النسب" کې په وضاحت سره بیان کړی دی، لهذا د تفصیل لپاره هلته رجوع وکړئ!.

وأما حکم البکارة إلخ: د دې حاصل دا دی چې که یو عنین خاوند دعویٰ وکړي چې زه د خپلې ښځې سره پر جماع کولو قادر سوم او ما د هغې سره جماع وکړه، لېکن د هغه ښځه د جماع انکار وکړي، نو په دې صورت کې به قاضي یو څو ښځو ته حکم وکړي چې د عنین خاوند د ښځې بکارت او ثیوبت او ګوري (چې آیا د هغې د بکر پرده پاته ده، که نه؟)، نو که هغه کتونکې ښځې دا ګواهي ورکړي چې دا ښځه اوس هم باکره ده (یعني د بکر پرده یې پاته ده)، نو قاضي به د هغه عنین خاوند ته د علاج او درملنې لپاره یو کال مهلت ورکوي او سمدستي به د دوی په مینځ کې تفریق نه کوي، بیا که چیرې تر یوه کال وروسته هم هغه پر جماع قادر نه سي نو قاضي به د هغه او د ښځې په مینځ کې تفریق کوي (یعني د دوی په مینځ کې به طلاق واقع کوي)، ځکه چې د کتونکو (معاینه کونکو) ښځو ګواهۍ ته یو تائید حاصل سو یعني باکره کېدل؛ ځکه چې باکره کېدل اصل دي، نو د کتونکو ښځو ګواهي په دې اصل سره مؤیده (مؤکده) سوه او دغه اصل ته د ښځو په ګواهۍ سره تقویت حاصل سو، نو ځکه د ښځې د باکره والي فیصله به کیږي او د یوه کال تر مهلت وروسته به د هغې او د خاوند تر مینځ تفریق کیږي.

همدارنګ که یو سړی د باکره والي پر شرط یوه مینځه رانیسي او پر مینځې قبضه وکړي، بیا څو ورځې وروسته دا سړی یعني مشتري دعویٰ وکړي چې هغه مینځه باکره نه ده بلکې ثیبه ده، لېکن بائع انکار وکړي او ووایي چې هغه باکره وه، نو په دې صورت کې به قاضي د مینځې د کتلو او معاینه کولو لپاره څو ښځې استوي، نو که هغه ښځې ووایي چې مینځه باکره ده، نو مشتري ته به د بیع فسخ کولو حق نه ورکول کیږي یعني دا اختیار به نه ورکول کیږي چې مینځه بائع ته واپس کړي؛ ځکه چې باکره کېدل اصل دي او د دغه اصل سره د کتونکو ښځو ګواهي لاحق سوه، نو ځکه د مینځې باکره والي به تسلیمول کیږي او د همدې فیصله به کیږي. او که چیرې هغه کتونکې ښځې د

مینځي د ثیبه والي ګواهي ورکړي، نو په دې صورت کې به قاضي له بائع څخه قسم اخلي، او که بائع له قسم څخه انکار وکړي نو بیا به مشتري ته د بیع فسخ کولو (د مینځې واپس کولو) حق ورکول کیږي؛ ځکه چې اوس د ښځو د ګواهۍ لپاره د بائع انکار مؤید (تائید کونکی) سو. لېکن که بائع قسم واخلي چې په الله قسم! ما دا مینځه د باکره والي په حالت کې مشتري ته وسپارله. نو بیا به مشتري ته د بیع فسخ کولو حق نه ورکول کیږي؛ ځکه چې په دې صورت کې د ښځو ګواهۍ لره هیڅ مؤید حاصل نه سو. او څرنګه چې د بیع فسخ کولو حق د ښځو له ګواهۍ څخه اقویٰ (زیات قوي) دی، نو ځکه یوازې د ښځو په ګواهۍ سره به مشتري ته د فسخ حق او اختیار نه ورکول کیږي.

والعیب یثبت إلخ: دا د یو مقدر سول جواب دی؛ سوال دا دی چې مخکې تاسو وویل چې د ښځې په کومو عیبونو چې سړي خبرېدای نه سي د هغوی په هکله د یوې ښځې ګواهي هم کافي ده، او په دغه پورتنۍ مسئله کې خو ډېرو ښځو دا ګواهي ورکړې ده چې فلانکۍ مینځه ثیبه ده. نو د هغو د ګواهۍ مطابق مشتري ته د مینځې د واپس کولو یعني د بیع فسخ کولو حق ورکول پکار دی: حال دا چې تاسو په دې صورت کې د بائع لپاره قسم اخیستل ضروري ګرځولي دي، آخر داسي ولې ده؟ دا خو د دې حدیث ''شهادةُ النساءِ جائزةٌ إلخ'' خلاف دي.

د دې جواب دا دی چې دلته (مورږ دا خبره تسلیموو چې) عیب یعني د مینځې ثیبه والی خو د کتونکو ښځو په ګواهۍ سره ثابت دی او په حدیث په عمل کولو سره مورږ هغه مینځه ثیبه شمارلې ده، لېکن تر دې وروسته له بائع څخه ځکه قسم اخلو چې دا خبره ښکاره سي چې هغه مینځه چیري ثیبه سوې ده، د مشتري سره او که د بائع سره، نو که چیري د بائع سره په هغې کې دا عیب پیدا سوی وي نو مشتري ته به د بیع د فسخ کولو اختیار وي او که چیري د مشتري سره دا عیب پیدا سوی وي نو بیا به هغه ته د بیع د فسخ کولو اختیار نه وي، نو په دې مسئله کې فقط پر همدې خبره له بائع څخه قسم اخیستل کیږي، نه د مینځې پر معیوب کېدلو او نه کېدلو.

وأمّا شهادتها إلخ: د دې حاصل دا دی که څو ښځې دا خبر ورکړي چې د ولادت په وخت کې د فلانکۍ ښځې بچي آواز او ژړا وکړه بیا مړ سو، یعني ژوندی پیدا سو او مړ سو، نو د هغو دا ګواهي به د جنازې د لمانځه په حق کې بالاتفاق قبلول کیږي یعني پر هغه بچي به د جنازې لمونځ کیږي؛ ځکه چې د جنازې لمونځ له دیني اُمورو څخه یو امر دی او په دیني اُمورو کې بالاتفاق د یوې ښځې ګواهي معتبره ده. او دلته خو یوه نه بلکې څو ښځې دي، نو ځکه په درجه اولیٰ به قبلول کیږي؛ لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د میراث په حق کې د ښځو دا ګواهي معتبره او مقبوله نه ده یعني که د دې بچي پلار مخکې مړ سوی وي، نو دغه بچي ته به د خپل پلار په میراث کې حصه نه ورکول کیږي، لېکن

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د ميراث په حق کي هم د دې ښځي ګواهي مقبوله ده او دغه مړه بچي ته د خپل پلار ميراث ورکول کيږي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د ولادت په وخت کي د بچي آواز کول او ژړل داسي امر دی چي په هغه سړي (نارينه) هم خبرېدای سي، او په کوم شي چي د سړي خبرېدل ممکن وي د هغه شي په هکله د ښځو ګواهي معتبره نه وي، نو ځکه د ولادت په وخت کي به د بچي پر آواز کولو د ميراث په حق کي تنها د ښځو ګواهي معتبره نه وي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي صحيح ده! د ولادت په وخت کي د بچي په آواز او ژړا سړی هم خبرېدای سي لېکن عموماً او عادتاً په دې وخت کي هلته سړی حاضر نه وي، نو ځکه د ولادت په وخت کي د بچي پر آواز کولو د ښځو ګواهي ورکول داسي دي لکه پر خپلودي ولادت ګواهي ورکول، او څه مخکي ذکر سوه چي پر ولادت د ښځو ګواهي معتبره ده، نو ځکه د ولادت په وخت کي به د بچي پر آواز او ژړا کولو هم د هغو ګواهي معتبره وي.

## د ګواهۍ شرائط (عدالت او د شهادت لفظ استعمالول)

قَالَ: وَلَا بُدَّ فِي ذٰلِكَ كُلِّهِ مِنَ الْعَدَالَةِ وَلَفْظَةِ الشَّهَادَةِ فرمايي: او د شهادت په دغه ټولو صورتونو [او مراتبو] کي عدالت [عادل والي] او د شهادت لفظ ضروري دی فَإِنْ لَمْ يَذْكُرِ الشَّاهِدُ لَفْظَةَ الشَّهَادَةِ وَقَالَ: أَعْلَمُ أَوْ أَتَيَقَّنُ نو که چيري ګواه د شهادت لفظ ذکر نه کړي او [داسي] ووايي: زه خبره يم [ما ته معلومه ده] يا زه يقين کوم لَمْ تُقْبَلْ شَهَادَتُهُ نو د هغه ګواهي به نه قبلول کيږي. أَمَّا الْعَدَالَةُ او کوم چي عدالت دی [نو ځکه شرط او ضروري دی] فَلِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: ﴿مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ﴾ ځکه الله تعالىٰ فرمايلي دي: "کوم ګواهان چي تاسي خوښ کړئ" [يعني کوم ګواه چي تاسو ته خوښ وي او تاسو په راضي ياست هغه ګواه جوړ کړئ!] وَالْمَرْضِيُّ مِنَ الشَّاهِدِ هُوَ الْعَدْلُ او [خلکو ته] خوښ ګواه هغه عادل ګواه دی وَلِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: ﴿وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِنْكُمْ﴾ او ځکه چي الله تعالىٰ فرمايلي دي: "تاسي [اې مسلمانانو!] له خپلو څخه عادل ګواه ودروئ! وَلِأَنَّ الْعَدَالَةَ هِيَ الْمُعَيِّنَةُ لِلصِّدْقِ او ځکه چي همدا عدالت د صدق ارښتيا والي اُمتعين کونکي دی لِأَنَّ مَنْ يَتَعَاطَى غَيْرَ الْكِذْبِ ځکه کوم سړی چي له دروغو څخه بغير د نورو جرائمو ارتکاب کوي [يعني کوم فاسق چي دروغ نه وايي

لېکن نور ممنوع کارونه کوي] قَدْ يَتَعَاطَاهُ هغه ځيني وخت د درواغو ارتکاب هم کوي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّ الْفَاسِقَ إِذَا كَانَ وَجِيهًا فِي النَّاسِ ذَا مُرُوْءَةٍ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې که فاسق په خلګو کې قدرمن وي او د مړانې خاوند وي تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ نو د هغه ګواهي به قبلول کيږي لِأَنَّهُ لَا يُسْتَأْجَرُ لِوَجَاهَتِهِ ځکه چې د خپل قدر [او عزت] په وجه به هغه په کرايه نه اخيستل کيږي [يعني هغه به د خپل قدر او عزت د خيال ساتلو په وجه د يو څو روپيو لپاره خپله ګواهي نه خرڅوي] وَيَمْتَنِعُ عَنِ الْكَذِبِ لِمُرُوْءَتِهِ او د خپل مړانې په وجه به له درواغو څخه ځان ساتي وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ [●] او اول قول زيات صحيح دي إِلَّا أَنَّ الْقَاضِيَ لَوْ قَضٰى بِشَهَادَةِ الْفَاسِقِ لېکن [بيا هم] که قاضي د فاسق پر ګواهۍ فيصله وکړي يَصِحُّ عِنْدَنَا نو زموږ په نېز صحيح کيږي وَالْمَسْأَلَةُ مَعْرُوفَةٌ او دا مسئله مشهوره ده وَأَمَّا لَفْظَةُ الشَّهَادَةِ فَلِأَنَّ النُّصُوصَ نَطَقَتْ بِاشْتِرَاطِهَا او کوم چې د شهادت لفظ دی [نو هغه ځکه شرط دی] ځکه چې نصوص د هغه په شرط کېدلو سره ګويا دي إِذِ الْأَمْرُ فِيهَا بِهٰذِهِ اللَّفْظَةِ ځکه چې په نصوصو کې په همدې لفظ سره امر وارد دی وَلِأَنَّ فِيهَا زِيَادَةَ تَوْكِيدٍ او ځکه چې د شهادت په لفظ کې زيات ټينګکار [او مضبوطي] ده فَإِنَّ قَوْلَهُ أَشْهَدُ مِنْ أَلْفَاظِ الْيَمِينِ ځکه د ګواه دا قول "أَشْهَدُ" د قسم له الفاظو څخه دی فَكَانَ الْإِمْتِنَاعُ عَنِ الْكَذِبِ بِهٰذِهِ اللَّفْظَةِ أَشَدَّ نو ځکه د دې لفظ [أشهدُ] په وجه به له درواغو څخه په ټينګه ځان ساتل کيږي [لکه څرنګه چې د قسم اخيستلو په صورت کې له هغه څخه په ټينګه ځان ساتل کيږي] وَقَوْلُهُ "فِي ذٰلِكَ كُلِّهِ" إِشَارَةٌ إِلٰى جَمِيْعِ مَا تَقَدَّمَ او د ماتن په دې قول "فِي ذٰلِكَ كُلِّهِ" کې د ګواهۍ د ټولو مخکنيو اقسامو [او مراتبو] وطرف ته اشاره ده حَتّٰى يُشْتَرَطَ الْعَدَالَةُ وَلَفْظَةُ الشَّهَادَةِ فِي شَهَادَةِ النِّسَاءِ فِي الْوِلَادَةِ وَغَيْرِهَا تر دې چې د ولادت او داسي نورو په هکله د ښځو په ګواهۍ کې [هم] عدالت او د شهادت لفظ شرط دی هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده لِأَنَّهَا شَهَادَةٌ ځکه چې دا [هم] ګواهي ده لِمَا فِيهِ مِنْ مَعْنَى الْإِلْزَامِ ځکه چې په دې کې د

---

● القول الراجح. قول الأوّل كما قال صاحبُ الهداية رَحِمَهُ الله: والأوّل اصح، وهو قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كذا ذكر في فتح القدير (ج:٦، ص:٤٥٥)، ورد المحتار (ج:۴، ص:۲۱۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۲۹]

لازمولو معنیٰ ستنه حَتَّی اخْتَصَّ بِمَجْلِسِ الْقَضَاءِ همدا وجه ده چي دا ګواهي هم د قاضي د مجلس سره خاص ده وَلِهٰذَا يُشْتَرَطُ فِيهِ الْحُرِّيَّةُ وَالْإِسْلَامُ او په همدې وجه په دې ګواهي کي [هم] آزاد کېدل او مسلمان کېدل شرط دي.

**اللغات**: ﴿ترضون﴾ د سمع له بابه د جمع مذكر مخاطب صيغه ده: په يو شي راضي کېدل، خوښول. ﴿مرضِيّ﴾ د سمع د باب مفعول دی: خوښ کړی سوی (خوښ). ﴿صدق﴾ صداقت، رښتيا والی. ﴿يتعاطی﴾ د تفاعل د باب مضارع ده، د دې باب په صله کي چي يو جرم ذکر سي نو د "کولو" معنیٰ ورکوي، يعني جرم کول، د جرم ارتکاب کول (معجم وسيط). ﴿وجيه﴾ مخوَر کس، يعني قدر او عزت والا، قدرمن (معجم وسيط). ﴿توکيد﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: ټينګار کول. مؤکد کول (ټينګول).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي د شهادت او ګواهي په دغه ټولو اقسامو او مراتبو کي د شهادت (أَشْهَدُ) په لفظ سره ګواهي ورکول او د ګواهانو عادل والي شرط او ضروري دی، نو که يو ګواه د "أَشْهَدُ" پر ځای د "أَعْلَمُ" يا "أَتَيَقَّنُ" لفظ ووايي يعني که يوه ګواه د "زه ګواهي او شاهدي ورکوم" پر ځای داسي ووايي "زه په هغه عالم او خبر يم" يا "زه يقين کوم"، نو د هغه شهادت (ګواهي) به نه قبلول کيږي؛ ځکه چي د "أشهد" په لفظ سره ګواهي ورکول شرط دي. لهذا چيري چي دا شرط فوت سي هلته به مشروط يعني د شهادت اداء کول هم فوتيږي او هغه لره به هيڅ اعتبار نه وي.

**دليل**: د ګواهانو عادل والی ځکه ضروري دی چي الله تعالیٰ فرمايي: ﴿مِمَّن تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ﴾ [البقرة: ۲۸۲]. يعني تاسي دوه ګواهان ودروئ! له هغو ګواهانو څخه کوم چي يې تاسو خوښوئ. لنډه دا چي ګواه به په خلکو کي خوښ او غوره کس وي، او دا ښکاره خبره ده چي فاسق سړی په خلکو کي خوښ نه شمارل کيږي، نو له دې آيت څخه معلومه سوه چي ګواه (شاهد) به فاسق سړی نه وي بلکي د هغه عادل والي ضروري دی. او په بل آيت کي ذکر سوي دي: ﴿وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنكُمْ﴾ [الطلاق: ۱۲]. يعني تاسي په مسلمانانو کي دوه عادله خلک ګواهان وټاکئ! له دې آيت څخه هم معلومه سوه چي د ګواه عادل والی ضروري دی.

او عقلي دليل دا دی چي فقط همدا عادل والی صداقت او رښتيا والی مُتعيّن کوي (يعني څوک چي عادل وي هغه به لازماً رښتونی هم وي او رښتيا ګواهي به ورکوي)، ځکه هغه فاسق کوم چي درواغ نه وايي ليکن نور جرائم او ممنوع کارونه کويَ، هغه ځيني وخت درواغ هم نه پرېږدي.

له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی چي که فاسق کس په خلګو کي قدرمن او د مرانی خاوند وي، نو د هغه ګواهي به قبلول کیږي؛ ځکه هغه به د خپل قدر او عزت په خاطر د درواغجن شهادت (ګواهي) لپاره خپل ځان نه خرڅوي (یعني هغه به د خپل غټ نوم او قدر په وجه داسي نه ګوي چي له مدعي څخه یو څو روپۍ واخلي او د درواغو ګواهي ورکړي) او هغه به د خپل مړانې او نرتیا په وجه له درواغو څخه ځان ساتي.

لېکن اول قول زیات صحیح دی چي مطلقاً د فاسق قول به نه قبلول کیږي هغه که هر څه بلا وي؛ ځکه الله تعالیٰ د "وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ" په فرمان سره د عادل ګواه درولو حکم کړی دی، نو ځکه د دې الهي حکم په خاطر فاسق کس ګواه جوړول صحیح نه دي هغه که هرڅومره شریف او رېښتونی یا قدرمن او مړنی وي. او بل دا چي په حدیث کي ذکر سوي دي: "أَكْرِمُوا الشُّهُوْدَ" (د ګواهانو اکرام او درناوی کوئ!)، او ښکاره خبره ده چي د فاسق د شهادت قبلولو مطلب دا دی چي د فاسق اکرام او درناوی دي وسي، حال دا چي موږ ته د فاسق د اهانت او سپکاوي حکم سوی دی، لکه په دې حدیث کي چي مذکور دي: "إِذَا لَقِيْتَ الفَاسِقَ فَالقِهِ بِوَجْهٍ مُكْفَهِرٍّ" (یعني که چیري د یو فاسق سره ستا ملاقات وسي! نو د هغه سره په ترش مخ ملاقات کوه! یعني په خنده رویه او با هوسه مخ د هغه سره مه ملاقي کېږه!)، نو ځکه په دې حوالو سره هم د فاسق شهادت او ګواهي معتبر ګرځول او هغه قبلول صحیح نه دي.

لېکن بیا هم که قاضي د یو فاسق پر ګواهي فیصله وکړي، نو زموږ په نېز دا فیصله جائز ده او هغه به نافذول کیږي هم، او دا مسئله مشهوره ده لکه د کتاب ادب القاضي په شروع کي چي په دې هکله تفصیلي بحث تېر سو.

وأما لفظ الشهادة إلخ: فرمایي د شهادت په لفظ (أَشْهَدُ) سره ګواهي ورکول ځکه شرط او ضروري دي چي د قرآن او حدیث نصوص په همدې لفظ سره وارد سوي دي یعني په قرآن او حدیث کي چي هر ځای د ګواهي حکم او بیان سوی دی هلته د شهادت لفظ او ماده ذکر سوې ده. مثلاً الله تعالیٰ فرمایلي دي: ① أَقِيْمُوا الشَّهَادَةَ، ② وَأَشْهِدُوْا إِذَا تَبَايَعْتُمْ، ③ وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِجَالِكُمْ، ④ وَأَشْهِدُوْا ذَوَيْ عَدْلٍ مِنْكُمْ. تاسو او ګورئ! په دې هر آیت کي د "شهد" ماده ذکر سوې ده. همدارنګه په حدیث کي دي: "إِذَا عَلِمْتَ مِثْلَ الشَّمْسِ فَاشْهَدْ وَإِلَّا فَدَعْ" (یعني کله چي تا ته د لمر په شان د یو معاملې خبر ښکاره سي نو بیا ګواهي ورکوه!، کنې هغه پرېږده!)، لهذا کله چي په قرآن او حدیث

کي صراحتاً د شهادت لفظ ذکر سوی دی، نو ځکه د ګواهۍ په باب کي به د شهادت په لفظ سره ګواهي ورکول شرط وي او د هغه پر ځای به د بل لفظ (اَعْلَمُ، اَتَیَقَّنُ) استعمالول صحیح نه وي.

دویم دلیل دا دی چي د شهادت په لفظ سره په ګواهي ورکولو کي مضبوطي او ټینګار زیات دی؛ ځکه چي دا لفظ پر مشاهده او لیدني دلالت کوي (چي ما خپل په سترګو ولیده)، او بل دا چي د شهادت لفظ د قسم (یمین) له الفاظو څخه دی؛ نو ځکه په دې لفظ سره د ګواهي ورکولو په صورت کي به ګواه نور اهم احتیاط کوي او له دروغو څخه به په ټینګه ځان ساتي، او په ګواهۍ (شهادت) کي مقصود هم دغه خبره ده چي ګواه له دروغو څخه پرهېز وکړي؛ لهذا کله چي د شهادت په لفظ کي ټینګار او مضبوطي سته او په دې لفظ کي ګواه په ټینګه له دروغو څخه ځان ساتي، نو ځکه په دې وجه هم د شهادت په لفظ سره ګواهي ورکول ضروري ګرځول سوي دي.

وقوله إلخ: فرمايي چي په متن کي د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول "لا بد في ذٰلك كله" د دې خبري وطرف ته اشاره ده چي د ګواهۍ په ټولو اقسامو او مراتبو کي د ګواه عادل والي او د شهادت په لفظ سره ګواهي ورکول ضروري دي، حتیٰ د ولادت او داسي نورو په باره کي چي کومي ښځي ګواهي ورکوي د هغو عادل والی او د شهادت په لفظ سره ګواهي ورکول هم ضروري دي او همدا صحیح قول دی؛ ځکه چي په دې کي هم د الزام (لازمولو) معنیٰ موجوده ده؛ همدا وجه ده چي د ولادت، بکارت او داسي نورو په باره کي چي کومي ښځي ګواهي ورکوي د هغو آزاد والی، عاقل والی، بلوغت او مسلمان والی شرط دی او د هغو لپاره د قاضي په مجلس کي ګواهي اداء کول ضروري دي؛ او څرنګه چي دغه ټوله شیان (یعني آزادي، عقل، اسلام ...) د شهادت شرطونه دي، نو په همدې وجه په ولادت او داسي نورو کي د شهادت په لفظ سره ګواهي ورکول شرط دي. لېکن د عراقي فقهاؤ په نېز په دې لفظ سره ګواهي ورکول شرط نه دي.

## د ګواهانو د عدالت معیار (او د ګواهانو تزکیه به کله کیږي؟)

قَالَ أَبُوْ حَنِيْفَةَ : يَقْتَصِرُ الْحَاكِمُ عَلٰى ظَاهِرِ الْعَدَالَةِ فِي الْمُسْلِمِ امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مسلمان ګواه په حق کي به قاضي پر ظاهري عدالت اکتفاء کوي وَلَا يَسْأَلُ عَنْ حَالِ الشُّهُوْدِ حَتّٰى يَطْعَنَ الْخَصْمُ او د ګواهانو د حالت په باره کي به پوښتنه [معلومات] نه کوي تر دې چي مدعیٰ علیه [پر هغو] عیب ولګوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَام[1] : «اَلْمُسْلِمُوْنَ عُدُوْلٌ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ إِلَّا مَحْدُوْدًا فِي قَذْفٍ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي چي "مسلمانان بعضي پر بعضو عادلان دي مګر محدود في

[1] تخريج: أخرجه مُصنّف ابن أبي شيبة، باب من قال لاتجوز شهادته إذا تاب، ج:۴، ص: ۳۳۰، حديث رقم:۲۰۶۵.

القذف" [يعني مسلمانان عادلان دي او بعضي پر بعضو حجت دي. مګر هغه کس چې د زنا د تهمت لګولو په وجه پر هغه حد جاري سوی وي] وَمِثْلُ ذٰلِكَ مَرْوِيٌّ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ* او همداسي [قول] له حضرت عمر رضي الله عنه څخه هم روايت سوی دی وَلِأَنَّ الظَّاهِرَ هُوَ الِانْزِجَارُ عَمَّا هُوَ مُحَرَّمُ دِيْنِهِ او ځکه چې د مسلمان ظاهري حالت له هغه شي څخه منع کېدل [ځان ساتل] دي کوم چې د هغه په دين کي حرام وي وَبِالظَّاهِرِ كِفَايَةٌ او پر ظاهري حالت اکتفاء ده [يعني دلته به پر همدې ظاهري حالت اکتفاء کيږي] إِذْ لَا وُصُوْلَ إِلَى الْقَطْعِ ځکه چې [په دې باره کي] يقين ته انسان نه سي رسېدای [يعني په يقيني توګه د ګواه صادق کېدل (عادل کېدل) يا کاذب کېدل نه سي معلومېدای] إِلَّا فِي الْحُدُوْدِ وَالْقِصَاصِ فَإِنَّهُ يَسْأَلُ عَنِ الشُّهُوْدِ مګر په حدونو او قصاص کي، نو [په هغوی کي] به قاضي د ګواهانو په باره کي پوښتنه کوي لِأَنَّهُ يُحْتَالُ لِإِسْقَاطِهَا ځکه چې د حدونو ساقطولو ته به حيله کيږي [لکه مخکي چې څو ځله ذکر سوي دي چې حتی الامکان به د حدّ ساقطولو ته يو حيله او بانه جوړول کيږي او خپل تر وسه به د هغه د ساقطولو کوشش کيږي. همدا د شريعت حکم دی و قاضي او حدّ قائمونکي ته] فَيُشْتَرَطُ الِاسْتِقْصَاءُ فِيهَا نو ځکه [په حدّ او قصاص کي] به د عدالت په هکله پوره تفتيش کول شرط وي وَلِأَنَّ الشُّبْهَةَ فِيهَا دَارِئَةٌ او ځکه چې په حدونو کي شبهه دفع کونکې ده [يعني په شبهې سره حدود ساقطيږي] وَإِنْ طَعَنَ الْخَصْمُ فِيهِمْ او که چيري مدعیٰ عليه پر ګواهانو عيب ولګوي يَسْأَلُ عَنْهُمْ فِي السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ نو قاضي به په پټه او په ښکاره توګه د هغو په باره کي پوښتنه کوي لِأَنَّهُ تَقَابَلَ الظَّاهِرَانِ ځکه چې [دلته] دوه ظاهري حالته سره مقابل سول فَيَسْأَلُ طَلَبًا لِلتَّرْجِيْحِ نو ځکه د ترجيح ورکولو لپاره به [د ګواهانو په باره کي] پوښتنه کوي وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ ❁: لَا بُدَّ أَنْ يَسْأَلَ عَنْهُمْ فِي السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ فِي سَائِرِ الْحُقُوْقِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې په ټولو حقونو [او معاملو] کي د ګواهانو [د عدالت] په باره کي په پټه او په ښکاره توګه پوښتنه کول ضروري دي لِأَنَّ الْقَضَاءَ مَبْنَاهُ عَلَى الْحُجَّةِ ځکه چې د قاضي د

---

* تخريج: اخرجه دار قطني في كتاب الأقضية، باب كتاب عمر إلى أبي موسى الأشعري رضي الله عنهما، ج:۴، ص:۱۳۲، رقم:۴۴۲۵.

❁ القول الراجح: قول الصاحبين رحمهما الله، كماقال صاحب الهداية رحمه الله: والفتوىٰ على قولهما في هذا الزمان، وكذا في رد المحتار (ج:۲، ص:۴۱۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۳۰]

فیصلې بنیاد پرحجت دی وَهِيَ شَهَادَةُ الْعُدُوْلِ او حجت د عادلو ګواهانو ګواهي ده فَيَتَعَرَّفُ عَنِ الْعَدَالَةِ نو ځکه به قاضي د عدالت په باره کي معلومات [او پوښتنه] کوي وَفِيْهِ صَوْنُ قَضَائِهِ عَنِ الْبُطْلَانِ او په دې کي له باطلېدلو څخه د قاضي د فیصلې حفاظت [هم] سته وَقِيْلَ: هٰذَا اخْتِلَافُ عَصْرٍ وَزَمَانٍ او ویل سوي دي: چي دا د دور او زمانې اختلاف دی وَالْفَتْوٰى عَلٰى قَوْلِهِمَا فِيْ هٰذَا الزَّمَانِ او په دې زمانه کي د صاحبینو پر قول فتویٰ ده.

**اللغات**: ﴿يقتصر﴾ د افتعال مضارع ده: اكتفاء كول، كفايت كول. ﴿يطعن﴾ د مضارع صيغه ده. له نصر او فتح دواړو څخه راځي: عيب لګول، اعتراض كول (معجم وسيط). ﴿خصم﴾ مخالف فريق، يعني مدعي يا مدعىٰ عليه. ﴿انزجار﴾ د انفعال مصدر دی: منع كېدل، ځان ساتل. ﴿قطع﴾ قطعي او يقيني كيفيت. ﴿يحتال﴾ د افتعال د باب مضارع صيغه ده: حيله او بانه كول، حيله جوړول، چل او تدبير كول. ﴿دارئة﴾ د فتح د باب مؤنث فاعل دی: دفع كونكی، ليري كونكی (ساقطونكی). ﴿في السر﴾ په پټه، په مخفي توګه. في العلانية: په ښكاره توګه. ﴿صون﴾ د نصر د باب مصدر دی: ساتل، حفاظت كول، ژغورل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي كله د قاضي په مجلس كي مدعي خپل ګواهان پېش كړي او مدعىٰ عليه د مدعي پر پېش كړل سوو ګواهانو عيب نه ولګوي او نه داسي نقص پكښي ثابت كړي چي د هغه په وجه د ګواهانو ګواهي (شهادت) ردّ كيږي، نو په دې صورت كي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حكم دا دی چي قاضي دي د ګواهانو پر ظاهري حالت اكتفاء وكړي او د ګواهانو د عدالت (عادل والي) په باره كي دي تحقيق او پوښتنه نه كوي؛ ځكه په حديث كي ذكر سوي دي "الْمُسْلِمُوْنَ عُدُوْلٌ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ إِلَّا مَحْدُوْدًا فِيْ قَذْفٍ" (يعني له محدود في القذف څخه بغير نور ټول مسلمان عادله دي او يو د بل په خلاف حجت دي)، همدارنګه حضرت عمر رضي الله عنه د ابو موسىٰ اشعري رضي الله عنه په نامه په يو خط كي خاص همدغه الفاظ ليكلي وه كوم چي اوس په حديث كي ذكر سوه. له دې څخه معلومه سوه چي كه مسلمان ګواه په ښكاره عادله وي نو د هغه پر ظاهري عدالت به اكتفاء كيږي او د هغه په هكله به نور تحقيق او تفتيش نه كيږي.

ولأن الظاهر إلخ: د مسلمان ګواه په باره کې د تحقيق او تفتيش نه کولو عقلي دليل دا دی چې د مسلمان ظاهري حالت همدا دی چې هغه به له هر داسې فعل څخه ځان ساتي کوم چې په دين کې حرام وي، او څرنګه چې درواغ ويل په اسلام کې حرام دي، لهذا له مسلمان څخه د درواغو ويلو توقع نسته، نو ځکه د هغه پر ظاهري حالت په اعتماد کولو سره به د هغه ګواهي منل کيږي او د هغه د عدالت په باره کې به تحقيق او تفتيش نه کيږي؛ ځکه چې په دې تحقيق او تفتيش سره هم ديو ګواه صادق يا کاذب کېدل په يقيني توګه نه سي معلومېدای، نو ځکه دا کار به فضول او بې معنیٰ وي او قاضي د فضول کارو لپاره نه ټاکل کيږي. (أحسن الهدايه)

إلا في الحدود إلخ: فرمايي که چيري په حد او قصاص کې د ګواهۍ معامله پېښه سي، نو په دې صورت کې به قاضي د ګواهانو پر ظاهري عدالت اکتفاء نه کوي، برابره ده مدعیٰ عليه پر هغو عيب ولګوي، که نه، په دې هر صورت کې به قاضي د ګواهانو د عدالت او دينداری او د هغو د صداقت او امانت پوره تحقيق او معلومات کوي؛ ځکه چې د حد او قصاص معامله ډېره اهمه ده، او بل دا چې قاضي ته حتی الامکان د حد او قصاص دفع کولو حکم سوی دی (يعني په حد او قصاص کې به خپل تر وسه دا کوشش کيږي چې هغه ساقط کړی سي)، نو ځکه قاضي به په پوره توګه د ګواهانو تحقيق کوي، د دې لپاره چې پو داسې نقص او عيب ښکاره سي کوم چې د ګواهۍ د نه جائز کېدلو او د حد ساقطېدلو لپاره خيله جوړه سي او حد ساقط سي.

په دې هکله دويم دليل دا دی چې که په حد او قصاص کې قاضي د ګواهانو پر ظاهري عدالت اکتفاء وکړي نو بيا هم د هغو د نا عادل والي شبهه خامخا پاتيږي (چې کېدای سي هغوی به په حقيقت کې عادلان نه وي)، او حدود په شبهاتو سره ساقطيږي، نو ځکه په دې حواله سره هم په حد او قصاص کې د ګواهانو د حالت بشپړ تحقيق او تفتيش ضروري دی.

ولأن طعن الخصم إلخ: د دې حاصل دا دی چې که له حد او قصاص څخه بغير په نورو معاملو او دعوو کې مدعیٰ عليه پر ګواهانو عيب ولګوي نو قاضي به په پټه توګه هم د ګواهانو د حالت پوښتنه کوي او په ښکاره (علانيه) توګه هم؛ ځکه چې دلته دوه ظاهري حالته او دوه معارض سره جمع دي، اول خو دا دی چې ګواهان به د مسلمان کېدلو په وجه درواغ نه وايي او دويم دا دی چې مدعیٰ عليه هم مسلمان دی نو هغه به په خپل عيب لګولو کې درواغجن نه وي؛ دا دواړه ظاهري حالتونه يو د بل مقابل دي، نو ځکه د مدعي او مدعیٰ عليه په حق کې به د ترجيح په وجه فيصله کيږي، او په دې مسئله کې د ترجيح لاره همدا ده چې قاضي د ګواهانو د حالت تحقيق او معلومات وکړي، نو که چيري د

هغو عدالت ثابت سي نو فيصله به د مدعي په حق کي کيږي، او که د هغو عدالت ثابت نه سي نو فيصله به د مدعیٰ علیه په حق کي کيږي. لنډه دا چي که له حد او قصاص څخه بغير په نورو معاملو کي مدعیٰ علیه د ګواهانو پر عدالت عيب ولګوي نو قاضي به د هغو د حالت (عدالت) پوښتنه او معلومات کوي، کنې نه به يې کوي.

وعن أبي يوسف ومحمد إلخ: صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي د حد او قصاص په څېر په باقي ټولو معاملو او حقوقو کي هم د قاضي لپاره د ګواهانو د حالت پوښتنه او تحقيق کول ضروري دي برابره ده مدعیٰ علیه عيب ولګوي، که نه؛ ځکه د قاضي د فيصلې (قضاء) دار ومدار پر "حجت" دی، او "حجت" د عادلو ګواهانو ګواهی ته وايي، او د ګواهانو عادل والی (عدالت) له تحقيق او پوښتني څخه وروسته ثابتيږي، نو ځکه په هره معامله کي د ګواهانو د حالت تحقيق او معلومات کول ضروري دي.

دويم دليل دا دی چي کله قاضي د ګواهانو له تحقيق څخه وروسته يو فيصله وکړي نو د هغه فيصله به له باطلېدلو څخه محفوظ پاته سي، او که چيري له تحقيق څخه بغير قاضي فيصله وکړي او وروسته د ګواهانو نا عادل والی ښکاره سي (مثلا هغوی غلامان يا محدود فی القذف وخيږي)، نو په دې صورت کي به د قاضي هغه فيصله باطله سي، او ښکاره خبره ده چي د قاضي فيصله حتی الأمکان له باطلېدلو څخه ساتل ضروري دي، نو په دې وجه هم په هره معامله کي د ګواهانو د حالت تحقيق او پوښتنه کول ضروري دي.

وقيل هذا إلخ: ځيني مشايخو د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله دغه اختلاف د دور او زمانې اختلاف ګرځولی دی، يعني څرنګه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله دور خير القرون ته نژدې وو، او د هغه د زمانې په خلکو کي صلاح، رښتيا ګلوي او حق ګلوي غالبه وه، نو ځکه هغه د ګواهانو پر ظاهري حالت اکتفاء کړې ده (لکه څرنګه چي په حديث کي ذکر سوي دي "خَيْرُ الْقُرُوْنِ قَرْنِيْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ، ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ يَفْشُو الْكِذْب" په دې حديث کي درې دورو ته خير دورونه ويل سوي دي: ① د صحابه وو دور او زمانه. ② د تابعينو دور، ③ د تبع تابعينو دور، او د څلورم دور او قرن په باره کي نبي ﷺ فرمايلي دي چي په هغه کي به درواغ عام سي، او امام صاحب رَحِمَهُ الله د دويم او درېيم دور له خلکو څخه وو)، او د صاحبينو په زمانه کي شر او فساد غالب سو او دروغ ويل عام سو (ځکه چي د هغو دور څلورم دور وو)، نو ځکه هغو په هره معامله کي د ګواهانو د حالت تحقيق او پوښتنه کول ضروري وګرځول. او فتویٰ هم د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله پر قول ده.

## د تزکيې اقسام او طريقه

ثُمَّ التَّزْكِيَةُ فِي السِّرِّ أَنْ يَبْعَثَ الْمَسْتُورَةَ إِلَى الْمُعَدِّلِ بيا په پټه توګه تزکيه دا ده چي قاضي تعديل کونکي کس [مزکي] ته پټ خط واستوي فِيهَا النَّسَبُ وَالْحُلَى وَالْمُصَلَّى چي په هغه کي د ګواهانو نسب، حليه [شکل او جوله] او [نوم د] مسجد ليکلي وي وَيَرُدُّهَا الْمُعَدِّلُ او تعديل کونکی دي هغه خط [ته جواب وليکي او قاضي ته دې] واپس کړي وَكُلُّ ذٰلِكَ فِي السِّرِّ او دا ټوله به په پټه توګه وي [يعني د خط ټوله کاروايي په خفيه توګه ترسره کول پکار دي] كَيْلَا يَظْهَرَ د دې لپاره چي ښکاره نه سي فَيُخْدَعَ أَوْ يُقْصَدَ [ځکه که ښکاره سي] نو د تعديل کونکي [مزکي] سره به دوکه او مکر وسي يا هغه ته به د تکليف ورکولو اراده وسي وَفِي الْعَلَانِيَةِ لَا بُدَّ أَنْ يَجْمَعَ بَيْنَ الْمُعَدِّلِ وَالشَّاهِدِ او په ښکاره تزکيه کي دا ضروري ده چي قاضي به تعديل کونکی کس او ګواه دواړه سره يو ځای کوي لِيَنْتَفِيَ شُبْهَةُ تَعْدِيلِ غَيْرِهِ د دې لپاره چي د بل چا د تعديل شبهه ختمه سي وَقَدْ كَانَتِ الْعَلَانِيَةُ وَحْدَهَا فِي الصَّدْرِ الْأَوَّلِ او [د اسلام] د شروع په زمانه کي تعديل فقط علانيه [په ښکاره توګه] وو وَوَقَعَ الْاِكْتِفَاءُ بِالسِّرِّ فِي زَمَانِنَا او زموږ په زمانه کي پر خفيه تعديل اکتفاء وسوه تَحَرُّزًا عَنِ الْفِتْنَةِ له فتنې څخه د ځان ساتلو لپاره وَيُرْوٰى عَنْ مُحَمَّدٍ: تَزْكِيَةُ الْعَلَانِيَةِ بَلَاءٌ وَفِتْنَةٌ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي: "علانيه تزکيه يو ازمايښت او فتنه ده" ثُمَّ قِيلَ: لَا بُدَّ أَنْ يَقُولَ الْمُعَدِّلُ: هُوَ حُرٌّ عَدْلٌ جَائِزُ الشَّهَادَةِ بيا ويل سوي دي: چي د معدل [مزکي] لپاره داسي ويل ضروري دي: چي "هغه ګواه آزاد، عادل او جائز ګواهی والا دی" لِأَنَّ الْعَبْدَ قَدْ يُعَدَّلُ ځکه ځيني وخت غلام هم عادل وي وَقِيلَ: يَكْتَفِي بِقَوْلِهِ: هُوَ عَدْلٌ او ويل سوي دي: چي هغه دي خپل پر دې قول اکتفاء کوي: چي "هغه عادل دی" لِأَنَّ الْحُرِّيَّةَ ثَابِتَةٌ بِالدَّارِ ځکه چي آزاد والي په دارُ الاسلام سره ثابت دی وَهٰذَا أَصَحُّ او همدا زيات صحيح قول دی.

**اللغات:** ﴿في السرّ﴾ په پټه (په پټه توګه)، په خفيه توګه، ﴿تَزْكِيَة﴾ او تَعْدِيل: ديو چا د عادل کېدلو او غير عادل کېدلو پوښتنه او تحقيق کولو ته وايي. مُزَكِّي او مُعَدِّل: تزکيه او تعديل کونکي

ته وايي، ﴿مُعدِّل﴾ د تفعيل د باب فاعل دی: تعديل کونکی، ديو چا په باره کې د عادل او غير عادل کېدلو تحقيق کونکی، ﴿مستورة﴾ پټ خط، خفيه خط، هغه خط ته وايي چې قاضي په هغه کې د ګواهانو نوم، نسب، شکل او جوله (حُليه) او د هغوی د کلي او مسجد نوم وليکي او بيا يې د خپل امين کس په لاس په پټه توګه مزکي ته واستوي، څرنګه چې دغه خط د عوامو له نظر څخه پټول مقصود دي، نو ځکه هغه ته "مستوره" ويل سوي دي، ﴿حُلي﴾ او حِلي جمع د حُلْيَةٌ ده: د انسان شکل او جوله، بڼه او قواره، رنګ او صورت، يعني قاضي به په هغه خط کې د ګواهانو شکل، رنګ او صورت هم ليکي چې دا ډول کسان دي، ﴿يُخدع﴾ د فتح د باب مضارع مجهوله ده: دوکه ورکول، ديو چا سره چل او مکر کول، ﴿علانية﴾ په ښکاره، په ظاهري توګه، ﴿تحرّز﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: ځان ساتل، پرېز کول، ﴿بلاء﴾ ازمايښت (ازمايش)، امتحان.

**تشريح**: مخکې چې کوم په پټه او ښکاره توګه د تزکيه کولو خبره وسوه، په دې عبارت کې د هغه وضاحت کوي، حاصل يې دا دی چې تعديل او تزکيه پر دوه قسمه ده: ① تزكية في السّر، ② تزكية في العلانية. تزکيه فی السر دې ته وايي چې قاضي د ګواهانو نوم، نسب، حليه او د هغو د کلي (محلې) او مسجد نوم وليکي او په پټه يې د خپل يو امين او معتمد سړي په ذريعه د مزکي وطرف ته واستوي؛ او بيا د مزکي کار دا دی چې د ګواهانو په باره کې د هغو له همسايه ګانو، ملګرو او د هغو د ناستي ولاړي والا خلکو څخه پوښتنه وکړي، او بيا چې کله مزکي پوره تحقيق او تفتيش وکړي نو هغه دي وليکي او د کوم ګواه عدالت او ديانداري چې د هغه په نېز ثابته سي د هغه تر نامه لاندي دي وليکي "هُوَ عَدْلٌ مَقْبُوْلٌ مَرْضِيٌّ جَائِزُ الشَّهَادَةِ" (يعني دا ګواه زما په نېز عادل، خوښ سوی، مقبول او جائز ګواهي والا دی)، او د کوم ګواه په باره کي چې نا عدالت او نقص ثابت سي، د هغه په باره کې د هيڅ نه ليکي يا دې صرف دې ته اشاره وکړي چې د هغه ګواهي مقبوله نه ده، خو د هغه نقص او عيب دي نه ښکاره کوي؛ بيا دي په پټه توګه دا خط قاضي ته واستوي او د دې خبري دي پوره خيال ساتي چې هيڅ يو ګواه يا بل سړي ته خط ښکاره نه سي، ځکه که ګواه په خط خبر سي نو کېدای سي چې مزکي او خط وړونکي ته رشوت ورکړي او په خط کې تغيّر او تبدل وکړي، او د رشوت نه قبلولو په صورت کې به ګواه هغه ته تکليف ورسوي، نو د دې خطراتو او انديښنو په خاطر به مزکي (مُعدّل) خپل ټوله کاروايي په پټه توګه ترسره کوي.

②... د تزکيه فی العلانيه طريقه دا ده چې قاضي دي ګواه او مزکي دواړه د قضاوت په مجلس کې سره يو ځای کړي او بيا دي په مزکي سره د ګواه تعديل او تزکيه وکړي او پوښتنه دي ځني وکړي

چې "ايا دا هغه ګواه دی د کوم تعديل چې تا کړی دی"، نو مزکي دي هغه ګواه ته اشاره وکړي چې "هو! دا هغه ګواه دی"، د ګواه وطرف ته اشاره کول د دې لپاره ضروري دي چې له هغه شخصه بغير د بل ګواه د تعديل شبهه پاتـه نه سي (يعني د هغه پر ځای د بل ګواه تعديل نه وسي)؛ ځکه ځيني وخت دوه خلک په نوم او نسب دواړو کې سره شريک وي نو که مزکي د ګواه وطرف ته اشاره نه وکړي بلکې د هغه د نوم او نسب په بيانولو اکتفاء وکړي، نو کېدای سي چې د قاضي خيال د هغه د همنامي ګواه وطرف ته منتقل سي.

وقد کانت إلخ: فرمايي چې د اسلام په اول دور او زمانه کې يعني د صحابه وو په دور کې فقط د تعديل يو قسم يعني علانيه تعديل رائج وو، ځکه هغه دور او قرن له خير القرون شخه وو، او د هغه دور په ټولو مسلمانانو کې امانت او دينداري غالبه وه او د هيچا له طرفه د ظلم او زياتوب خطره نه وه، نو ځکه په هغه دور کې فقط پر علانيه تعديل اکتفاء کېدل، لېکن موجوده دور بالکل د اول قرن برعکس دی او په دې دور کې د فتنې او فساد بازار ګرم دی، نو ځکه فقهاؤ په دې زمانه کې فقط پر خفيه تعديل اکتفاء کړې ده، او له همدې کبله امام محمد رَحِمَهُ الله علانيه تعديل کولو ته فتنه او بلاء ويلې دي (ځکه که په اوسني دور کې مزکي په علانيه او ښکاره توګه تعديل وکړي نو د مزکي او ګواهانو په مينځ کې به فتنه او فساد جوړ سي او دوی په مينځ کې به دښمني پيدا سي).

ثم قيل إلخ: د ځيني مشايخو رايه دا ده چې تعديل کونکي مزکي به فقط پر "هُوَ عَدْلٌ جَائِزُ الشَّهَادَةِ" اکتفاء نه کوي بلکې د "وهو حُرٌّ" لفظ ويل هم ضروري دي. يعني داسې به ليکي چې "دا ګواه آزاد. عادل او جائز الشهادة دی"؛ دليل دا دی چې ځيني وخت غلام هم عادل وي حال دا چې د هغه ګواهي معتبره نه ده. نو ځکه د ګواه د آزادوالي وضاحت کول هم ضروري دي. او ځيني مشايخو ويلي دي چې د ګواه په باره کې فقط "هُوَ عَدْلٌ" ويل کافي دي، "حُرٌّ او جَائِزُ الشَّهَادَةِ" ويل ضروري نه دي: ځکه په دارُ الاسلام کې د ګواه موجودېدل د هغه د حريت او آزادوالي ښکاره دليل دی. او د دې زمانې په اعتبار سره همدا قول زيات صحيح دی.

## د مدعیٰ عليه د تزکيه او تعديل حکم

قَالَ: وَفِيْ قَوْلِ مَنْ رَأَى أَنْ يَسْأَلَ عَنِ الشُّهُوْدِ فرمايي: او د هغه حضراتو په قول کې چې د هغو رايه دا ده چې قاضي به د ګواهانو په باره کې پوښتنه کوي [يعني کوم حضرات چې وايي: قاضي به د ګواهانو په باره کې تحقيق او پوښتنه کوي. چې هغه صاحبين رَحِمَهُمَا الله دي] لَمْ يُقْبَلْ قَوْلُ الْخَصْمِ أَنَّهُ عَدْلٌ [د هغو په قول کې] د خصم دا قول به نه قبلول کېږي چې ګواه عادل دی مَعْنَاهُ قَوْلُ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ مطلب يې دا دی چې د مدعیٰ عليه قول به نه قبلول کېږي [يعني له خصم شخه مدعیٰ عليه مراد دی. لکه شرنګه چې دا

ښکاره خبره ده! وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ أَنَّهُ يَجُوزُ تَزْكِيَتُهُ او له صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه روايت دی چي د مدعیٰ عليه تزکيه [تعديل] جائز دی لَكِنْ عِنْدَ مُحَمَّدٍ يُضَمُّ تَزْكِيَةُ الْآخَرِ إِلَى تَزْكِيَتِهِ لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به د مدعیٰ عليه د تزکيې سره د بل سړي تزکيه هم يو ځای کول کيږي لِأَنَّ الْعَدَدَ عِنْدَهُ شَرْطٌ ځکه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز عدد شرط دی وَوَجْهُ الظَّاهِرِ: أَنَّ فِي زَعْمِ الْمُدَّعِي وَشُهُودِهِ أَنَّ الْخَصْمَ كَاذِبٌ فِي إِنْكَارِهِ مُبْطِلٌ فِي إِصْرَارِهِ او د ظاهر روايت دليل دا دی: چي د مدعي او د هغه د ګواهانو په ګومان کي مدعیٰ عليه په خپل انکار کي درواغجن او په خپل ټينګار کي پر باطله دی فَلَا يَصْلُحُ مُعَدِّلًا نو ځکه هغه به د معدل [مزکي] کېدلو لايق نه وي وَمَوْضُوعُ الْمَسْأَلَةِ إِذَا قَالَ: هُمْ عُدُولٌ إِلَّا أَنَّهُمْ أَخْطَئُوا أَوْ نَسُوا او د مسئلې صورت دا دی [يعني دا مسئله په هغه صورت کي وضع سوې ده] کله چي مدعیٰ عليه داسي ووايي: چي دا ګواهان عادله دي، لېکن تېروتلي دي يا يې په هېره [داسي] کړي دي أَمَّا إِذَا قَالَ: صَدَقُوا أَوْ هُمْ عُدُولٌ صَدَقَةٌ لېکن که مدعیٰ عليه ووايي: چي هغو رښتيا ويلي دي يا هغوی عادله او رېښتوني دي فَقَدِ اعْتَرَفَ بِالْحَقِّ نو [په دې صورت کي] مدعیٰ عليه د حق اقرار وکړی.

**اللغات**: ﴿شهود﴾ جمع د شَاهِدٌ ده: ګواه، شاهدي اداء کونکی، ﴿أخطئوا﴾ د افعال له بابه د جمع مذکر غائب ماضي معلوم صيغه ده: خطاء او غلطي کول، تېروتل (تېروتنه کول)، ﴿نسوا﴾ د سمع له بابه مخکنۍ صيغه ده: هېرول، له يو چا څخه هېرېدل.

**تشريح**: مخکي دا خبره ذکر سوه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قاضي لپاره د ګواهانو تعديل کول ضروري دي، برابره ده مدعیٰ عليه پر هغو عيب ولګوي، که نه (او د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا وو چي د عيب نه لګولو په صورت کي قاضي د ګواهانو پر ظاهري عدالت اکتفاء کوي)، په دې عبارت کي پر هماغه قول تفريع کوي فرمايي چي که د مزکي (مُعدّل) پر ځای په خپله مدعی عليه د مدعي د ګواهانو تعديل وکړي نو په ظاهر روايت کي د هغه تعديل لره هيڅ اعتبار نسته، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د مدعیٰ عليه تعديل جائز دی، لېکن په صاحبينو کي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي د مدعیٰ عليه د تعديل سره به د بل معتبر سړي تعديل هم شاملول کيږي؛ ځکه د امام محمد رَحِمَهُ

الله په نیز عدد شرط دی یعنې د هغه په نیز دا ضروري ده چې په تعدیل او تزکیه کې به مزکیان دوه وي، نو ځکه د مدعیٰ علیه د تعدیل سره به د بل معتبر او معتمد سړي تعدیل هم شاملول کیږي.

ووجه الظاهر إلخ: د ظاهر روایت د دلیل حاصل دا دی چې تاسو معلومه ده چې مدعي د خپل دعویٰ د ثابتولو لپاره صرف هغه وخت گواهان پېشوي کله چې مدعیٰ علیه د مدعي له دعوې څخه منکر وي او پر خپل انکار ټینگار کوي او مدعي او د مدعي گواهان هغه په خپل انکار او ټینگار کې دروغجن گڼي، او کوم څوک چې دیو سړي په گومان کې دروغجن وي د هغه سړي په حق کې د هغه (دروغجن) تصدیق نه سي کېدای سي؛ ځکه کوم څوک چې دروغجن وي هغه عادل کېدای نه سي، نو ځکه د مدعیٰ علیه تعدیل او تصدیق لره به هیڅ اعتبار نه وي او هغه به د مزکي کېدلو لایق نه وي، ځکه چې د مزکي عادل والی شرط دی لېکن هغه دلته د مدعي او د مدعي د گواهانو په گومان او عقیده کې دروغجن دی.

وموضوع المسألة إلخ: دا دیو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چې د مدعیٰ علیه له طرفه د گواهانو تعدیل کول په حقیقت کې پر خپل ځان د مدعي د حق اقرار کول دي (یعنې کله چې مدعیٰ علیه د مدعي د گواهانو تعدیل وکړی نو گواکې هغه منکر نه دی بلکې پر خپل ځان د مدعي د حق مُقِر [اقرار کونکی] دی)، او د مقر اقرار مقبول او معتبر دی، ځکه د مقر عادل والی بالاتفاق شرط نه دی، نو ځکه په دې مسئله کې د مدعیٰ علیه (مُزکي) تعدیل قبلول پکار دي (که څه هم هغه دروغجن او غیر عادل دی، ځکه چې د مُقر عادل والی شرط نه دی)، حال دا چې په ظاهر روایت کې د هغه تعدیل نامقبول او نامعتبر گرځول سوی دی.

جواب دا دی چې پورتنی مسئله په داسې صورت کې وضع سوې ده کله چې مدعیٰ علیه د گواهانو د تعدیل کولو سره، سره دا خبره هم وکړي "گواهان خو عادله دي لېکن له هغو څخه په تعدیل کولو کې غلطي او تېروتنه سوې ده یا هغوی په هېره او غفلت سره تعدیل کړی دی"، نو ښکاره ده چې په دې صورت کې به د مدعیٰ علیه له طرفه دا خبره اقرار نه وي بلکې دا به تعدیل وي، او د تعدیل لپاره دا شرط دي چې مزکي به عادل وي، حال دا چې دلته مدعیٰ علیه (مُزکي) د مدعي او د هغه د گواهانو په گومان او عقیده کې دروغجن او غیر عادل دی، نو په همدې وجه د هغه تعدیل لره هیڅ اعتبار نسته.

د دې په خلاف که مدعیٰ علیه فقط داسې ووایي چې "د مدعي گواهان رښتوني دي یا ووایي چې عادله او رښتوني دي (او داسې نه ووایي چې هغوی تېر وتلي دي)"، نو په دې صورت کې د مدعیٰ علیه

قول معتبر دی؛ ځکه دلته په حقیقت کې هغه پر خپل ځان د مدعي د حق اقرار وکړی، نو ځکه د هغه دا قول د اقرار په وجه معتبر دی، نه د تعدیل په وجه.

## د تزکیه (تعدیل) کونکو د تعداد بیان

قَالَ: وَإِذَا كَانَ رَسُولُ الْقَاضِي الَّذِي يُسْأَلُ عَنِ الشُّهُودِ وَاحِدًا فرمايي: او د قاضي هغه قاصد [استازی] چې له هغه شخصه د ګواهانو په باره کې پوښتنه کیږي که چیرې هغه یو وي ["يُسأل" د مجهول صیغه او د "الذي يُسأل عن الشهود" جمله د "الرسول" (قاصد) صفت ده، آسانه ترجمه یې دا ده چې: که چیرې د ګواهانو مُزکي (مُعدل) فقط یو سړی وي] جَازَ نو جائز دي وَالِاثْنَانِ أَفْضَلُ او دوه افضل دي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دي وَقَالَ مُحَمَّدٌ ❁: لَا يَجُوزُ إِلَّا اثْنَانِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې جائز نه دي مګر دوه [مزکیان] وَالْمُرَادُ مِنْهُ الْمُزَكِّي او مراد له دې [رسول القاضي] شخصه مزکي دی وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ رَسُولُ الْقَاضِي إِلَى الْمُزَكِّي او پر همدغه اختلاف دي د مزکي وطرف ته د قاضي استول سوی قاصد وَالْمُتَرْجِمُ عَنِ الشَّاهِدِ او [پر همدغه اختلاف دي] د ګواه له طرفه ترجمه کونکی کس لَهُ: أَنَّ التَّزْكِيَةَ فِي مَعْنَى الشَّهَادَةِ د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې تزکیه د ګواهی په معنیٰ سره ده لِأَنَّ وِلَايَةَ الْقَضَاءِ تَبْتَنِي عَلٰى ظُهُورِ الْعَدَالَةِ ځکه چې د قضاء ولایت د عدالت پر ښکاره کېدلو مبني دی وَهُوَ بِالتَّزْكِيَةِ او عدالت په تزکیه [تعدیل] کولو سره ښکاره کیږي فَيُشْتَرَطُ فِيهِ الْعَدَدُ نو ځکه په تزکیه کې به عدد [دوه مزکیان] شرط وي كَمَا تُشْتَرَطُ الْعَدَالَةُ فِيهِ لکه څرنګه چې په هغه کې عدالت شرط دی وَتُشْتَرَطُ الذُّكُورَةُ فِي الْمُزَكِّي فِي الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ او [لکه څرنګه چې] په حدونو او قصاص کې د ګواهانو د مزکي "مذکر کېدل" شرط دي وَلَهُمَا: أَنَّهُ لَيْسَ فِي مَعْنَى الشَّهَادَةِ او د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چې تزکیه د ګواهی په معنیٰ سره نه ده وَلِهٰذَا لَا يُشْتَرَطُ فِيهِ لَفْظَةُ الشَّهَادَةِ وَمَجْلِسُ الْقَضَاءِ همدا وجه ده چې په تزکیه کې د شهادت لفظ او د قضاء [قاضي] مجلس شرط نه دی وَاشْتِرَاطُ الْعَدَدِ أَمْرٌ حُكْمِيٌّ فِي الشَّهَادَةِ او په ګواهی کې عدد شرط کېدل یو

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: كفى عدلٌ واحدٌ للتزكية وترجمة الشاهد والخصم والرسالة من القاضي إلى المزكي والإثنان أحوط (الدر المختار ج:۴، ص:۴۱۶)، وكذا في الملتقى الأبحر (ج:۳، ص:۲۶۳). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۳۲]

حکمي او خلاف القیاس امر دی فَلَا يَتَعَدَّاهَا نو ځکه هغه به د تزکیه وطرف ته نه متعدي کیږي.

**اللغات:** ﴿رسول﴾ کوم سړی چي په یو کار پسي استول سوی وي، استازی، قاصد، پیغام وړونکی، ﴿مُزَكِّي﴾ د تفعیل د باب فاعل دی: د گواهانو صفایي کونکي، یعني د گواهانو د صفایی (عادل والي) په باره کي تحقیق کونکي چي هغه ته معدل (تعدیل کونکی) هم وایي، ﴿مُتَرْجِم﴾ د فَعْلَلَةٌ د باب فَاعل دی، تَرْجَم يُتَرجِم ترجمةً: په عربي ژبه کي د دغه باب دوې معناوي مذکوره دي: خپل د کلام وضاحت او تشریح کول، د بل چا کلام له یوې ژبي څخه بلي ژبي ته اړول چي هغه ته ترجماني وایي، او "الترجمة" د انسان د سیرت او ژوند ذکر کولو ته هم وایي (مصباح منیر، معجم لغة الفقهاء)، ﴿تبتني﴾ د افتعال د باب مضارع ده: مبني کېدل، پر یو شي د بل شي مدار کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلي:** دا دی چي د گواهانو د تعدیل او تزکیه کولو لپاره چي قاضي کوم سړی مقرر کړی وي (چي هغه ته مُزکي او مُعدِل وایي)، که چیري هغه یو وي نو هم جائز دي، لېکن که دوه وي نو افضل او غوره دي، دا حکم د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی، امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي چي په تزکیه او تعدیل کي دا شرط او ضروري ده چي مزکیان به کم از کم دوه وي، او له دوو څخه کم جائز نه دي، د امام محمد او شیخینو رَحِمَهُمُ الله په مینځ کي دغه اختلاف په هغه صورت کي هم دی کله چي قاضي د گواهانو د تحقیق لپاره خپل یو سړی د مزکي (مُعدِل) وطرف ته واستوي یا مزکي د قاضي وطرف ته یو سړی را واستوي یا کوم سړی چي د گواهانو له طرفه ترجمان وي یعني د گواهانو د بیان او خبرو ترجماني کوي، نو په دې صورتونو کي هم د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز یو سړی کافي دی او که دوه سړیان وي نو افضل دي، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دا شرط او ضروري ده چي هغه به دوه سړیان وي.

**د امام محمد دلیل:** دا دی چي تزکیه د گواهي په معنیٰ سره ده؛ ځکه چي د قاضي ولایت (یعني د هغه فیصله کول) د گواهانو د عدالت پر ښکاره کېدلو موقوف دي یعني کله چي د گواهانو عدالت ښکاره سي نو بیا قاضي فیصله کولای سي، نه تر هغه مخکي؛ او د گواهانو د عدالت ښکاره کېدل پر تزکیه او تعدیل موقوف دي یعني د گواهانو عادل والی هغه وخت ښکاره کیږي کله چي مزکي د هغو تزکیه او تعدیل وکړي، لهذا په بله وینا دا چي گرسره گواهي پر تزکیه موقوف ده، او د گواهي لپاره عدد او عدالت شرط دی (لکه مخکي چي دا مسئله ذکر سوه)، لهذا کوم شی چي د گواهي په معنیٰ سره دی یعني

تزکیه، په هغه کي به هم عدد (دوه والي) او عدالت شرط وي او کم از کم دوه مزکیان به ضروري وي، لنډه دا چي څرنګه په ګواهۍ (شهادت) کي کم از کم دوه ګواهان شرط دي، همداسي به په تزکیه هم کم از کم دوه مزکیان شرط وي، همدا وجه ده څرنګه چي په حد او قصاص کي د ګواهانو مذکر کېدل شرط دي، نو همداسي په حد او قصاص کي د ګواهانو د تزکیه کونکي کس مذکر کېدل هم شرط دي چي د هغو مزکي به مذکر یعني نارینه وي (او څرنګه چي د زنا په حد کي د ګواهانو څلور والي ضروري دي چي ګواهان به څلور وي، نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به د هغو د مُزکّیانو څلور والی هم ضروري وي لکه په را روان عبارت کي چي مذکور دي).

**د شیخینو دلیل:** دا دی چي تزکیه د ګواهۍ (شهادت) په معنیٰ سره نه ده، همدا وجه ده چي په تزکیه کي نه د شهادت لفظ (أَشْهَدُ) شرط دی او نه د قضاء په مجلس کي د هغه واقع کېدل او ترسره کول شرط دي، حال دا چي په ګواهۍ (شهادت) کي دا دواړه شیان شرط دي، له دې څخه معلومه شوه چي تزکیه د ګواهۍ په معنیٰ سره نه ده، او کله چي تزکیه د ګواهۍ په معنیٰ سره نه ده نو د تزکیه لپاره به هغه شیان هم شرط نه وي کوم چي د ګواهۍ لپاره شرط دي یعني عدد (دوه مزکیان) او عدالت.

او کوم چي په ګواهۍ کي د عدد (دوو ګواهانو) د شرط کېدلو مسئله ده، نو د هغه جواب دا دی چي په ګواهي کي د عدد (دوه والي) شرط په دې قرآني نص "وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ" سره خلاف القیاس ثابت سوی دی، کنې د قیاس تقاضا خو دا ده چي دوه ګواهان شرط نه وي، ځکه څرنګه چي د یوه ګواه په صورت کي د کذب او درواغو احتمال سته همداسي د دوو ګواهانو په صورت که هم د کذب احتمال سي، نو ځکه په ګواهۍ کي د دوه والي شرط خلاف القیاس دی، او قاعده دا ده "چي کوم شی خلاف القیاس ثابت وي هغه د بل شي وطرف ته نه متعدي (متجاوز) کیږي او پر هغه بل شي نه سي قیاسول کېدای"، نو ځکه د ګواهۍ عدد یعني "دوه والي" به د تزکیه وطرف ته نه متعدي کیږي او په تزکیه کي به "دوه والي" (دوه مُزکّیان) شرط نه وي او په دې مسئله کي به تزکیه پر ګواهۍ قیاسول صحیح نه وي لکه څرنګه چي امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي.

## په مزکي کي د ګواهۍ (شهادت) اهلیت شرط دی، که نه؟

وَلَا يُشْتَرَطُ أَهْلِيَّةُ الشَّهَادَةِ فِي الْمُزَكِّيْ فِي تَزْكِيَةِ السِّرِّ او په پټه [خفیه] تزکیه کي په مزکي کي د ګواهۍ اهلیت شرط نه دی حَتّٰى صَلُحَ الْعَبْدُ مُزَكِّيًا همدا وجه ده چي غلام هم مزکي جوړېدای سي فَأَمَّا فِيْ تَزْكِيَةِ الْعَلَانِيَةِ فَهُوَ شَرْطٌ لیکن په ښکاره تزکیه کي د ګواهۍ اهلیت شرط دی وَكَذَا الْعَدَدُ بِالْإِجْمَاعِ او همداسي عدد هم بالاتفاق [شرط دی] عَلٰى مَا قَالَهُ الْخَصَّافُ لکه څرنګه چي امام خصاف رَحِمَهُ

الله ویلي دي لِاخْتِصَاصِهَا بِمَجْلِسِ الْقَضَاءِ ځکه چي علانیه تزکیه د قضاء د مجلس سره خاص ده قَالُوا: يُشْتَرَطُ الْأَرْبَعَةُ فِي تَزْكِيَةِ شُهُوْدِ الزِّنَا عِنْدَ مُحَمَّدٍ مشایخو ویلي دي: چي د امام رَحِمَهُ الله په نیز د زنا د ګواهانو په تزکیه کولو کي [هم] څلور خلک شرط دي.

**اللغات**: ﴿أهلية﴾ اهل کېدل، قابل کېدل. ﴿صَلُحَ﴾ د ماضي صیغه ده، له کرم، فتح او نصر ټولو بابونو څخه راځي، سمېدل، مناسب کېدل، د یو کار لایق کېدل (د یو کار قابل جوړېدل).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي په پټه او خفیه توګه د تزکیه کولو په صورت کي دا شرط نه دي چي په مزکي کي به د ګواهۍ او شهادت اهلیت وي (یعني دا شرط نه دي چي هغه به آزاد او داسي نور وي)، په همدې وجه فقهاؤ د غلام مزکي کېدل جائز ګرځولي دي یعني غلام هم مزکي جوړېدای سي، لیکن په علانیه او ښکاره توګه د تزکیه کولو په صورت کي په مزکي کي د شهادت اهلیت شرط دی او د امام خصاف رَحِمَهُ الله د قول مطابق په علانیه تزکیه کي دوه والي هم بالاتفاق شرط دی (چي مزکیان به دوه وي)؛ دلیل دا دی چي علانیه تزکیه کول د قاضي د مجلس سره خاص دي (یعني علانیه تزکیه او تعدیل صرف د قاضي په مجلس کي کیږي، لکه مخکي چي ذکر سوه)؛ او د قاضي د مجلس سره خاص کېدل د دې خبري دلیل دی چي علانیه تزکیه د ګواهۍ (شهادت) په معنیٰ سره ده، او کله چي هغه د ګواهۍ په معنیٰ سره ده نو ښکاره خبره ده چي په علانیه تزکیه کي به هغه شیان هم شرط وي کوم چي په ګواهۍ کي شرط دي، او په ګواهۍ کي آزادوالی (حُرّیت)، عدالت او عدد شرط دي، لهذا په علانیه تزکیه به هم دا شیان شرط وي.

قالوا إلخ: څه مخکي ذکر سوه چي امام محمد رَحِمَهُ الله د عدد په حق کي تزکیه پر ګواهۍ قیاس کړې ده او هغه فرمایي چي تزکیه د ګواهۍ په معنیٰ سره ده، نو ځکه مشایخو ویلي دي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز په زنا کي د ګواهانو د تزکیه کونکو خلکو څلور والی شرط دی، یعني څرنګه چي د زنا د ثابتولو لپاره څلور ګواهان ضروري دي، همداسي به د هغو د تزکیه کولو لپاره هم څلور مزکیان ضروري وي.



# فَصْلٌ

**تشریح**: د ګواهۍ د مراتبو او اقسامو له بیان څخه وروسته اوس په دې فصل کې مصنف رَحِمَهُ الله د هغه شیانو اقسام بیانوي چې ګواه په خپله ذمه د هغوی ګواهي واخلي یعني د هغوی ګواه جوړ سي.

## ګواه جوړېدل او ګواه جوړول (حکم او تفصیل)

وَمَا يَتَحَمَّلُهُ الشَّاهِدُ عَلَى ضَرْبَيْنِ او ګواه چې د کوم څه ګواهي [په خپله ذمه] اخلي هغه پر دوه قسمه دي أَحَدُهُمَا مَا يَثْبُتُ حُكْمُهُ بِنَفْسِهِ یو قسم هغه دی چې حکم یې بذات خود [په خپله] ثابتیږي مِثْلُ الْبَيْعِ وَالْإِقْرَارِ وَالْغَصْبِ وَالْقَتْلِ وَحُكْمِ الْحَاكِمِ لکه بیع، اقرار، غصب، قتل او د حاکم فیصله فَإِذَا سَمِعَ ذَلِكَ الشَّاهِدُ أَوْ رَآهُ نو کله چې ګواه هغه [یعني په دې شیانو او معاملو کې یو معامله] واوري یا یې وویني وَسِعَهُ أَنْ يَشْهَدَ بِهِ نو د ده لپاره جائز دي چې [د هغه په باره کې] ګواهي ورکړي وَإِنْ لَمْ يُشْهَدْ عَلَيْهِ که څه هم دئ پر هغه [معامله] ګواه جوړ نه کړل سي [یعني که څه هم بل څوک دئ پر هغه معامله ګواه جوړ نه کړي] لِأَنَّهُ عَلِمَ مَا هُوَ الْمُوجِبُ بِنَفْسِهِ ځکه چې دا ګواه [داورېدلو او لېدلو په وجه] په هغه شي خبر سو کوم چې بذات خود مُوجب [سبب] دي وَهُوَ الرُّكْنُ فِي إِطْلَاقِ الْأَدَاءِ او همدا علم [خبرېدل] د ګواهۍ د اداء کولو د جواز رکن دی قَالَ اللهُ تَعَالَى: ﴿إِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ الله تعالیٰ فرمایلي دي: [او کفار چې له الله تعالیٰ څخه بغیر د کومو شیانو او د کومو کسانو عبادت کوي هغوی هیڅ د شفاعت اختیار نه لري] ما سوا له هغه کسانو کوم چې په حق سره ګواهي ورکړې وي په داسې حال کې چې دوی خبر او یقین کونکي وي او وي [په هغه څه د کوم څه په باره کې چې یې ګواهي ورکړې وي] وَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «إِذَا عَلِمْتَ مِثْلَ الشَّمْسِ فَاشْهَدْ وَإِلَّا فَدَعْ» او نبي ﷺ فرمایلي دي. "کله چې [ته] خبره [د لمر په شان تا ته معلومه سي] یا ترجمه دا چې: کله ته د لمر په شان په هغه خبر سې! انو بیا ګواهي و[رکړه]! کنه هغه پرېږده!".

**اللغات**: ﴿یتحمله﴾ د تفعل د باب مضارع ده: اخیستل، پورته کول. تحمل الشهادة: ګواه جوړېدل. د ګواهۍ ذمه واري اخیستل. ﴿وسعه﴾ د سمع د باب ماضي صیغه ده. وَسِعَ يَسَعُ

سَعَةً: پراخېدل، نه تنګېدل، ګنجايش کېدل. مراد ځني جائز کېدل دي، ځکه د يو کار د جائز کېدلو مطلب همدا دی چې په هغه کي تنګي نه کېدل بلکي پراخي او ګنجايش پېښېدل راتلل (معجم وسيط).

﴿موجب﴾ دافعال د باب فاعل دی: ثابتونکی، سبب. (أحسن الهدايه)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې يو سړی (ګواه) چې د کومو شيانو ګواه جوړېدای سي، هغه پر دوه قسمه دي: ① يو هغه شيان چې د هغوی حکم بذات خود (په خپله) ثابتيږي يعني په هغوی کي دې ته ضرورت نسته چې ګواه جوړ کړل سي بلکي کله چې هم يو سړی هغه ووينې نو هغه سړی خپله (خودبخوده) ګواه جوړيږي او بيا ذ هغه لپاره ګواهي اداء کول جائز دي (دې ته ضرورت نسته چې بل څوک هغه ددې ګواه جوړيږي)، لکه بيع، اقرار، غصب، قتل، د حاکم او قاضي فيصله. نو که يو سړی د بيع يا اقرار يا غصب معامله په خپله ووينې يا د حاکم فيصله واوري نو دا سړی په خپله (خودبخوده) د هغه معاملې ګواه جوړيږي او د ده لپاره ګواهي اداء کول جائز دي، که څه هم بل څوک دئ ګواه جوړ نه کړي؛ دليل دا دی چې د داسي معاملې په ليدلو يا اورېدلو سره دغه سړي (ګواه) ته د هغه شي علم او خبر حاصل سو کوم چې بذات خود (د ګواهي اداء کولو) موجب او سبب دی، نو ځکه د هغه لپاره ګواهي اداء کول جائز دي. په بله وينا دا چې په داسي معاملو او شيانو کي د ګواه جوړېدلو او د ګواهي ورکولو لپاره د علم او خبر ضرورت سته چې ګواه به په هغه خبر وي، او په ليدلو او اورېدلو سره علم او خبر حاصليږي يعني کله چې انسان ليدل کېدونکی (مبصر) شی ووينې يا اورېدل کېدونکی (مسموع) شی واوري نو ده ته سمدستي د هغه شي په باره کي علم او خبر حاصليږي، او همدا علم او خبر د شهادت اداء کولو رکن (شرط) دي، لکه څرنګه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي ﴿إِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ [الزخرف: ۸۶]، يعني کوم کسان چې په حق خبر وي او د حق ګواهي يې ورکړې وي. له دې آيت څخه معلومه سوه چې د ګواهي لپاره علم (خبرېدل) ضروري دي، او همدارنګه په حديث کي ذکر سوي دي "إِذَا عَلِمْتَ مِثْلَ الشَّمْسِ فَاشْهَدْ وَإِلَّا فَدَعْ"، يعني کله چې د لمر په شان د يو معاملې خبر تا ته څرګند او ښکاره سي نو بيا ګواهي ورکړه!، کنې خاموش اوسه!. لنډه دا چې له دې آيت او حديث څخه معلومه سوه چې د ګواهي لپاره دا ضروري ده چې انسان به په هغه شي خبر وي د کوم شي په باره کي چې ګواهي ورکوي، او څرنګه چې انسان په ليدلو او اورېدلو سره په هغه خبريږي، نو ځکه د ليدلو او اورېدلو په صورت کي به هغه د بل چا له ګواه جوړولو څخه بغير په خپله (خودبخوده) ګواه جوړيږي او د هغه لپاره به ګواهي اداء کول صحيح او جائز وي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَيَقُولُ: أَشْهَدُ أَنَّهُ بَاعَ وَلَا يَقُولُ: أَشْهَدَنِي فرمايي: او ګواه به داسي وايي: زه ګواهي ورکوم چي هغه خرڅ کړي او داسي به نه وايي: چي هغه زه ګواه جوړ کړم لِأَنَّهُ كَذِبٌ ځکه چي دا دروغ دي وَلَوْ سَمِعَ مِنْ وَرَاءِ الْحِجَابِ او که هغه د پردې تر شا [يو معامله] واوري لَا يَجُوزُ لَهُ أَنْ يَشْهَدَ نو د هغه لپاره دا جائز نه دي چي ګواهي ورکړي وَلَوْ فَسَّرَهُ لِلْقَاضِيْ او که [بيا هم] هغه قاضي ته [د معلمې] تشريح وکړي لَا يَقْبَلُهُ نو قاضي به د هغه ګواهي نه قبلوي لِأَنَّ النَّغْمَةَ تُشْبِهُ النَّغْمَةَ ځکه چي يو آواز د بل آواز سره مشابه وي [يعني آوازونه يو بل ته سره ورته دي] فَلَمْ يَحْصُلِ الْعِلْمُ نو ځکه علم [خبر] به حاصل نه سي إِلَّا إِذَا كَانَ دَخَلَ الْبَيْتَ وَعَلِمَ أَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ أَحَدٌ سِوَاهُ مګر دا چي ګواه يو خوني [کمرې] ته داخل سي او ده ته معلومه سي چي په خونه کي له هغه [مدعیٰ عليه] شخصه بغير بل څوک نسته ثُمَّ جَلَسَ عَلَى الْبَابِ بيا ګواه د دروازې سره کښېني وَلَيْسَ فِي الْبَيْتِ مَسْلَكٌ غَيْرُهُ او په دې خونه کي له هغه دروازې شخصه بغير بله لاره نه وي فَسَمِعَ إِقْرَارَ الدَّاخِلِ وَلَا يَرَاهُ بيا دا ګواه په خونه کي د موجود سړي اقرار واوري لَهُ أَنْ يَشْهَدَ نو [په دې صورت کي] د ده لپاره دا جائز دي چي ګواهي ورکړي لِأَنَّهُ حَصَلَ الْعِلْمُ فِي هٰذِهِ الصُّوْرَةِ ځکه چي په دې صورت کي [هغه ته] خبر حاصل سو.

**اللغات**: ﴿أشهدني﴾ د افعال د باب ماضي معلومه ده: ګواه جوړول، ګواه ټاکل، نو د "أشهدني" معنی ده: زه هغه ګواه جوړ کړی یم، ﴿حجاب﴾ پرده، هره هغه شی کوم چي د دوو کسانو (دوو جسمونو) تر مینځ پرده او حائل وي (مصباح منير)، ﴿فسّر﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: وضاحت او تشريح کول، ﴿نغمة﴾ آواز، ﴿مسلك﴾ لاره، د تېرېدلو ځای.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کله يو سړي ته په ليدلو يا اورېدلو سره د يو شي علم او خبر حاصل سي مثلاً يو سړی دوه خلک پر بيع کولو سره ووېني، يا يو سړی بل سړی پر قتل ووېني، يا يو سړی د بل چا اقرار واوري، او بيا له دغه ليدونکي او اورېدونکي سړي شخه د ګواهۍ مطالبه وسي، نو دا سړی (ګواه) به داسي وايي چي "زه ګواهي ورکوم چي فلانکي سړي بيع وکړه، يا فلانکي سړي فلانی قتل کړی، يا فلانکي سړي د فلاني شي اقرار وکړی"، او داسي به نه وايي چي "زه هغه ګواه

جوړ کړم"، ځکه چې دا بالکل دروغ دي، ځکه ښکاره خبره ده چې هغه هیڅ ګواه نه دی جوړ کړی بلکې د معاملې په لیدلو او اورېدلو سره هغه خپله ګواه جوړ سوی دی.

ولوسمع إلخ: فرمایي که یو څوک د پردې تر شا یو خبره واوري، مثلاً یو سړی د پردې یوه خوا ته ولاړ وي او د پردې بلې خوا ته د دوو خلکو د بیع خبري واوري، یعني یو سړی ووایي چې "دا شی زه په دومره خرڅوم" او بل سړی ووایي چې "زما قبول دی، رایې کړه!"، نو د اورېدونکي سړي (ګواه) لپاره جائز نه دي چې پر یو خاص سړي د بائع یا مشتري کېدلو ګواهي ورکړي، او که هغه د قاضي مخته د دې خبري تشریح او وضاحت وکړي چې ما د پردې تر شا د فلانکي او فلانکي د بیع معامله واورېده، نو قاضي به د هغه ګواهي نه قبلوي، ځکه چې د یوه سړي آواز د بل سړي د آواز سره مشابه وي او د پردې تر شا اورېدل سوی آواز نور هم مشتبه وي، او په مشتبه شي سره علم او خبر نه حاصلېږي، حال دا چې د ګواهۍ لپاره علم او خبر شرط دی، نو ځکه د پردې تر شا پر اورېدل سوې خبره ګواهي ورکول جائز نه دي.

إلا إذا كان دخل البيت إلخ: لېکن که یو سړی یوې خوني ته داخل سي او هغه ته معلومه سي چې په خونه کې له خالد څخه بغیر بل هیڅوک نسته، بیا هغه سړی د خوني مخته کېښیني او دا خونه بله دروازه هم نه لري، بیا هغه سړي په خونه کې د موجود سړي یعني د خالد خبره او اقرار واوري، نو په دې صورت کې که څه هم هغه سړي خالد (مقر) نه دی لیدلی یعني خالد یې پر اقرار کولو نه دی لیدلی، لېکن بیا هم د هغه لپاره پر اورېدل سوې خبره ګواهي ورکول جائز دي؛ ځکه کله چې په خونه کې له خالد (مقر) څخه بغیر بل هیڅوک نسته، نو ښکاره خبره ده چې په دې صورت کې به اورېدل سوې خبره صرف د خالد وي او د خبري په اورېدلو سره به هغه ناست سړي ته علم حاصل سي، او همدا علم (خبر) د ګواهۍ اداء کولو لپاره شرط دی، نو ځکه د دې شرط د موجودېدلو په وجه به د هغه سړي لپاره ګواهي ورکول جائز وي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَمِنْهُ مَا لَا يَثْبُتُ الْحُكْمُ فِيهِ بِنَفْسِهِ او له هغه [تحمّل شهادت] څخه دویم قسم هغه دی چې حکم یې بذات خود نه ثابتېږي مِثْلُ الشَّهَادَةِ عَلَى الشَّهَادَةِ لکه پر ګواهۍ د پاسه ګواهي ورکول فَإِذَا سَمِعَ شَاهِدًا يَشْهَدُ بِشَيْءٍ نو کله چې یو څوک واوري چې ګواه د یو شي ګواهي ورکوي لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَشْهَدَ عَلَى شَهَادَتِهِ إِلَّا أَنْ يُشْهِدَ عَلَيْهَا نو د ده [اورېدونکي] لپاره دا جائز نه دي چې د هغه [اصل ګواه] پر

ګواهي، ګواهي ورکړي مګر دا چې هغه پر خپله ګواهي دئ ګواه جوړ کړي لِأَنَّ الشَّهَادَةَ غَيْرُ مُوجِبَةٍ بِنَفْسِهَا ځکه چې ګواهي بذات خود واجبونکې [ثابتونکې] نه ده وَإِنَّمَا تَصِيْرُ مُوجِبَةً بِالنَّقْلِ إِلَى مَجْلِسِ الْقَضَاءِ بلکي هغه د قاضي د مجلس وطرف ته په منتقل کولو سره واجبونکې ګرځي فَلَا بُدَّ مِنَ الْإِنَابَةِ وَالتَّحْمِيْلِ نو ځکه دا ضروري ده چې [اصل ګواه] هغه خپل نائب جوړ کړي او پر هغه د ګواهۍ بوج کښېږدي وَلَمْ يُوجَدْ او [دلته] نائب جوړول موجود نه سو [يعني اصل ګواه هغه خپل نائب او ګواه جوړ نه کړی] وَكَذَا لَوْ سَمِعَهُ يُشْهِدُ الشَّاهِدَ عَلَى شَهَادَتِهِ او همدارنګه که يو څوک واوري چې اصل ګواه پر خپله ګواهي بل شاهد ګواه جوړوي لَمْ يَسَعْ لِلسَّامِعِ أَنْ يَشْهَدَ نو د اورېدکونکي لپاره جائز نه دي چې ګواهي ورکړي لِأَنَّهُ مَا حَمَّلَهُ وَإِنَّمَا حَمَّلَ غَيْرَهُ ځکه چې اصل ګواه پر هغه [اورېدونکي] د ګواهۍ بوج نه دی اېښی بلکي پر بل چا يې اېښی دی. [يعني هغه بل څوک ګواه جوړ کړی دی. نه سامع].

**اللغات**: ﴿مُوجبة﴾ د افعال د باب مؤنث فاعل دی: واجبونکې، ثابتونکې، سبب، ﴿إنابة﴾ د افعال د باب مصدر دی: نائب جوړول، قائم مقام جوړول، ﴿الشاهد﴾ ګواه، ګواهي ورکونکی، ﴿تحميل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: بوج او بار پر اچول، د يو چا په غاړه او ذمه يو کار ور کول.

**تشريح**: په دې عبارت کې د "تحمل شهادت" دويم قسم بيان سوی دی يعني هغه څه چې د هغه حکم بذات خود (په خپله) نه ثابتيږي بلکي په هغه کي د ګواه جوړولو ته ضرورت سته، لکه شهادة على الشهادة يعني د بل چا پر ګواهي د پاسه ګواهي ورکول. نو که زيد وغواړي چې د بل چا مثلاً د خالد پر ګواهي، ګواهي ورکړي، نو تر څوچې اصل ګواه يعني خالد هغه (زيد) خپل ګواه او نائب جوړ نه کړي او هغه ته د ګواهۍ حق نه وسپاري، تر هغه وخته د زيد لپاره د اصل ګواه پر ګواهي خپله ګواهي ورکول جائز نه دي؛ د دې تفصيلي مثال دا دی که خالد مثلاً په يو دوکان کي حامد او عمر د بيع پر معامله سره وليدل چې دوی بيع او سودا سره وکړه او پر عمر د حامد پنځه سوه روپۍ قرض پاته سو (يعني خالد دا هم واورېدل او ويې ليدل چې په دې بيع کي پر عُمر د حامد پنځه سوه قرض باندي سو)، بيا اصل ګواه يعني خالد خپل دغه ګواهي يو ځای بيان کړه او زيد هغه واورېده. نو اوس د زيد لپاره دا جائز نه دي چې پر عمر د حامد د پنځه سوه قرض ګواهي ورکړي؛ ځکه چې دلته زيد فقط اورېدونکی (سامع) دی، ګواه او ليدونکی نه دی. بلکي ګواه او ليدونکی خو په اصل کي خالد دی. لهذا تر څو

چي خالد اورېدونکی کس يعني زيد خپل نائب جوړ نه کړي او هغه ته خپل د ګواهۍ حق نه وسپاري، تر هغه وخته به زيد ته د خالد پر ګواهۍ، ګواهي ورکول جائز نه وي.

دليل څه مشکل دی خو آسانه حاصل يې دا دی چي ګواهي بذات خود حکم نه واجبوي، يعني محض د خالد يا زيد په ګواه کېدلو سره پر عمر (مدعی عليه) قرض نه واجبيږي بلکي ګواهي هغه وخت (پر عمر) حکم واجبوي کله چي ګواه د قاضي مجلس ته ولاړ سي او هلته خپله ګواهي منتقل کړي يعني هلته د قاضي مخته خپله ګواهي ذکر او پېش کړي، او د قاضي مجلس ته تلل او هلته ګواهي پېشول د اصل ګواه حق دي، نه د فرع (يعني اول به اصل ګواه يعني خالد ګواهي ورکوي بيا به زيد د هغه په رضا سره د هغه پر ګواهي خپله ګواهي ورکوي. ځکه چي فقط اصل ګواه هغه معامله ليدلې ده)، اوس که د اصل ګواه د ګواهۍ اورېدونکی کس (يعني زيد) مخکي ګواهي ورکړي نو د اصل ګواه دا حق به ختم سي او هغه به محرومه سي، نو ځکه وويل سوه چي تر څو اصل ګواه (خالد) خپل حق و اورېدونکي ګواه (زيد) ته په خپله رضا سره نه وسپاري يعني تر څو چي هغه خپل ګواه او نائب جوړ نه کړي، تر هغه وخته د اورېدونکي ګواه (زيد) لپاره ګواهي ورکول جائز نه دي، او څرنګه چي په پورتنۍ مسئله کي د اصل ګواه (خالد) له طرفه د هغه (زيد) نائب جوړول موجود نه سوه، نو ځکه هغه ته به د اصل ګواه پر ګواهي، ګواهي ورکول هم جائز نه وي. (أثمار الهدايه ج:۹، ص: ۲۶۰)

وكذا لو سمعه إلخ: د دې حاصل دا دی که اصل ګواه يعني خالد بل څوک مثلاً سلمان پر خپله ګواهي ګواه جوړ کړي چي ته زما نائب يې او زما پر ګواهي ته هم ګواهي ورکړه، او په دې وخت کي بل څوک مثلاً عمران د دوی خبري واوري چي خالد عمران خپل ګواه جوړ کړی، نو په دې صورت کي هم اورېدونکي کس يعني عمران ته دا اختيا نسته چي د اصل ګواه (خالد) پر ګواهي خپله ګواهي ورکړي؛ ځکه چي اصل ګواه د خپل ګواهۍ بوج پر اورېدونکي (عمران) نه دی ايښی بلکي پر بل چا يعني پر سلمان يې ايښی دی يعني خالد فقط سلمان ته د ګواهۍ حق ورسپارلی دی، نه اورېدونکي عمران ته؛ نو ځکه د عمران لپاره ګواهي ورکول او د دوی په مينځ کي ورلوېدل بالکل صحيح نه دي، ها! سلمان ښه شکه ګواهي ورکولای سي؛ ځکه چي هغه اصل ګواه خپل نائب جوړ کړی دی.

## له خط څخه ګواهي ورکول (حکم او تفصيل)

| |
|---|
| قَالَ: وَلَا يَحِلُّ لِلشَّاهِدِ إِذَا رَأَى خَطَّهُ أَنْ يَشْهَدَ او د ګواه لپاره دا روا نه دي چي کله خپل خط ويني نو اله يادابنت څخه بغير] ګواهي ورکړي إِلَّا أَنْ يَتَذَكَّرَ الشَّهَادَةَ مګر دا چي ګواهي يې په ياد سي لِأَنَّ الْخَطَّ يُشْبِهُ الْخَطَّ ځکه چي يو خط د بل خط سره مشابه وي فَلَمْ يَحْصُلِ الْعِلْمُ نو ځکه [هغه ته] به |

خبر حاصل نه سي قِيْلَ: هٰذَا عَلٰى قَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ ويل سوي دي [يعني دويم قول دا دی]: چي دا [حکم] دامام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول دی وَعِنْدَهُمَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَشْهَدَ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د هغه لپاره ګواهي ورکول روا دي وَقِيْلَ: هٰذَا بِالْاِتِّفَاقِ او ويل سوي دي [يعني بل قول دا دی]: چي دا په اتفاق سره [ناروا] دي وَإِنَّمَا الْخِلَافُ فِيْمَا إِذَا وَجَدَ الْقَاضِيْ شَهَادَتَهُ فِيْ دِيْوَانِهِ أَوْ قَضِيَّتِهِ او اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي قاضي د يو چا ګواهي په خپل دفتر [ريجسټر] يا فيصله نامه کي ووينې لِأَنَّ مَا يَكُوْنُ فِيْ قِمَطْرِهِ ځکه کوم څه چي د قاضي په فايل [دوسيه] کي وي فَهُوَ تَحْتَ خَتْمِهِ يُؤْمَنُ عَلَيْهِ مِنَ الزِّيَادَةِ وَالنُّقْصَانِ نو هغه د قاضي تر مهر لاندې وي او هغه له کمي و بيشي څخه محفوظ وي فَحَصَلَ لَهُ الْعِلْمُ بِذٰلِكَ نو ځکه په هغه سره به و قاضي ته خبر حاصل سي وَلَا كَذٰلِكَ الشَّهَادَةُ فِي الصَّكِّ او په دستاويز [ثبوتي خط] کي ليکل سوې ګواهي داسي نه وي لِأَنَّهُ فِيْ يَدِ غَيْرِهِ ځکه چي هغه د بل چا په لاس [قبضه] کي وي وَعَلٰى هٰذَا إِذَا تَذَكَّرَ الْمَجْلِسَ الَّذِيْ كَانَ فِيْهِ الشَّهَادَةُ او پر همدغه اختلاف دي کله چي [ګواه ته] هغه مجلس په ياد سي په کوم کي چي ګواهي وي [يعني په کوم مجلس کي چي هغه ګواهي ورکړې وي] أَوْ أَخْبَرَهُ قَوْمٌ مِمَّنْ يَثِقُ بِهِ أَنَّا شَهِدْنَا نَحْنُ وَأَنْتَ يا يو (داسي) جماعت (چي پر هغه د ده اعتماد وي) ده ته دا خبر ورکړي چي موږ او تا [په ګډه] ګواهي ورکړې وه.

**اللغات**: ﴿يتذكّر﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: يادېدل (په ياد کېدل)، ياد راتلل. ﴿ديوان﴾ دفتر، ريجسټر، د قاضي هغه کتابچه چي په هغه کي د خلګو دعوې او د قاضي فيصلې ليکلې وي، ﴿قضيّة﴾ د قاضي فيصله، هغه لانجمنه مسئله او معامله کوم چي قاضي ته د فيصلې لپاره پېش کړی سي، د هدايې اردو شارحينو په ترجمه کي د دې لفظ معنیٰ په "فيصله نامه" سره کړې ده لېکن په تشريح کي يې د دې معنیٰ په "فيصله" سره کړې ده (مطلب دا چي هغو په يوه عبارت کي د يوه لفظ دوې معناوي کړي دي کوم چي صحيح نه ښکاري)، او لغتپوهانو هم د "فيصله نامه" معنیٰ ته هيڅ اشاره نه ده کړي، نور په حقيقت الله خبر دی. ﴿قِمَطْر﴾ (بکسر القاف وفتح الميم وسکون الطاء): هغه څه چي خطونه او کتابونه پکښي ساتل کيږي، هغه خلته او بسته چي پاڼې او ورقې پکښي ساتل کيږي چي هغه

ته دوسیه (دوتنه) او فایل وایي (مصباح منیر، معجم لغة الفقهاء). ﴿الصك﴾ (د صاد په فتحه سره): د دې لفظ دوې معناوي دي: ① د مال اقرارنامه چي هغه ته عموماً چک ویل کیږي، د مال رسید. ② هغه خط کوم چي د یو معاملې د ثبوت لپاره لیکل سوی وي چي هغه ته دستاویز (لاسوند) او سند وايي، دلته دویمه معنیٰ مراد ده. ﴿یثق﴾ د ضرب د باب مضارع ده: اعتماد او باور کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی د یو معاملې په باره کي ګواهي ورکړي او بیا دا سړی هغه ګواهي په یو ورقه (یا کتابچه) کي ولیکي او ورقه د ځان سره محفوظ کړي، لېکن د کومي معاملې او واقعې په باره کي چي ده ګواهي ورکړې وي د هغه نوم او تفصیل نه ولیکي؛ بیا څه مودت وروسته هغه ګواهي ته ضرورت پېښ سي او دئ خپل په ورقه کي هغه ګواهي لیکل سوې وویني لېکن ده ته هغه معامله او واقعه په یاد نه وي د کوم په باره کي چي یې ګواهي ورکړې وي او نه یې ګواهي ورکول په یاد وي (چي آیا ما د قاضي په دربار کي دا ګواهي ورکړه، که مي هسي ولیکل)، نو آیا په دې صورت کي د ده لپاره دا جائز دي چي خط ته په کتلو سره ګواهي ورکړي (یعني محض له هغه خط څخه ګواهي ورکړي) او که جائز نه دي، په دې سلسله کي درې قولونه دي: ① اول قول د امام قدوري رَحِمَهُ الله دی، هغه فرمايي چي جائز نه دي، ② همدارنګه ځیني مشایخو د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله په اتفاق سره هغه ته ناجائز ویلي دي، یعني محض خط ته په کتلو سره د هغه لپاره ګواهي ورکول جائز نه دي.

د دې دواړو قولونو دلیل دا دی چي یو خط د بل خط سره مشابه وي، نو ځکه تر څو چي ده ته په یقیني توګه هغه معامله او واقعه په یاد نه سي، تر هغه وخته ده ته په یقیني توګه د هیڅ معاملې علم او خبر نه حاصلیږي، او له علم څخه بغیر ګواهي ورکول جائز نه دي (لکه مخکي چي ذکر سوه)، نو ځکه محض هغه خط ته په کتلو سره ګواهي ورکول جائز نه دي.

قيل هذا إلخ: ③... ځیني مشایخ (لکه فقیه ابو اللیث سمرقندي، شمس الائمه او داسي نور) فرمايي چي خط ته په کتلو سره ګواهي ورکول فقط د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز جائز نه دي، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز داسي کول جائز دي (بنایه ج: ۸، ص: ۱۴۹). همدا درېیم قول دی چي په هغه کي د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمَا الله اختلاف ذکر سوی دی، کنې په اول او دویم قول کي بالاتفاق داسي کول ناجائز ګرځول سوي دي. او اختلاف فقط په هغه صورت کي ذکر سوی دی کله چي قاضي خپل په کتابچه (د فیصلو په ریجسټر) کي ګواهي ووینې لېکن د کومي معاملې په باره کي چي ګواهي لیکل سوې وي، هغه د نوم نه لیکلو په وجه قاضي ته په یاد نه سي، یا قاضي ته دا په یاد نه سي چي آیا ما د دې ګواهی په باره کي یو فیصله کړې وه، که نه، نو په دې دواړو صورتونو کي د امام

صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي تر څو د معاملې او ګواهۍ پوره تحقيق نه وسي، تر هغه وخته به قاضي محض د ليکل سوي ګواهۍ پر بنياد هيڅ فيصله نه کوي، ځکه چي يو خط د بل خط سره مشابه وي، لهذا د معاملې او واقعې د نه يادېدلو په صورت کي به معامله مشتبه پاته وي، نو ځکه د هغه په باره کي به فيصله کول جائز نه وي. (احسن الهدايه)

د دې په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورتونو کي د قاضي لپاره فيصله کول جائز دي؛ ځکه کله چي د قاضي په کتابچه (او ريجسټر) کي د ګواهۍ په باره کي خط ليکل سوی دی او پر هغه د قاضي مهر لګول سوی دی، نو دا ګواهي له کمۍ و بيشۍ څخه محفوظ ده او د هغې په صحيح کېدلو کي شبهه نسته. راجح قول هم د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دی. (القول الراجح ج: ۲، ص: ۱۳۳)

پاته سو دا سوال چي قاضي ته خو د دې ګواهۍ واقعه او معامله په ياد نه ده، نو د دې جواب دا دی چي پر قاضي هر وخت ګڼه ګوڼه وي او د هري واقعې ياد ساتل د هغه لپاره مشکل وي، نو ځکه که له قاضي څخه يو واقعه او معامله هېره سي لېکن د هغې ګواهي د ده سره ليکل سوې موجوده وي او بيا مدعي د خپل حق دعوی وکړي نو د قاضي لپاره د هغه ګواهۍ مطابق د فيصله کولو ګنجايش او اجازت سته؛ ځکه کله چي مذکوره ګواهي د قاضي سره موجوده وي نو د هغه په ذريعه به قاضي ته تر ډيره حده پوري د هغه ګواهۍ واقعه او معامله هم په ياد ورسي، نو ځکه د قاضي لپاره فيصله کول جائز دي. (عنايه، بنايه)

ولا كذالك إلخ: فرمايي که ګواه په يو سند (ثبوتي خط) کي خپله ګواهي ووېني او ده ته دا يقين هم سي چي همدا زما خط دی، نو تر څو چي د ګواهۍ سره متعلق واقعه او معامله ده ته په ياد نه سي، تر هغه وخته د ده لپاره محض خط ته په کتلو سره ګواهي ورکول جائز نه دي؛ ځکه چي سند (ثبوتي) خط د بل چا سره موجود وي او له کمۍ و زياتوب څخه محفوظ نه وي، نو ځکه په سند (ثبوتي خط) کي په ليکل سوې ګواهي سره به يقيني علم (خبر) حاصل نه سي، او له علم څخه بغير ګواهي ورکول جائز نه دي، نو ځکه په دې صورت کي ګواه ته د ګواهۍ ورکولو اجازت نه دی ورکول سوی.

وعلى هذا إلخ: فرمايي که ګواه ته دا خبره په ياد وي چي ما په فلانکي مجلس کي ګواهي ورکړې وه لېکن دا يې په ياد نه وي چي د کوم شي او معاملې په باره کي مي ګواهي ورکړې وه يا معتمده خلګ هغه ته خبر ورکړي چي وروره! موږ او تا په ګډه ګواهي ورکړې وه. لېکن د ګواهۍ سره متعلق معامله او واقعه يې په ياد نه وي، نو په دې صورت کي هم امام د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز ګواهي ورکول جائز نه دي لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز دي، دا د فقيه ابو الليث سمرقندي او داسي نورو رايه ده (کوم چي درېيم قول دی)، او د ځيني مشايخو رايه دا ده چي په دې صورت کي بالاتفاق ګواهي ورکول جائز نه دي.

## له مشاهده (ليدلو) څخه بغير د کومو شيانو ګواهي ورکول جائز دي؟

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ لِلشَّاهِدِ أَنْ يَشْهَدَ بِشَيْءٍ لَمْ يُعَايِنْهُ فرمايي: او د ګواه لپاره جائز نه دي چې د داسې شي په باره کې ګواهي ورکړي کوم چې يې مشاهده کړې [ليدلې] نه وي إِلَّا النَّسَبَ وَالْمَوْتَ وَالنِّكَاحَ وَالدُّخُولَ وَوِلَايَةَ الْقَاضِي ما سوا له نسب، مرګ، نکاح، دخول او د قاضي له ولايته فَإِنَّهُ يَسَعُهُ أَنْ يَشْهَدَ بِهٰذِهِ الْأَشْيَاءِ نو د ده لپاره د دې شيانو ګواهي ورکول جائز دي إِذَا أَخْبَرَهُ بِهَا مَنْ يَثِقُ بِهِ [په دې شرط] کله چې ده ته داسې سړي خبر ورکړی وي چې پر هغه د ده اعتماد [باور] وي [يعني معتمد او معتبر سړي خبر ورکړی وي] وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا تَجُوزَ او قياس دا دی چې جائز نه وي لِأَنَّ الشَّهَادَةَ مُشْتَقَّةٌ مِنَ الْمُشَاهَدَةِ ځکه چې شهادة [ګواهي] له مشاهدې [ليدنې] څخه مشتق ده وَذٰلِكَ بِالْعِلْمِ او مشاهده په علم [خبرېدلو] سره حاصلېږي وَلَمْ يَحْصُلْ او هغه [ده ته] حاصل نه سو فَصَارَ كَالْبَيْعِ نو دا د بيع په څېر سوه وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ هٰذِهِ أُمُورٌ تَخْتَصُّ بِمُعَايَنَةِ أَسْبَابِهَا خَوَاصُّ مِنَ النَّاسِ او د استحسان دليل دا دی: چې دا يو داسې اُمور دي چې د هغوی د اسبابو په مشاهده [ليدلو] سره خاص خاص خلک مختص دي [يعني دا شيان فقط هغه کسان ليدلای او په خبرېدلای سي کوم چې د دې شيانو سره خاص دي. مثلاً دُخول کول خاص ښځه او خاوند ليدلای او په خبرېدلای سي] وَيَتَعَلَّقُ بِهَا أَحْكَامٌ تَبْقَى عَلَى انْقِضَاءِ الْقُرُونِ او د دغو اُمورو سره داسې احکام متعلق دي کوم چې له ډېر مودت تېرېدلو باوجود هم باقي پاتېږي فَلَوْ لَمْ يُقْبَلْ فِيهَا الشَّهَادَةُ بِالتَّسَامُعِ لهذا که په دغو اُمورو کې [د خلکو له خولې څخه] د خبر پر اورېدلو ګواهي قبوله نه کړل سي أَدّٰى إِلَى الْحَرَجِ وَتَعْطِيلِ الْأَحْكَامِ نو دا به د حرج او د احکامو [او حقوقو] د معطل کېدلو [او ضايع کېدلو] سبب جوړ سي بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع. لِأَنَّهُ يَسْمَعُهُ كُلُّ أَحَدٍ ځکه چې هغه هر کس اورېدای سي وَإِنَّمَا يَجُوزُ لِلشَّاهِدِ أَنْ يَشْهَدَ بِالِاشْتِهَارِ او د ګواه لپاره [د اورېدل سوي خبر] ګواهي ورکول پر اشتهار [مشهوره کېدلو] جائز دي وَذٰلِكَ بِالتَّوَاتُرِ او اشتهار په تواتر سره حاصلېږي [يعني چې ډېر خلک خبر ورکړي] أَوْ بِإِخْبَارِ مَنْ يَثِقُ بِهِ يا د يوه معتمد [باوري] سړي په خبر ورکولو سره [حاصلېږي] كَمَا قَالَ فِي الْكِتَابِ

لکه څرنګه چې یې په قدوري [متن] کې ویلي دي وَيُشْتَرَطُ أَنْ يُخْبِرَهُ رَجُلَانِ عَدْلَانِ أَوْ رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ او شرط دي چې ګواه ته به دوه عادله خلک یا یو سړی او دوې ښځې خبر ورکوي لِيَحْصُلَ لَهُ نَوْعُ عِلْمٍ د دې لپاره چې هغه ته یو ډول علم [خبر] حاصل سي وَقِيلَ: فِي الْمَوْتِ يَكْتَفِي بِإِخْبَارِ وَاحِدٍ أَوْ وَاحِدَةٍ او ویل سوي دي: چې د مرګ په خبر کې به د یوه سړي یا یوې ښځې پر خبر ورکولو اکتفاء کیږي لِأَنَّهُ قَلَّمَا يُشَاهِدُ حَالَهُ غَيْرُ الْوَاحِدِ ځکه چې له یوه سړي څخه بغیر ډېر کم د مړي د حالت مشاهده کوي إِذِ الْإِنْسَانُ يَهَابُهُ وَيَكْرَهُهُ ځکه چې انسان له مرګ څخه بیریږي او هغه نه خوښوي فَيَكُونُ فِي اشْتِرَاطِ الْعَدَدِ بَعْضُ الْحَرَجِ نو ځکه د عدد په شرط لګولو کې به څه حرج وي وَلَا كَذَلِكَ النَّسَبُ وَالنِّكَاحُ او نسب او نکاح داسې نه دي وَيَنْبَغِي أَنْ يُطْلِقَ أَدَاءَ الشَّهَادَةِ او مناسب دا ده چې [اورېدونکی ګواه] د ګواهۍ اداء کول مطلق وساتي أَمَّا إِذَا فَسَّرَ لِلْقَاضِي أَنَّهُ يَشْهَدُ بِالتَّسَامُعِ لېکن که هغه د قاضي مخته د دې وضاحت [تشریح] وکړي چې زه د اورېدلو پر بناء ګواهي ورکوم لَمْ يُقْبَلْ شَهَادَتَهُ نو قاضي به د هغه ګواهي نه قبلوي كَمَا أَنَّ مُعَايَنَةَ الْيَدِ فِي الْأَمْلَاكِ تُطْلِقُ الشَّهَادَةَ لکه څرنګه چې په ملکیتونو کې د قبضې مشاهده [لیدنه] د ګواهۍ اجازت ورکوي ثُمَّ إِذَا فَسَّرَ [لېکن] بیا چې کله ګواه وضاحت وکړي لَا يُقْبَلُ نو د هغه ګواهي نه قبلول کیږي كَذَا هَذَا همداسې دا [مسئله] هم ده.

**اللغات**: ﴿لم يعاينه﴾ د مفاعلې د باب جحد صیغه ده: په سترګو لیدل، مشاهده کول. ﴿يسعه﴾ د سمع د باب مضارع ده: ګنجایش کېدل، مراد ځني جائز کېدل. ﴿انقضاء﴾ د انفعال د باب مصدر ی: تېرېدل، ختمېدل. ﴿قرون﴾ جمع د قَرْنٌ ده: سدی، پېړی، مودت او زمانې ته هم ویل کیږي، دا لفظ نوري معناوې هم لري (مصباح منیر). ﴿الحَرَج﴾ تنګي، سختي، تکلیف. ﴿تسامع﴾ له عامو خلکو یو خبر اورېدل (د خلکو له خولې د یو شي خبر اورېدل). یو له بله د یو شي خبر اورېدل او یو بل ته نقل کول (معجم وسیط. معجم لغة الفقهاء). د اورېدل سوي خبر اعتبار کول. ﴿تعطيل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی. د صلې په بدلون سره یې معنیٰ بدلیږي: پرېښوول (پر احکامو عمل نه کول). معطل کول، ضایع کول

(معجم وسيط)، ﴿إخبار﴾ د افعال د باب مصدر دی: خبر ورکول، ﴿يهابه﴾ د فتح د باب مضارع ده: دلته د "بېرېدلو" معنیٰ ځني مراد ده، ﴿يكره﴾ د سمع د باب مضارع ده: ناخوښول، له يو شي بد وړل، ﴿فسر﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: وضاحت او تشريح کول، يو خبره سپينول او ښکاره کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي دانسان لپاره د داسي شي په باره کي ګواهي ورکول جائز نه دي کوم چي يې په خپلو سترګو ليدلی نه وي، لېکن پنځه شيان داسي دي چي د هغه په باره کي له مشاهدې (ليدني) ځخه بغير محض له معتمده خلکو ځخه د اورېدلو پر بناء ګواهي ورکول جائز دي: ① نسب، ② مرګ، ③ نکاح، ④ دخول (يعني په ښځي د سړي دخول کول)، ④ د قاضي ولايت. نو که يو ځوک د بل سړي په باره کي واوري چي هغه د فلانکي ځوی دی، نو د ده (اورېدونکي) لپاره جائز دي چي د هغه سړي لپاره ګواهي ورکړي چي دا د فلانکي ځوی دی. همدارنګه که يو ځوک واوري چي فلانکی سړی مړ سو، يا فلانکي سړي د فلانکي ښځي سره نکاح يا دخول وکړی، يا فلانکی عالم د فلاني ښار قاضي سو او هلته د ده حکم او فيصله چليږي، نو په دې ټولو صورتونو کي هم د اورېدونکي کس لپاره د دې مذکوره شيانو په هکله ګواهي ورکول جائز دي که څه هم هغه په دې کي يو شی ليدلی نه وي؛ ځکه چي مذکوره پنځه شيان داسي دي چي د هغو مشاهده او ليدنه خاص خلک کوي او عام خلک په هغه نه سي خبرېدای، حال دا چي د دې شيانو سره بعضي داسي احکام متعلق دي کوم چي له ډېر زيات مودت تېرېدلو باوجود هم باقي پاتيږي، مثلاً د نسب، مرګ او نکاح سره ميراث متعلق دي، همداسي د دخول سره کامل مهر او د نسب ثبوت متعلق دي. اوس ښکاره خبره ده که يو ځوک له ډېر مودت ځخه وروسته د خپل نسب او ميراث دعویٰ وکړي (چي زه د فلانکي سړي ځوی يم او زه د هغه په ميراث کي حصه لرم)، نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي به محض د خلکو له خولې ځخه د خبر پر اورېدلو اعتماد کولو ته ضرورت وي، کنې د سړي حقوق به ضايع سي، نو ځکه حقوق له ضياع ځخه د ساتلو لپاره محض د سماع (اورېدلو) پر بناء د دې شيانو ګواهي ورکول جائز دي. لېکن د سماع پر بناء د ګواهي ورکولو جواز فقط استحسان دی، او قياساً دا جائز نه دي؛ ځکه چي شهادت (ګواهي) له مشاهده ځخه مشتق ده، او مشاهده په علم او ليدلو سره حاصليږي، نه په اورېدلو او د بل چا له طرفه په خبرېدلو سره، نو ځکه د عقل او قياس له رويه دا جائز نه دي، مګر بيا هم استحساناً دا جائز ګرځول سوي دي، لېکن له دې ځخه بغير په نورو شيانو کي استحسان هم خاموشي اختيار کړې ده، مثلاً که يو ځوک په خپله د يو چا بيع (خرڅول او رانيول) نه ويني يا په خپله د بائع او مشتري خبري نه واوري، نو د بل چا په خبر او د بل چا په سماع سره د هغه لپاره د بيع ګواهي ورکول جائز نه دي.

وإنما يجوز إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دى، سوال دا دى چي په كومو ځينو شيانو كي چي تاسو استحساناً د سماع پر بناء ګواهي جائز ګرځولې ده، موږ دا نه تسليمو؛ ځكه چي دا د كتابُ الله او سنت مخالف دي؛ ځكه په قرآن كريم كي د ﴿إِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ په آيت سره او په حديث كي د "إِذَا عَلِمْتَ مِثْلَ الشَّمْسِ...إلخ" په حكم سره علم او خبر ضروري ګرځول سوى دى چي ګواه به په هغه څه عالم او خبر وي د كوم څه په باره كي چي ګواهي وركوي، او علم (خبر) له مشاهده او ليدني څخه بغير نه حاصليږي؛ نو ځكه محض د سماع (اوريدلو) او د بل چا له طرفه د خبريدلو پر بناء ګواهي جائز ګرځول صحيح نه دي.

د دې جواب دا دى چي څرنګه په مشاهده او ليدني سره علم حاصليږي همداسي په سماع او خبر سره هم علم حاصليږي. او كه يو خبر په تواتر سره مشهوره وي يعني له عامو خلكو څخه اوريدل سوى وي، يا د معتمدو خلكو په ذريعه نشر سوى وي، نو په هغه سره هم يقيني علم حاصليږي، او په مشاهده سره همدا علم حاصليږي، نو ځكه د مشاهدې په څېر به په سماع (اوريدلو) سره هم ګواهي وركول جائز او صحيح وي.

ويشترط أن يخبره إلخ: او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د دوو عادله خلكو يا د يوه عادل سړي او دوو ښځو خبر وركول ضروري دي، د دې لپاره چي اوريدونكي ته څه غوندي علم حاصل سي، ليكن امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز فقط حقيقي اشتهار معتبر دى يعني د اوريدونكي لپاره هغه وخت د اوريدلو پر بناء ګواهي وركول جائز دي كله چي هغه له عامو خلكو څخه خبر اوريدلي وي، او د هغه (امام صاحب رَحِمَهُ الله) په نيز له دوو عادله خلكو څخه اوريدل د ګواهي وركولو لپاره كافي نه دي.

وقيل إلخ: فرمايي د ځيني حضراتو رايه دا ده چي د يو چا د مرګ په باره كي د ګواهي وركولو لپاره د يوه عادل سړي يا د يوې عادله ښځي خبر هم كافي دى؛ ځكه چي له مرګ او مړي څخه انسان بيريږي او هغه ته حاضريدل نه خوښوي، نو ځكه د مرګ د حالت مشاهد كونكي كسان ډېر كم وي بلكي د هيبت او ناخوښي په وجه عموماً يو، دوه خلک د هغه مشاهده وكړي، نو ځكه په داسې صورت كي كه عدد شرط وګرځول سي يعني كه دا شرط ولګول سي چي دوه خلک به د مرګ خبر وركوي او هغه به هم عادلان وي يا يوه ښځه او دوه خلک به د هغه خبر وركوي، نو دا شرط به د حرج او سختى سبب وګرځي، او په شريعت كي حرج ليري كړى سوى دى، نو ځكه د مرګ د خبر وركولو لپاره يو عادل سړى يا يوه عادله ښځه هم كافي دي، د دې په خلاف د نسب، نكاح او د قاضي د ولايت مسئله ده، نو دا شيان د ډېرو كسانو (جماعت) مخته ثابتيږي؛ ځكه ښكاره خبره ده چي د نكاح تړلو (واده) په وخت

کې ډېر خلک موجود وي، همدارنګه دولادت په وخت کې هم عموماً څو ښځې موجوده وي، همداسې کله چې يو عالم ته د قضاء ولايت او منصب سپارل کيږي، په هغه وخت کې هم د مسلمانانو غټ جماعت موجود وي، نو ځکه د مرګ او باقي شيانو په مينځ کې د دې فرق په وجه به په مرګ کې عدد شرط وي او په باقي شيانو کې به شرط نه وي.

وينبغي إلخ: فرمايي د کومو شيانو په باره کې چې د اورېدلو پر بناء ګواهي ورکول جائز دي، په هغه کې ګواه ته پکار دي چې مطلق ګواهي ورکړي او دا به نه وايي چې زه د اورېدلو پر بناء ګواهي ورکوم، يعني فقط داسې به وايي چې "دا د فلانکي سړي ځوی دي، يا فلانکي سړي د فلانکې ښځې سره نکاح وکړه او زه د دې ګواه هم يم"، نو که هغه داسې مطلق ګواهي ورکړي نو د هغه ګواهي به قبلول کيږي؛ ځکه په دې صورت کې همدا ګومان کيږي چې د هغه په زړه کې د دې خبرې صداقت او رښتيا والي موجود دی، او کله چې د هغه په زړه کې د دې خبرې صداقت سته نو ګواکې هغه ته د دې خبرې علم او خبر سته، او تاسو ته معلومه ده چې د علم پر بنياد کومه ګواهي ورکول سي هغه معتبره وي او قبلول کيږي.

لېکن که هغه د ګواهۍ وجه هم بيان کړي يعنې داسې ووايي چې "دا د فلانکي سړي ځوی دی او دا خبره ما له فلانکې شخصه اورېدلې ده، نو ځکه زه ګواه يم"، نو په دې صورت کې به د هغه ګواهي نه قبلول کيږي؛ ځکه د ګواهۍ د وجهې په بيانولو سره دا احتمال پيدا سو چې د هغه په زړه کې د دې خبرې صداقت نسته (يعنې زړه ته يې پوره نه لوېږي) نو ګواکې هغه ته د دې علم نسته، لهذا د هغه دا ګواهي د علم پر بنياد نه سوه او د علم روح ځني ووتی، نو ځکه به دا ګواهي معتبره نه وي او نه به قبلول کيږي.

## د قضاء ګواهي

وَكَذَا لَوْ رَأَى إِنْسَانًا جَلَسَ مَجْلِسَ الْقَضَاءِ يَدْخُلُ عَلَيْهِ الْخُصُوْمُ او همدارنګه که څوک يو انسان ويني چې هغه د قضاء په مجلس کې ناست دی او هغه ته د دعوې والا خلک راځي حَلَّ لَهُ أَنْ يَشْهَدَ عَلٰى كَوْنِهِ قَاضِيًا نو د ده [ليدونکي] لپاره جائز دي چې د هغه انسان د قاضي کېدلو ګواهي ورکړي وَكَذَا إِذَا رَأَى رَجُلًا وَامْرَأَةً يَسْكُنَانِ بَيْتًا او همدا [حکم دی] کله چې يو سړی او ښځه ويني چې هغوی دواړه په يوه کور [او خونه] کې اوسيږي وَيَنْبَسِطُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا إِلَى الْآخَرِ انْبِسَاطَ الْأَزْوَاجِ او په هغوی کې هر يو د بل سره د خاوند او ښځې په څېر د بې تکلفۍ [او آزادۍ] اړوند کوي [يعنې يو له بل څخه پرده نه کوي بلکې د خاوند او مېينې په څېر يو د بل سره مخامخ کيږي او په آزاده توګه ګرځي] كَمَا إِذَا رَأَى عَيْنًا فِي

يَدِ غَيْرِهِ [د دې مثال دا دی] لکه کله چې څوک د بل چا په قبضه کې یو عَین شی ووینې [او بیا گواهي ورکړي چې دا شی د هغه دی. نو جائز او روا دي] وَمَنْ شَهِدَ أَنَّهُ شَهِدَ دَفْنَ فُلَانٍ أَوْ صَلَّى عَلَى جِنَازَتِهِ او څوک چې دا گواهي ورکړي چې هغه د فلانکي مړي په ښخولو کې حاضر وو یا یې د هغه پر جنازه لمونځ وکړی فَهُوَ مُعَايَنَةٌ نو دا مشاهده ده حَتَّى لَوْ فَسَّرَهُ لِلْقَاضِي همدا وجه ده که هغه قاضي ته د دې وضاحت وکړي قَبِلَهُ نو [هم] به قاضي هغه قبلوي.

**اللغات:** ﴿خصوم﴾ جمع د خَصْمٌ ده: دعوې والا خلک، مدعي او مدعیٰ علیه، ﴿ینبسط﴾ د انفعال د باب مضارع ده: د دغه باب څو معناوي دي چې له هغه څخه یوه معنیٰ دا ده: بې تکلفي کول (پابندي پرېښوول)، ﴿عَین﴾ د دَیْن ضد دی، مُتعیّن شی، لکه غنم، څاروی، موټر او داسي نور. ﴿شهد﴾ د سمع د باب ماضي ده، د صلې په بدلون سره د دې باب معنیٰ بدلیږي، مثلاً که په صِله کې یې "علیٰ" یا داسي نور الفاظ ذکر سي نو د "گواهي ورکولو" معنیٰ ورکوي، او که په صِله کې یې مجلس یا داسي بل شی لکه دفن (ښخول)، جنازه او داسي نور ذکر سي نو "د حاضرېدلو" معنیٰ ورکوي، ﴿جِنَازة﴾ (د جیم په کسره او فتحه دواړو سره ویل کېدای سي): مړی چې کله په تخته او تابوت کې پروت وي، د مړي تابوت او تخته (کټ)، ځیني حضرات وایي چې "جِنازه" د جیم په کسره سره مړي ته وایي او د جیم په فتحه سره د مړي تخته او تابوت ته وایي، او ځیني د دې برعکس قائل دي. (مصباح منیر، معجم لغة الفقهاء)

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو څوک د قضاء په مجلس کې یو عالم د قاضي پر منبر ناست ووینې او دا هم ووینې چې خلک هغه ته د دعوې د حل کولو لپاره را روان دي، نو لیدونکي سړي ته دا گواهي ورکول جائز دي چې دا عالم د دغه ښار قاضي دی که څه هم لیدونکي سړي د هغه د قاضي جوړېدلو منظر نه وي لیدلی (یعني که څه هم دیٔ په هغه وخت کې موجود نه وي کله چې امیرُ المؤمنین دا عالم قاضي جوړ کړی وي).

همدارنگه که یو څوک په یو کور کې سړی او ښځه استوگن ووینې چې هغوی یو د بل سره د خاوند او مایني په څېر سلوک او چلند کوي، نو د لیدونکي لپاره داسي گواهي ورکول جائز دي چې دا سړی د هغې خاوند دی او دا ښځه د هغه ماینه (زوجه) ده.

لکه څرنگه چې یو څوک د یو سړي په قبضه کې عَین شی ووینې (مثلاً یو څوک د یو سړي پر اوږه قیمتي څادر [پټو] ووینې)، نو لیدونکی دا گواهي ورکولای سي چې دا عَین (څادر) د قابض ملکیت دی.

او که يو څوک (مثلا خالد) دا ګواهي ورکړي چي "فلانکی سړی مړ سو ځکه زه د هغه د جنازې او ښخولو په وخت کي حاضر وم. يا ما پر هغه د جنازې لمونځ وکړي". نو دا معاينه (مشاهده) ده. يعني ګواکي هغه (خالد) د مړي د مرګ مشاهده او ليدنه وکړه او د مشاهدې پر بناء يې ګواهي ورکړه؛ ځکه چي ښخول صرف د مړي کيږي او د جنازې لمونځ هم صرف پر مړي کيږي. نو په ښخولو يا د جنازې په لمانځه کي شريک کېدل ګواکي د مرګ مشاهده کول دي. همدا وجه که ګواه (خالد) د قاضي مخته خپل د ګواهۍ وضاحت وکړي مثلاً داسي ووايي چي "فلانکی مړ سو. ما هغه د مرګ په وخت کي نه دی ليدلی لېکن زه يې د ښخولو يا د جنازې د لمانځه په وخت کي حاضر وم"، نو هم به قاضي د هغه ګواهي قبلوي.

## له پورتنۍ مسئلې څخه استثناء

ثُمَّ قَصْرُ الِاسْتِثْنَاءِ فِي الْكِتَابِ عَلَى هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ الْخَمْسَةِ يَنْفِي اعْتِبَارَ التَّسَامُعِ فِي الْوَلَاءِ وَالْوَقْفِ بيا په قدوري [متن] کي په دې پنځه شيانو کي د استثناء منحصر کول په ولاء او وقف کي [هم] د اورېدلو [پر بناء د ګواهۍ] معتبر کېدل نفي کوي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ آخِرًا أَنَّهُ يَجُوزُ فِي الْوَلَاءِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه په آخر کي دا روايت سوی دی چي په ولاء کي جائز دي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ النَّسَبِ ځکه چي ولاء د نسب په درجه کي ده لِقَوْلِهِ عليه السلام [1]: «اَلْوَلَاءُ لُحْمَةٌ كَلُحْمَةِ النَّسَبِ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي چي: "ولاء يو قرابت دی لکه د نسب قرابت" وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يَجُوزُ فِي الْوَقْفِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي په وقف کي جائز دي [يعني په وقف کي د اورېدلو پر بناء ګواهي ورکول جائز دي] لِأَنَّهُ يَبْقَى عَلَى مَرِّ الْأَعْصَارِ ځکه چي د زمانو د تېرېدلو باوجود وقف باقي پاتېږي إِلَّا أَنَّا نَقُولُ: اَلْوَلَاءُ يَبْتَنِي عَلَى زَوَالِ الْمِلْكِ لېکن موږ وايو: چي ولاء پر "زوالُ الملک" [د ملکيت پر زائلېدلو] مبني ده وَلَا بُدَّ فِيهِ مِنَ الْمُعَايَنَةِ حال دا چي په هغه کي مشاهده [ليدنه] ضروري ده فَكَذَا فِيمَا يَبْتَنِي عَلَيْهِ نو همداسي به په هغه شي کي هم مشاهده ضروري وي کوم چي پر "زوالُ الملک" مبني دی وَأَمَّا الْوَقْفُ فَالصَّحِيحُ أَنَّهُ يُقْبَلُ الشَّهَادَةُ بِالتَّسَامُعِ فِي أَصْلِهِ او پاته سو وقف نو صحيح دا ده چي په اصل وقف کي به د اورېدلو پر بناء ګواهي قبلول کيږي دُونَ شَرَائِطِهِ او د هغه

[1] تخريج: اخرجه سنن البيهقي، باب من اعتق مملوكاً له، ج: ١٠، ص: ٤٩٤، حديث رقم: ٢١٤٣٣.

په شرائطو او تفصيلاتو اکي به نه قبلول کيږي لِأَنَّ أَصْلَهُ هُوَ الَّذِي يَشْتَهِرُ ځکه چي فقط همدا اصل وقف مشهور وي [نه دوقف شرائط].

**اللغات:** ﴿قصر﴾ د نصر د باب مصدر دی، د دغه باب په صله کي چي "عَلٰی" راسي نو معنیٰ يې ده: منحصر کول، راګرځول، لکه په عربي کي چي ويل کيږي "قَصَرْتُ عَلٰی نَفْسِيْ نَاقَةً" يعني د ماد خپل ځان د شيدو لپاره اوښه راوګرځوله (مصباح منير). ﴿الولاء﴾ آزاد کړی سوی غلام چي کله مړ سي نو د هغه ميراث به د هغه آزادونکي مالک ته ورکول کيږي، همدې ته ولاء وايي، په لنډه توګه دا چي د آزاد سوي غلام ميراث ته ولاء وايي، او ولاء د هغه سړي حق کيږي کوم سړي چي هغه غلام آزاد کړی وي، ﴿لحمة﴾ مراد ځني قرابت دی (احسن الهدايه). ﴿مرّ﴾ د ضرب مصدر دی: تېرېدل (وخت او زمانه تېرېدل)، ﴿أعصار﴾ جمع د عَصْرٌ ده: زمانه.

**تشريح:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي د قدوري په متن کي چي مخکي کوم استثناء سوې ده چي "له نسب، مرګ، نکاح، دخول او د قاضي له ولايته بغير په نورو شيانو کي محض د اورېدلو پر بناء ګواهي ورکول جائز نه دي"، دا استثناء پر دې خبره دلالت کوي چي په ولاء او وقف کي دي هم د اورېدلو پر بناء ګواهي ورکول جائز نه وي، مثلاً که يو څوک (خالد) دا خبره واوري چي دا غلام د فلانکي سړي (مثلا د زيد) له طرفه آزاد سوی غلام دی، بيا اورېدونکی (خالد) د دې ګواهي ورکړي چي "دا د فلانکي سړي (زيد) آزاد سوی غلام دی نو ځکه د ده ولاء د هغه حق کيږي"، يا مثلاً يو څوک دا ګواهي ورکړي چي "حامد خپل کور د عمر لپاره وقف کړی دی او ما دا خبره له فلانکي څخه اورېدلې ده"، نو داسي ګواهي ورکول جائز نه دي؛ ځکه چي امام قدوري رَحِمَهُ الله صرف د پنځو شيانو استثناء کړې ده، نو ځکه له هغه پنځو څخه بغير نور شيان د نه جائز کېدلو په حکم کي داخل دي، نو وقف او ولاء به هم په هغه حکم کي داخل وي. همدا ظاهر روايت دی.

لېکن په دې باره کي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه آخري روايت دا دی چي د نسب په څېر په ولاء کي هم محض د اورېدلو پر بناء ګواهي ورکول جائز دي.

د دې روايت دليل دا دی چي نبي کريم ﷺ "ولاء" د نسبي قرابت په څېر ګرځولې ده (يعني ګواکي آزاد سوی غلام داسي دی لکه د آزادونکي سړي قريب)، او مخکي ذکر سوه چي په نسب کي محض د اورېدلو پر بناء ګواهي ورکول جائز دي، نو ځکه په ولاء کي به هم محض په اورېدلو سره ګواهي ورکول جائز وي.

وعن محمد رَحِمَهُ الله إلخ: فرمايي چي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي په وقف کي هم د اورېدلو پر بناء ګواهي ورکول جائز دي؛ ځکه چي وقف تر ډيرو زمانو پوري باقي پاتيږي او په داسي وخت کي هم د هغه په هکله ګواهي ته ضرورت پيښيږي چي په هغه وخت کي د وقف مشاهده کونکی هيڅ سړی ژوندی پاته نه وي، لهذا که په وقف کي د مشاهده او ليدني شرط ولګول سي نو د وقف باطلېدل به لازم سي، نو ځکه له بطلان څخه به د وقف د ساتلو لپاره په هغه کي محض د اورېدلو پر بناء هم ګواهي ورکول جائز وي.

إلا أنا نقول إلخ: په دې عبارت سره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د آخري روايت جواب ورکوي، حاصل يې دا دي چي په ولاء کي د اورېدلو پر بناء ګواهي جائز ګرځول صحيح نه دي؛ ځکه د ولاء ثبوت پر زوالُ الملک موقوف دی يعني آزاد سوی غلام هغه وخت د ولاء مستحق کيږي کله چي له غلام څخه د مالک (مولیٰ) ملکيت زائل سي، او د زوال الملک په ګواهي کي دا شرط دي چي د ملک (ملکيت) زائلېدلو په وخت کي به ګواه حاضر او ليدونکی وي او هغه به په خپلو سترګو د ملکيت د زوال (آزادولو) مشاهده کړې وي، او څرنګه چي ولاء هم پر زوالُ الملک موقوف ده، نو ځکه د وقف په ګواهي کي به هم مشاهده او ليدنه شرط وي او له مشاهدې څخه بغير محض د اورېدلو بر بناء به د وقف ګواهي ورکول جائز نه وي.

او پاته سو وقف نو صحيح دا ده چي که څوک له خلکو څخه د اصل وقف خبر واوري او د هغه ګواهي ورکړي، نو دا ګواهي به قبلول کيږي، لېکن د وقف په شرائطو او تفصيلاتو کي به د اورېدلو پر بناء ګواهي نه قبلول کيږي. په اصل وقف کي د ګواهي ورکولو صورت دا دی چي مثلاً په عامو خلکو کي دا خبره مشهوره وي چي فلانکي سړي دغه باغ د مدرسې لپاره وقف کړی دی، نو له خلکو څخه دا اورېدلو پر بناء د اورېدونکي سړي لپاره دا ګواهي ورکول جائز دي چي دا باغ د مدرسې لپاره وقف دی.

او د وقف په شرائطو او تفصيلاتو کي د ګواهي ورکولو صورت دا دی چي مثلاً ګواه له بعضي خلکو څخه دا هم اورېدلي وي چي د دې باغ دومره امدن (پيداوار) د مدرسې د طالبانو لپاره دی او دومره د کتابو لپاره دی او دومره د استاذانو د تنخا لپاره دی، نو له خلکو څخه د اورېدلو پر بناء د دې تفصيلاتو ګواهي ورکول جائز نه دي؛ او وجه يې دا ده چي اصل وقف خو په خلکو کي مشهوره وي لېکن د هغه تفصيلات او شرائط مشهوره نه وي، نو ځکه د اصل وقف په باره کي محض د اورېدلو پر بنياد ګواهي ورکول جائز دي، او د وقف د شرائطو او تفصيلاتو د نه مشهوره کېدلو په وجه د هغوی په باره کي محض د اورېدلو پر بنياد ګواهي ورکول جائز نه دي.

## محض د قبضې په لېدلو سره د ملکيت ګواهي ورکول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ كَانَ فِي يَدِهٖ شَيْءٌ سِوَى الْعَبْدِ وَالْأَمَةِ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي: او د چا په قبضه کې چې له غلام او مينځې څخه بغير بل شی وي وَسِعَكَ أَنْ تَشْهَدَ أَنَّهٗ لَهٗ نو ستا لپاره دا ګواهي ورکول جائز دي چې "دا شی د هغه دی" [يعني چې دا شی د هغه په ملکيت کې دی او هغه د دې مالک دی] لِأَنَّ الْيَدَ أَقْصٰى مَا يُسْتَدَلُّ بِهٖ عَلَى الْمِلْكِ ځکه چې قبضه هغه آخري شی ده چې د هغه په ذريعه پر ملکيت [مالک کېدلو] دليل نيول کېدای سي إِذْ هِيَ مَرْجِعُ الدَّلَالَةِ فِي الْأَسْبَابِ كُلِّهَا ځکه چې [د ملکيت] په ټولو اسبابو کې همدا قبضه د دلالت مرجع ده فَيُكْتَفٰى بِهَا نو ځکه صرف پر قبضې به اکتفاء کېږي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهٗ يُشْتَرَطُ مَعَ ذٰلِكَ أَنْ يَقَعَ فِي قَلْبِهٖ أَنَّهٗ لَهٗ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې د دې سره، سره دا هم شرط دي چې د ګواه زړه ته به دا خبره لوېږي چې دا شی [بالکل] د هغه دی قَالُوا: وَيَحْتَمِلُ أَنْ يَكُونَ هٰذَا تَفْسِيرًا لِإِطْلَاقِ مُحَمَّدٍ فِي الرِّوَايَةِ او مشايخو ويلي دي: چې کېدای سي دا [د زړه د ګواهي روايت] د امام محمد رَحِمَهُ الله د مطلق روايت [يعنې د متن د مسئلې] تفسير وي فَيَكُونُ شَرْطًا عَلَى الْاِتِّفَاقِ نو ځکه دا [د زړه ګواهي] به بالاتفاق شرط وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: دَلِيْلُ الْمِلْكِ الْيَدُ مَعَ التَّصَرُّفِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د ملکيت دليل د تصرف سره قبضه ده [يعني کله چې قبضه د تصرّف سره وي نو دا د ملکيت دليل دی] وَبِهٖ قَالَ بَعْضُ مَشَايِخِنَا او زموږ ځينې مشايخو هم دا ويلي دي لِأَنَّ الْيَدَ مُتَنَوِّعَةٌ إِلٰى إِنَابَةٍ وَمِلْكٍ ځکه چې قبضه د امانت او ملکيت وطرف ته تقسيم سوې ده قُلْنَا: وَالتَّصَرُّفُ يَتَنَوَّعُ أَيْضًا إِلٰى نِيَابَةٍ وَأَصَالَةٍ موږ جواب ورکوو: چې تصرف هم د نيابت او اصالت وطرف ته تقسيمېږي.

**اللغات**: ﴿يد﴾ لاس، قبضه. ﴿وسعك﴾ د سمع د باب ماضي ده: ګنجايش کېدل، جائز کېدل، ﴿أقصى﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: د آخري درجې، د انتهائي درجې، ﴿يتنوع﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: قسم، قسم کېدل (يو شی څو قسمه کېدل)، څو نوع ګرځېدل، ﴿نيابة﴾ د نصر د باب مصدر دی: نائب کېدل، قائم مقام کېدل. ﴿أصالة﴾ د کَرُم د باب مصدر دی: اصل کېدل (اصيل کېدل) مراد ځني مالک کېدل دي. (اثمار الهدايه)

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو څوک (مثلاً خالد) د یو سړي (زید) په قبضه کې له غلام او مینځې څخه بغیر بل شی مثلاً پُسه ووینې، وروسته (خالد) همدا پُسه د بل چا په قبضه کې هم ووینې، بیا اول قابض (زید) دعوی وکړه چې دا پُسه خو زما دی، نو د لیدونکي (خالد) لپاره دا ګواهي ورکول جائز دي چې دا پُسه د مدعي (زید) دی او د هغه په ملکیت کې دی؛ دلیل دا دی چې قبضه د ملکیت ثابتولو (إثباتُ الملک) آخري پړاو او مرحله ده، یعنې آخر د همدې قبضې په ذریعه ملکیت ثابتول کېدای سي، مثلاً کله چې یو څوک له بائع (دوکاندار) څخه د شي رانیولو اراده وکړي نو هغه همدې ته ګوري چې دا شی د بائع په قبضه کې دی او په همدې سره هغه ته ثابته سي چې دا شی د بائع په ملکیت کې دی، یا مثلاً د میراث تقسیمولو په وخت کې همدې ته کتل کیږي چې دا شی د مړي په قبضه کې وو، که نه. لهذا په آخر کې په همدې قبضه سره د هغه ملکیت ثابتول کېدای سي، او د ملکیت په ټولو اسبابو (مثلاً په میراث، صدقه او هبه کې) همدا قبضه د ملکیت دلیل ده. (مثلا صدقه [خیرات] د ملکیت سبب دی یعنې په صدقه سره د فقیر ملکیت ثابتیږي، لېکن په دې سره د فقیر ملکیت هغه وخت ثابتیږي کله چې دا معلومه سي چې صدقه کونکی په خپله هم د دې شي مالک دی، او د صدقه کونکي مالک کېدل په قبضه سره معلومیږي چې دا شی په ظاهره د هغه په قبضه کې دی، که نه، لنډه دا چې د ملکیت په ټولو اسبابو کې د انجام په اعتبار سره همدا قبضه ظاهر دلیل دی)، نو ځکه وویل سوه چې محض د قبضې په لیدلو سره د قابض د ملکیت (مالک کېدلو) ګواهي ورکول جائز دي یعنې که یو څوک محض د بل سړي په قبضه کې یو شی ووینې، نو د لیدونکي لپاره دا ګواهي ورکول جائز دي چې دا شی د هغه (قابض) دی.

**وعن أبي یوسف إلخ**: فرمایي له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی چې محض د قبضې په لیدلو سره د قابض د ملکیت په ګواهي ورکولو کې دا خبره هم شرط ده چې د ګواه په زړه کې به دا یقین وي چې دا شی بالکل د قابض په ملکیت کې دی او محض د قبضې په لیدلو سره د هغه د ملکیت ګواهي ورکول جائز نه دي؛ ځکه چې محض د قبضې په لیدلو سره لیدونکي ته یقیني علم (قطعي خبر) نه حاصلیږي، حال دا چې د دې حدیث "إِذَا عَلِمْتَ مِثْلَ الشَّمْسِ فَاشْهَدْ وَإِلَّا فَدَعْ" په وجه د ګواهي اداء کولو لپاره یقیني علم او خبر شرط دی، لېکن کله چې یقیني علم ناممکن سي نو د زړه د ګواهي وطرف ته به رجوع کیږي، یعنې کم از کم زړه به د دې خبري ګواه او شاهد وي چې مقبوض شی د قابض په ملکیت کې دی، نو ځکه شرط دا دی چې کله د لیدونکي ګواه په زړه کې دا یقین سي چې دا شی د قابض په ملکیت کې دی او فقط هغه د دې مالک دی او د لیدونکي زړه ته دا خبره ولویږي، نو بیا د هغه لپاره د قابض په حق کې ګواهي ورکول جائز دي.

قالوا إلخ: مشايخ او فقهاء رَحِمَهُمُ الله وايي له امام ابويوسف رَحِمَهُ الله څخه چي کوم روايت نقل سوی دی هغه د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول تشريح او توضيح ده، يعني په متن کي چي امام محمد رَحِمَهُ الله د مطلق قبضې په ليدلو سره ګواهي جائز ګرځولې ده، په دې سره د امام محمد رَحِمَهُ الله مطلب محض قبضه نه ده بلکي د هغه په نېز هم دا شرط دي چي د ليدونکي ګواه په زړه کي به يقين وي، نو د دې احتمال پر بنياد به دا شرط فقط د امام ابويوسف رَحِمَهُ الله په نېز نه وي بلکي متفق عليه شرط به وي.

د دې په خلاف امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي قبضه پر دوه قسمه ده: ① د امانت قبضه، ② د ملکيت قبضه، او ښکاره خبره ده چي قابض فقط د ملکيت په قبضه کي تصرف کولای سي لېکن د امانت په قبضه کي تصرف نه سي کولای (يعني قابض فقط په هغه شي کي قبضه کولای سي کوم چي د ده په قبضه کي امانتاً پروت نه وي، بلکي دئ د هغه مالک وي). نو ځکه د ملکيت او امانت د قبضو تر مينځ به د فرق کولو لپاره تصرف شرط وي، لهذا که يو څوک پر يو شي قابض وي او هغه په دې شي کي تصرف هم کوي، نو بيا د هغه د ملکيت ګواهي ورکول جائز دي، کنې جائز نه دي. او د احنافو بعضي مشايخ هم د دې قائل دي.

لېکن صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د امام شافعي او بعضي مشايخو دا قول خوښ کړی نه دی، نو په همدې وجه يې د هغو په جواب کي ويلي دي چي څرنګه قبضه پر دوه قسمه ده همداسي تصرف هم پر دوه قسمه دی: ① اصالةً تصرف، يعني مالک چي په خپل ملکيت کي د خپل ځان لپاره تصرف کوي، ② نيابةً تصرف، لکه وکيل او مضارب چي د مؤکل او ربُ المال لپاره په مال کي تصرف کوي، لهذا څرنګه چي په قبضه کي د امانت او ملکيت احتمال سته، همداسي په تصرف کي هم د اصالت او نيابت احتمال سته، نو ځکه غوره همدا ده چي که قابض ته دا يقين سي او زړه ته يې ولوېږي چي دا شی د قابض په ملکيت کي دی، نو د هغه د ملکيت (مالک کېدلو) ګواهي دې ورکړي او په دې سلسله کي دې تصرف شرط نه ګرځول کيږي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

ثُمَّ الْمَسْأَلَةُ عَلٰى وُجُوهٍ بيا دا مسئله پر څو صورتونو [مشتمله] ده إِنْ عَايَنَ الْمَالِكَ الْمِلْكَ که چيري هغه ليدونکي سړي [د مالک او ملکيت دواړو مشاهده کړې وي حَلَّ لَهُ أَنْ يَشْهَدَ نو د هغه لپاره ګواهي ورکول روا دي وَكَذَا إِذَا عَايَنَ الْمِلْكَ بِحُدُودِهِ دُوْنَ الْمَالِكِ او همدارنګه که هغه [فقط] ملکيت د خپل حدودو سره مشاهده کړې وي، نه مالک اِسْتِحْسَانًا د استحسان پر بناء [يعني په دې صورت کي هم

استحساناً ګواهي ورکول جائز دي] لِأَنَّ النَّسَبَ يَثْبُتُ بِالتَّسَامُعِ ځکه چې [د مالک] نسب [له خلکو څخه] داورېدلو پر بناء ثابتيږي فَيَحْصُلُ مَعْرِفَتُهُ نو ځکه پېژندنه [او علم] به حاصل سي وَإِنْ لَمْ يُعَايِنْهُمَا أَوْعَايَنَ الْمَالِكَ دُوْنَ الْمِلْكِ او که هغه د دواړو مشاهده نه وي کړې يا يې [فقط] د مالک مشاهده کړې وي، نه د ملکيت لَايَحِلُّ لَهُ نو د هغه لپاره ګواهي ورکول روا نه دي.

**اللغات:** ﴿عَايَن﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: په سترګو لېدل، حقيقي ليدل، مشاهده کول، ﴿مِلْك﴾ملکيت، په دې عبارت کې له مِلْك (ملکيت) څخه مراد مملوک شی دی، يعني هغه شی کوم چې د مالک په ملکيت کې وي، ﴿حدود﴾ جمع د حَدٌّ ده: دلته يې مطلب دا دی که ليدونکي ګواه د ځمکي او جايداد په باره کې ګواهي ورکوي نو له حدود څخه مراد د هغه ځمکي او جايداد څلور سزه حدود او طرفونه دي، او که د بل شي په باره کې ګواهي ورکوي نو له حدود څخه مراد د هغه شي اهم تفصيلات دي. (اثمار الهدايه)

**تشريح:** فرمايي په تېر عبارت کې چې د ليدونکي ګواه لپاره د ګواهي ورکولو کومه مسئله بيان سوې ده، د هغه مسئلې څلور صورتونه دي:

①... يو صورت دا دی چې ليدونکي سړي مالک او ملکيت دواړه ليدلي وي (د دواړو مشاهده يې کړې وي)، ②... دواړه يې نه وي ليدلي، ③... ملکيت يې ليدلی وي او مالک يې نه وي ليدلی، ④... مالک يې ليدلی وي او ملکيت يې نه وي ليدلی. (په دې ټولو صورتونو کې له ملکيت څخه مملوک شی مراد دی، لکه په لغاتو کې چې هم دا خبره ذکر سوه).

(۱)... که چيري اول صورت وي، يعني ليدونکي ګواه د مالک مشاهده (ليدنه) هم کړې وي په دې توګه چې هغه مالک لېدلی وي او مالک د خپل نوم او نسب سره پېژني، او د ملکيت مشاهده يې هم کړې وي په دې توګه چې هغه د دې مملوک شي ټوله حدود (تفصيلات) ليدلي وي او ټول تفصيلات يې پېژني، او هغه ته دا يقين وي او زړه ته يې لوېدلي وي چې دا شی د همدې مالک (قابض) په ملکيت کې دی، نو په دې صورت کې د ليدونکي (مشاهده کونکي) لپاره دا ګواهي ورکول جائز دي چې "دا شی د قابض په ملکيت کې دی او فقط قابض د دې شي مالک دی"؛ ځکه چې دلته ګواه په علم او خبر سره ګواهي ورکړې ده، او مخکي ذکر سوه چې کومه ګواهي د علم او خبر پر بنياد وي، هغه قبلول کيږي، نو ځکه په دې صورت کې به هم د ګواه ګواهي قبلول کيږي.

(۲)... او که دويم صورت وي، يعني هغه د مالک او ملکيت دواړو مشاهده نه وي کړې بلکي فقط له خلکو څخه يې اورېدلي وي چې په فلانکي ښار کې د فلان سړي دومره جايداد سته، حالانکي

اورېدونکی ګواه نه هغه جايداد پېژني او نه يې پر هغه د چا قبضه ليدلې وي، نو په دې صورت کې د اورېدونکي ګواه لپاره دا ګواهي ورکول جائز نه دي چې دا جايداد د فلان بن فلان په ملکيت کې دی؛ ځکه چې په دې صورت کې د ګواه ګواهي محض په اټکل او اندازه سره ده، حالانکي د ګواهي اداء کولو لپاره د هغه شي علم او خبر ضروري دي د کوم په باره کي چې ګواهي ورکوي، او دلته ګواه په هغه خبر نه دی، نو ځکه په دې صورت کې به ګواهي ورکول هم جائز نه وي.

(۳)... او که درېيم صورت وي، يعني ليدونکي ګواه فقط د ملکيت مشاهده او ليدنه کړې وي، لېکن مالک نه پېژني، يعني نه يې د مالک شکل او صورت ليدلی وي او نه د هغه نسب پېژني (چې فلان بن فلان)، بلکي محض د اورېدلو پر بناء داسي ووايي چې "فلانکی جايداد کوم چې ما ليدلی دی د هغه په باره کي ما اورېدلي دي چې دا د فلان بن فلان دی"، نو په دې صورت کې د قياس تقاضا دا ده چې د هغه دا ګواهي دي جائز نه وي؛ ځکه ليدونکی سړی چې د چا لپاره ګواهي ورکوي هغه يې نه دی ليدلی. ها! د استحسان پر بناء دا ګواهي جائز ده؛ ځکه په دې صورت کې خو ملکيت په مشاهده او ليدنه سره معلوم سوی دی او د مالک نسب له عامو خلکو څخه د اورېدلو پر بناء ثابت سوی دی، او مخکي ذکر سوه چې په نسب کې د اورېدلو پر بناء ګواهي ورکول جائز دي، نو ځکه په دې صورت کي به استحساناً ګواهي ورکول جائز وي.

(۴)... او که څلورم صورت وي، يعني ليدونکی ګواه فقط د مالک مشاهده او ليدنه کړې وي لېکن د ملکيت يې مشاهده نه وي کړې، نو په دې صورت کې هم د ليدونکي ګواه لپاره ګواهي ورکول جائز نه دي؛ ځکه د ګواهي اداء کولو لپاره د هغه شي علم شرط دي د کوم شي په باره کي چې ګواهي ورکوي، او دلته ګواه هغه لېدلی نه دی او په هغه هيڅ علم او خبر نه لري، نو ځکه په دې صورت کي ګواهي ورکول جائز نه دي.

## د غلام او مينځې ګواهي (حکم او تفصيل)

وَأَمَّا الْعَبْدُ وَالْأَمَةُ فَإِنْ كَانَ يَعْرِفُ أَنَّهُمَا رَقِيقَانِ او کوم چې غلام او مينځه دي نو که [ليدونکی سړی] دا پېژني چې هغه دواړه رقيق دي [يعني په دې هم خبر وي چې هغوی د مالک تر غلامی لاندي دي] فَكَذٰلِكَ نو [په هغوی کي] هم دغه حکم دی لِأَنَّ الرَّقِيقَ لَا يَكُونُ فِي يَدِ نَفْسِهِ ځکه چې رقيق د خپل ځان په قبضه [قدرت] کي نه وي [يعني هغه پر خپل ذات قدرت او اختيار نه لري] وَإِنْ كَانَ لَا يَعْرِفُ أَنَّهُمَا رَقِيقَانِ او که [ليدونکی سړی] دا نه پېژني چې هغه دواړه [د مالک] تر غلامی لاندي دي إِلَّا أَنَّهُمَا صَغِيرَانِ لَا يُعَبِّرَانِ عَنْ أَنْفُسِهِمَا مګر هغه دواړه [دومره] کوچني وي چې د خپل ځان په باره کي اظهار نه سي

کولای [یعني د خپل ځان په باره کې معلومات نه سي ورکولای چي زه غلام یم. که نه] فَكَذٰلِكَ نو هم دغه حکم دی لِأَنَّهُ لَا يَدَ لَهُمَا ځکه چي هغو لره هيڅ قبضه [او اختيار] نسته وَإِنْ كَانَا كَبِيرَيْنِ او كه هغه دواړه غټان وي فَذٰلِكَ مَصْرِفُ الِاسْتِثْنَاءِ نو همدا د استثناء محل دی لِأَنَّ لَهُمَا يَدًا عَلٰى أَنْفُسِهِمَا ځکه چي هغو ته پر خپل ذات قبضه [قدرت] حاصل دی فَيَدْفَعُ يَدُ الْغَيْرِ عَنْهُمَا لهذا دا [پر خپل ذات قدرت حاصلېدل] به له هغو څخه د بل چا قبضه لیري کړي فَانْعَدَمَ دَلِيلُ الْمِلْكِ نو د ملکيت دليل به ختم سي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَشْهَدَ فِيهِمَا أَيْضًا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي په دې په دواړو کي هم د هغه لپاره ګواهي ورکول جائز دي اِعْتِبَارًا بِالثِّيَابِ پر کپړو په قياس کولو سره وَالْفَرْقُ مَا بَيَّنَاهُ او فرق هغه دی کوم چي موږ بيان کړی [یعني کبیر غلام او مینځه پر خپل ذات قدرت او اختيار لري، لېکن کپړې لره هيڅ ذاتي اختيار نسته].

**اللغات:** ﴿رقيق﴾ مملوک، ديو چا تر ملکيت لاندې غلام، ﴿لا يعبّران﴾ د تفعيل له بابه د تثنيه غائب صيغه ده: تعبير کول، اظهار کول، ښکاره کول (احسن الهدايه)، مراد ځني د خپل ذات تعريف کول او د ځان په باره کي معلومات ورکول دي، ﴿مصرف﴾ د اسم ظرف صيغه ده: د مصرفولو (استعمالولو) ځای، مراد ځني محل دی، ﴿ثياب﴾ جمع د ثَوْبٌ ده: کپړه، جامه.

**تشريح:** له تېر عبارت څخه د مخکي عبارت په متن کي چي کوم د غلام او مینځي استثناء وسوه چي که يو څوک له غلام او مینځي څخه بغير بل شی د يو چا په قبضه کي ويني (سِوَى الْعَبْدِ وَالْأَمَةِ)، په دې عبارت کي د هغه تفصيل بيانوي، حاصل يې دا دی که يو څوک د يو چا په قبضه کي مینځه یا غلام ويني او په دې هم خبر سي چي هغه رقيق دي يعني په يقيني توګه دا هم ورته معلومه سي چي دا مینځه یا غلام د هغه قابض په ملکيت کي دي، نو د ليدونکي سړي لپاره دا ګواهي ورکول جائز دي چي "دا مینځه یا غلام د قابض مملوک دي يعني د هغه په ملکيت کي دی"؛ ځکه چي رقيق (يعني مینځه او غلام) مِنْ كُلِّ وَجْه او په بشپړه توګه د قابض په ملکيت کي وي او هغه ته پر خپل ذات هيڅ ولايت او قدرت حاصل نه وي، نو ځکه د بل چا په قبضه کي به د غلام او مینځي موجوېدل د هغوی د مملوک کېدلو دليل وي.

وان كان لا يعرف إلخ: فرمايي که ليدونکی سړی د غلام او مینځي په رقيق کېدلو خبر نه سي، لېکن هغوی دواړه دومره کوچني وي چي د خپل ځان په باره کي بنه معلومات نه سي ورکولای (او خپل مافی

الضمير نه سي اداء کولای)، نو په دې صورت کې هم د ليدونکي لپاره دا ګواهي ورکول جائز دي چې "دا د قابض په ملکيت کې دي"؛ ځکه چې په دې صورت کې هم هغو ته پر خپل ذات هيڅ قدرت او اختيار حاصل نه دی.

او که چيرې غلام او مينځه غټان يعني عاقله وي او د خپل ځان په باره کې معلومات ورکولای سي، نو په متن کې د همدې صورت استثناء سوې ده (په سِوَی العَبْدِ وَالأَمَةِ سره)، يعني په دې صورت کې محض په قبضه ليدلو سره د قابض د ملکيت ګواهي ورکول جائز نه دي؛ ځکه چې د بالغ والي په وجه هغو ته پر خپل ذات قدرت حاصل دی، همدا وجه ده که دوی خپل د پيدايشي آزاد والی دعوی وکړي نو دعوی به يې منل کيږي او پر دوی به د هيچا قبضه نه ثابتيږي، لهذا کله چې دوی ته پر خپل ذات قدرت حاصل دی نو دا له دوی څخه د بل چا قبضه ليرې کوي، او کله چې له دوی څخه د بل چا قبضه ختمه او ليرې سوه نو د ملکيت دليل (يعني قبضه) هم معدوم سو، او کله چې دليل معدوم او ختم سو، نو ځکه د ليدونکي لپاره به محض د قبضې په ليدلو سره د قابض د ملکيت او د غلام او مينځې د مملوک کېدلو ګواهي ورکول جائز نه وي.

وعن أبي حنيفة إلخ: فرمايي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې که غلام او مينځه غټان وي او د يو چا په قبضه کې وي، نو په دې صورت کې هم د قابض د ملکيت ګواهي ورکول جائز دي؛ ځکه چې قبضه د ملکيت دليل دی؛ همدا وجه ده که يو څوک پر کپړې قابض وي (مثلا په قبضه کې يې د کپړې يو تان وي)، نو د ليدونکي لپاره پر هغه کپړې د قابض د ملکيت ګواهي ورکول جائز دي، همداسي که څوک پر مينځه او غلام قابض وي نو د هغه د ملکيت ګواهي ورکول به هم جائز وي.

لېکن صاحب د هدايې فرمايي چې د مينځې و غلام او د کپړې په مينځ کې چې کوم فرق دی هغه موږ بيان کړی دی، يعني غلام او مينځه پر خپل ذات قدرت او ختيار لري او د غټوالي په وجه هغوی د خپل ځان په هکله معلومات هم ورکولای سي، حال دا چې کپړه يو بې جانه شی دی کوم چې هيڅ ذاتي اختيار نه لري، نو ځکه پر هغه به د قابض قبضه معتبره وي، او څرنګه چې غلام او مينځې پر ځان ذاتي اختيار لري، نو ځکه پر هغو به د بل چا قبضه معتبره نه وي، او د همدې فرق په وجه به غلام او مينځه پر کپړې قياسول صحيح نه وي. والله أعلم



# بَابُ مَنْ يُقْبَلُ شَهَادَتُهُ وَمَنْ لَا يُقْبَلُ

(دا) فصل دهغو خلکو (په بيان کی) دی چې ګواهي به يې قبلول کيږي
او دهغو خلکو (په بيان کي) دی چې ګواهي به يې نه قبلول کيږي

**تشريح:** مخکي تر دې د هغه شيانو بيان وو چې د هغوی په باره کي ګواهي قبلول کيږي، يا نه قبلول کيږي، او په دې باب کي د هغو خلکو (ګواهانو) بيان دی چې د هغو ګواهي قبلول کيږي، يا نه قبلول کيږي؛ او د کوم شي په باره کي چې ګواهي قبلول کيږي يا نه قبلول کيږي، هغه شی د ګواهۍ (شهادت) محل دی، او محل د شرط په درجه کي وي، او شرط پر مشروط مخکي وي، نو ځکه د هغه شيانو بيان د خلکو له بيان څخه مخکي کړی سوی دی چې د هغوی په باره کي ګواهي قبلول کيږي، يا نه قبلول کيږي. (بنايه ج:۸، ص:۱۶۰)

## د ړانده کس د ګواهۍ حکم او تفصيل

قَالَ: وَلَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ الْأَعْمٰى فرمايي: او د نابينا [ړانده کس] ګواهي به نه قبلول کيږي وَقَالَ زُفَرُ وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: تُقْبَلُ فِيمَا يَجْرِيْ فِيهِ التَّسَامُعُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي (او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی): چې په کومو شيانو کي تسامع جاري دی په هغوی کې به د نابينا ګواهي قبلول کيږي لِأَنَّ الْحَاجَةَ فِيهِ إِلَى السَّمَاعِ ځکه په داسي ګواهۍ کي فقط اورېدلو ته ضرورت وي وَلَا خَلَلَ فِيهِ او د نابينا په اورېدلو کي هيڅ خلل نه وي [يعني هغه په غوږو اورېدلای سي] وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَالشَّافِعِيُّ ۞: يَجُوزُ إِذَا كَانَ بَصِيرًا وَقْتَ التَّحَمُّلِ امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د نابينا ګواهي جائز ده [په دې شرط] کله چې نابينا د "تحمّلِ شهادة" [ګواه جوړېدلو] په وخت کي ليدونکی [بينا] وي لِحُصُولِ الْعِلْمِ بِالْمُعَايَنَةِ ځکه چې په مشاهده [ليدلو] سره هغه ته خبر حاصل سو وَالْأَدَاءُ يَخْتَصُّ بِالْقَوْلِ او د ګواهۍ اداء کول د وينا [او ژبې] سره خاص دي وَلِسَانُهُ غَيْرُ

---

۞ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة الحصكفى رَحِمَهُ الله: لا تقبل من اعمٰى اى لا يُقضٰى بها...إلخ (رد المحتار ج:۴، ص:۴۲۱) [القول الراجح ج:۲، ص:۱۳۵]

مُؤْفٍ او د نابينا ژبه آفت زده [عيبداره] نه وي وَالتَّعْرِيفُ يَحْصُلُ بِالنِّسْبَةِ او تعارف [او علم] د نسب په بيانولو سره حاصلېږي كَمَا فِي الشَّهَادَةِ عَلَى الْمَيِّتِ لكه پر مړي د ګواهي وركولو په باره كي وَلَنَا: أَنَّ الْأَدَاءَ يَفْتَقِرُ إِلَى التَّمْيِيزِ بِالْإِشَارَةِ بَيْنَ الْمَشْهُودِ لَهُ وَالْمَشْهُودِ عَلَيْهِ او زموږ دليل دا دی: چي د ګواهۍ اداء كول دې ته محتاج دي چي د مشهود لهٗ او مشهود عليه [مدعي او مدعیٰ عليه] تر مينځ د اشارې په ذريعه فرق وکړی سي [په لنډه توګه دا چي د ګواهي وركولو په وخت كي د مدعي او مدعیٰ عليه په مينځ كي د اشارې په ذريعه تميز كول ضروري دي] وَلَا يُمَيِّزُ الْأَعْمَى إِلَّا بِالنَّغْمَةِ او نابينا فرق [تميز] نه سي كولای مګر فقط د آواز په ذريعه وَفِيهِ شُبْهَةٌ او په آواز كي شبهه ده يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهَا بِجِنْسِ الشُّهُودِ چي د جنسِ ګواهانو [يعني د نورو سمو ګواهانو] په ذريعه له هغه شبهي څه ځان ساتل ممكن دي وَالنِّسْبَةِ لِتَعْرِيفِ الْغَائِبِ دُونَ الْحَاضِرِ او نسب بيانول د غائب سړي د تعارف لپاره دي، نه د حاضر سړي فَصَارَ كَالْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ نو دا د حدّونو او قصاص په څېر سو وَلَوْ عَمِيَ بَعْدَ الْأَدَاءِ او كه يو شوک د ګواهۍ تر اداء كولو وروسته نابينا سي يَمْتَنِعُ الْقَضَاءُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ* نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قاضي فيصله ممتنع كيږي [يعني قاضي د هغه پر ګواهۍ فيصله نه سي كولای] لِأَنَّ قِيَامَ أَهْلِيَّةِ الشَّهَادَةِ شَرْطٌ وَقْتَ الْقَضَاءِ ځكه چي د قاضي د فيصلې په وخت كي د ګواهۍ اهليت شرط دی لِصَيْرُورَتِهَا حُجَّةً عِنْدَهُ ځكه چي ګواهي د قاضي د فيصلې په وخت كي حجت ګرځي وَقَدْ بَطَلَتْ حال دا چي [دلته] دا حجت باطل سو وَصَارَ كَمَا إِذَا خَرِسَ أَوْ جُنَّ أَوْ فَسَقَ او دا داسي سو لكه ګواه چي ګونګی سي يا لېونی سي يا فاسق سي بِخِلَافِ مَا إِذَا مَاتُوا أَوْ غَابُوا په خلاف د هغه صورت كله چي ګواهان مړه سي يا غائب سي لِأَنَّ الْأَهْلِيَّةَ بِالْمَوْتِ قَدْ انْتَهَتْ ځكه چي [د ګواهۍ] اهليت د مرګ په وجه پوره سو [انتهاء ته ورسېدی] وَبِالْغَيْبَةِ مَا بَطَلَتْ او [د ګواهانو] د غائبېدلو په وجه باطل نه سو [يعني په دې دواړو صورتونو كي د ګواهانو اهليت نه باطلېږي بلكي ثابت او باقي پاتېږي].

---

* القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما قا صاحب درر الحكام: والصحيح والمفتیٰ به ظاهر هو هذا اى قول الطرفين.(درر الحكام ج:۲، ص:۳۵۷)، وكذا فى رد المحتار (ج:۴، ص:۴۲۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۳۴]

**اللغات:** ﴿أعمٰى﴾ ړوند، نابينا. ﴿تسامع﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: له خلکو څخه يو خبر اورېدل، داورېدل سوي خبر اعتبار کول. ﴿بصير﴾ د صفت مشبه صيغه ده: ليدونکی، بينا. ﴿معاينة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: په سترګو ليدنه، مشاهده. ﴿تحمّل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: ګواهي په خپله ذمه اخيستل، مراد: ګواه جوړېدل، ګواه کېدل. ﴿تعريف﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: تعارف کول، نوم او نسب معلومول. ﴿النسبة﴾ نسب. ﴿يفتقر﴾ د افتعال د باب مضارع ده: محتاج کېدل، ضرورت من کېدل. ﴿مشهود لهٗ﴾ د کوم چا لپاره چې ګواهي ورکول کيږي. ﴿مشهود عليه﴾ د کوم چا په خلاف چې ګواهي ورکول کيږي. ﴿نغمة﴾ آواز. ﴿تحرّز﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: ځان ساتل، ژغورل. ﴿خَرِس﴾ د سمع د باب ماضي ده: ګونګی کېدل، ګونګېدل، چې خبرې نه سي کولای. ﴿جُنّ﴾ د نصر د باب ماضي مجهوله ده: مجنون کېدل، لېونی او دېوانه کېدل. ﴿انتهت﴾ د افتعال د باب ماضي ده: انتهاء ته رسېدل، دا د فقه يو محاوره ده، مطلب يې دا دی چې د سړي د مړه کېدلو په وجه دا خبره پخه او مضبوطه سوه او آخر ته ورسېده. (اثمار الهدايه)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې په حد او قصاص کي خو د نابينا کس ګواهي بالاتفاق مقبوله نه ده (يعني نه په قبلول کيږي)، ليکن له حد او قصاص څخه بغير په نورو معاملاتو کي د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز د نابينا ګواهي مقبوله ده په دې شرط چې د ده ګواهي په هغه (پنځو) شيانو کي وي چې د هغوی په باره کي د اورېدلو پر بناء ګواهي ورکول جائز دي (کوم چې مخکي ذکر سول)، لکه نکاح، نسب، مرګ او داسي نور، نو د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز به په دې شيانو کي د نابينا ګواهي قبلول کيږي، او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه هم يو روايت دی کوم چې محمد بن شجاع نقل کړی دی.

د طرفينو رَحِمَهُمَا الله مذهب دا دی چې څرنګه په حد او قصاص کي د نابينا ګواهي مقبوله نه ده، همداسي په نورو معاملاتو کي هم د هغه ګواهي مقبوله نه ده. د امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې که نابينا د "تحمل شهادت" (ګواه جوړېدلو) په وخت کي بينا او روغ وي (او د کوم شي په باره کي چې ګواهي ورکوي هغه منقول شی وي)، نو په دې صورت کي د هغه ګواهي جائز او مقبوله ده.

لنډه دا چې د نابينا (ړانده کس) د ګواهی په هکله درې مسلکه دي: ① ... د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز په مسموعاتو کي د نابينا ګواهي جائز ده، يعني د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز په هغه شيانو کي د نابينا

ګواهي جائز ده چې په هغوی کې داورېدلو پر بناء ګواهي ورکول صحيح وي، (۲)... دامام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نيز که نابينا د "تحمل شهادت" په وخت کې په سترګو سم او بينا وي، نو د هغه ګواهي جائز ده، (۳)... او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز مطلقاً د هغه ګواهي جائز نه ده.

**د امام زفر دليل**: دا دی چې په کومو شيانو کې داورېدلو پر بناء ګواهي جائز وي په هغوی کې د ګواهي دار ومدار پر اورېدلو (سماع) وي، نه پر ليدلو، او څرنګه چې د نابينا کس په اورېدلو کې هيڅ خلل نه وي (بلکې هغه په غوږو هره خبره اورېدلای سي)، نو ځکه په مسموعاتو کې به هغه د ګواهي ورکولو اهل وي او د هغه ګواهي به جائز وي.

**د امام ابو يوسف او نورو دليل**: دامام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې کله د "تحمل شهادت" (ګواه جوړېدلو) په وخت کې يو څوک بينا او ليدونکی وي نو هغه ته د مشهود به په هکله يقيني علم حاصل وي، يعني د کوم شي په باره کې چې اوس نابينا ګواهي ورکوي، د هغه شي د ليدلو په وجه نابينا ته مخکې د هغه قطعي او يقيني خبر حاصل سوی وي، نو اوس فقط د ګواهي اداء کولو معامله پاته ده، او د ګواهي د اداء کولو تعلق فقط د ژبې سره دی او د نابينا په ژبه کې هيڅ خلل نه وي، نو ځکه د هغه په حق کې به له ګواهي ورکولو څخه هيڅ شی مانع نه وي، او کله چې هيڅ مانع نسته، نو ځکه د هغه ګواهي به جائز او مقبوله وي.

<u>والتعريف يحصل بالنسبة إلخ</u>: پاته سو دا سوال چې په دې صورت کې خو نابينا د ګواهي اداء کولو په وخت کې په سترګو نه ويني، نو ځکه هغه ته به د مشهود لهٔ علم نه وي (يعني د چا لپاره چې ګواهي ورکوي هغه به نه پېژني)، او د مشهود لهٔ جهالت له ګواهي اداء کولو څخه مانع دی؟ نو د امام ابو يوسف او امام شافعي له طرفه د دې سوال جواب دا دی چې د نابينا په حق کې د مشهود لهٔ جهالت له ګواهي اداء کولو څخه مانع نه دی؛ ځکه چې د ګواهي اداء کولو په وخت کې د مشهود لهٔ وطرف ته اشاره کول ضروري نه دي، بلکې د هغه د نوم او نسب علم او خبر پکار دی يعني ګواه به د مشهود لهٔ نوم او نسب پېژني، او له خلکو څخه د اورېدلو پر بناء هر چا ته د مشهود لهٔ د نوم او نسب علم حاصلېږي او په دې توګه هغه د مشهود لهٔ په هر څه خبرېږي او په پټو سترګو د هغه د مور او نيکه نوم هم ور ښوولای سي، نو ځکه د نابينا په حق کې به دغه شی له شهادت اداء کولو څخه مانع نه وي. د دې مثال دا دی لکه پر يو مړي (ميت) چې د خلکو قرضونه باندي وي بيا هغه خلک (قرضخواهان) دعوی وکړي او ګواهان پېش کړي، نو پر ګواهانو دا ضروري نه ده چې د ښخ کړل سي مړي وطرف ته اشاره وکړي بلکې له

اشاره کولو څخه بغیر فقط د نسب (فلان بن فلان) په بیانولو سره هم د هغو ګواهي قبلول کیږي، نو همداسي به په دې مسئله کي هم پر نابینا کس دا ضروري نه وي چي د مشهود لهٔ وطرف ته اشاره وکړي بلکي فقط د نسب په بیانولو سره به د هغه ګواهي قبلول کیږي.

**زموږ دلیل**: په دې مسئله کي زموږ یعني د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي د ګواهۍ د اداء کولو لپاره دا ضروري ده چي ګواه به د مدعي او مدعیٰ علیه په مینځ کي په اشاره سره فرق او تمیز (بېلوالي) کوي، او نابینا کس بالکل د دوی تر مینځ په اشاره سره فرق او تمیز نه سي کولای، بلکي هغه فقط د آواز په ذریعه د دوی تر مینځ فرق کولای سي، او تاسو ته معلومه ده چي ځیني وخت یو آواز د بل آواز سره مشابه وي، نو ځکه د آواز په ذریعه چي کوم فرق او تمیز سوی وي په هغه کي به یو ډول شبهه او نقص وي، او د جنس ګواهانو په ذریعه یعني د سمو او بینا ګواهانو په ذریعه دغه شبهه او نقص ختمول کېدای سي، نو ځکه غوره همدا ده چي د نابینا ګواهي معتبره او قبوله نه کړل سي بلکي د هغه پر ځای یو روغ او بینا کس ګواه کړی سي او د هغه د ګواهۍ اعتبار وسي.

والنسبة إلخ: دا د یو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چي صحیح ده! کله چي د آواز په ذریعه د مدعي او مدعیٰ علیه تر مینځ په فرق کولو کي یو ډول شبهه او نقص سته، نو تاسو داسي وکړئ! چي د آواز په ذریعه په نابینا سره د مدعي او مدعیٰ علیه نسب هم معلوم کړی، او کله چي هغه نسب بیان کړي نو ښکاره خبره ده چي د مدعي او مدعیٰ علیه تر مینځ به ښه فرق او تمیز راسي، او تر نسب بیانولو وروسته به نابینا د ګواهۍ اداء کولو قابل وګرځي؟

د طرفینو رَحِمَهُمَا الله له طرفه د دې سوال جواب دا دی چي په ګواهۍ کي د غائب سړي نسب بیانول کیږي نه د حاضر سړي، او څرنګه چي په دې مسئله کي مدعي او مدعیٰ علیه دواړه حاضر دي، نو ځکه د نسب بیانولو ته به کرسره ضرورت پېښ نه سي او د هغه په ذریعه د فرق کولو نوبت به هم رانه سي، نو ځکه په دې خاطر به هم نابینا د ګواهۍ پر اداء کولو قادر نه شمارل کیږي او د هغه ګواهي به معتبره او مقبوله نه وي. لکه څرنګه چي په حد او قصاص کي د نابینا ګواهۍ لره هیڅ اعتبار نسته.

لیکن شارح د احسن الهدایې وایي چي د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دا جواب قوي نه ښکاري او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله سوال زورداره معلومیږي؛ ځکه چي له نسب څخه زیات فرق کونکی او تمیز کونکی بل شی نسته، تر دې چي په اشاره کي هم ځیني وخت غلطي کیږي. (احسن الهدایه ج: ۱۰، ص: ۵۰)

ولوعمي إلخ: د دې حاصل دا دی که یو سړی د ګواه جوړېدلو (تحمّلِ شهادت) او ګواهۍ اداء کولو په وخت کې بینا او لیدونکی وي لېکن د ګواهۍ تر اداء کولو وروسته او د قاضي تر فیصله کولو مخکې هغه ړوند او نابینا سي، نو په دې صورت کې د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قاضي لپاره دا جائز نه دي چې د هغه پر ګواهۍ فیصله وکړي، لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي.

د امام ابو یوسف دلیل قیاس دی، هغه فرمايي که د ګواهۍ تر اداء کولو وروسته یو ګواه مړ سي یا هغه غائب سي او قاضي تر اوسه فیصله نه وي کړې، نو په دې صورتونو کې د قاضي لپاره دا جائز دي چې د هغه مړه ګواه یا غائب ګواه پر ګواهۍ فیصله کړي، لهذا څرنګه چې په دې دواړو صورتونو کې د قاضي فیصله جائز ده، نو همداسې کله چې تر ګواهي اداء کولو وروسته ګواه نابینا سي، نو هم به د قاضي لپاره د هغه پر ګواهۍ فیصله کول جائز وي.

د طرفینو دلیل دا دی چې ګواهي فقط د قاضي د فیصله کولو په وخت کې حجت ګرځي، نو په دې وجه د فیصله کولو په وخت کې په ګواه کې د ګواهۍ اهلیت شرط او ضروري دی، حال دا چې دلته (په دې مسئله کې) د فیصله کولو په وخت کې د ړوند والي په وجه په نابینا ګواه کې د ګواهۍ اهلیت ختم سوی دی، او کله چې په هغه کې د ګواهۍ اهلیت ختم سوی دی، نو ځکه د هغه د ګواهۍ حجت والی باطل سو، او قاضي پر باطل حجت فیصله نه سي کولای، نو ځکه په دې مسئله کې د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قاضي لپاره فیصله کول جائز نه دي. د دې مثال داسې دی لکه د ګواهۍ تر اداء کولو وروسته او د قاضي تر فیصلې مخکې چې ګواه فاسق وګرځي یا ګونګی سي یا لېونی سي، نو په دې صورتونو کې هم د قاضي لپاره د هغه پر ګواهۍ فیصله کول جائز نه دي، ځکه چې په دې هر صورت کې په ګواه کې د ګواهۍ اهلیت ختم سو، همداسې په دې مسئله کې هم د قاضي تر فیصلې مخکې ګواه نابینا سوی دی او د هغه د ګواهۍ اهلیت ختم سوی دی، نو ځکه په دې مسئله کې به هم د قاضي لپاره فیصله کول جائز نه وي.

بخلاف ما إذا ماتوا إلخ: دا د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د قیاس جواب دی، حاصل یې دا دی چې د ګواهۍ تر اداء کولو وروسته د ګواه نابینا کېدل د ګواهانو پر مړه کېدلو یا غائبېدلو قیاسول صحیح نه دي؛ ځکه چې د ګواهانو د مړه کېدلو او غائبېدلو په وجه د هغو اهلیت نه باطلېږي، ځکه د مرګ په وجه خو د هغو اهلیت خپل انتهاء ته رسیږي او شی چې خپل انتهاء ته ورسیږي نو هغه نور ثابت او مضبوط ګرځي، لنډه دا چې کله د مرګ په وجه د ګواهانو اهلیت باطل نه سو بلکې نور ثابت سو، نو ځکه د قاضي لپاره د هغو پر ګواهۍ فیصله کول جائز دي.

همدارنګه د ګواهانو د غائبېدلو په صورت کې هم د هغو اهليت نه باطلېږي بلکې باقي او برقرار پاتېږي (يعني په غائبېدلو سره د ګواهانو اهليت نه دی ختم سوی صرف ګواهان غائب دي). نو ځکه د ګواهانو د غائبېدلو باوجود هم د قاضي لپاره د هغو پر ګواهۍ فيصله کول جائز دي. لېکن په دې مسئله کې د ګواه د نابينا کېدلو په وجه بالکل د هغه اهليت ختم سوی او باطل سوی دی، نو ځکه په دې صورت کې به د هغه پر ګواهۍ د قاضي لپاره فيصله کول جائز هم نه وي.

## د غلام د ګواهۍ حکم

قَالَ: وَلَا الْمَمْلُوكِ او د مملوک ګواهي هم مقبوله نه ده [يعني د غلام او مينځې ګواهي به هم نه قبلول کيږي] لِأَنَّ الشَّهَادَةَ مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ ځکه چې ګواهي د ولايت [ولي کېدلو] له باب څخه ده وَهُوَلَا يَلِيْ نَفْسَهُ او مملوک د خپل ذات ولي نه دی [يعني هغه پر خپل ځان هم ولايت او اختيار نه لري] فَأَوْلَى أَنْ لَا يَثْبُتَ لَهُ الْوِلَايَةُ عَلَى غَيْرِهِ نو ځکه پر بل چا به په درجه اولیٰ د هغه ولايت نه ثابتيږي.

**اللغات:** ﴿مملوك﴾ کوم څوک چې د بل چا تر ملکيت لاندې وي، يعني غلام او مينځه. ﴿لا يلي﴾ د ضرب د باب نفي صيغه ده: ولي کېدل، مشر کېدل، واکمن او اختيار من کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دې چې څرنګه د نابينا ګواهي مقبوله نه ده، همداسې د مملوک (غلام او مينځې) ګواهي هم مقبوله نه ده يعني قاضي به يې ګواهي نه قبلوي؛ ځکه چې د ګواهۍ لپاره ولايت (ولي کېدل) ضروري دی، ځکه ګواهي د ولايت له بابه ده، او د ولايت اصطلاحي معنیٰ ده "تَنْفِيْذُ الْقَوْلِ عَلَى الْغَيْرِ" (يعني پر بل چا يو قول نافذول)، او فقط هغه کس پر بل چا قول نافذولای سي چې هغه ته پر خپل ځان ولايت حاصل وي، او ښکاره خبره ده چې مملوک ته پر خپل ځان هيڅ ولايت حاصل نه دی (ځکه چې د هغه ولي او واکمن فقط مالک دی او د هغه هر څه د مالک په لاس کې دي)، او کله چې مملوک ته پر خپل ځان د ولايت حق نسته نو پر بل چا خو به په درجه اولیٰ هغه ته د ولايت حق نه وي، او کله چې غلام ته د ولايت حق نسته نو هغه ته به پر بل چا د ګواهي ورکولو حق هم نه وي. نو ځکه ووېل سوه چې د مملوک ګواهي مقبوله او معتبره نه ده. او د دې نقلي دليل د ابن عباس ﷺ دا فرمان دی "لَا تَجُوْزُ شَهَادَةُ الْعَبْدِ" يعني د غلام ګواهي جائز نه ده. (بنايه ج۸، ص۴۳۸)

## د محدود في القذف د ګواهۍ حکم

وَلَا الْمَحْدُوْدِ فِيْ قَذْفٍ وَإِنْ تَابَ او نه د محدود في القذف ګواهي مقبوله ده که څه هم توبه وکړي (توبه وباسي) لِقَوْلِهِ تَعَالىٰ: ﴿وَلَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا﴾ ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي: "او تاسي هیڅکله هم د هغو [محدود في القذف کسانو] ګواهي مه قبلوئ! وَلِأَنَّهُ مِنْ تَمَامِ الْحَدِّ او ځکه چي د هغو ګواهي ردول [نه قبلول] هم د حد تتمه ده لِكَوْنِهِ مَانِعًا ځکه چي د ګواهۍ ردول [له بهتان لګولو څخه] مانع دي [یعني لکه څرنګه چي د حدّ جاري کولو په وجه محدود في القذف کس له بهتان او تهمت لګولو څخه منع کیږي همداسي که د هغه ګواهي نامقبوله او ردّ کړل سي نو په دغه سزا سره هم هغه د آینده لپاره له بهتان او قذف څخه منع کیږي، نو په دې حواله سره د ګواهۍ نه قبلول د حدّ تتمه او بشپړېزه ده. یعني په دې سره د محدودّ في القذف حدّ او سزا پوره کیږي] فَيَبْقَى بَعْدَ التَّوْبَةِ كَأَصْلِهِ نو ځکه د ګواهۍ ردّ کېدلو [نه قبلېدل] به له توبې څخه وروسته هم باقي پاته وي لکه څرنګه چي اصل حد باقي پاتیږي بِخِلَافِ الْمَحْدُوْدِ فِيْ غَيْرِ الْقَذْفِ په خلاف د هغه کس چي له قذف څخه بغیر د بل جرم په وجه حد پري جاري سوی وي لِأَنَّ الرَّدَّ لِلْفِسْقِ ځکه چي د ګواهۍ ردول د فسق [فاسقوالي] په وجه وي وَقَدِ ارْتَفَعَ بِالتَّوْبَةِ او د توبه په وجه فسق ختم سو وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تُقْبَلُ إِذَا تَابَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د محدود في القذف ګواهي به قبلول کیږي کله چي هغه توبه وکړي لِقَوْلِهِ تَعَالىٰ: ﴿إِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا﴾ ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي: "نه هغه کسان کوم چي توبه وکړي" اِسْتَثْنَى التَّائِبَ [په دې آیت کي] الله تعالیٰ د توبه کونکي استثناء کړې ده قُلْنَا: اَلْاِسْتِثْنَاءُ يَنْصَرِفُ إِلىٰ مَا يَلِيْهِ موږ جواب ورکوو: چي استثناء د هغه [جملې] وطرف ته ګرځي کوم چي د استثناء سره متصل وي وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالىٰ: ﴿وَأُولٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُوْنَ﴾ او هغه د الله تعالیٰ دا فرمان دی: "وَأُولٰئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ" أَوْ هُوَ اسْتِثْنَاءٌ مُنْقَطِعٌ بِمَعْنَى لٰكِنْ یا هغه د "لٰکن" په معنیٰ سره "استثناء منقطع" ده وَلَوْ حُدَّ الْكَافِرُ فِيْ قَذْفٍ ثُمَّ أَسْلَمَ او که چیري پر کافر د قذف په وجه حد جاري کړی سي بیا هغه اسلام راوړي يُقْبَلُ شَهَادَتُهُ نو د هغه ګواهي به قبلول کیږي لِأَنَّ لِلْكَافِرِ شَهَادَةً ځکه چي [د کفر په حالت کي] د کافر لپاره د ګواهۍ [حق] وو فَكَانَ رَدُّهَا مِنْ تَمَامِ الْحَدِّ نو ځکه د هغه ګواهۍ ردول به [د هغه] د حد تتمه وي وَبِالْإِسْلَامِ

حَدَثَتْ لَهُ شَهَادَةٌ أُخْرَى او د اسلام راوړلو په وجه د هغه لپاره بله [نوې] ګواهي پيدا سوه [يعني د مسلمانېدلو په وجه هغه ته د ګواهۍ نوی حق حاصل سو] بِخِلَافِ الْعَبْدِ إِذَا حُدَّ ثُمَّ أُعْتِقَ په خلاف د غلام کله چې پر هغه حد جاري کړی سي بيا آزاد کړی سي لِأَنَّهُ لَا شَهَادَةَ لِلْعَبْدِ أَصْلًا ځکه چې د غلام لپاره بالکل د ګواهۍ حق نه وو فَتَمَامُ حَدِّهِ بِرَدِّ شَهَادَتِهِ بَعْدَ الْعِتْقِ نو ځکه تر آزادۍ وروسته به د هغه د ګواهۍ ردول [نه قبلول] د هغه د حد تتمه وي.

**اللغات:** ﴿محدود﴾ د نصر د باب مفعول دی: هغه کس چې پر هغه د يو جرم حد جاري کړی سي، ﴿قذف﴾ د ضرب د باب مصدر ی: په درواغه د زنا تهمت (تور) لګول، پر پاک لمني کس د زنا درواغجن تهمت لګول. ﴿ارتفع﴾ د افتعال د باب ماضي ده: پورته کېدل، ليرې کېدل، ختمېدل، ﴿ينصرف﴾ د انفعال د باب مضارع ده: ګرځېدل، راجع کېدل، ﴿يليه﴾ د حسب د باب مضارع ده: متصل کېدل، ښرمه کېدل. ﴿استثناء منقطع﴾ د علم النحو يو اصطلاح ده، مطلب يې دا دی چې له "إِلَّا" څخه وروسته والا جمله د مخکنۍ جملې سره هيڅ تعلق نه لري بلکي دا يو جلا مستقله جمله ده، ﴿حُدَّ﴾ د نصر د باب ماضي مجهوله ده: پر يو مجرم حد جاري کول، حد نافذول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی پر يو مسلمان د زنا تهمت ولګوي او بيا خپل تهمت ثابت نه کړی سي، نو د تهمت لګولو په وجه پر هغه سړي حد جاري کيږي چې هغه اتيا (۸۰) درې دي، کله چې پر داسي سړي حد جاري کړی سي نو ده ته د شريعت په اصطلاح کي "محدود فی القذف" وايي، او په ګواهۍ کي د محدود فی القذف حکم دا دی چې په هيڅ صورت کي زموږ په نېز د هغه ګواهي مقبوله نه ده، يعني برابره ده توبه وکړي، که نه، په دواړو صورتونو کي به د هغه ګواهي نه قبول کيږي؛ دليل دا آيت دی: ﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَٰتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَانِينَ جَلْدَةً وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَٰسِقُونَ﴾ [النور: ۴]. يعني کوم خلک چې پر پاک لمنو ښځو د زنا تهمت ولګوي او بيا څلور ګواهان پېش نه کړی سي نو تاسي هغو ته اتيا درې سزا ورکړئ! او د همېشه لپاره په هيڅ يوه خبره کي د هغو ګواهي مه قبلوئ! او هغوی فاسقان دي. په دې آيت کي په واضحو الفاظو سره دا اعلان سوی دی چې د محدود فی القذف ګواهي هيڅکله مقبوله نه ده او د همېشه لپاره مردوده ده، لکه څرنګه چې د "أَبَدًا" لفظ پر همدې ښکاره دلالت کوي.

**ولأنه إلخ:** دويم دليل دا دی چي د محدود في القذف اصلي حد خو اتيا درې دی او د هغه د گواهۍ ردول او نه قبلول د هغه د حد تتمه (بشپړېزه) ده؛ ځکه چي د حد په څېر به دا عمل (گواهي ردول) هم هغه د آينده لپاره له بهتان لګولو څخه منع کوي (لکه څرنګه چي د اتيا دُرو سزا هغه سم کوي. نو معلومه سوه چي دا عمل يعني د گواهۍ ردول د حد تتمه ده. يعني په دې سره حد پوره کيږي). و تاسو ته معلومه ده چي په توبه سره اصلي حد نه ساقطيږي لهذا د هغه تتمه يعني د گواهۍ رد کېدل به هم نه ساقطيږي او د همېشه لپاره به هغه له گواهۍ څخه محرومول کيږي.

ها! له محدود في القذف څخه بغير نور مجرمين لکه زاني، غال، شرابي او داسي نور، که چيري هغو ته خپل حد او سزا ورکول سي او بيا هغوی توبه وکړي، نو له توبه کولو (توبه ايستلو) څخه وروسته به د هغو گواهي قبلول کيږي؛ ځکه د هغو د گواهۍ رد کېدل (نه قبلېدل) د هغو د فسق پر بنياد وي او په توبه کولو سره د هغو فسق ختم سي، نو ځکه له توبې وروسته به د هغو گواهي جائز او مقبوله وي. لکه څرنګه چي همدا د فقهي قاعده هم ده "إِذَا زَالَ الْمَانِعُ عَادَ الْمَمْنُوْعُ" (يعني کله چي مانع ختم سي نو ممنوع شی واپس راګرځي او هغه بيرته جائز کيږي).

**وقال الشافعي إلخ:** فرمايي کله چي محدود في القذف توبه وکړي نو له توبې وروسته د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د هغه گواهي مقبوله ده؛ ځکه الله تعالیٰ چي په کوم آيت کي د هغه د گواهۍ نه قبلولو (ردولو) ذکر کړی دی يعني ﴿فَاجْلِدُوْهُمْ ثَمَانِيْنَ جَلْدَةً وَلَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا﴾ [النور: ۴]، تر هغه آيت وروسته متصل د ﴿إِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ﴾ [النور: ۵] په فرمان سره الله تعالیٰ د توبه کونکو استثناء کړې ده او دا خبر يې ورکړی دی چي که محدود في القذف توبه وکړي نو د هغه گواهي به قبلول کيږي، همدا د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمُ الله مذهب هم دی.

**قلنا إلخ:** صاحب د هدايې د امام شافعي رَحِمَهُ الله د مسلک او دليل په جواب کي فرمايي چي په "إِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا" سره چي کومه استثناء سوې ده هغه د "وَلَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا" سره متعلق نه ده، بلکي هغه د "وَأُولٰئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ" سره متعلق ده؛ ځکه استثناء د همغه جملې سره متعلق کيږي کوم چي د استثناء سره متصل وي او دلته د استثناء سره د "وَأُولٰئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ" جمله متصل ده. لهذا استثناء به د هغه سره متعلق وي او مطلب به يې دا وي چي که محدود في القذف توبه وکړي نو د هغه فسق زائليږي، لېکن د هغه حد او د گواهۍ رد کېدلو معامله پر خپل ځای پاتېږي.

دويم جواب دا دی چي په "إِلَا الَّذِيْنَ" کي چي کوم "إِلَّا" ده، هغه د "لٰكِن" په معنیٰ سره ده او هغه "استثناء منقطع" ده. او د هغه تعلق د ګواهي د قبلولو يا ردولو سره نه دی بلکي د آيت مطلب دا دی چي داسي حرکت کوونکي خلک فاسقان دي لېکن څوک چي توبه وکړي نو هغوی د فاسقانو په فهرس کي داخل نه دي بلکي د هغوی فسق (فاسق والي) ختميږي.

ولوحُدَّ الكافر إلخ: د دې حاصل دا دی که يو ذمي کافر پر ذميه ښځي د زنا تهمت ولګوي او بيا خپل تهمت ثابت نه کړی سي او په دې وجه پر هغه حد جاري کړی سي، نو په آينده کي به د بل هيڅ ذمي په هکله د هغه ګواهي نه قبلول کيږي (لکه څرنګه چي د مسلمان محدود في القذف ګواهي د هيڅ مسلمان په حق کي نه قبلول کيږي)، لېکن که دا محدود في القذف کافر اسلام راوړي نو بيا به د هغه ګواهي قبلول کيږي؛ ځکه کله چي د کفر په حالت کي پر هغه حد جاري کړی سو او د هغه ګواهي هم رد کړل سوه نو د هغه حد او سزا پوره سوه او معامله يې ختمه سوه، او د مسلمان کېدلو په وجه ده ته دويم ځل د ګواهي نوی حق حاصل سو. او څرنګه چي تر مسلمان کېدلو وروسته بيا ده پر هيچا بهتان نه دی لګولی، نو ځکه اوس به د هغه نوي حق په وجه ده ته د ګواهي ورکولو اختيار وي او د ده ګواهي به مقبوله هم وي.

د دې په خلاف که پر يو غلام حد جاري کړی سي بيا هغه آزاد کړی سي، نو تر آزادي وروسته به هم د هغه ګواهي مقبوله نه وي يعني نه به قبلول کيږي؛ ځکه چي د غلام والي په حالت کي هغه ته بالکل د ګواهي حق حاصل نه وو (نه د يو مسلمان لپاره د هغه ګواهي مقبوله وه او نه د کافر لپاره). بلکي تر آزادي وروسته هغه ته د ګواهي حق حاصل سو، لهذا د هغه د حد تتمه دا ده چي تر آزادي وروسته به هم د هغه ګواهي نامقبوله او مردوده ګرځول کيږي، نو ځکه وويل سوه چي تر آزادي وروسته به د هغه ګواهي نه قبلول کيږي.

## د پلار، نيکه او ځوی د ګواهي حکم

قَالَ: وَلَا شَهَادَةُ الْوَالِدِ لِوَلَدِهِ وَوَلَدِ وَلَدِهِ فرمايي: او نه د پلار ګواهي د خپل ځوی، ازوږا او لمسي په حق کي مقبوله ده وَلَا شَهَادَةُ الْوَلَدِ لِأَبَوَيْهِ وَأَجْدَادِهِ او نه د ځوی ګواهي د خپل مور و پلار او نيکه ګانو په حق کي مقبوله ده وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عليه السلام [1]: «لَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ الْوَلَدِ لِوَالِدِهِ او اصل په دې

[1] تخريج: غريب هذا اللفظ (دا حديث په دې لفظ سره غريب دی)، صاحب د اثمارُ الهدايه وايي چي دا روايت خاص په دغو الفاظو سره د تابعي قول دی کوم چي په مُصنف عبد الرزاق او مُصنف ابن أبي شيبة کي ذکر سوی دی (مصنف عبد الرزاق، باب شهادة الأخ لأخيه...إلخ. ج:۸، ص:۲۶۸، رقم:۱۵۵۶۹. مصنف ابن أبي شيبة، باب في شهادة الولد لوالده. ج:۴، ص:۵۳۲، رقم:۲۲۵۱)

بازه کي د نبي ﷺ دا فرمان دی: "نه به قبلول کيږي د ځوی ګواهي د خپل پلار لپاره وَلَا الْوَالِدِ لِوَلَدِهِ او نه د پلار ګواهي د خپل ځوی لپاره وَلَا الْمَرْأَةِ لِزَوْجِهَا او نه د ښځي ګواهي د خپل خاوند لپاره وَلَا الزَّوْجِ لِامْرَأَتِهِ او نه د خاوند ګواهي د خپلي ښځي لپاره وَلَا الْعَبْدِ لِسَيِّدِهِ او نه د غلام ګواهي د خپل مالک لپاره وَلَا الْمَوْلَى لِعَبْدِهِ او نه د مالک ګواهي د خپل غلام لپاره وَلَا الْأَجِيْرِ لِمَنِ اسْتَأْجَرَهُ» او نه د مزدور ګواهي د هغه سړي لپاره چا چي هغه په اُجرت نيولی وي وَلِأَنَّ الْمَنَافِعَ بَيْنَ الْأَوْلَادِ وَالْآبَاءِ مُتَّصِلَةٌ او ځکه چي د ځامنو او پلرونو په مينځ کي منافع مشترک وي وَلِهٰذَا لَا يَجُوْزُ أَدَاءُ الزَّكَاةِ إِلَيْهِمْ همدا وجه ده چي هغو ته زکاة ورکول جائز نه دي فَتَكُوْنُ شَهَادَةً لِنَفْسِهِ مِنْ وَجْهٍ نو ځکه دا ګواهي به په يوه اعتبار سره د خپل ځان لپاره ګواهي ورکول وي أَوْ تَتَمَكَّنُ فِيْهِ التُّهْمَةُ يا [کم از کم] په دې ګواهي کي به تهمت ځای ونيسي [يعني دا به يا د خپل ځان لپاره ګواهي ورکول وي، يا کم از کم په دې کي به دا تهمت پيدا سي چي هغه د خپل ځان د نفع او فايدې لپاره ګواهي ورکړې ده] قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: وَالْمُرَادُ بِالْأَجِيْرِ عَلَى مَا قَالُوْا التِّلْمِيْذُ الْخَاصُّ الَّذِيْ يَعُدُّ ضَرَرَ أُسْتَاذِهِ ضَرَرَ نَفْسِهِ وَنَفْعَهُ نَفْعَ نَفْسِهِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مشايخو د قول مطابق [دلته] له اجير شخخه داستاذ هغه خاص شاګرد مراد دی کوم چي د استاذ نقصان خپل نقصان ګڼي او د هغه نفع خپل نفع ګڼي وَهُوَ مَعْنَى قَوْلِهِ عليه السلام[2]: «لَا شَهَادَةَ لِلْقَانِعِ بِأَهْلِ الْبَيْتِ لَهُمْ» او د نبي کريم ﷺ د دې فرمان همدا معنیٰ ده چي "کوم ښوک د يو کور والا خادم [او تابع] وي نو د ده لپاره د هغو ګواهي مقبوله نه ده" وَقِيْلَ: الْمُرَادُ الْأَجِيْرُ مُسَانَهَةً أَوْ مُشَاهَرَةً أَوْ مُيَاوَمَةً او ويل سوي دي: چي له [اجير شخخه] مراد هغه مزدور دی کوم چي سالانه، يا مياشتانه يا روازنه ټاکل سوی وي فَيَسْتَوْجِبُ الْأَجْرَ بِمَنَافِعِهِ عِنْدَ أَدَاءِ الشَّهَادَةِ نو داسي مزدور به د ګواهۍ اداء کولو په وخت کي د خپل منافعو په وجه د اُجرت مستحق وي فَيَصِيْرُ كَالْمُسْتَأْجِرِ عَلَيْهَا نو دئ به د هغه کس په شان وګرځي کوم چي د ګواهۍ ورکولو لپاره په اُجرت نيول سوی وي [يعني د هغه کس په شان به وي کوم ته چي د ګواهي ورکولو لپاره پيسې ورکول سوي وي].

---

[2] تخريج: أخرجه الترمذي، باب ما جاء فيمن لا تجوز شهادته، ص:۵۲۶، حديث رقم:۲۲۹۸. و ابو داؤد، باب من ترد شهادت، ص:۵۱۷، حديث رقم: ۳۶۰۰).

**اللغات**: ﴿أجداد﴾ جمع د جَدّ ده: نیکه، ﴿سیّد﴾ سردار، مشر، مالک، ﴿أجیر﴾ مزدور، په اُجرت کارکونکی، ﴿استأجره﴾ د استفعال د باب ماضي ده: په اُجرت اخیستل، په اُجرت نیول. (په مزدوري نیول)، ﴿تتمکّن﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: ځای نیول، ﴿تلمیذ﴾ شاګرد، د استاذ خادم (معجم وسیط)، ﴿یعدّ﴾ د نصر د باب مضارع ده: شمارل، ګڼل، ﴿القانع﴾ د سمع د باب اسم فاعل دی، هسي خو د دې لفظ معنیٰ ده قناعت کونکی، په یوشي راضي کېدونکی، لېکن کله چي دا لفظ د قوم یا کور والا سره ذکر سي مثلاً "قَانِعُ القَومِ" نو بیا د دې معنیٰ ده: د قوم خادم، تابع، اجیر یعني مزدور، (معجم وسیط، معجم لغة الفقهاء)، ﴿مسانهة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، له سَنَةٌ څخه مشتق دی: د پوره کال لپاره یو معامله کول، دیوه کال لپاره په مزدوري نیول، سالانه، کالانه، مراد ځني کالنی مزدور دی، ﴿مشاهرة﴾ مخکنی صیغه ده: دیوې میاشتي لپاره یو معامله کول، میاشتانه، ﴿میاومة﴾ مخکنی صیغه ده: دیوې ورځي لپاره یو معامله کول، روزانه، ﴿یستوجب﴾ د استفعال د باب مضارع ده: حق لرل، مستحق کېدل. (احسن الهدایه)

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي نه به د خپل ځوی او لمسي په حق کي د یو سړي ګواهي قبلول کیږي او نه به د خپل پلاژ او نیکه په حق کي د یو سړي ګواهي قبلول کیږي؛ دلیل هغه حدیث دی کوم چي په عبارت کي مذکور دی یعني "لَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ الْوَلَدِ لِوَالِدِهٖ، وَالْوَالِدِ لِوَلَدِهٖ...إلخ"، څرنګه چي په دې کي په صراحت سره د پلار لپاره د ځوی د ګواهي او د ځوی لپاره د پلار د ګواهي منع سوې ده چي نه به قبلول کیږي، نو څکه په دوی کي به دیوه ګواهي هم د بل په حق کي مقبوله نه وي.

عقلي دلیل دا دی چي عموماً د پلار او ځوی ملکیت او منافع سره مشترک وي او یو د بل له مال څخه نفع اخلي، نو څکه په یوه اعتبار سره به دا د خپل ځان لپاره ګواهي ورکول (شهادة لنفسه) وي، کنې په دې کي به دا تهمت خامخا وي چي فلانکي د خپل نفع په خاطر د خپل پلار یا ځوی په حق کي ګواهي ورکړې ده، لهذا په دې صورت کي به ګواهي د خپل نفع لپاره وي، او ښکاره خبره ده چي نه د خپل ځان په حق کي د یو چا ګواهي قبلول کیږي او نه د خپل نفع او فایدې لپاره ګواهي قبلول کیږي، نو څکه په دې حواله سره به د پلار ګواهي د ځوی په حق کي او د ځوی ګواهي د پلار په حق کي مقبوله نه وي.

قال والمراد إلخ: صاحب د هدايې فرمايي چې د عبارت په حديث کې چې کوم د "وَلَا الْأَجِيْرِ لِمَنِ اسْتَأْجَرَهُ" جمله مذکوره ده، په هغه کې د "أَجِيْر" د مراد په هکله د مشايخو دوه قوله دي:

①... اول قول دا دی چې له "أَجِيْر" څخه د استاذ او معلم هغه خاص شاګرد مراد دی کوم چې د استاذ نفع او نقصان خپل نفع او نقصان ګڼي (او د هغه سره د ده استوګنه هم وي). نو د داسې مخلص شاګرد ګواهي به د خپل استاذ په حق کې نه قبلول کيږي. او له نبي کريم ﷺ څخه چې کوم دا حديث روايت سوی دی "لَا شَهَادَةَ لِلْقَانِعِ بِأَهْلِ الْبَيْتِ لَهُمْ" يعني کوم سړی چې د يو کور والا خادم او تابع وي او د هغو کار او خدمت کوي او د هغو سره اوسيږي، نو د هغه ګواهي به د مذکوره کور والا په حق کې نه قبلول کيږي. له دغه حديث څخه همداسې خاص کس مراد دی.

②... دويم قول دا دی چې له "أَجِيْر" څخه هغه مزدور مراد دی کوم چې د سالانه يا مياشتنانه يا روزانه په أجرت د يو چا سره کار کوي، نو که داسې مزدور د خپل مالک (مستأجر) په حق کې ګواهي ورکړي، نو د هغه ګواهي به نه قبلول کيږي؛ ځکه مزدور (اجير) چې خپل د مزدورۍ (اجارې) په مودت کې هر کار کوي، هغه ټوله د خپل مالک لپاره کوي، نو ځکه د هغه ګواهي به هم د مالک لپاره وي، او څرنګه چې هغه ته پر دې ګواهۍ ورکولو هم أجرت حاصليږي، نو ځکه هغه به داسې وي لکه په أجرت او پيسو سره درول سوی ګواه، او څوک چې په أجرت او د پيسو لپاره ګواهي ورکوي د هغه ګواهي نه قبلول کيږي، نو ځکه به دا اجير ګواهي د خپل مستأجر په حق کې هم نه قبلول کيږي.

## د خاوند او ښځې د ګواهۍ حکم

قَالَ: وَلَا يُقْبَلُ شَهَادَةُ أَحَدِ الزَّوْجَيْنِ لِلْآخَرِ فرمايي: له خاوند او ښځې څخه به د يوه ګواهي د بل لپاره نه قبلول کيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تُقْبَلُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې هغه به قبلول کيږي لِأَنَّ الْأَمْلَاكَ بَيْنَهُمَا مُتَمَيِّزَةٌ وَالْأَيْدِيْ مُتَحَيِّزَةٌ ځکه چې د خاوند او ښځې ملکيتونه يو له بل څخه جلا دي او قبضې يې هم سره عليحده دي وَلِهٰذَا يَجْرِي الْقِصَاصُ وَالْحَبْسُ بِالدَّيْنِ بَيْنَهُمَا او په همدې وجه د دواړو تر منځ قصاص او د قرض په وجه قيدول جاري دي وَلَا مُعْتَبَرَ بِمَا فِيْهِ مِنَ النَّفْعِ او هغه نفع لره هيڅ اعتبار نسته کوم چې د دوی په ګواهۍ کې موجوده ده لِثُبُوْتِهِ ضِمْنًا ځکه چې دا نفع ضمناً ثابته ده كَمَا فِي الْغَرِيْمِ إِذَا شَهِدَ لِمَدْيُوْنِهِ الْمُفْلِسِ لکه د قرضخواه په مسئله کې [چې د هغه لپاره ضمناً نفع ثابتيږي] کله چې هغه د خپل مفلس مقروض لپاره [د مال] ګواهي ورکړي [مفلس د لام

په تشديد سره دی. "مُفلس" هغه غريب او مفلس کس ته وايي چي قاضي د هغه د مفلسوالي اعلان کړی وي (اثمار الهدايه) | وَلَنَا مَا رَوَيْنَا او زموږ دليل هغه دی کوم چي [مخکي] موږ روايت کړی. لِأَنَّ الِانْتِفَاعَ مُتَّصِلٌ عَادَةً او ځکه چي عموماً [د ښځي او خاوند] منفعت سره متصل وي وَهُوَ الْمَقْصُودُ او همدا مقصود دي فَيَصِيرُ شَاهِدًا لِنَفْسِهِ مِنْ وَجْهٍ نو ځکه ګواه به من وجه [په يوه اعتبار سره] د خپل ځان لپاره ګواهي ورکونکی وي أَوْ يَصِيرُ مُتَّهَمًا يا هغه به متهم [تورن] وګرځي بِخِلَافِ شَهَادَةِ الْغَرِيمِ په خلاف د قرضخواه د ګواهۍ لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَى الْمَشْهُودِ بِهِ ځکه قرضخواه چي د کوم مال په باره ګواهي ورکړي ده پر هغه د ده هيڅ ولايت نسته.

**اللغات**: ﴿متميّزة﴾ د تفعّل د باب مفعول دی: يو له بل څخه جلا، سره بېل. ﴿متحيّزة﴾ مخکني صيغه ده. د دې لفظ خپله معنیٰ ده: منضم، سره ضم. مراد ځني جلا او عليحده دي، مُتعيّن (احسن الهداية، اشرف الهدايه). ﴿الحبس﴾ د ضرب د باب مصدر دی: منع کول (راګرځول). قيدول. بندي کول. ﴿غريم﴾ چا چي بل چا ته قرض ورکړی وي، د قرض مالک. قرضخواه (قرض غوښتونکی). ﴿مشهود به﴾ د کوم شي په باره کي چي ګواهي ورکول سي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي زموږ په نېز د خاوند ګواهي د خپلې ښځي په حق کي او د ښځي ګواهي د خپل خاوند په حق کي مقبوله نه ده. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د خاوند او ښځي ګواهي يو د بل په حق کي مقبوله او معتبره ده.

**د امام شافعي دليـل**: دا دی چي يو د بل په حق کي د خاوند او ښځي د ګواهۍ په قبلولو سره نه شهادت لنفسه لازميږي او نه د خپلې نفع لپاره د ګواهۍ ورکولو تهمت پيدا کيږي (يعني دا نه د خپل ځان لپاره ګواهي ورکول دي او نه د خپلې فايدې لپاره ګواهي ورکول دي)؛ ځکه چي د ښځي او خاوند ملکيت يو له بل څخه جلا او عليحده وي او هر يو په جلا توګه پر خپل ملکيت قابض وي همدا وجه ده که په دوی کي يو بل قتل کړي (مثلاً ښځه خپل خاوند قتل کړي) نو پر هغه قصاص واجبيږي. يا که په دوی کي ديوه پر بل قرض باندي وي (مثلاً د ښځي پر خاوند قرض باندي وي) او مقروض (خاوند) د قرض په اداء کولو کي ټال مټول کوي، نو د قرضخواه (ښځي) پر غوښتنه به قاضي دا مقروض (خاوند) بنديخانې ته اچوي. له دې څخه معلوميږي چي د خاوند او ښځي ملکيت او منافع يو له بل څخه جلا دي. لهذا کله چي هغه سره جلا دي، نو د ښځي او خاوند لپاره به ديوه په حق کي د بل په ګواهي

ورکولو سره نه شهادت لنفسه لازميږي او نه به تهمت او شبهه پيدا کيږي، نو ځکه د خاوند او ښځې ګواهي به يو د بل په حق کې مقبوله او معتبره وي.

پاته سو دا سوال چې خاوند او ښځه خو ډېر سره نژدې او غمخواره وي او هريو د بل مال خپل مال ګڼي او هريو د بل نفع او نقصان خپل نفع او نقصان ګڼي، نو ځکه يو د بل په حق کې د دوی د ګواهۍ په قبلولو کې که څه هم د ګواه حقيقي نفع نسته ليکن د نفع شبهه خامخا پکښې سته، او څرنګه چې د ګواه حقيقي نفع د ګواهۍ له اداء او قبول څخه مانع ده، همداسې به د نفع شبهه هم د ګواهۍ له اداء او قبول څخه مانع وي او يو د بل په حق کې به د خاوند او ښځې ګواهي له قبلولو څخه منع کوي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله له طرفه د دغه سوال جواب دا دی چې د ګواه کومه نفع چې دلته په نظر راځي، هغه نفع حقيقتاً د ده لپاره د مقصود په توګه (قصداً) نه ده ثابته سوې بلکې په ضمني توګه ثابته سوې ده، او په ضمني توګه ثابتېدونکې نفع لره هيڅ اعتبار نسته، نو ځکه په دې نفع کې به د تهمت شبهه نه وي او د خاوند او ښځې ګواهي به يو د بل په حق کې مقبوله وي.

د دې مثال داسې دی لکه قرضخواه چې د خپل مفلس مقروض (پوره وړی) لپاره د مال ګواهي ورکړي، نو که څه هم په دې ګواهۍ کې د قرضخواه نفع سته چې هغه ته به خپل قرض حاصل سي، ليکن بيا هم د مقروض په حق کې د هغه ګواهي قبلول کيږي؛ ځکه چې دا نفع ضمناً ثابته سوې ده، نه قصداً، نو په دې وجه دا نفع د ګواهۍ له قبول څخه مانع نه ده، همداسې په دې مسئله کې چې د خاوند او ښځې په ګواهۍ سره کومه نفع دوی ته حاصليږي هغه هم ضمني ده، نو ځکه هغه به د دوی په حق کې د ګواهۍ له قبول څخه مانع نه وي او د ښځې او خاوند ګواهي به يو د بل په حق کې قبلول کيږي.

**زموږ دليل:** هغه حديث دی کوم چې په تېر عبارت کې ذکر سو چې په هغه کې دا حکم هم مذکور دی "وَلَا الْمَرْأَةِ لِزَوْجِهَا وَلَا الزَّوْجِ لِامْرَأَتِهِ" يعني نه د خاوند لپاره د ښځې ګواهي مقبوله ده او نه د ښځې لپاره د خاوند ګواهي مقبوله ده، له دې څخه معلومه سوه چې د احد الزوجين ګواهي به يو د بل په حق کې نه قبلول کيږي.

زموږ عقلي دليل دا دی چې عموماً د خاوند او ښځې منافع هم سره متصل او مشترک وي، او هغوی له خپلو منافعو څخه په مشترکه توګه نفع هم حاصلوي، همدا وجه ده چې د خاوند په مالدار والي (شتمن والي) سره ښځه او د ښځې په مالدار والي سره خاوند مالدار ګڼل کيږي، او مقصود همدا نفع وي، نو ځکه که د احد الزوجين ګواهي يو د بل په حق کې مقبوله وګرځول سي نو من وجه (په يوه اعتبار سره) به شهادت لنفسه لازم سي يا کم از کم به د شهادت لنفسه شبهه او تهمت پيدا سي، او په دې

دواړو صورتونو کې شهادت يعني ګواهي ورکول صحيح نه دي، نو ځکه موږ د خاوند او ښځې ګواهي يو د بل په حق کې مقبوله نه ده ګرځولې.

بخلاف شهادة الغريم إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب دی، حاصل يې دا دی چې د خاوند او ښځې ګواهي د قرضخواه پر ګواهۍ قياسول صحيح نه دي؛ ځکه قرضخواه ته پر مشهودبه هيڅ ولايت نشته (يعني قرضخواه چې د مقروض د مال په هکله ګواهي ورکړې ده پر هغه مال قرضخواه هيڅ واک او ولايت نه لري)، ځکه چې مشهودبه خو د مقروض مال دی، نه د قرضخواه، لهذا کله چې پر مشهودبه مال قرضخواه ته هيڅ ولايت حاصل نه دی، نو هغه به د مشهودبه مال په ګواهي ورکولو کې متهم (تورن) هم نه وي، او کله چې هغه متهم نه دی، نو ځکه د هغه ګواهي به مقبوله او معتبره هم وي. د دې په خلاف خاوند پر خپل ښځې نګران او واکمن وي او عموماً هغه د خپل ښځې په مال کې تصرف کوي، نو ځکه يو د بل په هکله يا د يوه او بل د مال په هکله به د ښځې او خاوند په ګواهي ورکولو کې تهمت وي او ګواه (يعني ښځه يا خاوند) به متهم وي، او کله چې ښځه او خاوند يو د بل په ګواهۍ کې متهم دي، نو ځکه د هغو ګواهي به يو د بل په حق کې مقبوله هم نه وي.

## د غلام په حق کې د مالک (مولیٰ) د ګواهۍ حکم

وَلَا شَهَادَةُ الْمَوْلٰى لِعَبْدِهٖ او نه د مالک ګواهي د خپل غلام لپاره مقبوله ده لِأَنَّهٗ شَهَادَةٌ لِنَفْسِهٖ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ إِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَى الْعَبْدِ دَيْنٌ ځکه چې دا په هر اعتبار سره د خپل ځان لپاره ګواهي ده، کله چې پر غلام قرض نه وي أَوْ مِنْ وَجْهٍ إِنْ كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ يا په يوه اعتبار سره د خپل ځان لپاره ګواهي ده، که چيرې پر هغه قرض وي لِأَنَّ الْحَالَ مَوْقُوفٌ مُرَاعًى ځکه چې د غلام حالت موقوف او رعايت کړی سوی دی وَلَا لِمُكَاتَبِهٖ او نه د مالک ګواهي د خپل مکاتب لپاره مقبوله ده لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَلَا شَهَادَةُ الشَّرِيكِ لِشَرِيكِهٖ فِيمَا هُوَ مِنْ شَرِكَتِهِمَا او نه د شريک ګواهي د خپل شريک لپاره په داسې شي کې مقبوله ده کوم چې د دواړو له شرکت څخه وي لِأَنَّهٗ شَهَادَةٌ لِنَفْسِهٖ مِنْ وَجْهٍ ځکه چې دا من وجه د خپل ځان لپاره ګواهي ده لِاشْتِرَاكِهِمَا ځکه چې [په هغه مشهودبه شي کې] دواړه شريکان دي وَلَوْ شَهِدَ بِمَا لَيْسَ مِنْ شَرِكَتِهِمَا او که چيرې هغه د داسې شي په هکله ګواهي ورکړي کوم چې د دوی له شرکت څخه نه وي تُقْبَلُ نو د هغه ګواهي به قبلول کيږي

لِانْتِفَاءِ التُّهْمَةِ ځکه چي [په دې صورت کې] تهمت نسته.

**اللغات**: ﴿مولیٰ﴾ د غلام مالک، ﴿مراعیٰ﴾ د مفاعلې د باب مفعول دی: رعایت کړی سوی، لحاظ کړی سوی. ﴿انتفاء﴾ د افتعال د باب مصدر دی: نفي کېدل، نیستېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي د مالک ګواهي د خپل غلام په حق کي مقبوله نه ده؛ دلیل هغه حدیث دی کوم چي مخکښي تېر سو چي په هغه کي د "وَلَا الْمَوْلٰی لِعَبْدِهٖ" په حکم سره د خپل غلام په حق کي د مالک د ګواهی منع سوې ده چي هغه به نه قبلول کیږي.

او عقلي دلیل دا دی چي د غلام دوه حالتونه دي: ① پر هغه به د خلکو قرض وي، ② یا به نه وي، او په دې دواړو صورتونو کي د مالک لپاره د خپل غلام په حق کي ګواهي ورکول جائز نه دي، ځکه که اول صورت وي یعني پر غلام د خلکو قرض نه وي، نو په دې صورت کي به د مالک ګواهي په هر اعتبار سره د خپل ځان لپاره وي، ځکه چي غلام او د غلام هر څه د هغه د مالک وي او هغه د خپل هر څه سره د مالک تر ملکیت لاندي وي، نو ځکه د غیر مقروض غلام په حق کي ګواهي ورکول داسي دي لکه د خپل ځان په حق کي ګواهي ورکول، او د خپل ځان په حق کي د انسان ګواهي مقبوله نه ده، لهذا د غیر مقروض غلام په حق کي به هم د هغه د مالک ګواهي نه قبلول کیږي.

②... او که دویم صورت وي یعني غلام مقروض وي، نو په دې صورت کي به د هغه په حق کي د مالک ګواهي مِن وَجه (په یوه اعتبار سره) د خپل ځان لپاره وي، په دې توګه چي د مقروض غلام حالت او معامله موقوف ساتل کیږي، یعني که چیري د قرض مالکان (قرضخواهان) وغواړي چي دا غلام دي زموږ په قرض کي خرڅ کړی سي او بیا هغه خرڅ کړی سي، نو دا غلام به د خپل مالک په حق کي اجنبي وګرځي، او د اجنبي (پردي سړي) په حق کي ګواهي ورکول جائز دي، نو ځکه په دې صورت کي به د مالک ګواهي د هغه په حق کي جائز او مقبوله وي. او که چیري مالک په خپله د غلام قرض اداء کړي، نو ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي به دا غلام د مخکښي په څېر د خپل مالک مملوک او غلام وي او په دې صورت کي به د مالک ګواهي د هغه په حق کي ناجائز او نامقبوله وي، لهذا کله چي د غلام د مقروض کېدلو په صورت کي دغه دواړه احتماله سته، نو ځکه د دواړو په اعتبار ولو سره به د دې غلام په حق کي د مالک ګواهي مِن وَجه د خپل ځان لپاره وي. او څرنګه چي مِن کُلِّ وجه د ځان لپاره ګواهي ورکول ناجائز دي همداسي مِن وَجه د ځان لپاره ګواهي ورکول هم ناجائز او نامقبول دي.

لا لمکاتبه إلخ: فرمایي د مالک ګواهي چي څرنګه د خپل غلام په حق کي مقبوله نه ده، همداسي د خپل مکاتب په حق کي هم مقبوله نه ده؛ ځکه چي د غلام په څېر د مکاتب هم دوه حالتونه ا

صورتونه دي، يعني که چيرې مکاتب خپل بدل کتابت اداء کړي نو هغه به د مالک لپاره اجنبي وګرځي، او که بدل کتابت اداء نه کړي نو بيرته به د مالک د غلامتوب وطرف ته را وګرځي (لکه مخکې چې په تفصيل سره دا مسئله ذکر سوې ده). او تاسو ته معلومه ده چې د اجنبي کېدلو په صورت کې د مالک ګواهي د هغه په حق کې مقبوله ده او د غلام کېدلو په صورت کې مقبوله نه ده. لنډه دا چې دلته هم دواړه احتمال سته، او د دواړو په اعتبار کولو سره به د مکاتب په حق کې د مالک ګواهي من وجه د خپل ځان لپاره (شهادت لنفسه) وي، او دا ناجائز او نا مقبول دي. نو ځکه د مالک ګواهي به د خپل مکاتب په حق کې مقبوله نه وي.

**ولا شهادة الشريك إلخ:** فرمايي که يو شريک د بل شريک په حق کې ګواهي ورکړي، نو دې ته به کتل کيږي چې هغه د کوم شي په باره کې ګواهي ورکړې ده؟ که چيرې هغه د داسې شي په باره کې ګواهي ورکړې وي چې په هغه کې دوی دواړه شريکان وي، نو ګواهي به يې نه قبلول کيږي؛ ځکه چې دا من وجه د خپل ځان لپاره ګواهي ده، او د خپل ځان لپاره ګواهي ورکول (شهادت لنفسه) ناجائز او نا مقبول دي، نو ځکه به دا ګواهي هم مقبوله نه وي. او که چيرې هغه د داسې شي په باره کې ګواهي ورکړې وي چې دوی په هغه کې شريکان نه وي، نو په دې صورت کې به د يوه شريک ګواهي د بل شريک په حق کې قبلول کيږي؛ ځکه چې په دې صورت کې د شهادت لنفسه تهمت او شبهه نسته، نو ځکه به دا ګواهي مقبوله وي.

## د خپل ورور او اکا په حق کې د ګواهي حکم

| |
|---|
| وَتُقْبَلُ شَهَادَةُ الرَّجُلِ لِأَخِيهِ وَعَمِّهِ او د خپل ورور او اکا ر لپاره به د سړي ګواهي قبلول کيږي لِانْعِدَامِ التُّهْمَةِ ځکه چې تهمت نسته لِأَنَّ الْأَمْلَاكَ وَمَنَافِعَهَا مُتَبَايِنَةٌ ځکه چې ملکيتونه او د هغوی منافع سره جلا دي وَلَا بُسُوطَةَ لِبَعْضِهِمْ فِي مَالِ الْبَعْضِ او بعضو ته د بعضي په مال کې انبساط ابې تکلفي او اجازت] نسته. [يعني له اجازت څخه بغير په آزاده توګه يو د بل په مال کې تصرف نه سي کولای]. |

**اللغات:** ﴿متباينة﴾ د تفاعل د باب مؤنث فاعل دی: يو له بل څخه جلا (سره جلا).

﴿بسوطة﴾ انبساط، بساطت، يعني بې تکلفي (په آزاده توګه).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د يوه ورور ګواهي د بل ورور په حق کې او د وراره ګواهي د خپل اکا په حق کې مقبوله ده. همداسې له قرابت ولادت څخه بغير نور په ټولو قريبانو کې د يوه ګواهي د بل په حق کې مقبوله ده؛ دليل دا دی چې د ورونو، وراره، اکا، او داسې نورو قريبانو ملکيتونه

او منافع یو له بل څخه جلا وي او بلا تکلفه (په آزاده توګه) یو د بل په مال کي د تصرف کولو اختیار هم نه لري، لهذا کله چي د دوی ملکیتونه او منافع سره جلا دي او یو د بل په مال کي بلا تکلفه تصرف هم نه سي کولای، نو یو به د بل په حق کي په ګواهي ورکولو کي متهم هم نه وي. لهذا کله چي دا ګواه په خپل ګواهي ورکولو متهم نه سو، نو ځکه د هغه ګواهي به قبلول کیږي؛ ځکه چي د نا متهم ګواه ګواهي مقبوله ده.

## د مخنث د ګواهی حکم

قَالَ: وَلَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ مُخَنَّثٍ فرمایي: او د مخنث (نربنځي) ګواهي به نه قبلول کیږي وَمُرَادُهُ الْمُخَنَّثُ فِي الرَّدِيْءِ مِنَ الْأَفْعَالِ او د مصنف رَحِمَهُ الله مراد هغه مخنث دی کوم چي بد افعال [لواطت او داسي نور] کوي لِأَنَّهُ فَاسِقٌ ځکه چي هغه فاسق دی فَأَمَّا الَّذِيْ فِيْ كَلَامِهِ لِيْنٌ وَفِيْ أَعْضَائِهِ تَكَسُّرٌ او پاته سو هغه کس چي په خبرو کي یې [د ښځي په څیر] نرمي وي او په اندامو کي یې نازکوالي [ښځي والي] وي فَهُوَ مَقْبُوْلُ الشَّهَادَةِ نو د هغه ګواهي مقبوله ده.

**اللغات:** ﴿مخنث﴾ په عربي کي اصل نربنځي ته "خُنْثٰی" وایي کوم چي د نارینه اندام یعني ذکر هم لري او د ښځي فرج هم لري، او مخنث هغه سړي ته وایي کوم چي بالکل د ښځو چمونه او حرکتونه کوي، صاحب د معجم یې داسي تعریف کړی دی: "الرَّجُلُ الْمُتَشَبِّهُ بِالنِّسَاءِ فِيْ مِشْيَتِهٖ وَكَلَامِهٖ وَتَعَطُّفِهٖ وَتَلَيُّنِهٖ" (یعني هغه سړی کوم چي په خپل تګ، کلام، میلان او نرمی کي د ښځي سره مشابهت کونکی وي). او "خُنْثٰی مُشْكِلٌ" هغه کس ته وایي چي نه د نارینه اندام لري او نه د ښځي (معجم لغة الفقهاء). ﴿رديء﴾ بد. خراب. ﴿لين﴾ نرمي. ﴿تكسر﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: ماتوالی، باریکوالی، نازکوالي. (معجم لغة الفقهاء)

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي هغه کس کوم چي په سینګار او ښکلا کي د ښځو مشابهت اختیاروي، زنانه لهجه او رفتار کوي او خلکو ته پر ځان د لواطت قدرت ورکوي، د داسي نربنځي ګواهي مقبوله نه ده؛ ځکه چي هغه فاسق دی (لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي "لَعَنَ اللهُ الْمُخَنَّثِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ" الله تعالیٰ دي پر مخنثو خلکو لعنت وکړي). او مخکي ذکر سوه چي د فاسق ګواهي به نه قبلول کیږي. لهذا د دې مخنث کس ګواهي به هم مقبوله نه وي. ها! د کوم انسان په آواز کي چي فطري نرمي وي او په پیدایشي توګه د هغه اندامونه د ښځي په څېر نرم او سره ایله وي (یعني د هغه چال او انداز، کلام او داسي نور په پیدایشي توګه زنانه وي) او په یو بد او ګنده حرکت سره مبتلا نه وي، نو د هغه ګواهي مقبوله ده؛ ځکه چي هغه فاسق نه دی.

## د نوحه کونکي او بدلچي ښځي د ګواهۍ حکم

وَلَا نَائِحَةٍ وَلَا مُغَنِّيَةٍ او نه دژړونکي ښځي او بدله [سندره] ويونکي ښځي ګواهي مقبوله ده لِأَنَّهُمَا يَرْتَكِبَانِ مُحَرَّمًا ځکه چې هغوی دواړه حرام کار کوي فَإِنَّهُ عليه السلام نَهَى❶ عَنِ الصَّوْتَيْنِ الْأَحْمَقَيْنِ: النَّائِحَةِ وَالْمُغَنِّيَةِ ځکه نبي ﷺ له دوو احمقو [او بې ځايه] آوازو څخه منع کړې ده: د ژړونکي ښځي آواز او د بدلچي ښځي آواز.

**اللغات:** ﴿نائحة﴾ ژړونکې ښځه، هغه ښځه چې پر مړي ژړاوي کوي. يو د غم او مصيبت په وجه فطري ژړا ده، د هغه په وجه ګواهي نه ردّ کيږي، دلته له "نائحه" څخه مراد هغه ښځه ده کوم چې په اُجرت او کرايه ژړا کوي چې د هغې کسب او پېشه همدا ژړا وي، نور د هغې هيڅ غم او مصيبت نه وي، داسي نوحه خواني ګناه کبيره ده، ﴿مغنية﴾ بدله او سندره ويونکې ښځه (بدلچي او سندرغاړې ښځه، سروزګره ښځه)، مراد ځني هغه ښځه ده چې د هغې پېشه غزل، سندره او شله وي او همدا يې خپل کسب ګرځولی وي، ﴿الأحمقين﴾ تثنيه د أَحْمَقٌ ده: ناپوه، بې وقوف، نادان.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دي چي د کسب او پېشې په توګه د ژړونکي ښځي او سندره ويونکي ښځي ګواهي مقبوله نه ده؛ ځکه دا دواړي ښځي حرام کار کوي؛ او دا فعل ځکه حرام دی چي نبي کريم ﷺ له دغه دواړو بې ځايه آوازو څخه منع کړې ده، او کوم کس چي حرام او ممنوع کار کوي هغه فاسق دی، او د فاسق ګواهي مقبوله نه ده، نو ځکه د مذکوره دواړو ښځو ګواهي به هم مقبوله نه وي.

## د خاوند او ښځي د ګواهۍ حکم

وَلَا مُدْمِنِ الشُّرْبِ عَلَى اللَّهْوِ او نه په دائمي توګه د شراب چيښونکي ګواهي مقبوله ده لِأَنَّهُ ارْتَكَبَ مُحَرَّمَ دِينِهِ ځکه هغه داسي کار وکړی کوم چي د هغه په دين کي حرام دی وَلَا مَنْ يَلْعَبُ بِالطُّيُورِ او نه د هغه کس ګواهي مقبوله ده کوم چي مرغ بازي کوي لِأَنَّهُ يُورِثُ غَفْلَةً ځکه چي مرغ بازي غفلت پيدا کوي وَلِأَنَّهُ قَدْ يَقِفُ عَلَى عَوْرَاتِ النِّسَاءِ او ځکه چي [په مرغ بازي کي] کله د هغه نظر د ښځو پر واجب الستر اندامونو پرېوځي (لکه مخ او داسي نور) [په هغه صورت کي کله چي هغه د خپل مرغانو د الوځولو لپاره بام ته وخيږي] بِصُعُودِهِ عَلَى سَطْحِهِ لِيُطَيِّرَ طَيْرَهُ په ختلو سره د هغه وخپل بام ته د دې لپاره چي خپل مرغه والوځوي وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ: وَلَا مَنْ يَلْعَبُ بِالطُّنْبُورِ او په ځيني نسخو کي [ذکر سوي دي]: او نه د

❶ تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الجنائز، باب ماجاء في الرخصة في البكاء، حديث رقم: ۱۰۰۵.

هغه کس گواهي مقبوله ده کوم چي په تنبور سره بازي کوي وَهُوَ الْمُغَنِّيْ او هغه بدلچي [غزلچي] دی.

**اللغات**: ﴿المُدْمِن﴾ دافعال د باب فاعل دی: مداومت کونکی، دائمي کونکی، همېشه کونکی، أَدْمَنَ يُدْمِنُ إِدْمَانًا: يو کار په پابندي سره همېشه کول. ﴿اللَّهْو﴾ عربي قاموسونو يې داسي تعريف کړی دی: ①... "التَّرْوِيْحُ عَنِ النَّفْسِ بِمَا لَا تَقْتَضِيْهِ الْحِكْمَةُ" په داسي کار او داسي شي سره نفس ته راحت او سکون ورکول چي هغه بالکل د حکمت او پوهي خلاف وي. ② د نفسي خواهش لوبي او بازۍ، نو د "عَلَى اللَّهْوِ" معنیٰ ده: د نفسي راحت او خوند اخيستلو پر بناء. ﴿يورث﴾ د افعال د باب مضارع ده: تر خپل شا پرېښوول، يعني مرغ بازي تر خپل شا غفلت پرېږدي، مراد سبب جوړېدل او پيدا کول دي، يعني دا غفلت پيدا کوي او د غفلت سبب جوړېږي. ﴿عورات﴾ جمع د "عَوْرَةٌ": هغه ځايونه چي په شريعت کي يې پټول (ستر) واجب دی (معجم لغة الفقهاء). ﴿صعود﴾ د سمع د باب مصدر دی: ختل (لوړ ځای ته ختل). ﴿سطح﴾ چت، بام. ﴿ليطيّر﴾ د تفعيل د باب مضارع ده، په شروع کي يې "لام جاره" دی چي تر هغه وروسته "أَن ناصبه" مقدر دی: الوځول، په هوا کول. ﴿الطنبور﴾ (باجې ته نژدې) د موسيقۍ يو آله ده چي په پښتو کي تنبور، تمبور او دمبوره ورته وايي (زاهد پښتو سيند). ﴿مغنّي﴾ غزلچي، بدلچي، سندرغاړی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کوم سړی د همېشه لپاره شراب چيښي، د هغه گواهي مقبوله نه ده؛ ځکه چي په اسلام کي شراب چيښل حرام دي، او کوم سړی چي حرام کار کوي، هغه فاسق دی او د فاسق گواهي نامقبوله ده. نو ځکه د دائمي شراب خوره گواهي به هم نامقبوله وي.

ولا من يلعب الخ: مرغانو ته خوراک ورکول يا څه ور زده کول دا هيڅ پروا نه لري. لېکن څوک چي مرغه باز وي. په مرغانو بازي کوي (او هغوی د جنگ او بازۍ لپاره ساتي، لکه په اوسني وخت کي کرک بازي، کوتر بازي او داسي نور)، نو د داسي کس گواهي مقبوله نه ده. ځکه چي دا فعل په انسان کي غفلت او لا پروايي پيدا کوي (ځکه شپه او ورځ دا شوق د هغه پر زړه او ذهن سپور وي). او د غفلت په وجه د هغه پر ذهن هېره (نسيان) غلبه کوي. او د هيرۍ په وجه په مشهود به کي د کمي وزياتوب کولو امکان سته (يعني د کوم شي په باره چي کي هغه گواهي ورکوي. د غفلت او هيري په وجه به د هغه شي په مقدار کي کمي وزياتوب وکړي. يا سرچپه او نامعقوله گواهي به ورکړي)، او په مشهود به کي د کمي وزياتوب کونکی کس گواهي مقبوله نه وي، نو ځکه د مرغه باز گواهي هم مقبوله نه ده.

دويم دليل دا دی چې مرغه باز ځينې وخت د خپل مرغانو دالوځلو (په هوا کولو) لپاره بام ته خيژي چې د هغه په وجه د ده نظر پر نا محرمو پرديو ښځو هم پريوځي، او نا محرمو ښځو ته کتل حرام دي (همداسې په مرغ بازي کې خُمار هم راځي کوم چې يو حرام او ممنوع کار دی)، نو په دې وجه هم د مرغه باز ګواهي مقبوله نه ده.

وفي بعض النسخ إلخ: فرمايي د قدوري په ځينې نسخو کې د "الطُّيُوْر" پر ځای "الطُّنْبُوْر" ذکر سوی دی، په دې صورت کې به د عبارت مطلب دا وي چې شوک چې په تنبور (تمبور) سره بازي کوي يعنې هغه رغوي او په هغه سره خپل سات تيروي، نو د هغه ګواهي مقبوله نه ده؛ ځکه داسې کس هم مُغنّي (غزلچي او سروزګر دی) دی، او د مُغنّي ګواهي مقبوله نه ده، نو ځکه د هغه ګواهي به هم مقبوله نه وي.

## د غزلچي (بدلچي) کس او د کبيره ګناه کونکي د ګواهي حکم

وَلَا مَنْ يُغَنِّيْ لِلنَّاسِ او نه د هغه کس ګواهي مقبوله ده کوم چې خلکو ته غزلې (اسندري) وايي لِأَنَّهٗ يَجْمَعُ النَّاسَ عَلَى ارْتِكَابِ كَبِيْرَةٍ ځکه چې هغه خلک د کبيره ګناه پر کولو راجمع کوي وَلَا مَنْ يَأْتِيْ بَابًا مِنَ الْكَبَائِرِ الَّتِيْ يَتَعَلَّقُ بِهَا الْحَدُّ او نه د هغه کس ګواهي مقبوله ده کوم چې له داسې کبيره ګناهونو څخه يو ګناه کوي چې د هغوی سره حدّ متعلق کيږي (يعنې چې د هغوی مُرتکب د حد مستحق کيږي) لِلْفِسْقِ د فاسقوالي په وجه (يعنې ځکه چې داسې کس فاسق دی) قَالَ: وَلَا مَنْ يَدْخُلُ الْحَمَّامَ مِنْ غَيْرِ مِئْزَرٍ فرمايي: او نه د هغه کس ګواهي مقبوله ده کوم چې د لنګ څخه بغير حمام ته داخليږي لِأَنَّ كَشْفَ الْعَوْرَةِ حَرَامٌ ځکه چې د عورت لڅول حرام دي أَوْ يَأْكُلُ الرِّبَوا أَوْ يُقَامِرُ بِالنَّرْدِ وَالشِّطْرَنْجِ يا کوم کس چې سود خوري يا په نرد او شطرنج سره خُمار کوي لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ مِنَ الْكَبَائِرِ ځکه چې دا ټول له کبيره ګناهونو څخه دي وَكَذٰلِكَ مَنْ تَفُوْتُهُ الصَّلَاةُ لِلْاِشْتِغَالِ بِهِمَا او همدارنګه د هغه کس (ګواهي مقبوله نه ده) چې له هغه څخه د نرد او شطرنج په وجه لمونځ پاتيږي فَأَمَّا مُجَرَّدُ اللَّعِبِ بِالشِّطْرَنْجِ او کوم چې محض شطرنج کول (چې په هغه کې دا پورتنۍ خرابي نه وي) فَلَيْسَ بِفِسْقٍ مَانِعٍ مِنَ الشَّهَادَةِ نو هغه يو داسې فسق نه دی کوم چې له ګواهي څخه مانع وي لِأَنَّ

لِلاجْتِهَادِ فِيْهِ مَسَاغًا ځکه چې په دې کې اجتهاد لره ګنجايش شته وَشُرِطَ فِي الْأَصْلِ أَنْ يَكُوْنَ آكِلُ الرِّبَوا مَشْهُوْرًا بِهِ او په مبسوط کې دا شرط لګول سوی دی چې سود خور به په سود خوري کې مشهوره [هم] وي لِأَنَّ الْإِنْسَانَ قَلَّمَا يَنْجُوْ عَنْ مُبَاشَرَةِ الْعُقُوْدِ الْفَاسِدَةِ ځکه چې انسان له فاسدو عقدونو څخه ډېر کم خلاصيږي وَكُلُّ ذٰلِكَ رِبًا او دا ټوله سود دي [يعني د سود په معنی سره دي].

**اللغات**: ﴿يُقَامِرُ﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: خمار کول. ﴿شَطْرَنْج﴾ او شِطْرَنْج (دا لفظ په عربي کې عموماً د شين په کسره سره استعماليږي، همدا يې مختار لغت دی)، سترنج، د پخواني وخت يوه مشهوره لوبه ده. صاحب د معجم الوسيط يې داسې تعريف کړی دی: "لُعْبَةٌ تُلْعَب عَلٰى رُقْعَةٍ وَتُمَثِّلُ دَوْلَتَيْن مُتَحَارِبَتَيْنِ بِاثْنَتَيْنِ وَثَلَاثِيْنَ قِطْعَةٍ... إلخ" (يعني دا يو ډول لوبه ده چې پر داسې پارچه [او تخته] باندې کېږي چې هغه څلور شپېته (۶۴) خانې لري او د دوو جنګي ملکونو په شکل پر دوه دېرش (۳۲) دانو (ګټو) باندې لوبول کېږي. يعني په هغه کې له دواړو طرفو څخه د هر طرف والا لوبغاړی خپل ځان يو جنګي ملک تصور کوي او دوی په خپل مينځ کې په (۳۲) ګټو او دانو سره مقابله کوي، او په دې (۳۲) ګټو کې دوه ګټي د باچا او دوه ګټي د وزير په توګه لوبول کېږي، او پاته ګټي د فوج او داسې نورو په توګه لوبول کېږي). ﴿نَرْد﴾ دا هم يو ډول لوبه ده چې د ايران پخواني باچا "ارد شير بن بابک" ايجاد کړې وه (دا لوبه پر ټېبل باندې کېږي، او د ډبرو او دوو غميانو په ذريعه لوبول کېږي، په اوسنۍ عربي کې "الطَّاوِلَة" ورته وايي).

**تشريح**: په دې عبارت کې د ګواهي نه قبلېدلو په هکله څو مسئلې بيان سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده چې کوم کس خلکو ته غزلې او سندرې وايي، د هغه ګواهي مقبوله نه ده؛ ځکه داسې کس خلک پر "ګناه کبيره" را جمع کوي، او د ګناه پر کار د خلکو را جمع کول په خپله يو کبيره ګناه ده او حرام کار دی، او د حرام کار کونکي سړي ګواهي مقبوله نه ده، لهذا د سندرو ويونکي سړي (غزلچي) ګواهي به هم مقبوله نه وي؛ ځکه چې هغه فاسق دی او د فاسق په هکله تاسو ته معلومه ده چې ګواهي يې مقبوله نه ده.

---

• محض شطرنج کول چې په هغه کې خُمار نه وي او د هغه په وجه لمونځ نه پاتيږي او د دروغو قسم نه پکښې اخيستل کيږي، نو په دې سره انسان فاسق نه ګرځي او د هغه ګواهي مقبوله ده: او په دې سره ځکه انسان فاسق نه ګرځي چې په دې کې د علماؤ اختلاف دی، د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نيز شطرنج کول حلال او جائز دي، لهذا کوم شی چې د جليلُ القدر علماؤ په نيز جائز وي، د هغه مُرتکب څنګه فاسق کېدای سي!، نو ځکه د محض شطرنج کولو والا ګواهي به مقبوله وي.

**يادونه**: که يو څوک تنها د ځان سره د خپل طبيعت سازۍ او ديغت ختمولو لپاره غزله او سندره وايي (بغير له سروز ښځه)، نو د امام سرخسي رَحِمَهُ الله په قول دا مکرو نه دي، ځکه براء بن مالک رضي الله عنه يو متقي صحابي وو او هغه به د ځان سره اشعار او غزلي ويلې. لېکن شيخ الاسلام خواهرزاده ويلي دي چي غزله او سندره ويل په هر صورت کي مکروه دي، هغه فرمايي چي حضرت براء رضي الله عنه به فقط مباح اشعار ويل چي په هغه کي به د وعظ او حکمت خبري وې، او د مباح اشعارو په ويلو کي هيڅ پروا نسته. (اشرف الهدايه)

(۲)... دويمه مسئله دا ده چي کوم څوک داسي کبيره ګناه کوي چي د هغه سره حد متعلق وي، لکه غلا، زنا او داسي نور، نو د هغه ګواهي هم مقبوله نه ده؛ ځکه د داسي ګناه په کولو سره هغه فاسق وګرځېدی او د فاسق ګواهي مقبوله نه ده، نو ځکه د هغه ګواهي به هم مقبوله نه وي.

(۳)... درېيمه مسئله دا ده چي که يو سړی د لنګ ښځه بغير د لڅوالي په حالت کي حمام ته ځي او د عورت پټولو خيال نه ساتي، نو د هغه ګواهي مقبوله نه ده (له حمام ښځه هغه غسلخانه مراد ده چي په هغه کي ډېر خلک يو ځای غسلونه کوي، لکه پخوا چي داسي حمامونه رائج ول، او لکه داوسني وخت د غسل او اوبازۍ تالابونه)؛ د داسي کس ګواهي ځکه مقبوله نه ده، چي په بدن کي د عورت والا حصه پټول واجب دي او د هغه ښکاره کول حرام دي، لهذا عورت نه پټونکی سړی به حرام کاره وي، او د حرام کار کونکي سړي ګواهي مقبوله نه ده، نو ځکه د عورت نه پټونکي سړي ګواهي به هم مقبوله نه وي.

أو يأكل الربوا إلخ: (۴)... د دې حاصل دا دی چي کوم څوک د سُود (ربوا) معامله کوي او سُود خوره وي، يا په نرد او شطرنج سره خمار کوي، يا بغير له خماره په هغوی سره دومره مشغوله او مستغرق وي چي فرض لمونځ ځني قضاء کيږي (يا د نرد او شطرنج په بازۍ کي د درواغو قسمونه اخلي)، نو د داسي سړي ګواهي هم مقبوله نه ده؛ ځکه چي سُود خوري، خمار، لمونځ قصداً پرېښوول (او دروغ قسمونه اخيستل) کبيره ګناه ده، او په حديث مبارک کي پر سُود خوره او خمار ګر لعنت سو دی، نبي ﷺ فرمايلي دي: "لَعَنَ اللهُ آكِلَ الرِّبَوا"، همدارنګه په بل حديث کي يې فرمايلي دي: "مَلْعُوْنٌ مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْد"، لنډه دا چي په دې صورت کي دوې خرابۍ جمع دي: ① دا خلک د ګناه کبيره مرتکب دي، ② او دوی ملعون دي، او کله چي فقط د يوې خرابۍ والا ګواه ګواهي نامقبوله ده، نو په کوم سړي کي چي دوې خرابۍ جمع وي، د هغه ګواهي به څنګه مقبوله وي؟.

وشرط في الأصل إلخ: فرمايي امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي دا شرط لګولی دی چي که سُود خوره سړی په خلکو کي مشهوره وي او د هغه سُود خوري ښکاره او معلومه وي، نو ګواهي به يې نه قبلول کيږي، لېکن که د يو چا سُود خوري پټه او غير مشهوره وي، نو د هغه ګواهي به قبلول کيږي؛ ځکه

چې انسان عموماً د فاسدو عقدونو ارتکاب کوي او ډېر کم خلک داسې دي چې له فاسدو عقدونو څخه مخفوظ پاتېږي او فاسده عقدونه هم د سُود (ربوٰ) په معنیٰ سره دي، (همداسې په کومو هيوادو کې چې کفار او مسلمانان ګډ ژوند کوي په هغوی کې خو له سودي معاملې څخه ځان ساتل ډېر مشکل دي، ځکه چې د کفارو په زياتره معاملو کې لازماً سود موجود وي)، لهذا که چېرې د مطلقاً سُود خوره ګواهي نامقبوله وګرځول سي، نو مقبوله ګواهي والا خلک به په دنيا کې ډېر کم پاته سي او په دې سره به خلک په حرج او ضرر مبتلا سي، حال دا چې په اسلام کې حرج دفع سوی دی، نو ځکه فقط د هماغه کس ګواهي به نامقبوله وي چې د هغه سُود خوري ښکاره او مشهوره وي.

## د سپک (بې پته) کس د ګواهۍ حکم

قَالَ: وَلَا مَنْ يَفْعَلُ الْأَفْعَالَ الْمُسْتَحْقَرَةَ فرمايي: او نه د هغه کس ګواهي مقبوله ده کوم چې سپک کارونه کوي كَالْبَوْلِ عَلَى الطَّرِيْقِ وَالْأَكْلِ عَلَى الطَّرِيْقِ لکه پر لاره متيازې کول او پر لاره خوراک کول لِأَنَّهُ تَارِكٌ لِلْمُرُوْءَةِ ځکه داسې کس د مروت [مړانې] پرېښوونکی دی وَإِذَا كَانَ لَا يَسْتَحْيِيْ عَنْ مِثْلِ ذٰلِكَ او کله چې هغه له دا ډول کارو څخه نه شرميږي لَا يَمْتَنِعُ عَنِ الْكَذِبِ نو هغه به له دروغو څخه هم ځان نه ساتي فَيُتَّهَمُ نو ځکه هغه به متهم وي وَلَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ مَنْ يُظْهِرُ سَبَّ السَّلَفِ او د هغه کس ګواهي به [هم] نه قبلول کيږي کوم چې په ښکاره توګه سلف صالحينو ته بد ورد وايي لِظُهُوْرِ فِسْقِهِ ځکه چې د هغه فسق [فاسق والې] ښکاره دی بِخِلَافِ مَنْ يَكْتُمُهُ په خلاف د هغه کس کوم چې دا پټ ساتي.

**اللغات**: ﴿مُستحقَرة﴾ د استفعال د باب مؤنث مفعول دی: سپک او رذيله، ﴿مَرُوْءة﴾ پر وزن د سَهُوْلَة: مړانه، مېړانه، صاحب د معجم يې داسې تعريف کړی دی: "صِفَةٌ نَفْسِيَّةٌ تَحْمِلُ الإِنْسَانَ عَلَى الأَخْذِ بِحَمِيْدَةِ الأَخْلَاقِ وَتَرْكِ رَدِيْئِهَا" (يعني هغه باطني صفت چې انسان د ښه کارو پر کولو او د بدو (ناوړه) کارو پر پرېښوولو هڅوي)، ﴿سبّ﴾ ښکنځا، بد ورد، ﴿سَلَف﴾ د دې لفظ لغوي معنیٰ ده: پخوا تېر سوی، په اصطلاح کې د دې لفظ درې معناوې دي: ① د انسان پلار، نيکه ګان او قريبان کوم چې تر هغه مخکې تېر سوي وي، يعني پخواني مشران، ② هر هغه نېک عمل کوم چې انسان مخکې کړی وي، ③ صحابه، تابعين، تبع تابعين کوم چې په خير القرون کې تېر سوي دي او داسې نور مجتهدين امامان (معجم لغة الفقهاء)، ﴿يكتم﴾ د نصر مضارع ده: پټول، پټ ساتل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کوم سړی سپک او داسې نا وړه حرکتونه کوي کوم چې د انسانيت او مروت (مړانې) خلاف وي، د هغه ګواهي مقبوله نه ده؛ لکه پر عامه لاره متيازي کول، پر لاره خوراک کول، يا مثلاً يوازې په لنګ يا پرتوګ کې ګرځېدل او داسې نور؛ ځکه داسې سړی د مروت او انسانيت پرېښوونکی دی، او کله چې هغه په دغه ناوړه کارو نه شرمېږي نو په درواغو به هم نه شرمېږي، او کوم څوک چې په درواغو نه شرمېږي، هغه به په خپل ګواهۍ کې متهم وي، او کوم کس چې په خپل ګواهۍ کې متهم وي، د هغه ګواهي نه قبلول کېږي، لهذا د سپک او بې مروته سړي ګواهي به هم مقبوله نه وي. پر دې حکم څلور سره امامان (ائمه اربعه) متفق دي.

يادونه: په کومه ټولنه (معاشره) کې چې پر لاره خوراک کول معيوب نه وي (يعني عيب لو نامناسب کار نه ګڼل کېږي)، هلته داسې خوراک کول د ګواهۍ د نا مقبوليت سبب نه دي. (اثمار الهدايه ج:۹، ص:۲۹۴)

همدارنګه که يو څوک په ښکاره توګه په صحابه وو، تابعينو، ائمه اربعه او مجتهدينو پسې بد ردوايي، د هغه ګواهي هم مقبوله نه ده؛ ځکه داسې کس فاسق دی، او تاسو ته معلومه ده چې د فاسق ګواهي مقبوله نه ده. ها! که يو څوک د دې حضراتو په هکله غلطه عقيده لري لېکن خپله عقيده نه ښکاره کوي، نو د هغه ګواهي قبلول کېدای سي؛ ځکه چې د هغه فسق ظاهر (ښکاره) نه دی، او حکم د ظاهر مطابق کېږي.

## د اهل هوا او بدعتيانو ګواهي

وَتُقْبَلُ شَهَادَةُ أَهْلِ الْأَهْوَاءِ إِلَّا الْخَطَّابِيَّةُ او د "اهلِ هَوا" ګواهي به قبلول کېږي، ما سوا له خطابيه فرقې وَقَالَ الشَّافِعِيُّ لَا تُقْبَلُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې نه به قبلول کېږي لِأَنَّهُ أَغْلَظُ وُجُوهِ الْفِسْقِ ځکه چې دا د فسق له طريقو څخه سخت ترينه [سنګينه] طريقه ده وَلَنَا أَنَّهُ فِسْقٌ مِنْ حَيْثُ الِاعْتِقَادُ زموږ دليل دا دی: چې دا کس د اعتقاد [عقيدې] په اعتبار سره فاسق دی وَمَا أَوْقَعَهُ فِيهِ إِلَّا تَدَيُّنُهُ بِهِ او په دغه اعتقاد [هوی] سره هغه خپل تديّن مبتلا کړی دی فَيَمْتَنِعُ عَنِ الْكَذِبِ نو ځکه هغه به له درواغو څخه ځان ساتي وَصَارَ كَمَنْ يَشْرَبُ الْمُثَلَّثَ أَوْ يَأْكُلُ مَتْرُوكَ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا مُسْتَبِيحًا لِذَلِكَ او دا د هغه کس په څېر دی کوم چې د مباح ګڼلو په خاطر مُثلث شراب وڅښي يا [د مباح ګڼلو په خاطر] د داسې څاروي غوښې وخوري چې پر هغه [د ذبح کولو په وخت کې] قصداً بِسم الله پرېښوول سوې وي بِخِلَافِ الْفِسْقِ مِنْ حَيْثُ التَّعَاطِيْ په خلاف د هغه فسق کوم چې د عمل

[کولو] په اعتبار سره وي [انه د عقيدې په اعتبار سره] أَمَّا الْخَطَّابِيَّةُ فَهُمْ مِنْ غُلَاةِ الرَّوَافِضِ کوم چې خطابيه فرقه ده نو هغوی د غُلو کونکو [متجاوزينو] روافضو يو جماعت دی يَعْتَقِدُونَ الشَّهَادَةَ لِكُلِّ مَنْ حَلَفَ عِنْدَهُمْ چې دوی د هر هغه کس پر ګواهۍ [د جواز] عقيده لري کوم چې د دوی مخته قسم واخلي وَقِيلَ: يَرَوْنَ الشَّهَادَةَ لِشِيعَتِهِمْ وَاجِبَةً او ويل سوي دي: چې دوی د خپلې ډلې والا لپاره ګواهي واجب ګڼي فَتَمَكَّنَتِ التُّهْمَةُ فِي شَهَادَتِهِمْ لِظُهُورِ فِسْقِهِمْ نو ځکه د دوی د فسق [فاسقوالي] ښکاره کېدلو په وجه د دوی په ګواهۍ کي تهمت ځای ونيوی.

**اللغات:** ﴿اهل الأهواء﴾ خواهش پرسته خلک، بدعتيان خلک، کوم خلک چې د نفسي خواهشاتو تابعداري کوي او د سنت او شريعت مخالفت کوي، هغو ته "اهل هوا" وايي، د اهلِ هوا شپږ بنيادي فرقې دي: ① جبريه، ② قدريه، ③ روافض، ④ خوارج، ⑤ مشبهه، ⑥ معطله. بيا په دې ټولو کي هره فرقه دوولس فرقې ده، نو په دې توګه به د اهلِ هوا دو اويا (۷۲) فرقې وي او يوه فرقه به د اهل حق وي کوم ته چې اهل سنت والجماعت وايي، د دې ټولو بحث د علم الكلام په کتابو کي په تفصيل سره بيان سوی دی. ﴿أغلظ﴾ د اسم تفضيل صيغه تر ټولو سخت، بدتر، ﴿وجوه﴾ جمع د وَجْهٌ ده: د دې لفظ څو معناوي دي چې له هغه څخه يوه معنیٰ صورت او طريقه ده. ﴿تَدَيُّن﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: ديانداري، د شريعت پابندي، د مذهبي عقيدې پابندي. ﴿مُثَلَّث﴾ له "ثَلَاثَةٌ" څخه د اسم مفعول صيغه ده: د انګورو اوبو (رسْ) ته چې دومره جوش ورکول سي چې د هغه دوې حصې وسوځي او يوه حصه يې پاته سي، او تر او سه نشه پکښې پيدا سوې نه وي، د اسي انګوري دوښا ته مثلث وايي، ځکه چې په دريو حصو کي يې يوه حصه پاته سوه. د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د دې چيښل حرام دي، لېکن د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حلال او مباح دي، ﴿مستبيحاً﴾ د استفعال د باب فاعل دی: د ځان لپاره مباح ګڼونکی، روا ګڼونکی، ﴿التعاطي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی، مخکي ذکر سوه چې کله دا باب د يو جرم (مثلاً فسق) سره ذکر سي، نو د کولو او ارتکاب معنیٰ ورکوي، ﴿شيعة﴾ ډله، جماعت، هر هغه قوم (خلک) کوم چې پر يو خبره او عقيده سره جمع سي، ﴿الخطابية﴾ د روافضو (شيعه ګانو) يوه تجاوز کونکې فرقه ده کوم چې د "ابو الخطاب محمد بن وهب الاسدي الكوفي" وطرف ته منسوب ده، او د دې عقيدې لرونکي ته خطابي ويل کيږي. د خطابيه فرقې د عقيدې په باره کي دري قولونه دي: ①... د دغه فرقې د مشر (بنسټ ګر) ابو الخطاب عقيده دا وه چې حضرت علي ﷺ غټ خدای دی او حضرت جعفر صادق کوچنی خدای دی (نعوذ بالله من ذٰلك)، کله چې ابو الخطاب ګمراه د جعفر صادق دربار ته راوسټل سو، نو جعفر صادق هغه وترټی او له دربار څخه يې وشړی، بيا هغه دا دعوٰی

وکړه چې زه خدای يم، او د هغه مريدانو به ويل چې جعفر خدای دی او ابو الخطاب غټ خدای دی؛ بيا عيسیٰ بن موسیٰ رَحِمَهُ الله د هغه سره جنګ او محاربه وکړه او هغه يې د ځمکې له سره نيست ونابود کړي. ② دويم قول دا دی چې د خطابيه فرقې عقيده دا ده چې که د دغه فرقې يو سړی (خطابي) په بل چا دعویٰ وکړي، نو د دې فرقې پر نورو خلکو واجب دي چې د هغه په حق کې به ګواهي ورکوي، برابره ده هغه په خپل دعویٰ کې رښتونی وي او که درواغجن وي. ③ دريم قول دا دی چې د خطابيه عقيده دا ده چې کوم څوک د دوی مخته راسي او قسم واخلي، نو دوی د هغه په حق کې ګواهي ورکول جائز ګڼي، که څه هم هغه درواغجن وي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دې چې اهلِ هوا يعني کوم خلک چې د نفسي خواهشاتو تابعداري کوي او د سنت مخالفت کوي، د هغو ګواهي زموږ په نيز مقبوله ده ماسوا له خطابيه فرقې، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز په اهل هوا کې د هيچا ګواهي مقبوله نه ده، همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله مسلک دی.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چې د عقيدې فاسدېدلو په وجه "اهلِ هوا" اعتقادي فاسقان دي، اوعتقادي (عقيدوي) فسق له عملي فسق څخه زيات بد دی، لهذا کله چې د فاسق فی العمل ګواهي نامقبوله ده، نو د فاسق فی الاعتقاد ګواهي خو به په درجه اولیٰ نا مقبوله او نا معتبره وي.

**زموږ دليل**: دا دی چې "اهلِ هوا" فقط په اعتقادي توګه فاسقان دي او دوی خپل دا اعتقاد حق ګڼي، يعني دوی پر خپله عقيده د حق عقيدې خيال کوي او هغه صحيح دين ګڼي، نو د هغو په خيال کې د هغوی خپله عقيده تدين يعني ديناداري ده، او کوم څوک چې ديندار وي هغه له درواغو څخه ځان ساتي، نو ځکه اهلِ هوا به هم له درواغو څخه ځان ساتي، او کوم څوک چې له درواغو څخه ځان ساتي، هغه په خپل ګواهي کې متهم نه وي، او د نا متهم کس ګواهي قبلول کيږي، نو ځکه د اهلِ هوا ګواهي به هم قبلول کيږي.

د دې مثال داسې دی لکه يو حنفي کس چې مثلث شراب حلال (روا) وګڼي او هغه استعمال کړي، يا لکه يو شافعي کس چې متروک التسمية ښاروی حلال وګڼي او د هغه غوښې وخوري، نو د دې حنفي يا شافعي کس ګواهي مردوده نه ګرځي بلکې اوس هم بيله شکه د هغه ګواهي مقبوله او معتبره ده؛ ځکه چې د هغه د خپلې عقيدې مطابق دا جائز دي او د تدين (دينداری) خلاف نه دي، لکه په لغاتو کې چې موږ ذکر کړه چې په احنافو کې د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز مثلث شراب حلال دي، همدارنګه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د متروک التسميه ښاروي غوښې حلال دي، نو ځکه څرنګه چې دا کار د حنفي او شافعي کس د خپل اعتقاد مطابق جائز دي او د تدين خلاف نه دی، همداسې "اهلِ هوا" هم د خپل اعتقاد او دين په اعتبار سره د نفسي خواهشاتو تابعداري کول جائز ګڼي او

هغوى په خپل ګومان او خيال کي خپل دا اعتقاد د تدين (ديندارئ) خلاف نه ګڼي، نو ځکه هغوى به د خپل دغه اعتقاد په وجه مردود الشهادة نه ګرځي بلکي د هغو ګواهي به مقبوله او معتبره وي.

د دې په خلاف فاسق في العمل يعني عملي فسق والا چي هغه د فسق کار کوي هغه دا حرام ګڼي، لهذا کله چي هغه قصداً حرام کار کوي نو هغه به په دروغو سره هم متهم وي چي دروغ به ووايي، او څوک چي په دروغو سره متهم وي، د هغه ګواهي مقبوله نه ده، نو ځکه د فاسق في العمل ګواهي به هم مقبوله نه وي.

أما الخطابية إلخ: پاته سوه خطابيه فرقه، نو د هغو ګواهي زموږ په نېز مقبوله نه ده؛ ځکه د خطابيه فرقې په هکله درې قولونه دي (کوم چي موږ په لغاتو کي ذکر کړل)، د اول قول مطابق د خطابيه فرقې خلک کافران دي، او د دويم او درېيم قول مطابق د دوى په ګواهئ کي د دروغوا شبهه سته، په دې توګه چي دوى د خپل ډلي او فرقې والا سړي په حق کي ګواهي ورکول واجب ګڼي، برابره ده هغه په خپل دعوىٰ کي رښتوني وي او که دروغجن وي، يا څوک چي د دوى مخته قسم واخلي نو د هغه په حق کي ګواهي ورکول جائز نه ګڼي، برابره ده هغه په خپل قسم کي رښتونی وي او که دروغجن وي، لنډه دا چي خطابيه فرقه يا کافره ده، يا متهم بالکذب ده، او ښکاره خبره ده چي نه د کافر ګواهي مقبوله ده او نه د متهم بالکذب ګواهي معتبره ده، نو ځکه د دوى ګواهي به هم مقبوله نه وي.

## د ذميانو د ګواهئ حکم

قال: وَتُقْبَلُ شَهَادَةُ أَهْلِ الذِّمَّةِ بَعْضِهِمْ عَلَىٰ بَعْضٍ فرمايي: او د ذميانو ګواهي به يو د بل په خلاف قبلول کيږي وَإِنِ اخْتَلَفَتْ مِلَلُهُمْ که څه هم د هغو اديان [مذهبونه] سره جلا وي وَقَالَ مَالِكٌ وَالشَّافِعِيُّ: لَا تُقْبَلُ امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي نه به قبلول کيږي لِأَنَّهُ فَاسِقٌ ځکه چي ذمي فاسق دى قَالَ اللهُ تَعَالَىٰ: ﴿وَالْكَافِرُونَ هُمُ الْفَاسِقُونَ﴾ الله تعالى فرمايلي دي: او "همدا کافران فاسقان دی" فَيَجِبُ التَّوَقُّفُ فِي خَبَرِهِ نو ځکه د ذمي په خبر [او ګواهي] کي توقف کول [او نه قبلول] ضروري دي وَلِهَٰذَا لَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ عَلَى الْمُسْلِمِ او په همدې وجه د هغه ګواهي د مسلمان په خلاف نه قبلول کيږي فَصَارَ كَالْمُرْتَدِّ نو هغه د مرتد په څېر سو وَلَنَا: أَنَّ النَّبِيَّ عليه السلام

أَجَازَ[1] شَهَادَةَ النَّصَارٰى بَعْضِهِمْ عَلٰى بَعْضٍ زموږ دليل دا دی: چي نبي کريم ﷺ د نصاریٰ وو ګواهي يو د بل په خلاف جائز ګرځولې ده وَلِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْوِلَايَةِ عَلٰى نَفْسِهِ وَأَوْلَادِهِ الصِّغَارِ او ځکه چي ذمي پر خپل ځان او پر خپل کوچني اولاد ولايت لره نکي دی [او ولايت لرونکی کس د ګواهی اهل وي] فَيَكُونُ مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ عَلٰى جِنْسِهِ نو ځکه هغه به پر خپل جنس د ګواهی اهل وي وَالْفِسْقُ مِنْ حَيْثُ الِاعْتِقَادُ غَيْرُ مَانِعٍ او د اعتقاد په اعتبار سره فسق [له ګواهی څخه] مانع نه دی لِأَنَّهُ يَجْتَنِبُ مَا يَعْتَقِدُهُ مُحَرَّمَ دِيْنِهِ ځکه چي ذمي به له هغه شي څخه ځان ساتي کوم چي په خپل دين کي حرام ګڼي وَالْكِذْبُ مَحْظُوْرُ الْأَدْيَانِ او درواغ په ټولو اديانو کي ممنوع [او حرام] دي بِخِلَافِ الْمُرْتَدِّ په خلاف د مرتد لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ ځکه چي هغه لره هيڅ ولايت نسته وَبِخِلَافِ شَهَادَةِ الذِّمِّيِّ عَلَى الْمُسْلِمِ او په خلاف د ذمي د ګواهی د مسلمان په خلاف لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ بِالْإِضَافَةِ إِلَيْهِ ځکه چي مسلمان ته په نسبت کولو سره هغه لره هيڅ ولايت نسته وَلِأَنَّهُ يَتَقَوَّلُ عَلَيْهِ او ځکه چي ذمي به پر مسلمان بهتان ولګوي لِأَنَّهُ يَغِيْظُهُ قَهْرُهُ إِيَّاهُ ځکه چي د مسلمان له طرفه د ذمي مغلوبه کول هغه په غصه [او حسد] مبتلا کوي وَمِلَلُ الْكُفْرِ وَإِنِ اخْتَلَفَتْ فَلَا قَهْرَ او د کفر اديان که څه هم سره جلا وي لېکن [په هغوی کي ديوه له طرفه د بل] مغلوبه کول نسته فَلَا يَحْمِلُهُمُ الْغَيْظُ عَلَى التَّقَوُّلِ نو ځکه هغوی به غصه [او حسد] پر بهتان لګولو نه هڅوي.

**اللغات:** ﴿مِلَل﴾ جمع د مِلَّةٌ ده: ملت، دين، مذهب، ﴿توقّف﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: درېدل، ﴿يجتنب﴾ د افتعال د باب مضارع ده: پرېز کول، ځان ساتل، ﴿محظور﴾ د نصر د باب مفعول دی: ممنوع، ناروا، ﴿يتقوّل﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: درواغ پر تړل، بهتان لګول، پر يو چا داسي خبره تړل چي هغه نه وي کړې، ﴿يغيظه﴾ د مضارع صيغه ده، له ضرب، افعال او تفعيل ټولو بابونو څخه

[1] تخريج: دا حديث په دغو الفاظو سره غريب دی، لېکن ابن ماجه د دې په معنی سره يو حديث نقل کړی دی کوم چي په تشريح کي به ذکر سي. او صاحب د اثمار الهدايې وايي چي دا د تابعي قول دی کوم چي په مصنف عبد الرزاق کي دوه ټوله په دې الفاظو سره مذکور دی: ① ''سمعتُ حمادًا يقول تجوز شهادة اهل الكتاب بعضهم على بعض'' ② او ''عن الشعبي انه كان يجيز شهادة اليهودی على النصرانی والنصرانی على اليهودی'' (مصنف عبد الرزاق، باب شهادة اهل الملل بعضهم على بعض... ج:۸، ص: ۲۷۰، رقم:۱۵۶۲۵، ۱۵۶۲۲).

راتلای سي: چا ته غصه ور وستل (خښم ور وستل)، په قهر کول، په خښم کوم، ﴿قَهْر﴾ د فتح مصدر دی: پرېو شي غالبېدل، مغلوبه کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نېز د ذميانو ګواهي يو د بل په حق کې هم مقبوله ده او يو د بل په خلاف هم مقبوله ده، برابره ده هغوی متحد المذاهب وي او که مختلف المذاهب وي، يعني برابره ده د هغو مذهب سره يو وي لکه د نصراني ګواهي د نصراني لپاره، او که مذهب يې سره جلا وي لکه د يهودي ګواهي د نصراني لپاره او د نصراني ګواهي د يهودي لپاره، زموږ په نېز په هر صورت کې د دوی ګواهي مقبوله ده. لېکن د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز د ذميانو ګواهي يو د بل په خلاف مطلقاً مقبوله نه ده، برابره ده د هغو مذهب سره يو وي او که سره جلا وي.

**دليل:** د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې ذمي فاسق دی او د فاسق ګواهي مقبوله نه ده، نو ځکه د ذمي ګواهي به هم مقبوله نه وي؛ د ذمي پر فاسق کېدلو د هغو دليل دا آيت دی: ﴿وَالْكَافِرُوْنَ هُمُ الظَّالِمُوْنَ﴾ [البقرة:۲۵۴]، يعني کافران ظالمان دي، او څرنګه چې ظالمان فاسقان هم وي، نو ځکه ذمي کافر به هم فاسق وي او د فاسق ګواهي نا مقبوله ده، نو ځکه د ذمي کافر ګواهي به هم نا مقبوله وي، دلته په عبارت کې ﴿وَالْكَافِرُوْنَ هُمُ الْفَاسِقُوْنَ﴾ دي حالانکې په قرآن کريم کې ﴿وَالْكَافِرُوْنَ هُمُ الظَّالِمُوْنَ﴾ ذکر سوي دي، عربي شارحينو د دې دا توجيه کړې ده چې عبارت په اصل کې داسې دی "قَالَ الله تعالى للكافرين: ﴿هُمُ الْفَاسِقُوْنَ﴾" (يعني الله تعالىٰ کافرانو ته فاسقان ويلي دي، اوګورئ! د سورة النور آيت نمبر:۵۵. او د سورة التوبة آيت:۸۴)، له دې توجيه وروسته هيڅ سوال نه پاتيږي.

لنډه دا چې ثابته سوه چې ذميان فاسقان دي او د فاسقانو په هکله د قرآن کريم اعلان دا دی چې ﴿إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوْا﴾ [الحجرات:۶]، (يعني که يو فاسق انسان تلسي ته يو خبر درکړي نو تاسو د هغه ښه تحقيق او پلټنه وکړئ! او بغير له تحقيقه هيڅ اقدام مه کوئ!). او بل دا چې فاسق عموماً غلط او دروغجن خبر ورکوي، نو ځکه په دې حواله سره د هغه خبر او ګواهي مقبوله نه ده، لکه څرنګه چې د مسلمان په خلاف د ذمي ګواهي مقبوله نه ده، نو ذمي او مرتد دواړه سره يو ډول دي، او د مرتد ګواهي مقبوله نه ده، نو ځکه د ذمي ګواهي به هم د ذمي په خلاف مقبوله نه وي.

**زموږ دليل:** دا دی چې نبي ﷺ په نصاریٰ وو کې د بعضو ګواهي د بعضو په خلاف قبول کړې ده، له دې څخه معلوميږي چې د ذميانو ګواهي يو د بل په خلاف مقبوله ده، لېکن دا فقط په متحد المذاهب ذميانو کې د ګواهي قبلېدلو دليل دی، او زيات واضح حديث هغه دی کوم چې په ابن ماجه شريف

کې له حضرت جابر بن عبد الله ﷺ څخه روايت سوی دی "أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ أَجَازَ شَهَادَةَ أَهلَ الْكِتَابِ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ" (حديث رقم: ۲۳۷۴)، دا حديث په مختلف المذاهب ذميانو کې هم د ګواهۍ تېلېدلو دليل دی او په عبارت کې له بيان سوي حديث څخه زيات څرګند دی؛ ځکه چې په اهل کتاب کې ټوله داخل دي. (بنايه ج: ۸، ص: ۱۸۳)

زموږ عقلي دليل دا دی چې ذمي ته پر خپل ځان هم ولايت حاصل دی او پر خپله نابالغه اولاد هم ولايت ورته حاصل دی، او په مخکنيو صفحو کې ستاسو مخته ذکر سوه چې ګواهي له ولايت څخه ماخوذ ده (يعني د ګواهۍ اهل هغه کس دی کوم چې د ولايت اهل [ولايت لرونکی] هم وي)، او ذمي د ولايت اهل دی نو ځکه هغه به د ګواهۍ اهل هم وي او هغه ته به پر خپل جنس (يعني پر ذميانو) د ګواهۍ ورکولو حق حاصل وي، نو ځکه موږ په ذميانو کې يو د بل په خلاف ګواهي مقبوله او معتبر ګرځولې ده.

الفسق إلخ: دا د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله د دليل جواب دی، حاصل يې دا دی چې ذمي خو فاسق دی، لېکن فاسق في الاعتقاد دی، او فاسق في الاعتقاد کس د ګواهۍ اهل دی؛ ځکه چې فسق في الاعتقاد له ګواهۍ اداء کولو څخه مانع نه دی؛ ځکه ذمي به په اعتقادي توګه د فاسق کېدلو باوجود له هغه شيانو څخه ځان ساتي کوم چې د ده په دين کې حرام دي، او څرنګه چې دروغ ويل په ټولو اديانو کې حرام دي، نو ذمي به هم له دروغو څخه ځان ساتونکی او احتياط کونکی وي، نو ځکه هغه به متهم بالكذب نه وي، او کله چې هغه متهم بالكذب نه دی نو د هغه ګواهي به هم مقبوله وي.

بخلاف المرتد إلخ: فرمايي امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله چې ذمي پر مرتد قياس کړی دی، دا هم صحيح نه دي؛ ځکه چې مرتد ته هيڅ ولايت حاصل نه دی، نه پر خپل ذات او نه پر خپل نابالغه اولاد، نو ځکه هغه په هيڅ توګه سره د ګواهۍ اهل نه دی، حالانکي ذمي ته پر خپل ځان هم ولايت حاصل دی او پر خپل نابالغه اولاد هم، نو ځکه هغه به په خپل جنس (يعني ذميانو) کې د ګواهۍ اهل هم وي.

وبخلاف شهادة الذمي إلخ: د دې حاصل دا دی چې د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دا خبره "چې د مسلمان په خلاف د ذمي ګواهي مقبوله نه ده نو ځکه د ذمي ګواهي به پر ذمي په خلاف هم مقبوله نه وي" دا صحيح نه ده؛ ځکه پر مسلمان ذمي ته هيڅ ولايت حاصل نه دی، لکه څرنګه چې په قرآن کريم کې دا اعلان سوی دی: ﴿وَلَنْ يَّجْعَلَ اللهُ لِلْكَافِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا﴾ يعني الله تعالیٰ به هيڅکله کافرانو ته پر مسلمانانو د غلبې لاره نه ورکړي. او د مسلمان په خلاف د ذمي په ګواهۍ کې د غلبې احتمال سته، نو ځکه د مسلمان په خلاف به هغه ته د ګواهي ورکولو هيڅ حق نه وي.

دوهم ... دی چې ذمیان په دارُ الاسلام کې د اسلامي حکومت تر قبضې لاندې د غلامانو په شېر او ... او مسلمانان پر هغوی غالب اووسي، نو ځکه ډېره ممکنه ده چې هغو ته به د مسلمانانو غلبه (او لوړ والی) خوښ نه وي او د حسد او غصې په توګه به هغوی پر مسلمانانو تهمت لګول شروع کړي، نو ځکه په دې حواله سره به هم د مسلمان په خلاف د ذمي ګواهي مقبوله نه وي. لېکن د ذمي ګواهي به د ذمي په خلاف مقبوله وي، که څه هم د دوی دین سره جلا وي؛ ځکه چې په دارُ الاسلام کې د اوسېدلو په وجه هیڅ ذمي پر بل ذمي غالب نه دی او د تهمت لګولو خطره هم نسته چې یو ذمي به د حسد او غصې په توګه پر بل ذمي تهمت ولګوي، نو ځکه په خپل مینځ کې به د دوی ګواهي یو د بل په خلاف مقبوله وي.(احسن الهدایه)

## د مستأمن حربي د ګواهۍ حکم

قَالَ: وَلَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ الْحَرْبِيِّ عَلَى الذِّمِّيِّ فرمایي: او د ذمي په خلاف به د حرابي ګواهي نه قبلول کېږي أَرَادَ بِهِ وَاللهُ أَعْلَمُ الْمُسْتَأْمِنَ او په حربي سره یې مستأمن حربي مراد دی والله اعلم لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَيْهِ ځکه چې حربي لره پر ذمي هیڅ ولایت نسته لِأَنَّ الذِّمِّيَّ مِنْ أَهْلِ دَارِنَا ځکه ذمي زموږ له دار [دارُ الاسلام] څخه دی وَهُوَ أَعْلَى حَالًا مِنْهُ او هغه له مستأمن حربي څخه لوړ [او غوره] حالت والا دی.

**اللغات**: ﴿مستأمِن﴾ د استفعال د باب اسم فاعل دی: د امان طلب کونکی، امان اخیستونکی، امان غوښتونکی، هغه حربي کافر کوم چې امان طلب کړي او دارُ الاسلام تـه راسي (او د دار اسلام له طرفه هغه ته د هغه پر ځان او مال امان ورکول سي)، ﴿اعلی﴾ د اسم تفضیل صیغه ده: ډېر لوړ، بالاتر.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده چې کوم حربي کافر دارُ الاسلام ته په امان سره داخل سي، نو د هغه ګواهي د ذمي کافر په خلاف مقبوله نه ده؛ ځکه چې حربي کافر د دار الکفر استوګن دی او ذمي د دارُ الاسلام استوګن دی، او د دَارَینو په اختلاف سره ولایت ختمیږي که څه ... هغه حکماً اختلاف وي، او دلته د مستأمن حربي او ذمي په مینځ کې حقیقتاً اختلاف خو نسته لېکن حکماً اختلاف الدارین سته کوم چې د ګواهۍ له قبول او اداء څخه مانع دی: نو ځکه حربي ته به پر ذمي هیڅ ولایت نه وي، او کله چې هغه ته پر ذمي هیڅ ولایت حاصل نه دی نو هغه به د ذمي په خلاف د ګواهي ورکولو اهل او حقدار هم نه وي؛ ځکه له ولایت څخه بغیر ګواهي نه سي ورکول کېدای (لکه څرنګه چې غلام ګواهي نه سي ورکولای، ځکه هغه هم پر چا ولایت نه لري).

دويم دليل دا دی چي ذمي له مستأمن حربي شخصه په ښه او اعلیٰ (لوړ) حالت کي دی؛ ځکه هغه د اسلام فرمان "يعني جزيه ور کول" قبول کړي دي او په دې توګه د حربي په نسبت هغه اسلام ته زيات نژدې دی او د مسلمانانو په څېر د هغه هم ځان، مال او جايداد محفوظ دی. نو ځکه هغه له حربي شخصه په غوره او اعلیٰ حالت کي دی، او د اعلیٰ په خلاف د ادنیٰ ګواهي مقبوله نه ده. نو ځکه په دې حواله سره به هم د ذمي په خلاف د مستأمن حربي ګواهي مقبوله نه وي. (احسن الهدايه ج:۱۰. ص:۶۸)

## د حربي په خلاف د ذمي د ګواهي حکم

وَيُقْبَلُ شَهَادَةُ الذِّمِّيِّ عَلَيْهِ او د ذمي ګواهي به د حربي په خلاف قبلول کيږي كَشَهَادَةِ الْمُسْلِمِ عَلَيْهِ وَعَلَى الذِّمِّيِّ لکه د مسلمان ګواهي چي د حربي او ذمي په خلاف قبلول کيږي وَتُقْبَلُ شَهَادَةُ الْمُسْتَأْمِنِيْنَ بَعْضِهِمْ عَلٰى بَعْضٍ او د امان اخيستونکو حربيانو ګواهي به يو د بل په خلاف قبلول کيږي إِذَا كَانُوْا مِنْ أَهْلِ دَارٍ وَاحِدَةٍ [په دې شرط] کله چي هغوی له يوه ملک [هيواد] شخصه وي فَإِنْ كَانُوْا مِنْ دَارَيْنِ كَالرُّوْمِ وَالتُّرْكِ او که هغوه له دوو ملکونو شخصه وي لکه روم او تُرک لَا تُقْبَلُ نو [د هغو ګواهي به يو د بل په خلاف] نه قبلول کيږي لِأَنَّ اخْتِلَافَ الدَّارَيْنِ يَقْطَعُ الْوِلَايَةَ ځکه چي د دارينو اختلاف ولايت منقطع کوي وَلِهٰذَا يَمْنَعُ التَّوَارُثَ او له همدې کبله هغه توارث [يو د بل وارث کېدل] منع کوي بِخِلَافِ الذِّمِّيِّ په خلاف د ذمي لِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِ دَارِنَا ځکه چي هغه له دارُ الاسلام شخصه دی وَلَا كَذٰلِكَ الْمُسْتَأْمَنُ او امان اخيستونکی حربي داسي نه دی.

**اللغات**: ﴿مستأمنين﴾ جمع د مُسْتَأْمِن ده. تفصيلي تعريف يې د تېر عبارت په لغاتو کي ذکر سو. ﴿الدَّارَيْن﴾ تثنيه د دَارٌ ده: کور. مراد ځني ملک او هيواد دی. ﴿توارث﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو د بل وارث جوړېدل (ميراث خور کېدل).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي د ذمي په خلاف خو د مستأمن حربي ګواهي مقبوله نه ده لېکن د مستأمن حربي په خلاف د ذمي ګواهي مقبوله ده؛ ځکه ذمي له هغه شخصه اعلیٰ حال والا دی (لکه مخکي چي ذکر سو). او څرنګه چي د اعلیٰ ګواهي د ادنیٰ په خلاف مقبوله ده. نو ځکه د حربي په خلاف به د ذمي ګواهي هم مقبوله وي. لکه څرنګه چي د همدغه اعلیٰ حال والا کېدلو پر بناء د مسلمان ګواهي د حربي

همدارنګه که يو څو حربيان امان واخلي او په دارُ الاسلام کي استوګن سي، نو په خپل مينځ کي يو د بل په خلاف د هغو ګواهي مقبوله ده، په دې شرط چي شاهد او مشهود عليه د يوه ملک (هيواد) استوګن وي (يعني حربي ګواه چي د کوم حربي په خلاف ګواهي ورکوي، دده او د هغه ملک به سره يو وي). لېکن که د شاهد او مشهود عليه ملکونه سره جلا وي مثلاً يو د "روم" وي او بل د "ترک" وي، نو په دې صورت کي به د ګواه (شاهد) ګواهي د مشهود عليه په خلاف نه قبلول کيږي؛ ځکه په دې صورت کي د هغو تر مينځ حقيقي اختلاف الدارين سته، او کله چي په حکمي اختلاف الدارين سره ولايت منقطع کيږي نو په حقيقي اختلاف الدارين سره خو به په درجه اولیٰ منقطع کيږي، او بغير له ولايته هيڅوک پر بل چا د ګواهي ورکولو اهل نه دی، نو ځکه وويل سوه چي که په مستأمنو حربيانو کي اختلاف الدارين وي (يعني ملکونه يې سره جلا وي)، نو يو د بل په خلاف به د هغو ګواهي مقبوله نه وي. او لکه څرنګه چي اختلاف الدارين له وراثت څخه مانع دی، يعني که وارث او مورث دواړه په جلا ملکونو کي اوسيږي نو بيا د هغو تر مينځ وراثت نه جاري کيږي، همداسي د اختلاف الدارين په صورت کي د بعضو شهادت (ګواهي) د بعضو په خلاف هم مقبول او معتبر نه دی.

او ذمي د مستأمن حربي په خلاف دی، ځکه هغه په دائمي توګه په دارُ الاسلام کي اوسيږي، نو په دې خاطر هغه ته د مسلمانانو په څېر ولايت عامه حاصل دی، نو ځکه د حربي په خلاف به ذمي ګواهي قبلول کيږي، لېکن بيا هم د مسلمان په خلاف به د هغه ګواهي نه قبلول کيږي؛ ځکه چي په دې الهي فرمان ﴿وَلَنْ يَّجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكَافِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا﴾ سره د مسلمان په خلاف کافر ته هيڅ موقع نه ده ورکول سوې او د هغه د هر سازښت او پلان دروازه بنده کړی سوې ده، برابره ده هغه حربي وي او که ذمي وي.

## د "عدالت" وضاحت

وَإِنْ كَانَتِ الْحَسَنَاتُ أَغْلَبَ مِنَ السَّيِّئَاتِ او که [د يو سړي] نېکياني [د هغه] له بديو څخه زياتي وي وَالرَّجُلُ مِمَّنْ يَجْتَنِبُ الْكَبَائِرَ او [هغه] سړی له کبيره ګناهونو څخه پرېز کوي قُبِلَتْ شَهَادَتُهُ نو د هغه ګواهي به مقبوله وي وَإِنْ أَلَمَّ بِمَعْصِيَةٍ که څه هم هغه يو ګناه [صغيره ګناه] کړې وي هٰذَا هُوَ الصَّحِيْحُ فِي حَدِّ الْعَدَالَةِ الْمُعْتَبَرَةِ د معتبر عدالت په تعريف کي همدا صحيح قول دی إِذْ لَا بُدَّ مِنْ تَوَقِّي الْكَبَائِرِ كُلِّهَا ځکه چي له ټولو کبيره ګناهونو څخه محفوظ کېدل ضروري دي وَبَعْدَ ذٰلِكَ يُعْتَبَرُ الْغَالِبُ او تر دې وروسته به د غالب اعتبار کيږي [چي د هغه نېکياني به تر بديو زياتي وي] كَمَا ذَكَرْنَا لکه څرنګه

چي موږ ذکر کړل فَأَمَّا الْإِلْمَامُ بِمَعْصِيَةٍ لَاتَنْقَدِحُ بِهِ الْعَدَالَةُ الْمَشْرُوطَةُ او کوم چي ديو ګناه [صغيره ګناه] کول دي نو په هغه سره په مشروط عدالت کي نقص نه راځي فَلَا تُرَدُّ بِهِ الشَّهَادَةُ الْمَشْرُوعَةُ نو ځکه د هغه په وجه به مشروع ګواهي نه ردول کيږي لِأَنَّ فِي اعْتِبَارِ اجْتِنَابِهِ الْكُلَّ سَدَّ بَابِهِ ځکه چي له ټولو کبيره ګناهونو څخه د ځان ساتلو په اعتبار کولو [او شرطولو] کي به د ګواهۍ دروازه بنده سي وَهُوَ مَفْتُوحٌ إِحْيَاءً لِلْحُقُوقِ حال دا چي [د انسانانو] د حقوقو د ژوندي کولو لپاره دا دروازه خلاصه ده.

**اللغات**: ﴿حسنات﴾ جمع د حَسَنَةٌ ده: نيکی، ﴿أغلب﴾ د اسم تفضيل صيغه ده، ډېر غالب، زيات، ﴿يجتنب﴾ د افتعال د باب مضارع ده: پرهېز کول، ځان ساتل، ﴿أَلَمَّ﴾ د افعال د باب ماضي ده، أَلَمَّ يُلِمُّ إِلْمَامًا، د دغه باب څو معناوي دي، او کله چي ديو ګناه سره ذکر سي نو د "کولو" معنیٰ ورکوي (مصباح منير)، ﴿توقّي﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: ځان ساتل، ساتل کېدل (محفوظ کېدل)، ﴿مَشْرُوعَة﴾ او مَشْرُوع: هغه کار کوم چي شريعت جائز کړی وي، هغه کار چي په شريعت کي د هغه کول مطلوب وي، ﴿لاينقدح﴾ د انفعال د باب نفي صيغه ده، مراد: عيبداره کېدل، متاثر کېدل، ﴿سدّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: بندول، منع کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د ګواهۍ د هليت (اهل کېدلو) لپاره چي په ګواه کي څومره اندازه عدالت شرط او معتبر دی، د هغه تفصيل دا دی چي ګواه به له کبيره ګناهونو څخه ځان ساتونکی (پرهېز کونکی) وي او د هغه نېکياني به پر بديو غالبه وي، نو داسي سړی د ګواهۍ اهل دی که څه هم ځيني وخت له هغه څخه صغيره ګناه کيږي؛ ځکه د ګواهۍ د اهليت لپاره صرف له کبائرو څخه د ګواه محفوظ کېدل شرط دي او له ټولو صغائرو څخه محفوظ کېدل شرط نه دي؛ ځکه که له ټولو صغائرو څخه محفوظ کېدل شرط وګرځول سي نو بيا به د ګواهۍ دروازه بالکل بنده سي، ځکه که هر څومره غټ متقي او پرهېزګاره انسان وي، له هغه څخه هم يو صغيره ګناه صادريږي، نو په دې وجه شريعت د عدالت په وصف کي صيغره ګناه نقص نه دی شمارلی او د خلکو د حقوقو د ژوندي کولو لپاره يې د صغيره ګناه شرط له منځه غورځولی دی (ځکه ښکاره خبره ده که د هغه شرط ولګول سي نو حقدار کس به د ځان لپاره هيڅ ګواه نه سي پيدا کولای او په دې توګه به د هغه حق ضايع سي)، لېکن دا خبره په يادلرئ! چي ګواه به پر صغيره ګناهونو مصر (ټينګار کونکی) نه وي يعني بار، بار به له همه څخه صغيره ګناه نه صادريږي؛ ځکه د کبيره ګناه په وضاحت کي ويل سوي دي "مَنِ ارْتَكَبَ كَبِيرَةً أَوْ أَصَرَّ

عَلٰى صَغِيْرَةٍ" يعني كبيره ګناه كونكى او پر صغيره ګناه ټينګار كونكى دواړه د كبيره ګناه كونكي په فهرس كي داخل دي، مطلب دا چي صغيره ګناه په ټينګار كولو سره كبيره ګناه ګرځي. (احسن الهدايه)

## د نا سنته (غير مختون) د ګواهۍ حكم

قَالَ: وَتُقْبَلُ شَهَادَةُ الْأَقْلَفِ فرمايي: او د نا سنته كس ګواهي [هم] قبلول كېداى سي لِأَنَّهُ لَا يُخِلُّ بِالْعَدَالَةِ ځكه چي دا [ناسنتوالي] په عدالت كي خلل نه اچوي إِلَّا إِذَا تَرَكَهُ اِسْتِخْفَافًا بِالدِّيْنِ مګر كله چي هغه دا په دين كي د سپک ګڼلو په وجه پرېږدي لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ بِهٰذَا الصَّنِيْعِ عَدْلًا ځكه چي هغه په دې فعل سره عادل پاته نه سو.

**اللغات**: ﴿أقلف﴾ هغه كس چي تر اوسه سنت سوى نه وي، نا سنته، نا ختنه سوى، ﴿صنيع﴾ فعل، عمل، كاروايي.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي د نا سنته سړي ګواهي مقبوله او معتبره ده؛ ځكه سنتول (ختنه كول) په شريعت كي سنت دي، نو ځكه هغه به فقط د سنت نبوي پرېښوونكى وي، او د سنت نبوي پرېښوول له ګواهۍ څخه مانع نه دي، نو ځكه د نا سنته كس ګواهي به مقبوله وي. ها! كه يو څوک له دې نبوي سنت څخه اعراض كوي او دين سپک او حقير ګڼي، نو بيله شكه د هغه ګواهي مردوده او نا مقبوله ده؛ ځكه چي داسي كس عادل نه دى او د نا عادله كس ګواهي مقبوله نه ده.

## د خصي كس د ګواهۍ حكم

قَالَ: وَالْخَصِيِّ فرمايي: او د خصي ګواهي [هم] مقبوله ده فَإِنَّ عُمَرَ رضي الله عنه * قَبِلَ شَهَادَةَ عَلْقَمَةَ الْخَصِيِّ ځكه حضرت عمر رضي الله عنه د "علقمه خصي" ګواهي قبول كړې ده وَلِأَنَّهُ قُطِعَ عُضْوٌ مِنْهُ ظُلْمًا او ځكه چي د خصي دا اندام په ظلم پرېكړل سوى دى فَصَارَ كَمَا إِذَا قُطِعَتْ يَدُهُ نو داسي سو لكه د هغه لاس چي پرېكړل سوى وي.

---

* تخريج: په مُصنَّف ابن ابي شيبه او سنن بيهقي كي د دې روايت عبارت داسي مذكور دى: عن ابن سيرين ان عمر رضي الله عنه اجاز شهادة علقمة الخصى على ابن مظعون (مصنف ابن أبي شيبة، ج:۵، ص:۹، رقم:۲۳۲۰۹. سنن بيهقي، باب من وجد منه ريح شراب...، ج:۸، ص:۵۴۹، رقم:۱۷۵۱۷).

**اللغات**: ﴿خصي﴾ خسي، هغه کس چې خوټې یې کښل سوي او له منځه تللي وي، ﴿علقمة الخصي﴾ په تاریخ دمشق کي لیکل سوي دي چي "علقمة الخصي" په خپل وخت کي یو شاعر وو. او په همدې نامه "علقمة الخصي" سره مشهور وو، او حضرت عمر ﷺ د قدامه بن مظعون په خلاف د شراب چیښلو په سلسله کي د هغه ګواهي قبوله کړه (تاریخ دمشق لابن عساکر). ﴿قُطِعَ﴾ د فتح د باب ماضي مجهوله ده: پرېکول، غوڅول.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که دیو سړي خصیتن (خوټې) په ظلم او جبر سره کښل سوي وي، نو د هغه ګواهي مقبوله ده؛ دلیل دا دی چې د حضرت عمر ﷺ په هکله دا روایت منقول دی چي هغه دیو خصي کس ګواهي قبوله کړه کوم چي د "علقمة الخصي" په نوم سره مشهور وو. له دې ځخه معلومه سوه چي د خصي کس ګواهي جائز او مقبوله ده.

عقلي دلیل دا دی چې د خصي کس خصیتین ظلما کښل سوي وي، لهذا خصي د هغه کس په څېر مجبور محض دی چي لاس یا پښې یې ظلما پرېکړل سوي وي. او د چا لاس یا پښې چي ظلما پرېکړل سوي وي نو د هغه ګواهي مقبوله ده (ځکه تر دې حده ویل سوي دي چي که دیو سړي ټوله اندامونه نه وي او هغه ظلماً پرېکړل سوي وي نو هم په دې سره د هغه عدالت نه ساقطیږي). لهذا د ظلما خصي سوي کس ګواهي به هم مقبوله وي. لیکن که یو چا په خپل رضا او رغبت سره ځان خصي کړی وي، نو د هغه ګواهي نا مقبوله ده. (احسن الهدایه)

## د ولد الزنا د ګواهي حکم

قَالَ: وَوَلَدِ الزِّنَا او د حرامي [ارموني] ګواهي [هم] مقبوله ده لِأَنَّ فِسْقَ الْأَبَوَيْنِ لَا يُوجِبُ فِسْقَ الْوَلَدِ ځکه چي د مور و پلار فسق [فاسقوالي] د ځوی فسق نه لازموي [یعني دا لازمه نه ده چي که مور و پلار فاسقان وي نو ځوی به هم فاسق وي] كَكُفْرِهِمَا وَهُوَ مُسْلِمٌ لکه د مور و پلار کفر حال دا چي ځوی مسلمان وي وَقَالَ مَالِكٌ: لَا تُقْبَلُ فِي الزِّنَا او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمایي: چي په زنا کي به د ولد الزنا ګواهي نه قبلول کیږي لِأَنَّهُ يُحِبُّ أَنْ يَكُونَ غَيْرُهُ كَمِثْلِهِ ځکه هغه به دا خبره خوښوي چي بل څوک هم د ده په څېر سي فَيُتَّهَمُ نو ځکه هغه به [په خپل ګواهي] متهم وي قُلْنَا: الْعَدْلُ لَا يَخْتَارُ ذَٰلِكَ وَلَا يَسْتَحِبُّهُ موږ [په جواب کي ورته] وایو: چي عادل سړی نه د دروغو ګواهي اختیاري وي او نه هغه دا خوښوي وَالْكَلَامُ فِي الْعَدْلِ او [زموږ] خبره [هم] د عادل په باره کي ده.

**اللغات:** ﴿ولد الزناء﴾ د زنا ځوی، حرامي، ارموني، ﴿يُتَّهم﴾ د افتعال د باب مضارع مجهوله ده؛ متهم کېدل، تورن کېدل (تومتي کېدل، د يو چا په باره کي تهمت او شبهه پيدا کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د ولد الزنا ګواهي هم مقبوله ده، او دا مقبوليت عام دی يعني په هره معامله او مسئله کي به د هغه ګواهي قبلول کيږي، برابره ده هغه د زنا وي او که د غير زنا، ددې په خلاف د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز د زنا په مسئله کي د ولد الزنا ګواهي نا مقبوله ده.

**زمونږ دليل:** دا دی چي که ولد الزنا په خپله عادل وي نو د هغه د مور و پلار فسق د هغه فسق لره مستلزم نه دی او د مور و پلار په فسق سره د هغه عدالت نه متاثر کيږي، لکه کله چي د يو چا مور و پلار کافران وي او د هغو ځوی مسلمان او عادل وي، نو د مور و پلار په کفر سره د هغو د مسلمان ځوی پر عدالت هيڅ اغېز او اثر نه لوېږي بلکي د هغه ګواهي مقبوله ده، همداسي که د يو چا مور و پلار فاسقان وي نو په دې سره به هم د عادل ځوی پر عدالت هيڅ اثر نه لوېږي او د هغه ګواهي به مقبوله وي.

**د امام مالک دليل:** دا دی چي د زنا په مسئله کي دا احتمال سته چي د ولد الزنا خواهش به دا وي چي څرنګه پر ما دا (د ارموني) عيب لګېدلی دی همداسي دا عيب پر بل چا هم ولګيږي او هغه هم زما په څېر ولد الزنا وبلل سي، نو په دې وجه ممکنه ده چي هغه به د زنا په مسئله کي د دروغو ګواهي ورکړي (او په دې توګه به خپل مقصد تر سره کړي)، نو ځکه د دې احتمال پر بناء به په زنا کي د هغه ګواهي معتبره نه وي.

لېکن د احنافو له طرفه امام مالک رَحِمَهُ الله ته جواب دا دی چي زمونږ کلام د عادل کس په هکله دی که څه هم هغه ولد الزنا وي، او عادل ولد الزنا نه د دروغوا ګواهي خوښوي او نه دا خوښوي چي بل څوک د خپل ځان په څېر و ګرځوي، نو ځکه ستاسو د بيان سوي احتمال پر بناء به د يو عادل کس ګواهي نه ردول کيږي.

## د نر ښځي د ګواهي حکم

قَالَ: وَشَهَادَةُ الْخُنْثَى جَائِزَةٌ فرمايي: او د نر ښځي ګواهي جائز ده لِأَنَّهُ رَجُلٌ أَوِ امْرَأَةٌ ځکه چي هغه يا سړی [نارينه] دی يا ښځه ده وَشَهَادَةُ الْجِنْسَيْنِ مَقْبُوْلَةٌ بِالنَّصِّ او د نص [آيت] په روی سره د دغو دواړو جنسونو ګواهي مقبوله ده.

**اللغات:** ﴿خُنثَى﴾ هغه انسان چي هم د نارينه اندام (ذکر) لري او هم ښځينه اندام (فرج) لري يعني په پيدايشي توګه په هغه کي د نر او ښځي دواړو علامات وي، چي زمونږ په عمومي اصطلاح کي ورته نر ښځی (نرګډی) وايي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که خنثیٰ (نربنځی) عادل وي نو د هغه ګواهي مقبوله ده؛ ځکه چي هغه به يا سړی وي يا به ښځه وي (ځکه په يوه اعتبار هغه ښځه ده او بل په اعتبار سړی دی)، او په قرآن سره ثابته ده چي د نر او ښځي دواړو ګواهي مقبوله ده، الله تعالیٰ فرمايلي دي ﴿وَاسْتَشْهِدُوْا شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ فَإِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَّامْرَأَتَانِ﴾. [البقرة: ۲۸۲]

او احتياط دا دی چي د خنثیٰ سره يو سړی او يوه ښځه هم ګواهي ورکړي؛ ځکه که خنثیٰ ښځه وي نو په دې صورت کي به دوې ښځي او يو سړی ګواهان سي، او که خنثیٰ سړی وي نو په دې صورت کي به دوه خلک ګواهان سي او هغه يوه ښځه به زائده سي. او دا هم مناسبه ده چي په حد او قصاص کي د خنثیٰ ګواهي قبول نه کړل سي؛ ځکه په خنثیٰ کي د ښځي والي احتمال هم سته، حال دا چي په حد او قصاص کي د ښځو ګواهي مقبوله نه ده. (بنايه ج:۸: ص: ۱۹۰)

## د حکومتي ملازمينو (نوکرانو) د ګواهۍ حکم

قَالَ: وَشَهَادَةُ الْعُمَّالِ جَائِزَةٌ فرمايي: او د عاملينو ګواهي جائز ده وَالْمُرَادُ عُمَّالُ السُّلْطَانِ عِنْدَ عَامَّةِ الْمَشَايِخِ او د عامو مشايخو په نيز له "عُمَّال" څخه د باچا عاملين مراد دي لِأَنَّ نَفْسَ الْعَمَلِ لَيْسَ بِفِسْقٍ ځکه چي نفسِ عمل فسق نه دی [يعني محض په عامل کېدلو سره انسان فاسق نه ګرځي] إِلَّا إِذَا كَانُوا أَعْوَانًا عَلَى الظُّلْمِ مګر دا چي کله عاملين پر ظلم مرسته کونکي وي وَقِيلَ: الْعَامِلُ إِذَا كَانَ وَجِيهًا فِي النَّاسِ ذَا مُرُوَّةٍ لَا يُجَازِفُ فِي كَلَامِهِ او ويل سوي دي: که عامل په خلکو کي قدرمن کس وي [او] د مړاني خاوند وي او په خپلو خبرو کي بد ورد نه وايي تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ نو د هغه ګواهي به قبلول کيږي كَمَا مَرَّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ فِي الْفَاسِقِ لکه د فاسق په هکله چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله روايت [مخکي] تېر سو لِأَنَّهُ لِوَجَاهَتِهِ لَا يَقْدُمُ عَلَى الْكَذِبِ ځکه چي هغه به د خپل قدر [او عزت] په خاطر پر درواغو اقدام نه کوي حِفْظًا لِلْمُرُوَّةِ د خپل مړاني د ساتلو لپاره وَلِمَهَابَتِهِ لَا يُسْتَأْجَرُ عَلَى الشَّهَادَةِ الْكَاذِبَةِ او د خپل درنښت [تعظيم] په وجه به د درواغجني ګواهۍ لپاره په أجرت نه نيول کيږي [يعني د خپل قدر او درناوي د خيال ساتلو په وجه به ديو څو پيسو لپاره د درواغو ګواهي نه ورکوي].

**اللغات**: ﴿عُمَّال﴾ جمع د عَامِلٌ ده: هر هغه کس کوم چي په أجرت (کرايه او مزدوري) سره يو کار کوي، ملازم او نوکر، مراد ځني حکومتي عامل (د صدقاتو عامل) دی، ﴿أعوان﴾ جمع د عَوْنٌ ده:

مرستيال، مددګار، ﴿وجيه﴾ مخور، قدرمن (عزتمن)، ﴿لا يجازف﴾ د مفاعلې د باب نفي صيغه ده، د دغه باب څوي معناوي دي، کله چي د "کلام" سره ذکر سي، نو معنیٰ يې ده: ګډي وډي او بې معنیٰ خبري کول (چي يوه د بلې سره نه لګيږي)، اوتي بوتي او نا مناسبه خبري کول، پرتي ويل. ﴿لا يقدم﴾ د نصر د باب نفي صيغه ده: اقدام کول، په يو کار لاس پوري کول، پېل او شروع په کول. ﴿مهابة﴾ د سمع د باب مصدرِ ميمي دی، صاحب د معجم يې دوې معناوي ذکر کړي دي: تعظيم او درناوی، ېېره او رعب.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کوم خلک د باچا له طرفه پر جلا جلا علاقو د زکاة، خراج او داسي نورو د اخيستلو لپاره وټاکل سي نو هغو ته عاملين (عمال) وايي چي واحد يې عامل راځي، د دې عاملينو ګواهي جائز ده؛ ځکه چي نفس عمل (يعني عامل کېدل) فسق نه دی، لهذا که د باچا عاملين نېکان او عادله خلک وي، نو د هغو ګواهي مقبوله ده. ها! که عاملين ظالمان وي او د ظالم باچا مرسته کوي، نو څرنګه چي په دې صورت کي د هغو فسق ښکاره دی، نو ځکه د هغو ګواهي به مقبوله نه وي.

د ځينو حضراتو رايه دا ده چي که عامل پر ظلم مرسته کونکی وي لېکن د دې سره، سره هغه په خلکو کي قدرمن او ښه نوم هم لري او هغه په خپله هم د مروت (مړاني) خاوند وي او بې ېوله او نامناسبه خبري نه کوي، نو د هغه ګواهي به قبلول کيږي، لکه مخکي چي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه د فاسق په هکله دا روايت نقل سوی وو چي که فاسق په خلکو کي قدرمن او مروت والا وي، نو د هغه ګواهي مقبوله ده، همداسي که يو عامل قدرمن او مروت والا وي او هغه له بد ورد او بې ېوله خبرو څخه ځان ساتي، نو د هغه ګواهي به هم مقبوله وي که څه هم هغه پر ظلم د باچا مرسته کوي؛ ځکه چي د خپل قدر او مروت د خيال ساتلو په وجه به هغه درواغ نه وايي او د درواغجني ګواهۍ په وجه به خپل درنښت او ښه نوم نه خرابوي او محض د پيسو لپاره به د درواغو ګواهي نه ورکوي، نو ځکه ځيني حضرات وايي چي د داسي عامل ګواهي به قبلول کيږي.

## د وصي کېدلو د ګواهۍ يو څو صورتونه

قَالَ: وَإِذَا شَهِدَ الرَّجُلَانِ أَنَّ أَبَاهُمَا أَوْصَى إِلَى فُلَانٍ [۱] فرمايي: او که دوه خلک دا ګواهي ورکړي چي د هغو پلار فلانکي سړي ته وصيت کړی دی [يعني هغه يې خپل وصي مقرر کړی دی] وَالْوَصِيُّ يَدَّعِي ذَلِكَ او وصي هم د دې دعویٰ [اقرار] کوي فَهُوَ جَائِزٌ اِسْتِحْسَانًا نو دا استحسانًا جائز دي وَإِنْ

أَنْكَرَ الْوَصِيُّ او که وصي انکار کوي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَجُوزُ وَإِنِ ادَّعٰى او په قياس کي جائز نه دي که څه هم وصي د دې دعویٰ [اقرار] کوي وَعَلٰى هٰذَا إِذَا شَهِدَ الْمُوْصٰى لَهُمَا بِذٰلِكَ [٢] او پر همدغه اختلاف دي کله چي دوه موصیٰ لهما خلک د دې ګواهي ورکړي أَوْ غَرِيْمَانِ لَهُمَا عَلَى الْمَيِّتِ دَيْنٌ [٣] يا دوه قرضخواهان چي پر مړي د هغو قرض باندي وي [د دې ګواهي ورکړي] أَوْ لِلْمَيِّتِ عَلَيْهِمَا دَيْنٌ [٤] يا [دوه مقروضين] چي پر هغو د مړي قرض باندي وي [د دې ګواهي ورکړي] أَوْ شَهِدَ الْوَصِيَّانِ أَنَّهُ أَوْصٰى إِلٰى هٰذَا الرَّجُلِ مَعَهُمَا [٥] يا دوه وصيان دا ګواهي ورکړي چي مړي زموږ سره فلانکی سړی هم وصي مقرر کړی دی وَجْهُ الْقِيَاسِ: أَنَّهَا شَهَادَةٌ لِلشَّاهِدِ د قياس دليل دا دی: چي دا ګواهي په خپله د ګواه لپاره ده لِعَوْدِ الْمَنْفَعَةِ إِلَيْهِ ځکه چي [د دې ګواهی] نفع هغه ته رسيږي وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ لِلْقَاضِي وِلَايَةَ نَصْبِ الْوَصِيِّ د استحسان دليل دا دی: چي قاضي ته [په خپله] د وصي مقرر کولو اختيار سته إِذَا كَانَ طَالِبًا وَالْمَوْتُ مَعْرُوفٌ کله چي وصي د دې طلب کونکی وي او [د مړي] مرګ معلوم وي فَيَكْفِي الْقَاضِيَ بِهٰذِهِ الشَّهَادَةِ مُؤْنَةَ التَّعْيِيْنِ نو قاضي به د دغه ګواهی په وجه د تعيين [مقرر کولو] له تکليف څخه مستغني [خلاص] سي لَا أَنْ يَثْبُتَ بِهَا شَيْءٌ داسي نه ده چي په دې ګواهی سره يو شی ثابتيږي فَصَارَ كَالْقُرْعَةِ نو دا د قرعه [قرعه اندازهی] په شان سو وَالْوَصِيَّانِ إِذَا أَقَرَّا أَنَّ مَعَهُمَا ثَالِثًا او دوو وصيانو چي کله دا اقرار وکړی چي د هغو سره بل وصي [هم] سته يَمْلِكُ الْقَاضِيْ نَصْبَ ثَالِثٍ مَعَهُمَا نو قاضي به د هغو سره د دريم وصي د مقرر کولو مالک [اختيارمن] وي لِعَجْزِهِمَا عَنِ التَّصَرُّفِ بِاعْتِرَافِهِمَا ځکه چي هغه دواړه [وصيان] د خپل اقرار په وجه له تصرف کولو څخه عاجز دي بِخِلَافِ مَا إِذَا أَنْكَرَ أَوْ لَمْ يُعْرَفِ الْمَوْتُ په خلاف د هغه صورت کله چي وصي انکار وکړي يا [د مړي [موصي]] مرګ معلوم نه وي لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ وِلَايَةُ نَصْبِ الْوَصِيِّ ځکه چي [په دې صورت کي] قاضي ته د وصي مقرر کولو ولايت نسته فَتَكُوْنُ الشَّهَادَةُ هِيَ الْمُوْجِبَةُ نو ځکه همدا ګواهي به [د وصي کېدلو] ثابتونکي وي [حال دا چي هغه د تهمت په وجه

ثابتونکې نه ګرځي ا وَفِي الْغَرِيمَيْنِ لِلْمَيِّتِ عَلَيْهِمَا دَيْنٌ تُقْبَلُ الشَّهَادَةُ او د دوو مقروضينو [قرضدانو] په صورت کې چې پر هغو د مړي قرض باندې وي ګواهي به قبلول کيږي وَإِنْ لَمْ يَكُنِ الْمَوْتُ مَعْرُوفًا که څه هم [د هغه] مرګ معلوم نه وي لِأَنَّهُمَا يُقِرَّانِ عَلَى أَنْفُسِهِمَا ځکه چې دا دواړه پر خپل ځان د قرض اقرار کوي فَيَثْبُتُ الْمَوْتُ بِاعْتِرَافِهِمَا فِي حَقِّهِمَا نو ځکه د دوی په حق کې به د دوی د خپل اقرار په وجه [د هغه] مرګ ثابتيږي.

**اللغات**: ﴿غريمان﴾ تثنيه د غَرِيمٌ ده: دا لفظ له اضدادو څخه دی، قرضخواه ته هم وايي او مقروض (قرضدار) ته هم وايي، يعني د کوم سړي چې مثلاً پر خالد قرض باندې وي نو هغه ته هم غَرِيم وايي او خالد (مقروض) ته هم غَرِيم وايي، فرق به يې سياق او سباق ته په کتلو سره معلومول کيږي. ﴿عود﴾ د نصر د باب مصدر دی: راګرځېدل، واپس راتلل، ﴿نصب﴾ د ضرب د باب مصدر دی: مقرر کول، مُتعين کول، ټاکل، ﴿مؤنة﴾ تکليف، مشقت، بوج، ﴿مُوصىٰ لهما﴾ د کوم سړي لپاره چې مړي وصيت کړی وي هغه ته مُوْصىٰ لَهٗ وايي چې تثنيه يې مُوْصىٰ لَهُمَا راځي او جمع يې مُوْصىٰ لَهُمْ راځي، ﴿يکفي به﴾ د ضرب د باب مضارع ده: کله چې د دغه باب په صله کې "باء" راسي لکه دلته، نو دوې معناوې ورکوي: مستغني کېدل (بې پروا کېدل)، کفايت کول. (معجم وسيط)

**تشريح**: په دې عبارت کې د ګواهۍ پنځه مسئلې بيان سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده که دوه خلک دا ګواهي ورکړي چې "زموږ پلاز مړ سو او هغه حامد خپل وصي مقرر کړی دی (يعني مثلاً خپل د مال او قرض اداء کولو اختيارات يې هغه ته سپارلي دي) او په خپله وصي (حامد) هم د دې مدعي وي، يعني هغه په خپله هم د دې اقرار او دعوىٰ کوي چې "هو! زه د دوی پلار خپل وصي مقرر کړی يم".
(۲)... دويمه مسئله دا ده که يو سړی د دوو خلکو لپاره د مال وصيت وکړي (چې زما تر مرګ وروسته مثلاً زما د مال دومره حصه ستاسو ده) بيا موصي يعنې وصيت کونکی سړی مړ سي، او موصىٰ لهما يعني د کومو دوو خلکو لپاره چې مړه سړي (موصي) د مال وصيت کړی وي هغه خلک دا ګواهي ورکړي چې مړه سړي (موصي) حامد خپل وصي مقرر کړی دی، او حامد هم د دې مدعي وي. (۳)... درېيمه مسئله دا ده که د دوو خلکو پر مړي قرض باندې وي او هغه دواړه خلک (قرضخواهان) دا ګواهي ورکړي چې مړي حامد خپل وصي مقرر کړی دی، او حامد هم د دې مدعي وي. (۴)... څلورمه مسئله دا ده که د مړي پر دوو خلکو قرض باندې وي او هغه دوه خلک (مقروضين) دا ګواهي ورکړي چې حامد د مړي وصي دی، او حامد هم د دې مدعي وي. (۵)... پنځمه مسئله دا ده که يو سړی

دوه خلک خپل وصيان مقرر کړي او هغه دواړه دا ګواهي ورکړي چي زموږ څخه بغير بل وصي هم سته. يعني هغه سړي زموږ سره فلاني کس مثلاً حامد هم وصي مقرر کړی دی. لهذا موږ دړې سره د هغه وصيان يو. او حامد هم د دې مدعي وي.

نو په دې ټولو مسئلو کي که وصي په خپله د ګواهۍ مدعي (يعني اقرار کونکی) وي لکه موږ چي په هره مسئله کي ذکر کړه، نو استحساناً ګواهي جائز ده. لېکن قياساً جائز نه ده. وا که وصي منکر (انکار کونکی) وي، نو نه قياساً ګواهي جائز ده او نه استحساناً ګواهي جائز ده.

د وصي د مدعي کېدلو (اقرار کولو) په صورت کي د قياساً نه جائز کېدلو دليل دا دی چي په دې ټولو مسئلو کي په ګواهۍ سره په خپله ګواه ته نفع رسيږي (يعني په دې ګواهۍ کي د ګواه نفع سته)، او په کومه ګواهي کي چي د ګواه نفع وي، هغه ګواهي مقبوله نه ده. نو ځکه قياساً په دې مسئلو کي ګواهي مقبوله نه ده. پاته سوه دا پوښتنه چي په دې مسئلو کي په ګواهۍ سره څنګه ګواهانو ته نفع رسيږي؟ نو صاحب د بنايې د هغه جواب دا ليکلی دی چي په اوله مسئله کي به په ګواهۍ سره د مړي دواړو ځامنو ته يو وصي حاصل سي او هغه به د دې ځامنو حقوق ژوندي کړي. په دويمه او درېيمه مسئله کي د ګواهانو فايده دا ده چي ګواهان به له وصي څخه خپل حقونه واخلي. يعني په دويمه مسئله کي به دوه موصیٰ لهم خلک او په درېيمه مسئله به کي دوه قرضخواهان له وصي څخه خپل حقونه واخلي. همدارنګه په څلورمه مسئله کي فايده دا ده چي ګواهان مقروضين (پور وړي) دي، نو هغوی به د مړي وصي ته قرض ورکړي او خپل ځانونه به د مړي له قرض څخه خلاص (بري) کړي. او په پنځمه مسئله کي فايده دا ده چي دواړو ګواهانو (وصيانو) ته به درېيم وصي حاصل سي (او ښکاره خبره ده چي د درېيم وصي په حاصلېدلو سره به د هغو دأوږو بار سپک سي، ځکه چي درېيم وصي به هم د وصيت په اداء کولو کي د هغو سره شريک او مرسته کونکی سي).

لنډه دا چي څرنګه له دغه صورتونو څخه په هر صورت کي د ګواه نفع سته. نو ځکه د قياس تقاضا دا ده چي په هيڅ صورت کي به هم ګواهي نه قبلول کيږي.

وجه الاستحسان إلخ: د استحسان دليل دا دی چي په دې مسئلو کي ګواهانو کومه ګواهي ورکړې ده، هغه په حقيقت کي ګواهي ورکول نه دي بلکي د وصي په متعين کولو (مقرر کولو) کي د قاضي مرسته کول دي، ځکه کله چي د مړي هيڅ وصي نه وي او د هغه مړ کېدل معلوم وي (يعني ټوله په خبر وي چي هغه مړ سوی دی) نو په دې صورت کي قاضي ته دا اختيار سته چي د مړي له طرفه يو وصي مقرر کړي د دې لپاره چي د خلکو حقوق ضايع نه سي (يعني پر مړي چي د کومو خلکو يا د مړي چي پر کومو خلکو قرضونه باندي دي همدارنګه د مړي چي کوم وارثان دي. د هغو حقوق ضايع نه سي. د دې لپاره به قاضي د مړي له طرفه يو څوک وصي مقرر کوي). لېکن څرنګه چي په وصي کي دا خبري ضروري دي چي هغه به امين،

هوښيار، معتمد او کار ګزاره سړی وي (چې کار په پوره وي) او په خپل وصي کېدلو به راضي وي، نو ځکه قاضي ته به د داسې وصي پيدا کول څه مشکل وي، او ښکاره خبره ده چې د ګواهانو په دغه ګواهي ورکولو سره قاضي له دې مشکل څخه خلاصيږي او ګواهان چې د کوم چا په هکله ګواهي ورکوي چې دا د مړي وصي دی (يعني حامد)، نو قاضي به هغه وصي مقرر کړي او د وصي پيدا کولو له تکليف څخه به خلاص سي. د دې مثال داسې دی لکه قرعه اندازي کول، په قرعه اندازي سره يو شی نه ثابتول کيږي بلکې د هغه په ذريعه نزاع او جنجال ختمول کيږي، مثلاً که قاضي د يو ځمکې تقسيم وکړي او دا فيصله وکړي چې دومره ځمکه د فلانکي (زيد) حق کيږي او دومره د فلانکي (خالد) حق کيږي لهذا هر يوه ته دې د هغه ځمکه ورکول سي، لېکن قاضي د ځمکې طرف معلوم نه کړي چې هر يوه ته دې د کوم طرف ځمکه ورکول سي، بيا هغه خلګ (يعني خالد او زيد) په خپل مينځ کې په قرعه اندازي کولو سره دا کار او فيصله وکړي، نو په دې صورت کې په قرعه اندازي کولو سره قاضي له دغه تکليف څخه خلاص سو، همداسې په دې صورتونو کې هم په ګواهي ورکولو سره قاضي له دې تکليف څخه خلاص سو چې د مړي لپاره يو معتمد وصي پيدا کړي.

لنډه دا چې دا ګواهي په حقيقت کې ګواهي نه ده بلکې د وصي په مقرر کولو او ټاکلو کې د قاضي مرسته کول دي، او کله چې دا په حقيقت کې ګواهي نه ده، نو دا خبره هم غلطه ده چې په دغه ګواهۍ سره ګواهانو ته نفع رسيږي، بلکې حقيقت دا دی چې د قاضي له طرفه د وصي مقرر کولو په وجه هغو ته نفع رسيږي (يعني دلته په حقيقت کې د قاضي د فعل په وجه هغو ته نفع حاصليږي. نه د خپل ګواهۍ په وجه)، نو ځکه موږ په دغه پنځو مسئلو کې استحساناً ګواهي جائز ګرځولې ده.

والوصيّان إلخ: دا يو د مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چې دلته په پنځمه مسئله کې چې کله دوه وصيان له مخکې څخه موجود دي نو د درېيم وصي مقرر کولو ته هيڅ ضرورت نسته، او کله چې درېيم وصي ته هيڅ ضرورت نسته، نو ځکه اوس که د هغه دوو وصيانو په ګواهي سره درېيم وصي مقرر کړی سي نو په دې مقرر کولو کې د هغو د ګواهۍ دخل راغلی. او څرنګه چې د دې ګواهۍ نفع هم هغو ته حاصليږي، نو ځکه په دې صورت کې د قاضي لپاره د هغو په ګواهۍ سره درېيم وصي مقرر کول جائز نه دي؟.

د دې جواب دا دی چې کله دلته دواړو وصيانو دا اقرار وکړی چې زموږ څخه بغير يو بل وصي هم سته. نو ګواکې هغو دا اقرار وکړی چې تر څو هغه موږ سره يوځای مقرر نه کړل نه سي، تر هغه وخت موږ له تصرف څخه عاجزه يو. نو ځکه قاضي ته به خامخا د درېيم وصي د مقرر کولو ضرورت پيښ سي، او ښکاره خبره ده چې دا مقرر کول به د ضرورت په خاطر وي، نه د هغو (وصيانو) د

ګواهۍ په خاطر، لهذا کله چې دا مقرر کول د هغو د ګواهۍ په خاطر نه دي بلکې د ضرورت په خاطر دي، نو هغوی به په خپل ګواهۍ کې متهم (تورن) هم نه وي، او کله چې هغوی متهم نه دی، نو ځکه د هغوی ګواهي به مقبوله وي.

بخلاف ما إذا أنكر إلخ: د دې حاصل دا دی چې په دغه پنځو مسئلو کې چې ګواهانو د کوم سړي د وصي کېدلو ګواهي ورکړې ده (چې هغه حامد دی)، که چيرې هغهٔ (حامد) د دې مدعي نه وي بلکې له دې څخه انکار کوي، يا د موصي (مړي) مړ کېدل معلوم او مشهور نه وي، نو په دې دواړو صورتونو کې به د ګواهانو ګواهي نه قبلول کيږي؛ ځکه کله چې په خپله وصي له خپل وصي کېدلو څخه منکر دی نو قاضي ته دا اختيار نسته چې پر هغه وصيت لازم کړي يعني هغه پر وصي کېدلو مجبوره کړي، ځکه په جبر او زور سره هيڅوک پر وصي کېدلو نه سي مجبورول کېدای، همدارنګه کله چې د موصي مرګ په خلکو کې معلوم نه وي، نو قاضي ته د هغه له طرفه د وصي د مقرر کولو ولايت او اختيار نسته، ځکه کله چې د وصي مړ کېدل معلوم نه وي نو د هغه د ژوندي والي احتمال سته (چې شايد هغه به ژوندی وي)، نو ځکه په دې صورت کې هم قاضي ته د وصي مقرر کولو اختيار نسته، او کله چې په دواړو صورتونو کې قاضي ته د وصي مقرر کولو اختيار نسته، نو په دواړو صورتونو کې به نقط د مذکوره ګواهانو په ګواهۍ سره وصي کېدل ثابتيږي، حال دا چې دا ګواهان په خپل ګواهۍ کې متهم دي، او د متهم ګواهي نه قبلول کيږي، نو ځکه په دې دواړو صورتونو کې به د هغو ګواهي نه قبلول کيږي.

لېکن د څلورمې مسئلې په صورت کې که څه هم د مړي مرګ معلوم نه وي، نو هم به د مقروضينو ګواهانو ګواهي قبلول کيږي؛ ځکه چې دوی پر خپل ځان د قرض اقرار کوي، او د هغو د ګواهۍ په قبلېدلو کې د هغو خپل نقصان دی يعني دا ګواهي د دوی په خلاف ده، او کومه ګواهي چې دانسان د خپل ځان په خلاف وي هغه مقبوله ده (ځکه چې په هغه کې د درواغو هيڅ تهمت نسته)، نو ځکه د مذکوره مقروضينو ګواهي به دلته مقبوله وي، او پاتـه سو د مړي (قرضخواه) مرګ که څه هم په دې صورت کې معلوم نه دی لېکن بيا هم د دوی د خپل اقرار په وجه د دوی په حق کې د هغه مرګ ثابت دی.

## د وکالت (وکيل کېدلو) د ګواهۍ حکم

| وَإِنْ شَهِدَا أَنَّ أَبَاهُمَا الْغَائِبَ وَكَّلَهُ بِقَبْضِ دُيُوْنِهِ بِالْكُوْفَةِ او که دوه خلک ګواهي ورکړي چې د هغو غائب پلار فلانکی سړی په کوفه کې د خپل قرضونو د اخيستلو وکيل جوړ کړی دی فَادَّعَى |
|---|

الْوَكِيلُ أَوْ أَنْكَرَهُ بيا وكيل ﴿هم﴾ د دې دعوىٰ وكړه يا يې انكار وكړي لَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُمَا نو دهغو گواهي به نه قبلول كيږي لِأَنَّ الْقَاضِيَ لَا يَمْلِكُ نَصْبَ الْوَكِيلِ عَنِ الْغَائِبِ ځكه چې قاضي دغائب له طرفه دوكيل مقرر كولو اختيار نه لري فَلَوْ ثَبَتَ إِنَّمَا يَثْبُتُ بِشَهَادَتِهِمَا لهذا [اوس] كه وكالت ثابت سي نو دهغوى دواړو په گواهي سره به ثابت سي وَهِيَ غَيْرُ مُوجِبَةٍ لِمَكَانِ التُّهْمَةِ حال دا چې دهغو گواهي د تهمت په وجه ثابتونكې نه ده.

**اللغات**: ﴿وكّله﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: وكيل كول، وكيل جوړول. ﴿دُيون﴾ جمع د دَيْنٌ ده: قرضونه، پورونه.

**تشريح: صورت دُ مسئلې**: دا دى كه دوه ځامن دا گواهي وركړي چې زموږ غائب پلار دخپل ځان له طرفه فلانكى سړى مثلاً خالد د دې كار وكيل كړى دى چې هغه په كوفه كې زموږ د پلار قرضونه له خلكو څخه واخلي، نو دهغو دا گواهي به نه قبلول كيږي. برابره ده وكيل (خالد) خپل دوكېدلو مدعي وي او كه منكر وي.

دليل دا دى چې قاضي ته دغائب كس له طرفه دوكيل مقرر كولو اختيار نسته، نو ځكه اوس كه قاضي هغه وكيل مقرر كړي نو دا وكالت (وكيل كېدل) به د گواهانو (ځامنو) په گواهي سره ثابت سي، او دهغو په گواهي كې تهمت سته، ځكه چې ځامنو دخپل پلار په حق كې گواهي وركړې ده، نه دهغه په خلاف، او د تهمت په صورت كې گواهي مقبوله نه ده. نو ځكه دهغو گواهي به هم مقبوله نه وي.

## جرح كول (عيب لگول) او د جرح اقسام

قَالَ: وَلَا يَسْمَعُ الْقَاضِي الشَّهَادَةَ عَلَىٰ جَرْحٍ مُجَرَّدٍ فرمايي: او پر محض جرح به قاضي گواهي نه اوري وَلَا يَحْكُمُ بِذَلِكَ او نه به دهغه مطابق فيصله كوي لِأَنَّ الْفِسْقَ مِمَّا لَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْحُكْمِ ځكه چې فسق له هغه شيانو څخه دى كوم چې د قاضي تر فيصلې لاندې نه داخليږي لِأَنَّ لَهُ الرَّفْعَ بِالتَّوْبَةِ ځكه چې فسق په توبه سره ليري كيږي فَلَا يَتَحَقَّقُ الْإِلْزَامُ نو ځكه [په هغه كې] به لازمول نه ثابتيږي وَلِأَنَّ فِيهِ هَتْكَ السَّتْرِ او ځكه چې په داسې كولو كې د[مسلمان] پرده ليري كول سته وَالسَّتْرُ وَاجِبٌ وَالْإِشَاعَةُ حَرَامٌ حال دا چې پټول [پرده پوشي] واجب ده او نشر كول حرام دي وَإِنَّمَا يُرَخَّصُ ضَرُورَةَ إِحْيَاءِ الْحُقُوقِ او د دې رخصت فقط [دبندگانو] دحقونو ژوندي كولو دضرورت په خاطر وركول

کيږي [يعني پرده ليري کول او عيب ښکاره کول فقط د بنده د حق ژوندي کولو د ضرورت پر بناء جائز کيږي] وَذٰلِكَ فِيمَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْحُكْمِ او حقوق ژوندي کول د قاضي تر فيصلې لاندي داخليږي إِلَّا إِذَا شَهِدُوا عَلٰى إِقْرَارِ الْمُدَّعِيْ بِذٰلِكَ مګر دا چي کله ګواهان په دې باره کي د مدعي د اقرار ګواهي ورکړي نو د هغو ګواهي به قبلول کيږي] لِأَنَّ الْإِقْرَارَ مِمَّا يَدْخُلُ تَحْتَ الْحُكْمِ ځکه چي اقرار له هغه شيانو څخه دی کوم چي د قاضي تر فيصلې لاندي داخليږي.

**اللغات**: ﴿مجرّد﴾ محض، صرف، يوازي. ﴿هتك الستر﴾ د ضرب مصدر دی: پرده ليري کول، (عيب ښکاره کول)، رسوا کول. ﴿ستر﴾ د نصر د باب مصدر دی: پټول، عيب پټول، پرده ساتل (پرده پوشي). ﴿إشاعة﴾ د افعال د باب مصدر دی: نشر کول، خپرول.

**تشريح**: د عبارت له تشريح څخه مخکي په دې ځان پوه کړئ! چي جرح (عيب لګول) پر دوه قسمه دي: ① جرح مجرد. ② جرح غير مجرد.

جرح مجرد هغه عيب لګولو ته وايي چي د هغه په وجه نه د الله حق (حقُ الله) ثابتيږي او نه د بنده حق (حقُ العبد) ثابتيږي، او جرح مجرد د قاضي تر قضاء (فيصلې) لاندي نه داخليږي، مثلاً په يو معامله کي مدعي ګواهان پېش کړي او مدعیٰ عليه پر هغو د فسق عيب ولګوي (چي ستا ګواهان زه نه منم دوی فاسقان دي)، نو دا جرح مجرد ده، او د دې جرح (عيب لګولو) په وجه پر دغه ګواهانو حد يا بله سزا نه ثابتيږي، ځکه چي مدعیٰ عليه هغو ته فاسقان ويلي دي او فسق (فاسق کېدل) د قاضي تر قضاء لاندي نه داخليږي.

اوس که مدعیٰ خپل پر دغه جرح ګواهي (ګواهان) پېش کړي، نو دا پر جرح مجرد ګواهي پېشول دي.

او جرح غير مجرد هغه عيب لګولو ته وايي چي د هغه سره حقُ الله يا حقُ العبد متعلق وي يعني د هغه په وجه حقُ الله ثابتيږي يا حقُ العبد ثابتيږي، او جرح غير مجرد د قاضي تر قضاء لاندي نه داخليږي. د دې مثال دا دی لکه مدعیٰ عليه چي د مدعي پر ګواهانو مثلاً د زنا کاره کېدلو يا شراب خوره کېدلو عيب ولګوي (چي ستا ګواهانو زنا کړې ده يا هغو شراب چيښلي دي او ما په خپلو سترګو هغوی ليدلي دي) او مدعیٰ عليه دا خبره په ګواهي سره ثابته کړي يعني پر دغه جرح غير مجرد ګواهي پېش کړي، نو په دې سره به پر هغه ګواهانو حد جاري کيږي.

په عبارت کي چي کومه مسئله بيان سوې ده، د هغه حاصل دا دی چي که يو مدعي پر خپله دعوی گواهان پېش کړي، لېکن مدعیٰ عليه د هغه پر گواهانو جرح مجرد وکړي يعني داسي ووايي چي دا گواهان فاسقان دي (يا مثلاً فقط داسي ووايي چي ستا په گواهانو کي د زنا عيب سته او داسي نه ووايي چي هغو زنا کړې ده او ماليدلي دي . يا مثلاً داسي ووايي چي په هغو کي د غلا عيب سته، نو دا هم جرح مجرد ده [اثمار الهدايه]). او مدعیٰ عليه خپل پر دغه جرح مجرد گواهان هم پېش کړي، نو قاضي به د هغه گواهان نه قبلوي يعني د مدعي پر گواهانو به د فسق فيصله نه کوي (چي تاسو فاسقان ياست).

دليل دا دی چي قاضي د دې لپاره گواهي قبلوي چي قاضي د دغه گواهی پر بنياد فيصله وکړي، لهذا کله چي گواهي د فيصله کولو لپاره قبلول کيږي نو ضروري ده چي مشهود بهٖ داسي شی وي کوم چي د قاضي تر فيصلې لاندي داخلېدای سي، او جرح مجرد "يعني د فسق (فاسقوالي) عيب پر لگول" د قاضي تر فيصلې لاندي نه سي داخلېدای (لکه په شروع کي چي موږ وويل)؛ ځکه چي د قاضي فيصله مشهود بهٖ شی لازموي (چي هغه دلته فسق دی)، حال دا چي د قاضي په وس او قدرت کي د فسق لازمول نسته (يعني قاضي په يو چا فسق نه سي لازمولای چي ته خامخا فاسق يې!)، ځکه چي فسق داسي شی دی کوم چي د توبې په ذريعه ليري کېدای سي، لهذا کله چي فسق د توبې په ذريعه ليري کېدای سي نو په فسق کي به د الزام (لازمولو) معنیٰ نه ثابتيږي، او کله چي په هغه کي د الزام معنیٰ نه ثابتيږي نو هغه به د قاضي تر فيصلې لاندي داخليږي هم نه، او کله چي فسق د قاضيٌ تر فيصلې لاندي نه داخليږي، نو پر هغه به گواهي هم نه قبليږي؛ ځکه چي گواهي پر داسي شي قبلول کيږي کوم چي د قاضي تر فيصلې لاندي داخلېدای سي.

دويم دليل دا دی چيٰ د مدعیٰ عليه د گواهانو له طرفه د مدعي د گواهانو پر فاسق کېدلو گواهي ورکول په خپله د مدعیٰ عليه گواهان فاسق گرځوي (يعني کله چي د مدعیٰ عليه گواهان د دې خبري گواهي ورکړي چي د مدعي گواهان فاسقان دي، يا مثلاً په هغو کي د زنا عيب دی. نو په دې سره په خپله د مدعیٰ عليه گواهان فاسقان گرځي)، او د فاسق کس گواهي نه قبلول کيږي. لهذا د مدعیٰ عليه د گواهانو گواهي به هم نه قبلول کيږي. پاته سوه دا پوښتنه ده چي په دې گواهی سره د مدعیٰ عليه گواهان ولې فاسقان گرځي، نو د دې جواب دا دی چي په دې گواهی سره د مسلمانانو يعني د مدعي د گواهانو پرده او ستر ليري کيږي او د هغو عيب (بدي) او بدکاري په خلکو کي مشهوره کيږي، حال دا چي د بديو پټول واجب دي او بيله ضرورته د هغوی نشر کول حرام دي، لکه څرنگه چي په قرآن کريم کي ذکر سوي دي ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾ (يعني کوم

ځکه چې دا غواړي چې په مسلمانانو کې بدکاري نشر سي، د هغو لپاره په دنيا او آخرت کې دردناکه عذاب دی)، او ګورئ! الله تعالیٰ د بدکارۍ (فاحشه) پر نشر کولو سخت وعيد بيان کړی دی، او وعيد د حرام فعل په باره کې راځي، لهذا بدکاري نشر کول حرام فعل سو، او د حرام فعل مرتکب فاسق وي، نو ځکه د بديو او بدکاريو نشر کونکی به فاسق وي. او کله چې دلته د مدعیٰ عليه ګواهانو د قاضي په ډک مجلس کې د مدعي ګواهانو ته فاسقان او داسې نور ووېل، نو د مدعیٰ عليه ګواهان د بدۍ او بدکارۍ نشر کولو په وجه په خپله فاسقان سول، و د فاسق کس ګواهي نه قبلول کيږي، نو ځکه د مدعیٰ عليه د ګواهانو ګواهي به هم نه قبلول کيږي.

لېکن د شريعت او بندګانو د حقوقو د ژوندي کولو لپاره د بدۍ (عيب) د نشر کولو اجازت ورکول سوی دی، او حقوق ژوندي کول د قاضي تر فيصلې لاندې داخليږي هم. مثلاً که د مدعي ګواهانو د يو چا مال غلا کړی وي او د مدعیٰ عليه ګواهان په هغه خبر هم وي، نو د هغو لپاره د قاضي په مجلس کې د مدعي د ګواهانو د غلا ښکاره کولو حق سته. ځکه چې د دې سره د بنده (مسروق منهٔ) حق متعلق دی (يعني له چا څخه چې ګواهانو غلا کړې ده د هغه حق ورسره متعلق دی)، نو دا به جرح غير مجرد وي، او څرنګه چې مستحق ته خپل حق ورکول (يعني د هغه حق ژوندي کول) د قاضي تر فيصلې لاندې داخليږي، نو ځکه قاضي به دا ګواهي قبلوي هم او د دې ګواهۍ پر بناء به له غلو ګواهانو څخه د مسروق منهٔ حق هم اخلي.

إلا إذا شهدوا إلخ: دا جمله د "لأن الفسق مما لا يدخل تحت الحكم" سره متعلق ده، حاصل يې دا دی چې فسق خو د قاضي تر فيصلې لاندې نه داخليږي لېکن که د مدعیٰ عليه ګواهانو په خپله ګواهي کې داسې ووېل چې "مدعي د خپلو ګواهانو د فسق اقرار کړی دی (چې زما ګواهان فاسقان دي)، نو په دې صورت کې به قاضي د مدعیٰ عليه د ګواهانو ګواهي قبلوي، ځکه چې اقرار د قاضي تر فيصلې لاندې داخليږي، نو ځکه پر اقرار ګواهي او ورېدل هم صحيح دي او د هغه ګواهۍ مطابق فيصله کول هم صحيح دي.

## د جرح يو مخصوص صورت

قَالَ: وَلَوْ أَقَامَ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ الْبَيِّنَةَ أَنَّ الْمُدَّعِيَ اسْتَأْجَرَ الشُّهُوْدَ فرمايي: او که چيري مدعیٰ عليه پر دې خبره ګواهي پېش کړي چې مدعي ګواهان په اُجرت [کرايه] نيولي دي لَمْ تُقْبَلْ نو دا ګواهي به نه قبلول کيږي لِأَنَّهٗ شَهَادَةٌ عَلٰى جَرْحٍ مُجَرَّدٍ ځکه چې دا پر جرح مجرد ګواهي پېشول دي وَالِاسْتِئْجَارُ

وَإِنْ كَانَ أَمْرًا زَائِدًا عَلَيْهِ او په أجرت نيول که څه هم پر جرح مجرد يو زائد امر دی فَلَا خَصْمَ فِي إِثْبَاتِهِ لېکن مدعیٰ عليه د هغه په ثابتولو کي خصم نه دی لِأَنَّ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ فِي ذٰلِكَ أَجْنَبِيٌّ عَنْهُ ځکه چي مدعیٰ عليه په دې باره کي له مدعي څخه اجنبي [پردی] دی حَتّٰى لَوْ أَقَامَ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ الْبَيِّنَةَ أَنَّ الْمُدَّعِيَ اِسْتَأْجَرَ الشُّهُودَ بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ لِيُؤَدُّوا الشَّهَادَةَ تر دې که مدعیٰ عليه پر دې خبره ګواهي پېش کړي چي مدعي په لسو درهمو دا ګواهان د ګواهۍ اداء کولو لپاره په أجرت نيولي دي وَأَعْطَاهُمُ الْعَشَرَةَ مِنْ مَالِ الَّذِي كَانَ فِي يَدِهِ او هغه ګواهانو ته يې لس درهمه [زما] له هغه مال څخه ورکړي دي کوم چي د مدعي په قبضه کي موجود وو تُقْبَلُ نو [د مدعیٰ عليه] ګواهي به قبلول کيږي لِأَنَّهُ خَصْمٌ فِي ذٰلِكَ ځکه چي [اوس] مدعیٰ عليه په دې باره کي خصم دی ثُمَّ يَثْبُتُ الْجَرْحُ بِنَاءً عَلَيْهِ بيا جرح پر هغه په مبني کېدلو سره ثابتيږي وَكَذَا إِذَا أَقَامَهَا عَلٰى أَنِّيْ صَالَحْتُ الشُّهُودَ عَلٰى كَذَا مِنَ الْمَالِ وَدَفَعْتُهُ إِلَيْهِمْ او همدارنګه که مدعیٰ عليه پر دې خبره ګواهي پېش کړي چي ما د دې ګواهانو سره پر دومره مال صلح وکړه او مال مي هغو ته ورکړی عَلٰى أَنْ لَا يَشْهَدُوا عَلَيَّ بِهٰذَا الْبَاطِلِ [د دې لپاره مي پر مال صلح او تړون ور سره وکړی] چي هغوی به زما په خلاف په دې ناحقه خبره کي ګواهي نه ورکوي وَقَدْ شَهِدُوا حال دا چي هغو [زما په خلاف] ګواهي ورکړه وَطَالَبَهُمْ بِرَدِّ ذٰلِكَ الْمَالِ [بيا] مدعیٰ عليه له هغو څخه د مال واپس کولو مطالبه وکړه [چي ما ته خپل مال واپس راکړئ!] وَلِهٰذَا قُلْنَا إِنَّهُ لَوْ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ أَنَّ الشَّاهِدَ عَبْدٌ أَوْ مَحْدُودٌ فِي قَذْفٍ أَوْ شَارِبُ خَمْرٍ أَوْ قَاذِفٌ أَوْ شَرِيْكُ الْمُدَّعِيْ او په همدې وجه موږ وايو چي که مدعیٰ عليه پر دې خبره ګواهي پېش کړي چي ګواه غلام دی يا محدود في القذف دی يا شراب خوره دی يا بهتان لګونکی دی يا د مدعي سره [په مال کي] شريک دی تُقْبَلُ نو [په دې صورت کي] به د مدعیٰ عليه ګواهي قبلول کيږي.

**اللغات**: ﴿بيّنة﴾ ګواهي، ﴿استأجر﴾ د استفعال د باب ماضي ده، اِسْتَأْجَرَ يَسْتَأْجِرُ اِسْتِيْجَاراً (اِسْتِئْجَارًا): په أجرت اخيستل، په أجرت نيول (په کرايه نيول). ﴿قاذف﴾ د ضرب د باب فاعل دی: د زنا بهتان لګونکی. د زنا درواغجن تهمت لګونکی، پر يو چا درواغ تړونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې کله مدعي په يو معامله کې ګواهان پېش کړي او مدعیٰ عليه د هغه پر ګواهانو جرح وکړي (عيب پر ولګوي) چې مدعي دا ګواهان په أجرت نيولي دي (يعني دا کرايې والا ګواهان دي) او مدعیٰ عليه خپل پر دې خبره ګواهي (ګواهان) پېش کړي، نو د مدعیٰ عليه دا ګواهي به نه قبلول کيږي: ځکه چې مدعیٰ عليه دلته پر جرح مجرد ګواهي پېش کړې ده. او په تېر عبارت کې ذکر سوه چې پر جرح مجرد پېش کړل سوې ګواهي مقبوله نه ده (يعني قاضي به هغه نه تېلوي)، نو ځکه دلته به هم د مدعیٰ عليه له طرفه دا پېش کړل سوې ګواهي نه قبلول کيږي.

والاستيجار وإن كان إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چې د مدعیٰ عليه دا خبره چې مدعي په أجرت (کرايه) ګواهان نيولي دي، دا جرح مجرد نه ده، بلکې په دې خبري سره يو زائد امر (اضافي شی) ثابت سوی دی، او هغه زائد امر دا دی چې مدعي ګواهان په أجرت نيولي دي. او د دې زائد امر ثابتول داسې دي لکه د مدعي حق ثابتول (يعني ګواکې مدعیٰ عليه وويل چې په دې معامله کې ستا پر ما حق سته. ته ريښتونی يې! او ستا ګواهان کرايې والا دي)، لېکن په دې خبري سره ضمناً جرح (عيب لګول) هم ثابتيږي، په دې توګه چې کله مدعیٰ عليه داسې وويل چې دا أجرت (کرايې) والا ګواهان دي نو ګواکې هغه وويل چې دا ګواهان درواغجن او فاسقان دي، لنډه دا چې کله مدعیٰ عليه اصلاً د مدعي په حق کې استيجار (په کرايه نيول) ثابت کړي دي او جرح ضمناً ثابته سوې ده، نو دا جرح مجرد نه سوه بلکې جرح غير مجرد سوه، ځکه مخکې ذکر سوه چې په کومه جرح سره د بنده حق ثابتيږي هغه ته "جرح غير مجرد" وايي، او مخکې دا هم ذکر سوه چې پر جرح غير مجرد پېش کړل سوې ګواهي مقبوله ده، لهذا د مدعیٰ عليه دغه ګواهي هم قبلول پکار دي، لېکن تاسو واياست چې هغه به نه قبلول کيږي.

د دې جواب دا دی چې استيجار (د ګواهانو په کرايه نيول) که څه هم پر جرح مجرد يو زائد امر دی لېکن څرنګه چې دلته مدعیٰ عليه د مدعي له طرفه د يو حق په ثابتولو کې نائب يا خصم نه دی بلکې په دې باره کې هغه له مدعي څخه اجنبي دی او د أجرت (کرايې) سره د مدعیٰ عليه هيڅ تعلق نسته. نو ځکه د مدعیٰ عليه له طرفه په د مدعي په حق کې استيجار ثابتول معتبر نه وي (ځکه چې د حق ثابتولو لپاره دا ضروري دي چې ثابتونکی سړی به نائب يا خصم وي، او دلته مدعیٰ عليه نه د مدعي نائب دی او نه په دې باره کې د هغه خصم دی)، لهذا کله چې د مدعي په حق کې دا استيجار ثابتول معتبر نه سو، نو محض جرح پاته سوه (او زائد امر ثابت نه سو)، او پر محض جرح يعني پر جرح مجرد پېش کړل سوې ګواهي مقبوله نه ده، نو په دې وجه د مدعیٰ عليه له طرفه دا پېش کړل سوې ګواهي نه قبلول کيږي.

ها! که چیري مدعیٰ علیه پر دې خبره ګواهي پېش کړي چې مدعي په لسو درهمو سره ګواهان په اُجرت نیولي دي او دا لس درهمه هم مدعي زماله مال څخه ورکړي دي کوم چې د مدعي په قبضه کې موجود دي، نو په دې صورت کې به د مدعیٰ علیه دا ګواهي قبلول کېږي او قاضي به د دې ګواهي مطابق فیصله کوي؛ ځکه کله چې مدعیٰ علیه دا خبره وکړه چې مدعي د اُجرت لس درهمه زماله مال څخه ورکړي دي نو مدعیٰ علیه په دې باره کې د مدعي خصم وګرځېدی، او بناء د دې خبري سره جرح هم ثابتېږي، یعني مدعیٰ علیه خو اصلاً دا وویل چې مدعي د اُجرت لس درهمه زماله مال څخه ورکړي دي مګر پر هغه دا خبره هم مبني کېږي چې د مدعي ګواهان دراغجن او فاسقان دي، او دا د مدعیٰ علیه له طرفه جرح ده لېکن څرنګه چې په دغه جرح سره د بنده یعني د مدعیٰ علیه حق (لس درهمه) هم ثابتېږي، نو ځکه دا به "جرح غیر مجرد" وي، او مخکې ذکر سوه چې پر جرح غیر مجرد پېش کړل سوې ګواهي مقبوله ده، نو ځکه په دې صورت کې به د مدعیٰ علیه پېش کړل سوې ګواهي قبلول کېږي.

همدارنګه که مدعیٰ علیه پر دې خبره ګواهي پېش کړې چې ما مخکې د مدعي د ګواهانو سره پر مال مثلاً پر پنځوس درهمو صلح کړې ده چې تاسو به په دې معامله کې زما په خلاف ګواهي نه پېشوی (یعني که مدعیٰ علیه وویل چې ما د مدعي ګواهانو ته پر دې وعده پنځوس درهمه ورکړي دي چې هغوی به زما په خلاف ګواهي نه پېشوي، او مدعیٰ علیه خپل پر دې خبره ګواهي هم پېش کړي چې زما ګواهان دا دي)، نو ځکه اوس دې ما ته خپل پنځوس درهمه واپس راکول سي، نو په دې صورت کې به د مدعیٰ علیه ګواهي قبلول کېږي؛ ځکه چې دا جرح غیر مجرد ده، او پر جرح غیر مجرد پېش کړل سوې ګواهي مقبوله ده. ها! که چیري مدعیٰ علیه دا نه وایي چې ما هغو ته مال (مثلا پنځوس درهمه) ورکړی دي، نو دا به جرح مجرد وي او د هغه پېش کړل سوې ګواهي به نه قبلول کېږي.

ولهذا قلنا إلخ: څرنګه چې مخکې ذکر سوه چې پر جرح مجرد ګواهي نه قبلول کېږي او پر جرح غیر مجرد ګواهي قبلول کېږي، نو په دې عبارت سره پر هغه تفریع کوي فرمایي که مدعیٰ علیه د مدعي د ګواهانو پر غلام کېدلو ګواهي پېش کړي (چې د مدعي ګواهان غلامان دي) یا د هغو پر محدود في القذف کېدلو ګواهي پېش کړي، یا د هغوی پر شرابي کېدلو ګواهي پېش کړي، یا د هغو پر بهتان لګولو بیّنه پېش کړي (چې د مدعي ګواهان بهتان لګونکي دي)، یا پر دې بیّنه پېش کړې چې د مدعي ګواهان په خپله د مدعي سره د دعوې په مال کې شریکان دي. نو په دې ټولو صورتونو کې به د هغه ګواهي قبلول کېږي؛ ځکه چې غلام کېدل د سلب ولایت په وجه "حقُ الله" دي (یعني کله چې مدعیٰ

علیه ووېل چې د مدعي ګواهان غلامان دي او بیا یې په خپل ګواهي سره د هغو غلام والی ثابت کړي، نو په دې سره د مدعي د ګواهانو ولایت سلب سو، ځکه چې غلام پر هیڅ ولایت نه لري، او د یو څه ولایت سلبول حقُ الله دي)،
همدارنګه محدود فی القذف کېدل، یا شرابي کېدل، یا قاذف کېدل د حد او سزا مستحق کېدلو په وجه "حقُ الله" دي، او مخکې ذکر سوه چې په کومه جرح سره چې د الله یا بنده حق ثابتیږي، هغه ته "جرح غیر مجرد وایي"، نو ځکه د مدعیٰ علیه دا ګواهي به پر جرح غیر مجرد ګواهي پېشول وي، او پر جرح غیر مجرد پېش کړل سوې ګواهي قبلول کیږي، نو ځکه په دې صورتونو کې به هم د مدعیٰ علیه ګواهي قبلول کیږي. همدارنګه کله چې مدعیٰ علیه پر دې خبره ګواهي پېش کړي چې د مدعي ګواهان د هغه سره په مال کې شریکان دي، نو په دې سره د مدعي ګواهان په خپل ګواهي کې متهم سول، او د متهم ګواهي مردوده او نا مقبوله وي، نو ځکه دلته به هم د مدعیٰ علیه ګواهي قبلول کیږي او د مدعي د ګواهانو ګواهي به ردول کیږي.

## که ګواه ووایي چې زما څخه په ګواهي کې غلطي (تېروتنه) وسوه (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَمَنْ شَهِدَ وَلَمْ يَبْرَحْ حَتَّى قَالَ: أُوهِمْتُ بَعْضَ شَهَادَتِي فرمایي: او څه چې ګواهي ورکړه او [له خپل ځای څخه] لیرې نه سو تر دې چې ویې ویل: ما ته په خپل بعضې ګواهي کې [د غلطي کولو] وهم سو [یعني زما څخه په ګواهي کې غلطي وسوه] فَإِنْ كَانَ عَدْلًا نو که هغه عادل وو جَازَتْ شَهَادَتُهُ نو د هغه ګواهي جائز [او مقبول] پاتیږي وَمَعْنَى قَوْلِهِ "أُوهِمْتُ" أَيْ أَخْطَأْتُ بِنِسْيَانِ مَا كَانَ يَحِقُّ عَلَيَّ ذِكْرُهُ أَوْ بِزِيَادَةٍ كَانَتْ بَاطِلَةً او د ماتن رَحِمَهُ الله د دې قول "أُوهِمْتُ" معنیٰ دا ده چې ما غلطي وکړه د هغه شي په هېرولو سره چې د هغه ذکر کول پر ما واجب [ضروري] وه یا [ما غلطي وکړه] د هغه شي په زیاتولو سره کوم چې باطل وه وَوَجْهُهُ أَنَّ الشَّاهِدَ قَدْ يُبْتَلَى بِمِثْلِهِ لِمَهَابَةِ مَجْلِسِ الْقَضَاءِ او د دې دلیل دا دی چې کله د قضاء د مجلس د هیبت په وجه ګواه ځیني وخت په داسي غلطي کولو سره مبتلا کیږي فَكَانَ الْعُذْرُ وَاضِحًا نو [د هغه] عذر ښکاره دی فَتُقْبَلُ إِذَا تَدَارَكَهُ فِي أَوَانِهِ وَهُوَ عَدْلٌ نو ځکه [د هغه] ګواهي به قبلول کیږي [په دې شرط] کله چې هغه په خپل وخت کې د غلطي اصلاح [سمون] وکړي او هغه عادل [هم] وي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَامَ عَنِ الْمَجْلِسِ په خلاف د هغه صورت کله چې هغه له مجلس څخه ولاړ سي ثُمَّ عَادَ وَقَالَ: أُوهِمْتُ بیا واپس راسي او ووایي: ما ته [په خپل ګواهي کې] وهم سو لِأَنَّهُ يُوهِمُ الزِّيَادَةَ مِنَ الْمُدَّعِي بِتَلْبِيسٍ وَخِيَانَةٍ ځکه چې په دې صورت کې د مدعي له طرفه

د تلبيس يا خيانت په توګه د زياتوب کولو وهم سته فَوَجَبَ الِاحْتِيَاطُ نو ځکه احتياط واجب دی وَلِأَنَّ الْمَجْلِسَ إِذَا اتَّحَدَ او ځکه کله چي مجلس متحد وي لَحِقَ الْمُلْحَقُ بِأَصْلِ الشَّهَادَةِ نو محلحق [اضافه سوي خبره] د اصل ګواهي سره يو ځای کيږي فَصَارَ كَكَلَامٍ وَاحِدٍ نو هغه د يوه کلام په څېر سو وَلَا كَذٰلِكَ إِذَا اخْتَلَفَ او کله چي مجلس مختلف [جلا] وي نو داسي نه ده وَعَلٰى هٰذَا إِذَا وَقَعَ الْغَلَطُ فِي بَعْضِ الْحُدُودِ أَوْ فِي بَعْضِ النَّسَبِ او پر همدغه حکم دي کله چي د حلدونو په بعضي حصه کي يا د نسب په بعضي حصه کي غلطي واقع سي وَهٰذَا إِذَا كَانَ مَوْضِعَ شُبْهَةٍ او دا حکم په هغه وخت کي دی کله چي مقام د شبهي وي فَأَمَّا إِذَا لَمْ يَكُنْ ليکن که د شبهي مقام نه وي فَلَا بَأْسَ بِإِعَادَةِ الْكَلَامِ نو د کلام پر راګرځولو [او غلطي سمولو] کي هيڅ پروا نسته مِثْلُ أَنْ يَدَعَ لَفْظَةَ الشَّهَادَةِ وَمَا يَجْرِيْ مَجْرٰى ذٰلِكَ مثلاً ګواه د شهادت [أَشْهَدُ] يا د دې قائم مقام بل شی پرېږدي وَإِنْ قَامَ عَنِ الْمَجْلِسِ که څه هم هغه له مجلس څخه ولاړ سوی وي بَعْدَ أَنْ يَكُونَ عَدْلًا وروسته تر دې چي ګواه به عادل وي [يعني په دې شرط چي ګواه به عادل وي] وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوسُفَ ۞ أَنَّهُ يُقْبَلُ قَوْلُهُ فِي غَيْرِ الْمَجْلِسِ إِذَا كَانَ عَدْلًا او له شيخينو رَحِمَهُمَا الله څخه روايت دا دی چي کله ګواه عادل وي نو [د ګواهي] له مجلس څخه بغير [په بل مجلس] کي به هم د هغه ګواهي قبلول کيږي وَالظَّاهِرُ مَا ذَكَرْنَاهُ او ظاهر روايت هغه دی کوم چي موږ ذکر کړی.

**اللغات:** ﴿لم يبرح﴾ د سمع د باب جحد صيغه ده: له ځايه ليري کېدل، له ځايه جلا کېدل. ﴿أُوْهِمْتُ﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: په وهم او شک کي لوېدل (شکمن کېدل). ﴿مهابة﴾ د سمع د باب مصدر ميمي دی: رعيب، بېره. ﴿أوان﴾ وقت، ګړی. ﴿تلبيس﴾ د تفعيل د باب مصدر دئ: يو چا ته ګډه وډه خبره کول چي په حقيقت خبر نه سي. ربښتيا او درواغ سره ګډول او په دې توګه حقيقت پټول. ﴿يدع﴾ د فتح د باب مضارع ده: پرېښوول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی ګواهي ورکړي او تر اوسه د قاضي له مجلسه جلا سوی نه وي بلکي پر خپل ځای ناست يا ولاړ وي او په همدې حالت کي ووايي چي "زما څخه په ګواهي کي غلطي (تېروتنه) وسوه"، نو که چيري د قاضي په نېز د هغه عادل والی ښکاره وي چي دا ګواه

---

۞ القول الراجح: هو ظاهر الرواية، كما قال المصنف رَحِمَهُ الله: والظاهر ما ذكرناه. وكذا في الدر المختار (ج:۴، ص:۴۳۰)، [illegible] (۲۱۵: ص). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۳۵]

بالكل عادل دی. نو د هغه ګواهي جائز او مقبوله پاتېږي. د غلطۍ او تېروتلو مطلب دا دی چي د کوم شي بيانول ضروري وه زما څخه هغه هېر سو. يا د کوم شي بيانول چي باطل او غلط وه ما هغه بيان کړی. يعني د غلطي کولو مراد دا دی چي هغه په ګواهي کمي يا زياتوب وکړي (او بيا بيرته په هغه مجلس کي خپل کمي يا زياتوب سم کړي. نو قاضي به د هغه ګواهي قبلوي. په دې شرط چي هغه عادل وي).

دليل دا دی چي ځيني وخت د قاضي د مجلس د رعب او هيبت په وجه له ناولده ګواه څخه خامخا داسي تېروتنه او غلطي کيږي. نو ځکه د ګواه عذر ښکاره دی. او کله چي د ګواه عذر ښکاره دی، نو د هغه ګواهي به جائز او مقبوله وي. په دې شرط چي ګواه عادل وي.

او ګواه دي د هغه غلطۍ سمون (تدارک) په خپل وخت کي وکړي او د غلطۍ سمولو وخت د قاضي له مجلس څخه تر جلا کېدلو مخکي وخت دی.

د دې په خلاف که چيري ګواه له مجلس څخه جلا سي يعني دباندي ولاړ سي بيا بيرته واپس راسي او ووايي چي زما څخه په ګواهۍ کي غلطي وسوه. نو په دې صورت کي د هغه خبره معتبره نه ده او د هغه ګواهي به نه قبلول کيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي دا وهم او احتمال سته چي مدعي يا مدعیٰ عليه به ګواه ته رشوت ورکړی وي، يا به يې پر خيانت کولو او غلط بيان کولو مجبوره کړی وي، نو د دې وهم او احتمال پر بناء احتياط په دې کي دی چي د هغه ګواهي قبوله نه کړل سي. نو ځکه احتياطا به په دې صورت کي د هغه ګواهي مقبوله نه وي.

لأن المجلس إلخ: دويم دليل دا دی چي کله مجلس متحد وي (يعني تر اوسه ګواه له مجلس څخه جلا سوی نه وي)، نو د ګواه له طرفه اضافه سوې (سمه کړل سوې) خبره د اصل ګواهۍ سره لاحق کيږي؛ ځکه چي د مجلس اتحاد متفرقات جمع کوي يعني د مجلس يو والی د يو شي بېلا بېل اجزاء سره جمع کوي (مثلا که په يوه مجلس کي يو کار څو واره وکړی سي نو هغه يو کار شمارل کيږي) لهذا که په يوه مجلس کي خبري او کلام سره بېل او جلا وي نو هغه ټوله يو کلام شمارل کيږي، نو ځکه په دې صورت کي به د ګواه اوله خبره او دويمه (سمه کړل سوې) خبره د يوې خبري په څېر وي او د هغه ټوله کلام به د يوې ګواهۍ په درجه کي وي نو ځکه به يې ګواهي مقبوله وي. د دې په خلاف که چيري مجلس مختلف او جلا وي (يعني ګواه له مجلس څخه دباندي ولاړ سي)، نو څرنګه چي په دې صورت کي د ګواه دويمه خبره د اولي خبري سره نه لاحق کيږي، نو ځکه له مجلس څخه د جلا کېدلو په صورت کي به د هغه ګواهي مقبوله نه وي.

وعلى هذا إلخ: د مجلس د متحد کېدلو يا مختلف کېدلو په وجه چي په حکم کي کوم فرق راځي، دا فرق په هغه وخت کي هم دی کله چي له ګواه څخه په حد يا نسب بيانولو کي غلطي وسي. مثلاً په

حد زنا کي ګواهانو په خپل ګواهي کي وويل چي سړي او ښځي د فلانکۍ خونې (کمرې) په کونج کي زنا وکړه، بيا ګواهانو بيرته خپل کلام سم کړی او ويې ويل چي زموږ څخه غلطي وسوه بلکي هغو د خوني په مينځ کي زنا وکړه، نو که چيري دوی په هغه مجلس کي خپل کلام سم کړی وي، نو د دوی سمون (ترميم الخطاء) او ګواهي به قبلول کيږي، ليکن که دوی له مجلس څخه دباندي ولاړي سي او بيا واپس راسي خپل کلام سم کړي چي زموږ څخه غلطي وسوه، نو د دوی ګواهي به نه قبلول کيږي. همدارنګه که ګواه د يو سړي د نسب بيانولو په وخت کي ووايي چي "خالد بن حامد بن عمر"، بيا په هغه مجلس کي دننه خپل کلام بدل کړي چي زما څخه غلطي سوه د هغه اصل نسب داسي دی "خالد بن سعيد بن عمر"، نو د هغه سمون (ترميم الخطاء) او ګواهي به قبلول کيږي، ليکن که چيري هغه له مجلس څخه جلا سي يعني دباندي (بهر) ولاړ سي او بيا راسي خپل غلطي سمه کړي، نو د هغه سمون (ترميم الخطاء) او ګواهي مقبوله نه ده، يعني نه به قبلول کيږي.

<u>وهذا إذا كان إلخ</u>: د دې حاصل دا دی چي د ګواه له طرفه د غلطۍ سمون (ترميم الخطاء) د مجلس د متحد کېدلو په صورت کي مقبول کېدل او د مجلس د مختلف کېدلو په صورت کي نه مقبول کېدل په هغه وخت کي دي کله چي دا يو مشتبه مقام وي يعني د فريب او خيانت د شبهي مقام وي، ليکن که مشتبه مقام نه وي يعني په ګواهۍ کي د خيانت او فريب کولو (دوکه کولو) هيڅ خطره نه وي، نو په دې صورت کي ګواه ته د مطلقاً سمون (ترميم الخطاء) اجازت سته، يعني برابره ده مجلس مختلف وي او که متحد وي په هر صورت کي هغه خپله غلطي سمولای سي. ليکن شرط دا دی چي ګواه به عادل وي.

د مشتبه مقام نه کېدلو مثال دا دی لکه ګواه چي د "أشهد" (زه ګواهي ورکوم) په لفظ سره ګواهي نه ورکړي بلکي دا لفظ ځني هېر سي، يا له ګواه څخه د مدعي يا مدعیٰ عليه نوم هېر سي، نو په دې صورت کي هغه ته په مجلس کي دننه هم د غلطي سمولو اجازت سته او له مجلس څخه تر ولاړېدلو او بهر وتلو وروسته هم هغه ته د دې اجازت سته. همدا ظاهر روايت دی.

د دې په خلاف له شيخينو رَحِمَهُمَا الله څخه يو روايت دا دی چي که ګواه عادل وي نو برابره ده مقام د شبهي وي او که نه وي. مجلس متحد وي او که مختلف وي، په هر صورت کي هغه ته د خپل غلطۍ سمولو اجازت سته او په هر صورت کي به د هغه ګواهي قبلول کيږي. ليکن دا ظاهر روايت نه دی بلکي اول قول ظاهر روايت دی.



# بَابُ الْاِخْتِلَافِ فِي الشَّهَادَةِ

## (دا) باب په ګواهۍ کې د اختلاف کولو (په بيان کې) دی

**تشريح**: مخکې تر دې د هغه ګواهۍ بيان وو چې په هغه کې ګواهان پر خپلې ګواهۍ متفق وي، اوس له دې ځايه په ګواهۍ کې د اختلاف کولو احکام بيانوي. څرنګه چې اتفاق اصل دی او اختلاف عارض دی (ځکه اختلاف د ناخبرۍ، درواغ او داسې نورو عوارضو په وجه عارضيږي)، نو ځکه يې اول د اصل بيان وکړی، او اوس د عارض بيان کوي، ځکه همدا قاعده ده چې اصل له عارض څخه مخکې وي.

**يادونه**: په دغه باب کې دا خبره بيانيږي چې مثلاً دوه ګواهان د يو شي په باره ګواهي پېش کړي لېکن د هغو ګواهي يو له بل څخه مختلفه او جلا وي، نو دا ګواهي به نه قبلول کيږي. همدارنګه که يو څوک د يو شي دعوىٰ وکړي او بيا پر خپله دعوىٰ ګواهي پېش کړي، نو که چېرې په هغه دعوىٰ او ګواهۍ کې اتفاق نه وي او يو له بل څخه جلا وي نو دا ګواهي به نه قبلول کيږي، او که اتفاق پکښې وي نو هغه به قبلول کيږي.

### د ګواهۍ او دعوىٰ په مېنځ کې د مطابقت شرط

قَالَ: اَلشَّهَادَةُ إِذَا وَافَقَتِ الدَّعْوٰى فرمايي: کله چې ګواهي د دعوې موافق وي قُبِلَتْ نو هغه به قبلول کيږي وَإِنْ خَالَفَتْهَا او که د دعوې مخالف وي لَمْ تُقْبَلْ نو نه به قبلول کيږي لِأَنَّ تَقَدُّمَ الدَّعْوٰى فِي حُقُوْقِ الْعِبَادِ شَرْطُ قَبُوْلِ الشَّهَادَةِ ځکه چې د بندګانو په حقوقو کې د دعوې مخکې کېدل [مخکې دعوىٰ کول] د ګواهۍ د قبلېدلو لپاره شرط دي وَقَدْ وُجِدَتْ فِيْمَا يُوَافِقُهَا او دا په هغه ګواهۍ کې موجود سوه کوم چې د دعوې موافق وي وَانْعَدَمَتْ فِيْمَا يُخَالِفُهَا او په هغه ګواهۍ کې معدوم [نا موجود] دي کوم چې د دعوې مخالف وي.

**اللغات**: ﴿وافقت﴾ د مفاعلې له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: موافق کېدل، مطابق کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې مدعي پر خپله دعوىٰ کوم ګواهان پېش کړي وي د هغو ګواهي به په هر اعتبار سره د مدعي د دعوې مطابق وي (يعني د زمان، مکان، نوع، مقدار، کيفيت، فعل، ملکيت او نسبت ټولو په اعتبار سره به د ګواهي او دعوې په مېنځ کې مطابقت وي)، لېکن که د ګواهۍ او دعوې

په مینځ کي مطابقت نه وي. نو بیا به ګواهي نه قبلول کیږي. مثلاً یو سړي دعویٰ وکړه چي فلانکي سړي زما پلار د جمعې په ورځ په بازار کي قتل کړی او ګواه وویل چي هغه د یکشنبې په ورځ په ګنج کي قتل کړی (په دې مثال کي د زمان او مکان په اعتبار سره د ګواهی او دعوې په مینځ کي مطابقت نسته). یا مثلاً یو سړي د لس درهمو دعویٰ وکړه یا مثلاً یو سړي د شنې کپړې دعویٰ وکړه او ګواه د لسو دینارو ګواهي وزکړه یا د سپیني کپړې ګواهي یې ورکړي (په دې مثال کي د نوع او کیفیت په اعتبار سره مطابقت نسته)، نو په دې صورتونو کي به د ګواه ګواهي نه قبلول کیږي.

دلیل دا دی چي د بندګانو د حق ثابتولو لپاره دعویٰ پر ګواهۍ مخکي کېدل د ګواهۍ د قبلېدلو لپاره شرط دي، یعني د بنده د حق ثابتولو لپاره دا شرط او ضروري ده چي اول هغه د قاضي مخته خپل دعویٰ بیان کړي او بیا ګواهي پر پېش کړي، او ښکاره خبره ده چي کله ګواهي د دعوې مطابق وي، نو په دې صورت کي د دعوې مخکي کېدل موجود سوه (یعني د ګواهۍ د مطابق کېدلو په وجه اول دعویٰ ثابته سوه). ځکه چي د ګواهۍ معنیٰ ده "د دعوې تصدیق کول" (یعني په ګواهۍ سره د ګواه مطلب دا وي چي زه مدعي په خپل دعویٰ کي رښتونې ګنم)، او د تصدیق لپاره دا ضروري ده چي د کوم شي تصدیق کیږي هغه به له مخکي څخه موجود وي، نو ځکه کله چي ګواهي د دعوې مطابق وي نو ګواکي په دې صورت کي د دعوې مخکي کېدل موجود سوه، او همدا د ګواهۍ د قبلېدلو لپاره شرط دي، او کله چي شرط موجود سو نو ګواهي به هم قبلول کیږي. او که چیري ګواهي د دعوې مخالفه وي نو په دې صورت کي د دعوې مخکي کېدل موجود نه سوه بلکي ختم او نیستي سوه، ځکه کله چي ګواه د دعوې مخالفت وکړی او خپله ګواهي یې مخالفه بیان کړه نو ګواکي هغه د دعوې تکذیب وکړی (چي زه مدعي په خپل دغه دعویٰ کي درواغجن ګنم. نه رښتونی)، او کله چي د دعوې تکذیب وسو، نو د دعوې موجودېدل او نه موجودېدل سره برابر سول، لهذا کله چي د هغه وجود او نه وجود سره برابر سول، نو د دعوې مخکي کېدل موجود نه سوه کوم چي د ګواهۍ د قبلېدلو لپاره شرط دي، او کله چي د ګواهۍ د قبلېدلو شرط موجود نه سو نو ګواهي به هم نه قبلول کیږي.

په بله وینا: څرنګه چي پورتنی دلیل څه مشکل دی، نو ځکه په آسانه وینا داسي هم ویل کېدای سي چي د بنده د حق ثابتولو لپاره دا ضروري ده چي اول دعویٰ موجوده سي یعني اول د بنده له طرفه دعویٰ وسي او بیا پر هغه بینه پېش سي. او ښکاره خبره ده چي کله بنده دعویٰ وکړي او ګواه د هغه مخالفه ګواهي ورکړي مثلاً بنده ووایي چي زما لس دیناره دي او ګواه ووایي چي نه لس درهمه دي. نو ګواکي د ګواهۍ د مخالف کېدلو په وجه د هغه دعویٰ ختمه سوه او دعویٰ موجوده نه سوه، نو ځکه به ګواهي

نه قبلول کيږي. لېکن کله چې بنده دعوىٰ وکړي او بيا ګواه د هغه مطابق ګواهي ورکړي، نو ګواکي د ګواهۍ په وجه دعوىٰ هم ثابته او موجوده سوه، نو ځکه په دې صورت کي به ګواهي قبلول کيږي.

## د ګواهانو په ګواهۍ کي د لفظاً او معناً اتفاق شرط

قَالَ: وَيُعْتَبَرُ اتِّفَاقُ الشَّاهِدَيْنِ فِي اللَّفْظِ وَالْمَعْنَى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فرمايي: د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [د ګواهۍ] په لفظ او معنىٰ کي د دواړو ګواهانو متفق کېدل معتبر دي فَإِنْ شَهِدَ أَحَدُهُمَا بِأَلْفٍ وَالْآخَرُ بِأَلْفَيْنِ نو که له هغو شخه يو ګواه د زر درهمو ګواهي ورکړي او بل د دوه زرو ګواهي ورکړي لَمْ تُقْبَلِ الشَّهَادَةُ عِنْدَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به دا ګواهي نه قبلول کيږي وَعِنْدَهُمَا ۞ تُقْبَلُ عَلَى الْأَلْفِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به دا ګواهي پر زرو درهمو قبلول کيږي إِذَا كَانَ الْمُدَّعِي يَدَّعِي الْأَلْفَيْنِ [دا په هغه صورت کي] کله چې مدعي د دوه زرو دعوىٰ کوي وَعَلَى هَذَا الْمِائَةُ وَالْمِائَتَانِ وَالطَّلْقَةُ وَالطَّلْقَتَانِ وَالطَّلْقَةُ وَالثَّلَاثُ او پر همدغه اختلاف دي سل او دوه سوه، يو طلاق او دوه طلاقه، يو طلاق او درې طلاقه لَهُمَا أَنَّهُمَا اتَّفَقَا عَلَى الْأَلْفِ أَوِ الطَّلْقَةِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي [دلته] دواړو ګواهانو پر زرو او يوه طلاق اتفاق کړی دی وَتَفَرَّدَ أَحَدُهُمَا بِالزِّيَادَةِ او په زياتوب [اضافه سوي مقدار] کي يو ګواه مفرد [يوازي] دی فَيَثْبُتُ مَا اجْتَمَعَا عَلَيْهِ نو پر کوم مقدار چي دواړه متفق دي فقط هغه به ثابتيږي دُونَ مَا تَفَرَّدَ بِهِ أَحَدُهُمَا نه هغه مقدار چي په هغه کي يو ګواه مفرد دی فَصَارَ كَالْأَلْفِ وَالْأَلْفِ وَالْخَمْسِمِائَةِ نو دا داسي سو لکه زر درهمه او پنځلس سوه درهمه [يعني لکه يو ګواه چي د زر درهمو ګواهي ورکړي او بل د پنځلس سوه درهمو ګواهي ورکړي] وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُمَا اخْتَلَفَا لَفْظًا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي [دلته] دواړو ګواهانو لفظاً اختلاف کړی دی وَذَلِكَ يَدُلُّ عَلَى اخْتِلَافِ الْمَعْنَى او دا [لفظاً اختلاف] د معنىٰ پرف اختلاف دلالت کوي لِأَنَّهُ يُسْتَفَادُ بِاللَّفْظِ ځکه چي معنىٰ د لفظ شخه ترلاسه کيږي [يعني معنىٰ د لفظ شخه را

۞ القول الراجح: قول الامام رَحِمَهُ الله، قال العلامة الحصكفي: والصحيح قوله كما في المضمرات...الخ (الدر المنتقى ج:۳، ص:۲۸۶)، وكذا في الهنديه (ج:۳، ص:۵۰۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۳۶].

اخيستل كيږي] وَهٰذَا لِأَنَّ الْأَلْفَ لَا يُعَبَّرُ بِهِ عَنِ الْأَلْفَيْنِ ځکه چي د "أَلْف" [زرو] په لفظ سره "أَلْفَين" [دوه زره] نه مرادول كيږي بَلْ هُمَا جُمْلَتَانِ مُتَبَايِنَتَانِ بلكي دا دواړه جلا، جلا جملې [او جلا مقدارونه] دي فَحَصَلَ عَلىٰ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا شَاهِدٌ وَاحِدٌ نو پر دې هره يوه [مقدار] فقط يو گواه حاصل سو فَصَارَ كَمَا إِذَا اخْتَلَفَ جِنْسُ الْمَالِ نو دا داسي سو لكه د مال په جنس كي چي اختلاف وسي.

**اللغات**: ﴿تفرّد﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: يوازي كېدل(يوازيني كېدل)، تنها كېدل. ﴿متباينتان﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه مؤنث اسم فاعل صيغه ده: جلا، جلا (سره جلا) سره بېل. ﴿يُستفاد﴾ د استفعال د باب مضارع مجهوله ده: حاصلېدل، ترلاسه كېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د گواهی د قبلېدلو لپاره د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا شرط او ضروري دي چي گواهان به د لفظ او معنىٰ دواړو په اعتبار سره متفق وي، لېكن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز فقط په معنىٰ كي د گواهانو اتفاق ضروري دی، لفظاً اتفاق ضروري نه دی. مثلاً كه يو سړی پر بل چا د دوه زرو (۲۰۰۰) درهمو دعوىٰ وكړي او پر خپله دعوىٰ دوه گواهان پېش كړي، لېكن له هغه گواهانو څخه يو گواه د زرو درهمو دعوىٰ وكړي او بل گواه د دوو زرو گواهي وركړي. نو څرنگه چي دلته د دواړو په گواهي كي اختلاف دی، نو ځكه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به دا گواهي نه قبلول كيږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به پر أقل (كم والا) يعني پر زرو درهمو دا گواهي قبلول كيږي.

وعلى هذا إلخ: فرمايي دامام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله دغه اختلاف په دې صورتونو كي هم دی: (۱)... كه يو سړی د دوه سوو (۲۰۰) درهمو دعوىٰ وكړي، لېكن د هغه له گواهانو څخه يو گواه د سل درهمو گواهي وركړي او بل د دوه سوو گواهي وركړي. (۲)... كه يو ښځه دا دعوىٰ وكړي چي زما خاندان ما ته دوه طلاقه راكړي دي، لېكن د هغې يو گواه د يوه طلاق گواهي وركړي او بل گواه د دو طلاقو گواهي وركړي. (۳)... كه يو ښځه دا دعوىٰ وكړي چي زما خاوند ما ته درې طلاقه راكړي دي، لېكن د هغې يو گواه د يوه طلاق گواهي وركړي او بل د دريو طلاقو گواهي وركړي. نو څرنگه چي په دې هر صورت كي د دواړو گواهانو په گواهي كي اختلاف دی، نو ځكه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به د هغو گواهي نه قبلول كيږي، لېكن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به هر صورت كي پر اقل يعني پر زر، سل او پر يوه طلاق د هغو گواهي قبلول كيږي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې دلته ګواهانو پر زر، سل او پر يوه طلاق اتفاق کړی دی او کوم مقدار چې پر دې اضافه دی په هغه کې د دوی اتفاق نسته. بلکې په اضافي مقدار کې يو ګواه متفرد (يوازينی) دی، لهذا پر کوم مقدار چې د هغو اتفاق نسته، هغه به نه قبلول کيږي. او د دې مثال دا دی لکه مدعي چې د يو نيم زر درهمو دعویٰ وکړي او د هغه يو ګواه د زر درهمو ګواهي ورکړي او بل د يو نيم زر ګواهي ورکړي، نو بالاتفاق پر اقل يعنې پر زر درهمو ګواهي قبلول کيږي (لکه څرنګه چې په آينده عبارت کې مذکور دي)، همداسې به په دې ټولو صورتونو کې هم پر اقل ګواهي قبلول کيږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چې کله دلته يوه ګواه د زر درهمو ګواهي ورکړه او بل د دوه زرو ګواهي ورکړه، يا يوه د سل درهمو او بل د دوه سوو ګواهي ورکړه، يا يوه د يوه طلاق او بل د دوو يا دريو طلاقو ګواهي ورکړه، نو په دې ټولو صورتونو کې د ګواهانو په ګواهۍ کې لفظاً اختلاف راغلی، او د لفظ اختلاف د معنیٰ اختلاف لره مستلزم دی؛ ځکه چې معنیٰ د لفظ څخه را اخيستل کيږي، همدا وجه ده چې د أَلف په لفظ سره أَلفَيْن نه مرادول کيږي او نه د أَلفَيْن په لفظ سره أَلف مرادول کيږي، نو ځکه د دواړو ګواهانو ګواهي به د يوه او بل له ګواهۍ څخه مختلفه او جلا وي او په پورتني هر صورت کې به فقط يو ګواه وي، حال دا چې د کامل شهادت (بشپړ ګواهۍ) لپاره دوه ګواهان ضروري دي او هغه دلته نسته، نو ځکه په يوه صورت کې به هم ګواهي مقبوله نه وي. او د دې مثال داسې دی لکه ګواهان چې د مال په جنس کې اختلاف وکړي يعنې يو ګواه د زر درهمو ګواهي ورکړي او بل ګواه د سلو دينارو ګواهي ورکړي نو په دې صورت کې د هغو ګواهي نه قبلول کيږي، همداسې به په پورتني صورتونو کې هم د ګواهانو ګواهي نه قبلول کيږي.

## د ګواهانو د جزئي اختلاف صورت

قَالَ: وَإِنْ شَهِدَ أَحَدُهُمَا بِالْأَلْفِ وَالْآخَرُ بِأَلْفٍ وَخَمْسِ مِائَةٍ فرمايي: که له دوو ګواهانو څخه يو ګواه د زر درهمو ګواهي ورکړي او بل د پنځلس سوه درهمو ګواهي ورکړي وَالْمُدَّعِيْ يَدَّعِيْ أَلْفًا وَخَمْسَ مِائَةٍ او مدعي [هم] د پنځلس سوو دعویٰ کوي قُبِلَتِ الشَّهَادَةُ عَلَى الْأَلْفِ نو پر زر درهمو به ګواهي قبلول کيږي لِاتِّفَاقِ الشَّاهِدَيْنِ عَلَيْهَا لَفْظًا وَمَعْنًى ځکه چې [دلته] دواړو ګواهانو پر زر درهمو لفظاً او معناً اتفاق کړی دی لِأَنَّ الْأَلْفَ وَالْخَمْسَ مِائَةٍ جُمْلَتَانِ عُطِفَ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرٰى ځکه چې زر او پنځه سوه دوې جملې دي چې يوه پر بلې عطف کړل سوې ده وَالْعَطْفُ يُقَرِّرُ الْأَوَّلَ او عطف اول ثابتوي وَنَظِيرُهُ الطَّلْقَةُ وَالطَّلْقَةُ وَالنِّصْفُ وَالْمِائَةُ وَالْمِائَةُ وَالْخَمْسُونَ او د دې مثال يو طلاق او يو نيم

طلاق، سل او یو نیم سل دي بِخِلَافِ الْعَشَرَةِ وَالْخَمْسَةَ عَشَرَ په خلاف د لسو او پنځلسو لِأَنَّهُ لَيْسَ بَيْنَهُمَا حَرْفُ الْعَطْفِ ځکه چې د دعوی په مینځ کې حرف عطف نشته فَهُوَ نَظِيرُ الْأَلْفِ وَالْأَلْفَيْنِ نو دا د زرو او دوو زرو په شان دي.

**اللغات**: ﴿يقرر﴾ ثابتول، مضبوطول. ﴿نظير﴾ مثال، مشابه. ﴿العطف يقرر الأول﴾ د دې آسانه مطلب دا دی چې که د دوو جملو په مینځ کې حرف عطف (واو) وي نو دویمه جمله اوله جمله ثابتوي او مضبوطوي، مثلاً که یو ګواه د "ألف وخمس مائة" (زر او پنځه سوه) ګواهي ورکړي، نو ګواکې په دې عطف سره هغه ګواه أَلف (زر درهمه) ثابت او مضبوط کړل چې زر درهمه خو بېله شکه او یقیني دي (یعني زره درهمو خو خامخا د مدعي پر مدعیٰ علیه باندې دي).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دې که یو سړی د پنځلس سوو (یو نیم زر) درهمو دعویٰ وکړي چې زما پر مدعیٰ علیه پنځلس سوه درهمه دي، او د هغه له دوو ګواهانو څخه یو ګواه د زر درهمو ګواهي ورکړي او بل د پنځلس سوو درهمو ګواهي ورکړي، نو په دې صورت کې به د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله ټولو په نیز دا ګواهي پر اقل یعني پر زر درهمو قبلول کیږي؛ ځکه چې دلته ګواهانو د لفظ او معنیٰ دواړو په اعتبار سره پر زر درهمو اتفاق کړی دی، معناً اتفاق خو یې ښکاره دی چې د پنځلس سوو په ضمن کې زر (أَلف) هم موجود دي، او لفظاً اتفاق په دې توګه دی چې "أَلف وخَمْس مِائَة" دوې جملې دي او په دې کې دویمه جمله (وَخَمْس مِائَة) پر اولې جملې (أَلف) عطف کړل سوې ده، او عطف اول شی ثابتوي او مضبوطوي چې هغه معطوف علیه (أَلف) دی او د دې مطلب په لغاتو کې ذکر سو، یا به د دې مطلب دا وي چې کوم ګواه چې د زر او پنځه سوو (یعني د پنځلس سوو) ګواهي ورکړې ده هغه هم اولاً د زر درهمو ګواهي ورکړې ده. لنډه دا چې په دې صورت کې دواړه ګواهان د زر درهمو پر ګواهۍ متفق دي، لهذا کله چې پر زر درهمو لفظاً او معناً دواړه ټوله ګواهان متفق دي، نو ځکه پر زر درهمو به د هغو ګواهي قبلول کیږي.

صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د دې مسئلې دوه مثالونه بیان کړي دي: (۱)... که یو ښځه دعویٰ وکړي چې ما ته خپل خاوند یو نیم طلاق راکړی دی او د هغې له ګواهانو څخه یو ګواه د یوه طلاق او بل د یو نیم طلاق ګواهي ورکړي، نو څرنګه چې په دې صورت کې هم پر یوه طلاق دواړه متفق دي، نو ځکه پر یوه طلاق به د هغو ګواهي معتبره او مقبوله وي. (۲)... دویم مثال دا دی که یو سړی د یو

نیم سل درهمو دعویٰ وکړي او د هغه له ګواهانو څخه يو د سل او بل د يو نيم سل ګواهي ورکړي، نو پر سل درهمو به د هغو ګواهي مقبوله او معتبر وي؛ ځکه چي پر دې مقدار دواړه متفق دي.

د دې په خلاف که يو سړی د پنځلس درهمو دعویٰ وکړي او د هغه يو ګواه د لسو "عشرة" ګواهي ورکړي او بل د "خَمسة عشر" ګواهي ورکړي، نو په دې صورت کي به د يوه ګواه ګواهي هم نه قبلول کيږي؛ ځکه چي دلته د "خَمسة عشر" په مينځ کي د عطف حرف يعني "واو" نسته، نو ځکه "خمسة عشر" به ټوله يوه جمله وي، لهذا دا جمله د "عشرة" له جملې څخه جلا سوه او د دواړو ګواهانو په ګواهۍ کي اختلاف راغلی، نو ځکه په دې صورت کي به ګواهي معتبره او مقبوله نه وي.

دا صورت د مخکني صورت په څېر دی چي يو ګواه د زر درهمو او بل ګواه د دوه زرو ګواهي ورکړي.

## د ګواهانو د جزئي اختلاف بل صورت

وَإِنْ قَالَ الْمُدَّعِيْ: لَمْ يَكُنْ لِيْ عَلَيْهِ إِلَّا الْأَلْفُ فرمايي: او که مدعي ووايي: چي زما پر مدعیٰ عليه فقط زر درهمه [باندي] دي فَشَهَادَةُ الَّذِي شَهِدَ بِالْأَلْفِ وَخَمْسِ مِائَةٍ بَاطِلَةٌ نو [په دې صورت کي] د هغه ګواه ګواهي باطله ده کوم چي د پنځلس سوه درهمو ګواهي ورکړې ده لِأَنَّهُ كَذَّبَهُ الْمُدَّعِيْ فِي الْمَشْهُوْدِ بِهٖ ځکه چي په خپله مدعي هغه په مشهود به [پنځلس سوو] کي دروغجن ګڼلی دی وَكَذَا إِذَا سَكَتَ إِلَّا عَنْ دَعْوَى الْأَلْفِ او همدارنګه کله چي مدعي د زر درهمو له دعوې څخه بغير [په زائد مقدار] کي چپ پاته سي لِأَنَّ التَّكْذِيْبَ ظَاهِرٌ ځکه چي [په دې صورت کي] تکذيب ښکاره دی فَلَا بُدَّ مِنَ التَّوْفِيْقِ نو ځکه موافقت پيدا کول [تطبيق ورکول] ضروري دي وَلَوْ قَالَ: كَانَ أَصْلُ حَقِّيْ أَلْفًا وَخَمْسَ مِائَةٍ او که چيري مدعي ووايي: چي زما اصل حق خو پنځلس سوه درهمه وو وَلٰكِنِّيْ اسْتَوْفَيْتُ خَمْسَ مِائَةٍ أَوْ أَبْرَأْتُهُ عَنْهَا لېکن ما پنځه سوه [له مدعیٰ عليه څخه] واخيستل يا ما مدعیٰ عليه له هغه څخه بري کړې قُبِلَتْ لِتَوْفِيْقِهٖ نو د هغه د توفيق [تطبيق ورکولو] په وجه به ګواهي قبلول کيږي.

**اللغات**: ﴿مشهود بهٖ﴾ د کوم شي په باره کي چي ګواهي ورکول سوې وي، ﴿تکذيب﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: دروغجن ګرځول، دروغجن بلل (دروغجن ګڼل)، ﴿توفيق﴾ مخکني صيغه ده: موافق کول، موافقت او مطابقت پيدا کول، تطبيق ورکول، ﴿استوفيتُ﴾ د استفعال له بابه د واحد

متکلم ماضي صيغه ده: (حق) اخيستل، ترلاسه کول، «ابرأته» مخکنۍ صيغه ده: بري کول، معافول. (احسن الهدايه)

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی دعوی وکړي چي زما پر مدعیٰ عليه دراهم باندي دي، او د ده له ګواهانو څخه يو ګواه د زر درهمو ګواهي ورکړي او بل د پنځلس سوو ګواهي ورکړي؛ بيا دا سړی يعني مدعي ووايي چي له زر درهمو څخه بغير ما پر مدعیٰ عليه نور دراهم نسته، نو په دې صورت کي د پنځلس سوه درهمو والا ګواه ګواهي باطليږي؛ ځکه په خپله مدعي د مشهود به (پنځلس سوو) په باره کي د هغه تکذيب کړی دی چي ته په خپل ګواهي کي درواغجن يې!، او درواغجن فاسق وي او د فاسق ګواهي نا مقبوله ده، نو ځکه د هغه ګواهي به هم نا مقبوله او باطله وي. او کله چي د هغه ګواهي باطله ده نو فقط يو ګواه پاته سو. او په دې سلسله د يوه سړي ګواهي معتبره نه ده، نو ځکه د يوه ګواه په ګواهۍ سره به زر درهمه نه ثابتيږي.

همدارنګه که مدعي د پنځلس سوه درهمو دعویٰ وکړي او بيا فقط د زر درهمو اقرار وکړي او د پنځه سوه درهمو په باره کي چپ پاته سي، يعني تر دعوې وروسته اقرار وکړي چي زما پر مدعیٰ عليه فقط زر درهمه دي، نو په دې صورت کي به د پنځلس سوه درهمو والا ګواهي نه قبلول کيږي؛ ځکه چي د مدعي د اقرار او د هغه د ګواه په ګواهۍ کي هيڅ موافقت نسته، نو ځکه د عدم موافقت په وجه به دا ګواهي مقبوله نه وي. ها! که چيري مدعي د هغه موافقت وکړي او داسي ووايي چي پر مدعیٰ عليه خو اصلاً ما پنځلس سوه درهمه باندي وه لېکن پنځه سوه درهمه ما له هغه څخه مخکي واخيستل يا ما هغه له پنځه سوو څخه بري او معاف کړی، نو په دې صورت کي به د پنځلس سوه درهمو والا ګواهي هم قبلول کيږي او د دواړو ګواهانو په ګواهۍ سره به پر مدعیٰ عليه د زر درهمو فيصله کيږي (چي ته مُدعي ته زر درهمه ورکړه!).

## د ګواهانو د جزئي اختلاف بل صورت

قَالَ: وَإِذَا شَهِدَا بِأَلْفٍ فرمايي: او که دواړه ګواهان د زر درهمو ګواهي ورکړي وَقَالَ أَحَدُهُمَا: قَضَاهُ خَمْسَ مِائَةٍ او له هغو څخه يو ګواه ووايي: چي مدعیٰ عليه [له هغه څخه] پنځه سوه مدعي ته ورکړي دي قُبِلَتْ شَهَادَتُهُمَا بِالْأَلْفِ نو پر زر درهمو به د دواړو ګواهي قبلول کيږي لِاتِّفَاقِهِمَا عَلَيْهِ ځکه چي پر دې مقدار دواړه ګواهان متفق دي وَلَمْ يُسْمَعْ قَوْلُهُ إِنَّهُ قَضَاهُ خَمْسَ مِائَةٍ او د ګواه دا قول به

نه اوربدل کیږي چې مدعیٰ علیه مدعي ته پنځه سوه ورکړي دي لِأَنَّهُ شَهَادَةُ فَرْدٍ ځکه چې دا د یوه فرد گواهي ده إِلَّا أَنْ يَشْهَدَ مَعَهُ آخَرُ مگر دا چې د هغه سره یو بل څوک هم گواهي ورکړي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ* أَنَّهُ يُقْضَى بِخَمْسِ مِائَةٍ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې د پنځه سوه درهمو فیصله به کیږي لِأَنَّ شَاهِدَ الْقَضَاءِ مَضْمُونُ شَهَادَتِهِ أَنْ لَا دَيْنَ إِلَّا خَمْسَ مِائَةٍ ځکه کوم گواه چې [د پنځه سوو] د اداء کولو گواهي ورکونکی دی د هغه د گواهۍ مضمون [او حاصل] دا دی چې قرض فقط پنځه سوه درهمه دی [مطلب دا چې د هغه گواهي دې خبري لره متضمن او شامله ده چې قرض صرف پنځه سوه درهمه دی] وَجَوَابُهُ مَا قُلْنَا او د دې جواب هماغه دی کوم چې موږ وویل.

**اللغات**: ﴿قضاء﴾ د ضرب د باب ماضي ده: حق او قرض اداء کول، قرض ورکول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی د زر درهمو دعویٰ وکړي چې زما پر مدعیٰ علیه زر درهمه دي، او د دې مدعي سړي دواړه گواهان هم د زر درهمو گواهي ورکړي لیکن له هغو څخه یو دا گواهي هم ورکړي چې مدعیٰ علیه پنځه سوه درهمه هغه (مدعي) ته مخکې ورکړي دي، نو په دې صورت کې به د دواړو گواهانو گواهي پر زرو درهمو قبلول کیږي؛ ځکه چې پر دې مقدار دواړه متفق دي، او کوم گواه چې د پنځه سوه درهمو د ورکولو گواهي ورکړې ده، د هغه دا گواهي معتبره نه ده؛ ځکه چې په دې باره کې هغه یوازي (تنها) دی او یوازي د یوه سړي گواهي معتبره نه وي، نو ځکه د پنځه سوه درهمو والا گواهي به معتبره نه وي. لیکن که چیري په دې باره کې یو بل څوک هم د هغه سره گواهي ورکړي چې هو! مدعیٰ علیه پنځه سوه درهمه مخکې ورکړي دي، نو بیا به د هغه گواهي قبلول کیږي.

وعن أبي يوسف إلخ: فرمايي په دې مسئله کې له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه یو روايت دا نقل سوی دی چې کوم گواه د پنځه سوه درهمو د ورکولو گواهي ورکړې ده، د هغه گواهي معتبره ده او قاضي به پر مدعیٰ علیه فقط د پنځه سوو فیصله کوي چې پنځه سوه درهمه اداء کړه!، نه زر درهمه؛ ځکه کله چې دلته له دواړو گواهانو څخه یوه گواه د پنځه سوه درهمو د ورکولو گواهي ورکړې ده نو د هغه دا گواهي دې خبري لره متضمنه او شامله ده چې د مدعي پر مدعیٰ علیه فقط پنځه سوه درهمه باندي

* القول الراجح: هو ظاهر الرواية، كما قال المصنف رَحِمَهُ الله: وجوابه ما قلنا، كذا ذكره صاحب فتح القدير (ج: ۶، ص: ۵۰۷). [القول الراجح ج: ۲، ص: ۱۳۷]

دي، او کوم ګواه چې د زر درهمو ګواهي ورکړې ده هغه هم اولاً د پنځه سوو ګواهي ورکوي (یعني د هغه ګواهي هم پنځه سوه درهمو له متضمن ده)، لهذا پنځه سوه درهمه به اقل او متعین وي، نو ځکه فقط هغه به پر مدعیٰ علیه واجب الاداء وي.

وجوابه إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د روایت جواب هماغه دی کوم چې موږ اوس ذکر کړی چې د پنځه سوه درهمو د ورکولو ګواهي چې کوم ګواه ورکړې ده هغه په خپل ګواهۍ کې یوازې (تنها) دی، نو ځکه د هغه ګواهي به نه قبلول کیږي.

## د ګواهانو د جزئي اختلاف بل صورت

قَالَ: وَيَنْبَغِي لِلشَّاهِدِ إِذَا عَلِمَ بِذٰلِكَ أَنْ لَا يَشْهَدَ بِأَلْفٍ فرمایي: او ګواه ته پکار دي چې کله هغه په دې خبر سي [چې مدعیٰ علیه پنځه سوه درهم ورکړي دي] نو هغه دي پر زر درهمو ګواهي نه ورکوي حَتّٰى يُقِرَّ الْمُدَّعِيْ أَنَّهُ قَبَضَ خَمْسَ مِائَةٍ تر دې چې مدعي [په خپله] د دې خبر اقرار وکړي چې ما پر پنځه سوو قبضه کړې ده كَيْلَا يَصِيْرَ مُعِيْنًا عَلَى الظُّلْمِ د دې لپاره چې پر ظلم مرسته کوونکی [معاون] نه وګرځي وَقَالَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ: رَجُلَانِ شَهِدَا عَلٰى رَجُلٍ بِقَرْضِ أَلْفِ دِرْهَمٍ او په جامع صغیر کې یې فرمایلي دي: [که] دوو خلکو پر یو سړي د زر درهمه قرض ګواهي ورکړه فَشَهِدَ أَحَدُهُمَا أَنَّهُ قَدْ قَضَاهَا بیا له هغو څخه یوه دا ګواهي ورکړه چې مدعیٰ علیه دا قرض اداء کړی دی فَالشَّهَادَةُ جَائِزَةٌ عَلَى الْقَرْضِ نو پر قرض ګواهي جائز ده [دا ظاهر روایت دی] لِاتِّفَاقِهِمَا عَلَيْهِ ځکه چې دواړه ګواهان پر قرض متفق دي وَتَفَرَّدَ أَحَدُهُمَا بِالْقَضَاءِ او د اداء کولو [ورکولو] په ګواهۍ کې یو ګواه مفرد [یوازې] دی عَلٰى مَا بَيَّنَّا لکه مخکې چې موږ بیان کړه وَذَكَرَ الطَّحَاوِيُّ عَنْ أَصْحَابِنَا أَنَّهُ لَا تُقْبَلُ او امام طحاوي رَحِمَهُ الله زموږ له اصحابو څخه روایت کړی دی چې دا ګواه به نه قبلول کیږي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ* اوهمدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ الْمُدَّعِيْ أَكْذَبَ شَاهِدَ الْقَضَاءِ ځکه چې [دلته] مدعي د اداء کولو والا ګواه درواغجن ګرځولی دی قُلْنَا: هٰذَا إِكْذَابٌ فِيْ غَيْرِ الْمَشْهُوْدِ بِهِ الْأَوَّلِ موږ [په

---

* القول الراجح: هو ظاهر الرواية، كما ظهر من دأب المصنف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الهنديه (ج:٣، ص:٥٠٤)، وبدائع الصنائع (ج:٦، ص:٢٧٩). [القول الراجح ج:٢، ص:١٣٧]

جواب کي] وايو: چي دا تکذيب له اول مشهود بهٔ څخه بغير [په دويم مشهود بهٔ] کي دی وَهُوَ الْقَرْضُ او اول مشهود بهٔ قرض دی وَمِثْلُهُ لَا يَمْنَعُ الْقَبُوْلَ او داسي تکذيب د ګواهۍ قبوليت [قبلېدل] نه منع کوي.

**اللغات**: ﴿ينبغي﴾ دانفعال دباب مضارعي ده: پکاره ده، مناسب ده. ﴿معين﴾ دافعال دباب فاعل دی: مرسته کوونکی (مرستيال)، معاون، مددګار. ﴿إكذاب﴾ دافعال دباب فاعل دی: درواغجن ګرځول، درواغجن بلل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی پر بل څاد زر درهمو دعویٰ وکړي او پر خپله دعویٰ دوه ګواهان پېش کړي، لېکن له هغه دواړو څخه فقط يو ګواه په دې خبر وي چي مدعیٰ عليه مدعي ته پنځه سوه درهمه مخکي ورکړي دي، نو کوم ګواه چي په دې خبر وي چي مدعیٰ عليه مدعي ته پنځه سوه درهمه ورکړي دي نو د هغه لپاره دا ګواهي ورکول صحيح نه دي چي د مدعي پر مدعیٰ عليه زر درهمه دي؛ ځکه که چيري هغه د زرو درهمو ګواهي ورکړي نو هغه به د مدعیٰ عليه په خلاف په ظلم وزياتوب کولو کي د مدعي معاون او مرستيال سي؛ ځکه چي د زرو درهمو په ګواهۍ سره به پر مدعیٰ عليه زر درهمه واجبُ الاداء وګرځي، او کوم پنځه سوه چي هغه مخکي مدعي ته ورکړي دي هغه به مدعي هسي موت جوت واخلي، او ښکاره خبره ده چي دا د مدعي له طرفه پر مدعیٰ عليه ظلم وزياتوب دی او ګواه په دې باره کي د مدعي معاون او مرسته کوونکی دی؛ او څرنګه چي له ظلم څخه ځان ساتل ضروري دي همداسي له تعاون علی الظلم څخه هم ځان ساتل ضروري دي، لکه څرنګه چي په قرآن کريم کي ذکر سوي دي: ﴿تَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾. [سورة المائده: ۲]

لېکن که په خپله مدعي د دې خبري اقرار وکړي چي مدعیٰ عليه ما ته پنځه سوه راکړي دي او ما قبضه پر کړې ده، نو په دې صورت کي د هر ګواه لپاره د زر درهمو ګواهي ورکول جائز دي، که څه هم فقط يو ګواه په دې ورکولو خبر وي؛ ځکه کله چي مدعي پر پنځه سوه درهمو د قبضه کولو اقرار وکړی، نو اوس به د زر درهمو د ګواهۍ باوجود قاضي پر مدعیٰ عليه فقط د پنځه سوه درهمو فيصله کوي، نو ځکه خبر ګواه به د زر درهمو په ګواهۍ سره پر ظلم مرسته کوونکی نه وګرځي. امام قدوري رَحِمَهُ الله په "حَتّٰى يُقِرَّ الْمُدَّعِيْ" سره ...

**وقال في الجامع إلخ:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: په جامع صغير کي دا مسئله داسي ذکر سوې ده چي که دوو خلکو د يوه سړي (مدعیٰ عليه) په خلاف دا ګواهي ورکړه چي پر هغه د فلانکي سړي (قرضخواه) دومره قرض باندي دی، بيا له هغو څخه يوه ګواه دا ګواهي ورکړه چي مدعیٰ عليه قرضخواه ته خپل زر درهمه قرض ورکړی دی، نو دغه ګواهي پر قرض جائز او مقبوله نه ده (يعني په دې باره کي به نه قبلول کيږي چي مدعیٰ عليه قرض [زر درهمه] ورکړی دی، لېکن د قرض باندي کېدلو په هکله به قبلول کيږي)؛ ځکه چي دواړو ګواهانو په متفقه توګه د قرض د وجوب (قرض باندي کېدلو) ګواهي ورکړې ده مګر د قرض ورکولو ګواهي فقط يوه ګواه ورکړې ده، يعني هغه په خپل ګواهۍ کي منفرد (يوازي) دی او د منفرد کس ګواهي مقبوله نه ده، نو ځکه د قرض ورکولو والا ګواهي به نه قبلول کيږي لېکن د قرض د وجوب (قرض باندي کېدلو) ګواهي به قبلول کيږي. دا ظاهر روايت دی.

**وذکر الطحاوي إلخ:** فرمايي امام طحاوي رَحِمَهُ الله له ځيني احنافو څخه دا روايت نقل کړی دی چي په پورتنۍ مسئله کي به د قرض د وجوب ګواهي هم نه قبلول کيږي يعني د دې ګواهانو په ګواهۍ سره به پر مدعیٰ عليه زره درهمه قرض نه واجبيږي، همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول هم دی. د دې روايت دليل دا دی چي د مدعي سړي د دعوې مطابق پر مقروض (مدعیٰ عليه) زر درهمه قرض باندي دی، حال دا چي د مدعي يو ګواه د قرض ورکولو ګواهي ورکړې ده، نو ځکه دا ګواه به د مدعي په نظر کي درواغجن وي، او درواغجن کس فاسق دی او د فاسق ګواهي مقبوله نه ده، نو ځکه د هغه ګواهي به نه قبلول کيږي، نو فقط د يوه ګواه ګواهي به پاته سي، او څرنګه چي هغه منفرد (يوازي) دی او د منفرد ګواهي مقبوله نه ده، نو ځکه د هغه ګواهي به هم نه قبلول کيږي او د هغه په ګواهۍ سره به پر مدعیٰ عليه قرض نه واجبيږي.

**قلنا إلخ:** صاحب د هدايې د امام طحاوي رَحِمَهُ الله د روايت په جواب کي فرمايي چي دلته دوه مشهود به دي (يعني دلته د دوو شيانو په باره ګواهي ورکول سوې ده): ① قرض کوم چي زر درهمه دی، ② د قرض اداء کول يعني د زر درهمو ورکول (چي مدعیٰ عليه زره درهمه مدعي [قرضخواه] ته ورکړي دي)، او مدعي په دې دواړو کي دويم مشهود به يعني د قرض ورکولو ګواهي درواغ بللې ده. نه اول مشهود به، يعني مدعي فقط د هغه ګواه تکذيب کړی دی کوم چي وايي چي مدعیٰ عليه ومدعي ته زر درهمه ورکړي دي. او څرنګه چي پر مدعیٰ عليه د قرض د وجوب (قرض باندي کېدلو) پر ګواهۍ دواړه ګواهان متفق دي، نو ځکه دا ګواهي به قبلول کيږي يعني پر مدعیٰ به زره درهمه قرض واجبيږي. او د مدعي له طرفه د يوه ګواه تکذيب (درواغجن بلل) به له دغه ګواهۍ څخه مانع نه وي، ځکه چي داسي تکذيب د ګواهۍ د قبوليت لپاره مانع نه دی.

## په مکان او زمان کي د ګواهانو اختلاف

قَالَ: وَإِذَا شَهِدَ شَاهِدَانِ أَنَّهُ قَتَلَ زَيْدًا يَوْمَ النَّحْرِ بِمَكَّةَ فرمايي: که چيري دوه ګواهان دا ګواهي ورکړي چي فلانکي سړي د لوی اختر په ورځ زيد په مکه کي قتل کړی دی وَشَهِدَ آخَرَانِ أَنَّهُ قَتَلَهُ يَوْمَ النَّحْرِ بِالْكُوفَةِ او نور دوه خلګ دا ګواهي ورکړي چي هغه د لوی اختر په ورځ په کوفه کي زيد قتل کړی دی وَاجْتَمَعُوا عِنْدَ الْحَاكِمِ او دا ټوله ګواهان [د فيصلې لپاره] د قاضي سره جمع سول لَمْ يَقْبَلِ الشَّهَادَتَيْنِ نو قاضي به دواړي ګواهي نه قبلوي لِأَنَّ إِحْدَاهُمَا كَاذِبَةٌ بِيَقِينٍ ځکه چي په هغوی کي يوه ګواهي په يقيني توګه دروغ ده وَلَيْسَتْ إِحْدَاهُمَا بِأَوْلَى مِنَ الْأُخْرَى او يوه له بلي څخه اولی [راجح] نه ده فَإِنْ سَبَقَتْ إِحْدَاهُمَا وَقَضَى بِهَا او که په هغوی کي يوه ګواهي [والا] وړانديتوب وکړي او قاضي پر هغه ګواهی فيصله وکړي ثُمَّ حَضَرَتِ الْأُخْرَى بيا دويمي ګواهی [والا] حاضر سي لَمْ تُقْبَلْ نو دويمه ګواهي به نه قبلول کيږي لِأَنَّ الْأُولَى تَرَجَّحَتْ ځکه چي اوله ګواهي راجحه سوه بِاتِّصَالِ الْقَضَاءِ بِهَا د هغې سره د قضاء متصل کېدلو په وجه [يعني ځکه چي د اولي ګواهی سره د قاضي فيصله متصله سوه] فَلَا تَنْتَقِضُ بِالثَّانِيَةِ نو ځکه هغه به د دويمي ګواهی په وجه نه ماتيږي [نه ردول کيږي].

**اللغات:** ﴿يوم النحر﴾ د ذوی الحجې لسمه ورځ چي هغه ته "عيد الأضحٰی" ويل کيږي، د لوی اختر ورځ. ﴿كاذبة﴾ د ضرب د باب مؤنث فاعل دی: دروغجنه. ﴿سبقت﴾ د ضرب له بابه د مؤنث غائب ماضي صيغه ده: وړانديتوب کول، مخکي کېدل. ﴿قضٰی﴾ د ضرب ماضي ده: فيصله کول. ﴿قضاء﴾ د قاضي فيصله. ﴿لا تنتقض﴾ د افتعال د باب نفي صيغه ده: ماتېدل (فسخ کېدل، رد کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ګواهان د مشهود به د مکان يا زمان په باره کي اختلاف وکړي، نو دا اختلاف د ګواهی د قبوليت لپاره مانع دی (لکه د باب په شروع کي چي ذکر سوه)، د دې مثال دا دی لکه دوه خلک چي دا ګواهي ورکړي چي خالد د لوی اختر په ورځ د مکې په ښار کي زيد قتل کړی دی، او بيا د قاضي له فيصله کولو څخه مخکي دوه نور خلک دا ګواهي ورکړي چي خالد د لوی اختر په ورځ زيد په کوفه کي قتل کړی دی، نو دواړي ګواهی به ردول کيږي او يوه به هم نه قبلول کيږي.

دليل دا دی چې يو فعل (مثلاً انسان قتل کول) په دوو ځايو کې نا ممکن دی، نو ځکه له دې دواړو ګواهيو څخه به يوه ګواهي په يقيني توګه دراغ وي، او څرنګه چې دلته هيڅ ترجيح ورکونکی دليل (مرجح) هم نشته چې د هغه په وجه يوې ګواهۍ ته ترجيح حاصله سي، نو ځکه دواړي ګواهۍ به په درجه کې سره برابر وي او يوې ته به هم پر بلې ترجيح حاصله نه وي، لهذا د تعارض په وجه به دواړي ګواهۍ ردول کيږي.

ها! که چيري قاضي د اولو دوو ګواهانو پر ګواهۍ فيصله وکړي، بيا له فيصله کولو څخه وروسته نور دوه ګواهان ګواهي ورکړي، نو دا دويمه ګواهي به نه قبلول کيږي؛ ځکه چې په دې صورت کې د اولې ګواهۍ سره د قاضي فيصله او حکم متصل سو، نو ځکه اوله ګواهي به راجح وي او دويمه ګواهي به د قاضي د فيصلې سره د نه متصل کېدلو په وجه مرجوح وي، او د مرجوح په وجه راجح نه ردول کيږي بلکې مرجوح ردول کيږي، نو ځکه اوله ګواهي به د راجح کېدلو په وجه قبلول کيږي او دويمه ګواهي به د مرجوح کېدلو په وجه ردول کيږي.

## د غلا سوي شي په تفصيلاتو د ګواهانو اختلاف

وَإِذَا شَهِدَا عَلَىٰ رَجُلٍ أَنَّهُ سَرَقَ بَقَرَةً فرمايي: او کله چې دوه ګواهان د يو سړي په خلاف دا ګواهي ورکړي چې هغه غوا غلا کړې ده وَاخْتَلَفَا فِي لَوْنِهَا او دوی دواړه د هغې په رنګ کې اختلاف وکړي قُطِعَ نو د غله لاس به پرېکول کيږي وَإِنْ قَالَ أَحَدُهُمَا: بَقَرَةً وَقَالَ الْآخَرُ: ثَوْرًا او که يوه ګواه وايي: چې غواه وه او بل وايي: چې غويی وو لَمْ يُقْطَعْ نو د غله لاس به نه پرېکول کيږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَا ❀: لَا يُقْطَعُ فِي الْوَجْهَيْنِ جَمِيعًا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې په دواړو صورتونو کې به نه پرېکول کيږي وَقِيلَ: الِاخْتِلَافُ فِي لَوْنَيْنِ يَتَشَابَهَانِ كَالسَّوَادِ وَالْحُمْرَةِ لَا فِي السَّوَادِ وَالْبَيَاضِ او ويل سوي دي: چې دا اختلاف په هغه دوو رنګونو کې دی کوم چې يو د بل سره مشابه وي لکه تور والی او سور والی [بور والی]، نه په تور والي او سپينوالي کې وَقِيلَ: هُوَ فِي جَمِيعِ الْأَلْوَانِ او ويل سوي دي: چې دا اختلاف په ټولو رنګونو کې دی لَهُمَا: أَنَّ السَّرِقَةَ فِي السَّوْدَاءِ غَيْرُهَا فِي الْبَيْضَاءِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې د توري غوا

❀ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكره صاحب فتح القدير (ج:۶ ص:۵۰۹)، وكذا في رد المختار (ج:۴، ص:۱۶۹). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۳۹]

غلا د سپيني غوا له غلا څخه جلا [عليحده] ده فَلَمْ يَتِمَّ عَلٰى كُلِّ فِعْلٍ نِصَابُ الشَّهَادَةِ نو پر هر فعل د ګواهي نصاب پوره نه سو وَصَارَ كَالْغَصْبِ او دا د غصب په څېر سو بَلْ أَوْلٰى بلکي په درجه اولیٰ لِأَنَّ أَمْرَ الْحَدِّ أَهَمُّ ځکه چي د حد معامله زياته مهمه ده وَصَارَ كَالذُّكُورَةِ وَالْأُنُوثَةِ او دا اختلاف د نر او ماده د اختلاف په څېر سو وَلَهُ: أَنَّ التَّوْفِيقَ مُمْكِنٌ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي توفيق ممکن دی لِأَنَّ التَّحَمُّلَ فِي اللَّيَالِيْ مِنْ بَعِيْدٍ ځکه چي [د غلا او داسي نورو] ګواه جوړېدل په شپو کي د ليري څخه واقع کيږي وَاللَّوْنَانِ يَتَشَابَهَانِ أَوْ يَجْتَمِعَانِ فِي وَاحِدٍ او دواړه رنګونه يو د بل مشابه وي يا دواړه په يوه شي کي سره جمع وي [مثلاً د غوا يو طرف تور او بل يې سپين وي] فَيَكُوْنُ السَّوَادُ مِنْ جَانِبٍ نو تور والی به يوه طرف ته وي وَهٰذَا يُبْصِرُهُ او دا [يو ګواه] به هغه طرف ويني وَالْبَيَاضُ مِنْ جَانِبٍ آخَرَ او سپينوالي به بل طرف ته وي وَهٰذَا يُشَاهِدُهُ او دا [بل ګواه] به هغه طرف ويني بِخِلَافِ الْغَصْبِ په خلاف د غصب لِأَنَّ التَّحَمُّلَ فِيهِ بِالنَّهَارِ عَلٰى قُرْبٍ مِنْهُ ځکه چي د غصب په معامله کي ګواه جوړېدل د ورځي هغه ته نژدې واقع کيږي وَالذُّكُورَةُ وَالْأُنُوثَةُ لَا يَجْتَمِعَانِ فِي وَاحِدَةٍ او نر و ماده کېدل په يوه ښاروي کي نه جمع کيږي وَكَذَا الْوُقُوفُ عَلٰى ذٰلِكَ بِالْقُرْبِ مِنْهُ او همداسي په هغه خبرېدل له نژدې څخه کيږي [يعني د ښاروي نر وماده له نژدې څخه معلوميږي، نه دليري] فَلَا يَشْتَبِهُ نو ځکه هيڅ اشتباه به نه وي.

**اللغات**: ﴿ثور﴾ غويی، غوايی، ﴿ذكورة﴾ مذکر کېدل، نر کېدل، ﴿أنوثة﴾ مؤنث کېدل، ماده کېدل، ﴿تحمّل﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: پورته کول، زغمل، مراد: د ګواهي ذمه واري اخيستل، يعني ګواه کېدل، ګواه جوړېدل (د ګواهي لپاره شي ته کتل)، ﴿ليالي﴾ جمع د لَيْلَةٌ ده: شپه.

**تشريح**: په دې عبارت کي د مشهود به د کيفيت په هکله د اختلاف کولو بيان سوی دی، حاصل يې دا دی که دوو خلکو دا ګواهي ورکړه چي فلانکي سړي غوا غلا کړې ده، لېکن يوه ګواه ووېل چي هغه توره غوا وه او بل ګواه ووېل چي سپينه يا بوره غوا وه، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به دا ګواهي قبلول کيږي او د غله لاس به پرېکول کيږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به نه پرېکول کيږي.
او که ګواهانو په نر او ماده کي اختلاف وکړ، مثلاً يوه ګواه ووېل چي هغه غوا وه او بل ګواه ووېل

چي غوبی وو ، نو په دې صورت کې به د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمَا الله ټولو په نیز ګواهي نه قبلول کیږي او د غله لاس به نه پرېکول کیږي. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله دغه دواړه صورتونه یو ځای سره بیان کړي دي، لېکن موږ ستاسو د آسانۍ لپاره جلا، جلا بیان کړل.

وقیل الاختلاف إلخ: فرمایي د ځینو حضراتو رایه دا ده چي د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله دغه اختلاف د داسي رنګونو په هکله دی کوم چي یو د بل سره مشابه وي لکه تور او بور رنګ، یعني که یوه ګواه ووایي چي توره غوا وه او بل ووایي چي بوره غوا وه، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دا ګواهي مقبوله ده او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز مقبوله نه ده.

وقیل إلخ: او د ځینو حضراتو رایه دا ده چي د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله دغه اختلاف په ټولو رنګونو کي دی، یعني که ګواهان محض په رنګ کي اختلاف وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د هغو ګواهي مقبوله ده، برابره ده هغه رنګ د یو بل رنګ سره مشابه وي او که نه وي، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز مطلقاً د هغو ګواهي مقبوله نه ده، برابره ده هغه رنګ د بل رنګ سره مشابه وي او که نه وي.

لهما إلخ: د صاحبینو دلیل دا دی چي د توري غوا غلا (سرقه) د سپیني غوا له غلا څخه جلا او علیحده ده، یعني هر ګواه د علیحده (جلا) غوا پر غلا ګواهي ورکړې ده، لهذا دلته پر هري غلا فقط یوه ګواهي ورکول سوې ده، او د ګواهۍ نصاب دوه ګواهان دي، نه یو ګواه، نو ځکه د نصاب نه پوره کېدلو په وجه به د یوه ګواه ګواهي هم نه قبلول کیږي. د دې مثال غصب دی، یعني که یو سړی د بل چا غوا غصب کړي، او بیا یو ګواه د توري غوا د غصب کولو ګواهي ورکړي او بل ګواه د سپیني غوا د غصب کولو ګواهي ورکړي، نو څرنګه چي په دې دواړو ګواهیو کي د رنګ په حواله سره اختلاف دی، نو ځکه په یوې ګواهۍ سره هم غصب نه ثابتیږي، همداسي به په مذکوره ګواهۍ سره غلا هم نه ثابتیږي، بلکي غلا خو به په درجه اولیٰ نه ثابتیږي؛ ځکه چي د غلا د ثبوت په صورت کي د حد (لاس پرېکولو) نوبت راځي، او د حد لپاره خو قطعاً د ګواهۍ نصاب ضروري دی او هغه دلته پوره نه دی، نو ځکه په دې ګواهۍ سره به غلا (سرقه) نه ثابتیږي. او لکه څرنګه چي په نر او ماده کي د اختلاف کولو په وخت کي ګواهي نه قبلول کیږي، همداسي به د رنګ د اختلاف په صورت کي هم ګواهي نه قبلول کیږي.

وله إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي د رنګ اختلاف یو داسي اختلاف نه دی چي هغه دي د ګواهۍ لپاره مانع جوړ سي، بلکي په هغه کي تطبیق ورکول ممکن دي؛ ځکه چي غلا عموماً د شپې

کېږي، او ګواهي ورکونکي هغه د ليرې شخه ويني او د ليرې شخه د غلا د سانحې ګواه جوړېږي، نو ځکه په تياره کې د ليرې والي په وجه د غلا شی يوه ګواه ته تور معلوم سي او بل ته بور يا سپين معلوم سو، يا داسي وي چي يو څاروی کمر (دو رنګه) وي چي يوه طرف يې تور وي او بله طرف يې سپين وي، نو يو ګواه د هغه تور طرف ويني او بله ګواه د هغه سپين طرف ويني او هر يو د خپل ليدني مطابق ګواهي ورکړي، نو ځکه په رنګ کي عموماً اختلاف کيږي، لهذا اوس که دغه اختلاف د ګواهی مانع وګرځول سي نو حرج او ضرر به لازم سي او شريعت حرج ليرې کړی دی، نو ځکه موږ (امام صاحب رَحِمَهُ الله) دغه اختلاف نا معتبر ګرځولی دی او هغه مو د ګواهی د قبوليت لپاره مانع نه دی شمارلی. د دې په خلاف غصب عموماً د ورځي کيږي او ګواه هغه له نژدې شخه ويني، لهذا په هغه کي د رنګ اختلاف ډېر کم پيښيږي، نو ځکه دا اختلاف به د ګواهی لپاره مانع وي. همدارنګه نر او ماده کېدل په يوه څاروي کي نه سي جمع کېدای، يعني دا ناممکنه ده چي يو څاروی دي هم نر وي او هم دي ماده وي، نو ځکه دا اختلاف به هم د ګواهی لپاره مانع وي، او پر دې دواړو مسئلو به د رنګ مسئله قياسول صحيح نه وي.

## د مبيع په قيمت کي اختلاف

قَالَ: وَمَنْ شَهِدَ لِرَجُلٍ أَنَّهُ اشْتَرَى عَبْدًا مِنْ فُلَانٍ بِأَلْفٍ فرمايي: او څوک چي د يو سړي لپاره ګواهي ورکړي چي هغه له فلانکي شخه د زر درهمو په عوض کي يو غلام رانيولی دی وَشَهِدَ آخَرُ أَنَّهُ اشْتَرَاهُ بِأَلْفٍ وَخَمْسِ مِائَةٍ او بل څوک ګواهي ورکړي چي هغه په پنځلس سوه درهمو رانيولی دی فَالشَّهَادَةُ بَاطِلَةٌ نو [دا] ګواهي باطله ده لِأَنَّ الْمَقْصُودَ إِثْبَاتُ السَّبَبِ ځکه چي مقصود د سبب ثابتول دي وَهُوَ الْعَقْدُ او هغه عقد دی [يعني له سبب شخه مراد عقد بيع دی] وَيَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الثَّمَنِ او د ثمن په اختلاف سره سبب [عقد] مختلف کيږي فَاخْتَلَفَ الْمَشْهُودُ بِهِ لهذا د کوم شي په باره کي چي ګواهي ورکول سوې ده [يعني عقد] هغه مختلف سو [يعني دوه عقدونه سول] وَلَمْ يَتِمَّ الْعَدَدُ عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ او پر هر عقد عدد [يعني دوه ګواهان] پوره نه سو وَلِأَنَّ الْمُدَّعِيَ يُكَذِّبُ أَحَدَ شَاهِدَيْهِ او ځکه چي مدعي خپل له دوو ګواهانو شخه د يوه ګواه تکذيب کوي وَكَذَلِكَ إِذَا كَانَ الْمُدَّعِي هُوَ الْبَائِعَ او همدارنګه کله چي دعوی کونکی کس بائع وي وَلَا فَرْقَ بَيْنَ أَنْ يَدَّعِيَ الْمُدَّعِي أَقَلَّ الْمَالَيْنِ أَوْ أَكْثَرَهُمَا او په دې کي هيڅ فرق نسته چي مدعي په دوو مالونو کي د کم مال دعوی وکړي يا د زيات مال

دعویٰ وکړي [يعني د کم يا زيات مال په دعویٰ کولو سره حکم نه بدليږي] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات**: ﴿ثمن﴾ قيمت، نرخ. ﴿يکذّب﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: درواغجن ګرځول، درواغجن بلل (درواغجن شمارل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی دعویٰ وکړي چي زيد خپل غلام په زر درهمه پر ما خرڅ کړی دی يا دا دعویٰ وکړي چي په پنځلس سوه درهمه يې پر ما خرڅ کړی دی، لېکن زيد يعني بائع له دې څخه انکار وکړي، بيا مشتري (مدعي) پر خپل دغه دعویٰ دوه ګواهان پېش کړي، او له هغو څخه يو ګواه د زر درهمو ګواهي ورکړي چي مشتري دا غلام په زر درهمه رانيولی دی او بل ګواه د پنځلس سوه درهمو ګواهي ورکړي، نو دا ګواهي باطله ده او نه به قبلول کيږي؛ ځکه چي په ګواهی سره د عقد (بيع) ثابتول مقصود وي (يعني دلته د مشتري مطلب دا دی چي په دې ګواهی سره عقد بيع ثابت کړي)، او د ثمن په بدلېدلو سره عقد بدليږي، او کله چي عقد بدل سي نو مشهود بهٖ به هم بدليږي، لهذا دلته د دې دواړو ګواهانو په ګواهی سره په حقيقت کي دوه عقدونه ثابت سول او د يوه عقد په باره کي د دواړو ګواهانو ګواهي متفق نه سوه. او د نصاب چي کوم شرط دی يعني دوه ګواهان، هغه شرط دلته موجود نه سو، نو ځکه دا ګواهي به نه قبلول کيږي.

دويم دليل دا دی چي که مدعي (مشتري) په زر درهمه د رانيولو دعویٰ کوي نو د پنځلس سوو ګواهي ورکونکی ګواه به درواغجن وي او که مدعي په پنځلس سوه درهمه د رانيولو دعویٰ کوي نو د زر درهمو ګواهي ورکونکی ګواه به درواغجن وي، لنډه دا چي په هر صورت کي به د مدعي له طرفه يو ګواه درواغجن وګرځول سي، نو ځکه د هغه ګواهي به نامقبوله وي او د پاته يوه ګواه (چي د هغه ګواهي د مدعي د دعوې مطابق ده. د هغه) ګواهي به هم نامقبوله وګرځي؛ ځکه چي هغه خپل په ګواهی کي يوازي (تنها) دی، او په دې سلسله کي د يوه کس ګواهي مقبوله نه ده.

**وکذلك إذا كان المدعي إلخ**: فرمايي که د پورتنی مسئلې صورت برعکس وي يعني د مشتري پر ځای بائع دا دعویٰ وکړي چي ما خپل غلام په زر درهمه يا پنځلس سوه درهمه خرڅ کړی دی او مشتري له دې څخه منکر وي، بيا بائع چي کوم ګواهان پېش کړي، له هغو څخه يو ګواه د زر درهمو ګواهي ورکړي چي بائع هغه په زر درهمه خرڅ کړی دی او بل ګواه د پنځلس سوو ګواهي ورکړي، نو په دې صورت کي به هم د يوه ګواهي نه قبلول کيږي؛ د دې مسئلې هم هغه دوه دليلونه دي کوم چي څه مخکي په تفصيل سره بيان سول. لنډه دا چي برابره ده مدعي بائع وي او که مشتري وي، او برابره ده

هغه داقل (زر درهمو) دعویٰ کوي او که داکثر (پنځلس سوو) دعویٰ کوي، په هر صورت کې هماغه حکم دی کوم چې موږ بیان کړی.

## د ګواهانو د اختلاف یو څو نور صورتونه

وَكَذٰلِكَ الْكِتَابَةُ او همداسي عقد کتابت هم دی لِأَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ الْعَقْدُ ځکه چې مقصود همدا عقد دی إِنْ كَانَ الْمُدَّعِيْ هُوَ الْعَبْدَ فَظَاهِرٌ که چیري مدعي غلام وي نو ښکاره ده وَكَذَا إِذَا كَانَ هُوَ الْمَوْلٰى او همدارنګه کله چې مدعي مالک وي لِأَنَّ الْعِتْقَ لَا يَثْبُتُ قَبْلَ الْأَدَاءِ ځکه چې له [بدل کتابت] اداء کولو څخه مخکې آزادي نه ثابتیږي فَكَانَ الْمَقْصُودُ إِثْبَاتَ السَّبَبِ نو ځکه مقصود به د سبب [عقد کتابت] ثابتول وي وَكَذَا الْخُلْعُ وَالْإِعْتَاقُ عَلٰى مَالٍ وَالصُّلْحُ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ او همدا حکم د خلع، اعتاق علیٰ مال او صلح عن دم العمد هم دی إِذَا كَانَ الْمُدَّعِيْ هُوَ الْمَرْأَةَ أَوِ الْعَبْدَ أَوِ الْقَاتِلَ [په دې شرط] کله چې مدعي ښځه یا غلام یا قاتل وي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ إِثْبَاتُ الْعَقْدِ ځکه چې مقصود د عقد ثابتول دي وَالْحَاجَةُ مَاسَّةٌ إِلَيْهِ او هغه ته ضرورت هم سته وَإِنْ كَانَتِ الدَّعْوٰى مِنْ جَانِبٍ آخَرَ او که چیري دعویٰ د بل یوه له یوه طرفه وي [نه د ښځې او داسي نورو له طرفه] فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ دَعْوَى الدَّيْنِ فِيمَا ذَكَرْنَا مِنَ الْوُجُوهِ نو زموږ په ذکر سوو صورتونو کې دا دعویٰ د قرض د دعوې په درجه کې ده لِأَنَّهُ يَثْبُتُ الْعَفْوُ وَالْعِتْقُ وَالطَّلَاقُ بِاعْتِرَافِ صَاحِبِ الْحَقِّ ځکه چې د حق د خاوند [مالک] په اقرار سره به عفو [صلح]، عتق او طلاق ثابت سي فَبَقِيَ الدَّعْوٰى فِي الدَّيْنِ او فقط د قرض دعویٰ به باقي پاته سي [احسن الهدایه] وَفِي الرَّهْنِ إِنْ كَانَ الْمُدَّعِيْ هُوَ الرَّاهِنُ او د رهن په صورت کې که مدعي راهن وي [نه مرتهن] لَا يُقْبَلُ نو ګواهي به نه قبلول کیږي لِأَنَّهُ لَا حَظَّ لَهُ فِي الرَّهْنِ ځکه چې په مرهون شي کې [تر قرض اداء کولو مخکې] د راهن حصه نسته فَعَرِيَتِ الشَّهَادَةُ عَنِ الدَّعْوٰى نو ځکه ګواهي به له دعوې څخه خالي سي وَإِنْ كَانَ الْمُرْتَهِنَ او که مدعي مرتهن وي [نه راهن] فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ دَعْوَى الدَّيْنِ نو دا د قرض د دعوې په درجه کې ده وَفِي الْإِجَارَةِ إِنْ كَانَ ذٰلِكَ فِي أَوَّلِ الْمُدَّةِ او د اجارې په صورت کې که دا اختلاف [د اجارې] د مودت په شروع کې وي فَهُوَ نَظِيرُ الْبَيْعِ نو دا د بیع په څېر دي وَإِنْ كَانَ بَعْدَ مُضِيِّ الْمُدَّةِ او که اختلاف

له مودت تېرېدلو څخه وروسته وي وَالْمُدَّعِيْ هُوَ الْآجِرُ او مدعي اجر وي [نه مستأجر] فَهُوَ دَعْوَى الدَّيْنِ نو دا د قرض دعویٰ ده.

**اللغات**: ﴿صلح عن دم العمد﴾ كه څوک قصداً (په قصده) قتل وکړي نو پر هغه (قاتل) قصاص واجب دی یعني هغه به د مقتول په بدله کي قتلول کیږي، لېکن که د مقتول قریبان (وارثان) د قاتل سره مثلاً پر پنځه لکه صلح وکړي (چي موږ ته پنځه لکه راکړه! بیا موږ ته بخښلی یې)، نو دې ته "صلح عن دم العمد" وایي. ﴿رهن﴾ په ګرو ایښول، په ګروي ورکول. ﴿راهن﴾ قرض اخیستونکی. مثلاً زید له خالد څخه قرض واخلي او د قرض په بدله کي یو شی یا یو سامان خالد ته په ګرو کښېږدي، نو زید ته رَاهِن وایي او خالد ته مُرتَهِن وایي، او کوم شی چي په ګرو ایښول سوی دی هغه ته مَرْهُوْن وایي. ﴿عفو﴾ معاف کول، بخښل. ﴿حظ﴾ حصه، حق. ﴿عریت﴾ د ضرب د باب ماضي ده: خالي کېدل. ﴿آجِر﴾ د فاعل صیغه ده: په اُجرت ورکونکی، په کرایه ورکونکی. مثلاً خالد و زید ته آس په کرایه ورکړي، نو خالد آجر دی او زید مستأجر (په کرایه اخیستونکی) دی.

**تشریح**: مخکي چي کوم دا خبره ذکر سوه چي د ګواهانو په اختلاف سره ګواهي نامقبوله ګرځي (یعني که ګواهان په ګواهۍ کي اختلاف وکړي، نو د هغو ګواهي به نه قبلېږي). دا حکم فقط د بیع و شراء سره خاص نه دی، بلکي په ډېرو مسئلو کي دا حکم [illegible] چي دلته په همدې باره کي شپږ (۶) مسئلې بیان سوي دي:

(۱)... اوله مسئله د عقد کتابت ده. حاصل یې دا دی که یو غلام دعویٰ وکړي چي زما مالک (مولیٰ) د زر یا پنځلس سوه درهمو په عوض کي زما سره عقد کتابت کړی دی (یعني زه یې مکاتب جوړ کړی یم)، او مالک له دې عقد څخه انکار وکړي، بیا غلام پر خپل دعویٰ دوه ګواهان پېش کړي، او له هغو څخه یو د زر درهمو ګواهي ورکړي چي مالک په زر درهمه عقد کتابت کړی دی او بل د پنځلس سوو درهمو ګواهي ورکړي، نو دا ګواهي به هم نه قبلول کیږي (لکه څرنګه چي د بیع په صورت کي نه قبلول کیږي چي په تېر عبارت کي د هغه تفصیل بیان سو)؛ ځکه په ګواهۍ سره د عقد ثابتول مقصود وي (یعني د غلام مقصد دا دی چي په دې ګواهۍ سره عقد کتابت ثابت کړي)، او د بیع په څېر عقد کتابت هم د ثمن (بدل کتابت) په بدلېدلو سره بدلیږي، لهذا کله چي دلته د مدعي ګواهانو پر جلا جلا بدل کتابت ګواهي ورکړه، نو دا دوه عقدونه سول. او څرنګه چي د یوه عقد په باره کي هم د ګواهۍ نصاب پوره نه دی، نو ځکه یو عقد به هم نه ثابتیږي، او بل دا چي د کوم یوه ګواه ګواهي چي د دعوې مطابق نه وي، هغه به دراغجن او فاسق وي او ګواهي به یې نا مقبوله وي او بل ګواه به یوازي (تنها) پاته سي، نو ځکه د هغه

ګواهي به هم نا مقبوله وګرځي. او همدا حکم په هغه صورت کي هم دی کله چي مالک د عقد کتابت مدعي وي او د هغه غلام منکر وي، او د مالک ګواهان پر جلا جلا بدل کتابت ګواهي ورکړي (نو په دې صورت کي به هم د مالک د ګواهانو ګواهي نه قبلول کیږي)؛ ځکه چي په ګواهی سره د مالک مقصود هم د عقد کتابت ثابتول دي، په دې توګه چي د مالک مقصو. د غلام آزادي ده، او آزادي د بدل کتابت له اداء کولو څخه مخکي نه ثابتیږي، او د بدل کتابت اداء له عقد کتابت څخه بغیر نه سي کېدای، نو ثابته سوه چي په حقیقت کي همدا عقد کتابت ثابتول مقصود دي، لېکن په بدل کتابت کي د ګواهانو په اختلاف سره عقد کتابت نه ثابتیږي (ځکه چي په دې صورت کي د ګواهی نصاب [دوه ګواهان] نه پوره کیږي)، نو ځکه په دې صورت کي به هم ګواهي نه قبلول کیږي. (احسن الهدایه)

(۲)... دویمه مسئله د خلع ده، حاصل یې دا دی چي که یو ښځه دعویٰ وکړي چي زما خاوند د زر یا پنځلس سوه درهمو په عوض کي زما سره خلع کړې ده، لېکن خاوند له دې څخه انکار وکړي، بیا ښځه پر خپل دعویٰ دوه ګواهان پېش کړي چي له هغو څخه یو ګواه په زر درهمه د خلع کولو ګواهي ورکړي او بل د پنځلس سوه درهمو ګواهي ورکړي، نو دا ګواهي باطله او نا مقبوله ده؛ ځکه چي په ګواهی سره د ښځي مقصود هم خلع ثابتول دي، لېکن د بدل خلع په مقدار کي د ګواهانو په اختلاف کولو سره عقد خلع مختلف سو او دوه عقدونه سول او د یوه عقد په باره کي هم د ګواهی نصاب پوره نه دی، نو ځکه دا ګواهي به نه قبلول کیږي او په دې سره به خلع نه ثابتیږي.

(۳)... درېیمه مسئله د اعتاق علیٰ مال ده (یعني د مال په عوض کي آزادول)، حاصل یې دا دی که یو غلام دعویٰ وکړي چي زما مالک دومره مال زما څخه واخیستی او د هغه په عوض کي یې زه آزاد کړم، لېکن مالک له دې څخه انکار کوي، بیا دا غلام دوه ګواهان پېش کړي چي له هغو څخه یو ګواه په زر درهمه د آزادولو ګواهي ورکړي (چي مالک خپل غلام د زر درهمو په عوض کي آزاد کړی دی) او بل ګواه د پنځلس سوو ګواهي ورکړي (چي هغه خپل غلام د پنځلس سوه درهمو په عوض کي آزاد کړی دی)، نو دا ګواهي به هم نه قبلول کیږي؛ ځکه چي د "مال اعتاق" په وجه په خپله اعتاق هم مختلف سو او د غلام چي کوم مقصود وو هغه حاصل نه سو، نو ځکه دا ګواهي به نه قبلول کیږي او په دې سره به اعتاق (ازادول) نه ثابتیږي.

(۴)... څلورمه مسئله د "صلح عن دم العمد" ده، حاصل یې دا دی که قاتل د "صلح عن دم العمد" دعویٰ وکړي، لېکن د مقتول کس وارثان (قربیان) له دې څخه انکار وکړي، بیا قاتل پر خپل دعویٰ دوه ګواهان پېش کړي چي له هغو څخه یو ګواه د زر درهمو ګواهي ورکړي یعني دا ګواهي ورکړي چي د مقتول وارثانو د زر درهمو په عوض کي د قاتل سره صلح کړې ده او بل ګواه د پنځلس سوه

درهمو په عوض کې د صلح کولو ګواهي ورکړي، نو په دې صورت کې به هم ګواهي نه قبلول کیږي؛ ځکه چې د صلح په عوض (مال) کې د ګواهانو د اختلاف کولو په وجه عقد صلح هم مختلف سو او د قاتل مقصود ثابت نه سو، نو ځکه دا ګواهي به نه قبلول کیږي او په دې سره به عقد صلح نه ثابتیږي؛ ځکه چې د ګواهی نصاب پوره نه دی.

لېکن دا خبره په یاد لرئ! چې د خلع، اعتاق علیٰ مال او صلح عن دم العمد په صورتونو کې د ګواهی نا مقبوله کېدل په هماغه صورت کې دي کله چې په خلع کې ښځه مدعیه وي او په اعتاق علیٰ مال کې غلام مدعي وي او په صلح عن دم العمد کې قاتل مدعي وي، لېکن که په دې مسئلو کې دعویٰ د بل چا له طرفه وي یعني په خلع کې خاوند مدعي وي، په اعتاق علی مال کې مالک مدعي وي او په صلح عن دم العمد کې مدعي د مقتول وارثان وي، او بیا مدعي او مدعیٰ علیه د بدل (عوض) په هکله اختلاف وکړي، نو دا دعویٰ د قرض د دعویٰ په شان ګرځي؛ ځکه چې د خلع په صورت کې د خاوند په اقرار او دعویٰ سره طلاق ثابت سو، او د اعتاق علی مال په صورت کې د مالک په اقرار او دعویٰ سره آزادي ثابته سوه، او د صلح په صورت کې د مقتول د وارثانو په دعویٰ سره صلح ثابته سوه، او اوس د دغه کسانو دعویٰ فقط د بدل (عوض) سره متعلق سوه کوم چې د قرض په درجه کې دی، او د قرض په باره کې مخکې تفصیل تېر سو چې " که دعویٰ د یو زر یا پنځلس سوه درهمو قرض په عوض کې وي، او بیا یو ګواه د زر درهمو او بل ګواه د پنځلس سوه درهمو ګواهي ورکړي، نو څرنګه چې په دې صورت کې پر زر درهمو دواړه ګواهان متفق دي، نو ځکه پر زر درهمو به د هغو ګواهي قبلول کیږي. او که چیري مدعي د دوه زرو دعویٰ کوي، نو په دې صورت کې د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله اختلاف دی " لکه مخکې چې د دې تفصیل تېر سو.

(۵)... پنځمه مسئله د رهن ده. حاصل یې دا دی که راهن دا دعویٰ وکړي چې د خالد سره زما فلانکی سامان د دومره قرض په عوض کې د رهن په توګه پروت دی، لېکن مرتهن (خالد) له دې څخه انکار وکړي، بیا راهن پر خپل دعویٰ دوه ګواهان پېش کړي چې له هغو څخه یو ګواه د زر درهمو په عوض کې د رهن ګواهي ورکړي او بل ګواه د پنځلس سوه درهمو په عوض کې د رهن ګواهي ورکړي، نو دا ګواهي به نه قبلول کیږي؛ ځکه چې له قرض اداء کولو څخه مخکې په مرهون شي (سامان) کې د راهن هیڅ حصه او حق نه وي، نو ځکه د هغه دا دعویٰ به صحیح نه وي، او کله چې دعویٰ صحیح نه ده، نو پر هغه پېش کړل سوې ګواهي به له دعوې څخه خالي وي، او له دعوې څخه خالي ګواهي مقبوله نه ده (ځکه د باب په شروع کې ذکر سوه چې د ګواهی د قبولیت لپاره دعویٰ شرط او ضروري ده، لېکن دلته

ګواهي له دعوې څخه خالي ده)، نو ځکه دا ګواهي به نه قبلول کيږي. د دې په خلاف که مرتهن مدعي وي او بيا د هغه ګواهان د جلا جلا قرض ګواهي ورکړي، نو د مدعي له طرفه به دا دعویٰ د قرض په درجه کي وي او د قرض تفصيل هماغه دی کوم چي مخکي بيان سو.

(۷)... اوومه مسئله د اجارې ده. حاصل يې دا دی که د اجر (په کرايه ورکونکي) او د مستأجر ترمينځ د أجرت (کرايې) د مقدار په هکله اختلاف راسي، او دا اختلاف د اجارې د مودت په اول کي وي. او بيا دوه ګواهان پر جلاجلا مقدار ګواهي ورکړي، نو د دې حکم د بيع په شان دی، يعني څرنګه چي په بيع کي د اختلاف کولو په وجه د ګواهانو ګواهي نه قبلول کيږي، همداسي په اجاره کي د اختلاف کولو په وجه به هم د هغو ګواهي نه قبلول کيږي. او که چيري د اجارې مودت تېر سي او بيا د مستأجر او اجر تر مينځ د أجرت د مقدار په هکله اختلاف راسي او مدعي (دعویٰ کونکی) اجر وي، نو د دې حکم د قرض په شان دی، او څرنګه چي د قرض په مسئله کي په زر او پنځلس سوه کي د اختلاف کولو په صورت کي پر اقل المالين يعني پر زر درهمو فيصله کيږي، نو په دې صورت کي به هم پر اقل يعني پر زر درهمو فيصله کيږي.

## د مهر په مقدار کي اختلاف

قَالَ: فَأَمَّا النِّكَاحُ فَإِنَّهُ يَجُوزُ بِأَلْفٍ اسْتِحْسَانًا فرمايي: او کوم چي نکاح ده نو هغه د زر درهمو په عوض کي استحسانًا جائز ده وَقَالَا ●: هٰذَا بَاطِلٌ فِي النِّكَاحِ أَيْضًا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په نکاح کي هم دا ګواهي باطله ده ذُكِرَ فِي الْأَمَالِي قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ مَعَ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ په "امالي" کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره ذکر سوی دی لَهُمَا: أَنَّ هٰذَا اخْتِلَافٌ فِي الْعَقْدِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي دا په عقد کي اختلاف دی لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنَ الْجَانِبَيْنِ السَّبَبُ ځکه چي مقصود له دواړو طرفونو څخه سبب [عقدِ نکاح] دی فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ نو دا د بيع سره مشابه سو وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْمَالَ فِي النِّكَاحِ تَابِعٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي مال په نکاح کي تابع وي وَالْأَصْلُ فِيهِ الْحِلُّ وَالِازْدِوَاجُ وَالْمِلْكُ او اصل شی په نکاح کي [د نکاح] حلال کېدل، خاوند جوړېدل او [د بُضع] ملکيت وي وَلَا اخْتِلَافَ فِيمَا هُوَ الْأَصْلُ او [دلته] په اصل شي

● القول الراجح: قول الامام اعظم رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالي رَحِمَهُ الله: هو الأصح وهو الاستحسان(الشرنبلالية ج:٢، ص:٣٨٧)، وكذا في الدر المختار (ج:٤، ص:٤٣٥). [القول الراجح ج:٢، ص:١٣٩]

کي هيڅ اختلاف نسته فَيَثْبُتُ نو ځکه هغه به ثابتيږي ثُمَّ إِذَا وَقَعَ الِاخْتِلَافُ فِي التَّبَعِ بيا چي کله په تابع [مال] کي اختلاف واقع سي يُقْضٰى بِالْأَقَلِّ نو د اقل مال فيصله به کيږي لِاتِّفَاقِهِمَا عَلَيْهِ ځکه چي پر اقل دواړه ګواهان متفق دي وَيَسْتَوِي دَعْوٰى أَقَلِّ الْمَالَيْنِ أَوْ أَكْثَرِهِمَا فِي الصَّحِيحِ او له دواړو مالونو څخه د کم يا زيات مال دعوىٰ د صحيح قول مطابق برابره ده ثُمَّ قِيلَ: الِاخْتِلَافُ فِيمَا إِذَا كَانَتِ الْمَرْأَةُ هِيَ الْمُدَّعِيَةَ بيا ويل سوي دي: چي اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي ښځه دعوىٰ کونکې وي وَفِيمَا إِذَا كَانَ الْمُدَّعِي هُوَ الزَّوْجَ إِجْمَاعٌ عَلٰى أَنَّهُ لَا تُقْبَلُ او په هغه صورت کي کله چي خاوند دعوىٰ کونکي وي پر دې خبره اجماع ده چي ګواهي به نه قبلول کيږي لِأَنَّ مَقْصُودَهَا قَدْ يَكُونُ الْمَالَ ځکه چي ښځي مقصود ځيني وخت مال وي وَمَقْصُودَهُ لَيْسَ إِلَّا الْعَقْدَ او د خاوند مقصود فقط عقد وي وَقِيلَ: الِاخْتِلَافُ فِي الْفَصْلَيْنِ او ويل سوي دي: چي په دواړو صورتونو کي اختلاف دی وَهٰذَا أَصَحُّ او دا قول زيات صحيح دی وَالْوَجْهُ مَا ذَكَرْنَا او دليل هماغه دی کوم دی چي موږ [مخکي] ذکر کړی.

**اللغات**: ﴿يقضٰى﴾ د استفعال د باب مضارع ده مجهوله: فيصله کول. ﴿أمالي﴾ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله املاء کړده تصنيف. ﴿يستوي﴾ د استفعال د باب مضارع ده: سره برابرېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو ښځه دا دعوىٰ وکړي چي د زيد سره زما نکاح د پنځلس سوه درهمو په عوض کي سوې ده او خاوند (زيد) له دې څخه انکار وکړي او ووايي چي په زر درهمه سوې ده، بيا ښځه پر خپل دعوىٰ ګواهان پېش کړي، او له ګواهانو څخه يو ګواه د پنځلس سوو ګواهي ورکړي او بل د زر درهمو ګواهي ورکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به دا ګواهي پر زر درهمو قبلول کيږي او استحساناً به د زر درهمو په عوض کي دا نکاح جائز ګرځول کيږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا په نېز به ګواهي نه قبلول کيږي او دا نکاح به جائز نه ګرځول کيږي، لېکن په امالي کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره ذکر سوی دی. يعني د امالي د روايت مطابق د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز هم استحساناً دا نکاح جائز ده. لېکن دلته چي کوم روايت بيان سوی دی، د هغه مطابق جائز نه ده.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي د خاوند او ښځي دواړو مقصود سبب يعني "عقد نکاح" ثابتول دي، لېکن د مهر په مقدار کي د ګواهانو په اختلاف کولو سره عقد مختلف سو، نو ځکه د عقد ثابتول ناممکن سو، او دا اختلاف د بيع اختلاف سره مشابه دی. او مخکي ذکر سوه چي که په بيع کي د ثمن د مقدار په هکله ګواهان

اختلاف وکړي، نو بيع نه صحيح کيږي. نو ځکه دلته به هم د ګواهانو په مذکوره اختلاف سره نکاح نه صحيح کيږي؛ ځکه چي د هغو په اختلاف سره مهر هم مختلف سو او عقد هم مختلف سو او د خاوند و ښځي مقصود حاصل نه سو، نو ځکه دا ګواهي به نه قبلول کيږي او نکاح به نه صحيح کيږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي په دې مسئله کي د ګواهانو اختلاف صرف د مهر په مقدار کي دی. نه په نکاح کي، او د مهر مقدار مال دی او مال په نکاح کي تابع وي. همدا وجه ده چي له مال (مهر) ذکر کولو څخه بغير هم نکاح صحيح کيږي، معلومه سوه چي په نکاح کي مال تابع دی. لېکن د نکاح حلال کېدل. د زوجيت ثبوت او د خاوند لپاره د ملک بضع ثبوت دا شی په نکاح کي اصل دی. او څرنګه چي په دې اصل شي کي د ګواهانو هيڅ اختلاف نسته، نو ځکه به نکاح صحيح وي. او پاته سو د ګواهانو اختلاف نو څرنګه چي هغه صرف په تابع يعني په مال کي دی، نو ځکه هغه ته به هيڅ اهميت نه ورکول کيږي. او د زر درهمه مهر فيصله به کيږي؛ ځکه چي پر دې مقدار دواړه ګواهان متفق دي.

ويستوي دعوى إلخ: د دې حاصل دا دی چي برابره ده ښځه د کم مال (مهر) دعوىٰ کوي مثلاً زر درهمه. يا د زيات مال دعوىٰ کوي مثلاً پنځلس سوه درهمه، په هر صورت کي به د ګواهانو د اختلاف په صورت کي پر اقل المالين يعني پر کم مقدار فيصله کيږي؛ ځکه چي پر دې مقدار دواړه ګواهان متفق دي، حال دا چي په اضافي (زائد) مقدار کي يو ګواه منفرد او تنها دی.

قيل هذا إلخ: فرمايي د ځيني مشايخو په رايه د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله دغه اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي ښځي د نکاح دعوىٰ کړې وي، لېکن که سړي د نکاح دعوىٰ کړې وي او بيا د مهر په مقدار کي ګواهان اختلاف وکړي. نو په دې صورت کي د ټولو په نېز د هغه ګواهي نه قبلول کيږي؛ ځکه چي ښځه خو ځيني وخت د مال د لالچ په وجه هم د نکاح دعوىٰ کوي (يعني ځيني وخت د ښځي مقصود مال وي او مال په نکاح کي تابع دی)، لېکن د خاوند مقصود فقط اصل نکاح وي، او څرنګه چي د ګواهانو د اختلاف کولو په وجه د هغه مقصود نه حاصلېږي، نو ځکه په دې صورت کي د هغو ګواهي نه قبلول کيږي او دا نکاح به نه صحيح کيږي.

وقيل إلخ: د دې په خلاف د ځيني مشايخو رايه دا ده چي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله دغه اختلاف په دواړو صورتونو کي دی، برابره ده مدعي خاوند وي او که ښځه. همدا قول زيات صحيح دی، او د دواړو دليلونه مخکي تېر سول. فقط والله أعلم وعلمهٔ أتم



# فَصْلٌ فِي الشَّهَادَةِ عَلَى الْإِرْثِ

## (دا) فصل پر میراث د ګواهي ورکولو په بیان کي دی

**تشریح**: مخکي تر دې د ګواهۍ د هغه احکامو بیان وو کوم چي یې د ژوندیو خلکو سره تعلق درلود، اوس په دې فصل کي د ګواهۍ هغه احکام بیانوي کوم چي د مړو سره تعلق لري او ښکاره خبره ده چي په دنیا کي مرګ تر ژوند وروسته وي، نو ځکه د مړي سره متعلق د ګواهۍ احکام وروسته بیان کړل سوي دي. (بنایه ج:۸، ص:۲۱۷)

## ګواهي او میراث

قَالَ: وَمَنْ أَقَامَ بَيِّنَةً عَلَى دَارٍ أَنَّهَا كَانَتْ لِأَبِيهِ فرمایي: او که یو څوک د یو کور په باره کي دا بینه [ګواهي] پېش کړي چي دا کور د هغه [یعني زما] د پلار وو أَعَارَهَا أَوْ أَوْدَعَهَا الَّذِيْ هِيَ فِيْ يَدِهِ او هغه [یعني زما پلار] دا کور دغه کس ته عاریتاً یا امانتاً ورکړی وو کوم چي [اوس] د هغه په قبضه کي کور دی فَإِنَّهُ يَأْخُذُهَا نو مدعي [ځوی] به دا کور اخلي وَلَا يُكَلَّفُ الْبَيِّنَةَ أَنَّهُ مَاتَ وَتَرَكَهَا مِيرَاثًا لَهُ او مدعي به پر دې خبره د ګواهۍ په پېشولو سره نه مکلف کیږي چي د هغه پلار مړ سو او دا کور یې د هغه لپاره په میراث کي پرېښوو وَأَصْلُهُ أَنَّهُ مَتَى ثَبَتَ مِلْكُ الْمُوْرِثِ او د دې قاعده دا ده چي [د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز] چي کله د مورث لپاره ملکیت ثابت سي لَا يُقْضَى بِهِ لِلْوَارِثِ حَتَّى يَشْهَدَ الشُّهُوْدُ أَنَّهُ مَاتَ وَتَرَكَهَا مِيرَاثًا لَهُ نو د وارث لپاره به تر هغه وخته د دغه ملکیت فیصله نه کیږي تر دې چي ګواهان د دې خبري ګواهي ورکړي چي مورث مړ سو او هغه دا شی د وارث لپاره په میراث کي پرېښوو عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا ❁ د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز خِلَافًا لِأَبِيْ يُوسُفَ په خلاف د امام ابویوسف رَحِمَهُ الله هُوَ يَقُوْلُ: إِنَّ مِلْكَ الْوَارِثِ مِلْكُ الْمُوْرِثِ هغه فرمایي: چي د مورث ملکیت د همدې وارث ملکیت دی فَصَارَتِ الشَّهَادَةُ بِالْمِلْكِ لِلْمُوْرِثِ شَهَادَةً بِهِ لِلْوَارِثِ لهذا د

---

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكره صاحب فتح القدير (ج:۶، ص:۵۱۹)، وكذا في الدر المختار (ج:۴، ص:۴۳۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۴۰]

مورث لپاره د ملکیت [مالک کېدلو] ګواهي ورکول د وارث لپاره د ملکیت ګواهي سوه [یعني د مورث لپاره د ملکیت ګواهي ورکول به داسي وي لکه د وارث لپاره د ملکیت ګواهي ورکول] وَهُمَا يَقُولَانِ: إِنَّ مِلْكَ الْوَارِثِ مُتَجَدِّدٌ فِي حَقِّ الْعَيْنِ او طرفین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چي د وارث ملکیت د عین مال په حق کي جدید [نوی] وي حَتَّى يَجِبَ عَلَيْهِ الِاسْتِبْرَاءُ فِي الْجَارِيَةِ الْمَوْرُوثَةِ همدا وجه ده چي په میراثي مینځه کي پر وارث استبراء کول واجب دي وَيَحِلُّ لِلْوَارِثِ الْغَنِيِّ مَا كَانَ صَدَقَةً عَلَى الْمُوَرِّثِ الْفَقِيرِ او [همدا وجه ده چي] د غریب مورث لپاره چي کوم شی صدقه وي، د مالدار وارث لپاره هغه حلال دی فَلَا بُدَّ مِنَ النَّقْلِ نو ځکه د ملکیت منتقل کېدل ضروري دي إِلَّا أَنَّهُ يُكْتَفَى بِالشَّهَادَةِ عَلَى قِيَامِ مِلْكِ الْمُوَرِّثِ وَقْتَ الْمَوْتِ مګر دا چي د مورث د مرګ په وخت کي به د مورث د ملکیت موجودېدلو پر ګواهي اکتفاء کیږي لِثُبُوتِ الِانْتِقَالِ ضَرُورَةً ځکه چي انتقال ضرورتاً [د ضرورت په وجه] ثابت دی وَكَذَا عَلَى قِيَامِ يَدِهِ او همداسي د هغه د قبضې پر موجودېدلو عَلَى مَا نَذْكُرُهُ إِنْشَاءَ اللهُ چي هغه به موږ انشاء الله ذکر کړو وَقَدْ وُجِدَتِ الشَّهَادَةُ عَلَى الْيَدِ فِي مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ او د کتاب [متن] په مسئله کي د مورث پر قبضې ګواهي موجوده سوه لِأَنَّ يَدَ الْمُسْتَعِيرِ وَالْمُودَعِ وَالْمُسْتَأْجِرِ قَائِمَةٌ مَقَامَ يَدِهِ ځکه چي د مستعیر، مُودَع او مستأجر قبضه د مورث د قبضې قائم مقام ده فَأَغْنَى ذَلِكَ عَنِ الْجَرِّ وَالنَّقْلِ نو دغه قبضې د منتقل کولو [له ګواهۍ] څخه استغناء پیدا کړه [یعني کله چي دا قبضه د مورث [پلار] د قبضې قائم مقام ده، نو د دې په وجه اوس د وارث [ځوی] وطرف ته د منتقل کولو د ګواهۍ ضرورت پاته نه سو. نو ځکه د عبارت په شروع کي وویل سوه چي مدعي [ځوي] به پر دې خبره په ګواهي پېشولو سره نه مکلف کیږي چي زما پلار مړ سو او د دې کور ملکیت زما وطرف ته منتقل سو یعني زما لپاره یې په میراث کي پرېښووی].

**اللغات**: ﴿أعارها﴾ د افعال د باب ماضي ده: عاریتاً ورکول (د خواست په توګه ورکول). مثلاً که زید وخالد ته خواست وکړي چي د یو څو وخت لپاره فلانکی شی راکړه! زما ضروري پکار دی او خالد ده ته هغه شی ورکړي. نو دې ته عاریتاً ورکول وایي او زید ته "مستعیر" (په خواست غوښتونکی) وایي. ﴿أودعها﴾ مخکنی صیغه ده: یو چا ته امانتاً یو شی ایښوول. په امانت ورکول (امانتاً ورکول). ﴿مورث﴾ له افعال او تفعیل دواړو بابونو څخه راتلای سي. د فاعل صیغه ده: میراث پرېښوونکی، هغه مړی کوم چي خپل تر شا میراث پرېږدي، د کوم کس په مال کي چي میراث جاري کیږي.

﴿استبراء﴾ د استفعال د باب فاعل دی: "تر يوه حيضه پورې د رېدل چې نا حامله والې معلوم کړی سي". مينځه چې کله د يوه سړي له ملکيت څخه د بل سړي ملکيت ته منتقله سي نو دا بل سړی (مالک) به تر يوه حيض پورې وطي نه ورسره کوي، د دې لپاره چې معلومه سي چې په نس کي يې د اول سړي بچی نسته، دې ته "استبراء" وايي، ﴿مستعير﴾ د استفعال د باب فاعل دی: عاريتاً غوښتونکي، ﴿مودَع﴾ افعال د باب مفعول دی: چا ته چې امانتاً يو شی ورکول سي (چا ته چې په امانت يو شی ايښوول سوی وي)، امانت ساتونکی، ﴿مستأجر﴾ د استفعال د باب فاعل دی: په اُجرت اخيستونکي (په کرايه اخيستونکی)، ﴿جَرّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: کشول، دلته له "جَرّ و نَقل" څخه "منتقل کول" مراد دي يعني د دواړه معنیٰ ده: منتقل کول. (اثمار الهدايه)

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی مثلاً خالد د قاضي مخته پر دې خبره بيّنه (يعني ګواهان) پېش کړي چې د فلانکي سړي په قبضه کي چې کوم کور دی، دا کور زما د پلار په ملکيت کي دی، او زما پلار دا کور هغه ته عاريتاً يا امانتاً ورکړی وو (او اوس زما پلار مړ سوی دی، لهذا ما ته دې هغه کور وسپارل سي)، نو محض د دغه بيّنې په وجه به قاضي د مدعي (خالد) په حق کي د دې کور فيصله کوي او مدعي (خالد) ته به دا تکليف نه ورکوي چې "ته پر دې خبره بيّنه پېش کړه! چې ستا پلار مړ سوی دی او دا کور يې تا ته په ميراث کي پرې ايښی دی"، دا حکم د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په نيز متفق عليه دی، لېکن د دوی چې کومه قاعده بيان سوې ده، هغه مختلف فيه ده، د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز قاعده دا ده چې کله د مورث (مړي) لپاره د يو شي ملکيت ثابت سي نو د وارث لپاره به تر هغه وخته د دې شي فيصله نه کېږي تر څو چې ګواه د دې خبرې ګواهي نه ورکړي چې "مورث مړ سوی دی او هغه دا شی د خپل وارث لپاره په ميراث کي پرې ايښی دی". د دې په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز قاعده دا ده چې فقط د مورث د ملکيت ثبوت د وارث د ميراث د استحقاق لپاره کافي دی (يعني کله چې د وارث ملکيت ثابت سي، نو د وارث ملکيت هم ثابتيږي او هغه د ميراث مستحق کيږي) او هغه ته د بيّنې پېشولو ضرورت نسته، او د متن په مسئله کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قاعدې مطابق فيصله سوې ده؛ د دې دليل دا دی چې د مورث ملکيت د هغه تر مرګ وروسته د وارث ملکيت دی، لهذا په کومه بيّنه سره چې د مورث ملکيت ثابت سوی وي په هماغه بيّنه سره به د وارث ملکيت هم ثابتيږي، او څرنګه چې په دې مسئله کي د مدعي (خالد) په بيّنه سره د مورث لپاره د کور ملکيت ثابت سوی دی، لهذا په همدغه بيّنه سره به د وارث (خالد) لپاره هم د کور ملکيت

ثابتیږي، نو ځکه په متن کي بیان سوې مسئله دامام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د قاعدې مطابق ده. لېکن دا مسئله د طرفینو رَحِمَهُمَا الله د بیان سوي قاعدې مطابق نه ده؛ ځکه چي طرفینو رَحِمَهُمَا الله د مورث لپاره د ملکیت ثابتونکې بیّنه فقط د مورث سره خاص کړې ده او پر وارث یې د خپل ملکیت ثابتولو لپاره بله بیّنه پېشول ضروري ګرځولي دي، یعني وارث به هم پر دې خبره بیّنه پېشوي چي "زما پلار مړ سوی دی او هغه دا شی زما لپاره په میراث کي پرې ایښی دی"، حال دا چي د متن په مسئله کي فقط په یوه بیّنه سره وارث ته د میراث ورکولو فیصله سوې ده او ویل سوي دي چي "لَا يُكَلَّفُ البيّنة" یعني وراث به د بلي ګواهی په پېشولو سره نه مکلف کیږي (یعني دا تکلیف او زحمت به نه ورکول کیږي چي بله بیّنه پېش کړي)، نو ځکه د متن مسئله د طرفینو رَحِمَهُمَا الله د بیان سوي قاعدې مطابق نه ده.

صاحب د هدایې د "إلا أنه يُكتفى إلخ" په ذریعه مطابقت ثابتوي، حاصل یې دا دی چي د متن مسئله د طرفینو رَحِمَهُمَا الله د بیان سوې قاعدې هم مطابق ده، په دې توګه چي کله د مورث د مرګ په وخت کي پر دې خبره بیّنه پېش کړل سوه چي دا کور د هغه په ملکیت دی، نو په دې کور کي د مورث ملکیت ثابت سو، او څرنګه چي د مورث تر مرګ وروسته په غیر اختیاري توګه (یعني خود بخوده) د هغه ملکیت د وارث وطرف ته منتقل کیږي، نو ځکه اوس چي په کومه بیّنه سره په دې کور کي د مورث ملکیت ثابت سوی دی، د هغه په ذریعه به د وارث ملکیت هم ثابتیږي او د وارث د ملکیت ثابتولو لپاره به جلا بیّنې (ګواهی) ته ضرورت نه وي، همدارنګه که د مورث د مرګ په وخت کي پر یو شي د هغه قبضه ثابته سي (یعني دا ثابته سي چي فلانکی شی د مرګ پر مهال د هغه په قبضه کي وو)، نو په دې قبضه سره به پر هغه شي د مورث ملکیت هم ثابتیږي (چي دا شی د هغه په ملکیت کي دی، ځکه چي قبضه د ملکیت دلیل ده) او د هغه د مرګ (مړه کېدلو) سره به سمدستي دا ملکیت د وارث وطرف ته منتقل کیږي او وارث ته به د خپل ملکیت د ثابتولو لپاره د بیّنې پېشولو ضرورت نه وي، او په متن کي چي کوم صورتونه بیان سوي دي څرنګه چي په هغوی ټولو کي د مورث پر قبضه بیّنه موجوده ده، په دې توګه چي مورث کوم چا ته عاریتاً یا امانتاً کور ورکړی دی یا کوم چا چي په اُجرت (کرایه) کور نیولی دی، د هغه قبضه د مورث د قبضې قائم مقام ده (ځکه چي هغه مستعیر یا مُودَع یا مستأجر دی، او د دې کسانو قبضه د شي د مالک د قبضې قائم مقام وي، او مالک دلته مورث دی) او څرنګه چي دا قبضه په بیّنه (ګواهی) سره ثابته سوې ده، نو ځکه په دې قبضه سره به د مورث ملکیت هم ثابتیږي او د هغه تر مرګ وُروسته به په هماغه مخکنۍ بیّنه سره دا ملکیت د وارث وطرف ته منتقل کیږي او هغه ته به دا ضرورت نه پرېوځي چي بله بیّنه (ګواهي) پېش کړي.

پاته سوه دا اعتراض چي بیا خو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله قاعده بې ځایه سوه، نو د هغه جواب دا دی چي دا قاعده له دې مسئلې څخه بغیر په نورو ځایو او مسئلو کي جاري کیږي، مثلاً د عَین مال په ملکیت کي به د وارث ملکیت نوی (جدید) ملکیت شمارل کیږي. مثلاً که هغه دیو مینځي وارث جوړ سي نو پر هغه به

استبراء واجب وي، همدارنګه که د مرګ په وخت کي مورث غريب وي او هغه ته په صدقه (خيرات) کي يو شی حاصل سي نو د مالدار وارث لپاره به هغه شی حلال وي. حال دا چي که د وارث ملکيت نوی (جديد) نه وای، نو نه به پر هغه په دې مينځه کي استبراء واجب وای، او نه به د هغه لپاره صدقه حلال وای، حاصل دا دی چي د دغه قاعدې اجراء او نفاذ له پورتنۍ مسئلې څخه بغير په نورو ځايو کي کيږي.

## د مورث د قبضې په ګواهۍ سره د وارث د ملکيت فيصله

وَإِنْ شَهِدُوْا أَنَّهَا كَانَتْ فِيْ يَدِ فُلَانٍ مَاتَ وَهِيَ فِيْ يَدِهِ او که ګواهان دا ګواهي ورکړي چي دا کور د فلانکي په قبضه کي وو [او] په داسي حال کي مړ سو چي دا کور د هغه په قبضه کي وو جَازَتِ الشَّهَادَةُ نو [دا] ګواهي جائز ده لِأَنَّ الْأَيْدِيَ عِنْدَ الْمَوْتِ تَنْقَلِبُ يَدَ مِلْكٍ بِوَاسِطَةِ الضَّمَانِ ځکه د مرګ په وخت کي چي کومه قبضه وي هغه د ضمان [واجبېدلو] په ذريعه د ملکيت قبضه ګرځي وَالْأَمَانَةُ تَصِيرُ مَضْمُوْنَةً بِالتَّجْهِيْلِ او امانت په مجهول پرېښوول سره مضمون ګرځي [يعني ضمان يې واجبيږي] فَصَارَ بِمَنْزِلَةِ الشَّهَادَةِ عَلَى قِيَامِ مِلْكِهِ وَقْتَ الْمَوْتِ نو دا داسي سو لکه د مورث د مرګ په وخت کي د هغه د ملکيت موجودېدلو ګواهي ورکول.

**اللغات**: ﴿الأيدي﴾ جمع د يَدٌ ده: قبضه. ﴿تنقلب﴾ د انفعال د باب مضارع ده: اوښتل (بدلېدل)، ګرځېدل. ﴿مضمونة﴾ د سمع د باب مؤنث مفعول دی: د کوم شي چي ضمان (تاوان) واجب وي، هغه ته "مضمون" وايي. ﴿تجهيل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مجهول ګرځول (مجهول پرېښوول).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي مدعي يعني وارث چي د کوم کور دعوىٰ کوي، که يو څو کسان د هغه کور په باره کي دا ګواهي ورکړي چي دا کور د مرګ تر وخته د وارث د پلار په قبضه کي وو، او د مرګ (مړ کېدلو) په وخت کي هم دا کور د هغه په قبضه کي وو، نو دا ګواهي جائز او مقبوله ده او په دې ګواهۍ سره به د وارث (مدعي) لپاره د کور فيصله کيږي (يعني قاضي به دا ګواهي قبلوي او کور به وارث ته ورکوي). برابره ده ① د پلار قبضه په مالکانه توګه وي، ② يا په غاصبانه توګه وي، ③ يا د امانت په توګه وي (يعني برابره پلار د دې کور مالک وو. يا غاصب وو. يا يو چا په امانت ورکړی وو).

①... په اول صورت کي خو ښکاره شکه مملوک کور د هغه د وارث (ځوی) ملکيت ته منتقل کيږي؛ ځکه چي د مورث د مرګ (مړه کېدلو) سره سمدستي د هغه ټول مملوک شيان د وارثانو ملکيت ته منتقل کيږي.

(۲)... په دويم صورت د مالک قبضه که څه هم غاصبانه ده، لېکن کله چې مورث مړ سو نو پر هغه د مغصوب کور ضمان (تاوان) واجب سو، او پر غاصب چې کله د مغصوب شي ضمان واجب سي نو غاصب د هغه مالک کيږي (لکه مخکې چې دا خبره تېره سوه). لهذا کله چې غاصب يعنې مورث د ضمان په واجبېدلو سره د مغصوب کور مالک سو، نو ښکاره ده چې د مورث د مرګ سره به سملستي د ده ملکيت د وارث وطرف ته منتقل کيږي او وارث به د کور مالک کيږي.

(۳)... او په درېيم صورت کې د مورث قبضه که څه هم د امانت په توګه ده، لېکن کله چې هغه دا خبره نه وکړه چې دا د چا امانت دی او هسې مجهول يې پرېښووی، نو دا مورث به په آخرت کې د هغه ضامن او ذمه وار وي او د دې امانت ضمان به پر هغه لازم وي، او کله چې د دې کور ضمان پر هغه لازم سو نو هغه به د دې کور مالک هم وي. او د قبضې ګواهي ورکول به داسې وي لکه ګواهانو چې د مورث د ملکيت ګواهي ورکړه يعنې چې مورث د مرګ په وخت کې د دې کور مالک وو. او د ملکيت (مالک کېدلو) په ګواهۍ سره وارث د دې کور مالک کيږي، نو څکه د قبضې په ګواهۍ سره به هم هغه د دې مالک کيږي، برابره ده د مورث قبضه مالکانه وي يا غاصبانه وي يا د امانت په توګه وي، په هر صورت کې د وارث ملکيت په دې کور کې ثابتيږي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَإِنْ قَالُوا لِرَجُلٍ حَيٍّ: نَشْهَدُ أَنَّهَا كَانَتْ فِي يَدِ الْمُدَّعِي مُنْذُ أَشْهُرٍ او که ګواهان يو ژوندي سړي ته ووايي: موږ ګواهي ورکوو چې دا کور له يو څو مياشتو څخه د فلانکي مدعي په قبضه کې وو لَمْ تُقْبَلْ نو دا ګواهي به نه قبلول کيږي [دا ظاهر روايت دی او همدا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دی] وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهَا تُقْبَلُ* او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې دا به قبلول کيږي لِأَنَّ الْيَدَ مَقْصُودَةٌ كَالْمِلْكِ څکه چې د ملکيت په څېر قبضه هم مقصوده وي وَلَوْ شَهِدُوا أَنَّهَا كَانَتْ مِلْكُهُ او که هغوی داسې ګواهي ورکړي چې دا کور د هغه په ملکيت کې وو تُقْبَلُ نو هغه قبلول کيږي فَكَذَا هٰذَا نو همداسې به دا ګواهي هم قبلول کيږي وَصَارَ كَمَا إِذَا شَهِدُوا بِالْأَخْذِ مِنَ الْمُدَّعِي او دا داسې سوه لکه ګواهان چې له مدعي څخه د (په زوره) اخيستلو ګواهي ورکړي وَجْهُ الظَّاهِرِ وَهُوَ قَوْلُهُمَا: أَنَّ الشَّهَادَةَ قَامَتْ بِمَجْهُولٍ د ظاهر روايت (کوم چې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله قول دی) دليل دا دی: چې دا

* القول الراجح: هو ظاهر رواية وهو قولهما، وأيضاً جزم به في المختار (ج:۲، ص:۲۳۶)، وفتح القدير (ج:۶، ص:۵۲۰).
[القول الراجح ج:۲، ص:۱۲۱]

ګواهي پر يو مجهوله قبضه پېش کړل سوې ده لِأَنَّ الْيَدَ مُنْقَضِيَةٌ ځکه چي [د مدعي] قبضه ختمه سوې ده وَهِيَ مُتَنَوِّعَةٌ إِلَى مِلْكٍ وَأَمَانَةٍ وَضَمَانٍ حال دا چي قبضه [درې اقسامو ته] تقسيم سوې ده [يعني] ملکيت، امانت او ضمان ته فَتَعَذَّرَ الْقَضَاءُ بِإِعَادَةِ الْمَجْهُولِ لهذا د مجهوله قبضې د واپس کولو فيصله کول ناممکن دي بِخِلَافِ الْمِلْكِ په خلاف د ملکيت لِأَنَّهُ مَعْلُومٌ غَيْرُ مُخْتَلِفٍ ځکه چي هغه معلوم [او] غير مختلف دی وَبِخِلَافِ الْأَخْذِ او په خلاف د [په زوره] اخيستلو لِأَنَّهُ مَعْلُومٌ ځکه هغه [هم] معلوم دي وَحُكْمُهُ مَعْلُومٌ او حکم يې [هم] معلوم دی وَهُوَ وُجُوبُ الرَّدِّ او هغه د واپس کولو واجبېدل دي وَلِأَنَّ يَدَ ذِي الْيَدِ مُعَايَنٌ وَيَدُ الْمُدَّعِي مَشْهُودٌ بِهِ او ځکه چي د قابض قبضه په سترګو مشاهده سوې [ليدل سوې] ده او د مدعي د قبضې ګواهي [خبر] ورکول سوی دی وَلَيْسَ الْخَبَرُ كَالْمُعَايَنَةِ او خبر د مشاهدې په څېر نه وي.

**اللغات**: ﴿حيّ﴾ ژوندی، ﴿أشهر﴾ جمع د شَهْرٌ ده: مياشته (مياشت)، ﴿منقضية﴾ د انفعال د باب مؤنث مفعول دی: ختمېدونکی، زائل سوی، ﴿أخذ﴾ د نصر د باب مصدر دی: اخيستل، دلته څني مراد په زوره اخيستل دي (يعني غصب کول). ﴿متنوّعة﴾ د تفعّل د باب مؤنث مفعول دی: قسما قسم کېدل، څو اقسامو ته تقسيمېدل (څو ډوله کېدل). ﴿تعذّر﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: ناممکن کېدل، مشکل کېدل. ﴿معايَن﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی: په سترګو ليدل سوی، مشاهده سوی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو کور د ژوندي سړي (مثلا د خالد) په قبضه کي وي، بيا بل سړی (مثلا حامد) دعویٰ وکړي چي دا کور زما دی او مدعیٰ عليه (خالد) له دې څخه انکار وکړي، بيا مدعي (حامد) ګواهان پېش کړي او هغوی ووايي: "موږ ګواهي ورکوو چي دا کور د مدعي (حامد) په قبضه کي وو"، نو دا ګواهي به نه قبلول کيږي او په دې ګواهي سره به د مدعي لپاره د کور فيصله نه کيږي (چي دا کور د هغه دی)، دا ظاهر روايت دی او همدا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله قول دی هم دی. او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي دا ګواهي به قبلول کيږي او په دې سره به د مدعي لپاره د کور فيصله کيږي او کور به هغه ته ورکول کيږي.

(په متن کي له "رُجلٍ" څخه وروسته د "حَيٍّ" قيد ځکه لګول سوی دی چي که ګواهان د مړه سړي (ميّت) لپاره دا ګواهي ورکړي چي "د مرګ په وخت کي کور د هغه (ميّت) په قبضه کي وو"، نو دا ګواهي به بالاتفاق قبلول کيږي او هغه کور به د وارث وملکيت ته منتقل کيږي).

**د امام ابو يوسف دليل :** په پورتنۍ مختلف فيه مسئله کې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې قبضه هم د ملکيت په شان مقصوده وي (مطلب دا چې په قبضه سره هم ملکيت مرادول کيږي)، او د ملکيت په باره کې حکم دا دی چې که ګواهان داسې ګواهي ورکړي چې دا کور کوم چې اوس د مدعیٰ عليه (خالد) په قبضه کې دی، دا د مدعي (حامد) په ملکيت کې وو (يعنې د دې کور مالک حامد وو)، نو دا ګواهي قبلول کيږي (يعنې قاضي دا قبلوي او په دې ګواهۍ سره د حامد لپاره د کور فيصله کوي)، همداسې کله چې ګواهان دا ګواهي ورکړي چې دا کور د مدعي (حامد) په قبضه کې وو، نو دا ګواهي هم قبلول کيږي او کور به مدعي ته ورکول کيږي (ځکه چې په قبضه سره هم ملکيت مرادول کيږي). او د دې مثال دا دی لکه ګواهان چې دا ګواهي ورکړي چې "دغه کور خو د مدعي (حامد) په قبضه کې وو ليکن مدعیٰ عليه (خالد) له هغه څخه په زوره اخيستی وو"، نو په دې صورت کې ګواهي قبلول کيږي او کور مدعي ته ورکول کيږي، نو همداسې کله چې هغوی دا ګواهي ورکړي چې "دا کور د مدعي (حامد) په قبضه کې وو"، نو دا ګواهي به هم قبلول کيږي او کور به مدعي (حامد) ته ورکول کيږي.

**د طرفينو دليل :** د طرفينو د قول (کوم چې ظاهر روايت دی) دليل دا دی چې في الحاله خو پر دغه کور د مدعي (حامد) قبضه نشته، او په ماضي کې چې د کومې قبضې ګواهي ورکول سوې ده، هغه درې قسمه کېدای سي: ① مالکانه قبضه، يعنې مدعي (حامد) مخکې د دې کور مالک وو. ② د امانت قبضه، يعنې دا هم کېدای سي چې دا کور د مدعي په قبضه کې د امانت (وديعت) په توګه وو. ③ د ضمان قبضه، يعنې دا کور د مدعي په قبضه کې د غصب په توګه وو، يعنې مدعي هغه غصب کړی وو او غصبايې قبضه پر کړې وه.

لهذا کله چې قبضه درې قسمه کېدای سي (او دلته ګواهانو د هيڅ قسم صراحت نه دی کړی)، نو د مدعي قبضه مجهوله سوه او ګواهي پر مجهوله قبضه پېش کړل سوه، حال دا چې د مجهول شي په باره کې د قاضي فيصله کول ناممکن دي، لهذا کله چې د مجهول شي په باره کې د قاضي فيصله نا ممکنه ده، نو د جهالت د بقاء سره به د مدعي (حامد) لپاره د دې قبضې د واپس کولو فيصله کول هم نا ممکن وي، نو ځکه موږ (صاحبين) وايو چې په دې ګواهۍ سره به د مدعي لپاره د کور فيصله نه کيږي يعنې داسې به نه کيږي چې له مدعیٰ عليه (قابض) څخه کور واخيستل سي او قبضه يې ختم کړل سي او مدعي ته واپس ورکول سي.

بخلاف الملك إلخ : دا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قياس جواب دی، حاصل يې دا دی چې که ګواهان دا ګواهي ورکړي چې دا کور د مدعي (حامد) په ملکيت کې دی نو دا ګواهي ځکه قبلول کيږي چې

ملکیت معلوم شي دی او غیر مختلف دی، یعني ملکیت فقط یو قسم او یو ډول وي که څه هم د هغه اسباب مختلف وي (او داسي نه دی لکه قبضه چي څو قسمه ده). لهذا کله چي ملکیت معلوم او غیر مختلف دی نو دا ګواهي پر معلوم شي پېښ کړل سوه. او کله چي ګواهي پر معلوم شي پېښ کړل سوې ده نو د قاضي صاحب لپاره به فیصله کول هم ممکن وي. او کله چي د قاضي فیصله ممکنه ده، نو ځکه قاضي به دا ګواهي قبلوي او په دې ګواهۍ سره به د مدعي (حامد) لپاره د کور فیصله کوي او هغه ته به دا کور ورسپاري.

وبخلاف الأخذ إلخ: دا د دویم قیاس جواب دی، حاصل یې دا دی چي کله ګواهانو دا ګواهي ورکړه چي مدعیٰ علیه (قابض) دا کور له مدعي څخه په زوره اخیستی وو یعني غصب کړی یې وو، نو د ګواهۍ په ذریعه معلومه سوه چي د مدعیٰ علیه دا قبضه غاصبانه ده او د غصب حکم معلوم دی یعني مغصوب شی مدعي (مغصوب منه) ته سپارل واجب دي. نو ځکه په دې صورت کي به هم قاضي د مدعي لپاره د کور فیصله کوي او هغه ته به دا کور ورسپاري.

ولأن يد ذي اليد معاين إلخ: د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دویم دلیل دا دی چي دلته د مدعیٰ علیه قبضه په سترګو لیدل سوې ده او د مدعي د قبضې فقط ګواهي ورکول سوې ده. او ګواهي یو خبر دی او خبر هیڅکله د مشاهدې (لیدلو) سره نه سي برابرېدای؛ ځکه چي په مشاهده (لیدنه) سره یقین حاصلیږي او په خبر سره یقین نه حاصلیږي بلکي ظن (ګومان) حاصلیږي. نو ځکه د مشاهدې په ذریعه چي کومه قبضه ثابته ده هغه به راجح وي او د خبر یعني د ګواهۍ په ذریعه چي کومه قبضه ثابته سوې ده هغه به مرجوح وي، او ترجیح راجح لره وي نه مرجوح لره. نو ځکه د مدعیٰ علیه (قابض) قبضې لره به ترجیح حاصله وي او کور به د هغه په قبضه کي پرېښوول کیږي او مدعي ته به نه ورکول کیږي.

## د مدعیٰ علیه له طرفه د مدعي تصدیق کېدل

| وَإِنْ أَقَرَّ بِذٰلِكَ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ او که چیري مدعیٰ علیه د هغه اقرار وکړي دُفِعَتْ إِلَى الْمُدَّعِيْ نو دا کور به مدعي ته ورکول کیږي لِأَنَّ الْجَهَالَةَ فِي الْمُقَرِّ بِهٖ لَا تَمْنَعُ صِحَّةَ الْإِقْرَارِ ځکه چي د مقر به مجهول کېدل د اقرار صحت نه منع کوي وَإِنْ شَهِدَ شَاهِدَانِ أَنَّهُ أَقَرَّ أَنَّهَا كَانَتْ فِيْ يَدِ الْمُدَّعِيْ او که دوه ګواهان دا ګواهي |
|---|

ورکړي چې مدعیٰ علیه د دې اقرار کړی دی چې دا کور د مدعي په قبضه کې وو دُفِعَتْ إِلَيْهِ نو [هم] به دا کور مدعي ته ورکول کیږي لِأَنَّ الْمَشْهُودَ بِهِ هٰهُنَا الْإِقْرَارُ ځکه چې دلته [د مدعیٰ علیه] د اقرار په باره کې ګواهي ورکول سوې ده وَهُوَ مَعْلُومٌ او اقرار معلوم شی دی.

**اللغات:** ﴿دُفِعَت﴾ د فتح د باب ماضي صيغه ده: ورکول، ورسپارل. ﴿صحة﴾ صحيح والی، صحیح کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که مدعیٰ علیه (قابض) د دې خبرې اقرار او تصدیق وکړي چې "دا کور د مدعي په قبضه کې وو"، نو په دې صورت کې به دا کور له هغه څخه اخیستل کیږي او مدعي ته به ورکول کیږي؛ ځکه د اقرار حکم دا دی چې که مقر به مجهول وي یعنې که هغه شی مجهول وي د کوم شي په باره کې چې اقرار سوی دی، نو هم اقرار صحیح دی او د مقر به جهالت د اقرار د صحت لپاره مانع نه دی، نو دلته که څه هم قبضه مجهوله ده (چې کوم قسم قبضه وه) لیکن بیا به هم د مدعیٰ علیه د اقرار په وجه دا کور مدعي ته ورکول کیږي که څه هم په دې سره د مدعي ملکیت نه ثابتیږي.

همدارنګه که دوه ګواهان داسې ګواهي ورکړي چې مدعیٰ علیه دا اقرار کړی دی چې "دغه کور دمدعي په قبضه کې وو"، نو په دې صورت کې به هم له هغه څخه کور اخیستل کیږي او مدعي ته به ورکول کیږي؛ ځکه دغه ګواهانو چې د کوم شي ګواهي ورکړې ده، هغه اقرار دی، او اقرار یو معلوم شی دی که څه هم د مقر به یعنې د قبضې قسم مجهول دی (چې کوم قسم قبضه وه)، ځکه اوس ذکر سوه چې د مقر به جهالت د اقرار لپاره مانع نه دی، نو ځکه په دې صورت کې به هم د اقرار د ګواهۍ په وجه دا کور مدعي ته ورسپارل کیږي.



# بَابُ الشَّهَادَةِ عَلَى الشَّهَادَةِ

(دا) باب پر گواهۍ د پاسه د گواهي ورکولو (په بيان کي) دی

**تشريح**: شهادة (گواهي) اصل دی او شهادة على الشهادة د هغه فرع ده، او اصل له فرع څخه مخکي وي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله اول د اصل يعني د گواهۍ احکام او متعلقات بيان کړل، اوس د فرع يعني د شهادة على الشهادة احکام بيانوي.

د "شهادة على الشهادة" طريقه دا ده چي اصل گواهانو (عيني گواهانو) چي کومه معامله په خپله ليدلې وي، په هغه معامله کي نور خلک خپل نائبين جوړ کړي او د قاضي مجلس ته يې واستوي چي تاسو زموږ گواهي هلته نقل کړئ! (يعني اصلي گواهان ديو عذر او مجبورۍ په وجه نه سي تللای او خپل پر ځای نور کسان د گواهي پېشولو لپاره د قاضي دربار ته واستوي).

## پر گواهۍ د پاسه د گواهي ورکولو حکم او تفصيل

قَالَ: الشَّهَادَةُ عَلَى الشَّهَادَةِ جَائِزَةٌ فِي كُلِّ حَقٍّ لَا يَسْقُطُ بِالشُّبْهَةِ فرمايي: پر گواهي د پاسه گواهي ورکول په هر داسي حق کي جائز دي کوم چي په شبهې سره نه ساقطيږي وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی لِشِدَّةِ الْحَاجَةِ إِلَيْهَا ځکه چي دې [شهادة على الشهادة] ته زيات ضرورت سته إِذْ شَاهِدُ الْأَصْلِ قَدْ يَعْجِزُ عَنْ أَدَاءِ الشَّهَادَةِ لِبَعْضِ الْعَوَارِضِ ځکه ځيني وخت اصل گواه د بعضي عوارضو په وجه د گواهۍ له اداء کولو څخه عاجزه وي فَلَوْلَمْ يَجُزْ الشَّهَادَةُ عَلَى الشَّهَادَةِ نو که چيري شهادة على الشهادة جائز نه وگرځول سي أَدّٰى إِلَى إِتْوَاءِ الْحُقُوقِ نو دا به د حقوقو د ضايع کولو سبب وگرځي وَلِهٰذَا جَوَّزْنَا الشَّهَادَةَ عَلَى الشَّهَادَةِ نو په همدې وجه موږ شهادة على الشهادة جائز گرځولې ده وَإِنْ كَثُرَتْ که څه هم گواهان زيات سي إِلَّا أَنَّ فِيهَا شُبْهَةً لېکن په دې کي څه شبهه سته مِنْ حَيْثُ الْبَدَلِيَّةُ [يا] د بدليت په اعتبار سره أَوْ مِنْ حَيْثُ أَنَّ فِيهَا زِيَادَةَ احْتِمَالٍ يا په دې اعتبار سره چي په دې کي زيات احتمال سته وَقَدْ أَمْكَنَ الْاِحْتِرَازُ عَنْهُ بِجِنْسِ الشُّهُوْدِ حال دا چي د جنس

ګواهانو په ذريعه له دې څخه ځان [محفوظ کېدل] ممکن دي فَلَا تُقْبَلُ فِيمَا يَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ نو ځکه په داسې شیانو کې به نه قبلول کیږي کوم چې په شبهاتو هره ساقطیږي كَالْحُدُوْدِ وَالْقِصَاصِ لکه حدونه او قصاص.

**اللغات:** ﴿إتواء﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضايع کول، بربادول، ﴿جوّزنا﴾ د افعال د باب ماضي ده: جائز ګرځول، جائز کول، ﴿جنس الشهود﴾ اصل ګواهان (چې هغو واقعه او معامله لیدلې ده)، ﴿يندرئ﴾ د انفعال د باب مضارع ده: زائلېدل، لیري کېدل (ساقطېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د خلکو د حقوقو د ساتلو او ژوندي کولو په خاطر شریعت استحساناً په هغه حقوقو کې شهادة على الشهادة جائز ګرځولی دی کوم چې په شبهاتو سره نه ساقطیږي (لنډه دا چې شهادة على الشهادة له حدّ او قصاص څخه بغیر په نورو حقوقو کې جائز دی)؛ او د جواز دلیل يې دا دی چې هغه ته ځیني وخت سخت ضرورت پیښیږي؛ ځکه کله نا کله دیو عذر او مجبورۍ په وجه اصلي ګواه د قاضي مجلس ته نه سي حاضرېدای او هغه خپل نائب واستوي او په هغه سره ګواهي پېش کړي، او ښکاره خبره ده چې په داسې کولو سره د حقدارانو خلکو حقوق ژوندي کیږي او له ضیاع څخه ساتل کیږي، نو ځکه شهادة على الشهادة جائز دي، لېکن که هغه ناجائز وګرځول سي نو په دې صورت کې به د خلکو حقوق ضايع سي او هغو ته به حرج او ضرر لاحق سي، حال دا چې په شریعت کې حرج لیري کړی سوی دی، نو ځکه مذکوره حالاتو ته په کتلو سره شهادة على الشهادة جائز ګرځول سوی دی، برابره ده فرعي ګواهان کثیر وي او که قلیل وي (یعني اصلي ګواهانو چې کوم کسان خپل نائبین جوړ کړي وي، برابره ده هغه لږ وي او که ډېر. په هر صورت کې شهادة على الشهادة جائز دی).

د فرعي ګواهانو د کثیر کېدلو یو مطلب دا دی چې مثلاً اصلي ګواهان دوه وي او بیا دوی د ځان لپاره دوه خلک خپل نائبان وټاکي او بیا دا دوه خلک هم نور دوه خلک خپل نائبان وټاکي او دا نور دوه نائبان هم خپل نائبان وټاکي... على هذا القياس، نو په دې صورت کې هم شهادة على الشهادة جائز دی، یا د کثیر کېدلو مطلب دا دی چې مثلاً اصلي ګواهان دوه وي او بیا له دوی څخه هر یو دوه خلک خپل نائبان وټاکي او بیا دا څلور فرعي ګواهان هم هر یو دوه، دوه خلک خپل نائبان وټاکي، نو دا هم جائز دي.

لېکن څرنګه چې د فرعي ګواهانو په ګواهۍ کې څه غوندي شبهه سته، ځکه چې فرعي ګواهان د اصلي ګواهانو بدل دي، او په بدل کې د اصل په نسبت څه شبهه وي، یا په فرعي ګواهانو کې په دې وجه شبهه سته چې هغوی د اصلي ګواهانو نائبین دي، او د نه معصوم کېدلو په وجه په اصلي

ګواهانو کې د کذب (درواغو) احتمال سته لهذا په فرعي ګواهانو کې به دا احتمال نور هم زیات وي، لنډه دا چې د فروعو په ګواهۍ کې یو ډول شبهه سته، او د جنس ګواهانو یعني د اصلي ګواهانو په ذریعه له دغه شبهې (یعني د فروعو له ګواهۍ) څخه محفوظ کېدل هم ممکن دي، په دې توګه چې د اصلي ګواهانو شمېر زیات وي نو که ځینو اصلي ګواهانو ته یو عذر پېښ سي نو پاته اصلي ګواهان دې ګواهي ورکړي، لنډه دا چې کله د فروعو په ګواهۍ کې شبهه سته او د اصلي ګواهانو په ذریعه له هغه څخه محفوظ کېدل ممکن هم دي، نو ځکه وویل سوه چې د فرعي ګواهانو ګواهي به په داسې حقوقو کې نه قبلول کیږي کوم چې په شبهاتو سره ساقطیږي، لکه حدود او قصاص.

## په شهاده علی الشهاده کې د ګواهانو د شمېر بیان

وَيَجُوزُ شَهَادَةُ شَاهِدَيْنِ عَلَى شَهَادَةِ شَاهِدَيْنِ او دوو ګواهانو پر ګواهۍ د پاسه د دوو ګواهانو ګواهي جائز ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ إِلَّا الْأَرْبَعُ عَلَى كُلِّ أَصْلٍ اِثْنَانِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې له څلورو څخه کم [فرعي ګواهان] جائز نه دي [يعني] پر هر اصل ګواه دوه ګواهان لِأَنَّ كُلَّ شَاهِدَيْنِ قَائِمَانِ مَقَامَ شَاهِدٍ وَاحِدٍ ځکه چې هر دوه [فرعي] ګواهان د یوه [اصل] ګواه قائم مقام دي فَصَارَ كَالْمَرْأَتَيْنِ نو دا دوو ښځو په څېر سو وَلَنَا قَوْلُ عَلِيٍّ رضي الله عنه *: «لَا يَجُوزُ عَلَى شَهَادَةِ رَجُلٍ إِلَّا شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ» او زموږ دليل د حضرت علي رضي الله عنه [دا] قول دی چې: "جائز نه دي د یوه سړي پر ګواهۍ مګر د دوو خلکو ګواهي" وَلِأَنَّ نَقْلَ شَهَادَةِ الْأَصْلِ مِنَ الْحُقُوقِ او ځکه چې د اصل ګواه ګواهي نقل کول له حقوقو څخه دي فَهُمَا شَهِدَا بِحَقٍّ ثُمَّ شَهِدَا بِحَقٍّ آخَرَ نو [ګواکي] دواړو ګواهانو پر یوه حق له ګواهي ورکولو څخه وروسته پر بل حق ګواهي ورکړه فَتُقْبَلُ نو ځکه هغه به قبلول کیږي وَلَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ وَاحِدٍ عَلَى شَهَادَةِ وَاحِدٍ او د یوه [اصل ګواه] پر ګواهۍ به د یوه [فرعي ګواه] ګواهي نه قبلول کیږي لِمَا رَوَيْنَا د هغه قول په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ او د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی وَلِأَنَّهُ حَقٌّ مِنَ الْحُقُوقِ او ځکه چې دا [يعني د اصل ګواهي نقل

---

* تخريج: تر دېره لټون وروسته هم پيدا نه سو، خو په "جامع الأحاديث" او "مُصنَّفِ صنعاني" کې د حضرت علي رضي الله عنه يو قول په دې الفاظو سره ذکر سوی دی "لا يجوز على شهادة الميت إلّا رجلان" (جامع الاحاديث، رقم: ۳۴۵۵۵. مصنف صنعاني، رقم: ۱۵۴۵۰).

کول له حقوقو څخه يو حق دی فَلَا بُدَّ مِنْ نِصَابِ الشَّهَادَةِ نو ځکه د گواهۍ نصاب ضروري دی.

**اللغات**: ﴿أصل﴾ اصلي گواه، عيني گواه (کوم چي معامله په خپله ليدلې وي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د دوو اصلي گواهانو پر گواهۍ د دوو فرعي گواهانو گواهي ورکول جائز دي، يعني اول به دواړه فرعي گواهان د يوه اصلي گواه گواهي نقل کوي بيا به همدوی دواړه د دويم اصلي گواه گواهي نقل کوي، په دې توگه د دوو اصلي گواهانو پر گواهۍ د دوو فرعي گواهانو گواهي ورکول جائز دي. لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د دوو اصلي گواهانو د گواهۍ دنقل کولو لپاره څلور فرعي گواهان ضروري دي، يعني د هر اصلي گواه گواهي به دوه فرعي گواهان نقل کوي. (د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز يو فرعي گواه هم کافي دی، يعني يو فرعي گواه به يو وار د يوه اصل گواه گواهي نقل کوي او بل وار به د دويم اصل گواه گواهي نقل کوي، علامه بدر الدين عيني رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا له امام مالک رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی، لېکن د هغه اصل مذهب زموږ د مذهب په څېر دی، همداسي علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله فرمايلي دي).

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي دوه فرعي گواهان د يوه اصلي گواه قائم مقام وي، لکه څرنگه چي دوې ښځي د يوه سړي قائم مقام وي، او کله چي دوه فرعي گواهان د يوه اصلي گواه قائم مقام دي، نو ځکه د دوو اصلي گواهانو د قائم مقام والي لپاره به څلور فرعي گواهان ضروري وي.

**زموږ دليل**: د حضرت علي ﷺ دا قول دی: "لَا يَجُوْزُ عَلٰى شَهَادَةِ رَجُلٍ إِلَّا شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ" يعني د يوه سړي پر گواهۍ د پاسه د دوو خلکو گواهي ضروري ده، مطلب يې دا دی چي دوه فرعي گواهان به يو وار د يوه اصلي گواه گواهي نقل کوي او بل وار به د دويم اصلي گواه گواهي نقل کوي، نو په دې توگه به د هر اصلي گواه پر گواهۍ دوه فرعي گواهان هم پېښ سي او د فرعي گواهانو شمېر به تر دوو زيات هم نه سي، لکه امام شافعي رَحِمَهُ الله چي فرمايلي دي. (اشرف الهدايه)

ولأن نقل إلخ: زموږ عقلي دليل دا دی چي د اصل گواه گواهي نقل کول له حقوق الناس څخه دي، او د هر حق ثابتولو لپاره د گواهۍ نصاب (دوه گواهان) ضروري دي، لهذا کله چي دوه فرعي گواهان د يوه اصلي گواه گواهي نقل کړي نو گواکي هغو پر يوه حق گواهي ورکړه او پر هغه د گواهۍ نصاب هم پوره سو، بيا چي کله همدا فرعي گواهان د دويم اصلي گواه گواهي نقل کړي نو گواکي هغو له يوه حق څخه بغير پر بل حق گواهي ورکړه او پر هغه هم د گواهۍ نصاب موجود سو، او دا خبره تسليم سوې ده چي دوه گواهان جلا جلا پر مختلفو حقوقو گواهي ورکولای سي، لهذا کله چي د هر اصل

ګواه د ګواهۍ پر نقل کولو د شهادت (ګواهي) نصاب پوره سو. نو ځکه به د مذکوره دواړو فرعي ګواهانو ګواهي قبلول کیږي. په خلاف د دوو ښځو د ګواهۍ؛ ځکه دوې ښځې د ګواهۍ په باب کې د یوه سړي په مرتبه کې دي، نو ځکه فقط په دوو ښځو سره به نصاب نه پوره کیږي، او کله چي په دوو ښځو سره د ګواهۍ نصاب نه پوره کیږي، نو د هغو پر ګواهۍ به د قاضي فیصله هم نه مُرتّب کیږي.

ولا تقبل شهادة واحد إلخ: او د حضرت علي رضي الله عنه د قول پر بناء به د یوه اصلي ګواه پر ګواهي د یوه فرعي ګواه ګواهي هم نه قبلول کیږي، او د حضرت رضي الله عنه قول د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف هم حجت دی؛ ځکه چي په دې قول کې په واضحه توګه ذکر سوي دي چي د یوه اصلي ګواه د ګواهۍ د نقل کولو لپاره دوه فرعي ګواهان ضروري دي، حال دا چي امام مالک رَحِمَهُ الله یو فرعي ګواه کافي ګڼلی دی. او د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف عقلي دلیل دا دی چي ګواهي نقل کول یو قسم حق دی او د هر ډول حق ثابتولو لپاره د ګواهۍ نصاب ضروري دی، نو ځکه د اصل ګواه د ګواهۍ د نقل کولو لپاره به یو فرعي ګواه کافي نه وي بلکي دوه ګواهان به ضروري وي.

## پر ګواهۍ د پاسه د ګواه جوړولو طریقه

وَصِفَةُ الْإِشْهَادِ أَنْ يَقُوْلَ شَاهِدُ الْأَصْلِ لِشَاهِدِ الْفَرْعِ او د ګواه جوړولو طریقه دا ده چي اصل ګواه فرعي ګواه ته داسي ووایي "اِشْهَدْ عَلٰى شَهَادَتِيْ أَنِّيْ أَشْهَدُ أَنَّ فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ أَقَرَّ عِنْدِيْ بِكَذَا وَأَشْهَدَنِيْ عَلٰى نَفْسِهِ" "ته زما پر ګواهي دا ګواهي ورکړه! چي زه ګواهي ورکوم چي فلان بن فلان زما سره د دې اخبري اقرار کړی دی او زه یې پر خپل ځان ګواه جوړ کړی یم" لِأَنَّ الْفَرْعَ كَالنَّائِبِ عَنْهُ ځکه چي فرعي ګواه د اصل ګواه د نائب په څېر دی فَلَا بُدَّ مِنَ التَّحْمِيْلِ وَالتَّوْكِيْلِ نو ځکه [پر فرعي ګواه] د ګواهۍ بار [او ذمه واري] اچول او وکیل جوړول ضروري دي عَلٰى مَا مَرَّ لکه مخکي چي تېر سو وَلَا بُدَّ أَنْ يَشْهَدَ كَمَا يَشْهَدُ عِنْدَ الْقَاضِيْ او ضروري ده چي اصل ګواه [د فرعي ګواه مخته] هغسي ګواهي ورکړي لکه څرنګه چي یې د قاضي مخته ورکوي لِيَنْقُلَهُ إِلٰى مَجْلِسِ الْقَضَاءِ د دې لپاره چي فرعي ګواه دا ګواهي د قاضي مجلس ته منتقل کړي وَإِنْ لَمْ يَقُلْ "أَشْهَدَنِيْ عَلٰى نَفْسِهِ" او که اصلي ګواه "أَشْهَدَنِيْ عَلٰى نَفْسِهِ" نه ووایي جَازَ نو [هم] جائز دي لِأَنَّ مَنْ سَمِعَ إِقْرَارَ غَيْرِهِ ځکه کوم څوک چي

د بل چا اقرار واوري حَلَّ لَهُ الشَّهَادَةُ وَإِنْ لَمْ يَقُلْ لَهُ "اِشْهَدْ" نو د هغه لپاره ګواهي ورکول روا دي، که څه اقرار کونکي سړي هغه ته "اِشْهَدْ" ويلي نه وي.

**اللغات**: ﴿صفة﴾ کيفيت، طريقه. ﴿إشهاد﴾ د افعال د باب مصدر دی: ګواه جوړول. ﴿إِشْهَدْ﴾ د سمع له بابه د واحد مذکر امر حاضر صيغه ده: ګواه کېدل، ګواه جوړېدل، نو د "اِشْهَدْ" معنیٰ ده: ته ګواه سه!، ته ګواه جوړ سه!. ﴿أَشْهَدَنِيْ﴾ د افعال د باب ماضي ده، په آخر کي يې نون وقايه او ياء ضمير متکلم ده: زه يې ګواه جوړ کړی يم. ﴿تحميل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: د ګواهۍ بار او ذمه واري پر اچول، ګواه جوړول.

**تشريح**: اصلي ګواه به څنګه فرعي ګواه خپل پر ګواهۍ ګواه جوړوي. د دې طريقه دا ده چي هغه به د فرعي ګواه مخته داسي ګواهي اداء کوي او په دې الفاظو سره به هغه خپل ګواه جوړوي "زه ګواهي ورکوم چي فلان بن فلان سړي زما مخته (مثلا) د فلان بن فلان لپاره د دې حق اقرار وکړی او اقرار کونکي سړي پر خپل ځان زه ګواه جوړ کړی يم"، په فرعي ګواهي کي ځکه دا شرط لګول سوی دی چي اصلي ګواه به فرعي ګواه پر خپل ګواهۍ ګواه جوړوي، ځکه چي فرعي ګواه ګواکي د اصلي ګواه نائب او وکيل دی، او د نائب کېدلو لپاره نائب جوړول ضروري دي، له نائب جوړولو څخه بغير هيڅوک د بل چا نائب کېدای نه سي، نو ځکه د اصلي ګواه لپاره به دا ضروري وي چي فرعي ګواه خپل نائب جوړ کړي يعني پر خپل ګواهۍ يې ګواه جوړ کړي. همدارنګه شهادة على الشهادة هماغه وخت حجت ګرځي کله چي فرعي ګواه د قاضي په مجلس کي د اصل ګواهي منتقل کړي (بيان کړي)، او فرعي ګواه ته هماغه وخت د قاضي په مجلس کي د اصل ګواه د ګواهۍ منتقل کولو اجازت او اختيار سته کله چي اصل ګواه پر هغه خپل د ګواهۍ بار واچوي (يعني کله چي اصلي شاهد هغه خپل ګواه جوړ کړي او د هغه پر غاړه د ګواهي اداء کولو ذمه واري واچوي، چي هغه ته تحميل وايي)، لنډه دا چي ثابته سوه چي د شهادة على الشهادة لپاره تحميل يعني د اصلي ګواه له طرفه فرعي ګواه ته "اِشْهَدْ عَلىٰ شَهَادَتِيْ" ويل يعني پر هغه د ګواهي اداء کولو ذمه واري اچول او په ګواهي اداء کولو کي هغه خپل وکيل جوړول ضروري دي (لکه څرنګه چي په "فصل ما يتحمّله الشاهد" کي د دې تفصيل تېر سو).

لېکن دلته يو سوال سته، او هغه دا چي کله فرعي ګواه د اصلي ګواه نائب دی، نو بيا صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله ولي داسي ويلي دي "لِأَنَّ الْفَرْعَ كَالنَّائِبِ عَنْهُ" ويلي دي، بايد "لِأَنَّ الْفَرْعَ نَائِبُهُ"

وېيل سوي وای؟، د دې جواب دا دی چې فرعي ګواه د اصلي ګواه په ګواهۍ کې د هغه نائب نه وي بلکې په مشهود به کې نائب وي، نو ځکه يې د "كَالنَّائِبِ" لفظ اختيار کړی دی.

ولا بدّ إلخ: فرمايي چې اصلي ګواه به د فرعي ګواه مخته داسې ګواهي اداء کوي لکه څرنګه چې يې د قاضي مخته اداء کوي، د دې لپاره چې فرعي ګواه د هغه ګواهي په توجه سره واوري او بعينه هغسې يې د قاضي په مجلس کې منتقل کړي (بيان کړي)؛ ځکه ښکاره خبره ده چې فرعي ګواه به د قاضي په مجلس کې په هغسې الفاظو سره ګواهي بيانوي کوم الفاظ چې هغه له اصل ګواه څخه اورېدلي وي، نو ځکه اصل ګواه ته پکار دي چې د هغه مخته هم خاص د قاضي په شېر ګواهي بيان کړي.

وإن لم يقل إلخ: او که چېرې اصل ګواه فرعي ګواه ته داسې نه وايي چې "اقرار کونکي سړي زه پر خپل ځان ګواه جوړ کړی یم"، نو دا هم جائز دي؛ ځکه کوم سړي چې د بل چا اقرار اورېدلی وي، هغه ته په هر صورت کې ګواهي ورکول روا دي، که څه هم اقرار کونکي کس هغه ته دا نه وي وېلي چې "ته پر ما ګواه جوړ سه!".

## پر ګواهي د پاسه د ګواهي ورکولو طريقه

وَيَقُولُ شَاهِدُ الْفَرْعِ عِنْدَ الْأَدَاءِ او فرعي ګواه به د ګواهي اداء کولو په وخت کې داسې وايي "أَشْهَدُ أَنَّ فُلَانًا أَشْهَدَنِيْ عَلٰى شَهَادَتِهِ أَنَّ فُلَانًا أَقَرَّ عِنْدَهُ بِكَذَا وَقَالَ لِيْ: اِشْهَدْ عَلٰى شَهَادَتِيْ بِذٰلِكَ "زه ګواهي ورکوم چې فلانکي سړي پر خپل ګواهۍ زه ګواه جوړ کړی یم چې فلان سړي د هغه سره د فلانکي حق اقرار کړی دی او هغه [اصل ګواه] ما ته وېيل: چې ته زما پر ګواهي ګواه جوړ سه! لِأَنَّهُ لَابُدَّ مِنْ شَهَادَتِهِ وَذِكْرِ شَهَادَةِ الْأَصْلِ وَذِكْرِ التَّحْمِيْلِ ځکه چې د فرعي ګواه ګواهي ورکول ضروري دي [همدارنګه] د اصل ګواه د ګواهۍ او د تحميل [ګواه جوړولو] يادونه کول [هم] ضروري دي وَلَهَا لَفْظٌ أَطْوَلُ مِنْ هٰذَا وَأَقْصَرُ مِنْهُ او د فرعي ګواهۍ لپاره له مذکوره الفاظو څخه اوږده الفاظ هم سته او له هغه څخه کم الفاظ هم سته وَخَيْرُ الْأُمُوْرِ أَوْسَطُهَا او غوره د امورو مېنځوی [متوسط] امر دی [يعني درميانه الفاظ او متوسط عبارت وېيل غوره دي].

**اللغات**: ﴿أطول﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: اوږد. ﴿أقصر﴾ مخکنې صيغه ده: مختصر، کم. ﴿أوسط﴾ مېنځوی، درميانه (مېنځوی درجې والا).

**تشريح:** په دې عبارت کې د فرعي ګواه د ګواهۍ کيفيت او طريقه بيان سوې ده. حاصل يې دا دی چې فرعي ګواه به د قاضي په مجلس کې د ګواهۍ اداء کولو پر مهال داسې وايي چې "زه ګواهي ورکوم چې فلان بن فلان زه خپل پر دې ګواهۍ ګواه جوړ کړی يم چې فلان بن فلان د هغه مخته د فلان بن فلان لپاره د دې حق اقرار کړی دی. او هغه ما ته وويل چې ته زما پر دغه ګواهي ګواه جوړ سه!".

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د دې الفاظو د ويلو وجه دا ده چې د فرعي ګواه لپاره ګواهي ورکول ضروري دي نو ځکه هغه به "زه ګواهي ورکوم" وايي، او دا هم ضروري دي چې فرعي ګواه د خپل ځان د ګواه جوړېدلو (تحميل) يادونه وکړي نو ځکه هغه به داسې هم وايي چې "اصل ګواه ما ته وويل چې ته زما پر دغه ګواهي ګواه جوړ سه!".

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د ګواهۍ د اداء کولو پر مهال فرعي ګواه تر دې زيات الفاظ (اوږد عبارت) هم ويلای سي او تر دې کم او مختصر الفاظ هم ويلای سي. د اوږد عبارت مثال دا دی چې فرعي ګواه د قاضي مخته داسې ووايي "زه ګواهي ورکوم چې فلانکي زما مخته دا ګواهي ورکړې ده چې پر فلان بن فلان د فلان بن فلان دومره مال باندې دی، او زه يې پر خپل ګواهۍ ګواه جوړ کړی يم، او ما ته يې حکم کړی دی چې د هغه پر ګواهۍ زه ګواهي ورکړم. نو ځکه اوس زه ګواهي ورکوم"، د مختصر عبارت مثال دا دی چې فرعي ګواه د قاضي مخته داسې ووايي "زه د فلانکي ګواه پر ګواهۍ د فلانکي شي په باره کې ګواهي ورکوم". او په قدوري (متن) کې مذکوره عبارت د متوسطو الفاظو والا دی، نه اوږد دی او نه مختصر دی او د "خَيْرُ الأُمُوْرِ أَوْسَطُهَا" د قاعدې مطابق دی، او په همدې وجه په قدوري کې په دې هکله متوسط عبارت اختيار کړی سوی دی.

## د ګواه جوړولو شرط

وَمَنْ قَالَ: أَشْهَدَنِيْ فُلَانٌ عَلٰى نَفْسِهِ او که يو څوک ووايي: زه فلانکي پر خپل ځان ګواه جوړ کړی يم لَمْ يَشْهَدِ السَّامِعُ عَلٰى شَهَادَتِهِ حَتّٰى يَقُوْلَ لَهُ: "اِشْهَدْ عَلٰى شَهَادَتِيْ" نو اورېدونکی کس به د هغه پر ګواهۍ ګواهي نه ورکوي تر دې چې هغه [اصل ګواه] ده ته داسې ووايي: "ته زما پر ګواهي ګواه جوړ سه!" لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ التَّحْمِيْلِ ځکه چې د ګواهۍ بار پر اچول [يعني ګواه جوړول] ضروري دي وَهٰذَا ظَاهِرٌ عِنْدَ مُحَمَّدٍ او دا [د تحميل ضروري کېدل] د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز ښکاره دی لِأَنَّ الْقَضَاءَ عِنْدَهُ بِشَهَادَةِ الْفُرُوْعِ وَالْأُصُوْلِ جَمِيْعًا ځکه چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د قاضي فيصله

کول د فرعي او اصلي ټولو ګواهانو په ګواهۍ سره صادرېږي. حَتّٰى اشْتَرَكُوا فِي الضَّمَانِ عِنْدَ الرُّجُوْعِ همدا وجه ده چې د رجوع په وخت کې دوی ټوله په ضمان [تاوان] کې شريک کېږي وَكَذَا عِنْدَهُمَا او همداسې د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز [هم تحميل ضروري دی] لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ نَقْلِ شَهَادَةِ الْأُصُوْلِ لِيَصِيْرَ حُجَّةً ځکه چې د اصل ګواهانو ګواهي نقل کول ضروري ده، د دې لپاره چې حجت وګرځي فَيَظْهَرَ تَحْمِيْلُ مَا هُوَ حُجَّةٌ لهذا کوم شی چې حجت دی د هغه ګواه جوړول به ضروري وي [يا: کوم شی چې حجت دی د هغه د تحميل اظهار به کيږي].

**اللغات**: ﴿سامع﴾ د سمع د باب فاعل دی: اورېدونکی، ﴿حجة﴾ دليل، ﴿تحميل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: پر يو چا د ګواهۍ بار او ذمه واري اچول، د ګواهۍ ذمه وار جوړول، يعني ګواه جوړول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې مثلاً خالد د يو معاملې اصلي ګواه (عيني ګواه) دی او هغه د خپل ځان له طرفه د ګواهي اداء کولو لپاره زيد خپل ګواه جوړ کړی، بيا زيد په يو ځای کې دا خبره وکړه چې خالد زه د خپل ځان ګواه جوړ کړی يم، او په هغه ځای کې حامد دا خبره واورېده، نو حامد سامع سو، اوس حامد ته دا اختيار نسته چې د اصلي ګواه يعني د خالد پر ګواهۍ د پاسه ګواهي ورکړي، لېکن که چيري اصلي ګواه يعني خالد پر سامع (حامد) باندې خپل د ګواهۍ بار او ذمه واري واچوي يعني هغه ته داسې ووايي چې "اِشْهَدْ عَلٰى شَهَادَتِيْ" (ته زما پر ګواهي ګواه جوړ سه!)، نو بيا هغه (حامد) ته دا اختيار سته چې د اصلي ګواه پر ګواهۍ د پاسه ګواهي اداء کړي؛ دليل دا دی چې د شهادة على الشهادة لپاره تحميل (يعني ګواه جوړول) بالاتفاق ضروري دي، د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز خو ښکاره ده چې تحميل الشهادة ضروري دی؛ ځکه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز فرعي ګواه د اصلي ګواه وکيل وي، او قاضي د وکيل او مؤکل يعني د اصلي ګواه او فرعي ګواه داوړو پر ګواهۍ فيصله صادروي، همدا وجه ده که اصلي ګواه او فرعي ګواه دواړه له ګواهۍ څخه رجوع وکړي، نو پر دواړو ضمان واجبيږي، يعني مشهود عليه ته دا اختيار حاصلیږي چې که هغه له اصلي ګواه څخه ضمان (تاوان) اخلي او که يې له فرعي ګواه څخه اخلي، لنډه دا چې کله د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په شهادة على الشهادة کې د توکيل (وکيل جوړولو) معنیٰ سته، نو څرنګه چې په توکيل کې د مؤکل لپاره وکيل جوړول ضروري دي او له وکيل جوړولو څخه بغير هيڅوک د هغه وکيل نه سي جوړېدای، همداسې به په شهادة على الشهادة کې د اصلي ګواه لپاره بل څوک خپل ګواه جوړول (د ګواهي اداء کولو وکيل جوړول) ضروري وي او د هغه له جوړولو څخه بغير به هيڅوک د هغه له طرفه ګواه نه سي

جوړېدای. نو ځکه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چي کله اصلي ګواه تحميل وکړي يعني بل چا ته "اِشْهَدْ عَلٰى شَهَادَتِيْ" ووايي او هغه د ځان ګواه جوړ کړي، نو بيا هغه ته د اصلي ګواه پر ګواهۍ د پاسه د ګواهي ورکولو اختيار ستنه.

همدارنګه د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هم تحميل الشهادة ضروري دی؛ ځکه د هغو په نيز که څه هم شهادة على الشهادة توکيل (وکيل جوړول) نه دي، يعني فرعي ګواه د اصل ګواه وکيل نه دی، ليکن د اصل ګواه د ګواهۍ د حجت ګرځولو لپاره دا ضروري ده چي فرعي ګواه د اصل ګواه ګواهي د قاضي په مجلس کي نقل کړي (يعني د قاضي په مجلس کي يې بيان کي)؛ ځکه چي ګواهي په خپله حجت نه ده بلکي هغه وخت حجت ګرځي کله چي هغه د قاضي په مجلس کي نقل کړل سي (بيان کړل سي)، لنډه دا چي معلومه سوه چي د اصل ګواه ګواهي هغه وخت حجت ګرځي کله چي فرعي ګواه هغه د قاضي په مجلس کي نقل کړي، نو ځکه پر فرعي ګواه د قاضي په مجلس کي د هغه نقل کول ضروري دي، او د نقل کولو لپاره تحميل ضروري دی، يعني فرعي ګواه ته هغه وخت د اصل ګواه د ګواهي نقل کولو اجازت ستنه کله چي اصل ګواه پر هغه د دې ګواهۍ بار واچوي او هغه د ځان ګواه جوړ کړي، نو ثابته سوه چي تحميل الشهادة د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هم ضروري دی.

## د فرعي ګواهانو ګواهي به کله قبول کيږي؟

قَالَ: وَلَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ شُهُوْدِ الْفَرْعِ إِلَّا أَنْ يَمُوْتَ شُهُوْدُ الْأَصْلِ فرمايي: او د فرعي ګواهانو ګواهي به نه قبول کيږي مګر دا چي اصل ګواهان مړه سي أَوْ يَغِيْبُوْا مَسِيْرَةَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فَصَاعِدًا يا اصل ګواهان د درېو ورځو يا تر دې د زياتي مسافې په اندازه غائب سي أَوْ يَمْرَضُوْا مَرَضًا لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ مَعَهُ حُضُوْرَ مَجْلِسِ الْحَاكِمِ يا داسي مريضان سي چي د هغه مرض سره دوی د قاضي مجلس ته د حاضرېدلو طاقت [وس] نه لري لِأَنَّ جَوَازَهَا لِلْحَاجَةِ ځکه چي د شهادة على الشهادة جواز [جائز کېدل] د ضرورت پر بناء دي وَإِنَّمَا تَمَسُّ عِنْدَ عَجْزِ الْأَصْلِ او ضرورت د اصل ګواهانو د عاجز والي په وخت کي پيښيږي وَبِهٰذِهِ الْأَشْيَاءِ يَتَحَقَّقُ الْعَجْزُ او په دې شيانو سره عاجز والی ثابتيږي وَإِنَّمَا اعْتَبَرْنَا السَّفَرَ لِأَنَّ الْمُعْجِزَ بُعْدُ الْمَسَافَةِ او موږ د سفر د مودت اعتبار ځکه کړی دی چي عاجزونکی شی د مسافې ليري والی دی وَمُدَّةُ السَّفَرِ بَعِيْدَةٌ حُكْمًا او د سفر مودت [د شرعي] حکم په اعتبار سره ليري

دی حَتّٰی أُدِيْرَعَلَيْهَا عِدَّةٌ مِنَ الْأَحْكَامِ همدا وجه ده چي پر دغه مودت د ډېرو احکامو مدار دی فَكَذَا سَبِيلُ هٰذَا الْحُكْمِ نو همداسي د دې حکم لاره هم ده وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ۞ أَنَّهُ إِنْ كَانَ فِي مَكَانٍ لَوْ غَدَا لِأَدَاءِ الشَّهَادَةِ لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يَبِيتَ فِي أَهْلِهِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی که اصل ګواه په داسي ځای کي وي چي که هغه سهار د ګواهی اداء کولو لپاره روان سي نو بيا هغه په خپل اهل [او کور] کي شپه نه سي تېرولای صَحَّ الْإِشْهَادُ نو [په دې صورت کي] ګواه جوړول جائز دي إِحْيَاءً لِحُقُوقِ النَّاسِ د دې لپاره چي د خلکو حقوق ژوندي سي [او ضايع نه سي] قَالُوا: الْأَوَّلُ أَحْسَنُ وَالثَّانِي أَرْفَقُ مشايخو ويلي دي: چي اول قول ډېر غوره دی او دويم قول ډېر آسانه دی وَبِهِ أَخَذَ الْفَقِيهُ أَبُو اللَّيْثِ او فقيه ابو الليث رَحِمَهُ الله همدا [دويم قول] اختيار کړی دی.

**اللغات:** ﴿يغيبوا﴾ د ضرب له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صيغه ده: غائبېدل، لېري کېدل، ﴿مسيرة﴾ مسافه، فاصله، واټن، ﴿فصاعدًا﴾ يا تر دې زيات، ﴿معجز﴾ د افعال د باب فاعل دی: عاجزونکی، ﴿بُعد﴾ لېري والی، ﴿غدًا﴾ د نصر د باب ماضي ده: د سهار په وخت کي تلل (سهار تلل)، ﴿لا يبيت﴾ د ضرب له بابه د نفي صيغه ده: شپه تېرول، ﴿أرفق﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات آسانه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي شهادة على الشهادة يعني د فرعي ګواهانو ګواهي به هغه وخت قبلول کېږي، کله چي له دغه دريو وجهو څخه يوه وجهه موجوده سي: ① اصلي ګواهان ژوندي نه وي، ② يا اصلي ګواهان د سفر د مودت پر مسافه غائب وي (يعني د دې ورځو پر مسافه يا تر دې پر زياته مسافه يو خوا ته تللي وي)، ③ يا اصلي ګواهان په داسي مرض مبتلا وي چي د قاضي مجلس ته د هغو حاضرېدل مشکل او ستونزمن وي. که چيري له دغه دريو وجهو څخه يوه وجه موجوده سي، نو شهادة على الشهادة به قبلول کېږي.

دليل دا دی چي شهادة على الشهادة د ضرورت پر بناء جائز ګرځول سوی دی (لکه د باب په شروع کي چي ذکر سوه)، او ضرورت هغه وخت پيدا کېږي کله چي اصلي ګواهان له ګواهي ورکولو څخه عاجزه سي، او په مذکوره دريو سره صورتونو کي اصل ګواهان له ګواهي ورکولو څخه عاجزه دي،

---

۞ القول الراجح: قول ابي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في البحر الرائق (ج:٧، ص:١٢١)، وفي رد المحتار (ج:٤، ص:٤٣٧).
[القول الراجح ج:٢، ص:١٤٢]

لهذا په دې صورتونو کې د اصلي ګواهانو د عاجز والي په وجه شهادة على الشهادة ته ضرورت پېښ سو، نو ځکه په دې درېو سره صورتونو کې به شهادة على الشهادة قبلول کېږي.

وإنما اعتبرنا إلخ: فرمايي چې موږ د سفر د مودت اعتبار ځکه کړی دی چې د قاضي مجلس ته له حاضرېدلو څخه عاجزونکی شی د مسافې لیري والی دی، او د شرعي حکم په اعتبار سره د سفر مودت يو لیري مسافه ده؛ همدا وجه ده چې په شريعت کې د ډېرو احکامو مدار د سفر پر مودت دی (مثلا په لمانځه کې قصر کول، روژه نه نيول، د جمعې د لمانځه او قرباني ساقطېدل او داسې نور احکام)، لهذا څرنګه چې په دې احکامو کې د شريعت له طرفه د سفر مودت مدار ګرځول سوی دی، همداسې به د شهادة على الشهادة په مسئله کې هم د سفر مودت مدار ګرځول کېږي او پر همدې به د اصلي ګواه د عاجز والي او ناعاجز والي فيصله کېږي.

وعن أبي يوسف إلخ: فرمايي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه دا روايت نقل سوی دی چې که اصلي ګواه په يو داسې ځای کې وي چې که هغه سهار د ګواهي اداء کولو لپاره له خپل کور څخه روان سي نو بيا ماښام کور ته نه سي را رسېدلی، نو په دې صورت کې د هغه لپاره پر شهادة على الشهادة عمل کول (بل څوک د ځان ګواه جوړول) جائز دي؛ ځکه چې په داسې کولو سره د حقدار کس حق هم ژوندی کېږي او په دې کې د اصل ګواه لپاره آساني هم ده.

لېکن مشايخ رَحِمَهُمُ الله وايي چې اول قول يعني د سفر د موت قول احسن او ډېر غوره دی؛ ځکه چې په همدومره مسافه سره شرعاً عاجز والی ثابتېږي، نو دا قول د شرعي حکم موافق دی او کوم قول چې د شرعي حکم موافق وي، هغه به يقيناً احسن وي، نو ځکه دا قول به احسن وي. او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په قول کې د خلکو لپاره ډېره آساني ده، همدا قول فقيه ابو الليث سمرقندي او نورو ډېرو مشايخو هم اختيار کړی دی.

(علامه بدر الدين عيني رَحِمَهُ الله ليکلي دي چې له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې شهادة على الشهادة په هر صورت کې جائز دی، مثلاً که د اصلي ګواه کور د مسجد په يوه طرف کې وي او د فرعي ګواه کور د مسجد په بل طرف کې وي، نو هم شهادة على الشهادة جائز دی).

## د فرعي ګواهانو له طرفه د اصل ګواهانو د تعديل کولو حکم

قَالَ: فَإِنْ عَدَّلَ شُهُودَ الْأَصْلِ شُهُودُ الْفَرْعِ فرمايي: او که چيرې فرعي ګواهان د اصل ګواهانو تعديل وکړي جَازَ نو [دا] جائز دي لِأَنَّهُمْ مِنْ أَهْلِ التَّزْكِيَةِ ځکه چې فرعي ګواهان د تعديل کولو اهل دي وَكَذَا إِذَا شَهِدَ شَاهِدَانِ فَعَدَّلَ أَحَدُهُمَا الْآخَرَ او همدارنګه که دوه ګواهان يو ګواهي ورکړي بيا په دوی کې يو بل ته تعديل وکړي صَحَّ نو [دا هم] صحيح دي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ

ذکر کړي [چي فرعي ګواهان د تعدیل کولو اهل دي] غَايَةُ الْأَمْرِ أَنَّ فِيهِ مَنْفَعَةً ها! دا ویل کېدای سي چي په دې کي د تعدیل کونکي نفع سته مِنْ حَيْثُ الْقَضَاءِ بِشَهَادَتِهِ د هغه پر ګواهی د قاضي د فیصله کولو په اعتبار سره لَكِنَّ الْعَدْلَ لَا يُتَّهَمُ بِمِثْلِهِ لېکن عادل کس په داسي شبهي سره نه متهم کيږي كَمَا لَا يُتَّهَمُ فِي شَهَادَةِ نَفْسِهِ لکه څرنګه چي هغه د خپل ذات په ګواهی کي نه متهم کيږي كَيْفَ وَأَنَّ قَوْلَهُ مَقْبُولٌ فِي حَقِّ نَفْسِهِ او څنګه به هغه متهم سي حال دا چي د هغه قول د خپل ذات په حق کي مقبول دی وَإِنْ رُدَّتْ شَهَادَةُ صَاحِبِهِ که څه هم د هغه د ملګري ګواهي رد کړل سي فَلَا تُهْمَةَ نو ځکه به هیڅ تهمت [او شبهه] نه وي.

**اللغات**: ﴿عدّل﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: تعدیل کول، عادل ګرځول، د عدالت تصدیق کول (چي هو! هغوی عادلان دي)، ﴿غاية الأمر﴾ انتهائي خبره (یعني په آخر کي کم از کم دا خبره او اعتراض کېدای سي)، ﴿منفعة﴾ نفع، فایده.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چیري فرعي ګواهان د قاضي په مجلس کي د اصلي ګواهانو تعدیل وکړي (یعني ووایي چي مونږ اصلي ګواهان پېژنو، هغوی بالکل عادلان دي، لهذا ته بې غمه وسه!)، او د فرعي ګواهانو عادل والی قاضي ته معلوم وي یعني قاضي په دې خبر وي چي دغه تعدیل کونکي فرعي ګواهان په خپله عادلان دي، نو په دې صورت کي د اصل ګواهانو په حق کي د دوی تعدیل کول جائز او معتبر دي (یعني په دې صورت کي به قاضي د فرعي ګواهانو پر وینا اکتفاء کوي او اصلي ګواهان به عادلان ګني، نور تحقیق به نه پسي کوي)؛ ځکه چي دوی د خپل عادل والي په وجه د تعدیل او تزکیه کولو مستحق او اهل دي، ځکه عادل کس د دې صلاحیت او هلیت لري چي د بل چا تعدیل او تزکیه وکړي (یعني د مُعدِّل جوړېدلو صلاحیت لري)، نو ځکه د دوی تعدیل معتبر دی.

همدارنګه که دوه ګواهان مثلاً خالد او حامد په یوه معامله کي ګواهي ورکړي، او قاضي فقط د خالد په عادل والي خبر وي لېکن د حامد په عادل والي بالکل خبر نه وي چي هغه څه بلا دی؟، نو د کوم یوه په عادل والي چي قاضي خبر دی یعني خالد که هغه د خپل ملګري (حامد) تعدیل وکړي، نو دا هم جائز او معتبر دی؛ ځکه چي خالد د خپل عادل والي په وجه د تعدیل کولو اهل دی، نو ځکه د هغه تعدیل معتبر دی.

غاية الأمر الخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي دلته دا اعتراض کېدلی سي چي په دې تعدیل کي د معدل (تعدیل کونکي) یعني د خالد (او فرعي ګواهانو) نفع سته، په دې توګه چي د هغه په تعدیل کولو

سره د دويم ګواه يعني د حامد ګواهي هم مقبوله ګرځي او د دواړو پر ګواهي فيصله کيږي، لېکن که چيرې خالد د خپل ملګري حامد تعديل نه واى کړى نو قاضي به د هغه د ملګري حامد ګواهي نه قبلولاى (ځکه چي د نا عادل کس ګواهي نا مقبوله ده) او خالد به تنها پاته سوي واى نو ځکه د هغه ګواهي به هم نا مقبوله واى، لېکن کله چي هغه د خپل ملګري حامد تعديل وکړى نو د دې په نتيجه کي په خپله د هغه ګواهي هم مقبوله وګرځېده او د قاضي د فيصلې لپاره اماده سوه. لنډه دا چي په دې تعديل کي د معدل (تعديل کونکي) يو ډول نفع سته. نو ځکه معدل يعني خالد به په خپل تعديل کولو کي متهم وي، او کوم څوک چي په خپل تعديل کي متهم وي د هغه تعديل کول معتبر نه دي، نو ځکه د خالد تعديل کول هم نا معتبر کېدل پکار دي، لېکن تاسو هغه معتبر ګرځولى دى، څه وجه ده؟.

د دې جواب دا دى چي د کوم ګواه عادل والى چي قاضي ته معلوم دى يعني خالد، څرنګه چي هغه په خپله عادل دى او عادل انسان په داسي شبهاتو سره نه متهم کيږي، نو ځکه هغه به هم نه متهم کيږي.

لکه څرنګه چي د هغه د خپل ذات په ګواهي کي هم دا تهمت او شبهه سته، په دې توګه چي خلک دا وېلاى سي چي حامد ځکه په ګواهي ورکولو کي ځان مخته مخته کوي چي په خلکو کي دا خبره مشهوره سي چي قاضي د هغه خبره مني او د هغه پر ګواهي فيصله کوي نو هغه ډېر معتمد او معتبر سړى دى. لېکن بيا هم په دې تهمت سره د هغه پر عادل والي هيڅ اثر نه لوېږي بلکي هغه عادل او مقبول الشهادة پاتيږي، نو همداسي به په دې مسئله هم کي د مذکوره نفع په تهمت سره د هغه پر عادل والي (عدالت) هيڅ اثر نه لوېږي او د هغه تعديل کول به جائز او صحيح وي.

كيف وأنَّ إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دغه مُعدل د نا متهم والي نور وضاحت کوي فرمايي: دا معدل (خالد) به څنګه متهم وګرځي!، حال دا چي د ده قول (ګواهي) في نفسه په هغه صورت کي هم مقبوله ده کله چي دئ د خپل ملګري (حامد) تعديل نه وکړي، او که څه هم د تعديل نه کولو په وجه د ده د ملګري ګواهي رد کړى سي، خو بيا هم د ده (خالد) ګواهي في نفسه معتبره ده او کله چي دئ (خالد) د بل عادل کس سره يو ځاى سي نو په ده سره د ګواهي نصاب پوره کيږي او بيا د ده ګواهي مقبوله ګرځي او قاضي فيصله پر کولاى سي.

تاسي او ګورئ! دلته د تعديل په پرېښوولو سره د معدل (خالد) هيڅ نفع فوت نه سوه بلکي بيا هم د ده ګواهي معتبره ده، او د ده په عادل والي کي هيڅ نقص نه دى راغلى، او کله چي د تعديل پرېښوولو په وجه د هغه هيڅ نفع نه فوتيږي نو ښکاره خبره ده چي په تعديل کولو سره هغه ته هيڅ نفع نه حاصليږي، او کله چي په تعديل کولو سره هغه ته هيڅ نفع نه حاصليږي، نو هغه به په خپل تعديل کي متهم هم نه وي، او کله چي هغه متهم نه دى، نو ځکه د هغه تعديل کول به بېله شکه جائز وي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

قَالَ: وَإِنْ سَكَتُوْا عَنْ تَعْدِيْلِهِمْ فرمايي: او كه چيري فرعي ګواهان د اصل ګواهانو د تعديل په باره کي چپ پاته سي جَازَ نو [هم د فرعي ګواهانو ګواهي] جائز ده وَنَظَرَ الْقَاضِيْ فِيْ حَالِهِمْ بيا به قاضي د اصل ګواهانو په حالت کي غور [او تحقيق] کوي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ او دا [حکم] د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ❁: لَا تُقْبَلُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [د هغو] ګواهي به نه قبلول کيږي لِأَنَّهٗ لَا شَهَادَةَ إِلَّا بِالْعَدَالَةِ ځکه چي ګواهي فقط په عدالت [عادل والي] سره ګواهي ده فَإِذَا لَمْ يَعْرِفُوْهَا لهذا کله چي فرعي ګواهان د اصل ګواهانو عدالت نه پيژني [يعني د هغو د عدالت په باره کي معلومات نه لري] لَمْ يَنْقُلُوا الشَّهَادَةَ نو [دا داسي ده لکه چي] هغو د اصل ګواهانو ګواهي [د قاضي په مجلس کي] نه ده نقل کړې فَلَا يُقْبَلُ نو ځکه به دا ګواهي نه قبلول کيږي وَلِأَبِيْ يُوْسُفَ: أَنَّ الْمَأْخُوْذَ عَلَيْهِمُ النَّقْلُ دُوْنَ التَّعْدِيْلِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي په فرعي ګواهانو باندي فقط نقل کول واجب دي، نه تعديل کول لِأَنَّهٗ قَدْ يَخْفٰى عَلَيْهِمْ ځکه ځيني وخت پر دوی د اصل ګواهانو حالت پټ وي وَإِذَا نَقَلُوْا او کله چي دوی [د اصل ګواهانو] ګواهي نقل کړي يَتَعَرَّفُ الْقَاضِي الْعَدَالَةَ نو قاضي به [په خپله] د هغو د عدالت معلومات [او پوښتنه] کوي كَمَا إِذَا حَضَرُوْا بِأَنْفُسِهِمْ وَشَهِدُوْا لکه کله چي اصل ګواهان په خپله حاضر سي او ګواهي ورکړي [نو قاضي د هغو د عدالت معلومات او پوښتنه کوي].

**اللغات**: ﴿يتعرّف﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: معلومات حاصلول، تحقيق او پلټنه کول. (اثمار الهدايه)

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که قاضي له فرعي ګواهانو څخه د اصل ګواهانو د عدالت (عادل والي) په باره کي پوښتنه وکړه، ليکن هغو په دې باره کي خاموشي اختيار کړه يا هغو وويل چي موږ ته د اصل ګواهانو د عدالت په باره کي هيڅ معلومات نسته، نو په دې صورتونو کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د فرعي ګواهانو ګواهي خو جائز ده ليکن قاضي به د اصل ګواهانو په حالت کي

---

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر الحلواني أن القاضي يقبل شهادتهما ويسأل عن الأصول، وهو الصحيح (البحر الرائق ج:٧، ص:١٢٢)، وكذا في رد المحتار (مجمع الانهر ج:٣، ص:٢٠٦). [القول الراجح ج:٢، ص:١٤٣]

غور کوي، يعني له فرعي ګواهانو څخه بغير له نورو مُزکّي او عادلو کسانو څخه به داصل ګواهانو په باره کي پوښتنه او تحقيق کوي، نو که چيري نور مُزکّي کسان د هغو تعديل وکړي (چي اصل ګواهان موږ پېژنو، هغوی بالکل عادلان دي) نو قاضي به د فرعي ګواهانو ګواهي قبلوي او پر دې ګواهي به فيصله صادروي، او که چيري نور کسان د هغو تعديل نه وکړي نو قاضي به پر دې ګواهي فيصله نه کوي او دا به نه قبلوي. امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې صورتونو کي به د فرعي ګواهانو ګواهي نه قبلول کيږي.

**د امام محمد ليل**: دا دی چي د فرعي ګواه ګواهي ځکه قبلول کيږي چي هغه داصل ګواه د ګواهي نقل ده، او داصل ګواه ګواهي له عدالته بغير ګواهي نه پاتيږي، ځکه له عدالته (عادل والي) بغير د هيڅ ګواه ګواهي د ګواهي په لسټ کي نه شمارل کيږي، لهذا کله چي دلته فرعي ګواهانو ته داصل ګواهانو د عدالت هيڅ معلومات نسته نو بغير له عدالته به داصل ګواهانو ګواهي نه ثابتيږي، او کله چي داصل ګواهانو ګواهي ثابته نه سوه نو دفرعي ګواهانو له طرفه به د هغو د ګواهي نقل کول هم ثابت نه سي، او کله چي د فرعي ګواهانو له طرفه داصل ګواهانو د ګواهي نقل کول ثابت او موجود نه سوه، نو د فرعي ګواهانو ګواهي به قبلول کيږي هم نه.

**د امام ابو يوسف دليل**: دا دی چي پر فرعي ګواهانو فقط د ګواهي نقل کول لازم دي او دا خبره پر لازم نه ده چي هغوی به د خپل اصل ګواهانو تعديل کوي؛ ځکه ځيني وخت پر فرعي ګواهانو داصل ګواهانو حالت او عدالت مخفي وي او په هغه خبر يدل مشکل وي، نو پر هغو فقط د ګواهي نقل کول واجب دي، لهذا کله چي هغو د قاضي مخته ګواهي نقل کړه (بيان کړه) نو د هغو غاړي خلاصي سوې او خپله ذمه واري يې پوره کړه، نو تر دې وروسته به قاضي په خپله له نورو کسانو څخه داصل ګواهانو په باره کي پوښتنه کوي، نو که چيري نور مُزکّي او عادل کسان داصل ګواهانو تعديل وکړي نو قاضي به پر دغه ګواهي فيصله کوي، کنې فيصله به نه کوي. لکه څرنګه چي په هغه وخت کي دا حکم دی کله چي اصل ګواهان په خپله حاضر سي نو قاضي د هغو له مُزکّيانو څخه د هغوه د عدالت پوښتنه کوي (لکه مخکي چي ذکر سوه)، همداسي به په دې صورت کي هم قاضي په نورو عادلو کسانو سره د اصل ګواهانو د عدالت په باره کي تحقيق او پوښتنه کوي او له دوی څخه به د هغو معلومات تر لاسه کوي.

## د پورتني مسئلې بل صورت

قَالَ: وَإِنْ أَنْكَرَ شُهُوْدُ الْأَصْلِ الشَّهَادَةَ فرمايي: او که اصل ګواهان د ګواهي انکار وکړي لَمْ تُقْبَلْ شَهَادَةُ الشُّهُوْدِ الْفَرْعِ نو د فرعي ګواهانو ګواهي به نه قبلول کيږي لِأَنَّ التَّحْمِيْلَ لَمْ يَثْبُتْ ځکه چي دلته تحميل [ګواه جوړول] ثابت نه سوه لِلتَّعَارُضِ بَيْنَ الْخَبَرَيْنِ ځکه [د اصلي او فرعي ګواهانو] د

خبرونو په مینځ کي تعارض دی وَهُوَشَرْطٌ حال دا چي تحمیل شرط دی.

**اللغات**: ﴿تحمیل﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: پر یو چا د ګواهی بار او ذمه واري اچول، ګواه جوړول. ﴿تعارض﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: باهمي مخالفت، یو د بل مخالف کېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي که فرعي ګواهانو د قاضي په مجلس کي د اصل ګواهانو ګواهي نقل او بیان کړه، لېکن کله چي له اصل ګواهانو څخه پوښتنه وسوه نو هغو له دغه ګواهۍ څخه انکار وکړی چي په دې معامله کي زموږ لپاره هیڅ ګواهي نسته او موږ هیڅوک ګواه نه دی جوړ کړی، نو په دې صورت کي به د فرعي ګواهانو ګواهي نه قبلول کیږي؛ ځکه چي د ګواهۍ د قبلېدلو لپاره تحمیل شرط دی یعني دا ضروري ده چي اصل ګواهانو به هغه د ځان ګواهان جوړ کړي وي، لېکن کله چي اصل ګواهانو له ګواهۍ څخه انکار وکړی نو د دوی او د هغو د خبرو په مینځ کي د تعارض په وجه تحمیل ثابت نه سو، او کله چي تحمیل ثابت او موجود نه سو، نو ښکاره خبره ده چي ګواهي به هم نه قبلول کیږي؛ ځکه چي تحمیل شرط دی.

## د شهادة علی الشهادة په جزئیاتو کي اختلاف

وَإِذَا شَهِدَ رَجُلَانِ عَلَى شَهَادَةِ رَجُلَيْنِ عَلَى فُلَانَةَ بِنْتِ فُلَانٍ الْفُلَانِيَّةِ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ او که دوه خلک د دوو خلکو پر ګواهۍ دا ګواهي ورکړي چي پر فلانکۍ ښځي کوم چي د فلانکي لور او فلان قوم والا ده زر درهمه قرض باندي دی وَقَالَا: أَخْبَرَانَا أَنَّهُمَا يَعْرِفَانِهَا او هغه دواړو [فرعي ګواهانو] وویل: چي موږ ته اصل ګواهانو دا خبر راکړی دی چي هغوی دا ښځه پېژني فَجَاءَ بِامْرَأَةٍ بیا مدعي یوه ښځه راوستله وَقَالَا: لَا نَدْرِيْ أَهِيَ هٰذِهٖ أَمْ لَا او فرعي ګواهانو وویل: موږ ته معلومه نه ده چي آیا هغه دا ښځه ده، که نه؟ فَإِنَّهُ يُقَالُ لِلْمُدَّعِيْ هَاتِ شَاهِدَيْنِ يَشْهَدَانِ أَنَّهَا فُلَانَةُ نو مدعي ته به ویل کیږي: چي ته دوه داسي ګواهان راوله! چي هغوی دا ګواهي ورکړي چي دا هماغه فلانکۍ ښځه ده لِأَنَّ الشَّهَادَةَ عَلَى الْمَعْرِفَةِ بِالنِّسْبَةِ قَدْ تَحَقَّقَتْ ځکه چي د نسب پر پېژندګلوۍ خو ګواهي موجوده سوه وَالْمُدَّعِيْ يَدَّعِي الْحَقَّ عَلَى الْحَاضِرَةِ او مدعي پر موجوده ښځه د حق دعویٰ کوي وَلَعَلَّهَا غَيْرُهَا حالانکي ممکنه ده چي دا له هغه څخه بغیر بله ښځه وي فَلَا بُدَّ مِنْ تَعْرِيْفِهَا بِتِلْكَ النِّسْبَةِ نو ځکه په همدې نسب سره د هغې پېژندل [تعیین کول] ضروري دي [چي آیا دا د هماغه نسب والا ښځه ده کوم

چې مدعي وېلې دي [ وَنَظِيرُ هٰذَا إِذَا تَحَمَّلُوا الشَّهَادَةَ بِبَيْعِ مَحْدُودَةٍ بِذِكْرِ حُدُودِهَا او د دې مثال دا دی لکه کله چې ګواهي اداء کونکي خلک د داسې حد لرونکي شي [مثلاً د ځمکې] ګواهان جوړ سي چې د هغه حدود [هم] ذکر کړل سوي وي وَشَهِدُوا عَلَى الْمُشْتَرِي او هغوی پر مشتري ګواهي ورکړي لَا بُدَّ مِنْ آخَرَيْنِ يَشْهَدَانِ عَلَى أَنَّ الْمَحْدُودَ بِهَا فِي يَدِ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ نو [په دې صورت کې هم د مدعي لپاره] دوه ګواهان ضروري دي چې هغوی به پر دې خبره ګواهي ورکوي چې دغه حد لرونکی شی کوم چې د حدود سره ذکر سوی دی [دا] د مدعیٰ علیه په قبضه کې دی وَكَذَا إِذَا أَنْكَرَ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ أَنَّ الْحُدُودَ الْمَذْكُورَةَ فِي الشَّهَادَةِ حُدُودُ مَا فِي يَدِهِ او همدارنګه کله چې مدعیٰ علیه د دې خبرې انکار وکړي چې کوم حدود په ګواهۍ کې ذکر سوي دي [دا] د هغه شي حدود نه دي کوم چې زما په قبضه کې دی [نو په دې صورت کې به هم مدعي ته ویل کېږي چې دوه نور ګواهان پېش کړه!...].

**اللغات**: ﴿الفلانيّة﴾ د دې لفظ په آخر کې "یاء مشدده" د نسبت یاء ده. مراد: فلاني قوم او پښې والا. ﴿لاندري﴾ د ضرب د باب نفي صیغه ده: موږ خبر نه یو، موږ ته معلومه نه ده. ﴿هاتِ﴾ د واحد مذکر امر حاضر صیغه ده، مؤنث یې "هَاتِي" راځي: راوړه!، راکړه! (مصباح منير). ﴿محدود﴾ ټاکلي حد والا، معلوم حد لرونکی شی، چې د هغه حدونه (طرفونه) معلوم وي. لکه دیو سړي ځمکه، کور او داسې نور. ﴿حدود﴾ جمع د حَدٌّ ده: طرفونه، خواوې. مطلب یې دا دی چې مدعي او ګواهان دا خبره هم ذکر کړي چې د دې ځمکې یا کور د مشرق، مغرب، جنوب او شمال وطرفونو ته د فلانکي او فلانکي خلکو ځایونه او ځمکې دي. (اثمار الهدايه)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د دوه اصل ګواهانو پر ګواهۍ دوه فرعي ګواهانو دا ګواهي ورکړه چې پر فلانه بنت فلان فلانیه مثلاً پر فاطمه بنت خالد قریشیه (قریشي قوم والا) باندې د فلانکي مدعي مثلاً د سعید زر درهمه واجب دي، او اصل ګواهانو موږ ته دا خبر راکړی دی چې هغوی دا ښځه پېژني. بیا مدعي (سعید) یوه ښځه پېش کړه او ویې ویل چې همدا فاطمت بنت خالد قریشیه ده. لېکن فرعي ګواهانو وویل چې موږ یې نه پېژنو چې دا هغه ده، که نه؟ نو په داسې صورت کې به قاضي مدعي (سعید) ته وايي چې ته دوه نور داسې ګواهان پېش کړه! کوم چې پر دې خبره ګواهي ورکړي چې مقروضه ښځه یعني فاطمه بنت خالد قریشیه همدا ښځه ده. نو که چیرې مدعي پر دې خبره ګواهي پېش کړي نو بیا به قاضي پر دغه ښځې (فاطمه بنت خالد) د زر درهمو فیصله کوي چې هغه به دا مدعي (سعید) ته ورکوي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې مسئله کي پر مدعي دوهٔ نور ګواهان پېشول ځکه ضروري دي چي د مقروضه (پور وړي) ښځي د نسب اوږز درهمو باره کي خو فرعي ګواهانو ګواهي ورکړې ده يعني هغو ويلي دي چي پر فاطمه بنت خالد د فلانکي سړي زر درهمه واجب دي، لېکن هغو ته دا په يقين سره معلومه نه ده چي مقروضه ښځه همدا ده. لهذا کله چي هغو ته دا په يقيني توګه معلومه نه ده، نو دا امکان سته چي مقروضه ښځه به له دې څخه بغير بله ښځه وي. نو ځکه د مقروضه ښځي د تعيين او پېژندګلوۍ لپاره پر مدعي دوه نور ګواهان پېشول ضروري دي.

د دې مسئلې مثال دا دی لکه يو سړی چي دعویٰ وکړي چي زما همسايه زيد پر حامد خپله ځمکه خرڅه کړې او حامد (مشتري) پر ځمکي قبضه وکړه او د هغه ځمکي څلور سره حدود دا دي (يعني مدعي سړي د ځمکي څلور سره حدود او طرفونه هم بيان کړل چي د مشرق په طرف کي يې د فلانکي سړي ځمکه يا کور دی او د جنوب په طرف کي يې د فلانکي سړي ځای دی او داسي نور)، او بيا دغه مدعي سړي وويل چي په دې ځکمه کي ما ته د شفعي حق حاصل دی (ځکه چي زيد زما همسايه دی) لهذا دا ځمکه دي پر ما خرڅه کړل سي، لېکن مشتري (حامد) انکار وکړي چي زما په قبضه کي د داسي حدودو والا هيڅ ځمکه نسته، بيا دغه مدعي سړي (کوم چي د شفعي حق غواړي) دوه ګواهان پېش کړل، او ګواهانو داسي ګواهي ورکړه چي موږ ته خو دا معلومه ده چي حامد له زيد څخه ځمکه رانيولې ده چي د هغه حدود اربعه دا دي، لېکن موږ ته په يقيني توګه دا معلومه نه ده چي هغه کومه ځمکه ده، نو په دې صورت کي به هم قاضي مدعي ته وايي چي وروره! دوه نور داسي ګواهان پېش کړه! چي هغوی پر دې خبره ګواهي ورکړي چي کومه ځمکه او حدود اربعه چي مدعي او ګواهانو ذکر کړي دي، خاص هماغه ځمکه په هماغه حدودو سره د مدعیٰ عليه (حامد) په قبضه کي موجوده ده، نو که چيري مدعي پر دې خبره دوه نور ګواهان پېش کړي نو قاضي به د هغه لپاره د شفعي فيصله کوي. لنډه دا چي څرنګه په دې صورت کي د ځمکي د تعيين او پېژندګلوۍ لپاره پر مدعي دوه نور ګواهان پېشول ضروري دي، همداسي به په پورتنی مسئله کي هم د مقروضه ښځي د تعيين لپاره مدعي دوه نور ګواهان پېشوي.

**وكذا إذا الخ:** د متن د مسئلې دويم مثال دا دی چي که يو سړی دعویٰ وکړي چي د فلانکي سړي مثلاً د زيد په قبضه کي زما کور دی او د هغه حدود اربعه دا دي او زيد په ناحقه توګه پر هغه قبضه کړې ده، او د دې مدعي سړي ګواهانو هم دا ګواهي ورکړه چي کوم حدود اربعه چي مدعي ذکر کړي دي، د همدې حدودو والا کور د مدعي ملکيت دی او مدعیٰ عليه (زيد) پر هغه ناحقه قبضه کړې ده، لېکن مدعیٰ عليه (زيد) وويل چي کوم کور زما په قبضه کي دی د هغه کور حدود اربعه داسي نه دي کوم چي ګواهانو ذکر کړي دي (بلکي د هغه د مشرق، مغرب، جنوب او شمال په طرفونو کي د فلانکي او فلانکي خلکو ځايونه دي، نه د فلانکي او فلانکي)، لنډه دا چي کوم حدود په ګواهۍ کي ذکر سوي دي مدعیٰ عليه (زيد) له هغه څخه انکار وکړي چي د دې حدودو والا کور زما په قبضه کي نه دی، نو په دې صورت کي به هم قاضي مدعي ته د دوه نورو ګواهانو د پېشولو حکم

کوي چې هغوی به پر دې خبره ګواهي ورکوي چې د مدعیٰ علیه (زید) په قبضه کې د هماغه حدودو والا کور دی کوم چې مدعي او ګواهانو ذکر کړي دي. نو څرنګه چې په دې مسئله کې له مدعي څخه د دوه نورو ګواهانو مطالبه سوې ده، همداسې به د متن په مسئله کې هم له مدعي څخه د دوه نورو ګواهانو مطالبه کیږي.

## د ګواهۍ په باره کې د قاضي د خط حکم

قَالَ: وَكَذَا كِتَابُ الْقَاضِيْ إِلَى الْقَاضِيْ فرمايي: او همدا حکم د کتاب القاضي إلى القاضي هم دی لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الشَّهَادَةِ عَلَى الشَّهَادَةِ ځکه چې هغه [هم] د شهادة على الشهادة په معنیٰ سره دی إِلَّا أَنَّ الْقَاضِيَ لِكَمَالِ دِيَانَتِهِ وَوُفُوْرِ وِلَايَتِهِ يَنْفَرِدُ بِالنَّقْلِ مګر دا چې قاضي د خپل کامل دیانت او بشپړ ولایت په وجه [د اصل ګواه د ګواهۍ] په نقل کولو کې یوازینی دی.

**اللغات:** ﴿کتاب﴾ په معنیٰ سره د مکتوب دی، یعني "خط"، ﴿وفور﴾ د ضرب د باب مصدر دی: پوره کېدل، بشپړ کېدل، ﴿دیانة﴾ دینداري (دین والي)، ملت او مذهب، ماکان بین الانسان وربه، ﴿یتفرد﴾ متفرد کېدل، یوازینی کېدل (په یو کمال کې یوازي کېدل).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یوه قاضي د بل ښار وقاضي ته خط واستوی او په هغه کې یې ولیکل چې "زما سره دوو خلکو دا ګواهي ورکړه چې د فلان بن فلان پر فلاني سړي (مثلا پر زید) پنځه سوه درهمه واجب الاداء دي، لهذا ته پر مقروض (زید) د پنځه سوه درهمو فیصله وکړه"، کله چې دویم قاضي ته خط ورسېدی نو هغه پر مقروض (زید) د پنځه سوه درهمو فیصله وکړه، لیکن هغه انکار وکړی او ویې ویل چې زه مقروض او مدعیٰ علیه نه یم، نو په دې صورت کې به دویم قاضي له مدعي څخه د دوه داسې ګواهانو مطالبه کوي کوم چې دا ګواهي ورکړي چې دا هماغه مقروض او مدعیٰ علیه دی کوم چې اول قاضي په خپل خط کې ذکر کړی دی.

دلیل دا دی چې کتابُ القاضي إلى القاضي هم د شهادة على الشهادة په معنیٰ سره دی؛ ځکه څرنګه چې فرعي ګواه د اصل ګواه ګواهي نقل کوي، همداسې کاتب قاضي هم (د خط او لیکنې) په ذریعه د اصل ګواه ګواهي نقل کوي.

إلا أن القاضي إلخ: دا د یو اعتراض جواب دی، اعتراض دا دی چې کله کتاب القاضي إلى القاضي د شهادة على الشهادة په معنیٰ سره دی، نو باید کاتب قاضي دوه کسان (دوه قاضیان) وای، ځکه چې د یوه اصل ګواه د ګواهۍ نقل کولو لپاره دوه فرعي ګواهان پکار دي.

نو د دې جواب دا دی چې قاضي په خپل امانت او دینداري کې کامل وي او د هغه ولایت هم د خپل ښار پر عوامو پوره او بشپړ وي، نو ځکه یوازي یو قاضي هم د نقل کولو لپاره کافي دی.

## د نسبت کولو په هکله قاعده او تفصیل

وَلَوْ قَالُوْا إِلٰى هٰذَيْنِ الْبَابَيْنِ التَّمِيْمِيَّةُ او که چیري په دې دوو صورتونو کې ګواهانو [د ښځې په نسبت کې] تمیمیه ووېل لَمْ يَجُزْ حَتّٰى يَنْسُبُوْهَا إِلٰى فَخِذِهَا نو دا جائز نه دي تر دې چې ګواهان د خپل خاص ښځې [خاندان] وطرف ته د هغې نسبت وکړي وَهِيَ الْقَبِيْلَةُ الْخَاصَّةُ او "فخذ" خاص قبیله ده [یعني فخذ په قوم کې خاص ښځې ته وایې] وَهٰذَا لِأَنَّ التَّعْرِيْفَ لَا بُدَّ مِنْهُ فِيْ هٰذَا او دا حکم ځکه دی چې په دې [صورتونو] کې پېژندګلوي [او پېژندل] ضروري دي وَلَا يَحْصُلُ بِالنِّسْبَةِ إِلَى الْعَامَّةِ او پېژندګلوي په عام نسبت سره نه حاصلیږي وَهِيَ عَامَّةٌ إِلٰى بَنِيْ تَمِيْمٍ او دا [تمیمیه] عام نسبت دی د بنو تمیم وطرف ته په نسبت کولو سره لِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يُحْصَوْنَ ځکه چې هغوی یو داسې قوم دی کوم چې نه سي شمارل کېدای [یعنی د دې قوم کسان له شمېره وتلي دي] وَيَحْصُلُ بِالنِّسْبَةِ إِلَى الْفَخِذِ او د "فخذ" وطرف ته په نسبت کولو سره پېژندګلوي [تعارف] حاصلیږي لِأَنَّهَا خَاصَّةٌ ځکه چې دا خاص نسبت دی وَقِيْلَ: الْفَرْغَانِيَّةُ نِسْبَةٌ عَامَّةٌ وَالْأُوْزْجَنْدِيَّةُ خَاصَّةٌ او وېل سوي دي: چې فرغانیه عام نسبت دی او اوزجندیه خاص نسبت دی وَقِيْلَ: السَّمَرْقَنْدِيَّةُ وَالْبُخَارِيَّةُ عَامَّةٌ او وېل سوي دي: چې سمرقندیه او بخاریه عام نسبت دی وَقِيْلَ: إِلَى السِّكَّةِ الصَّغِيْرَةِ خَاصَّةٌ وَإِلَى الْمَحَلَّةِ الْكَبِيْرَةِ وَالْمِصْرِ عَامَّةٌ او [دا هم] وېل سوي دي: چې د کوچنی کوڅې [او محلې] وطرف ته خاص نسبت دی او د غټې محلې او ښار وطرف ته عام نسبت دی ثُمَّ التَّعْرِيْفُ وَإِنْ كَانَ يَتِمُّ بِذِكْرِ الْجَدِّ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ خِلَافًا لِأَبِيْ يُوْسُفَ عَلٰى ظَاهِرِ الرِّوَايَاتِ* بیا د ظاهر روایت مطابق د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز (په خلاف د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله) که څه هم د نیکه په ذکر کولو سره تعریف پوره کیږي فَذِكْرُ الْفَخِذِ يَقُوْمُ مَقَامَ الْجَدِّ لیکن بیا هم د "فخذ" ذکر کول د نیکه قائم مقام کیږي لِأَنَّهُ اسْمُ الْجَدِّ الْأَعْلٰى ځکه چې "فخذ" د پورتني نیکه نوم دی فَنُزِّلَ مَنْزِلَةَ الْجَدِّ الْأَدْنٰى نو ځکه هغه به د لاندیني نیکه په درجه ګرځول کیږي.

---

* القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة ابراهيم الحلبي رَحِمَهُ الله: والتعريف يتم بذكر الجد او بنسبة خاصة (ملتقى الابحر ج:٣، ص:٢٩٧)، و بحر الرائق (ج:٧، ص:١٢٥). [القول الراجح ج:، ص:١٤٤]

**اللغات:** ﴿فخذ﴾ خاندان، په قوم کي جلا ښنه، خاص ښنه، پوره تفصيل به د تشريح په آخر کي ذکر سي، ﴿أُوْزْجَنَدِيَّة﴾ د اوزجند وطرف ته نسبت دئ، چي هغه ته اوزکند هم ويل کيږي، صاحب د معجم يې داسي تعريف کړی دی" بالضم والواو والزاي ساكنان: بلد بما وراء النهر من نواحي فرغانة" (يعني د الف په ضمه سره او د واو او زاء په سکون سره، په ما وراء النهر کي يو ښار ګوټی دی کوم چي د "فرغانه" يو علاقه او ولسوالي ده)، ﴿سِكَّة﴾ کوڅه (ګلی).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که په شهادة على الشهادة او كتاب القاضي إلى القاضي کي ګواهان د مقروضه ښځي نسبت د هغې د عام قوم وطرف ته وکړي، مثلاً داسي ووايي چي پر "فاطمه بنت خالد تميميه" باندي د فلاني سړي زر درهمه واجب دي، نو په دې عام نسبت سره ګواهي ورکول جائز نه دي، ها! که چيري ګواهان مقروضه ښځه خپل د خاص ښنې يعني د فخذ وطرف ته منسوبه کړي او ګواهي ورکړي، نو دا جائز دي؛ دليل دا دی چي په نسبت بيانولو سره مقصود پېژندګلوي (ور پېژندل) وي، او يو انسان هغه وخت پوره پېژندل کيږي کله چي د خپل خاص ښنې او خاندان وطرف ته منسوب کړل سي، نه د عام قوم او قبيلې وطرف ته، او څرنګه چي په دې مسئله کي مقروضه ښځه د "بنو تميم" وطرف ته منسوبه کړل سوې ده، نو ځکه په دې سره د ښځي پوره تعارف او اصل څېره نه ښکاره کيږي؛ ځکه چي بنو تميم يو ډېر غټ قوم دی او د هغه افراد بې شمېره دي او په يوه نامه ډېر خلک پکښي سته، نو ځکه د تعارف او پېژندګلوۍ په وخت کي د خاص ښنې او خاندان (فخذ) وطرف ته نسبت کول ضروري دي، ځکه مقصود همدا پېژندګلوي او تعارف دی، او کله چي دا حاصل نه سي نو ګواهي به هم معتبره نه وي.

وقيل إلخ: مخکي د پلار او قوم وطرف ته د نسبت کولو بيان وسو، اوس له دې ځايه په ښار او محله سره د تعارف کولو تفصيل بيانوي، نو فرمايي د ځيني حضراتو رايه دا ده چي د "فرغانه" علاقې وطرف ته نسبت کول يو عام نسبت دی يعني په دې سره تعارف او پېژندګلوي نه حاصليږي، ځکه چي فرغانه يو غټ ولايت او غټه سيمه ده (کوم چي د علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله استوګنځی وو، او اوس د أزبکستان په حصه کي واقع ده. ليکن اوس په دې نامه سره شهرت نه لري)، ليکن د دې ولايت د يو خاص علاقې "اوزجند" وطرف نسبت کول يو خاص نسبت دی او په دې سره تعارف حاصليږي.

د ځيني نورو حضراتو رايه دا ده چي د سمرقند او بخارا وطرف ته نسبت کول عام نسبت دی. ځکه چي هغه غټ ښارونه دي، او ځيني نور حضرات وايي چي د کوچني محلې او کوڅې وطرف ته نسبت کول خاص نسبت دی او د ښار او غټي محلې او علاقې وطرف ته نسبت کول عام نسبت دی.

تم التعريف إلخ: فرمايي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په تعارف او پيژندګلوۍ کي د پلار سره د نيکه نوم ذکر کول هم ضروري دي، لېکن که يو څوک د نيکه نوم ذکر نه کړي او د هغه پر ځای د فخذ يعني د خاص پښې وطرف ته نسبت وکړي، نو په دې سره هم نسبت او تعريف پوره کيږي؛ ځکه فخذ د پورتني نيکه نوم وي چي د هغه په نامه سره دا پښه مشهوره وي. نو ځکه هغه به د لاندېني نيکه قائم مقام منل کيږي او تعارف به پوره کيږي، همدا ظاهر روايت هم دی، لېکن په دې مسئله کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اختلاف دی، هغه فرمايي که د فخذ وطرف ته نسبت نه وسي او فقط د پلار نوم ذکر سي، نو دا هم کافي دي؛ ځکه د هغه په نيز فقط د پلار په نامه سره هم تعريف پوره کيږي او د نيکه او فخذ (پورتني نيکه) ذکر کولو ته ضرورت نسته.

## ﴿د شعب، قبيله، فخذ او د داسي نورو فرق﴾

په عربي ژبه کي د قوم او قبيلې د پيژندګلوۍ په سلسله کي تقريباً شپږ نومان استعماليږي: ① شعب: د ډيرو قومونو او قبيلو مجموعه ته وايي، مثلاً ربيعه او مضر "شعب" دي (يا مثلاً په پښتو کي ملجي او دُراني د عربي ژبي پر بناء "شعب" دئ)، ② قبيله: دا تر شعب کوچنۍ وي، مثلاً کنانه "قبيله" ده، ③ عمارة: دا تر قبيلې کوچنۍ وي، مثلاً قريش "عماره" ده، ④ بطن: دا تر عمارې کوچنۍ وي. مثلاً قصی "بطن" دی، ⑤ فخذ: له بطن څخه کوچنۍ وي، مثلاً هاشم "فخذ" دی، ⑥ فصيلة: دا له فخذ څخه هم کوچنۍ وي، مثلاً عباس "فصيله" ده.

لکه څرنګه چي په پښتو ژبه کي هم په دې سلسله کي څو الفاظ استعماليږي، مثلاً قوم او ټبر، پښه (خېل)، کهول او داسي نور.



# فَصْلٌ (فِيْ أَحْكَامِ شَهَادَةِ الزُّوْرِ)

## دا فصل (د درواغجني ګواهۍ د احکامو په بیان کې) دی

**تشريح:** څرنګه چې د درواغجنې ګواهۍ هم مستقل او جلا احکام دي، نو ځکه هغوی په جلا فصل کې بیان کړل سوي دي، لېکن څرنګه چې په حقیقت کې "شهادت" رېښتوني ګواهي ته وایي، نو ځکه مخکې د حقیقي شهادت (حقیقي ګواهۍ) احکام بیان کړل سوه، اوس تر هغه وروسته د کاذب شهادت احکام بیانول کیږي. (بنايه ج:۸، ص:۲۳۵)

## د درواغجني ګواهۍ سزا

قَالَ أَبُوْحَنِيْفَةَ: شَاهِدُ الزُّوْرِ أُشَهِّرُهُ فِي السُّوْقِ وَلَا أُعَزِّرُهُ امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمایي: چې د درواغو د ګواهي ورکونکي ګواه زه په بازار کې تشهیر کوم او هغه ته تعزیر نه ورکوم وَقَالَا*: نُوْجِعُهُ ضَرْبًا وَنَحْبِسُهُ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې موږ هغه په وهلو سره درد مند کوو او بند [قید] ورکوو وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لَهُمَا مَا رُوِيَ عَنْ عُمَرَ رضي الله عنه أَنَّهُ* ضَرَبَ شَاهِدَ الزُّوْرِ أَرْبَعِيْنَ سَوْطًا وَسَخَّمَ وَجْهَهُ د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل هغه اثر دی کوم چې له حضرت عمر رضي الله عنه څخه روایت سوی دی: چې هغه دراغجن ګواه اتیا [۸۰] درې ووهی او د هغه مخ یې تور کړی وَلِأَنَّ هٰذِهِ كَبِيْرَةٌ يَتَعَدّٰى ضَرَرُهَا إِلَى الْعِبَادِ او ځکه چې د درواغو ګواهي یو کبیره ګناه ده، چې د هغې ضرر د بندګانو وطرف ته متعدي کیږي وَلَيْسَ فِيْهَا حَدٌّ مُقَدَّرٌ او [شرعاً] په دې کې

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن نجيم رَحِمَهُ الله :قوله ومن أقرّ أنه شهد زوراً، يُشهَّر يُعزّر...وفي السراجية الفتوىٰ على قوله (البحر الرائق ج:۴، ص:۱۲۴)، وكذا قال صاحب رد المحتار: وعُزّر بالتشهير، الفتوىٰ (ج:۴، ص:۴۴۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۴۵]

* تخريج: أخرجه مصنف ابن أبي شيبة، باب شاهد الزور ما يصنع به، ج:۴، ص:۵۵۱، رقم:۲۳۰۴۰. ومصنف عبد ال باب عقوبة شاهد الزور، ج:۸، ص:۲۵۳، رقم:۱۵۴۷۵). **همدارنګه له ولید بن أبي مالک څخه دا روایت نقل دی:**"ان عمر بن الخطاب كتب إلى عُمّاله بالشام في شاهد الزور ان يُجلّد اربعين جلدة وأن يُسخّم وجهه وأن يُحلّق رأسه ويُطال حبسه (مصنف عبد الرزاق، باب عقوبة شاهد الزور، ج:۸، ص:۲۵۲، رقم:۱۵۴۷۱).

هيڅ ټاکل سوي سزا نسته فَيُعَزَّرُ نو ځکه هغه ته به تعزير ورکول کيږي وَلَهُ: أَنَّ شُرَيْحًا كَانَ يُشَهِّرُهُ وَلَا يَضْرِبُ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي قاضي شريح رَحِمَهُ الله به د دروغجن ګواه تشهير کوی او هغه به يې نه وهی وَلِأَنَّ الِانْزِجَارَ يَحْصُلُ بِالتَّشْهِيرِ او ځکه چي [له دروغجني ګواهی څخه] منع کېدل په تشهير سره [هم] حاصلېږي فَيُكْتَفَى بِهِ نو ځکه پر هغه به اکتفاء کيږي وَالضَّرْبُ وَإِنْ كَانَ مُبَالَغَةً فِي الزَّجْرِ او وهل که څه هم په زجر [منع کولو] کي مبالغه ده [يعني په وهلو سره که څه هم دروغجن ګواه په پوره توګه آينده له دروغو څخه راګرځي] وَلَكِنَّهُ يَقَعُ مَانِعًا عَنِ الرُّجُوعِ لېکن وهل له رجوع څخه مانع ګرځي فَوَجَبَ التَّخْفِيفُ نَظَرًا إِلَى هَذَا الْوَجْهِ نو ځکه دغه وجهي ته په کتلو سره تخفيف [آساني کول] ضروري دی [او تخفيف په تشهير کي دی] وَحَدِيثُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَحْمُولٌ عَلَى السِّيَاسَةِ او د حضرت عمر رضي الله عنه اثر پر سياست حمل کړی سوی دی بِدَلَالَةِ التَّبْلِيغِ إِلَى الْأَرْبَعِينَ وَالتَّسْخِيمِ په دې دليل سره چي [په هغه کي] د درو شمېر څلوېښتو ته رسول سوی دی او [د مجرم] مخ تور کړی سوی دی ثُمَّ تَفْسِيرُ التَّشْهِيرِ مَنْقُولٌ عَنْ شُرَيْحٍ فَإِنَّهُ كَانَ يَبْعَثُهُ إِلَى سُوقِهِ إِنْ كَانَ سُوقِيًّا بيا د تفسير وضاحت [او کيفيت] له حضرت شريح رَحِمَهُ الله څخه داسي نقل سوی دی چي که مجرم [دروغجن ګواه] به بازاري سړی وو نو هغه به يې د بازار وطرف ته استوی وَإِلَى قَوْمِهِ إِنْ كَانَ غَيْرَ سُوقِيٍّ او که بازاري سړی به نه وو نو هغه به يې د خپل قوم وطرف ته استوی بَعْدَ الْعَصْرِ أَجْمَعَ مَا كَانُوا د ماځيګر تر لمانځه وروسته [به يې داسي کول] چي د خلکو مجمع به زياته وه وَيَقُولُ: إِنَّ شُرَيْحًا يُقْرِئُكُمُ السَّلَامَ وَيَقُولُ: إِنَّا وَجَدْنَا هَذَا شَاهِدَ زُورٍ او بېونکي کس به ويل: چي قاضي شريح تاسو ته سلام پېشوي او هغه وايي: چي موږ دا سړی دروغجن ګواه موندلی دی فَاحْذَرُوهُ وَحَذِّرُوا النَّاسَ مِنْهُ نو تاسو له هغه څخه ځان ساتئ او نور خلک هم له هغه څخه ساتئ! وَذَكَرَ شَمْسُ الْأَئِمَّةِ السَّرَخْسِيُّ أَنَّهُ يُشَهَّرُ عِنْدَهُمَا أَيْضًا او شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به هم [د مجرم] تشهير کيږي وَالتَّعْزِيرُ وَالْحَبْسُ عَلَى قَدْرِ مَا يَرَاهُ الْقَاضِي عِنْدَهُمَا او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به تعزير او حبس د قاضي د رايي مطابق وي وَكَيْفِيَّةُ التَّعْزِيرِ ذَكَرْنَاهُ فِي

| الْحُدُوْدِ او د تعزير كيفيت [او طريقه] امور په كتاب الحدود كې ذكر كړې ده. |
|---|

**اللغات**: ﴿زور﴾ درواغ، ﴿أُشهره﴾ د تفعيل له بابه د واحد متكلم صيغه ده، مصدر يې تَشْهِيْر راځي: مشهوره كول، نشر كول او خپرول، د يو چا جرم او بدي مشهوره كول. ﴿تعزير﴾ د دې لفظ اصل معنیٰ ده: منع كول، ملامتول، په اصطلاح كې هغه سزا ته وايي كوم چې له حد څخه كمه وي. او بل تعريف يې دا سوى دى چې هغه سزا كوم چې قاضي د يو داسي جرم په باره كې وټاكي چې په شريعت كې د هغه جرم هيڅ سزا ټاكل سوې نه وي، او دې ته تعزير ځكه وايي چې دا مجرم له دوباره جرم كولو څخه منع كوي. ﴿نوجعه﴾ د افعال له بابه د جمع متكلم مضارع صيغه ده: درد مند كول، درد وركول، تكليف وركول. ﴿نحبسه﴾ د ضرب له بابه مخكنۍ صيغه ده: قيدول، بندي كول (بنديخانې ته اچول). ﴿سوط﴾ دره، له څرمني (چمړې) څخه جوړه يو آله وه چې په هغه به مجرم ته سزا وركول كېده. ﴿يتعدّى﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: تجاوز كول، متجاوز كېدل. ﴿إحْذَرُوْه﴾ د سمع له بابه د جمع مذكر امر حاضر صيغه ده: ځان ساتل، بېرېدل. ﴿حَذِّرُوْه﴾ د تفعيل له بابه مخكنۍ صيغه ده: يو څوك له يو شي څخه بېرول (ډارول).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دى كه يو سړى په يو معامله كې درواغجنه ګواهي وركړي او بيا هغه ونيول سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه سزا فقط تشهير او تذليل ده، نه تعزير (يعني په عام بازار كې به لاس ترلى ګرځول كيږي چې دا يو درواغجن ګواه دى، بس همدا سزا د ده لپاره كافي ده)، لېكن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي د داسي مجرم سزا درې او بنديخانه هم ده، يعني هغه به په درو سره هم وېل كيږي او بنديخانې ته به هم اچول كيږي.

**د صاحبينو دليـــل**: د حضرت عمر ﷺ اثر دى، په هغه كې ذكر سوي دي چې حضرت عمر ﷺ درواغجن ګواه ته څلوېښت درې سزا هم وركړه او د هغه مخ يې هم تور كړى، له دې اثر څخه معلومه سوه چې د درواغجن ګواه سزا تعزير هم دى، فقط تشهير نه دى.

(پر دغه دليل دا اعتراض كېداى سي چې په تعزيراتو كې له څلوېښتو څخه كمې دُرې دي (لكه مخكې چې ذكر سوه)، يعني درواغجن ګواه به پنځه دېرش، اووه دېرش يا نهه دېرش دُرې وهل كيږي، حالانكې په دې اثر كې څلوېښت دُرې ذكر سوي دي.

د دې جواب دا دى چې د حضرت عمر ﷺ په اثر سره مقصود د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول نفي كول دي، ځكه امام صاحب رَحِمَهُ الله د تعزير قائل نه دى، لنډه دا چې په دغه اثر سره د درواغجن ګواه تعزير ثابت دى)

**دويم دليل**: د صاحبيـنو رَحِمَهُمَا الله دويم دليل دا دى چې د درواغو ګواهي وركول كبيره ګناه ده، لكه په دې آيت ﴿وَاجْتَنِبُوْا قَوْلَ الزُّوْرِ﴾ كې چې له دغه بدۍ څخه د ځان ساتلو حكم سوى دى، همدا رنګه

کي درواغجنه ګواهي له کبائرو څخه شمارل سوې ده، او دا يو داسي ګناه ده چي د هغه ضرر نورو بندګانو ته رسيږي او د دې ګناه په وجه حقداره خلک له خپل حق څخه محروميږي، او څرنګه چي د شريعت له طرفه د دې جرم هيڅ سزا نه ده ټاکل سوې، نو ځکه د دې ګنده جرم لپاره به خامخا تعزير واجبول کيږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي قاضي شريح رَحِمَهُ الله به فقط د درواغجن ګواه تشهير کوی او هغه به يې په درو سره نه وهی، او څرنګه چي د حضرت شريح رَحِمَهُ الله په زمانه کي ډېر صحابه موجود وه، نو ښکاره خبره ده چي د قاضي شريح دا عمل به پر صحابه وو پټ پاته نه وو، ليکن د دې باوجود صحابه وو په دې باره کي سکوت کړی وو، نو ځکه دا د اجماع قائم مقام سو، ګواکي درواغجن ګواه ته تعزير نه ورکول د صحابه وو په اجماع سره ثابت دي.

**دويم دليل:** دا دی چي د سزا ورکولو مقصد دا دی چي دا مجرم ګواه په آينده کي درواغجنه ګواهي نه ورکړي او له دې جرم څخه راوګرځي، او څرنګه چي په تشهير سره هم دا مقصد حاصليږي، نو ځکه پر هغه به اکتفاء کيږي او په تعزير به عمل نه کيږي؛ ځکه که څه هم په تعزير سره دا مقصد په پوره توګه حاصليږي، ليکن په تعزير کي دا خطره سته چي د وهلو د تصور او خيال په وجه به دغه ګواه ګرسره د خپل درواغو اقرار نه وکړي (ځکه که هغه په دې خبر سي چي که زه اقرار وکړم نو ما ته به دومره ډېر سزا راکول کيږي، نو ښکاره خبره ده چي د وهلو له بيري به دا اقرار هم نه وکړي چي هو! ما درواغجنه ګواهي اداء کړې ده)، حال دا چي څه وروسته به ذکر سي چي له اقرار څخه بغير د ګواهي په ذريعه يو څوک درواغجن نه سي ګرځول کېدای (يعني د درواغجني ګواهي د ثابتولو لپاره د ګواه اقرار ضروري دی)، نو د دغه خطرې په خاطر حکمت او مصلحت په دې کي دی چي هغه ته فقط د تشهير سزا ورکول سي، د وهلو سزا ورکول غوره نه ښکاري.

وَحديث عُمر رضي الله عنه: په دې سره د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د پېش کړل سوي حديث جواب ورکوي (لکه مخکي چي موږ هم ضمناً ذکر کړی)، فرمايي چي د حضرت رضي الله عنه دا عمل د سياست مدني په توګه وو، د حکم په توګه نه وو (يعني په هغه وخت کي په همدې کي مصلحت وو)، ځکه ښلو ښت درې د غلام او مينځي د حد سزا ده، حال دا چي حکم دا دی چي د تعزير درې به د هر حد له درو څخه کمي وي، همدارنګه مخ تورول هم په تعزير کي داخل نه دي، نو ښکاره خبره ده چي د حضرت عمر رضي الله عنه دا عمل به د انتظامي مصلحت په توګه وو، نه د حکم او سزا په توګه، لهذا په دې عمل سره د تعزير پر ثبوت دليل نيول صحيح نه دي.

ثم تفسير التشهير إلخ: فرمايي چي د تشهير طريقه او کيفيت له قاضي شريح رضي الله عنه څخه داسي نقل سوی دی چي که درواغجن ګواه به د بازار سړی وو، نو قاضي صاحب به د مازيګر تر لمانځه وروسته د خپل خلکو په ذريعه هغه په بازار کي ګرځوی، ځکه د مازيګر تر لمانځه وروسته د خلکو رش او مجمع زياته وي، او که به د بازار سړی نه وو، نو هغه به يې د خپل قوم او علاقې وطرف ته استوی او د ښونکي سړي په لاس به يې ټولو خلکو ته دا پيغام استوی چي قاضي صاحب تاسو ته سلام پېشوي او وايي چي دغه سړی زموږ په نېز درواغجن ثابت سوی دی، لهذا تاسه له هغه څخه ځان ساتئ!، او نور خلک هم د هغه په باره کي . بوه کړئ! چې ...

وذكر شمس الأئمة إلخ: فرمايي چې د شمس الائمه سرخي رَحِمَهُ الله د بيان مطابق د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک هم دا دی چې درواغجن گواه ته به د تشهير سزا ورکول کيږي او تعزير او قيد به د قاضي رايي ته سپارل کيږي. چې قاضي د کوم گواه لپاره تعزير او قيد مناسب وګڼي، هغه ته به دا ورکوي. او د تعزير کيفيت د "كتابُ الحدود" په "فصلٌ في التعزير" کې ذکر سوی دی.

## د درواغجني گواهی اقرار کول

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: شَاهِدَانِ أَقَرَّا أَنَّهُمَا شَهِدَا بِزُورٍ او په جامع صغير کي [ذکر سوي] دي: که دوه گواهانو اقرار وکړی چې هغو د درواغو گواهي ورکړې ده لَمْ يُضْرَبَا نو هغوی به نه وهل کيږي وَقَالَا: يُعَزَّرَانِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې تعزير به ورکول کيږي وَفَائِدَتُهُ أَنَّ شَاهِدَ الزُّورِ فِي حَقِّ مَا ذَكَرْنَا مِنَ الْحُكْمِ هُوَ الْمُقِرُّ عَلَى نَفْسِهِ بِذَٰلِكَ او د دې فايده دا ده چې درواغجن گواه زموږ د ذکر سوي حکم په حق کي هغه دی کوم چي [په خپله] پر خپل ځان د هغه [درواغجنی گواهی] اقرار کونکی وي فَأَمَّا لَا طَرِيقَ إِلَى إِثْبَاتِ ذَٰلِكَ بِالْبَيِّنَةِ لېکن د گواهی په ذريعه د هغه ثابتولو ته هيڅ لاره نسته لِأَنَّهُ نَفْيٌ لِلشَّهَادَةِ ځکه چي دا [په حقيقت کي] د گواهی نفي کول دي وَالْبَيِّنَاتُ لِلْإِثْبَاتِ حال دا چي گواهياني [ديو شي] د ثابتولو لپاره وي [نه د نفي کولو لپاره].

**اللغات:** ﴿مُقِرّ﴾ د افعال د باب فاعل دی: اقرار کونکی. ﴿بيّنة﴾ گواهي.

**تشريح:** فرمايي په جامع صغير کي پورتنی مسئله په داسي عبارت سره ذکر سوې ده چي که دوه گواهان په خپله اقرار وکړي چي موږ د درواغو گواهي ورکړې ده، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به هغوی نه وهل کيږي. لېکن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي د تعزير په توګه به هغوی وهل کيږي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د جامع صغير د دې عبارت فايده دا ده چي د درواغو گواهي فقط د گواه په خپل اقرار سره ثابتېدای سي، او له اقرار څخه بغير د بل شي يعني د گواهي په ذريعه هغه نه سي ثابتول کېدای؛ او وجه يې دا ده چي د گواهی په ذريعه د گواه درواغجن والی ثابتول په حقيقت کي د گواهي نفي کول دي (يعني دا داسي ده لکه ديوې گواهی په ذريعه بله گواهي نفي کول)، حال دا چي گواهي ديو شي د ثابتولو لپاره راځي، نه د نفي کولو لپاره (او دلته د گواهی په ذريعه د گواهی نفي کيږي)، نو ځکه د گواه درواغجن والی فقط د هغه په اقرار سره ثابتېدای سي، د گواهی په ذريعه نه سي ثابتول کېدای.



# كِتَابُ الرُّجُوْعِ عَنِ الشَّهَادَاتِ

## (دا) کتاب له گواهيو څخه د رجوع کولو (په بيان کې) دی

**تشریح**: که یو څوک گواهي ورکړي او بیا له هغه څخه رجوع وکړي، نو دې ته "رجوع عن الشهادة" وايي. او دا ښکاره خبره ده چي له گواهۍ څخه رجوع کول تر گواهي ورکولو وروسته واقع کیږي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله "کتابُ الرجوع عن الشهادة" له "کتابُ الشهادة" څخه وروسته بیان کړی دی. او څرنګه چي له گواهۍ څخه د رجوع کولو مسئله تر کاذب شهادت وروسته پېښیږي، نو ځکه "کتابُ الرجوع..." يې له "باب شهادةُ الزور" څخه هم وروسته بیان کړی دی.

### د قاضي تر فیصلې مخکي له گواهۍ څخه رجوع کول (حکم او تفصیل)

قَالَ: إِذَا رَجَعَ الشُّهُوْدُ عَنْ شَهَادَتِهِمْ قَبْلَ الْحُكْمِ بِهَا فرمايي: که چیري پر گواهۍ [د قاضي] له فیصله کولو څخه مخکي گواهان له هغه څخه رجوع وکړي سَقَطَتْ نو گواهي ساقطیږي لِأَنَّ الْحَقَّ إِنَّمَا يَثْبُتُ بِالْقَضَاءِ ځکه چي حق د قاضي په فیصله سره ثابتیږي وَالْقَاضِي لَا يَقْضِي بِكَلَامٍ مُتَنَاقِضٍ او قاضي پر متناقض کلام فیصله نه کوي وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِمَا او پر گواهانو ضمان [هم] واجب نه دی لِأَنَّهُمَا مَا أَتْلَفَا شَيْئًا لَا عَلَى الْمُدَّعِي وَلَا عَلَى الْمَشْهُوْدِ عَلَيْهِ ځکه چي هغو هیڅ شی نه دی ضایع کړی. نه د مدعي او نه د مدعیٰ علیه فَإِنْ حَكَمَ بِشَهَادَتِهِمْ ثُمَّ رَجَعُوْا او که چیري قاضي د هغو پر گواهۍ فیصله وکړي بیا هغوی رجوع وکړي لَمْ يُفْسَخِ الْحُكْمُ نو دا فیصله به نه فسخ کیږي [بلکي پر خپل ځای به پاتیږي] لِأَنَّ آخِرَ كَلَامِهِمْ يُنَاقِضُ أَوَّلَهُ ځکه چي [په دې صورت کي] د گواهانو آخري کلام د هغو د اول کلام سره معارض دی فَلَا يَنْقُضُ الْحُكْمُ بِالتَّنَاقُضِ نو ځکه د تعارض په وجه به فیصله نه ماتیږي وَلِأَنَّهُ فِي الدَّلَالَةِ عَلَى الصِّدْقِ مِثْلُ الْأَوَّلِ او ځکه چي آخري کلام پر صداقت په دلالت کولو کي د اول کلام په څېر دی وَقَدْ تَرَجَّحَ الْأَوَّلُ بِاتِّصَالِ الْقَضَاءِ بِهِ او د قضاء د متصل کېدلو په وجه

اول کلام راجع سوی دی وَعَلَيهِمْ ضَمَانُ مَا أَتْلَفُوْهُ بِشَهَادَتِهِمْ او پر دې رجوع کونکو ګواهانو د هغه مال [او هغه شي] ضمان واجب دی کوم چي دوی په خپل ګواهۍ سره ضایع کړی وي لِإِقْرَارِهِمْ عَلٰی أَنْفُسِهِمْ بِسَبَبِ الضَّمَانِ ځکه چي دوی پر خپل ځان د ضمان د سبب اقرار کړی دی وَالتَّنَاقُضُ لَا يَمْنَعُ صِحَّةَ الْإِقْرَارِ او تناقض د اقرار صحیح والي نه منع کوي وَسَنُقَرِّرُهُ مِنْ بَعْدُ او موږ به وروسته د دې بیان وکړو.

**اللغات:** ﴿متناقض﴾ د تفاعل د باب فاعل دی: یو د بل مخالف، (داسي کلام چي د هغه یوه حصه له بلي حصې څخه مخالفه وي)، ﴿اتلفا﴾ د افتعال له بابه د تثنیه غائب ماضي صیغه ده: ضایع کول، برباد ول، ﴿لم یفسخ﴾ د فتح له بابه د جحد مجهول صیغه ده: ماتول، ختمول، زائلول، ماتېدل... (متعدي او غیر متعدي دواړه ډوله استعمالیږي)، ﴿صدق﴾ رښتیا والی، صداقت.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که ګواهانو د یو معاملې په باره کي ګواهي ورکړه او قاضي تر اوسه د هغو پر ګواهۍ فیصله نه وه کړې چي هغو له خپل ګواهۍ څخه رجوع وکړه، نو دا ګواهي ساقطیږي او نه به قبلول کیږي، او نه به له رجوع څخه مخکي په دې ګواهۍ سره یو حق ثابتیږي؛ ځکه چي حق د قاضي په فیصلې سره ثابتیږي، او څرنګه چي دلته ګواهانو د قاضي تر فیصلې مخکي له خپل ګواهۍ څخه رجوع او اعراض کړی دی، نو ځکه د هغو په کلام او ګواهۍ کي تناقض راغلی، او قاضي پر واضحه ګواهۍ فیصله کوي، نه پر متناقض او متنازع فیه کلام، او دلته د تناقض په وجه قاضي هیڅ فیصله نه ده کړې، نو ځکه پر مدعیٰ علیه به هیڅ حق او حکم نه ثابتیږي.

ولا ضمان إلخ: فرمایي: له مذکوره ګواهۍ څخه د رجوع کولو په وجه پر ګواهانو هیڅ ډول ضمان (تاوان) واجب نه دی؛ ځکه چي ضمان د یو شي د ضایع کولو په وجه واجبیږي، او په دې ګواهۍ سره له د مدعیٰ علیه یو شی ضایع سوی دی او نه د مدعي، د مدعیٰ علیه یو شی نه ضایع کېدل خو ښکاره دي، ځکه ګواهانو د قاضي له فیصلې څخه مخکي رجوع کړې ده او تر اوسه قاضي پر مدعیٰ علیه د هیڅ شي فیصله نه ده کړې، او د مدعي د یو شي نه ضایع کېدل په دې توګه دي چي دا ګواهي که چیري پر حق وي او ګواهان هغه پټه کړي او رجوع وکړي، نو دوی د ګواهۍ پټولو (کتمان الشهادة) جرم وکړی، او دا یو داسي جرم نه دی چي د هغه په وجه ضمان (تاوان) واجب سي، نو ځکه پر ګواهانو به هیڅ ضمان نه واجبیږي. (احسن الهدایه)

فإن حَکَم بشهادتهم إلخ: دا د پورتنۍ مسئلې دویم صورت دی، فرمایي که قاضي د ګواهانو پر ګواهۍ فیصله وکړه او تر هغه وروسته ګواهانو له خپل ګواهۍ څخه رجوع وکړه، نو په دې صورت کې دغه رجوع لره هیڅ اعتبار نسته، یعني د قاضي له طرفه صادره سوې فیصله په دې رجوع سره نه فسخ کیږي بلکي پر خپل ځای باقي پاتیږي؛ دلیل دا دی چي د ګواهانو دویم کلام یعني "له ګواهي څخه رجوع کول" د اول کلام یعني د "ګواهي ورکولو" سره معارض او مناقض دي، او مناقض کلام لره هیڅ اعتبار نه وي، نو ځکه په دې صورت کې به هم د ګواهانو رجوع لره هیڅ اعتبار نه وي او د هغو پر ګواهۍ چي کومه فیصله سوې ده، هغه به پر خپل ځای پاته وي.

دویم دلیل دا دی چي د ګواهانو دویم کلام یعني "له ګواهۍ څخه رجوع کول" په صداقت او رښتیا والي کې د اول کلام یعني د "ګواهي ورکولو" په څېر دی؛ ځکه کله چي اول هغو ګواهي ورکړه نو ګواهي ورکول د هغو په نېز رښتوني او صحیح وه، او بیا چي کله هغو اعراض وکړی نو دا هم د هغو په ګومان کې صحیح دي، نو ځکه د هغو دواړه کلامونه یو د بل سره مساوي دي، خو کله چي د اول کلام یعني د "ګواهي ورکولو" سره د قاضي فیصله متصله سوه، نو د قاضي د فیصلې په وجه اول کلام ته ترجیح حاصله سوه او هغه راجح او مضبوط وګرځېدی، نو ځکه په دویم کلام سره به هغه نه فسخ کیږي.

وعلیهم إلخ: فرمایي که په دې دویم صورت کې د ګواهانو د ګواهۍ په وجه د مدعیٰ علیه مال ضایع سوی وي او بلا دلیله مدعي ته ورکول سوی وي، نو پر دغه ګواهانو د هغه ضمان (تاوان) واجب دی؛ ځکه کله چي دوی له خپل ګواهۍ څخه رجوع وکړه، نو ګواکي دوی دا اقرار وکړی چي زموږ د ګواهۍ په وجه چي مدعیٰ علیه ومدعي ته کوم مال ورکړی دی، د رجوع کولو په وجه موږ د هغه ضایع کونکي او تلفونکي وګرځېدو. لنډه دا چي د رجوع کولو په وجه ګواهانو پر خپل ځان د ضمان د سبب اقرار وکړی، او د انسان اقرار پر خپل ځان او په خپل حق کې معتبر دی، که څه هم زر موانع په مینځ کې راسي، لهذا په دې صورت کې د ګواهانانو رجوع کول په حقیقت کې د ضمان د سبب اقرار دی، نو که څه هم د هغو په کلام کې تناقض دی لیکن بیا به هم د ضمان د وجوب په باره کې د هغو دغه اقرار معتبر او مؤثر وي او هغوی به خامخا ضمان ورکوي.

په آخر کې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله دا وعده کوي چي وروسته به هم انشاء الله موږ په دې باره کې بحث او بیان وکړو. فانتظروا إني معکم من المنتظرین

## له ګواهۍ څخه د رجوع کولو شرط

وَلَا يَصِحُّ الرُّجُوْعُ إِلَّا بِحَضْرَةِ الْحَاكِمِ او رجوع صحيح نه ده مګر د حاکم [قاضي] په موجود والي کي [يعني د قاضي له مجلس څخه بغير بل ځای رجوع کول صحيح نه دي] لِأَنَّهُ فَسْخٌ لِلشَّهَادَةِ ځکه چي دا د ګواهۍ فسخ کول دي فَيَخْتَصُّ بِمَا تَخْتَصُّ بِهِ الشَّهَادَةُ مِنَ الْمَجْلِسِ نو ځکه د هغه مجلس سره به خاص وي د کوم سره چي ګواهي خاص ده وَهُوَ مَجْلِسُ الْقَاضِيْ أَيَّ قَاضٍ كَانَ او هغه د قاضي مجلس دی، برابره ده که هر قاضي وي وَلِأَنَّ الرُّجُوْعَ تَوْبَةٌ او ځکه چي [له ګواهۍ څخه] رجوع کول توبه ده وَالتَّوْبَةُ عَلٰى حَسَبِ الْجِنَايَةِ او توبه د جرم مطابق وي فَالسِّرُّ بِالسِّرِّ وَالْإِعْلَانُ بِالْإِعْلَانِ نو د پټ جرم توبه به [هم] پټه وي او د اعلانيه [ښکاره] جرم توبه به [هم] اعلانيه وي وَإِذَا لَمْ يَصِحَّ الرُّجُوْعُ فِيْ غَيْرِ مَجْلِسِ الْقَاضِيْ فَلَوِ ادَّعَى الْمَشْهُوْدُ عَلَيْهِ رُجُوْعَهُمَا وَأَرَادَ يَمِيْنَهُمَا او کله چي د قاضي له مجلس څخه بغير [په بل ځای کي] رجوع کول صحيح نه دي، نو اوس که مدعیٰ عليه د دواړو ګواهانو د رجوع کولو دعویٰ وکړي او له هغو څخه د قسم اخيستلو غوښتنه وکړي لَا يُحَلَّفَانِ نو له هغو څخه به قسم نه اخيستل کيږي. وَكَذَا لَا تُقْبَلُ بَيِّنَتُهُ عَلَيْهِمَا او همدارنګه د هغو په خلاف به د مدعیٰ عليه بيّنه [ګواهي] نه قبلول کيږي لِأَنَّهُ ادَّعٰى رُجُوْعًا بَاطِلًا ځکه چي هغه ديو باطلي رجوع دعویٰ کړې ده حَتّٰى لَوْ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ أَنَّهُ رَجَعَ عِنْدَ قَاضٍ كَذَا وَضَمَّنَهُ الْمَالَ ها! که چيري مدعیٰ عليه داسي بيّنه پيش کړي [او ووايي] چي ګواه د فلانکي قاضي سره رجوع کړې ده او قاضي هغه [زما] د مال ضامن کړی دی تُقْبَلُ نو دا بيّنه به قبلول کيږي لِأَنَّ السَّبَبَ صَحِيْحٌ ځکه چي سبب صحيح دی.

**اللغات:** ﴿حضرة﴾ حضور، موجود والی (موجوديت)، ﴿فسخ﴾ د فتح د باب مصدر دی: ماتول، ختمول، ﴿سر﴾ پټول، په پټه (خفيه)، پټ شی، ﴿اعلان﴾ ښکاره کول، په ډاګه کول، ﴿لا يحلفان﴾ د تفعيل له بابه د نفي صيغه ده: له بل چا قسم اخيستل (قسم په اخيستل)، ﴿ضمّن﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: ضامن ګرځول، ضمان پر واجبول، يعني تاوان پر لازمول.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دي چي د ګواهانو لپاره په هماغه صورت کي له خپل ګواهۍ څخه رجوع کول صحيح دي کله چي حاکم او قاضي موجود وي، برابره ده هغه که هر حاکم وي، يعني دوی

چې د کوم حاکم مخته ګواهي ورکړې وه، که هغه حاکم موجود وي او که بل حاکم موجود وي هيڅ فرق نه لري، لېکن شرط د حاکم موجود والې دی.

او د دې دوه دليلونه دي: ① اول دليل دا دی چې له ګواهۍ څخه رجوع کول داسي دي لکه خپله ګواهي فسخ کول (خپله خبره ماتول او ګواهي ختمول). لهذا څرنګه چې د ګواهۍ اداء کول د قاضي د مجلس سره خاص دي، همداسي به د هغه فسخ کول او رجوع کول هم د قاضي د مجلس سره خاص وي. ② دويم دليل دا دی چې له ګواهۍ څخه رجوع کول د دروغو له جرم څخه توبه کول دي، او توبه د جرم مطابق وي، يعني جرم چې د کومي درجې وي، توبه هم د هغومره درجې معتبره ده، نو که جرم (جنايت) پټ او مخفي وي نو توبه هم په پټه کافي ده، او که جرم ښکاره وي او اعلانيه (په ډاګه) وي نو توبه هم په اعلانيه توګه ضروري ده، او تاسو ته معلومه ده چې ګواهي د قاضي په مجلس کي ورکول کيږي، نو له هغه څخه به توبه هم د قاضي په مجلس کي کيږي او د رجوع کولو لپاره به د قاضي مجلس ضروري وي.

وإذا لم إلخ: څرنګه چې د قاضي له مجلسه بغير په بل ځای کي له ګواهۍ څخه رجوع کول صحيح نه دي، نو ځکه که مدعیٰ عليه د قاضي مخته دا دعویٰ وکړه چې "دغه ګواهانو ستا له مجلس څخه بغير په بل ځای کي رجوع کړې ده"، او مدعیٰ عليه پر خپله دعویٰ بيّنه (ګواهي) هم پېش کړه، يا مدعیٰ عليه له ګواهانو څخه د قسم اخيستلو غوښتنه وکړه (يعني مدعیٰ عليه قاضي ته وويل چې "زه بيّنه نه لرم، ته له ګواهانو څخه قسم واخله! يعني که دوی خپله رجوع نه مني. نو قسم دي واخلي")، نو په دې صورت کي به قاضي نه د مدعیٰ عليه دا بيّنه قبلوي او نه به له ګواهانو څخه قسم اخلي، ځکه چې بيّنه او قسم دواړه پر صحيح دعویٰ واقع کيږي، حال دا چې د قاضي له مجلسه بغير په بل ځای کي د رجوع دعویٰ باطله ده، نو ځکه پر دې دعویٰ به نه بيّنه قبلول کيږي او نه به له يو ګواه څخه قسم اخيستل کيږي.

ها! که چيري مدعیٰ عليه صحيح دعویٰ وکړه يعني داسي يې وويل چې "ګواهانو د فلانکي قاضي په مجلس کي له ګواهۍ څخه رجوع کړې ده او هغه قاضي دا حکم او فيصله کړې ده چې دوی به ما ته زما د مال تاوان راکوي"، او مدعیٰ عليه پر خپل دغه دعویٰ بيّنه هم پېش کړه، نو قاضي به دا بيّنه قبلوي؛ ځکه چې په دې صورت کي د بيّنې د قبلېدلو سبب يعني صحيح دعویٰ موجوده سوه (ځکه د قاضي په مجلس کي د رجوع دعویٰ صحيح ده)، او کله چې دعویٰ صحيح ده، نو ښکاره خبره ده چې پر دې دعویٰ به پېش کړل سوې بيّنه هم مقبوله او معتبره وي.

## تر فیصلې وروسته له ګواهۍ څخه د رجوع کولو حکم

قَالَ: وَإِذَا شَهِدَ شَاهِدَانِ بِمَالٍ فرمايي: او کله چې دوه ګواهان دیو مال ګواهي ورکړي فَحَكَمَ الْحَاكِمُ بِهِ او قاضي په هغه ګواهۍ سره فیصله وکړي ثُمَّ رَجَعَا بیا دواړه [له خپل ګواهۍ څخه] رجوع کړي ضَمِنَا الْمَالَ لِلْمَشْهُودِ عَلَيْهِ نو هغوی دواړه د مدعیٰ علیه لپاره د مال ضامن ګرځي [یعني د مدعیٰ علیه د مال ضمان (تاوان) پر واجبیږي] لِأَنَّ التَّسْبِيبَ عَلَى وَجْهِ التَّعَدِّي سَبَبُ الضَّمَانِ ځکه چې د تجاوز [او زیاتوب] په توګه [دیو شي] سبب جوړېدل د ضمان سبب دی كَحَافِرِ الْبِئْرِ لکه د څاه کیندونکی وَقَدْ سَبَّبَا لِلْإِتْلَافِ تَعَدِّيًا او دا دواړه ګواهان د تجاوز په توګه د مال ضایع کولو سبب جوړ سوي دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَضْمَنَانِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې هغوی نه ضامن کیږي لِأَنَّهُ لَا عِبْرَةَ لِلتَّسْبِيبِ عِنْدَ وُجُودِ الْمُبَاشَرَةِ ځکه چې د اصل کار کولو د موجودېدلو په وخت کي سبب جوړېدلو لره هیڅ اعتبار نسته قُلْنَا: تَعَذَّرَ إِيجَابُ الضَّمَانِ عَلَى الْمُبَاشِرِ وَهُوَ الْقَاضِي موږ [په جواب کي] وایو: چې پر اصل کار کوونکي یعني پر قاضي ضمان واجبول نا ممکن دي لِأَنَّهُ كَالْمُلْجَإِ إِلَى الْقَضَاءِ ځکه چې هغه په خپل فیصله کولو کي د مجبوره کس په څېر دی [یعني فیصله کولو ته مجبوره دی. له دې څخه هیڅ چاره نه لري] وَفِي إِيجَابِهِ صَرْفُ النَّاسِ عَنْ تَقَلُّدِهِ او پر قاضي د ضمان په واجبولو کي د قضاوت له قبلولو څخه د خلکو منع کول لازمیږي [یعني که پر قاضي تاوان لازم کړی سي نو هیڅوک به د قضاوت منصب نه قبلوي] وَتَعَذَّرَ اسْتِيفَاؤُهُ مِنَ الْمُدَّعِي او له مدعي څخه [هم] د ضمان اخیستل نا ممکن دي لِأَنَّ الْحُكْمَ مَاضٍ ځکه چې فیصله [د ګواهانو تر رجوع] مخکي سوې ده فَاعْتُبِرَ التَّسْبِيبُ نو ځکه د سبب جوړېدلو اعتبار به کیږي وَإِنَّمَا يَضْمَنَانِ إِذَا قَبَضَ الْمُدَّعِي الْمَالَ او دا دواړه ګواهان هماغه وخت ضامن ګرځي کله چې مدعي پر مال قبضه کړې وي دَيْنًا كَانَ أَوْ عَيْنًا برابره ده مال دَین او که عَین وي لِأَنَّ الْإِتْلَافَ بِهِ يَتَحَقَّقُ ځکه چې ضایع کول په همدې قبضې سره ثابتیږي [نه له قبضې مخکي] وَلِأَنَّهُ لَا مُمَاثَلَةَ بَيْنَ أَخْذِ الْعَيْنِ وَإِلْزَامِ الدَّيْنِ او ځکه چې د عَین په اخیستلو او د دَین [قرض] په لازمولو کي هیڅ مماثلت نسته.

**اللغات**: ﴿ضمنا﴾ د سمع له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: د تاوان ضامن کېدل. (ضمان [تاوان] پر واجبېدل). ﴿تسبيب﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: سبب جوړول، سبب جوړېدل. ﴿حافر﴾ د ضرب د باب فاعل دی: کيندونکی (کنبونکی). ﴿تعدّيا﴾ د تجاوز په توګه، د ظلم و زياتوب په توګه. ﴿مباشرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: په خپله کار کول. ﴿مباشر﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی: په خپله کار کونکی، اصل کار کونکی. ﴿مُلجَأٌ﴾ دا د ميم په ضمه سره د افعال د باب مفعول دی، د دغه باب په صله کې چې "إلى" راسي لکه دلته، نو د مجبوره کولو معنیٰ ورکوی، لهذا د "ملجا" معنیٰ ده: مجبوره کړل سوی، مضطر (معجم وسيط). ﴿دَين﴾ مراد ځني سره زر او سپين زر دي. ﴿عَين﴾ مراد ځني له سرو او سپينو زرو څخه بغير نور مُتعيّن شيان دي، لکه کپړه او داسي نور.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که زيد پر خالد د مال دعویٰ وکړه او پر خپل دعویٰ يې دوه ګواهان پېش کړل، نو قاضي د هغو د ګواهئ په وجه پر مدعیٰ عليه (خالد) د مال فيصله وکړه او مدعي (زيد) له مدعیٰ عليه څخه مال واخيستی او پر هغه يې قبضه وکړه، بيا دواړه ګواهانو له خپل ګواهئ څخه رجوع کړه، نو په دې صورت کي پر دوی دواړو د هغومره مال ضمان (تاوان) واجبيږي څومره مال چې مدعیٰ عليه (خالد) د هغو د ګواهئ په وجه مدعي ته ورکړی وو (لنډه دا چې د مدعیٰ عليه د مال تاوان پر ګواهانو واجب دی)، دا زموږ مسلک دی او ائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ الله هم د دې قائل دي، همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله صحيح قول دی، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله ضعيف قول دا دی چې پر ګواهانو ضمان (تاوان) نه واجبيږي، بلکي پر قاضي ضمان واجبيږي.

**زموږ دليل**: دا دی چې په ظلم و زياتوب او په ناحقه توګه د يو شي سبب جوړېدل د ضمان سبب دی، او حکم د سبب او سبب جوړېدونکي (مسبب) وطرف ته منسوب کيږي، نه د مباشر (کونکي) وطرف ته، مثلاً که يو سړی د بل چا په ځمکه يا په يو لاره کي څاه وکيندي او په هغه کي بل سړی ولوېږي او مړ سي، نو دلته هم حکم او ضمان د سبب او سبب جوړېدونکي وطرف ته منسوب کيږي (يعني پر کيندونکي سړي د مړي ديت واجبيږي)، ځکه چې د بل سړي د مړه کېدلو سبب هغه جوړ سوی دی او هغه څاه کيندلې دی، همداسي دلته هم ګواهان د مدعیٰ عليه د مال ضايع کېدلو سبب جوړ سوي دي، نو ځکه د دې مال ضمان به هم پر هغو واجب وي، ځکه کله چې هغو له خپل ګواهئ څخه رجوع وکړه نو ګواکي هغو د دې خبري اقرار وکړی چې موږ په خپل ګواهئ کي پر ناحقه وو او موږ په مدعیٰ عليه مو په ناحقه توګه مدعي ته مال ورکړی او د هغه مال مو ضايع کړی، نو ځکه بېله شکه به د دې مال تاوان پر هغو واجب او لازم وي.

**د امام شافعي دليل:** د امام شافعي رَحِمَهُ الله د ضعيف قول دليل دا دی چې کله حقيقتاً اصل کار کونکی (مباشر) په خپله موجود وي نو حکم د هغه وطرف ته منسوب کيږي، د مسبب (سبب جوړونکي) وطرف ته نه منسوب کيږي، لهذا کله چې خبره داسي ده نو د مدعیٰ عليه د مال اصل ضايع کونکی خو په حقيقت کي قاضي دی، ځکه چې فيصله هغه کړې ده، او ګواهان خو محض د دې سبب دي، نو کله چې د مال ضايع کونکی يعني قاضي په خپله موجود دی، نو ضمان به هم پر قاضي واجب وي، نه پر ګواهانو.

قلنا إلخ: زموږ له طرفه امام شافعي رَحِمَهُ الله ته جواب دا دی چې پر مباشر يعني پر قاضي ضمان واجبول ناممکن دي؛ ځکه قاضي فيصله کولو ته مجبوره دی، ځکه کله چې د قاضي په نېز د ګواهانو عدالت ثابت وي، نو پر هغه فيصله فرض ګرځي، حتیٰ که هغه پر ځان فيصله کول فرض نه ګڼي نو کافر ګرځي او که هغه فرض ګڼي لېکن قصداً ځنډ او تاخير پکښې کوي نو ګنهګار او فاسق ګرځي او له هغه څخه به د قضاوت منصب اخيستل کيږي، لنډه دا چې کله قاضي په فيصله کولو کي مجبوره دی، نو ځکه هغه به په فيصله کولو کي معذوره وي، او پر معذوره کس هيڅ ډول تاوان نه واجبيږي، نو ځکه پر قاضي به هم د مدعیٰ عليه د مال تاوان نه واجبيږي.

دلته په عبارت کي قاضي ته ځکه "کَالْمُلْجَإِ" (د مجبوره په څېر) ويل سوي دي چې حقيقتاً مجبوره (مضطر) هغه چا ته وايي چې له دنياوي سزا او عقوبت څخه بيريږي، او دلته قاضي داسي نه دی، ځکه چې قاضي ته د اخروي عذاب بېره وي يعني قاضي د اخروي عذاب له بيري ژر فيصله کولو ته مجبوره وي، کنې په دې باره کي هغه ته د دنياوي عذاب او عقوبت هيڅ بېره نه وي.

پر قاضي د ضمان نه واجبولو دويم دليل دا دی چې که پر قاضي ضمان واجب کړی سي، نو د دې مصيبت په ليدلو سره به نور علماء د قضاوت منصب ته ځان نه نيسي او بالکل به يې نه قبلوي، او په دې توګه به د خلکو حقوق ضايع سي، حال دا چې د خلکو د حقوقو حفاظت ضروري دی، نو ځکه په دې حواله سره به هم پر قاضي ضمان (د مال تاوان) نه واجبول کيږي.

وتعذر استيفاؤه إلخ: فرمايي په دې مسئله کي له مدعي څخه تاوان اخيستل هم ممکن نه دي؛ ځکه چې دلته ګواهانو د قاضي تر فيصلې وروسته رجوع کړې ده، يعني اول پر مدعیٰ عليه (د مال واجبولو په باره کي) د قاضي فيصله صادره سوې ده او تر هغه وروسته ګواهانو رجوع کړې ده (او مخکي ذکر سوه چې که ګواهان تر فيصلې وروسته رجوع وکړي نو د قاضي فيصله باقي پاتيږي او په رجوع سره هغه نه فسخ کيږي)، نو ځکه دلته د ګواهانو په رجوع سره به دا فيصله نه فسخ کيږي، او کله چې د قاضي مخکنۍ فيصله

فسخ نه سوه، نو ښکاره خبره ده چې د دې فیصلې په نتیجه کې چې مدعي ته کوم مال ورکول سوی دی، د هغه واپس کول به هم پر مدعي لازم نه وي.

لنډه دا چې کله له مباشر (قاضي) او مدعي دواړو څخه د ضمان اخیستل ناممکن دي، نو د سبب جوړېدلو اعتبار به کیږي او ضمان به له سبب جوړېدونکي (مسبب) څخه اخیستل کیږي. او څرنګه چې دواړه ګواهان سبب جوړېدونکي دي، نو ځکه ضمان به هم پر همدوی دواړو واجب وي.

وإنما يضمنان إلخ: فرمايي په دې مسئله کې هماغه وخت پر ګواهانو ضمان واجبیږي، کله چې مدعي له مدعیٰ علیه څخه مال اخیستی وي او قبضه یې پر کړې وي، برابره ده هغه مال دَین وي لکه سره زر او سپین زر، یا عَین وي لکه کپړه او داسې نور شیان؛ ځکه چې ضمان د مال د ضایع کولو په وجه واجبیږي، او دلته ضایع کول د مدعي په قبضې سره ثابتیږي، نو ځکه د ضمان د وجوب لپاره د مدعي قبضه شرط ده.

ولأنه لا مماثلة إلخ: د دویم دلیل آسانه مطلب دا دی چې کله مدعي تر اوسه پر مال قبضه نه وي کړې نو هغه مال مُتعیَّن نه وي بلکې د قرض او دَین په درجه کې وي، نو اوس که چیرې د مدعي تر قبضې مخکې پر ګواهانو (نغد) ضمان لازم کړی سي نو دا به عَین او مُتعیَّن وګرځي (او د ګواهانو جرم تر اوسه دَین دی. ځکه مدعي پر مال قبضه نه ده پر کړې)، حال دا چې په دَین او عَین کې هیڅ مماثلت نسته، نو ځکه وویل سوه چې پر ګواهانو هماغه وخت د مال ضمان واجبیږي کله چې مدعي پر مال قبضه کړې وي، تر هغه مخکې به نه پر واجبول کیږي.

## د څه ګواهانو د رجوع کولو بیان

قَالَ: فَإِنْ رَجَعَ أَحَدُهُمَا فرمايي: که چیرې له دوو ګواهانو څخه یو رجوع وکړي ضَمِنَ النِّصْفَ نو هغه د نیم مال [نیم حق] ضامن کیږي وَالْأَصْلُ أَنَّ الْمُعْتَبَرَ فِي هٰذَا بَقَاءُ مَنْ بَقِيَ لَا رُجُوعُ مَنْ رَجَعَ او دلته أصول دا دی چې څومره [ګواهان] باقي پاته دي د هغه بقاء معتبره ده او د رجوع کونکي رجوع معتبره نه ده وَقَدْ بَقِيَ مَنْ يَبْقَى بِشَهَادَتِهِ نِصْفُ الْحَقِّ او [د متن په مسئله کې اوس هم] هغه کس پاته دی چې د هغه په ګواهۍ سره نصف حق باقي پاتیږي [یعني یو ګواه پاته دی] وَإِنْ شَهِدَا بِالْمَالِ ثَلَاثَةٌ او که چیرې درې ګواهان د مال ګواهي ورکړي فَرَجَعَ أَحَدُهُمْ بیا له هغو څخه یو رجوع وکړي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو پر هغه ضمان نه واجبیږي لِأَنَّهُ بَقِيَ مَنْ بَقِيَ بِشَهَادَتِهِ كُلُّ الْحَقِّ ځکه چې [اوس هم] هغه کسان پاته دي چې د هغو په ګواهۍ سره ټول حق باقي پاتیږي وَهٰذَا لِأَنَّ الِاسْتِـ

بِالْحُجَّةِ او دا ځکه چي استحقاق [مستحق کېدل] په حجت سره باقي دي وَالْمُتْلَفُ مَتَى اسْتُحِقَّ او ضايع کړی سوی شی چي کله [د بل چا] مستحق وخيږي [د بل چا استحقاق پکښي ښکاره او ثابت سي] سَقَطَ الضَّمَانُ نو [له ضايع کونکي کښ څخه] ضمان ساقطيږي فَأَوْلَى أَنْ يَمْتَنِعَ لهذا [دلته به هم] په درجه اولیٰ پر رجوع کونکي ګواه د ضمان وجوب ممتنع وي [يعني که ضايع کړی سوی شی د بل چا مستحق وخيږي نو له ضايع کونکي کښ څخه ضمان (تاوان) ختميږي. نو په درجه اولیٰ به دلته هم پر رجوع کونکي ضمان نه واجبيږي] فَإِنْ رَجَعَ الْآخَرُ بيا که چيري بل ګواه [هم] رجوع وکړي ضَمِنَ الرَّاجِعَانِ نِصْفَ الْحَقِّ نو دواړه رجوع کونکي د نصف حق ضامن کيږي لِأَنَّ بِبَقَاءِ أَحَدِهِمْ يَبْقَى نِصْفُ الْحَقِّ ځکه چي په دريو ګواهانو کي د يوه په پاتېدلو سره نصف حق باقي پاتيږي وَإِنْ شَهِدَ رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ او که يو سړی او دوې ښځي ګواهي ورکړي فَرَجَعَتْ امْرَأَةٌ بيا يوه ښځه رجوع وکړي ضَمِنَتْ رُبُعَ الْحَقِّ نو هغه د مال د يوې ربع [څلورمي حصې] ضامنه ګرځي لِبَقَاءِ ثَلَاثَةِ الْأَرْبَاعِ بِبَقَاءِ مَنْ بَقِيَ ځکه چي د پاته [باقي مانده] کسانو د پاتېدلو په وجه درې ربع پاته دي وَإِنْ رَجَعَتَا او که دواړي ښځي رجوع وکړي ضَمِنَتَا نِصْفَ الْحَقِّ نو هغوی دواړي د نصف حق [نيم مال] ضامني ګرځي لِأَنَّ بِشَهَادَةِ الرَّجُلِ بَقِيَ نِصْفُ الْحَقِّ ځکه چي د يوه سړي په ګواهۍ سره نيم حق [نيم مال] پاته دی.

**اللغات**: ﴿ضَمِن﴾ د سمع د باب ماضي ده: ضامن کېدل (ذمه وار کېدل)، ضمان (تاوان) پر واجبېدل، ﴿متلف﴾ د افعال د باب مفعول دی: ضايع کړی سوی شی، ... ک سوی شی.

**تشريح**: د عبارت تر حل مخکي په هغه اُصول ځان پوه کړئ! کوم چي مصنف رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی، د هغه مختصر مطلب دا دی چي د ګواه د رجوع کولو په صورت کي اعتبار باقي پاتېدونکي ګواهانو لره دی، نه رجوع کونکي ګواه لره. مثلاً درې خلکو ګواهي ورکړه. وروسته يوه ګواه رجوع وکړه، نو اوس هم دوه ګواهان پاته دي او د ګواهۍ نصاب پوره دی. نو ځکه فيصله به باقي پاتيږي او پر رجوع کونکي ګواه به ضمان نه واجبيږي (ځکه چي د هغه په رجوع کولو سره فيصله او ګواهي فسخ نه سوه). ليکن اوس که يو بل ګواه هم رجوع وکړي او فقط يوه ګواه پاته سي، نو ګواکي نيمايي ګواهي باقي پاته سوه، نو ځکه پر دواړو رجوع کونکو به نصف حق (نيم مال) واجب وي.

**صورت د مسئلې**: دا دی که مدعي پر مدعیٰ عليه مثلاً د زر درهمو دعویٰ کړې وي (چي زما پر تا زر درهمه واجب دي)، بيا مدعي پر خپل دعویٰ دوه ګواهان پېش کړه چي د هغو د ګواهۍ په وجه قاضي

پر مدعیٰ علیه د مدعي لپاره زر درهمه واجب کړه او مدعي ته یې ورکړه، بیا یوه ګواه رجوع وکړه، نو پر هغه رجوع کونکي ګواه د نصف مال یعني د پنځه سوه درهمو ضمان (تاوان) واجبیږي؛ ځکه چې پر مدعیٰ علیه د دواړو په ګواهۍ سره زر درهمه واجب سوي دي، نو ګواکي د هریوه په ګواهۍ سره پنځه سوه درهمه واجب سوي دي، لهذا که دواړو رجوع کړې وای نو پر هریوه به پنځه، پنځه سوه ضمان واجب وای، او څرنګه چې په دې صورت کي یو ګواه رجوع کړې ده، نو ځکه پر هغه به د خپل نصف حصې یعني د پنځه سوه درهمو ضمان واجب وي.

وإن شهد إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مثلاً په پورتنۍ معامله کي دریو ګواهانو ګواهي ورکړه چې د هغه په وجه پر مدعیٰ علیه زر درهمه واجب سوه، او بیا له دې ګواهانو څخه یوه رجوع وکړه، نو پر رجوع کونکي ګواه هیڅ ضمان نه واجبیږي (لکه د تشریح په اول کي چې هم موږ د دې وضاحت وکړی)؛ دلیل دا دی چې د یوه ګواه تر رجوع وروسته هم دوه ګواهان پاته دي، او د دوو خلکو ګواهي حجت تامه دی (ځکه چې په دوو سره د ګواهۍ نصاب پوره دی)، لهذا د یوه ګواه تر رجوع کولو وروسته اوس هم د حجت تامه په وجه د مدعي استحقاق پاته دی یعني اوس هم د دوو ګواهانو په ګواهۍ سره د مدعي لپاره پر مدعیٰ علیه پوره حق او پوره مال ثابتیږي، او د یوه ګواه په رجوع سره د مدعیٰ علیه هیڅ مال نه دی ضایع سوی، او ښکاره خبره ده چې کله رجوع کونکي ګواه د مدعیٰ علیه هیڅ مال نه دی ضائع کړی، نو پر هغه به د مدعیٰ علیه لپاره څنګه ضمان واجب سي!.

والمتلف إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د نوز وضاحت او بل دلیل په توګه فرمایي، چې که یو مال ضایع کړی سي (تلف کړی سي)، مثلاً زید د عمر پسه غصب کړی او بیا یې ضایع کړی، بیا قاضي پر زید د ضمان فیصله وکړه چې ته عمر ته خپل د پسه تاوان ورکړه!، بیا په دې مینځ کي د بل چا استحقاق ښکاره سو مثلاً خالد د پسه مستحق وختی (یعني خالد دعویٰ وکړه چې دا پسه خو زما دی او خپله دعویٰ یې ثابته کړه) او خالد له زید څخه د پسه ضمان واخیستی، نو په دې صورت کي چې د قاضي په فیصله سره د عمر (اول مالک) لپاره پر زید (ضایع کونکی) کوم ضمان واجب سوی وو، هغه ضمان له زید څخه ساقطیږي او پر هغه واجب نه پاتیږي، ځکه ښکاره سوه چې د دې پسه مستحق خالد دی او عمر د دې مستحق نه دی، همداسي کله چې دلته له دریو ګواهانو څخه یوه ګواه رجوع وکړه، نو ګواکي ده په رجوع کولو سره د مدعیٰ علیه هغه حق ضایع کړی (تلف کړی) کوم چې ده په خپل ګواهۍ سره د مدعي لپاره ثابت کړی وو، نو پر دغه رجوع کونکي ګواه باندي د مدعیٰ علیه لپاره ضمان واجبېدل پکار وو، لېکن څرنګه چې دوه ګواهان (حجت تامه) پاته دي او د هغو په ګواهۍ سره

پر مدعیٰ علیه پوره حق ثابتیږي، نو ځکه ښکاره سوه چې د دې حق مستحق مدعي دی او مدعیٰ علیه د دې مستحق نه دی. لهذا کله چې د پاته دوو ګواهانو په ګواهي سره د مدعي استحقاق ثابت سو (چې هغه د دې حق او مال مستحق دی)، نو پر رجوع کونکي ګواه به د مدعیٰ علیه لپاره په درجه اولیٰ ضمان نه واجبیږي.

لنډه دا چې کله تر استحقاق ښکاره کېدلو وروسته هم واجب سوی ضمان ساقطیږي (لکه د زید او عُمر په مثال کي چې موږ ذکر کړه چې پر زید واجب سوی ضمان ساقط سو)، نو تر استحقاق ښکاره کېدلو وروسته به ضمان په درجه اولیٰ نه واجبیږي، ځکه چې ضمان نه واجبېدل آسانه دي په نسبت ود دې ته چې هغه یو وار واجب سي او بیا ساقط کړی سي (لکه په پورتني مثال کي چې یو وار د عُمر لپاره پر زید ضمان واجب سو او بیا ساقط سو).

فإن رجع أخر إلخ: فرمایي که له دریو ګواهانو څخه د یوه تر رجوع کولو وروسته بل ګواه هم رجوع وکړه، نو بیا پر دواړو رجوع ګونکو د نصف حق یعني د نیم مال (پنځه سوه درهمو) ضمان واجبیږي؛ ځکه چې د دوو ګواهانو د رجوع کولو په صورت کي اوس یو ګواه پاته سو او د هغه د پاته والي (بقاء) په وجه نصف حق (پنځه سوه درهمه) پاته دي، نو ګواکي رجوع کونکو ګواهانو د مدعیٰ علیه نصف مال ضایع کړی، نو ځکه پر هغو دواړو به نصف مال (پنځه سوه درهم) واجب وي.

وإن شهد رجل وامرأتان إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مثلاً په پورتني معامله کي یوه سړي او دوو ښځو ګواهي ورکړه چې د هغه په وجه پر مدعیٰ علیه زر درهمه واجب سوه. بیا له هغو څخه یوې ښځي رجوع وکړه، نو پر رجوع کونکي ښځي د حق یوه ربع (څلورمه حصه) ضمان واجبیږي چې هغه دوه نیم سوه (۲۵۰) درهمه کیږي؛ ځکه چې د هغې تر رجوع وروسته یو سړی او یوه ښځه پاته سوه. او یو سړی د ګواهي په باب کي د دوو ښځو قائم مقام دی (ځکه مخکي څو ځله ذکر سوي دي چې د شهادت په باب کي دوې ښځي د یوه سړي برابر دي)، نو ګواکي دلته نیمه ګواهي یوه سړي ورکړې ده او پاته نیمه ګواهي دوو ښځو ورکړې ده. او کله چې یوې ښځي رجوع وکړه نو نیمه ګواهي او یوه ربع پاته سوه کوم چې درې ربع کیږي او له یوې ربع څخه رجوع وسوه. لنډه دا چې دلته د یوه سړي ګواهي د نصف حق (نصف مال) سره متعلق ده او د هري یوې ښځي ګواهي ربع حق سره متعلق ده. لهذا د یوې ښځي په رجوع کولو سره فقط یوه ربع ضایع سوه. نو ځکه پر رجوع کونکي ښځي به د مال یوه ربع (دوه نیم سوه درهم) واجب وي.

او که چیري دواړو ښځو رجوع وکړه نو پر هغو نصف مال واجبیږي؛ ځکه چې د هغو تر رجوع وروسته یوازي سړی پاته سو (چې هغه ګواکي نیمه ګواهي ورکړې ده)، نو د هغه په پاتېدلو سره نصف حق پاته سو ګواکي رجوع کونکو ښځو نصف مال ضایع کړی، نو ځکه پر هغو به نصف مال (پنځه سوه درهم) واجب وي.

## د ځه ګواهانو د رجوع کولو بيان

وَإِنْ شَهِدَ رَجُلٌ وَعَشْرُ نِسْوَةٍ او که يو سړی او لس ښځي ګواهي ورکړي ثُمَّ رَجَعَ ثَمَانٌ بيا اته ښځي رجوع وکړي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِنَّ نو پر هغو ضمان واجب نه دی لِأَنَّهُ بَقِيَ مَنْ يَبْقَى بِشَهَادَتِهِ كُلُّ الْحَقِّ ځکه چي [اوس هم] دومره ګواهان پاته دي چي د هغو په ګواهۍ سره ټوله حق باقي پاتيږي فَإِنْ رَجَعَتْ أُخْرَى بيا که يوه بله ښځه [هم] رجوع وکړي كَانَ عَلَيْهِنَّ رُبُعُ الْحَقِّ نو پر هغوی به د حق څلورمه حصه واجب وي [يعني پر ټولو رجوع کونکو ښځو به د مال د يوې رُبع ضمان واجب وي] لِأَنَّهُ بَقِيَ النِّصْفُ بِشَهَادَةِ الرَّجُلِ وَالرُّبُعُ بِشَهَادَةِ الْبَاقِيَةِ ځکه چي د يوه سړي په ګواهۍ سره نصف حق [مال] پاته دی او د يوې ښځي په ګواهۍ سره يوه ربع حق پاته دی فَبَقِيَ ثَلَاثَةُ الْأَرْبَاعِ نو ځکه درې ربع [درې څلورمي حصې] پاته دي وَإِنْ رَجَعَ الرَّجُلُ وَالنِّسَاءُ او که سړی او ټولي ښځي رجوع وکړي فَعَلَى الرَّجُلِ سُدُسُ الْحَقِّ وَعَلَى النِّسْوَةِ خَمْسَةُ أَسْدَاسِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر سړي د حق يو سدس [شپږمه حصه] واجب ده او پر ښځو پاته پنځه سدسه [پاته پنځه شپږمي حصې] واجب دي وَقَالَا[۞]: عَلَى الرَّجُلِ النِّصْفُ وَعَلَى النِّسْوَةِ النِّصْفُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي پر سړي [هم] نيم حق واجب دی او پر ښځو [هم] نيم حق واجب دی لِأَنَّهُنَّ وَإِنْ كَثُرْنَ ځکه ښځي که څه هم زياتي وي يَقُمْنَ مَقَامَ رَجُلٍ وَاحِدٍ [بيا هم] هغوی د يوه سړي قائم مقام دي وَلِهَٰذَا لَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُنَّ إِلَّا بِانْضِمَامِ رَجُلٍ وَاحِدٍ او په همدې وجه د يوه سړي له يو ځای کېدلو څخه بغير [تنها] د ښځو ګواهي مقبوله نه ده وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ كُلَّ امْرَأَتَيْنِ قَامَتَا مَقَامَ رَجُلٍ وَاحِدٍ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي هر دوې ښځي د يوه سړي قائم مقام دي قَالَ عليه السلام فِي نُقْصَانِ عَقْلِهِنَّ: «عُدِلَتْ شَهَادَةُ اثْنَتَيْنِ مِنْهُنَّ بِشَهَادَةِ رَجُلٍ وَاحِدٍ» [لکه څرنګه چي] نبي کريم ﷺ د ښځو د عقل د نقصان په هکله فرمايلي دي: "له ښځو څخه د دوو ګواهي د يوه سړي د ګواهۍ سره برابره

---

۞ القول الراجح: قول الإمام أعظم رَحِمَهُ الله، كما ظهر من صنيع المصنف، وعليه المتون، وكذا في الدر المنتقى (ج:۳، ص:۳۰۱)، والدر المختار (ج:۴، ص:۴۴۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۴۵]

ده " فَصَارَ كَمَا إِذَا شَهِدَ بِذٰلِكَ سِتَّةُ رِجَالٍ نو دا داسي سوه لکه شپږ خلګو چي د هغه ګواهي ورکړې وي ثُمَّ رَجَعُوا بیا یې رجوع کړې وي فَإِنْ رَجَعَ النِّسْوَةُ الْعَشَرَةُ دُوْنَ الرَّجُلِ بیا که لس سره ښځي رجوع وکړي او سړی رجوع نه وکړي كَانَ عَلَيْهِنَّ نِصْفُ الْحَقِّ عَلَى الْقَوْلَيْنِ نو د دواړو قولونو مطابق پر ښځو نیم حق واجب دی لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلَوْ شَهِدَ رَجُلَانِ وَامْرَأَةٌ بِمَالٍ او که دوه خلک او یوه ښځه د مال ګواهي ورکړي ثُمَّ رَجَعُوا بیا ټوله رجوع وکړي فَالضَّمَانُ عَلَيْهِمَا دُوْنَ الْمَرْأَةِ نو ضمان [فقط] پر خلګو واجب دی، نه پر ښځو لِأَنَّ الْوَاحِدَةَ لَيْسَتْ بِشَاهِدَةٍ بَلْ هِيَ بَعْضُ الشَّاهِدِ ځکه چي یوه ښځه ګواه نه ده بلکي د ګواه یو جزء [حصه] ده فَلَا يُضَافُ إِلَيْهِ الْحُكْمُ نو ځکه د دې جزء وطرف ته به حکم نه منسوبول کیږي.

**اللغات:** ﴿سدس﴾ شپږمه حصه، ﴿انضمام﴾ د انفعال د باب مصدر دی: یو شی د بل سره یو ځای کېدل. ﴿لا یضاف﴾ د افعال د باب نفي مجهوله ده: نسبت کول، منسوب کول.

**تشریح:** په دې عبارت کي له ګواهی ځخه د رجوع کولو په باره کي څو مسئلې بیان سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده که یوه سړي او لسو ښځو په ګډه پر مدعیٰ علیه د مال ګواهي ورکړه، بیا له دې ځخه اته ښځو رجوع وکړه، نو پر هغو هیڅ ضمان نه واجبیږي؛ ځکه چي دا ته ښځو تر رجوع کولو وروسته اوس هم یو سړی او دوې ښځي پاته دي چي د هغو ګواهي حجت تامه دی، لهذا اوس هم پوره حق (پوره مال) پاته دی، او د دې اته ښځو په رجوع سره د مدعیٰ علیه هیڅ مال نه دی ضایع سوی، او کله چي د هغو په ګواهی سره مال نه دی ضایع سوی، نو ښکاره خبره ده چي پر هغو به ضمان هم واجب نه وي.

(۲)... لیکن که د دې اتو ښځو له رجوع کولو ځخه وروسته بله ښځه هم رجوع وکړي او د رجوع کونکو شمېر نهه ښځو ته ورسیږي، نو په دې صورت کي پر دغه نهه سره ښځو د حق یوه ربع (څلورمه حصه) ضمان واجبیږي؛ ځکه چي د هغو تر رجوع کولو وروسته اوس یو سړی او یوه ښځه پاته سوه، او مخکي ذکر سوه چي د ګواهی په باب کي یو سړی د دوو ښځو سره برابر دی، لنډه دا چي دلته د یوه سړي ګواهي د نصف حق (نصف مال) سره متعلق ده، او د یوې ښځي ګواهي د ربع حق سره متعلق ده، نو ځکه اوس په مجموعي توګه د ټوله مال درې ربع پاته دي او فقط یوه ربع ضایع سوې ده. نو ځکه د دې رجوع په وجه به پر رجوع کونکو ښځو د مال یوه ربع واجب وي.

وإن رجع الرجل إلخ: (۳)... فرمايي که چيري سړي او ښځو ټولو يعني ټولو ګواهانو رجوع وکړه، نو په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د مال يو سدس (شپږمه حصه) پر سړي واجبيږي او پاته پنځه سدسه پر ښځو واجبيږي، ليکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز پر سړي هم نصف مال واجبيږي او پر ښځو هم نصف مال واجبيږي.

مثلاً د يوه سړي او لسو ښځو د ګواهۍ په وجه پر مدعیٰ عليه څلور زره اته سوه (۴۸۰۰) درهمه واجب سوه، بيا ټولو رجوع وکړه، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر سړي اته سوه (۸۰۰) درهم واجبيږي او پاته څلور زره درهم پر لسو ښځو واجبيږي چي له هغه څخه به پر هري ښځي څلور سوه (۴۰۰) درهمه واجب وي. (ځکه ۴۸۰۰ درهمه چي شپږ حصې کړل سي نو يوه حصه يې ۸۰۰ درهمه راځي، چي هغه به پر سړي واجب وي، او پاته پنځه شپږمي حصې به پر لسو ښځو واجب وي يعني پر هر دوو ښځو به ۸۰۰ درهمه واجب وي او پر هري يوې به ۴۰۰ واجب وي، ځکه چي دوې ښځي د يوه سړي قائم مقام دي. تاسو خپله هم حساب ورته وکړئ!).

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په دې مثال کي دوه زره څلور سوه (۲۴۰۰) درهم پر سړي واجبيږي او پاته (۲۴۰۰) درهم پر لسو ښځو واجبيږي چي له هغه څخه به پر هري ښځي دوه سوه څلوېښت (۲۴۰) درهمه واجب وي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي دلته که څه هم ښځي زياتي دي، ليکن هغوی ټوله د يوه سړي قائم مقام دي، همدا وجه ده که د ښځو سره يو سړی نه وي، نو تنها د هغو ګواهي نا مقبوله ده. لهذا د لسو ښځو ګواهي په حقيقت کي د دوو ښځو د ګواهۍ په څېر ده، نو ګواکي نيمه ګواهي سړي ورکړې ده او نيمه ګواهي لسو ښځو په ګډه ورکړې ده، نو ځکه د رجوع کولو په وجه به نيم ضمان پر سړي واجب وي او پاته نيم ضمان به پر ټولو ښځو په ګډه واجب وي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي د ګواهۍ په باب کي دوې ښځي د يوه سړي قائم مقام دي، لکه څرنګه چي په حديث کي ذکر سوي دي، نو په دې اعتبار سره لس ښځي د پنځه خلکو قائم مقام سوې، نو د يوه سړي او لسو ښځو ګواهي ورکول داسي سوه لکه شپږ خلک چي ګواهي ورکړي، او که چيري شپږ خلک ګواهي ورکړي او بيا ټوله رجوع وکړي، نو حکم دا دی چي په مجموعي توګه پر هغه ټولو شپږ سدسه واجبيږي چي له هغه څخه به پر هر سړي يو سدس واجب وي، لهذا کله چي يو سړی او لس ښځي وي، نو پر هغو به هم په دغه حساب سره ټوله شپږ سدسه واجب وي چي له هغه څخه به پر هر دوو ښځو يو سدس واجب وي چي په دې توګه به پر لسو ښځو پنځه سدسه واجب وي او پاته يو سدس به پر يوه سړي واجب وي.

فإن رجع النسوة إلخ: او که چیرې فقط لسو ښځو رجوع وکړه او سړی پاته سو، نو څرنګه چې د سړي د پاته والي په وجه نصف حق پاته دی (ځکه مخکي ذکر سوه چي دلته دیوه سړي ګواهي د نصف حق سره متعلق ده، لهذا نصف حق پاته سو)، او کله چي نصف حق پاته دی نو ښکاره خبره ده چي د ښځو په رجوع کولو سره فقط نصف حق ضایع سوی دی، نو ځکه پر هغو به د نصف حق ضمان واجب وي، او دا مسئله د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله په نیز متفق علیه ده.

ولو شهد رجلان إلخ: د دې حاصل دا دی که دوو خلګو او یوې ښځې ګواهي ورکړه، بیا ټولو رجوع کړه نو فقط پر دوو خلګو ضمان واجبیږي او پر ښځې ضمان نه واجبیږي؛ ځکه چي دلته ښځه ګواه نه ده بلکي د ګواه بعضي جزء او حصه ده (ځکه دیوې ښځې سره چي تر څو دویمه ښځه یو ځای نه سي. هغه ګرسره ګواه جوړېدای نه سي. بلکي هغه فقط دیو جزء حیثیت لري)، او د ضمان د وجوب حکم د ګواه وطرف ته منسوب کیږي، د ګواه د جزء وطرف ته نه منسوب کیږي، نو ځکه ضمان به فقط پر خلګو واجب وي او د ګواهي پر جزء یعني پر ښځې به هیڅ ضمان واجب نه وي.

## د نکاح له ګواهی څخه رجوع کول (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَإِنْ شَهِدَ شَاهِدَانِ عَلَى امْرَأَةٍ بِالنِّكَاحِ بِمِقْدَارِ مَهْرِ مِثْلِهَا فرمایي: او که دوه ګواهان پر یو ښځې د مهر مثل په عوض کي د نکاح کولو ګواهي ورکړي ثُمَّ رَجَعَا بیا دواړه رجوع وکړي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِمَا نو پر هغو ضمان واجب نه دی وَكَذٰلِكَ إِذَا شَهِدَا بِأَقَلَّ مِنْ مَهْرِ مِثْلِهَا او همداسي کله چي هغه دواړه له مهر مثل څخه د کم مهر ګواهي ورکړي لِأَنَّ مَنَافِعَ الْبُضْعِ غَيْرُ مُتَقَوَّمَةٍ عِنْدَ الْإِتْلَافِ ځکه چي د ضایع کولو په وخت کي د بضع منافع متقوّم نه وي [یعني په دې وخت کي د بضع منافع قیمت نه لري] لِأَنَّ التَّضْمِينَ يَسْتَدْعِي الْمُمَاثَلَةَ ځکه چي ضامن ګرځول [ضمان واجبول] د مماثلت تقاضا کوي عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي [دا قاعده په اُصول نقه کي] معلومه سوې ده وَإِنَّمَا تُضْمَنُ وَتُتَقَوَّمُ بِالتَّمَلُّكِ او په مالک جوړېدلو [خاوند جوړېدلو] سره ځکه د بضع منافع مضمون او متقوّم کیږي [یعني د نکاح کولو په وخت کي د بضع منافع ځکه ضمان والا او قیمت والا کیږي او مهر واجبیږي] لِأَنَّهَا تَصِيرُ مُتَقَوَّمَةً ضَرُورَةَ الْمِلْكِ إِبَانَةً لِخَطَرِ الْمَحَلِّ ځکه چي د محل [بضع] د شرافت [او عظمت] ښکاره کولو لپاره د ملکیت د ضرورت په خاطر د بضع منافع متقوّم ګرځي وَكَذٰلِكَ إِذَا شَهِدَا عَلَى رَجُلٍ

بِتَزْوِيجِ امْرَأَةٍ بِمِقْدَارِ مَهْرِ مِثْلِهَا او همدارنګه کله چي دوه ګواهان پر يو سړي د مهرِ مثل په عوض کي د ښځي سره د نکاح کولو ګواهي ورکړي لِأَنَّهُ إِتْلَافٌ بِعِوَضٍ ځکه دا د عوض په بدله کي ضايع کول دي لَمَّا أَنَّ الْبُضْعَ مُتَقَوَّمٌ حَالَ الدُّخُولِ فِي الْمِلْكِ ځکه چي په ملکيت کي د داخلېدلو په وخت کي [يعني د نکاح په وخت کي] بضع متقوّم وي وَالْإِتْلَافُ بِعِوَضٍ كَلَا إِتْلَافٍ او د عوض په بدله کي ضايع کول داسي دي لکه نه ضايع کول وَهٰذَا لِأَنَّ مَبْنَى الضَّمَانِ عَلَى الْمُمَاثَلَةِ او دا حکم ځکه دی چي د ضمان دار ومدار پر مماثلت دی وَلَا مُمَاثَلَةَ بَيْنَ الْإِتْلَافِ بِعِوَضٍ وَبَيْنَهُ بِغَيْرِ عِوَضٍ او د اتلاف بالعوض او اتلاف بغير العوض په مينځ کي هيڅ مماثلت نسته وَإِنْ شَهِدَا بِأَكْثَرَ مِنْ مَهْرِ الْمِثْلِ ثُمَّ رَجَعَا او که دوه ګواهان له مهرِ مثل څخه د زيات مهر ګواهي ورکړي بيا رجوع وکړي ضَمِنَا الزِّيَادَةَ نو هغوی د زياتوب [زائد مقدار] ضامن کيږي لِأَنَّهُمَا أَتْلَفَاهَا بِغَيْرِ عِوَضٍ ځکه چي هغو بلا عوضه دا زائد مقدار ضاع کړی دی.

**تشريح:** ﴿بُضع﴾ د دې لفظ دوې معناوي دي: ① د ښځي شرمګاه (فرج)، ② جماع، ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب فاعل دی: تِلفول، ضايع کول، ﴿تضمين﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: ضامن ګرځول (پر يو چا د يو شي ضمان [تاوان] واجبول)، ﴿تُضمن﴾ د سمع د باب ماضي مجهوله ده: مضمون کېدل (د يو شي ضمان واجبېدل)، ضمان والا کېدل، ﴿متقوّمة﴾ د تفعّل د باب فاعل دی: قيمت والا، قيمت لرونکی، ﴿ابانة الخطر﴾ د شرافت او عظمت (او د عزت او احترام) څرګندولو لپاره، ﴿مماثلة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو د بل مثل کېدل، برابري.

**اللغات:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي پر يو ښځي د نکاح دعویٰ وکړه چي "تا زما سره نکاح کړې ده، او د هغه دوو ګواهانو دا ګواهي ورکړه چي دغه سړي (مدعي) د مهرِ مثل په عوض کي د هغې سره نکاح کړې ده، يا دا ګواهي يې ورکړه چي هغه له مهرِ مثل څخه د کم مهر په عوض کي نکاح ور سره کړې ده، او قاضي د هغو پر ګواهي د نکاح فيصله وکړه، بيا ګواهانو له خپل ګواهي څخه رجوع وکړه، نو پر دې رجوع هيڅ ضمان نه واجبيږي؛ ځکه کـه څـه هم ګواهانو د خپل ګواهي په وجه په ناحقه توګه د بضع منافع ضايع کړي دي، لېکن بيا هم په دې سره هيڅ ضمان نه واجبيږي؛ ځکه چي د ضايع کولو پـه صورت کي د بضع منافع متقوّم نه وي (يعني قيمت نه لري)، او د غير متقوّم (نا

قیمتداره) شي په ضایع کولو سره ضمان نه واجبیږي. نو ځکه په دې صورت کې به هم له ګواهۍ څخه د رجوع کولو په وجه پر ګواهانو ضمان نه واجبیږي.

پاتې سو دا سوال چي د ضایع کولو په وخت کې د بضع منافع ولې متقوّم نه وي او ولې د هغه د قیمت ضمان (تاوان) نه واجبیږي، نو د دې جواب دا دی چي ضامن ګرځول او ضمان پر واجبول د دې تقاضا کوي چي د ضایع کړل سوي شي او په ضمان کې د اداء کېدونکي شي تر مینځ به مماثلت موجود وي، او ضمان د عَین او نغد مال په ذریعه اداء کیږي، او تاسو ته معلومه ده چي د بضع او د عَین مال تر مینځ هیڅ مماثلت نسته، او کله چي مماثلت نسته، نو ښکاره خبره ده چي د بضع منافع به قابل د ضمان او متقوّم هم نه وي، لهذا کله چي هغه د ضمان قابل او متقوّم نه دي، نو ځکه د هغه ضمان به هم واجب نه وي.

وإنما تضمن إلخ: دا د یو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي کله ستاسو په قول د بضع منافع متقوّم نه دي، نو هغه د نکاح په وخت کې هم متقوّم کېدل پکار نه دي، یعني کله چي خاوند د نکاح په ذریعه د بضع مالک سي نو په هغه وخت کې هم بضع متقوّم کېدل یعني د هغې مهر واجبېدل پکار نه دي، حال دا چي په نکاح کې مهر واجبیږي، له دې څخه معلومه سوه چي د بضع منافع متقوّم دي، حال دا چي تاسو هغه نا متقوّم ګرځولي دي.

د دې جواب دا دی چي اصلاً خو د بضع منافع غیر متقوّم وي، لیکن د نکاح په وخت کې د نکاح د محل یعني د بضع د شرافت او عظمت ښکاره کولو د ضرورت په خاطر هغه متقوّم ګرځي، او دا قاعده به تاسو ته هم معلومه وي چي "الضَّرُوْرَةُ تَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهَا" یعني ضرورت فقط د ضرورت او مجبورۍ په اندازه ثابتیږي، نو ځکه د بضع منافع به فقط د نکاح په وخت کې متقوّم وي، او له نکاح څخه بغیر په نورو وختونو کې به هغه پر خپل اصل (نا متقوّم والي) باقي پاتې وي او نا متقوّم به وي.

وکذلك إذا شهد إلخ: د دې حاصل دا دی که یوې ښځې دا دعویٰ وکړه چي "ما د خپل مهر مثل په عوض کې د خالد سره نکاح کړې ده"، لیکن خالد له دې څخه انکار وکړی چي ما نکاح نه ده ورسره کړې (په دې مسئله کې ښځه مدعیه ده او په اول مسئله کې سړی مدعيٰ وو)، بیا ښځې دوه ګواهان پېش کړل او هغو هم د مهر مثل په عوض کې د نکاح کولو ګواهي ورکړه او قاضي د هغو پر ګواهۍ فیصله وکړه او په خالد (خاوند) یې مهر مثل اداء کړی، تر دې وروسته ګواهانو له خپل ګواهۍ څخه رجوع وکړه، نو په دې صورت کې هم پر هغو ضمان نه واجبیږي؛ ځکه که څه هم د هغو په ګواهۍ سره د خاوند مال ضایع سوی دی (کوم چي هغه په مهر مثل کې اداء کړی دی)، لیکن دا ضایع کول (اتلاف) بالعوض دی، یعني هغه ته د دې مال په عوض کې د ښځې بضع حاصله سوه، ځکه بضع چي کله د خاوند ملکیت

ته داخلیږي نو هغه متقوم کیږي یعني د نکاح په وخت کي هغه متقوم ګرځي، نو ځکه دا اتلاف بالعوض دی، او اتلاف بالعوض د عدم اتلاف په درجه کي دی (یعني د عوض په بدله کي ضایع کول داسي دي لکه نه ضایع کول) نو ګواکي دلته د ګواهانو له طرفه اتلاف (ضایع کول) ګرسره واقع سوي نه دي، او ښکاره خبره ده چي کله اتلاف واقع سوی نه دی، نو ضمان به هم واجب نه وي. (پاته سوه دا چي د راروان وخت لپاره خو خاوند بضع نه سي استعمالولای، نو هغه لره اعتبار نسته؛ ځکه چي مهر د اول وار وطي قیمت شمارل کیږي، او بیا په هغه او وروستني وطو کي تداخل کیږي [اثمار الهدایه]).

وهذا لأن إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي د دې خبري دلیل (چي اتلاف بالعوض د عدم اتلاف په څېر دی) او په دې صورت کي د ضمان نه واجبېدلو دلیل دا دی چي د ضمان واجبېدلو دار و مدار پر مماثلت دی، نو د کوم شي چي مثل موجود وي د هماغه شي ضمان هم واجبیږي، او د اتلاف بالعوض او اتلاف بلا عوض تر مینځ هیڅ مماثلت (برابري) نسته، او کله چي د دوی تر مینځ مماثلت نسته، نو ښکاره خبره ده چي د ضمان واجبېدل هم مشکل دي. (په لنډه توګه داسي هم ویل کېدای چي خاوند خو بضع استعمال کړې ده چي د هغه په وجه پر خاوند مهر مثل واجب دی، لېکن ګواهانو خو هیڅ شی نه دی استعمال کړی نو پر هغو به څنګه ضمان واجب کړی سي، نو په دې دواړو کي هیڅ مماثلت نسته، نو ځکه پر هغو به ضمان واجب نه وي [اثمار الهدایه]).

وإن شهدا بأكثر إلخ: فرمایي که ګواهانو تر مهر مثل پر زیات مقدار د نکاح کولو ګواهي ورکړه، او بیا هغو له خپل ګواهۍ څخه رجوع کړه، نو په دې صورت کي چي تر مهر مثل کوم مقدار زائد دی، پر ګواهانو د هغه ضمان واجب دی؛ ځکه چي د مهر مثل په مقدار کي خو خاوند ته بضع حاصله سوه نو دا اتلاف بالعوض دی، لېکن تر مهر مثل وروسته په زائد مقدار کي هغه ته هیڅ عوض حاصل نه سو، لهذا دا اتلاف بلا عوض دی، نو ځکه د هغه ضمان (تاوان) به واجب وي او دواړه ګواهان به د هغه زائد مقدار تاوان خاوند ته ورکوي.

## د بیع له ګواهۍ څخه رجوع کول

قَالَ: وَإِنْ شَهِدَا بِبَيْعِ شَيْءٍ بِمِثْلِ الْقِيمَةِ أَوْ أَكْثَرَ فرمایي: او که دوه ګواهان د یو شي د خرڅولو ګواهي ورکړي په مثلي قیمت یا په زیات قیمت سره ثُمَّ رَجَعَا بیا دواړه رجوع وکړي لَمْ يَضْمَنَا نو هغوی نه ضامن کیږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِإِتْلَافٍ مَعْنًى نَظَرًا إِلَى الْعِوَضِ ځکه چي د عوض وطرف ته په کتلو سره دا معناً اتلاف نه دی وَإِنْ كَانَ بِأَقَلَّ مِنَ الْقِيمَةِ او که چیري له مثلي قیمت څخه د کم قیمت ګواهي ورکړي ضَمِنَا النُّقْصَانَ نو هغوی د نقصان ضامن کیږي لِأَنَّهُمَا أَتْلَفَا هٰذَا الْجُزْءَ بِلَا عِوَضٍ ځکه چي

هغو دا جزء بلاعوضه ضايع كړى دى وَلَا فَرْقَ بَيْنَ أَنْ يَكُونَ الْبَيْعُ بَاتًّا أَوْ فِيهِ خِيَارُ الْبَائِعِ او په دې كې هيڅ فرق نسته چې بيع قطعي [نافذه سوې] وي يا په هغه كې د بائع لپاره خيار شرط وي لِأَنَّ السَّبَبَ هُوَ الْبَيْعُ السَّابِقُ ځكه چې سبب خو مخكنى بيع ده فَيُضَافُ الْحُكْمُ عِنْدَ سُقُوطِ الْخِيَارِ إِلَيْهِ نو د خيار شرط ساقطېدلو په وخت كې به حكم د هغه وطرف ته منسوب كيږي فَيُضَافُ التَّلَفُ إِلَيْهِمْ نو ځكه ضايع كېدل [نقصان] به د هغه وطرف ته منسوب كيږي.

**اللغات:** ﴿إتلاف﴾ د افعال د با فاعل دى: ضايع كول، هلاكول. ﴿معنًى﴾ د معنىٰ په اعتبار سره، د معنىٰ په توګه. ﴿باتّ﴾ د ضرب د باب اسم فاعل دى: قطعي، مراد ځني پوره سوې او نافذه سوې بيع (بيع تام) ده. ﴿يضاف﴾ د افعال د باب مضارع مجهوله ده: نسبت كول، منسوب كول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه يو سړى دعوىٰ وكړه چې فلانكي سړي خپل غلام پر ما خرڅ كړى دى، ليكن بائع له دې څخه انكار وكړى، بيا هغه سړي (مدعي) دوه ګواهان پېش كړل، او ګواهانو د بيع (خرڅولو) ګواهي وركړه، اوس د دغه ګواهي دوه صورتونه دي: ①... يو دا چې كه ګواهانو د مثلي قيمت (بازاري نرخ) ګواهي وركړه يا له هغه څخه يې د زيات قيمت ګواهي وركړه، مثلاً په بازار كې د دې غلام قيمت زر درهمه وو، او ګواهانو دا ګواهي وركړه چې بائع خپل غلام په زر درهمه (مثلي قيمت سره) پر مدعي خرڅ كړى دى يا مثلاً په يوولس سوه يې پر خرڅ كړى دى، او بيا ګواهانو له خپل ګواهي څخه رجوع وكړه، نو په دې صورت كې پر هغو هيڅ ضمان نه واجبيږي؛ ځكه كه څه هم د هغو په ګواهي سره د بائع ملكيت "يعني غلام" د هغه له قبضې څخه د مشتري (مدعي) قبضې ته ولاړى او د بائع په حق كې ضايع سو، خو څرنګه چې د هغه په بدله كې بائع ته عوض "يعني ثمن" حاصل سو، نو ځكه دا اتلاف بالعوض سو (يعني د عوض په بدله كې ضايع كول سو)، او د اتلاف بالعوض په صورت كې ضمان نه واجبيږي، نو ځكه په دې صورت كې به پر ګواهانو هيڅ ضمان واجب نه وي.

②... دويم صورت دا دى چې ګواهانو له مثلي قيمت (بازاري نرخ) څخه د كم قيمت ګواهي وركړه، مثلاً د غلام قيمت زر درهمه وو، او ګواهانو وويل چې بائع هغه په اته سوه درهمه پر مدعي خرڅ كړى دى، او بيا هغو له خپل ګواهي څخه رجوع وكړه، نو په دې صورت كې هغوى د نقصان يعني د دوه سوه درهمو ضامن كيږي، ځكه چې هغو له مثلي قيمت څخه د كم قيمت په ګواهي وركولو سره د غلام يوه حصه بلا عوضه ضايع كړه، او د بلا عوضه ضايع كولو (اتلاف بغير العوض) په صورت كې ضمان واجبيږي، نو ځكه په دې صورت كې به پر ګواهانو ضمان واجب وي.

ولا فرق إلخ: د دې حاصل دا دی چې برابره ده بيع که پوره سوې (تام) او نافذ وي او کو د بائع لپاره خيار شرط پکښې لګول سوی، په هر صورت کې پر ګواهانو ضمان واجبيږي کله چې هغوی له مثلي قيمت څخه د کم قيمت ګواهي ورکړي، د تام او نافذ بيع په صورت کې خو پر هغو د ضمان واجبېدل ښکاره دي، او د خيار شرط په صورت کې که څه هم مبيع د خيار په موده (يعني د خيار شرط په درې ورځو) کې د بائع له ملکيت څخه نه وځي، لېکن که بائع د خيار په موده (درې ورځو) کې بيع فسخ نه کړي بلکې نافذ يې کړي او خيار ساقط سي، نو ښکاره خبره ده چې د دې بيع سبب هماغه مخکنی بيع کول دي کوم چې د ګواهانو په ګواهۍ سره ثابته سوې ده، او څرنګه چې په مخکنۍ ګواهۍ کې ګواهانو له مثلي څخه قيمت څخه د کم قيمت ګواهي ورکړې ده، نو ځکه د نقصان (کمښت) ضمان به هم پر دوی لازم وي او دوی دواړه به د هغه ضمان (تاوان) اداء کوي.

## د طلاق له ګواهۍ څخه رجوع کول

وَإِنْ شَهِدَا عَلَى رَجُلٍ أَنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا او که دوه ګواهان د يو سړي په خلاف دا ګواهي ورکړې چې هغه خپل ښځې ته تر دخول [وطي] مخکې طلاق ورکړی دی ثُمَّ رَجَعَا بيا دواړه [له خپل ګواهۍ څخه] رجوع وکړي ضَمِنَا نِصْفَ الْمَهْرِ نو هغوی دواړه د نيم مهر ضامن کيږي لِأَنَّهُمَا أَكَّدَا ضَمَانًا عَلَى شَرَفِ السُّقُوطِ ځکه چې هغو داسې ضمان [مهر] مؤکد کړی دی کوم چې ساقطېدلو ته نژدې وو أَلَا تَرَى أَنَّهَا لَوْ طَاوَعَتْ ابْنَ الزَّوْجِ أَوْ ارْتَدَّتْ آيا ته نه ګورې! چې که ښځه د خاوند د ځوی اطاعت وکړي [يعني جماع ورسره وکړي] يا مرتده سي سَقَطَ الْمَهْرُ أَصْلًا نو بالکل مهر ساقطيږي وَلِأَنَّ الْفُرْقَةَ قَبْلَ الدُّخُولِ فِي مَعْنَى الْفَسْخِ او ځکه چې تر دخول مخکې فرقت د فسخ په معنیٰ سره دی فَيُوجِبُ سُقُوطَ جَمِيعِ الْمَهْرِ نو ځکه دا به د ټوله مهر ساقطېدل واجبوي كَمَا مَرَّ فِي النِّكَاحِ لکه څرنګه چې په کتاب النکاح کې تېر سو ثُمَّ يَجِبُ نِصْفُ الْمَهْرِ ابْتِدَاءً بِطَرِيقِ الْمُتْعَةِ بيا ابتداءً د متعې په توګه نيم مهر واجبيږي [مطلب دا چې د نيم مهر واجبېدل له شروع څخه ګواکي د متعې په توګه دي] فَكَانَ وَاجِبًا بِشَهَادَتِهِمَا نو ځکه دا به د هغه دواړو په ګواهۍ سره واجب وي.

**اللغات**: ﴿شرف﴾ دا لفظ څو معناوي لري چې له هغه څخه يوه معنیٰ: کناره او څنډه ده، د نژدې کېدلو معنیٰ ورکوي، مثلاً ويل کيږي "فُلَان عَلَى شَرَفِ الهَلَاك" فلانکی د هلاکت پر څنډه وو، يعني

هلاکېدلو ته نږدې وو، ﴿أُكِّدَا﴾ د تفعيل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: مؤكد كول، مضبوطول. ﴿طَاوعت﴾ د مفاعلې له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: اطاعت كول، خبره منل، (د جماع) موقع او قدرت وركول. ﴿فرقة﴾ جدا كېدل (ښځه او خاوند سره جلا کېدل). ﴿متعة﴾ يو څه مُتعيّن سامان او جامې. كله چې خاوند خپل داسي ښځي ته تر دخول مخكي طلاق وركړي چې د نكاح كولو په وخت كي يې د هغې لپاره مهري نه وي ټاكلى يا يې د مهر نفي او انكار كړى وي (چې مهر نه دركوم)، نو په دې صورت كي پر خاوند د دغه ښځي متعه واجبېږي (لكه په كتابُ النكاح كي چې د دې تفصيلي بحث تېر سو)، متعه درې جامو (کپړو) ته وايي: ① قميص (كميس)، ② پړونی، ③ اوږد څادر (كوم چې تر پړوني ډېر اوږد وي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه يو ښځي دعوىٰ وكړه چې "زما خاوند ما ته تر دخول مخكي (قبل الدخول) طلاق راكړى دى"، لېكن خاوند له دې څخه انكار وكړى، بيا دې ښځي دوه گواهان پېش كړل او هغو دا گواهي وركړه چې خاوند هغې ته تر دخول مخكي طلاق وركړى دى، نو قاضي د هغو پر گواهۍ د طلاق قبل الدخول فيصله وكړه او په خاوند يې ښځي ته نيم مهر وركړى (ځكه چې د طلاق قبل الدخول په صورت كي نيم مهر واجبېږي، كله چې خاوند مهر ټاكلى وي او بيا طلاق وركړي. لېكن څرنگه چې دلته خاوند له نكاح او مهر څخه منكر دى او پر هغه د گواهانو په گواهۍ سره مهر واجب سوى دى. نو ځكه دا به د متعې په توگه پر هغه واجب وي)، اوس كه تر دې وروسته گواهانو له خپل گواهۍ څخه رجوع وكړه، نو په دې صورت كي پر دواړو گواهانو د هغه نيم مهر ضمان واجبېږي كوم چې خاوند اداء كړى دى يعني ښځي ته يې وركړى دى؛ ځكه كوم مهر چې خاوند اداء كړى دى هغه په حتمي او يقيني توگه پر خاوند لازم نه وو، بلكي د هغه د زوال او ساقطېدلو امكان وو په دې توگه چې دغه ښځي د خاوند د بلي ښځي د ځوى سره جماع وكړي يا مرتده سي نو په دې دواړو صورتونو كي د ښځي د خپل بد حركت په وجه له خاوند څخه مهر ساقطيږي، لېكن گواهانو په خپل گواهۍ سره مهر مؤكد او مضبوط كړى او د هغه د سقوط امكان يې ختم كړى او بيا يې له خپل گواهۍ څخه د رجوع كولو په وجه هغه ناحقه ثابت كړى (چې خاوند نكاح نه ده كړې او پر هغه د ښځي مهر نسته)، نو ځكه اوس چې د خاوند كوم مال ضايع سوى دى، هغه فقط د گواهانو د گواهۍ په وجه ضايع سوى دى . نو ځكه د هغه ضامن به هم دا گواهان وي.

دويم دليل دليل دا دى چې تر دخول مخكي فرقت (طلاق واقع كېدل) د نكاح فسخ كولو په معنىٰ سره دي، ځكه چې تر دخول مخكي د ښځي بضع صحيح سالم پاته وي او خاوند هغه استعمال كړې نه وي، او د نكاح فسخ كولو په صورت كي ټوله مهر ساقطيږي لكه د كتاب النكاح په باب المهر كي چې دا خبره ذكر سوه، لېكن دلته د گواهانو په گواهۍ سره نيم مهر د متعې په توگه پر خاوند واجب

سوی دي، لهذا کله چي نيم مهر د ګواهانو په ګواهۍ سره پر خاوند واجب سوی او مؤکد سوی دی، نو ځکه تر رجوع کولو وروسته به د هغه ضمان (تاوان) هم پر ګواهانو واجب وي او همدا ګواهان به خاوند ته د هغه تاوان ورکوي.

## د اعتاق (آزادولو) له ګواهۍ څخه رجوع کول

قَالَ: وَإِنْ شَهِدَا أَنَّهُ أَعْتَقَ عَبْدَهُ فرمايي: او که دوه ګواهان دا ګواهي ورکړي چي فلانکي سړي خپل غلام آزاد کړی دی ثُمَّ رَجَعَا بيا دواړه رجوع وکړي ضَمِنَا قِيمَتَهُ نو هغوی دواړه د غلام د قيمت ضامن کيږي لِأَنَّهُمَا أَتْلَفَا مَالِيَّةَ الْعَبْدِ عَلَيْهِ مِنْ غَيْرِ عِوَضٍ ځکه چي هغو پر مالک [مولیٰ] د غلام ماليت بلا عوضه ضايع کړی. وَالْوَلَاءُ لِلْمُعْتِقِ او [د دې غلام] ولاء د آزادونکي مالک لپاره ده لِأَنَّ الْعِتْقَ لَا يَتَحَوَّلُ إِلَيْهِمَا بِهَذَا الضَّمَانِ ځکه چي د دغه ضمان په وجه آزادي د ګواهانو وطرف ته نه منتقل کيږي فَلَا يَتَحَوَّلُ الْوَلَاءُ إِلَيْهِمَا نو ځکه ولاء به هم د هغو وطرف ته نه منتقل کيږي.

**اللغات**: ﴿لا يتحوّل﴾ د تفعّل د باب نفي صيغه ده: اوښتل، نقل کېدل (منتقل کېدل). ﴿ولاء﴾ آزاد سوی غلام چي کله مړ سي نو د هغه پاته سوي ميراث د هغه آزادونکي مالک ته ورکول کيږي، دې ته "ولاء" وايي. دا لفظ نوري معناوي هم لري، دلته يې همدا معنیٰ ده. (اثمار الهدايه)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که دوو خلکو دا ګواهي ورکړه چي فلانکي سړي خپل غلام آزاد کړی دی، او قاضي د هغو پر ګواهۍ د آزادۍ فيصله وکړه (چي تر دې وروسته دا غلام آزاد دی)، بيا ګواهانو له خپل ګواهۍ څخه رجوع وکړه، نو په دې صورت کي دواړه ګواهان د مالک (مولیٰ) لپاره د غلام د قيمت ضامن کيږي (يعني د غلام د قيمت ضمان [تاوان] پر واجبيږي)؛ ځکه چي له خپل ګواهۍ څخه د رجوع کولو په وجه هغو په نا حقه توګه او بلا عوضه د مالک د غلام ماليت او قيمت ضايع کړی، او د بلا عوضه ضايع کولو (اتلاف بغير العوض) په صورت کي ضمان واجبيږي، نو ځکه په دې صورت کي به هم پر ګواهانو ضمان واجب وي او دوی به د غلام مالک ته ضمان (تاوان) ورکوي.

والولاء للمعتق إلخ: فرمايي د دغه آزاد سوي غلام ولاء د هغه د مالک ده؛ ځکه که څه هم دا غلام د ګواهانو د ګواهۍ په وجه آزاد سوی دی (او ولاء هغو ته حاصلېدل پکار دي)، لېکن په حقيقت کي مالک د هغه آزادونکی دی، نو ځکه آزادول به د مالک له طرفه واقع وي او د ضمان ورکولو په وجه به دا آزادول د ګواهانو طرف ته نه منتقل کيږي. او څرنګه چي ولاء د آزادۍ (عتق) تابع ده. نو ځکه کله چي آزادي يعني متبوع د ګواهانو وطرف ته نه منتقل کيږي، نو تابع يعني ولاء به هم د هغو وطرف ته نه منتقل کيږي. (احسن الهدايه)

## د قصاص له ګواهۍ څخه رجوع کول

وَإِنْ شَهِدُوْا بِقِصَاصٍ او که ګواهان د قصاص ګواهي ورکړي ثُمَّ رَجَعُوْا بَعْدَ الْقَتْلِ بیا هغوی تر قتل وروسته [له خپل ګواهۍ څخه] رجوع وکړي ضَمِنُوا الدِّيَةَ نو هغوی د دیت ضامن کیږي وَلَا يُقْتَصُّ مِنْهُمْ او له هغو څخه به قصاص نه اخیستل کیږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُقْتَصُّ مِنْهُمْ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي له هغو څخه به قصاص اخیستل کیږي لِوُجُوْدِ الْقَتْلِ مِنْهُمْ تَسْبِيْبًا ځکه چي د هغو له طرفه د سبب جوړېدلو په توګه قتل موجود سو [مطلب دا چي دوی د قتل سبب جوړ سول] فَأَشْبَهَ الْمُكْرَهَ نو دا مکره سو مشابه سو [کوم چي د بل چا له طرفه پر قتل کولو مجبوره سوی وي] بَلْ أَوْلٰى بلکي تر هغه هم بالا دي لِأَنَّ الْوَلِيَّ يُعَانُ ځکه چي [د مقتول] د ولي مرسته کیږي وَالْمُكْرَهَ يُمْنَعُ او مکره منع کول کیږي وَلَنَا: أَنَّ الْقَتْلَ مُبَاشَرَةً لَمْ يُوْجَدْ او زموږ دلیل دا دی: چي [د ګواهانو له طرفه] قتل په خپله کول نه دي موجود سوي وَكَذَا تَسْبِيْبًا او همدارنګه [د هغو له طرفه] سبب جوړېدل هم نه دي موجود سوي لِأَنَّ السَّبَبَ مَا يُفْضِيْ إِلَيْهِ غَالِبًا ځکه چي سبب هغه وي کوم چي په عامه توګه [حتما] تر کار [مُسبَّب] پوري رسول کوي [یعني کوم چي حتما دیو کار وجه جوړیږي] وَهٰهُنَا لَا يُفْضِيْ او دلته [د قتل په معامله کي] ګواهي قتل ته رسول نه کوي لِأَنَّ الْعَفْوَ مَنْدُوْبٌ ځکه چي معافول مستحب دي بِخِلَافِ الْمُكْرَهِ په خلاف د مکره لِأَنَّهُ يُؤْثِرُ حَيَاتَهُ ظَاهِرًا ځکه ښکاره همدا ده چي هغه خپل ژوند ته ترجیح ورکوي [یعني د خپل ژوند د ساتلو په خاطر قتل کوي] وَلِأَنَّ الْفِعْلَ الْاِخْتِيَارِيَّ مِمَّا يَقْطَعُ النِّسْبَةَ او ځکه چي اختیاري فعل له هغه شیانو څخه دی کوم چي [بل چا وطرف ته د فعل] نسبت ختموي ثُمَّ لَا أَقَلَّ مِنَ الشُّبْهَةِ بیا دا له شبهې څخه کم نه دی وَهِيَ دَارِئَةٌ لِلْقِصَاصِ او شبهه د قصاص دفع کونکې [ساقطونکې] ده [لکه مخکي چي څو ځله ذکر سوي دي چي د شبهې په وجه حدّ او قصاص ساقطیږي] بِخِلَافِ الْمَالِ په خلاف د مال لِأَنَّهُ يَثْبُتُ مَعَ الشُّبُهَاتِ ځکه چي مال د شبهاتو باوجود ثابتیږي وَالْبَاقِيْ يُعْرَفُ فِي الْمُخْتَلَفِ او پاته تفصیل به [د فقیه ابو اللیث] په کتاب "مختلف الروایه" کي معلوم سي.

**اللغات**: ﴿لا يقتص﴾ د افتعال د باب نفي صیغه ده: قصاص اخیستل (د مرګ بدله ځني اخیستل)، ﴿تسبيب﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: سبب جوړول، سبب جوړېدل. ﴿مُكرَه﴾ د افعال د باب مفعول

دی: مجبور کړی سوی، مراد ځني هغه کس دی چي بل څوک په زوره په هغه قتل کوي، يعني ديو چا پر قتل کولو مجبوره کړی سي، ﴿مُباشرة﴾ د مفاعلې د باب مفعول دی: په خپله يو کار کول، ﴿يُعان﴾ د مفاعلې د باب مضارع مجهوله ده: مرسته او کومک کول. ﴿يُفضِي﴾ د افعال د باب مضارع ده: رسول، رسېدل، وجه او سبب جوړېدل. ﴿عفو﴾ معاف کول، بخښل. ﴿دارئة﴾ د فتح د باب مؤنث فاعل دی: دفع کونکې، ليري کونکې.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که خالد دعویٰ وکړه چي "زيد په نا حقه قصداً زما پلار قتل کړی دی، لهذا زما د پلار قصاص دي له هغه څخه واخيستل سي"، لېکن زيد له دې څخه انکار وکړی، بيا مدعي يعني خالد دوه ګواهان پېش کړل او هغو دا ګواهي ورکړه چي هو! زيد د خالد پلار قتل کړی دی، او قاضي د هغو پر ګواهي فيصله وکړه او زيد قصاصاً قتل کړی سو، تر دې وروسته ګواهانو له خپل ګواهي څخه رجوع وکړه، نو په دې صورت کي پر ګواهانو د مقتول في القصاص (زيد) د وارثانو لپاره د ديت ضمان واجبېږي (يعني رجوع کونکي ګواهان به د زيد وارثانو ته ديت ورکوي) او زموږ په نېز پر دغه ګواهانو قصاص واجب نه دی، يعني له دوی څخه به د مقتول (زيد) قصاص نه اخيستل کيږي، همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله مسلک دی، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي له دوی څخه به د مقتول قصاص اخيستل کيږي يعني د زيد په قصاص کي به قتلول کيږي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي دا ګواهان که څه هم حقيقي قاتلان نه دي لېکن دوی د قتل سبب جوړېدونکي دي، ځکه چي د قصاص فيصله د همدوی د ګواهي په وجه وسوه او زيد قصاصاً قتل کړی سو، او که دوی ګواهي نه ورکولای نو ښکاره ده چي زيد به نه قتل کېدای، لهذا همدا ګواهان د قتل سبب جوړ سوي دي، نو د قتل په سبب جوړېدلو کي دوی د مُکرَه (مجبوراً قتل کونکي) سره مشابه سول، او له مُکرَه څخه قصاص اخيستل کيږي، نو ځکه له دوی څخه به هم قصاص اخيستل کيږي. بلکي دوی (په سبب جوړېدلو) کي له مُکرَه هم څخه بالا او مخته تللي دي، ځکه چي مُکرَه (مجبوراً قتل کونکی او مُکرِه) شريعت هم منع کوي چي قتل مه کوه! او خپل وارثان (قريبان) يې هم منع کوي او همدارنګه هغه کس کوم چي مجبوراً قتل کيږي، خلک او هغه هم نه قتل کېدلو څخه ساتي (نو په دې توګه له قتل څخه د خلاصېدلو امکان سته)، لېکن په ګواهي سره د قصاص او قتل کېدلو معامله يقيني سي چي د هغه په وجه نه شريعت او نه بل څوک قاتل له قتل څخه منع کولای سي، همدارنګه په دې باره کي د مقتول د ولي (وارث) هم مرسته کيږي په دې توګه چي د هغه نور قريبان او دوستان په دې باره کي د ګواهانو مرسته او هڅونه کوي (چي تاسو خامخا ګواهي ورکړئ! چي موږ قصاصاً هغه قتل کړو او د مځکي له سره يې ختم کړو)، نو ځکه د ګواهانو ګواهي د قتل په سبب جوړېدلو کي له اکراه څخه

هم بالا ده، او په شريعت کي له مُکرَه څخه قصاص اخيستل کيږي، نو له دوی څخه به هم خامخا قصاص اخيستل کيږي.

**زموږ دليل**: دا دی چي قتل د گواهانو له طرفه نه دی صادر سوی يعني هغو په خپل لاس قتل نه دی کړی، بلکي قتل خو د قاضي جلاد (د هغه په حکم او فيصله سره) کړی دی، او گواهان د قتل سبب هم نه دي جوړ سي، ځکه چي سبب هغه شي ته وايي کوم چي غالباً او حتماً (يقيناً) د يو کار د کېدلو وجه جوړ سي، او د قتل په معامله کي گواهي په حتمي (او خامخا) توگه د قتل کېدلو وجه نه جوړېږي، ځکه کېدای سي چي د مقتول (زيد) ولي او نور وارثان قاتل معاف کړي، ځکه معافول په شريعت کي مستحب دي لکه څرنگه چي په قرآن او حديث کي د دې ډېر فضيلت ذکر سوی دی، نو په دې خاطر ډېره ممکنه ده چي د مقتول وارثان او قريبان قاتل معاف کړي، نو ځکه د گواهانو گواهي قتل ته رسونکې نه ده او دوی د قتل کېدلو سبب نه دي، لهذا کله چي دوی په خپل لاس قتل هم نه دی کړی او دوی د قتل خاص سبب هم نه دي، نو بيا به څنگه دوی قصاصاً قتلول کيږي، نو ځکه موږ وايو چي له هغو څخه به قصاص نه اخيستل کيږي.

وبخلاف المُکرَه إلخ: په دې سره امام شافعي رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي چي مُکرَه قاتل (مجبوراً قتل کونکی) د خپل ژوند د بچاوېدلو په خاطر قتل کوي او د خپل ځان د ژغورلو په وجه هر بنديز د مخه ليري کوي او مطلوب کس قتل کوي، نو ځکه مُکرَه قاتل په حتمي او يقيني توگه د قتل کېدلو سبب دی، نو ځکه هغه به قصاصاً قتلول کيږي، د دې په خلاف د گواهي په صورت کي گواهان د قتل سبب کېدل يقيني او حتمي نه دي بلکي هلته د عفو امکانات سته، نو ځکه هغوی به قصاصاً نه قتلول کيږي.

ولأن الفعل إلخ: پر گواهانو د قصاص نه واجبېدلو دويم دليل دا دی چي په دې مسئله کي ولي په خپل اختيار سره (د جلاد په ذريعه) قاتل قتل کړی دی، هغه هيچا پر دې فعل نه دی مجبوره کړی، او قاعده دا ده چي کوم څوک په خپله خوښه او اختيار سره يو فعل وکړي، د هغه فعل نسبت هم د فاعل (کونکي) وطرف ته کيږي او اختياري فعل بالکل د بل چا وطرف ته نسبت ختموي، نو ځکي دلته به هم د قتل فعل د ولي وطرف ته منسوب کيږي، نه د گواهانو وطرف ته، او کله چي د گواهانو وطرف ته د قتل فعل منسوب نه دی، نو ښکاره خبره ده چي له هغو څخه به قصاص هم نه اخيستل کيږي.

ثم لا أقل إلخ: د دې حاصل دا دی چي که بيا هم موږ دا خبره تسليم کړو چي د قتل فعل د گواهانو وطرف ته منسوب دی، نو هم پر گواهانو قصاص نه واجبيږي؛ ځکه څرنگه چي يو طرف ته گواهان د قتل سبب دي، همداسي بل طرف ته د مقتول ولي او قاضي د دې فعل پوره کونکي دي. نو په يوه

اعتبار سره به قتل د ګواهانو وطرف ته منسوب وي او په بل اعتبار سره به د مقتول د ولي وطرف ته منسوب وي او په حقيقي قاتل کي به شبهه وي (چي هغه کوم يو دی؟)، او تاسو ته ښه معلومه ده چي په شبهي سره قصاص ساقطيږي، نو ځکه په دې مسئله کي به له ګواهانو څخه قصاص ساقطيږي.
لېکن څرنګه چي په دې قتل کي د هغو ګواهي هم شامله ده او تر يو اندازې پوري ګواهان هم په دې قتل کي لاس لري، نو ځکه پر هغو به د مقتول ديت واجب وي؛ ځکه چي ديت مال دی، او د مال کېدلو په وجه هغه په شبهي سره نه ساقطيږي بلکي د شبهاتو باوجود ثابتيږي.
په آخر کي فرمايي چي د دې مسئلې سره اړوند نور تفصيل د فقيه ابو الليث رَحِمَهُ الله په کتاب "مختلف الروايه" کي ذکر سوی دی.

## د فرعي ګواهانو د رجوع کولو په صورت کي د ضمان حکم

قَالَ: وَإِذَا رَجَعَ شُهُوْدُ الْفَرْعِ فرمايي: او که چيري فرعي ګواهان رجوع وکړي ضَمِنُوْا نو هغوی ضامن کيږي لِأَنَّ الشَّهَادَةَ فِي مَجْلِسِ الْقَضَاءِ صَدَرَتْ مِنْهُمْ ځکه چي د قضاوت په مجلس کي د هغو له طرفه ګواه واقع سوې ده [نه د اصل ګواهانو له طرفه] فَكَانَ التَّلَفُ مُضَافًا إِلَيْهِمْ نو ځکه ضايع کول به هم د هغو وطرف ته منسوب وي وَلَوْ رَجَعَ شُهُوْدُ الْأَصْلِ وَقَالُوْا لَمْ نُشْهِدْ شُهُوْدَ الْفَرْعِ عَلَى شَهَادَتِنَا او که چيري اصل ګواهان رجوع وکړي او دا ووايي: چي موږ فرعي ګواهان پر خپل شهادت ګواهان نه دي جوړ کړي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِمْ نو پر هغو ضمان واجب نه دی لِأَنَّهُمْ أَنْكَرُوا السَّبَبَ وَهُوَ الْإِشْهَادُ ځکه چي اصل ګواهانو [دلته] له سبب يعني له ګواه جوړولو څخه انکار کړی دی وَلَا يَبْطُلُ الْقَضَاءُ او قضاء [فيصله] هم نه باطليږي لِأَنَّهُ خَبَرٌ مُحْتَمَلٌ ځکه چي هغه [يعني د اصل ګواهانو قول] يو احتمالي خبر دی فَصَارَ كَرُجُوْعِ الشَّاهِدِ نو دا د اصل ګواه د رجوع کولو په څېر سوه بِخِلَافِ مَا قَبْلَ الْقَضَاءِ په خلاف تر قضاء مخکي [د اصل ګواه د انکار کولو].

**اللغات:** ﴿صدرت﴾ د نصر د باب ماضي ده: صادرېدل، واقع کېدل. ﴿مضاف﴾ د افعال د باب مفعول دی: منسوب. ﴿لم نُشهِد﴾ د افعال له بابه د جحد صيغه ده: ګواه جوړول (بل څوک پر يو شي ګواه کول).

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چي د شهادة على الشهادة په صورت کي که فرعي ګواهان له خپل ګواهۍ څخه رجوع وکړي، نو د هغو د ګواهۍ په وجه چي د مدعیٰ عليه څومره مال ضايع سوی وي،

پر هغو (فرعي ګواهانو) هغومره ضمان واجبیږي؛ ځکه چې د قاضي په مجلس کې اصل ګواهانو ګواهي نه ده ورکړې، بلکې همدا فرعي ګواهانو ورکړې ده، نو ځکه د مدعي علیه د مال ضایع کېدل به هم د دوی وطرف ته منسوب وي او همدا خلک به د هغه ضامن وي.

د دې په خلاف که اصل ګواهان له "اشهاد" یعني له ګواه جوړولو څخه رجوع وکړي او د قاضي مخته دا اقرار وکړي چې موږ فروع پر خپل ګواهي ګواهان نه دي جوړ کړي (یعني موږ فرعي ګواهانو ته نه دي ویلي چې تاسو زموږ پر ځای د قاضي په مجلس کې ګواهي اداء کړئ! او هغه مو خپل د ګواهي نمه واره نه دي جوړ کړي)، نو په دې صورت کې د ضایع سوي مال ضمان (تاوان) پر اصل ګواهانو نه واجبیږي؛ ځکه چې هغو د ضمان له سبب یعني له ګواه جوړولو څخه انکار کړی دی، او کله چې دوی د ضمان له سبب څخه منکر دي، نو ښکاره خبره ده چې پر دوی به ضمان هم واجب نه وي؛ ځکه چې سبب بغیر له مسببه نه موجودیږي.

ولا یبطل إلخ: فرمایي د فرعي ګواهانو پر ګواهي چې قاضي کومه فیصله کړې ده، هغه فیصله د اصل ګواهانو په رجوع کولو سره نه باطلیږي؛ ځکه چې د اصل ګواهانو دا قول او خبر "چې موږ هغه ګواهان نه دي جوړ کړي" د درواغ او رښتیا دواړو احتمال لري، او د احتمال په وجه د قاضي صادره سوې فیصله نه باطلیږي، نو ځکه مذکوره فیصله به پر خپل خال باقي پاتیږي. لکه څرنګه چې په هغه وخت کې د قاضي فیصله پر خپل حال پاتیږي او نه باطلیږي کله چې اصل ګواه په خپله ګواهي ورکړي او د هغه پر ګواهي قاضي فیصله وکړي بیا هغه له خپل ګواهي څخه رجوع وکړي، نو څرنګه چې په دې صورت کې د قاضي فیصله نه باطلیږي، همداسې به په پورتني صورت کې هم د قاضي دا فیصله نه باطلیږي.

هو! که چیرې د قاضي تر فیصلې مخکې اصل ګواهان انکار وکړي، یعني که قاضي تر اوسه د فرعي ګواهانو پر ګواهي فیصله نه وي کړې او په همدې وخت کې اصل ګواهان کې له "اشهاد" (ګواه جوړولو) څخه انکار وکړي، نو په دې صورت به کې قاضي د فرعي ګواهانو پر ګواهي فیصله نه کوي؛ ځکه چې په دې صورت کې هغو د قاضي تر فیصلې مخکې له تحمیل (ګواه جوړولو) څخه انکار کړی دی (چې موږ خپل د ګواهي بار پر فروعو نه دی اچولی او هغه موږ خپل د ګواهي نمه واره نه دي جوړ کړي)، حال دا چې د فرعي ګواهانو د ګواهي معتبر کېدلو لپاره تحمیل شرط دی.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَإِنْ قَالُوْا: أَشْهَدْنَاهُمْ وَغَلِطْنَا او که اصل گواهان ووايي: چې موږ هغوی گواهان جوړ کړي دي او موږ [د هغو په گواه جوړولو کې] خطاوتلي يو ضَمِنُوْا نو هغوی ضامن کيږي وَهٰذَا عِنْدَ مُحَمَّدٍ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَعِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوسُفَ ﷺ لَا ضَمَانَ عَلَيْهِمْ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر هغو ضمان واجب نه دی لِأَنَّ الْقَضَاءَ وَقَعَ بِشَهَادَةِ الْفُرُوعِ ځکه چې [د قاضي] فيصله د فرعي گواهانو په گواهۍ سره واقع سوې ده لِأَنَّ الْقَاضِيَ يَقْضِيْ بِمَا يُعَايِنُ مِنَ الْحُجَّةِ ځکه چې قاضي پر هغه دليل فيصله کوي کوم چې يې قاضي مشاهده [ليدنه] وکړي [مطلب دا چې قاضي پر هغه گواهۍ فيصله کوي کوم چې د قاضي مخته پېش کړل سي او گواهان يې حاضر وي] وَهِيَ شَهَادَتُهُمْ او هغه د فروعو [فرعي گواهانو] گواهي ده وَلَهُ: أَنَّ الْفُرُوعَ نَقَلُوا شَهَادَةَ الْأُصُولِ د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې فروعو د اُصولو گواهي نقل کړې ده فَصَارَ كَأَنَّهُمْ حَضَرُوْا نو دا داسې سوه لکه اُصول چې په خپله [د گواهۍ ورکولو لپاره] حاضر سوي وي.

**اللغات:** ﴿أشهدنا﴾ د افعال له بابه د جمع متکلم ماضي صيغه ده: گواه جوړول. ﴿غَلِطْنا﴾ د سمع له بابه مخکنۍ صيغه ده: غلطي کول، خطاوتل، تېروتل. ﴿يعاين﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: په سترگو ليدل، مشاهده کول. ﴿حجّة﴾ دليل، برهان.

**تشريح:** دا مسئله د مخکنۍ مسئلې برعکس ده. حاصل يې دا دی چې که اصل گواهان داسې اقرار وکړي چې موږ خو فروع پر خپل گواهۍ گواهان جوړ کړي دي، لېکن زموږ څخه په دې باره کې غلطي سوې ده، نو په دې صورت کې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز اصل گواهان ضامن کيږي، لېکن د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز نه ضامن کيږي.

**د شيخينو دليل:** دا دی چې قاضي فقط پر هغه گواهۍ فيصله کوي کوم چې د قاضي مخته پېش کړل سي او قاضي په خپله هغه ووينې او واوري، او څرنگه چې په دې صورت کې قاضي فقط د

---

ﷺ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله بعد تفصيل المسئلة: وأما صاحبُ النهاية فصرّح بأن عدم الضمان بالاجماع (مع أنه خلاف لصنيع اللمصنف رَحِمَهُ الله) (فتح القدير ج:۶، ص:۵۵۰)، و كذا في الدر المنتقى (ج:۳، ص:۳۰۳). [القول الراجح ج:۲،ص:۱۴۶]

فروعو ګواهي لیدلې او اورېدلې ده او د هغه مطابق یې فیصله هم کړې ده. نو ځکه د دې فیصلې سره به د اصل ګواهانو هیڅ تعلق نه وي، لهذا کله چې د قاضي د فیصلې سره د اصل ګواهانو هیڅ تعلق او واسطه نسته، نو ښکاره خبره ده چې پر هغو به ضمان هم واجب نه وي.

**د امام محمد دلیل:** دا دی چې په شهادة علی الشهادة کې د اصلي ګواهانو ګواهي اصل وي او فرعي ګواهان فقط د هغه نقل کونکي وي (یعني فروع فقط دا کار کوي چې د اصل ګواهانو ګواهي د قاضي په مجلس کې بیانوي)، نو ځکه د هغو ګواهي ورکول داسې دي لکه په خپله چې اصل ګواهان د قاضي مجلس ته حاضر سي او ګواهي ورکړي، او تاسو ته به معلومه وي چې که اصل ګواهان په خپله حاضر سي، ګواهي ورکړي او بیا له ګواهۍ څخه رجوع وکړي، نو پر هغو ضمان واجبیږي، نو ځکه په دې پورتني صورت کې به هم پر هغو ضمان واجبیږي.

## د اصلي او فرعي ټولو ګواهانو د رجوع کولو په صورت کې د ضمان حکم

وَلَوْ رَجَعَ الْأُصُوْلُ وَالْفُرُوْعُ جَمِيْعًا او که چیرې اصلي او فرعي ټوله ګواهان رجوع وکړي يَجِبُ الضَّمَانُ عِنْدَهُمَا عَلَى الْفُرُوْعِ لَا غَيْرَ نو د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز فقط پر فروعو ضمان واجبیږي، نه پر بل چا لِأَنَّ الْقَضَاءَ وَقَعَ بِشَهَادَتِهِمْ ځکه چې [د قاضي] فیصله د هغو پر ګواهۍ واقع سوې ده وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ الْمَشْهُوْدُ عَلَيْهِ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْأُصُوْلَ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز مدعیٰ علیه ته اختیار دی که وغواړي نو اُصول دې ضامن وګرځوي [یعني له اصل ګواهانو څخه دې ضمان واخلي] وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْفُرُوْعَ او که وغواړي نو فروع دې ضامن وګرځوي لِأَنَّ الْقَضَاءَ وَقَعَ بِشَهَادَةِ الْفُرُوْعِ مِنَ الْوَجْهِ الَّذِيْ ذَكَرَا ځکه چې د شیخینو رَحِمَهُمَا الله د ذکر سوي وجهې [دلیل] مطابق فیصله د فروعو په ګواهۍ سره واقع سوې ده وَبِشَهَادَةِ الْأُصُوْلِ مِنَ الْوَجْهِ الَّذِيْ ذَكَرَ او د امام محمد رَحِمَهُ الله د ذکر سوي وجهې مطابق د اُصولو په ګواهۍ سره واقع سوې ده فَيَتَخَيَّرُ بَيْنَهُمَا نو ځکه به مدعیٰ علیه ته د دواړو په مینځ کې اختیار وي وَالْجِهَتَانِ مُتَغَايِرَتَانِ او دواړه جهتونه یو له بل څخه جلا [علیحده] دي فَلَا يُجْمَعُ بَيْنَهُمَا فِي التَّضْمِيْنِ نو ځکه په ضامن ګرځولو کې به اُصول او فروع دواړه نه جمع کول کیږي [یعني فقط له یوه څخه به ضمان اخیستل کیږي او پر دواړو به نصف، نصف نه تاکل کیږي] وَإِنْ قَالَ شُهُوْدُ الْفَرْعِ: كَذَبَ شُهُوْدُ الْأَصْلِ أَوْ غَلِطُوْا فِيْ ذٰلِكَ او که چیرې فرعي ګواهان ووایي: چې اصل

گواهانو له خپل گواهۍ کې ادرواغ ویلي دي یا هغوی په دې باره کې خطاوتلي دي لَمْ يُلْتَفَتْ إِلَى ذٰلِكَ نو د هغه وطرف ته به توجه نه کیږي لِأَنَّ مَا أُمْضِيَ مِنَ الْقَضَاءِ ځکه کومه فیصله چې نافذه سوې ده لَا يُنْتَقَضُ بِقَوْلِهِمْ هغه به د دوی په قول سره نه ماتیږي وَلَا يَجِبُ الضَّمَانُ عَلَيْهِمْ او پر فروعو ضمان [هم] نه واجبیږي لِأَنَّهُمْ مَا رَجَعُوا عَنْ شَهَادَتِهِمْ ځکه چې هغو له خپل گواهۍ څخه رجوع نه ده کړې إِنَّمَا شَهِدُوا عَلَى غَيْرِهِمْ بِالرُّجُوعِ بلکي هغو له خپل ځان څخه بغیر پر بل چا د رجوع گواهي ورکړې ده.

**اللغات:** ﴿متغایرتان﴾ د تفاعل له بابه د تثنیه اسم فاعل صیغه ده: یو له بل څخه جلا او مختلف. ﴿تضمین﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: ضامن گرځول، پر یو چا ضمان لازمول. ﴿لم یلتفت﴾ د جحد له بابه د جحد مجهول صیغه ده: توجه کول، د یو شي وطرف ته مخ اړول، پاملرنه کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که اصل گواهان او فرعي گواهان ټول له گواهۍ څخه رجوع وکړي، نو د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز فقط په فرعي گواهانو باندي ضمان واجبیږي.

**د شیخینو دلیل:** دا دی چې قاضي فقط د فرعي گواهانو پر گواهۍ فیصله کړې ده، او څرنگه چې دلته هغو له خپل گواهۍ څخه رجوع کړې ده، نو ځکه د مدعیٰ علیه د مال ضایع کېدل به هم د هغو وطرف ته منسوب وي او ضمان به هم فقط پر هغو واجب وي.

او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز مدعیٰ علیه ته اختیار دی که وغواړي نو له اصل گواهانو څخه دي خپل ضمان (تاوان) واخلي او که وغواړي نو له فرعي گواهانو څخه دي هغه واخلي.

**د امام محمد دلیل:** دا دی چې د شیخینو رَحِمَهُمَا الله د بیان سوي دلیل مطابق فرعي گواهان ضامن دي او (په تېر عبارت کي) زموږ د بیان سوي دلیل مطابق اصل گواهان ضامن دي ځکه چې فروع فقط نقل کونکي دي، نو ځکه موږ د دواړو جهتونو په اعتبار کولو سره مدعیٰ علیه ته له اُصول او فروع دواړو څخه د ضمان اخیستلو اختیار ورکړی دی. او څرنگه چې پر اُصول او فروع د ضمان واجبېدلو په هکله دواړه دلیلونه یو له بل څخه متغایر او جلا دي؛ ځکه چې د اُصولو گواهي پر مشاهده (لیدنه) مبني ده او د فروعو گواهي پر نقل مبني ده، نو ځکه دا ضمان به په نصف، نصف سره پر اُصولو او فروعو دواړو نه واجبول کیږي، بلکي فقط په یوه فریق به ضمان ورکول کیږي.

وإن قال إلخ: فرمايي که د قاضي تر فيصلې وروسته فرعي ګواهان داسې ووايي چې "اصل ګواهانو پر مدعیٰ عليه درواغجنه ګواهي ورکړې ده، يا دوی په خپل ګواهي کې خطاوتلي او غلط سوي دي". نو د فروعو دغه قول ته به هيڅ توجه نه کيږي او په دې سره به د قاضي فيصله نه ماتول کيږي؛ دليل دا دی چې د هغو په دغه قول کې د درواغ او رښتيا دواړو احتمال سته. او د احتمال په وجه د قاضي نافذه سوې فيصله نه ماتيږي، همدارنګه د دې قول په وجه پر فروعو ضمان هم نه واجبيږي؛ ځکه چې هغو له ګواهي څخه رجوع نه ده کړې بلکې د بل چا يعني د اصل ګواهانو په خلاف يې د رجوع ګواهي کړې ده (چې هغوی درواغجن يا خطاوتلي دي. نو ګواکې هغو رجوع کړې ده). او په داسې ګواهي سره ضمان نه واجبيږي، نو ځکه پر هغو به هم ضمان واجب نه وي.

## له تزکيه (تعديل) کولو څخه د رجوع کولو حکم

قَالَ: وَإِنْ رَجَعَ الْمُزَكُّونَ عَنِ التَّزْكِيَةِ فرمايي: او که چيرې تزکيه کونکي له تزکيه څخه رجوع وکړي ضَمِنُوا نو هغوی ضامن کيږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا ۞: لَا يَضْمَنُونَ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې نه ضامن کيږي لِأَنَّهُمْ أَثْنَوْا عَلَى الشُّهُودِ خَيْرًا ځکه چې هغو د ګواهانو ښه تعريف کړی دی [او د هغو په باره کې يې د خير خبره کړې ده] فَصَارُوا كَشُهُودِ الْإِحْصَانِ نو هغوی د احصان د ګواهي ورکونکو په څېر سو وَلَهُ: أَنَّ التَّزْكِيَةَ إِعْمَالٌ لِلشَّهَادَةِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې تزکيه ګواهي ته عمل ورکوي [او هغه عمل کونکې ګرځوي] إِذِ الْقَاضِي لَا يَعْمَلُ بِهَا إِلَّا بِالتَّزْكِيَةِ ځکه چې قاضي فقط د تزکيه په ذريعه پر ګواهي عمل کوي فَصَارَتْ بِمَعْنَى عِلَّةِ الْعِلَّةِ نو تزکيه د علت العلت په معنیٰ سره سوه بِخِلَافِ شُهُودِ الْإِحْصَانِ په خلاف د احصان د ګواهانو لِأَنَّهُ شَرْطٌ مَحْضٌ ځکه چې هغه فقط شرط دی.

**اللغات:** ﴿تزکية﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، اصل معنیٰ يې ده: صفايي او پاکي کول، مراد ځنې د ګواهانو د ګواهي اهليت او صلاحيت بيانول دي، مثلاً داسې ويل: چې ګواهان د ګواهي اهل دي يعني عادلان او اعتباري خلک دي، نه فاسقان. ﴿أثنوا﴾ د افعال له بابه د جمع مذکر غائب ماضي

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الهندية:... والصحيح قول أبي حنيفة كذا في المضمرات (هندية ج:٣، ص:٥٥٧)، وكذا في البحر الرائق (ج:٧، ص:١٣٧). [القول الراجح ج:٢، ص:١٤۶]

صیغه ده: تعریف کول. ﴿إحصان﴾ د افعال د باب مصدر دی: واده والا کېدل. مخکې ذکر سوه چې کله انسان واده والا وي، آزاد او مسلمان وي، نو هغه ته "مُحْصِن" وایي. د رجم (سنګسارولو) لپاره د زاني محصن کېدل شرط دی، او که هغه محصن نه وي نو بیا به پر هغه اتیا (۸۰) درې حد جاري کیږي، او پر غلام او مینځه به څلوېښت (۴۰) درې حد جاري کیږي. ﴿إعمال﴾ مخکنۍ صیغه ده: د عمل قابل جوړول، عامل ګرځول، عمل ورکول.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که په یو معامله کي مثلاً څلورو ګواهانو ګواهي ورکړه او بیا قاضي یو څو معتمدو خلکو ته وویل چي تاسو د دې ګواهانو تزکیه وکړئ! (یعني دا معلومه کړئ! چي دوی عادلان دي، که نه)، بیا هغه معتمدو خلکو تزکیه وکړه یعني ویې ویل چي دا ګواهان د ګواهي ورکولو اهل او عادلان دي، او قاضي د هغو پر ګواهي فیصله وکړه، تر دې وروسته تزکیه کونکو رجوع وکړه، نو په دې صورت کي چي د مدعیٰ علیه کوم مال ضایع سوی، د هغه ضمان د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر تزکیه کونکو واجب دی، او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي پر هغو ضمان واجب نه دی.

**د صاحبینو دلیل**: دا دی چي تزکیه کونکو په خپل تزکیه (تعدیل) سره فقط د ګواهانو تعریف کړی دی او دوی یې د ګواهي اهل شمارلي دي، او هغو په خپل تزکیه کي پر هیڅ د حق او مال واجبېدلو ګواهي نه ده ورکړې، نو ځکه د هغو د تزکیې سره به د قاضي د فیصلې هیڅ تعلق نه وي او نه به هغو ته د مال د ضایع کولو (اتلاف) نسبت کیږي؛ او کله چي هغو ته د ضایع کولو نسبت نه کیږي، نو پر هغو به ضمان هم نه واجبیږي.

د دې مثال داسي دی لکه یو څو خلک چي دا ګواهي ورکړي چي فلانکي سړي زنا کړې ده، بیا نور ګواهان دا ګواهي ورکړي چي هغه سړی محصن هم دی، بیا قاضي صاحب د زنا او احصان د ګواهانو پر ګواهي د هغه سړي په باره کي د رجم فیصله وکړي او هغه رجم او سنګسار کړي، تر دې وروسته د احصان ګواهان له خپل ګواهي څخه رجوع وکړي، نو په دې صورت کي دغه د احصان ګواهان د رجم سوي سړي د وارثانو لپاره د دیت نه ضامن کیږي یعني پر هغو د رجم سوي سړي د دیت ضمان نه واجبیږي، لهذا څرنګه چي د احصان ګواهان له خپل ګواهي څخه د رجوع کولو په وجه نه ضامن کیږي، همداسي به تزکیه کونکي خلک هم له خپل تزکیه څخه د رجوع کولو په وجه نه ضامن کیږي.

**د امام صاحب دلیل**: دا دی چي ګواهي فقط د تزکیه په ذریعه عمل کوي او مفیده ګرځي، یعني په ګواهي سره فقط هغه وخت عمل کېدای سي کله چي د ګواهانو تزکیه او صفایي وسي، لنډه دا چي تزکیه د ګواهي د مفید او مؤثر ګرځولو علت دی (له تزکیه څخه بغیر ګواهي فایده نه ورکوي)، ځکه چي له تزکیه څخه بغیر قاضي د هیڅ پر ګواهي فیصله نه سي کولای، نو تزکیه د قاضي د فیصلې لپاره د علت العلت په معنیٰ سره سوه، او حکم چي څرنګه د علت وطرف ته منسوب کیږي، همداسي د علت العلت وطرف ته هم منسوب

کيږي. نو ځکه د مدعیٰ عليه د مال ضايع کول (اتلاف) به د تزکيه کونکو وطرف ته هم منسوب وي، او کله چې د هغو وطرف ته ضايع کول منسوب دي. نو د رجوع کولو په وجه به پر هغو ضمان هم واجب وي.

**بخلاف شهود الإحصان إلخ:** په دې سره صاحبينو رَحِمَهُمَا الله ته جواب ورکوي. حاصل يې دا دی چې د احصان پر ګواهانو د ضمان نه واجبېدلو وجه دا ده چې د احصان ګواهي ورکول د رجم علت نه دی بلکې د رجم لپاره محض يو شرط دی او هغه فقط د شرط په درجه کې دی. ځکه که ګرسره د احصان ګواهي نه ورکول شي نو بيا هم زنا ثابتيږي او د رجم پر ځای حد جاري کيږي (چې هغه اتيا دُرې دي)، لهذا د احصان د ګواهانو د ګواهي سره د زنا هيڅ تعلق نشته. نو ځکه د احصان ګواهي د علت العلت په درجه کې نه ده، او کله چې هغه د علت العلت په معنیٰ سره نه ده او د تزکيه د علت العلت په معنیٰ سره ده. نو د دغه فرق په وجه به د تزکيه کونکي د احصان پر ګواهانو قياسول هم صحيح نه وي.

## د ګواهي له يوې حصې څخه د رجوع کولو حکم

وَإِذَا شَهِدَ شَاهِدَانِ بِالْيَمِينِ او که چيرې دوه ګواهان د يمين [قسم اخيستلو] ګواهي ورکړي وَشَاهِدَانِ بِوُجُودِ الشَّرْطِ او دوه نور ګواهان د شرط موجودېدلو ګواهي ورکړي ثُمَّ رَجَعُوْا بيا ټوله رجوع وکړي فَالضَّمَانُ عَلَى شُهُوْدِ الْيَمِيْنِ خَاصَّةً نو [په دې صورت کې] خاص د يمين پر ګواهانو ضمان واجبيږي [نه د شرط پر ګواهانو] لِأَنَّهُ هُوَ السَّبَبُ ځکه چې همدا [د قسم اخيستلو ګواهي] سبب ده وَالتَّلَفُ يُضَافُ إِلَى مُثْبِتِي السَّبَبِ دُوْنَ الشَّرْطِ الْمَحْضِ او ضايع کېدل د سبب ثابتونکو [سبب جوړېدونکو] وطرف ته منسوب کيږي، نه د محض شرط ثابتونکو وطرف ته أَلَا تَرَى أَنَّ الْقَاضِيَ يَقْضِي بِشَهَادَةِ الْيَمِيْنِ دُوْنَ شُهُوْدِ الشَّرْطِ آيا ته نه ګورې! چې قاضي د يمين په ګواهي سره فيصله کوي، نه د شرط په ګواهانو سره وَلَوْ رَجَعَ شُهُوْدُ الشَّرْطِ وَحْدَهُمْ او که چيرې يوازې د شرط ګواهان رجوع وکړي اِخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ فِيْهِ نو په دې کې د مشايخو اختلاف کړی دی وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ يَمِيْنُ الْعَتَاقِ وَالطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُوْلِ او د مسئلې معنیٰ [او صورت] د غلام آزادولو قسم اخيستل دي او تر دخول مخکې د ښځې د طلاق قسم اخيستل دي.

**اللغات:** ﴿يمين﴾ قسم، (قسم اخيستل)، ﴿تَلَف﴾ د سمع د باب مصدر دی: ضايع کېدل، هلاکېدل، ﴿مثبتين﴾ د افعال له بابه د جمع مذکر اسم فاعل صيغه ده: ثابتونکي، ﴿عَتَاق﴾ آزادي (دا لفظ د لغاتو په کتابو کې په فتحه سره منقول دی).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که دوو خلکو د يو چا په خلاف د "يمين عتاق" ګواهي ورکړه يعنې دا ګواهي يې ورکړه چې فلانکي سړي خپل غلام ته مثلاً داسې قسم اخيستی دی "إِنْ دَخَلْتَ هٰذَا السُّوْقَ فَأَنْتَ

حُرٌّ" (که چیري ته دغه بازار ته داخل سوې، نو ته آزاد یې)، یا دوو خلکو د "طلاقِ یمین" قبل الدخول ګواهي ورکړه یعني دا ګواهي یې ورکړه چې فلانکي سړي خپلې ښځې ته تر دخول (وطي) مخکې داسې قسم اخیستی دی "إِنْ دَخَلْتِ هٰذِهِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ" (که چیري ته دغه کور ته داخله سوې، نو پر ما طلاقه یې). او تر دې وروسته دوه ګواهانو دا ګواهي ورکړه چې غلام بازار ته داخل سو، یا ښځه کور ته داخله سوه. تر دې وروسته څلور سره ګواهانو له خپل ګواهۍ څخه رجوع وکړه، نو د غلام ضمان او د نیم مهر ضمان فقط پر هغه دوو ګواهانو واجبیږي کوم چې د "یمین عتاق او طلاق" یعني د "إِنْ دَخَلْتَ...إلخ" د ویلو ګواهي یې ورکړې ده. او کومو ګواهانو چې د شرط موجودېدلو یعني بازار یا کوټ ته د داخلېدلو ګواهي ورکړې ده. پر هغو هیڅ ضمان نه واجبیږي؛ دلیل دا دی چې په دې مسئله کې د غلام د آزادۍ سبب او د ښځې د طلاق واقع کېدلو اصل سبب د یمین (قسم اخیستلو) ګواهي ده. او ضایع کېدل د سبب وطرف ته منسوب کیږي. د شرط وطرف ته نه منسوب کیږي، نو ځکه په دې مسئله کې به د غلام ضایع کول او د نیم مهر ضایع کول د هغه ګواهانو وطرف ته منسوب وي کوم چې د ضایع کېدلو سبب جوړ سوي دي. او څرنګه چې سبب جوړېدونکي فقط هماغه دوه ګواهان دي کوم چې د یمین منعقد کېدلو (قسم اخیستلو) ګواهي ورکړې ده. نو ځکه وویل سو چې ضمان فقط پر هغو واجبیږي؛ ځکه چې په حقیقت کې فقط د هغو په رجوع سره ضایع کېدل ثابت سوي دي.

ولو رجع إلخ: د دې حاصل دا دی چې که یوازې د شرط ګواهان رجوع وکړي او د یمین ګواهان رجوع نه وکړي، نو د شرط پر ګواهانو د ضمان واجبېدلو په هکله د فقهاؤ اختلاف دی، ځیني حضرات پر هغو ضمان واجبوي، او زیاتره حضرات یې نه واجبوي. او همدا قول صحیح دی.

ومعنی المسألة إلخ: فرمایي: په متن کې چې کوم د "یمین" لفظ راغلی دی، له هغه څخه مراد "یمین عتاق" او "یمین طلاق "قبل الدخول دی، لکه څرنګه چې په صورت د مسئلې کې مورږ د دې وضاحت وکړی.

په "یمین طلاق" کې د "قبل الدخول" قید په دې وجه لګول سوی دی، ځکه که چیري بعد الدخول د "یمین طلاق" ګواهي ورکول سي، نو په دې صورت کې پر ګواهانو د رجوع کولو په وجه د مهر ضمان نه واجبیږي، ځکه چې د طلاق بعد الدخول په صورت کې د دخول په وجه پر خاوند مهر واجب دی، برابره ده طلاق ورکړي، که یې نه ورکړي. او کله چې مهر د دخول په وجه پر خاوند واجب دی، نو په دې صورت کې د ګواهانو په ګواهۍ سره هیڅ شی هم نه ضایع کیږي، نو ځکه پر هغو به ضمان هم نه واجبیږي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# كِتَابُ الْوَكَالَةِ

(دا) کتاب د وکالت (دا حکامو په بیان کې) دی

**تشریح**: مخکې تر دې د کتاب الشهادة او د هغه د متعلقاتو بیان وسو، اوس له دې ځایه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د وکالت متعلقات او احکام بیانوي، په شهادت او وکالت کې دوه ډوله مناسبت سته: ① یو مناسبت دا دی چې څرنګه په شهادت (ګواهی) سره د بل چا مرسته کیږي همداسې په وکالت (وکیل کېدلو) سره هم د بل چا مرسته کیږي، یعني دواړه د بل چا د مرستې او کومک ذریعه ده. ② دویم مناسبت دا دی چې څرنګه د شهادت په ذریعه ثواب حاصلیږي، همداسې د وکالت په ذریعه هم ثواب حاصلیږي، یعني دواړه د حصول ثواب وسیله او ذریعه ده. نو ځکه شهادت او وکالت یو د بل سره پرلپسې بیان سوي دي، خو څرنګه چې شهادت له وکالت څخه عام دی، نو ځکه هغه تر وکالت مخکې بیان سوی دی او بیا تر "کتَابُ الشهادة" وروسته "کتَابُ الوکالة" بیان سوی دی.

**د وکالت لغوي او اصطلاحي معنی**: وَكَالة د "واو" په فتحه او کسره دواړه سره ویل کېدای سي (خو فتحه یې فصیح لغت دی)، د تفعیل د باب اسم هم دی او اسمِ مصدر هم دی ، لغوي معنیٰ یې ده: ① ورسپارل، ② حفاظت کول (ساتل)، مراد ځني وکیل جوړول دي.

د وکالت اصطلاحي معنیٰ ده: "په یو معلوم کار کې د تصرف کولو لپاره بل څوک خپل نائب او قائم مقام ټاکل".

**یادونه**: کوم سړی چې بل څوک د خپل ځان نائب او وکیل جوړ کړي، هغه ته مُوَكِّل وایي، مثلاً که خالد په یو عقد او معامله کې زید خپل نائب او ذمه وار جوړ کړي او کار هغه ته وسپاري، نو خالد مُوَكِّل دی او زید د هغه وَكِيل دئ او دغه فعل (وکیل جوړولو) ته وکالت او توکیل وایي.

وکالت او وکیل جوړول په کتاب، سنت، اجماع او قیاس ټولو سره ثابت دي، په قرآن کریم کې الله تعالیٰ د اصحاب الکهف په واقعه کې فرمایلي دي: "فَابْعَثُوٓا أَحَدَكُم بِوَرِقِكُمْ هَٰذِهِۦٓ إِلَى الْمَدِينَةِ فَلْيَنظُرْ ... إلخ" الكهف:١٩، (یعني کله چې اصحاب کهف له خوبه راپورته سول، نو هغو وویل چې په تاسو کې یو کس ته دا سکې ورکړئ! او ښار ته یې واستوئ!، بیا دي هغه اوګوري چې

کوم خوراک صفا او سپېڅلی وي هغه دي راوړي)، لنډه دا چې اصحاب کهفو په خپل مينځ کې يو سړی ته د سپينو زرو سکې (پيسې) په لاس ورکړې او د حلال خوراک د راوړلو وکيل يې جوړ کړی، نو معلومه سوه چې وکالت په قرآن سره ثابت دی.

په حديث سره په دې توګه ثابت دی چې نبي ﷺ حکيم بن حزام رضي الله عنه د قرباني د څاروي رانيولو او عمرو بن ام سلمه رضي الله عنه يې د نکاح کولو وکيل جوړ کړی دی.

او په اجماع سره په دې توګه ثابت دی چې له نبوي دور څخه تر نن ورځې پوري ټوله امت د وکالت پر جواز او مشروعيت متفق دی.

همدارنګه په اوږده او لیري سفرونو کې یا د يو بل عذر او ضرورت په وخت کې د مال او جايداد او د اهل و عيال د حفاظت کولو په خاطر خلګ وکالت ته مجبور هم دي، نو ځکه په عقل او قياس سره هم د هغه جواز او مشروع کېدل ثابت دي.

## وکيل جوړول په کومو معاملو کې جائز دي؟

قَالَ: كُلُّ عَقْدٍ جَازَ أَنْ يَعْقِدَهُ الْإِنْسَانُ بِنَفْسِهِ فرمايي: هر هغه عقد کوم چې د انسان لپاره جائز وي چې هغه په خپله [بذات خود] ترسره کړي [يعني هر هغه عقد کوم چې انسان په خپله کولای سي] جَازَ أَنْ يُوَكِّلَ بِهِ غَيْرَهُ نو دا [هم] جائز دي چې انسان پر هغه بل څوک وکيل جوړ کړي لِأَنَّ الْإِنْسَانَ قَدْ يَعْجِزُ عَنِ الْمُبَاشَرَةِ بِنَفْسِهِ ځکه چې ځيني وخت انسان په خپله له يو کار کولو څخه عاجزه وي عَلَىٰ اعْتِبَارِ بَعْضِ الْأَحْوَالِ د بعضي حالاتو په اعتبار کولو سره فَيَحْتَاجُ إِلَىٰ أَنْ يُوَكِّلَ غَيْرَهُ نو هغه دې ته محتاج [مجبوره] وي چې بل څوک وکيل جوړ کړي فَيَكُونَ بِسَبِيلٍ مِنْهُ دَفْعًا لِلْحَاجَةِ نو ځکه د حاجت دفع کولو په خاطر به د وکيل جوړولو ګنجائش او اجازت ا وي وَقَدْ صَحَّ[1] أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَكَّلَ بِالشِّرَاءِ حَكِيمَ بْنَ حِزَامٍ او په صحيح حديث سره ثابت دي چې نبي کريم ﷺ حکيم بن حزام رضي الله عنه د رانيولو وکيل جوړ کړی وَبِالتَّزْوِيجِ[2] عُمَرَ بْنَ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او [په صحيح حديث سره ثابت دي چې] عمرو بن ام سلمه رضي الله عنه يې د نکاح کولو وکيل جوړ کړی.

**اللغات**: ﴿عقد﴾ معامله، تړون. ﴿يعقده﴾ د ضرب د باب مضارع ده. کله چې د دغه باب په صله کې يو عقد او معامله ذکر سي، نو معنی يې ده: مضبوطول (ترسره کول، پوره کول)، تړون کول.

---

[1] تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب البيوع، باب في المضارب يضارب، ص:۴۹۱، حديث رقم:۳۳۸۶.

[2] تخريج: أخرجه النسائي، باب إنكاح الابن أمه، ص:۴۵۱، حديث رقم:۳۲۵۶.

﴿يوكّل﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: بل څوک وکيل جوړول. ﴿تـزويج﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: نکاح کول، نکاح تړل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د انسان لپاره چې د کوم عقد او معاملې کول جائز وي او انسان په خپله هغه کولای سي، په هغه عقد او معامله کي بل څوک د ځان وکيل جوړول هم جائز دي؛ دليل دا دی چې ځيني وخت انسان د ډېرو مصروفياتو په وجه، يا د ضعف او کمزورۍ په وجه، يا د يو بل عذر او ضرورت پر بناء له يو کار کولو څخه عاجزه وي او دې ته مجبوره وي چې بل څوک د ځان له طرفه وکيل جوړ کړي او د وکيل په ذريعه هغه کار وکړي، نو ځکه د ضرورت دفع کولو په خاطر وکيل جوړول جائز او صحيح ګرځول سوي دي.

نقلي دليل دا دی چې نبي کريم ﷺ په خپله حضرت حکيم بن حزام رضي الله عنه د قرباني د څاروي رانيولو وکيل جوړ کړی وو، همدارنګه په بل حديث کي له نبي کريم ﷺ څخه ثابت دي چې هغه حضرت عمر بن ام سلمه رضي الله عنه د نکاح کولو وکيل جوړ کړی وو، يعني کله چې دام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د نبي کريم ﷺ نکاح کېدله نو په دې وخت کي د هغې خپل ځوی عمر بن ام سلمه رضي الله عنه د هغې د نکاح کولو (نکاح تړلو) وکيل جوړ سو، نو له دې احاديثو څخه هم معلومه سوه چې وکيل جوړول شرعاً جائز او صحيح دي.

## د حق په مخاصمه (دعوىٰ) کي د وکيل جوړولو حکم

قَالَ: وَيَجُوزُ الْوَكَالَةُ بِالْخُصُومَةِ فِي سَائِرِ الْحُقُوقِ فرمايي: او د خصومت [دعوې] وکيل جوړول په ټولو حقوقو کي جائز دي لِمَا قَدَّمْنَا مِنَ الْحَاجَةِ د هغه ضرورت په وجه کوم چې مو ړ بيان کړی إِذْ لَيْسَ كُلُّ أَحَدٍ يَهْتَدِي إِلَى وُجُوهِ الْخُصُومَاتِ ځکه چې هر کس د خصوماتو طريقو ته لاره نه سي موندلای وَقَدْ صَحَّ * أَنَّ عَلِيًّا رضي الله عنه وَكَّلَ فِيهَا عَقِيلًا رضي الله عنه او په صحيح روايت سره ثابت دي چې حضرت علي رضي الله عنه په خصوماتو کي حضرت عقيل رضي الله عنه وکيل جوړ کړی وَبَعْدَمَا أَسَنَّ وَكَّلَ عَبْدَ اللهِ بْنَ جَعْفَرٍ رضي الله عنه او د هغه تر سپين ږيري کېدلو وروسته يې عبد الله بن جعفر رضي الله عنه وکيل جوړ کړی.

**اللغات:** ﴿الوكالة﴾ د تفعيل د باب اسم مصدر دیٰ: وکيل جوړول. ﴿خصومة﴾ جنګ او جنجال، دعوىٰ (دعوه). ﴿سائر﴾ د دې لفظ دوې معناوې دي: ① ټوله. ② پاته (نور). ﴿يهتدي﴾ د افتعال د

* تخريج: أخرجه سنن البيهقي، باب التوكيل في الخصومات مع الحضور والغيبة، ج:۶، ص:۱۴۴، رقم:۱۱۴۳۷.

دا اثر په دې الفاظو سره ذکر سوی دی: "عن عبد الله بن جعفر قال: كان علي بن أبي طالب يكره الخصومة، فكان إذا كانت له خصومة وكّل فيها عقيل بن أبي طالب، فلما كبر عقيل، وكّلني".

باب مضارع ده: لاره موندل. ﴿أسن﴾ د افعال د باب ماضي ده: عمر ډېر پېدل (سپین ږیري کېدل. بوډا کېدل).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې څرنګه د بیع او شراء لپاره وکیل جوړول جائز دي. همداسې په ټولو حقوقو کې وکیل بالخصومت یعنې د دعوې او مقدمې د کولو او پېښولو لپاره هم وکیل جوړول جائز دي؛ دلیل دا دی چې هر کس د قاضي په مجلس کې د دعوې په پېښولو او ثابتولو سم نه پوهیږي او د قاضي د مجلس په اُصولو او طریقو خبر نه وي. نو د دې کار لپاره څیرک او بلد انسان پکار دی. لهذا په دعوه داره معاملاتو کې هم وکیل جوړولو ته ضرورت سته. نو ځکه په هغوی کې به هم وکیل جوړول جائز او مشروع وي.

نقلي دلیل دا دی چې حضرت علي ﷺ خپل ورور حضرت عقیل ﷺ وکیل بالخصومت جوړ کړی وو. ځکه چې عقیل ډېر څیرک او حاضر جوابه وو؛ بیا چې کله حضرت عقیل ﷺ ډېر عمر ته ورسېدی او ضعیف سو، نو حضرت عبد الله بن جعفر ﷺ یې وکیل بالخصومت جوړ کړی. لهذا د حضرت علي ﷺ دغه فعل هم په واضحه توګه د وکیل بالخصومت پر جواز دلالت کوي.

## د پورتنۍ مسئلې بل صورت

وَكَذَا بِإِيْفَائِهَا وَاسْتِيْفَائِهَا إِلَّا فِي الْحُدُوْدِ وَالْقِصَاصِ او همدارنګه د حقوقو د اداء کولو او اخیستلو وکیل جوړول هم جائز دي. مګر په حدونو او قصاص کې فَإِنَّ الْوَكَالَةَ لَا تَصِحُّ بِاسْتِيْفَائِهَا مَعَ غَيْبَةِ الْمُوَكِّلِ عَنِ الْمَجْلِسِ لهذا [د قاضي] له مجلس څخه د مؤکل د غائبوالي په وخت کې د حدونو او قصاص د اخیستلو [جاري کولو] وکیل جوړول جائز نه دي لِأَنَّهَا تَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ ځکه چې حدود او قصاص په شبهاتو سره ساقطیږي وَشُبْهَةُ الْعَفْوِ ثَابِتَةٌ حَالَ غَيْبَةِ الْمُوَكِّلِ او د مؤکل د غائب والي په حالت کې [د قاتل] د معاف کولو شبهه موجوده ده بَلْ هُوَ الظَّاهِرُ لِلنَّدْبِ الشَّرْعِيِّ بلکې د شرعاً مستحب کېدلو په وجه همدا ښکاره ده [یعني څرنګه چې په شریعت کې معافول مستحب دي نو ځکه د مسلمان ظاهري حالت همدا دي چې قاتل به معاف کړي] بِخِلَافِ غَيْبَةِ الشَّاهِدِ په خلاف د ګواه د غائبوالي لِأَنَّ الظَّاهِرَ عَدَمُ الرُّجُوْعِ ځکه چې [د هغه په حق کې] رجوع نه کول ښکاره دي وَبِخِلَافِ حَالَةِ الْحَضْرَةِ او په خلاف د مؤکل د موجود والي لِانْتِفَاءِ هٰذِهِ الشُّبْهَةِ ځکه چې [په دې صورت کې] د معاف کولو شبهه نسته وَلَيْسَ كُلُّ أَحَدٍ يُحْسِنُ الْاِسْتِيْفَاءَ او هر کس د قصاص اخیستل [جاري کول]

په بنه توګه نه سي کولای [يعني پر دې قدرت نه لري] فَلَوْ مُنِعَ عَنْهُ لهذا که چيري له وکيل جوړولو څخه منع وسي يَنْسَدُّ بَابُ الِاسْتِيفَاءِ أَصْلًا نو بالکل به د قصاص اخيستلو دروازه بنده سي وَهٰذَا الَّذِي ذَكَرْنَاهُ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ او دا کوم [حکم] چي موږ ذکر کړی دی [دا] د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ❁: لَا تَجُوزُ الْوَكَالَةُ بِإِثْبَاتِ الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ بِإِقَامَةِ الشُّهُودِ أَيْضًا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د ګواهانو د پېشولو په ذريعه د حدونو او قصاص د ثابتولو لپاره وکيل جوړول [هم] جائز نه دي وَمُحَمَّدٌ مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ او امام محمد رَحِمَهُ الله د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی وَقِيلَ: مَعَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمُ او ويل سوي دي: چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره دی وَقِيلَ: هٰذَا الِاخْتِلَافُ فِي غَيْبَتِهِ دُونَ حَضْرَتِهِ او ويل سوي دي: چي دا اختلاف د مؤکل په غائبوالي کي دی، نه د هغه په موجود والي کي لِأَنَّ كَلَامَ الْوَكِيلِ يَنْتَقِلُ إِلَى الْمُوَكِّلِ عِنْدَ حُضُورِهِ ځکه چي د مؤکل د موجوديت په وخت کي د وکيل کلام د هغه وطرف ته منتقل کيږي فَصَارَ كَأَنَّهُ مُتَكَلِّمٌ بِنَفْسِهِ نو دا داسي سوه لکه مؤکل چي په خپله متکلم [کلام کونکی] دی لَهُ: أَنَّ التَّوْكِيلَ إِنَابَةٌ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي وکيل جوړول [ګواکي] نائب جوړول دي وَشُبْهَةُ النِّيَابَةِ يُتَحَرَّزُ عَنْهَا فِي هٰذَا الْبَابِ او د حدود او قصاص په باب کي د نائب والي له شبهي څخه [هم] ځان ساتل کيږي كَمَا فِي الشَّهَادَةِ عَلَى الشَّهَادَةِ لکه په شهادة على الشهادة کي وَكَمَا فِي الِاسْتِيفَاءِ او لکه د قصاص په اخيستلو کي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْخُصُومَةَ شَرْطٌ مَحْضٌ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي خصومت فقط يو شرط دی لِأَنَّ الْوُجُوبَ مُضَافٌ إِلَى الْجِنَايَةِ ځکه چي [د حد او قصاص] واجبېدل د جرم وطرف ته منسوب وي وَالظُّهُورَ إِلَى الشَّهَادَةِ او د جرم ښکاره کېدل د ګواهي وطرف ته منسوب وي فَيَجْرِي فِيهِ التَّوْكِيلُ كَمَا فِي سَائِرِ الْحُقُوقِ نو ځکه د نورو حقوقو په څېر به په دې کي هم توکيل [وکيل جوړول] جاري کيږي.

**اللغات:** ﴿إيفاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: (پوره) اداء کول. ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: (خپل حق پوره) اخيستل، حاصلول، ترلاسه کول. استيفاء الحدّ والقصاص: د حد او

---

❁ القول الراجح: قول الامام اعظم رَحِمَهُ الله، لأن محمد مع أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، وترجيح قوله ثابت من أصول الافتاء، كما ذكر في الكفاية: وقول محمد مع أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، وهو الأظهر (ج:۶، ص:۵۵۹)، وكذا في المبسوط (فتح القدير ج:۵، ص:۵۵۷). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۴۷]

قصاص اخیستل یعني حد او قصاص جاري کول. ﴿غیبة﴾ غائبوالی، ناموجودیت (ناموجودوالی). ﴿تندرئ﴾ د انفعال د باب مضارع ده: لیرې کېدل، دفع کېدل (ساقطېدل). ﴿متکلم﴾ د تفعل د باب فاعل دی: کلام کونکی، خبره کونکی. ﴿إنابة﴾ د افعال د باب مصدر دی: قائم مقام جوړول. ﴿جناية﴾ جرم، د ګناه کار.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې هم د حقونو د اداء کولو لپاره وکیل جوړول جائز دي او هم د حقونو د اخیستلو لپاره دا جائز دي، برابره ده مؤکل په مجلس کې موجود وي، که نه وي، لېکن دوه حقونه داسې دي چې د مؤکل په ناموجودیت کې د هغه وکیل جوړول جائز نه دي: (۱) حدود، (۲) قصاص، یعني که مؤکل د قاضي په مجلس کې موجود نه وي نو د دې دوه حقوقو د اخیستلو (جاري کولو) لپاره وکیل جوړول جائز نه دي، لېکن که مؤکل موجود وي نو بیا د هغه لپاره هم وکیل جوړول جائز دي؛ دلیل دا دی چې حد او قصاص دواړه په شبهاتو سره ساقطېږي، او د مؤکل په ناموجودیت کې د مجرم او قاتل د معاف کولو (بخښلو) شبهه سته، ځکه د قرآن کریم د دې آیتونو په رڼا کې معاف کول مستحب او غوره عمل دی: ﴿وَأَنْ تَعْفُوا أَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى﴾ [البقرة:۲۳۷]، ﴿وَالْكَاظِمِيْنَ الْغَيْظَ وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ﴾ [آل عمران:۱۳۴]، نو د دغه مستحب والي په خاطر د مؤکل له طرفه د معاف کولو او بخښلو قوي امکان سته، نو ځکه د هغه په ناموجودیت کې د وکیل په ذریعه د حد یا قصاص اخیستل (جاري کول) جائز نه دي.

بخلاف غيبة الشاهد إلخ: د دې په خلاف که ګواهان د حد یا قصاص ګواهي ورکړي بیا هغوی د قاضي له مجلس څخه غائب سي، نو د هغو په ناموجودیت کې هم د حد یا قصاص فیصله کول جائز دي؛ ځکه که څه هم د هغو له طرفه د رجوع کولو شبهه سته، لېکن د رجوع نه کولو امکان یې قوي دی، ځکه چې د رجوع کولو په وجه پر هغو د کذب او فسق (فاسق والي) تهمت لګول کېږي او پر مسلمان په هره توګه له داسې تهمتونو څخه ځان ساتي، لهذا د ګواهانو په حق کې د رجوع نه کولو امکان قوي دی، نو په دې وجه تر ګواهي ورکولو وروسته د ګواهانو د غائبوالي په حالت کې هم د حد یا قصاص فیصله کول جائز دي.

وبخلاف حالة الحضرة إلخ: همدارنګه کله چې مؤکل په خپله د قاضي په مجلس کې حاضر او موجود وي او بیا د هغه په موجودیت کې وکیل حد یا قصاص ثابت کړي او وایې خلي، نو دا جائز دي؛ ځکه چې اوس د معاف کولو شبهه ختمه سوه، ځکه که مؤکل معاف کولای نو هغه به یې دلته معاف کړي

واې او د وکيل په ذريعه به يې حد يا قصاص نه اخيستلای، لهذا د مؤکل په موجوديت کې د عفو شبهه نسته، نو ځکه د مؤکل په موجوديت کې د وکيل لپاره قصاص اخيستل جائز او صحيح دي.

ها! کم از کم دا اعتراض کېداې سي چې کله مؤکل په خپله موجود وي نو بيا د وکيل لپاره ولې قصاص اخيستل (جاري کول) جائز دي، مؤکل يې ولې په خپله نه اخلي.

نو د دې جواب دا دی چې هر کَس په ښه توګه د قصاص پر اخيستلو قدرت نه لري يعني د قاعدې مطابق حد او قصاص اخيستل نه پېژني، لهذا که د مؤکل په موجوديت کې د وکيل په ذريعه د حد او قصاص اخيستل ممنوع وګرځول سي، نو ګرسره د اخيستلو (اسيتفاء) دروازه به بنده سي؛ لهذا د مؤکل د موجود والي په حالت کې هم توکيل (وکيل جوړولو) ته ضرورت سته، نو ځکه دا جائز ګرځول سوي دي.

وهذا الذي إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د توکيل د جائز کېدلو او نه جائز کېدلو چې کوم صورتونه موږ دلته ذکر کړي دي، دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دي.

وقال أبويوسف إلخ: په دې عبارت سره بل صورت بيانوي، حاصل يې دا دی چې که مؤکل موجود نه وي نو د ګواهۍ په ذريعه د حد يا قصاص د ثابتولو لپاره وکيل جوړول يعني د وکيل په ذريعه حد يا قصاص ثابتول د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز جائز نه دي، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي، يعني د مؤکل د نا موجوديت په وخت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز فقط د حد يا قصاص اخيستل ناجائز دي، لېکن ثابتول يې جائز دي. او پاته سو امام محمد رَحِمَهُ الله نو ځينې حضرات وايي چې هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی، او د ځيني حضراتو رايه دا ده چې هغه هم د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره دی.

وقيل إلخ: فرمايي: ځيني حضرت وايي چې د امام صاحب او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله دغه اختلاف په هغه صورت کې دی کله چې مؤکل موجود نه وي، لېکن که مؤکل موجود وي نو د دواړو په نېز د وکيل په ذريعه حد يا قصاص ثابتول جائز دي؛ ځکه چې د مؤکل په موجوديت کې د وکيل کلام او خبري د مؤکل وطرف ته منتقل کيږي او همدا مؤکل متکلم شمارل کيږي، يعني ګواکي مؤکل په خپله حد او قصاص ثابتوي او په خپله خبري کوي، او تاسو ته به معلومه وي چې که مؤکل په خپله حد يا قصاص ثابت کړي نو دا جائز دي، نو ځکه د ده په موجوديت کې به د وکيل په ذريعه هم د هغه ثابتول جائز او صحيح وي. لېکن که مؤکل په مجلس کې موجود نه وي، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله

په نېز د وکيل په ذريعه ثابتول جائز نه دي، او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چې جائز دي (لکه څ مخکې چې هم ذکر سوه).

له: أن التوكيل إلخ: په مختلف فيه مسئله کې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې کله مؤکل په مجلس کې موجود نه وي، نو وکيل جوړول داسې دي لکه نائب جوړول، او نائب جوړول يو قسم شبهه ده (يعني په نائب والي کې د بدليت شبهه سته. يعني کله چې مؤکل موجود نه وي نو ګواکې وکيل د هغه بدل دی (الثمار الهدايه)، او په حد او قصاص کې له هر ډول شبهې څخه په پوره توګه ځان ساتل کيږي. کنې هغه ساقطيږي، لکه څرنګه چې د بدليت د شبهې په وجه په حد او قصاص کې شهادت على الشهادت (پر ګواهي د پاسه ګواهي ورکول) جائز نه دي، او لکه څرنګه چې د مؤکل په ناموجوديت کې د معافولو د شبهې په وجه حد او قصاص اخيستل جائز نه دي، همداسې به د هغه په ناموجوديت کې د مذکوره شبهې په وجه د وکيل په ذريعه حد يا قصاص ثابتول هم جائز نه وي.

ولأبي حنيفة إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل آسانه مطلب دا دی چې حد او قصاص د جرم (جنايت) په وجه واجبيږي، د خصومت يعني د دعوىٰ کولو په وجه نه واجبيږي (يعني په دې وجه نه واجبيږي چې مؤکل يا وکيل د دې دعوىٰ وکړه)، دعوىٰ کول خو محض يو شرط دی، او په ګواهي ورکولو سره دا جرم ښکاره کيږي او ثابتيږي، لنډه دا چې د حد او قصاص مدار پر دعوىٰ کولو نه دی، او کله چې د هغه مدار پر دعوىٰ کولو نه دی، نو هغه د عامو حقونو په څېر يو حق دی، لهذا څرنګه چې د نورو حقونو د ثابتولو لپاره وکيل جوړول جائز دي، همداسې د حد يا قصاص د ثابتولو لپاره هم وکيل جوړول جائز دي.

(او دعوىٰ کول [خصومت] ځکه محض شرط دی چې حد او قصاص خو د جرم په وجه واجبيږي او جرم په ګواهۍ سره ښکاره کيږي، او په دې کې يو شی هم د دعوې [خصومت] سره متعلق نه دی، نو ځکه هغه محض شرط دی)

## په حدّ او قصاص کې دَ متهم مجرم له طرفه په جواب ورکولو کې د وکالت حکم

وَعَلَىٰ هٰذَا الْخِلَافِ التَّوْكِيلُ بِالْجَوَابِ مِنْ جَانِبِ مَنْ عَلَيْهِ الْحَدُّ وَالْقِصَاصُ او پر همدغه اختلاف دي د من عليه الحد والقصاص له طرفه د جواب ورکولو وکيل جوړول وَكَلَامُ أَبِي حَنِيفَةَ فِيهِ أَظْهَرُ او په دې باره کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله کلام زيات واضح دی لِأَنَّ الشُّبْهَةَ لَا تَمْنَعُ الدَّفْعَ ځکه چې شبهه د حد دفع کول [ساقطول] نه منع کوي [يعني شبهه د حدّ دفع کولو لپاره مانع نه ده] غَيْرَ أَنَّ إِقْرَارَ الْوَكِيلِ غَيْرُ

مَقْبُولٍ عَلَيْهِ لیکن د مؤکل په خلاف د وکیل اقرار مقبول نه دی لِمَا فِيهِ مِنْ شُبْهَةِ عَدَمِ الْأَمْرِ بِهِ ځکه چې په دې کې د حکم نه کولو شبهه سته [یعني کېدای سي مؤکل هغه ته حکم نه وي کړی].

**اللغات**: ﴿مَن علیه الحدّ والقصاص﴾ هغه کس چې پر هغه د حد یا قصاص دعویٰ سوې وي "چې پر تا حد یا قصاص لازم دی".

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې پر کوم سړي د حد یا قصاص دعویٰ سوې وي، که هغه د خپل ځان له طرفه د جواب ورکولو (او حدّ دفع کولو) لپاره بل څوک وکیل جوړ کړي، نو په دې صورت کې هم د امام صاحب او امام ابو یوسف رَحِمَهُمَا الله پور تنی اختلاف سته. یعني د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د دغه سړي (من علیه الحدّ والقصاص) لپاره دا جائز نه دي چې د خپل ځان له طرفه یو څوک وکیل جوړ کړي، لیکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک واضح دی چې د هغه په نېز دا جائز دي (یعني دا ښکاره خبره ده چې د هغه په نېز داسي کول جائز دي)؛ ځکه کله چې د هغه په نېز د حد او قصاص د ثابتولو لپاره هم وکیل جوړول جائز دي، نو د حد دفع کولو لپاره به خو په درجه اولیٰ وکیل جوړول جائز وي (ځکه چې حدّ دفع کول او لیري کول ډېر غوره کار دی).

• ها! که چیري وکیل د قاضي په مجلس کي د مؤکل په خلاف د یو شي اقرار وکړي، مثلاً دا اقرار وکړي چې هو! زما مؤکل قاتل دی، نو د وکیل دا اقرار به نه قبلول کیږي؛ ځکه په دې کي دا شبهه سته چې مؤکل به وکیل ته د اقرار کولو حکم نه وي کړی. او د هغه له حکم څخه بغیر وکیل ته د اقرار کولو حق نسته، نو ځکه د وکیل دا اقرار معتبر نه دی.

## په وکالت کي د دویم فریق د رضاء شرط کېدلو بیان

وَقَالَ أَبُو حَنِيفَةَ: لَا يَجُوزُ التَّوْكِيلُ بِالْخُصُومَةِ مِنْ غَيْرِ رِضَاءِ الْخَصْمِ امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمایي: چې د خصم له رضا څخه بغیر د خصومت [دعوې] وکیل جوړول جائز نه دي [یعني د یوه خصم لپاره د بل خصم له رضا او خوښی څخه بغیر وکیل بالخصومت جوړول جائز نه دي] إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْمُوَكِّلُ مَرِيضًا أَوْ غَائِبًا مَسِيرَةَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فَصَاعِدًا مګر دا چې مؤکل مریض وي یا د دریو ورځو یا له دې څخه د زیات مودت پر مسافه غائب وي وَقَالَا*: يَجُوزُ التَّوْكِيلُ بِغَيْرِ رِضَاءِ الْخَصْمِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې د

* القول الراجح: قول الصاحبین رَحِمَهُمَا الله، کما ذکر في الهندیه (ج:۳، ص:۶۱۵)، وکذا في البحر الرائق (ج:۷، ص:۱۴۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۱۴۸]

خصم له رضا څخه بغير هم وكيل جوړول جائز دي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي قول دی وَلَا خِلَافَ فِي الْجَوَازِ او دا اختلاف [د توكيل] په جواز كي نه دى [بلكي داسي وكيل جوړول جائز دي] إِنَّمَا الْخِلَافُ فِي اللُّزُومِ بلكي اختلاف [د دې توكيل] په لازميدلو كي دی لَهُمَا: أَنَّ التَّوْكِيلَ تَصَرُّفٌ فِي خَالِصِ حَقِّهِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي وكيل جوړول [د مؤكل لپاره] په خپل خالص حق كي تصرف كول دي فَلَا يَتَوَقَّفُ عَلَى رِضَاءِ غَيْرِهِ نو ځكه هغه به د بل چا [بل خصم] پر رضا موقوف نه وي كَالتَّوْكِيلِ بِتَقَاضِي الدُّيُونِ لكه د قرضونو د اخيستلو [پور راكښلو] لپاره وكيل جوړول وَلَهُ: أَنَّ الْجَوَابَ مُسْتَحَقٌّ عَلَى الْخَصْمِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي پر خصم جواب وركول لازم دي وَلِهَذَا يَسْتَحْضِرُهُ او په همدې وجه مدعي خپل خصم [مدعىٰ عليه] د قاضي مجلس ته راحاضروي وَالنَّاسُ مُتَفَاوِتُونَ فِي الْخُصُومَةِ او په دعوىٰ كولو كي خلک سره مختلف وي [يعني په خصومت كي د خلكو حالات مختلف او سره جلا وي] فَلَوْ قُلْنَا بِلُزُومِهِ نو كه چيري موږ د هغه د لزوم خبره وكړو يَتَضَرَّرُ بِهِ نو په دې سره بل چا [بل خصم] ته ضرر ورسيږي فَيَتَوَقَّفُ عَلَى رِضَائِهِ نو ځكه دا توكيل به د هغه [بل خصم] پر رضا موقوف وي كَالْعَبْدِ الْمُشْتَرَكِ إِذَا كَاتَبَهُ أَحَدُهُمَا لكه مشترک غلام چي كله يو شريک مكاتب جوړ كړي يَتَخَيَّرُ الْآخَرُ نو بل شريک ته اختيار حاصليږي بِخِلَافِ الْمَرِيضِ وَالْمُسَافِرِ په خلاف د مريض او مسافر لِأَنَّ الْجَوَابَ غَيْرُ مُسْتَحَقٍّ عَلَيْهِمَا هُنَالِكَ ځكه چي هلته [يعني د مرض او سفر په حالت كي] پر هغو جواب وركول واجب نه دي ثُمَّ كَمَا يَلْزَمُ التَّوْكِيلُ عِنْدَهُ مِنَ الْمُسَافِرِ او بيا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز چي څرنګه د مسافر له طرفه وكيل جوړول [جائز او] لازم ګرځي يَلْزَمُ إِذَا أَرَادَ السَّفَرَ همداسي د سفر په اراده كولو سره هم هغه [جائز او] لازم ګرځي لِتَحَقُّقِ الضَّرُورَةِ ځكه چي ضرورت ثابت دی وَلَوْ كَانَتِ الْمَرْأَةُ مُخَدَّرَةً لَمْ تَجْرِ عَادَتُهَا بِالْبُرُوزِ وَحُضُورِ مَجْلِسِ الْحَاكِمِ او كه چيري ښځه پرده ناكه وي چي دباندي وتل او د قاضي مجلس ته حاضريدل د هغې عادت نه وي قَالَ الرَّازِيُّ: يَلْزَمُ التَّوْكِيلُ نو امام ابو بكر رازي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [د داسي ښځي] توكيل لازم دی لِأَنَّهَا لَوْ حَضَرَتْ ځكه كه چيري داسي ښځه [د قاضي

مجلس ته] حاضره هم سي لَايُمْكِنُهَا أَنْ تَنْطِقَ بِحَقِّهَا لِحَيَائِهَا نو [هم] به د شرم په وجه د خپل حق په هکله خبره نه سي کولای فَيَلْزَمُ تَوْكِيلُهَا نو ځکه د هغې توکيل اوکيل جوړول] به لازم وي قَالَ: وَهٰذَا شَيْءٌ اسْتَحْسَنَهُ الْمُتَأَخِّرُوْنَ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا قول متأخرينو فقهاوو غوره گرځولی دی.

**اللغات**: ﴿توكيل بالخصومة﴾ د دعوې وکيل جوړول (چي زما پر ځای ته د قاضي په مجلس کي دعویٰ وکړه او هغه ثابته کړه)، داسي وکيل ته وکيل بالخصومت وايي، ﴿رضاء﴾ او رِضاً: خوښه، رضا (رضامندي)، راضي کېدل (معجم وسيط)، ﴿خصم﴾ د دعوې يو فريق، يعني مدعي يا مدعیٰ عليه، دوی يو د بل خصم دي، ﴿مسيرة﴾ مسافه (مسافت)، فاصله، واټن، ﴿فصاعدًا﴾ يا تر دې زيات، ﴿مخدّرة﴾ له خِدْرٌ څخه مشتق دی. خِدْر هغه ځای او خوني (کمرې) ته وايي چي ښځه پکښي اوسيږي، او مُخَدَّرة هغه ښځي ته وايي کوم چي له خپل کور (خِدْر) څخه نه وځي او په خلکو ځان نه ورښي بلکي خپل کور يې لازم نيولی وي، پرده ناکه او شرمناکه ښځه، ﴿بروز﴾ د نصر د باب مصدر دی: ښکاره کېدل، څرگندېدل، مخته راتلل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي برابره ده خصم مدعي وي او که مدعیٰ عليه، په هر صورت کي د يوه لپاره د بل له رضا څخه بغير د خصومت (دعوې) وکيل جوړول جائز نه دي (په لنډه توگه دا چي د يوه خصم لپاره دا جائز نه دي چي د بل خصم له رضا څخه بغير د ځان لپاره وکيل بالخصومت وټاکي)، هاکه چيري مؤکل مريض وي، يا د سفر د مودت پر مسافه غائب او ليري وي (يعني د درې ورځو يا له دې څخه د زياتو ورځو پر مسافه يو خوا ته تللی وي)، نو په دې صورت کي د بل خصم له رضا څخه بغير وکيل بالخصومت ټاکل جائز دي، او دا تفصيل د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز حکم دا دی چي برابره مؤکل حاضر وي او که غائب، په هر صورت کي وکيل جوړول جائز دي او د بل خصم رضا ضروري نه ده. همدا د امام شافعي، امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمُ الله مسلک هم دی. لېکن دا خبره په يادلرئ! چي د امام صاحب او صاحبينو دغه اختلاف اصلاً د توکيل بالخصومت په لزوم کي دی، د هغه په جواز او نا جواز کي نه دی، يعني څرنگه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز وکيل بالخصومت جوړول جائز دي، همداسي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هم جائز دي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د جائز کېدلو سره، سره دا توکيل لازم هم دی، يعني کله چي وکيل

بالخصومت (د دعوې وکیل) د قاضي په مجلس کې دعویٰ پېش کړي، نو پر خصم دا لازم دي چې د قاضي مجلس ته حاضر سي او د دعوې جواب ورکړي، برابره ده خصم په دې راضي وي او که نه وي، لیکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د خصم له رضا څخه بغیر دا توکیل لازم نه دی، یعني که خصم په دې راضي نه وي نو نه پر هغه د قاضي مجلس ته حاضرېدل لازم دي او نه جواب ورکول لازم دي.

**د صاحبینو دلیل:** دا دی چې که مؤکل بل څوک وکیل جوړ کړي نو دا هغه خالص په خپل حق کې تصرف وکړئ، نه د بل چا په حق کې، ځکه چې مؤکل به هغه د خصومت (دعویٰ کولو) وکیل جوړ کړی وي یا د جواب ورکولو، او دعویٰ کول یا جواب ورکول خالص د مؤکل حق دی، او خالص په خپل حق کې تصرف کول د هیچا پر رضا موقوف نه وي، مثلاً که دیو سړي (زید) پر خلکو قرضونه باندي او هغه سړی (زید) د قرضونو د اخیستلو لپاره بل څوک وکیل جوړ کړي، نو دا توکیل د مقروضه خلکو پر رضا موقوف نه دی او د خلکو رضا ته هیڅ ضرورت نسته، ځکه چې قرض اخیستل د قرضخواه (زید) حق دی، همداسې خصومت کول (دعویٰ کول) او جواب ورکول هم خالص د مؤکل حق دی، نو د ځکه دا توکیل (توکیل بالخصومت) به هم د بل خصم پر رضا موقوف نه وي او د هغه رضا مندي ته به ضرورت نه وي.

**د امام صاحب دلیل:** دا دی چې دا موږ نه تسلیمو چې توکیل بالخصومت فقط د مؤکل خالص حق دی او دا خالص په خپل حق کې تصرف کول دي؛ ځکه چې تر خصومت او دعویٰ کولو وروسته پر خصم مثلاً پر مدعیٰ علیه د مدعي لپاره جواب ورکول لازمیږي، په همدې وجه خو مدعي د قاضي مجلس ته د مدعیٰ علیه د حاضرولو طلب کوي او هغه را حاضروي، او کله چې پر مدعیٰ علیه (مؤکل) جواب ورکول د مدعي حق دی، نو جواب ورکول خالص د مدعیٰ علیه (مؤکل) حق پاته نه سو (دا په یاد لرئ! چې په دې مسئله کې مدعیٰ علیه مؤکل دی. ځکه چې پر هغه د حدّ یا قصاص دعویٰ سوې ده)، لهذا اوس که مدعیٰ علیه د جواب ورکولو لپاره بل څوک د ځان وکیل وټاکي (جوړ کړي)، نو دا وکیل جوړول به خالص د مدعیٰ علیه په خپل حق کې تصرف کول نه وي، او کله چې د مدعیٰ علیه (مؤکل) لپاره وکیل جوړول خالص په خپل حق کې تصرف کول نه دي، بلکي دا د بل خصم یعني د مدعي په حق کې هم تصرف دی او مدعي هم په دې کې شریک دی، نو ځکه د وکیل جوړولو لپاره به د مدعي رضا هم ضروري وي او د هغه له رضا څخه به د مدعیٰ علیه لپاره دا جائز نه وي چې بل څوک د ځان وکیل جوړ کړي. (دا دلیل صرف په هغه صورت کې منطبق کیږي کله چې د مدعیٰ علیه (مؤکل) له طرفه وکیل ټاکل سوی وي، لکه موږ چې په مثلاً ویلو سره د دې وضاحت وکړی).

دويم جواب دا دی چي که موږ دا تسليم هم کړو چي توکيل بالخصومت خالص د مؤکل (مدعی عليه) په خپل حق کي تصرف کول دي، نو هم د بل خصم (مدعي) له اجازت څخه بغير دا تصرف صحيح نه دي؛ ځکه چي د انسان فقط هغه تصرف صحيح کيږي چي په هغه سره بل چا ته ضرر نه رسيږي، حال دا چي په دې مسئله کي د مدعیٰ عليه په دغه تصرف يعني په توکيل بالخصومت سره بل خصم (مدعي) ته ضرر رسيږي، په دې توګه چي په خصومت کي د خلکو حالات مختلف وي، ځيني خلک ډېر چالاکه او مکار وي او په خپل چالاکي سره غلطه خبره هم په پوره توګه سمولای سي، او ځيني داسي عاجزه او بې ژبي وي چي صحيح خبره هم په پوره توګه نه سي کولای، نو ډېره ممکنه ده چي مدعیٰ عليه يو چالاک او ځيرک سړی وکيل جوړ کړي او هغه خپل په بيداري سره بل خصم (مدعي) ته نقصان ورسوي، او ښکاره خبره ده چي د بل خصم نقصان په هماغه صورت کي ثابتيږي کله چي د هغه له رضا څخه بغير توکيل بالخصومت لازم وګرځول سي. نو په همدې وجه موږ وايو چي د بل خصم له رضا څخه بغير توکيل بالخصومت جائز او لازم نه دی.

د دې مثال داسي دی لکه يو غلام چي د دوو خلکو په مينځ کي مشترک وي او له هغو څخه فقط يو شريک د هغه غلام سره عقد کتابت وکړي يعني هغه مکاتب جوړ کړي، نو دا عقد د بل شريک پر رضا او اجازت موقوف کيږي، يعني که چيري بل (دويم) شريک راضي سي او د دې اجازت ورکړي، نو بيا دا عقد نافذيږي او غلام مکاتب جوړيږي، کنې نه نافذيږي؛ ځکه که څه هم عقد کونکي شريک په خپل حق کي تصرف کړی دی لېکن څرنګه چي د بل شريک له رضا څخه بغير د دې عقد په نافذولو کي هغه ته نقصان رسيږي، نو ځکه به دا عقد د هغه پر اجازت او رضا موقوف وي، نو همداسي به په دې مسئله کي هم د توکيل بالخصومت نفاذ او لزوم د بل خصم پر اجازت او رضا موقوف وي.

د دې په خلاف که چيري مؤکل مريض وي يا د سفر د مودت پر مسافه غائب وي، نو څرنګه چي په دې دواړو صورتونو کي پر دغه مريض او مسافر مؤکل جواب ورکول واجب نه دي، نو ځکه د هغو له طرفه وکيل جوړول به خالص په خپل حق کي تصرف کول وي او په دې سره بل چا ته ضرر هم نه رسيږي، نو ځکه په دې صورتونو کي به توکيل بالخصومت د بل خصم پر رضا موقوف نه وي او د هغه له رضا څخه بغير به هم دا جائز او لازم وي. او څرنګه چي د مسافر مؤکل لپاره د بل خصم له رضا څخه بغير توکيل بالخصومت د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز جائز دي، همداسي کله چي مؤکل د سفر اراده وکړي او په سفر روان سي، نو په دې صورت کي هم د هغه لپاره توکيل بالخصومت (د

دعوې وكيل جوړول) جائز دي، ځكه څرنګه چي د مريض كېدلو او مسافر كېدلو په حالت كي توكيل بالخصومت ته ضرورت ثابت دى، همداسي په دې صورت كي هم هغه ته ضرورت ثابت دى.

ولو كانت المرأة إلخ: د دې حاصل دا دى چي كه يو ښځه ډېره پرده ناكه او شرمناكه وي او هغه د بهر په وتلو او د قاضي مجلس ته په حاضرېدلو عادت نه وي، نو د هغې لپاره د بل خصم له رضا څخه بغير هم توكيل بالخصومت جائز دى؛ ځكه كه په داسي صورت كي هغه جائز نه وګرځول سي نو د ښځي حق به ضايع سي؛ ځكه شرم او پردې والا ښځه كه حاضره هم سي نو هم به د خپل شرم په وجه خوله نه سي پورته كولاى، نو ځكه د هغې لپاره توكيل جائز دى، دا د امام ابو بكر رازي رَحِمَهُ الله قول دى، او همدا متأخرينو فقهاؤ غوره قول ګڼلى دى.

## د وكالت شرطونه

قَالَ: وَمِنْ شَرْطِ الْوَكَالَةِ أَنْ يَكُونَ الْمُوَكِّلُ مِمَّنْ يَمْلِكُ التَّصَرُّفَ وَيَلْزَمُهُ الْأَحْكَامُ فرمايي: او د كالت له شرط څخه دا دي چي مؤكل به داسي كس وي كوم چي د تصرف مالك وي او پر هغه به احكام لازم وي لِأَنَّ الْوَكِيلَ يَمْلِكُ التَّصَرُّفَ مِنْ جِهَةِ الْمُوَكِّلِ ځكه چي وكيل د مؤكل له طرفه د تصرف مالك كيږي فَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ الْمُوَكِّلُ مَالِكًا لِيُمَلِّكَهُ مِنْ غَيْرِهِ نو ځكه ضروري ده چي مؤكل به په خپله هم [د تصرف] مالك وي، د دې لپاره چي بل څوک د هغه مالك جوړ كړي وَ يُشْتَرَطُ أَنْ يَكُونَ الْوَكِيلُ مِمَّنْ يَعْقِلُ الْعَقْدَ وَيَقْصِدُهُ او [دا هم] شرط دي چي وكيل به داسي كس وي كوم چي په عقد پوهيږي او د عقد كولو اراده لري[د ټوكو او مسخرو په توګه به عقد كونكى نه وي] لِأَنَّهُ يَقُومُ مَقَامَ الْمُوَكِّلِ فِي الْعِبَارَةِ ځكه چي وكيل په خبرو كولو كي د مؤكل قائم مقام وي فَيُشْتَرَطُ أَنْ يَكُونَ مِنْ أَهْلِ الْعِبَارَةِ نو ځكه شرط [او ضروري] دي چي وكيل به له اهل عبارت څخه وي [يعني عاقل او د تصرف مالك به وي] حَتَّى لَوْ كَانَ صَبِيًّا لَا يَعْقِلُ أَوْ مَجْنُونًا تر دې كه وكيل داسي كوچنى وي چي نه پوهيږي يا لېونى وي كَانَ التَّوْكِيلُ بَاطِلًا نو وكيل جوړول به باطل وي.

**اللغات**: ﴿جهة﴾ جانب، طرف. ﴿اهل العبارة﴾ مطلب يې دا دى چي عاقل (پوهېدونكى) او تميز كونكى به وي، ځكه چي له عقل او تميز څخه بغير انسان د عبارت (كلام) په معنى او مفهوم نه پوهيږي.

**تشريح:** په دې عبارت کې امام قدوري رَحِمَهُ الله د وکالت له شرطونو څخه دوه شرطونه بیان کړي دي چې له هغو څخه یو شرط د مؤکل سره متعلق دی او بل د وکیل سره، د مؤکل سره د متعلق شرط حاصل دا دی چې د مؤکل لپاره دا شرط دي چې هغه به په خپله هم د تصرف مالک وي یعني هغه ته به د تصرف اختیار حاصل وي او بل دا چې د هغه پر ذمه به احکام لازم وي، صاحب د اثمار الهدایې د دې مطلب دا بیان کړی دی چې پر هغه به د شریعت احکام لازم وي یعني هغه به عاقل، بالغ او آزاد وي، ځکه که هغه عاقل، بالغ او آزاد نه وي نو پر هغه به د شریعت احکام لازم نه وي، او کله چې په خپله یو څوک د تصرف مالک نه وي او احکام پرې لازم نه وي، نو هغه به بل څوک څنګه د تصرف مالک جوړ کړي او څنګه به پر بل حکم لازم کړي یعني بل څوک به څنګه وکیل جوړ کړي، نو ځکه د مؤکل د تصرف مالک کېدل او پر هغه دا احکامو لازمېدل شرط دي.

او هغه شرط کوم چې د وکیل سره متعلق دی، دا دی چې وکیل به داسې کس وي کوم چې په عقد او معامله پوهیږي چې عقد او معامله څه شی ده او د هغه په نفع او نقصان به خبر وي، همدارنګه په قصد او اراده سره به عقد کوونکی وي، د ټوکې او بازۍ په توګه به عقد کوونکی نه وي او هغه به مسخرې نه کښې؛ ځکه چې په عبارت بیانولو او خبرو کولو (کلام کولو) کې وکیل د مؤکل قائم مقام وي او وکیل د مؤکل کلام او خبرې نقل کوي، نو ځکه په وکیل کې به هم د خبرو کولو او نقل کولو صلاحیت موجود وي، یعني عاقل او پوهېدونکی به وي، همدا وجه ده که وکیل داسې بچی یا مجنون او لېونی وي کوم چې بالکل په عقد او معامله نه پوهیږي، نو د هغه وکیل جوړول باطل دي، ځکه چې د بچي او مجنون د کلام سره هیڅ حکم نه متعلق کیږي.

## د وکالت شرطونه

وَإِذَا وَكَّلَ الْحُرُّ الْعَاقِلُ الْبَالِغُ أَوِ الْمَأْذُونُ مِثْلَهُمَا او که چیرې آزاد، عاقل او بالغ کس یا مأذون [اجازت ورکړل سوی غلام یا کوچنی] د خپل ځان په څېر بل څوک وکیل جوړ کړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ الْمُوَكِّلَ مَالِكٌ لِلتَّصَرُّفِ ځکه چې مؤکل د تصرف مالک دی وَالْوَكِيلَ مِنْ أَهْلِ الْعِبَارَةِ او وکیل له اهل عبارت څخه دی وَإِنْ وَكَّلَ صَبِيًّا مَحْجُورًا يَعْقِلُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ أَوْ عَبْدًا مَحْجُورًا او که چیرې هغه داسې محجور بچی وکیل جوړ کړي کوم چې په خرڅولو او رانیولو پوهیږي یا محجور غلام [وکیل جوړ کړي] جَازَ نو [هم] جائز دي وَلَا يَتَعَلَّقُ بِهِمَا الْحُقُوقُ وَيَتَعَلَّقُ بِمُوَكِّلِهِمَا [لېکن] د دې دواړو سره [د عقد] حقوق نه متعلق کیږي بلکې د هغو د مؤکل سره متعلق کیږي لِأَنَّ الصَّبِيَّ مِنْ

أَهْلِ الْعِبَارَةِ ځکه چې بچی له اهل عبارت څخه دی أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَنْفُذُ تَصَرُّفُهُ بِإِذْنِ وَلِيِّهِ آیا ته نه ګورې! چې د هغه تصرف د هغه د ولي په اجازت سره نافذيږي وَالْعَبْدُ مِنْ أَهْلِ التَّصَرُّفِ عَلَى نَفْسِهِ مَالِكٌ لَهُ او غلام پر خپل ځان د تصرف اهل دی [او] د تصرف مالک دی وَإِنَّمَا لَا يَمْلِكُهُ فِي حَقِّ الْمَوْلَى او هغه فقط د خپل مالک په حق کې د تصرف مالک نه دی وَالتَّوْكِيلُ لَيْسَ تَصَرُّفًا فِي حَقِّهِ او وکيل جوړول د مالک په حق کې تصرف نه دی إِلَّا أَنَّهُ لَا يَصِحُّ مِنْهُمَا الْتِزَامُ الْعُهْدَةِ لیکن د دې دواړو له طرفه [پر ځان] د عهدې لازمول نه صحيح کيږي [يعني دوی پر خپل ځان د عقد ذمه واري (حقوق) نه سي لازمولای، مطلب دا چې غلام او بچی خو وکيل جوړېدای سي لیکن د عقد حقوق د هغو سره نه سي متعلق کېدای او پر هغو نه لازميږي] أَمَّا الصَّبِيُّ لِقُصُورِ أَهْلِيَّتِهِ کوم چې بچی دی نو ځکه چې د هغه اهليت کم [ناقص] دی وَالْعَبْدُ لِحَقِّ سَيِّدِهِ او غلام د خپل مالک د حق په وجه [د عقد ذمه واري (حقوق) پر ځان نه سي لازمولای] فَتَلْزَمُ الْمُوَكِّلَ نو ځکه دا حقوق به پر مؤکل لازم وي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّ الْمُشْتَرِيَ إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِحَالِ الْبَائِعِ ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ صَبِيٌّ أَوْ مَجْنُونٌ أَوْ مَحْجُورٌ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې که مشتري د بائع په حالت خبر نه وي بيا په خبر سي چې هغه خو بچی دی يا لېونی دی يا محجور دی لَهُ خِيَارُ الْفَسْخِ نو [په دې صورت کې] مشتري ته د بيع فسخ کولو اختيار سته [په حاشيه کې ذکر سوي دي چې ځيني حضرات وايي: د هدايې د اصل نسخې په حاشيه کې د "مجنون" د لفظ پر ځای "محجور" ليکلی سوی يعني عبارت داسي دی: "انه صبي محجور" نو په ظاهره د "مجنون" لفظ په عبارت کې غلط ليکل سوی دی. د تفصيل لپاره حاشيه اوګورئ!] لِأَنَّهُ دَخَلَ فِي الْعَقْدِ عَلَى ظَنٍّ أَنَّ حُقُوقَهُ تَتَعَلَّقُ بِالْعَاقِدِ ځکه چې مشتري په دې ګومان سره په عقد کې داخل سو [يعني په دې ګومان يې عقد کړی وو] چې د دې عقد حقوق به د عاقد سره متعلق وي فَإِذَا ظَهَرَ خِلَافُهُ لهذا کله چې د هغه [د ګومان] په خلاف ښکاره سو يَتَخَيَّرُ نو ځکه هغه ته به اختيار وي كَمَا إِذَا عَثَرَ عَلَى عَيْبٍ لکه څرنګه [چې په هغه وخت کې مشتري ته اختيار وي] کله چې هغه [په مبيع کې] په يو عيب خبر سي.

**اللغات**: ﴿محجور﴾ د نصر د باب مفعول دی: هغه کس چې له تصرف کولو څخه منع سوی وي، يعني له کاروبار او تجارت کولو څخه منع سوی او را ګرځول سوی وي، هغه کس چې يو پابندي پر

لګول سوي وي، ﴿التزام﴾ د افتعال د باب مصدر دی: پر خپل ځان لازمول، په خپله ذمه اخيستل، قبلول، ﴿عهدة﴾ ذمه واري، ﴿عثر﴾ د نصر د باب ماضي ده: په يو شي خبرېدل، مطلع کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو آزاد، عاقل او بالغ سړی يا مأذون فی التجارة غلام او کوچنی د خپل ځان په ځېر يو بل سړی د بيع وشراء (خرڅولو او رانيولو) وکيل جوړ کړي، نو دا توکيل جائز دی؛ دليل دا دی چې دلته مؤکل په خپله د تصرف مالک دی او له اهل عبارت څخه دی، نو ځکه هغه ته به د دې ملکيت او اختيار هم وي چې بل څوک د تصرف مالک او وکيل جوړ کړي يعني د هغه توکيل (وکيل جوړول) به جائز وي.

همدارنګه که آزاد، عاقل او بالغ سړی يو داسي کوچني وکيل جوړ کړي کوم چې غير مأذون لهٗ او محجور وي (يعني له تجارت او کاروبار کولو څخه منع سوی وي)، لېکن د بيع وشراء په مطلب او په نفع و نقصان پوهيږي، يا هغه يو محجور غلام وکيل جوړ کړي، نو په دې صورتونو کي هم "توکيل" جائز دی، لېکن د دې محجور صبي يا محجور غلام سره حکم نه متعلق کيږي بلکي د هغو د مؤکل سره حکم متعلق کيږي، خو بيا هم دا توکيل جائز او صحيح دی؛ ځکه چې د و[illegible]ت صحيح کېدلو شرط دا دی چې مؤکل به د تصرف مالک وي او پر هغه به احکام لازم وي او بل دا چې وکيل به په عقد پوهېدونکې وي او له اهل عبارت څخه به وي (لکه په تېر عبارت کي چې دا شرط بيان سو)، او دلته په محجور بچي او غلام کي دا شرط موجود دی يعني په عقد پوهيږي، ځکه داسي بچی د عقد اهل دی (فقط د هغه تصرّف د خپل ولي پر اجازت موقوف دی. او د ولي په اجازت سره د هغه عقد نافذيږي)، همدارنګه محجور غلام هم پر خپل ذات د تصرف اهل دی، همدا وجه ده که هغه پر خپل ځان د يو چا د مال اقرار وکړي (چې پر ما د خالد دومره مال باندي دی)، نو تر آزادېدلو وروسته پر هغه لازم دي چې مقرلهٗ (خالد) ته به مال ورکوي. لنډه دا چې په محجور بچي او غلام دواړو کي د وکالت شرط موجود دی، همدارنګه د هغو په مؤکل کي هم د وکالت شرط موجود دی يعني آزاد، عاقل، بالغ او د تصرف مالک دی، لهذا کله چې په دواړو کي د وکالت د صحيح کېدلو شرطونه موجود دي، نو ځکه دا وکالت به جائز او صحيح وي.

او پاته سوه د غلام د محجور کېدلو مسئله، نو د هغه محجور والی د وکالت له صحيح کېدلو څخه مانع نه دی؛ ځکه چې غلام په خپل حق کي له تصرف کولو څخه محجور (ممنوع) نه دی، بلکي د خپل مالک په حق کي له تصرف څخه محجور دی، او که يو څوک محجور غلام وکيل جوړ کړي نو دا د هغه د مالک په حق کي تصرف کول نه دي، نو ځکه به د هغه وکيل جوړول جائز وي.

لېکن د محجور بچي او محجور غلام سره د بيع وشراء حقوق نه متعلق کيږي، بلکي د دې تعلق د هغو د مؤکل سره دی: د محجور بچي سره خو ځکه حقوق نه متعلق کيږي، چې هغه تر اوسه نابالغ

دی او د هغه اهليت ناقص دی، او د غلام سره ځکه نه متعلق کیږي، چې هغه د بل چا په ملکيت کې (مملوک) دی او که د هغه سره حقوق متعلق کړی سي نو په دې سره به د هغه مالک ته ضرر او نقصان رسیږي، لهذا د دې وجوهاتو په خاطر د دې دواړو سره د حقوقو متعلق کېدل ساقط کړل سوي دي او د هغو د مؤکل سره متعلق او تړل سوي دي؛ ځکه چې د همدې مؤکل په توکیل سره حقوق په وجود کې راغلي او پیدا سوي دي، نو ځکه د دې حقوقو ذمه واري به هم د هغه پر غاړه وي.

وعن أبي يوسف: د دې حاصل دا دی چې که د رانيولو په وخت کې مشتري د بائع (وکيل بالبيع) په حالت خبر نه سي چې هغه آزاد، عاقل، بالغ دی، که نه؛ بیا له رانیولو څخه وروسته مشتري ته معلومه سي چې بائع محجور بچی یا محجور غلام دی یا مجنون دی، نو په دې صورت کې مشتري ته د بیع فسخ کولو (ماتولو) اختیار سته؛ دلیل دا دی چې مشتري خو په دې ګومان سره عقد (رانیول) کړي وه چې د دې عقد حقوق به د بائع (وکیل بالبیع) سره متعلق وي او د هغه سره به زه عقد پوره کړم، لېکن کله چې بائع محجور غلام یا محجور بچی یا مجنون وختی نو د عقد حقوق د مؤکل سره متعلق سوه او معامله د مشتري د ګومان په خلاف ښکاره سوه، لهذا په دې عقد کې د هغه رضا موجوده نه سوه او د هغه خوښه فوت سوه، نو ځکه به هغه ته د بیع فسخ کولو حق وي.

د دې مثال داسي دی لکه مشتري چې یو شی رانیسي او بیا هغه ته د دې شي (مبیع) یو عیب معلوم سي، نو په دې صورت کې هغه ته د خیار عیب پر بناء د بیع فسخ کولو حق سته؛ ځکه چې د مبیع په عیبداره کېدلو سره د هغه خوښه او رضا فوت سوه، نو همداسي په دې پورتني صورت کې هم چې کله مشتري ته معلومه سوه چې بائع محجور غلام یا بچی دی نو د مشتري رضا فوت سوه، نو ځکه په دې صورت کې به هم هغه ته د بیع فسخ کولو اختیار وي. (خو ظاهر روایت دا دی چې بائع لره اختیار نسته د محجور غلام او محجور بچي په صورت کې، او راجح قول هم ظاهر روایت دی [القول الراجح ج:۲، ص:۱۴۹])

## د کوم عقد وکالت حقوق د وکیل یا مؤکل سره متعلق کیږي؟

قَالَ: وَالْعَقْدُ الَّذِي يَعْقِدُهُ الْوُكَلَاءُ عَلَى ضَرْبَيْنِ فرمايي: او هر هغه عقد [معامله] کوم چې يې وکیلان کوي پر دوه قسمه دي كُلُّ عَقْدٍ يُضِيفُهُ الْوَكِيلُ إِلَى نَفْسِهِ [یو] هر هغه عقد [دی] کوم چې يې وکیل د خپل ځان وطرف ته منسوب کوي كَالْبَيْعِ وَالْإِجَارَةِ لکه بیع او اجاره فَحُقُوقُهُ تَتَعَلَّقُ بِالْوَكِيلِ دُونَ الْمُوَكِّلِ نو د داسي عقد حقوق د وکیل سره متعلق کیږي، نه د مؤکل سره وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَتَعَلَّقُ بِالْمُوَكِّلِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې هغه د مؤکل سره متعلق کیږي لِأَنَّ الْحُقُوقَ تَابِعَةٌ

لِحُكْمِ التَّصَرُّفِ ځکه چې حقوق د تصرف د حکم تابع وي وَالْحُكْمُ وَهُوَ الْمِلْكُ يَتَعَلَّقُ بِالْمُوَكِّلِ او حکم يعني ملکيت د مؤکل سره متعلق وي فَكَذَا تَوَابِعُهُ نو ځکه همداسې به د هغه توابع هم [د مؤکل سره متعلق] وي وَصَارَ كَالرَّسُولِ وَالْوَكِيلِ بِالنِّكَاحِ او هغه د قاصد او د نکاح د وکيل په شان شو وَلَنَا: أَنَّ الْوَكِيلَ هُوَ الْعَاقِدُ حَقِيقَةً او زمونږ دليل دا دی: چې حقيقتاً عقد کونکی وکيل دی [ځکه خبرې او کلام فقط هغه کوي] لِأَنَّ الْعَقْدَ يَقُومُ بِالْكَلَامِ ځکه چې عقد په کلام سره قائميږي وَصِحَّةُ عِبَارَتِهِ لِكَوْنِهِ آدَمِيًّا او د هغه د عبارت صحيح کېدل د هغه د انسان کېدلو په وجه دي [نه د وکيل کېدلو په وجه] وَكَذَا حُكْمًا او همداسې حکماً هم [عقد کونکی وکيل دی] لِأَنَّهُ يَسْتَغْنِي عَنْ إِضَافَةِ الْعَقْدِ إِلَى الْمُوَكِّلِ ځکه چې هغه د مؤکل وطرف ته د عقد له منسوبولو څخه مستغني [بې پروا] دی [يعني هغه دې محتاج نه دی چې د مؤکل وطرف ته عقد منسوب کړي] وَلَوْ كَانَ سَفِيرًا عَنْهُ او که چېرې وکيل د مؤکل له طرفه سفير [او وکيل بالنکاح] وای [لکه څرنګه چې امام شافعي رَحِمَهُ الله دې ته اشاره کړې ده] لَمَا اسْتَغْنَى عَنْ ذٰلِكَ كَالرَّسُولِ نو هغه به د مؤکل وطرف ته د عقد له منسوبولو څخه مستغني نه وای لکه قاصد وَإِذَا كَانَ كَذٰلِكَ او کله چې داسې ده كَانَ أَصِيلًا فِي الْحُقُوقِ نو وکيل به [د عقد] د حقوقو په باره کې اصيل وي فَتَتَعَلَّقُ بِهِ نو ځکه دا حقوق به د هغه سره متعلق کېږي وَلِهٰذَا قَالَ فِي الْكِتَابِ: يُسَلِّمُ الْمَبِيعَ وَيَقْبِضُ الثَّمَنَ او په همدې وجه امام قدوري رَحِمَهُ الله په کتاب [مختصر القدوري] کې ويلي دي: چې وکيل به مبيع ورسپاري او پر ثمن به قبضه کوي وَيُطَالَبُ بِالثَّمَنِ إِذَا اشْتَرَى او د ثمن مطالبه به له هغه څخه کېږي کله چې يې [يو شی] رانيولی وي وَيَقْبِضُ الْمَبِيعَ او پر مبيع به هغه قبضه کوي وَيُخَاصَمُ فِي الْعَيْبِ او د عيب په باره کې به د هغه سره مخاصمه [دعوی] کېږي [کله چې هغه يو شی خرڅ کړی وي] وَيُخَاصِمُ فِيهِ او [همدارنګه] د عيب په باره کې به هغه مخاصمه کوي [کله چې يې يو شی رانيولی وي] لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ مِنَ الْحُقُوقِ ځکه چې دا ټوله [د عقد] له حقوقو څخه دي وَالْمِلْكُ يَثْبُتُ لِلْمُوَكِّلِ خِلَافَةً عَنْهُ اعْتِبَارًا لِلتَّوْكِيلِ السَّابِقِ او د مؤکل لپاره خو ملکيت د مخکني توکيل په اعتبار کولو سره د وکيل له طرفه د نائب په توګه ثابتيږي [يعني ملکيت خو د وکيل په نيابت کې مؤکل ته

حاصليږي، په شروع کي د وکيل جوړولو په اعتبار سره اکَالْعَبْدِ يَتَّهِبُ وَيَصْطَادُ وَيَحْتَطِبُ لکه غلام چي هبه قبوله کړي يا ښکار وکړي يا بوټي جمع کړي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده قَالَ: وَفِي مَسْأَلَةِ الْعَيْبِ تَفْصِيلٌ نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د عيب په مسئله کي څه تفصيل سته چي هغه به موږ انشاء الله [څه وروسته] ذکر کړو.

**اللغات:** ﴿يضيفه﴾ د افعال د باب مضارع ده: د يو شي نسبت د بل شي وطرف ته کول، منسوب کول (منسوبول). ﴿يستغني﴾ د استفعال د باب مضارع ده: مستغني کېدل، بې پروا کېدل. ﴿رسول﴾ پیغام رسونکی، قاصد. ﴿سفير﴾ استازی، د بل چا خبره نقلونکی، قاصد. ﴿يتّهب﴾ د افتعال د باب مضارع ده: هبه قبلول (هديه قبلول). ﴿يحتطب﴾ مخکنی صيغه ده: بوټي او لرګي ټولول (سره جمع کول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی کوم عقود چي وکيلان خلک کوي، هغه پر دوه قسمه دي: ① يو هغه عقود دي چي د هغوی حقوق د وکيل سره متعلق کيږي. ② دويم هغه دي چي حقوق يې د مؤکل سره متعلق کيږي (دويم قسم به په راروان عبارت کي ذکر سي). د اول قسم لپاره قاعده دا ده چي هر هغه عقد کوم چي يې وکيل د خپل ځان وطرف ته منسوب کړي او د هغه لپاره دا منسوب کول صحيح هم وي، لکه خرڅول (بيع کول)، په اجاره ورکول وغيرهما، مثلاً يو سړی د بل چا له طرفه د يو شي د خرڅولو وکيل جوړ سي (چي هغه ته وکيل بالبيع وايي)، نو د داسي عقد حقوق د وکيل سره متعلق کيږي، نه د مؤکل سره، يعني وکيل د هغه د حقوقو ذمه وار کيږي، نه مؤکل.

دا تقسيم زموږ په نېز دی، کنې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په هر صورت کي د عقد حقوق د مؤکل سره متعلق کيږي او فقط مؤکل د هغه ذمه وار کيږي او وکيل په هيڅ صورت کي هم د هغه نه ذمه وار کيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي د عقد حقوق د تصرف د حکم يعني د ملکيت تابع وي، او ملکيت د مؤکل سره متعلق وي، نه د وکيل سره، لهذا کله چي د تصرف حکم يعني "ملکيت" د مؤکل سره متعلق دی، نو کوم څه چي د هغه تابع دي يعني حقوق، نو هغه به هم د مؤکل سره متعلق کيږي. او د وکيل حالت داسي دی لکه قاصد (پيغام رسونکی) او وکيل في النکاح، يعني څرنګه چي د دې کسانو سره د عقد حقوق نه متعلق کيږي، بلکي د هغو د مؤکل سره متعلق کيږي، همداسي به د دې پورتني وکيل حقوق هم د هغه د مؤکل سره متعلق کيږي، نه د وکيل سره.

**زموږ دليل:** دا دی چي په دې صورت کي عقد کونکی کس حقيقتاً هم وکيل دی او حکماً هم وکيل دی؛ حقيقتاً وکيل خو ځکه دی چي هغه عاقد دی او په خپل کلام او خبرو سره د عقد کونکی

(منعقد کونکی) دی، او څرنګه چې هغه عاقل او بالغ انسان دی نو هغه د عقد کولو او د ایجاب و قبول کولو اهل هم دی، نو ځکه هغه عاقد هم دی او په دې سره حواله سره حقیقتاً وکیل هم دی، او حکماً ځکه وکیل چې هغه په یوازې سر (تن تنها) د عقد کولو او پوره کولو ملکیت لري او له دې څخه مستغني دی چې د مؤکل وطرف ته عقد منسوب کړي، او داسې نه دی لکه قاصد (پېغام رسونکی) چې هغه د خپل مرسل (پېغام استونکي) وطرف ته د عقد منسوبولو ته محتاج او مجبوره دی او لکه وکیل في النکاح چې د خپل مؤکل وطرف ته د عقد منسوبولو ته محتاج دی. بلکې وکیل بالبیع او وکیل بالاجاره وغیرهما له دې نسبت څخه مستغني دي، لهذا که هغه د سفیر او وکیل في النکاح په څېر وای نو هغه به خامخا د مؤکل وطرف ته د عقد منسوبولو ته محتاج وای، حالانکې داسې نه ده، نو ځکه به دا وکیل د عقد د حقوقو په باره کې اصیل وي (یعني داسې به وي لکه اصل مالک)، او څرنګه چې د نورو اصیلانو سره د عقد حقوق متعلق کیږي او هغو ته راجع کیږي، همداسې به د دې وکیل (وکیل بالبیع...) سره هم د عقد حقوق متعلق کیږي او هغه ته به راجع کیږي.

او څرنګه چې وکیل بالبیع د عقد د حقوقو په باره کې اصیل دی، نو په همدې وجه امام قدوري رَحِمَهُ الله په خپل کتاب "مختصر القدوري" کې ویلي دي چې که عاقد وکیل بالبیع وي نو فقط هغه به مشتري ته مبیع سپاري او پر ثمن به قبضه کوي، او که چیرې وکیل بالشراء وي نو د ثمن مطالبه به فقط له هغه څخه کیږي او هغه به پر مبیع قبضه کوي، او که چیرې وکیل بالبیع وي او بیا په مبیع کې یو عیب ښکاره سي نو مشتري به فقط د هغه سره مخاصمه (دعویٰ کوي)، نه د مؤکل سره؛ ځکه چې دا ټوله خبرې د عقد حقوق دي، لهذا کوم شوک چې د دې حقوقو په باره کې اصیل دی، فقط له هغه څخه به د دې پوښتنه او غوښتنه کیږي، او څرنګه چې په دې صورتونو کې همدا وکیل د عقد د حقوقو اصیل دی، نو ځکه فقط له هغه څخه به د مذکوره حقوقو په باره کې پوښتنه او غوښتنه کیږي.

والملك یثبت للموکّل إلخ: په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دلیل جواب ورکوي، مختصر او آسانه حاصل یې دا دی چې ملکیت په اصل کې د وکیل لپاره دی او د مؤکل ملکیت د وکیل د نائب والي په توګه ثابت دی (ځکه چې مؤکل د وکیل تر عقد کولو، د هغه سره د حقوقُ العقد تر متعلق کېدلو او بیا د مؤکل لپاره د دې حقوقو د ملکیت تر ثابتېدلو دېر مخکې هغه د عقد کولو وکیل جوړ کړی دی)، لنډه دا چې دلته که څه هم د مؤکل لپاره ملکیت ثابتیږي لېکن اول د هغه ثبوت د وکیل لپاره وي او بیا د وکیل په متابعت کې د مؤکل لپاره ثابتیږي، نو ځکه په دې مسئله کې به د مؤکل لپاره اصالتاً ملکیت ثابت نه وي بلکې

نیابتاً به ثابت وي، او کله چې د مؤکل لپاره اصالتاً ملکيت ثابت نه دی، نو ښکاره خبره ده چې د عقد حقوق هم د هغه لپاره ثابت نه وي، بلکې د وکیل لپاره به ثابت وي.

د دې مثال داسې دی لکه د يو سړي (مولیٰ) غلام چې د بل چا هديه قبوله کړي، يا ښکار وکړي، يا په صحرا کې بوټي او لرګي سره جمع کړي، نو که څه هم د دې شيانو مالک مولیٰ وي لېکن هغه د غلام په واسطه او حواله سره د دې شيانو مالک وي، نه اصالتاً. همداسې په دې مسئله کې که څه هم ملکيت د مؤکل لپاره ثابت دی لېکن هغه اصالتاً نه دی بلکې د وکيل په واسطه او حواله سره دی.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د مؤکل لپاره د ملکيت ثابتېدلو دا صورت صحيح دی، او همدا زياتره علماؤ او فقهاؤ خوښ کړی دی، تر دې چې شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله فرمايلي دي "وهو الأصح" چې همدا طريقه تر ټولو زياته صحيح ده. (عنايه وبنايه)

قال وفي مسألة إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې که د وکيل د رانيولو او خرڅولو په صورت کې مبيع عيبداره وخيږي، نو د دې په حکم کې څه غوندې تفصيل دی چې هغه به انشاء الله په آينده "باب الوكالة بالبيع والشراء" کې بيان سي.

## د عقد وکالت دويم قسم

قَالَ: وَكُلُّ عَقْدٍ يُضِيفُهُ إِلَى مُوَكِّلِهِ فرمايي: او هر هغه عقد کوم چې يې وکيل د خپل موکل وطرف ته منسوب کوي كَالنِّكَاحِ وَالْخُلْعِ وَالصُّلْحِ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ لکه نکاح، خلع او له قتل عمد څخه صلح فَإِنَّ حُقُوقَهُ تَتَعَلَّقُ بِالْمُوَكِّلِ دُونَ الْوَكِيلِ نو د هغه حقوق د مؤکل سره متعلق کيږي، نه د وکيل سره فَلَا يُطَالَبُ وَكِيلُ الزَّوْجِ بِالْمَهْرِ لهذا د خاوند له وکيل څخه به د مهر مطالبه نه کيږي وَلَا يَلْزَمُ وَكِيلَ الْمَرْأَةِ تَسْلِيمُهَا او د ښځي پر وکيل به د هغې ورسپارل نه لازميږي لِأَنَّ الْوَكِيلَ فِيهَا سَفِيرٌ مَحْضٌ ځکه چې وکيل په دغه عقدونو کې فقط سفير دی أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَا يَسْتَغْنِي عَنْ إِضَافَةِ الْعَقْدِ إِلَى الْمُوَكِّلِ آيا ته نه ګورې! چې دا وکيل د مؤکل وطرف ته له عقد منسوبولو څخه مستغني نه دی وَلَوْ أَضَافَهُ إِلَى نَفْسِهِ او که چيرې وکيل د خپل ځان وطرف ته عقد منسوب کړي كَانَ النِّكَاحُ لَهُ نو نکاح به د هغه لپاره وي فَصَارَ كَالرَّسُولِ نو ځکه وکيل [په نکاح او داسې نورو عقودو کې] د قاصد په څېر سو وَهٰذَا لِأَنَّ

الْحُكْمَ فِيهَا لَا يَقْبَلُ الْفَصْلَ عَنِ السَّبَبِ او دا [د قاصد په څېر د هغه کېدل] ځکه دي چي په دې عقودو کي حکم له سبب [عقد] څخه جدايي نه قبلوي لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ ځکه چي دا [سبب] اسقاط دي فَيَتَلَاشَى نو ځکه هغه کمزوري کیږي فَلَا يُتَصَوَّرُ صُدُورُهُ مِنْ شَخْصٍ وَثُبُوتُ حُكْمِهِ لِغَيْرِهِ نو ځکه د يوه کس له طرفه د هغه صادرېدل او د بل چا لپاره د هغه د حکم ثابتېدل ممکن نه دي فَكَانَ سَفِيرًا نو ځکه به وکيل سفير [او قاصد] وي.

**اللغات**: ﴿صلح عن دم العمد﴾ که يو څوک قصداً قتل وکړي چي د هغه په وجه قصاص پر لازم سي، لېکن بيا هغه د قصاص په عوض کي د مقتول د اولياؤ (قريبانو) سره پر څه مال صلح وکړي، نو دې ته صلح عن دم العمد وايي، ﴿سفير﴾ استازی، خبره نقلونکی، قاصد، کوم کس چي صرف د خپل مؤکل خبره نقل کوي او په خپله پر هغه هيڅ حقوق لازم نه وي، نو هغه ته "سفير محض" وايي، ﴿فصل﴾ د ضرب د باب مصدر دی: جلا کېدل (جدا کېدل)، عليحده کېدل، ﴿إسقاط﴾ د افعال د باب مصدر دی: ساقطول، ﴿يتلاشى﴾ نيستي کېدل (لا شی کېدل)، مراد ځني کمزوري کېدل (مضمحل کېدل) دي. (اثمار الهدايه، اشرف الهدايه، احسن الهدايه)

**تشريح**: په دې عبارت کي د عقد دويم قسم بيان سوی دی چي د هغه سره د مؤکل حقوق متعلق کيږي، د دويم قسم لپاره قاعده دا ده چي هر هغه عقد کوم چي وکيل د خپل مؤکل وطرف ته منسوب کړي او د مؤکل وطرف ته د هغه منسوبول ضروري وي، نو د هغه عقد حقوق د مؤکل سره متعلق کيږي، نه د وکيل سره، مثلاً د خاوند يا ښځي له طرفه يو څوک وکيل بالنکاح جوړ سي، يا د ښځي له طرفه د خلع وکيل جوړ سي، يا د مقتول د اولياؤ له طرفه وکيل جوړ سي، نو په دې ټولو صورتونو کي د مذکوره عقدونو حقوق د مؤکل سره متعلق کيږي او فقط مؤکل د جواب ور کولو ذمه واره کيږي، پر وکيل هيڅ ذمه واري نه لازميږي، مثلاً که يو څوک د خاوند له طرفه وکيل بالنکاح جوړ سي، نو د مهر مطالبه فقط له مؤکل يعني له خاوند څخه کيږي، او که چيري د ښځي له طرفه وکيل جوړ سي، نو پر وکيل د ښځي ورسپارل نه لازميږي، بلکي په خپله پر ښځي دا لازميږي (چي هغه به خاوند ته خپل ځان سپاري)، همدارنګه که ښځه د خلع کولو لپاره يو څوک وکيل جوړ کړي، نو د "بدل خلع" مطالبه به هم فقط له ښځي څخه کيږي، له وکيل څخه به نه کيږي، همدارنګه که يو قاتل سړی د قتل عمد په باره کي د صلح کولو لپاره يو څوک وکيل جوړ کړي، نو په دې صورت کي به د بدل قصاص مطالبه له قاتل څخه کيږي، نه له وکيل څخه؛ ځکه چي په دې ټولو اُمورو کي وکيل محض سفير او قاصد دی او هغه د مؤکل وطرف ته د عقد منسوبولو ته محتاج او مجبوره دی، ځکه که چيري هغه د مؤکل

وطرف ته مثلاً د نکاح عقد منسوب نه کړي، نو نکاح به په خپله د هغه لپاره وسي، نه د مؤکل لپاره (يعني وکيل به خاوند وګرځي، نه مؤکل)، همداسي که دا نور عقدونه د مؤکل وطرف ته منسوب نه کړل سي نو هم دا ټول خرابي مينځ ته راځي، نو ځکه موږ وايو چي په دې ټولو عقودو کي وکيل فقط قاصد او سفير (خبره نقلونکی) دی، او قاصد چي کوم عقد وکړي د هغه حقوق او احکام د مُرسل او قاصد جوړونکي وطرف ته رجوع او د هغه سره متعلق کيږي، نه د قاصد او سفير سره، نو ځکه په پورتني صورتونو کي به هم د وکيل عقود د مؤکل وطرف ته راجع کيږي او فقط مؤکل به د هغه ذمه واره وي.

وهذا لأن الحكم إلخ: په دې عبارت سره په مذکوره عقدونو کي د وکيل د قاصد کېدلو او سفير کېدلو علت بيانوي، حاصل يې دا دی چي په نکاح، خلع او داسي نورو عقودو کي حکم له سبب يعني له عقد څخه نه جلا کيږي، يعني داسي نه سي کېدای چي نکاح خو وسي لېکن د يو څا د خِيار په وجه د نکاح حکم يعني د بضع ملکيت د خاوند لپاره ثابت نه سي، بلکي کله چي هم نکاح وتړل سي نو سمدستي خاوند د بضع مالک کيږي او حکم له سبب څخه نه جلا کيږي؛ ځکه چي په دې عقودو کي سبب د اسقاط (ساقطولو) له قبيلې څخه دی مطلب دا چي دا عقدونه (نکاح او داسي نور) د اسقاط له قبيلې څخه دي، په دې توګه چي تر نکاح مخکي د ښځي بضع د بل چا لپاره حرامه وي لېکن نکاح دغه حرمت ساقطوي او د هغې بضع د خاوند لپاره روا کوي، همدارنګه په خلع کي خاوند له بضع څخه خپل ملکيت ساقطوي، او په صلح عن قتل العمد کي اولياء له مقتول څخه خپل حق (قصاص) ساقطوي، نو ځکه دا ټول عقدونه د اسقاط له قبيلې څخه دي، او ساقطېدونکی شی ډېر کمزوری او مضمحل وي. لهٰذا دا بالکل ممکنه ده چي سبب اول د وکيل په ذريعه د وکيل لپاره صادر سي او بيا د هغه حکم د بل چا يعني د مؤکل لپاره ثابت سي او په دې توګه د سبب او حکم په مينځ کي فصل واقع سي؛ ځکه دا چي خبره جائز نه ده چي يو شی (مثلا قصاص) يو وار د وکيل په حق کي ساقط سي بيا دويم وار دا حکم مؤکل ته منتقل سي او د مؤکل په حق کي ساقط سي. ځکه چي ساقط سوی شی بيا نه را ګرځي (لکه څرنګه چي همدا قاعده ده "السَّاقِطُ لَا يَعُوْدُ"). نو ځکه د عقودو د دويم قسم حکم دا دی چي په داسي عقودو کي وکيل محض سفير او قاصد دی او دا عقدونه به د مؤکل وطرف ته منسوب کيږي او فقط مؤکل به د هغوی اصل عاقد شمارل کيږي. چي د هغه لپاره د حکم په ثابتېدلو کي هيڅ خند او مشکل منځ ته را نه سي.

## د دویم قسم نظائر (مثالونه)

وَالضَّرْبُ الثَّانِي مِنْ أَخَوَاتِهِ الْعِتْقُ عَلَى مَالٍ وَالْكِتَابَةُ وَالصُّلْحُ عَلَى الْإِنْكَارِ او د دويم قسم له مثالونو څخه د مال په عوض كي آزادول، مكاتب جوړول او له انكار څخه صلح كول دي فَأَمَّا الصُّلْحُ الَّذِي هُوَ جَارٍ مَجْرَى الْبَيْعِ فَهُوَ مِنَ الضَّرْبِ الْأَوَّلِ لېكن هغه صلح كوم چي د بيع قائم مقام ده [يعني صلح عن الاقرار] هغه د عقد له اول قسم څخه ده وَالْوَكِيلُ بِالْهِبَةِ وَالتَّصَدُّقِ وَالْإِعَارَةِ وَالْإِيدَاعِ وَالرَّهْنِ وَالْإِقْرَاضِ سَفِيرٌ أَيْضًا او د هبه كولو، صدقه كولو، عاريتاً او امانتاً وركولو، رهن ايښودلو او قرض وركولو وكيل هم محض سفير [قاصد] دی لِأَنَّ الْحُكْمَ فِيهَا يَثْبُتُ بِالْقَبْضِ ځكه چي په دې عقودو كي حكم [ملكيت] په قبضه سره ثابتيږي وَأَنَّهُ يُلَاقِي مَحَلًّا مَمْلُوكًا لِلْغَيْرِ او دا قبضه د داسي محل سره متصل كيږي كوم چي د بل چا په ملكيت كي دی فَلَا يُجْعَلُ أَصِيلًا نو ځكه هغه اصيل [اصل مالک] نه سي ګرځول كېداى وَكَذَا إِذَا كَانَ الْوَكِيلُ مِنْ جَانِبِ الْمُلْتَمِسِ او همدا حكم دی كله چي وكيل [د دې شيانو] د غوښتونكي له طرفه [جوړ سوی] وي [يعني په دې صورت كي هم وكيل محض سفير او قاصد دی] وَكَذَا الشَّرِكَةُ وَالْمُضَارَبَةُ او همدا حكم د شركت او مضاربت هم دی إِلَّا أَنَّ التَّوْكِيلَ بِالِاسْتِقْرَاضِ بَاطِلٌ لېكن د قرض غوښتلو وكيل جوړول باطل دي حَتَّى لَا يَثْبُتَ الْمِلْكُ لِلْمُوَكِّلِ تر دې چي د داسي مؤكل لپاره ملكيت نه ثابتيږي [بلكي په خپله د وكيل لپاره ثابتيږي] بِخِلَافِ الرِّسَالَةِ فِيهِ په خلاف د قرض غوښتولو په باره كي د قاصد استولو.

**اللغات:** ﴿أخوات﴾ لفظي معنیٰ يې ده: خوندي، مراد ځني نظائر او مثالونه دي، ﴿جار مجرىٰ﴾ قائم مقام، ﴿إعارة﴾ عاريتاً وركول (د خواست په توګه وركول)، مثلاً زيد خالد ته خواست وكړي چي فلانكى شى ما ته د يو څو وخت لپاره امانتاً او په قرضِ حسنه راكړه!، او خالد هغه شى وركړي، نو دې ته عاريتاً وركول وايي، زيد ته مستعير وايي او خالد ته معير وايي، ﴿إيداع﴾ د افعال د باب مصدر دی: امانتاً ايښوول، په امانت وركول، ﴿إقراض﴾ د افعال د باب مصدر دی: په قرض وركول، ﴿مملوک﴾ د ضرب د باب مفعول دی: كوم شى چي د يو چا په ملكيت كي وي، هغه ته مملوک وايي، مثلاً د خالد په ملكيت كي يو موټر وي، نو دا موټر د هغه مملوک دی، ﴿ملتمس﴾ د افتعال د

باب فاعل دی: طلب کونکی، غوښتونکی، خواست کونکی، ﴿استقراض﴾ د استفعال د باب مصدر دی: په قرض غوښتل، په پور غوښتل، ﴿يلاقي محلاً مملوكًا للغير﴾ دا جمله څه مشکله ده، حاصل یې دا دی چې دا شیان یعني د هبې، صدقې او د داسې نورو شیان د وکیل په ملکیت کې نه دي بلکې د اصل مالک په ملکیت کې (مملوک) دي، نو ځکه وکیل به د اصل مالک په څېر نه ګرځول کیږي بلکې هغه به محض سفیر ګرځول کیږي. په عبارت کې به هم مختصراً په بله وینا د دې جملې تشریح وسي.

**تشریح:** صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې (په شریعت) کې د عقد د دویم قسم ډېر مثالونه سته: ① یو دا چې مالک (مولیٰ) د څه مال په عوض کې د خپل غلام د آزادولو لپاره یو څوک وکیل جوړ کړي (مثلا مالک بل چا ته ووایي چې "ته د دومره مال په عوض کې زما غلام آزاد کړه!"). ② مالک د خپل غلام د مکاتب جوړولو لپاره یو څوک وکیل جوړ کړي (مثلا مالک بل چا ته ووایي چې "ته د دومره مال په عوض کې زما د غلام سره عقد کتابت وکړه"). ③ صلح عن الانکار، مثلاً زید پر خالد د مال دعویٰ وکړي چې "زما پر تا دومره مال باندې دی"، لېکن خالد له دې څخه انکار وکړي، بیا مدعیٰ علیه یعني خالد صلح ته اماده سي (چې زه پر دومره مال صلح در سره کوم) او مدعي (زید) د خپل ځان له طرفه د صلح کولو لپاره یو څوک وکیل جوړ کړي، نو په دغو ټولو صورتونو کې حقوق د مؤکل سره متعلق کیږي، نه د وکیل سره.

ها! د صلح عن الاقرار حقوق د وکیل سره متعلق کیږي؛ ځکه چې صلح عن الاقرار د بیع قائم مقام ده او په هغه کې مبادلة المال بالمال کیږي (یعني مال په مال سره بدلول کیږي)، نو ځکه دا به له اول قسم عقودو څخه وي چې په هغه کې حقوق د وکیل سره متعلق کیږي.

والوکیل بالهبة إلخ: فرمایي چې که ④ د یو شي د هبه کولو، ⑤ صدقه کولو، ⑥ عاریتاً ورکولو، ⑦ امانتاً ورکولو، ⑧ د رهن په توګه ورکولو، ⑨ په قرض ورکولو لپاره یو څوک وکیل جوړ کړی سي، نو هغه هم محض سفیر او قاصد دی، ځکه چې په دې ټولو عقودو کې حکم په قبضه سره ثابتیږي (مثلا په صدقه کې چې کله مسکین [متصدق علیه] د صدقې پر شي قبضه وکړي نو بیا د صدقې حکم یعني ملکیت ثابتیږي. یعني تر قبضه کولو وروسته مسکین د هغه شي مالک کیږي او هغه ته د تصرف حق حاصلیږي، لنډه دا چې په دې ټولو صورتونو کې حکم [ملکیت] په قبضه سره ثابتیږي)، او قبضه یعني د موهوب لهٗ، متصدق علیه، مستعیر او داسې نورو قبضه پر داسې محل واقع کیږي کوم چې د مؤکل په ملکیت کې دی، او څرنګه چې د قبضې سره سمدستي حکم هم ثابتیږي، نو ځکه هغه حکم به هم د مؤکل په ملکیت

کي ثابتيږي، نو فقط همدا مؤکل به په دې عقودو کي اصيل وي، نه وکيل؛ ځکه پر کوم محل چي قبضه او حکم ثابتيږي، هغه محل د مؤکل په ملکيت کي دی او د هغه سره د وکيل هيڅ تعلق نسته بلکي هغه فقط سفير (خبره نقلونکی) دی، په بله وينا دا چي فقط د مؤکل معاون (مرستيال) دی، او ښکاره خبره ده چي د معاون وطرف ته هيڅ حکم نه راجع کيږي بلکي هغه چي د کوم چا تعاون کوي، د هغه وطرف ته حکم راجع کيږي، نو همداسي به په دغو صورتونو کي هم د مؤکل وطرف ته حکم راجع کيږي او فقط د مؤکل سره به حقوق متعلق وي، نه د وکيل سره.

همدارنګه کله چي په هبه، صدقه او اعاره کي د واهب، متصدق (صدقه کونکي) او معير پر ځای د موهوب لهٗ، متصدق عليه او مستعير له طرفه وکيل تاکل سوی وي، نو هم دغه حکم دی، يعني په دې صورت کي هم عقد او حکم د مؤکل سره متعلق کيږي، نه د وکيل سره. مګر د قرض غوښتلو په صورت کي وکيل جوړول مثلاً يو چا ته ويل چي "ته له فلانکي ځخه زما لپاره دومره مال په قرض واخله!"، نو دا توکيل باطل دی؛ ځکه په دې صورت کي به قرض د مؤکل لپاره وي او د هغه بدل به پر وکيل لازم وي، حال دا چي په دې کي د وکيل ښکاره نقصان دی، نو ځکه توکيل بالاستقراض باطل دی، حتیٰ که بيا هم يو سړی د قرض غوښتلو لپاره وکيل جوړ کړي، نو په هغه غوښتل سوي (اخيستل سوي) قرض کي د وکيل ملکيت ثابتيږي، نه د مؤکل. ها! د قرض غوښتلو لپاره قاصد (پيغام رسونکی) استول صحيح دي؛ ځکه چي د قاصد هره معامله د مُرسِل (استونکي) وطرف ته راجع کيږي او د نفع و نقصان سره د قاصد هيڅ تعلق نه وي.

وكذا الشركة إلخ: فرمايي که يو سړی د مضاربت او شرکت کولو لپاره بل څوک وکيل جوړ کړي، مثلاً يو سړی بل چا ته ووايي چي "ته فلانکي سړي ته ووايه چي ما په خپل بيع کي شريک کړي" يا "ته فلانکي سړي ته ووايه چي ما د خپل مال په خرڅولو کي مضارب کړي، نو دا هم جائز دي او په دې صورتونو کي به هم د وکيل عقد د مؤکل وطرف ته منسوب کيږي او وکيل به محض سفير او قاصد (پيغام رسونکی) وي.

## مؤکل له مشتري څخه د ثمن مطالبه کولای سي که نه؟ (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَإِذَا طَالَبَ الْمُوَكِّلُ الْمُشْتَرِيَ بِالثَّمَنِ فرمايي: او که چيري مؤکل له مشتري څخه د ثمن مطالبه وکړي فَلَهُ أَنْ يَمْنَعَهُ إِيَّاهُ نو مشتري ته دا اختيار سته چي هغه مؤکل له دې څخه منع کړي ايعني مؤکل ته له ثمن ورکولو څخه انکار وکړي] لِأَنَّهُ أَجْنَبِيٌّ عَنِ الْعَقْدِ وَحُقُوقِهِ ځکه چي مؤکل د عقد او د عقد له حقوقو څخه اجنبي [پردی] دی لِمَا أَنَّ الْحُقُوقَ إِلَى الْعَاقِدِ ځکه چي [د عقد] حقوق د عاقد وطرف ته راجع کيږي فَإِنْ دَفَعَهُ إِلَيْهِ لېکن که مشتري مؤکل ته ثمن ورکړي جَازَ نو جائز دي وَلَمْ يَكُنْ لِلْوَكِيلِ أَنْ يُطَالِبَهُ بِهِ ثَانِيًا او بيا وکيل ته دا حق نسته چي دويم وار له مشتري څخه د ثمن مطالبه وکړي لِأَنَّ نَفْسَ الثَّمَنِ الْمَقْبُوضِ حَقُّهُ ځکه چي قبضه کړل سوی ثمن اصل د مؤکل حق دی [ايعني پر کوم ثمن چي مؤکل قبضه کړې ده هغه د مؤکل حق دی] وَقَدْ وَصَلَ إِلَيْهِ او هغه حق ده ته ورسېدی وَلَا فَائِدَةَ فِي الْأَخْذِ مِنْهُ ثُمَّ الدَّفْعِ إِلَيْهِ [نو ځکه اوس] په دې کي هيڅ فايده نسته چي له مؤکل څخه هغه واخيستل سي بيا [بيرته] مؤکل ته ورکول سي وَلِهَذَا لَوْ كَانَ لِلْمُشْتَرِي عَلَى الْمُوَكِّلِ دَيْنٌ او همدا وجه ده که چيري پر مؤکل د مشتري قرض وي يَقَعُ الْمُقَاصَّةُ نو مقاصه [تبادله] واقع کيږي وَلَوْ كَانَ لَهُ عَلَيْهِمَا دَيْنٌ او که چيري پر مؤکل او وکيل دواړو د مشتري قرض وي يَقَعُ الْمُقَاصَّةُ بِدَيْنِ الْمُوَكِّلِ أَيْضًا دُونَ دَيْنِ الْوَكِيلِ نو هم د مؤکل په قرض سره مقاصه [تبادله] واقع کيږي، نه د وکيل په قرض سره وَبِدَيْنِ الْوَكِيلِ إِذَا كَانَ وَحْدَهُ يَقَعُ الْمُقَاصَّةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ ❁ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د وکيل په قرض سره [هم] مقاصه واقع کيږي کله چي يوازي پر وکيل قرض وي لِمَا أَنَّهُ يَمْلِكُ الْإِبْرَاءَ عَنْهُ عِنْدَهُمَا ځکه د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز وکيل د دې ملکيت [اختيار] لري چي مشتري

---

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۴، ص:۴۲۸)، وكذا في الخانية (ج:۳، ص:۱۵۵). [القول الراجح ۲، ص: ۱۵۰]

له ثمن څخه بري کړي وَلٰكِنَّهُ يَضْمَنُهُ لِلْمُوَكِّلِ فِي الْفَصْلَيْنِ لېکن وکيل په دغو دواړو صورتونو کې د مؤکل لپاره [د هغه د ثمن] ضامن کيږي.

**اللغات:** ﴿ثمن﴾ قيمت (پيسې)، رېټ. ﴿مقاصة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو شی د بل شي په مقابله کي گرځول (پور د پور په مقابله کي گرځول)، سره تبادله کول، ادل بدل کول. ﴿إبراء﴾ د افعال د باب مصدر دی: بري کول، معاف کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د خپل شي د خرڅولو لپاره بل څوک وکيل جوړ کړي (چي ته زما دا شی خرڅ کړه!)، او وکيل هغه شی خرڅ کړی لېکن له مشتري څخه ثمن نه واخلي؛ بيا د وکيل پر ځای مؤکل له مشتري څخه د ثمن مطالبه وکړي، نو په دې صورت کي مشتري ته اختيار دی چي که وغواړي نو مؤکل ته دي ثمن ورکړي او که وغواړي نو هغه دي منع کړي؛ دليل دا دی چي دلته مؤکل د وکيل په ذريعه عقد کړی دی، نو ځکه هغه د عقد او د عقد له حقوقو څخه اجنبي دی، او د عقد ټوله حقوق د عاقد يعني د وکيل وطرف ته راجع دي، او د ثمن مطالبه کول او اخيستل هم د عقد له حقوقو څخه يو حق دی، لهذا د ثمن د اخيستلو حق به هم د وکيل لپاره وي، نه د مؤکل لپاره، نو ځکه مشتري ته به دا اختيار وي چي مؤکل منع کړي او ثمن نه ورکړي، خو که هغه مؤکل ته ثمن ورکړي نو جائز دي او تر دې وروسته مشتري ته دا حق نسته چي له مشتري څخه دويم وار ثمن واخلي؛ ځکه چي دا ثمن د مؤکل خپل حق دی او که وکيل تر مؤکل مخکي ثمن اخيستي وای نو هغه به هم دا ثمن مؤکل ته ورکولای لېکن دلته په خپله مؤکل تر وکيل مخکي پر هغه قبضه وکړه او هغه ته خپل حق ورسېدی، او کله چي داسي ده نو له مؤکل څخه ثمن اخيستل او بيرته مؤکل ته ورکول هم بې فايدې دي، يعني دا حکم کول چي مشتري دي ثمن له مؤکل څخه واخلي او وکيل ته دي يې ورکړي بيا دي وکيل هغه بيرته مؤکل ته ورکړي، ښکاره خبره ده چي په دې کي هيڅ فايده نسته، ځکه کوم څه چي مقصود وو هغه حاصل سو، يعني مؤکل ته خپل حق ورسېدی، لهذا اوس بيا له مؤکل څخه هغه اخيستل او مؤکل ته ورکول يو بې فايدې او پالتو کار دی، نو ځکه داسي به هم نه کيږي.

ولهذا لوكان إلخ: څرنګه چي دا ثمن په اصل کي د مؤکل حق دی، نو په همدې وجه که پر مؤکل د مشتري قرض باندي وي او هغه قرض د ثمن سره برابر وي، نو په ثمن او قرض کي مقاصه (تبادله)

واقع کيږي، يعني مؤكل به خپل ثمن د قرض په بدله کي مشتري ته ور پريږدي او مشتري به ثمن د ځان سره راګرځوي او قرض او ثمن به سره ادل بدل کوي. (نو معلومه سوه چي دا ثمن فقط د مؤكل حق دی او هغه يې اصل حقدار دی).

ولوكان عليهما دين إلخ: او که چيري پر وکيل او مؤکل دواړو د مشتري قرض باندي وي، نو فقط د مؤکل د قرض سره مقاصه (تبادله) واقع کيږي، نه د وکيل؛ ځکه چي دا ثمن فقط د مؤکل حق دی.

وبدين الوكيل إلخ: ها! که چيري يوازي پر وکيل د مشتري قرض باندي وي، نو په دې صورت کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د وکيل د قرض سره مقاصه (تبادله) نه واقع کيږي، يعني وکيل به د قرض په بدله کي دا ثمن مشتري ته نه ورپريږدي (قرض او ثمن به نه سره تبادله کوي)؛ ځکه چي دا ثمن خو فقط د مؤکل حق دی.

لېکن د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په دې صورت کي د وکيل د قرض سره مقاصه (تبادله) واقع کيږي او بيا به وکيل مؤکل ته خپل ثمن ورکوي؛ ځکه د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز وکيل ته دا حق هم سته چي له مشتري څخه ثمن نه واخلي او هغه بري کړي، نو ځکه هغه ته به دا حق په درجه اولیٰ وي چي د قرض په بدله کي مشتري ته ثمن ور پريږدي، نو ځکه د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په دې صورت کي هم مقاصه کول (تبادله کول) جائز دي.

مګر وکيل په دواړو صورتونو کي د مؤکل د ثمن ضامن کيږي، ① يعني که وکيل مشتري له ثمن څخه بري کړي، نو په دې صورت کي به هم وکيل و مؤکل ته خپل ثمن ورکوي، ② همدارنګه که وکيل د قرض او ثمن تبادله سره وکړي، نو هم به وکيل و مؤکل ته خپل ثمن ورکوي؛ ځکه چي په دواړو صورتونو کي ثمن صرف د مؤکل حق دی. فقط والله أعلم وعلمهٗ اتم

قد تمّ الجزء السابع من أحسن الهداية في شرح الهداية، ويليه الجزء الثامن مبتدئًا بالوكالة بالبيع والشراء، اللهم اغفر لشارحه ولوالديه ولأساتذته ولمن قام بالمساعدة عليه

ربنا تقبل منا إنك أنت السميع العليم وتب علينا إنك أنت التواب الرحيم



